بسم الله الرحمن الرحيم

# صفوة التفاسير

پښتو

تأليف

## محمد علي الصابوني

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزيز پوهنتون
د شرعياتو او اسلامي زده کړو استاذ

ژباړونکې

مولوي شمس الله کمال زاده

المكتبة المعروفية
کوئټه لاهور پاکستان

# صفوة التفاسير

شپږم ټوک

د قرآن کریم هغه تفسیر چې د مأثور او معقول تولګه اوله خورا معتبرو تفسیرونو څخه لکه:
طبري، کشاف، قرطبي، اُلوسي، ابن کثیر، بحر محیط او نورو څخه يې غور چاڼ شوي او په
روانو او نویو اسلوبو چې بیان او لغوي اړخونو ته پکښې پاملرنه شوي لیکل شوي دي۔

مؤلف

## محمد علي الصابوني

په مکه مکرمه کښې د پاچا عبدالعزیز پوهنتون
د شرعیاتو او اسلامي زده کړو استاذ

ژباړونکي:

## مولوي شمس الله کمال زاده

عنبر الراشد پبلشرز



المکتبة المعروفیة
(کوئٹہ) کاسی روڈ شالدرہ کوئٹہ پاکستان
(لاہور) ہادیہ حلیمہ سنٹر غزنی سٹریٹ اردو بازار لاہور

:03337907394-03353132868
Ph:03159807152-03337907398
E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com
http://www.facebook.com/maktabamarofia

# دکتاب پیژندنه


دکتاب نوم: ----------- پښتو صفوه التفاسیر

تالیف: ----------- الشیخ محمد علي الصابوني رحمه الله

پښتو ژباړه: ----------- مولوي شمس الله کمال زاده

دکمپوزچاري: ----------- مرحوم انجنیر عبدالله ګل (ریان)
اوز یاته برخه مولوي عبد البصیر

خپرونکي اداره: ----------- المکتبة المعروفیة (کوئټه) (لاهور)

دچاپ شمیر: ----------- ۸۰۰ توکه

دچاپ کال: ----------- ۱۴۴۰ هجري قمري دمحرم الحرام میاشت

دکتاب ترلاسه کولو پته ----------- المکتبة المعروفیة (کوئټه) (لاهور)







المکتبة المعروفیة

(کوئٹہ) کاسی روڈ شالدرہ کوئٹہ پاکستان

(لاہور) بادیہ حلیمہ سنٹر غزنی سٹریٹ اُردو بازار لاہور

:03337907394-03353132868

Ph:03159807152-03337907398

E-mail:maktabamaroofia786@gmail.com

http://www.facebook.com/maktabamarofia

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ حمٓ ﴿١﴾ تَنزِيلُ ٱلْكِتَٰبِ مِنَ ٱللَّهِ ٱلْعَزِيزِ ٱلْحَكِيمِ ﴿٢﴾ مَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ إِلَّا بِٱلْحَقِّ وَأَجَلٍ مُّسَمًّى
وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ عَمَّآ أُنذِرُوا۟ مُعْرِضُونَ ﴿٣﴾ قُلْ أَرَءَيْتُم مَّا تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَرُونِى مَاذَا خَلَقُوا۟ مِنَ ٱلْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِى
ٱلسَّمَٰوَٰتِ ٱئْتُونِى بِكِتَٰبٍ مِّن قَبْلِ هَٰذَآ أَوْ أَثَٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٤﴾ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّن يَدْعُوا۟ مِن
دُونِ ٱللَّهِ مَن لَّا يَسْتَجِيبُ لَهُۥٓ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ وَهُمْ عَن دُعَآئِهِمْ غَٰفِلُونَ ﴿٥﴾ وَإِذَا حُشِرَ ٱلنَّاسُ كَانُوا۟ لَهُمْ أَعْدَآءً وَكَانُوا۟ بِعِبَادَتِهِمْ
كَٰفِرِينَ ﴿٦﴾ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُنَا بَيِّنَٰتٍ قَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ هَٰذَا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿٧﴾ أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰهُ قُلْ إِنِ
ٱفْتَرَيْتُهُۥ فَلَا تَمْلِكُونَ لِى مِنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا هُوَ أَعْلَمُ بِمَا تُفِيضُونَ فِيهِ كَفَىٰ بِهِۦ شَهِيدًۢا بَيْنِى وَبَيْنَكُمْ وَهُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴿٨﴾ قُلْ
مَا كُنتُ بِدْعًا مِّنَ ٱلرُّسُلِ وَمَآ أَدْرِى مَا يُفْعَلُ بِى وَلَا بِكُمْ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰٓ إِلَىَّ وَمَآ أَنَا۠ إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٩﴾ قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِن
كَانَ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ وَكَفَرْتُم بِهِۦ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنۢ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ عَلَىٰ مِثْلِهِۦ فَـَٔامَنَ وَٱسْتَكْبَرْتُمْ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ
﴿١٠﴾ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا سَبَقُونَآ إِلَيْهِ وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوا۟ بِهِۦ فَسَيَقُولُونَ هَٰذَآ إِفْكٌ قَدِيمٌ
﴿١١﴾ وَمِن قَبْلِهِۦ كِتَٰبُ مُوسَىٰٓ إِمَامًا وَرَحْمَةً وَهَٰذَا كِتَٰبٌ مُّصَدِّقٌ لِّسَانًا عَرَبِيًّا لِّيُنذِرَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ وَبُشْرَىٰ
لِلْمُحْسِنِينَ ﴿١٢﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ قَالُوا۟ رَبُّنَا ٱللَّهُ ثُمَّ ٱسْتَقَٰمُوا۟ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿١٣﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ
خَٰلِدِينَ فِيهَا جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿١٤﴾ وَوَصَّيْنَا ٱلْإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيْهِ إِحْسَٰنًا حَمَلَتْهُ أُمُّهُۥ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا وَحَمْلُهُۥ
وَفِصَٰلُهُۥ ثَلَٰثُونَ شَهْرًا حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُۥ وَبَلَغَ أَرْبَعِينَ سَنَةً قَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِىٓ أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ ٱلَّتِىٓ أَنْعَمْتَ عَلَىَّ وَعَلَىٰ
وَٰلِدَىَّ وَأَنْ أَعْمَلَ صَٰلِحًا تَرْضَىٰهُ وَأَصْلِحْ لِى فِى ذُرِّيَّتِىٓ إِنِّى تُبْتُ إِلَيْكَ وَإِنِّى مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ ﴿١٥﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ نَتَقَبَّلُ
عَنْهُمْ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا۟ وَنَتَجَاوَزُ عَن سَيِّـَٔاتِهِمْ فِىٓ أَصْحَٰبِ ٱلْجَنَّةِ وَعْدَ ٱلصِّدْقِ ٱلَّذِى كَانُوا۟ يُوعَدُونَ ﴿١٦﴾ وَٱلَّذِى قَالَ
لِوَٰلِدَيْهِ أُفٍّ لَّكُمَآ أَتَعِدَانِنِىٓ أَنْ أُخْرَجَ وَقَدْ خَلَتِ ٱلْقُرُونُ مِن قَبْلِى وَهُمَا يَسْتَغِيثَانِ ٱللَّهَ وَيْلَكَ ءَامِنْ إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ
فَيَقُولُ مَا هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿١٧﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ ٱلْقَوْلُ فِىٓ أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِم مِّنَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ
إِنَّهُمْ كَانُوا۟ خَٰسِرِينَ ﴿١٨﴾ وَلِكُلٍّ دَرَجَٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوا۟ وَلِيُوَفِّيَهُمْ أَعْمَٰلَهُمْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿١٩﴾ ﴾

الأحقاف: ١ – ١٩

لغتونه:

(شوک) برخه اوګډون (أثارة) پاتي شوني (تفيضون) تاسوګډېږی ډوبېږی (افاض الناس من عرفات) معنا رامات شول (بدعا) مبتدع امام رازي وايي چي: بدع اوبديع مبدع ښيي اوبدعت بياهغه نوي كارته وايي چي په سنت کي يې پخوانى مثال نه وي (افک) دروغ (کرها) ناخوښي مشقت اوکړاو (فصاله) له تي رودلوجلاكول (اوزعني) راوښيي (اف) دزجر كلمه ده (خلت) چي تېرشوي دي

تفسير:

﴿ حمٓ ﴾ له مقطعاتو توروڅخه دی چي دقرآنکريم په اعجازتنبيه ورکړي چي له همدغوهجائي تورو څخه منظوم دی (۱) ﴿ تَنزِيلُ ٱلْكِتَٰبِ مِنَ ٱللَّهِ ٱلْعَزِيزِ ٱلْحَكِيمِ ﴾ رالېږل ددې کتاب (قرآن) دی له طرفه د الله ښه غالب قوي (پخپله پاچهي کي) ښه حکمت والا (پخپل صنعت کي چي هرکارپه تدبيراو مصلحت سره کوي) ﴿ مَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ إِلَّا بِٱلْحَقِّ ﴾ ندی پيداکړي موږ آسمانونه او ځمکه اوهرهغه شيزونه چي په مينځ ددوی دواړوکي دي مګرپه حقه (ددې لپاره چي دلالت وکړي په قدرت اووحدانيت زموږ، عبث مونه دي پيداکړي همدغه حکمت پکي نغښتی دی ﴿ وَأَجَلٍ مُّسَمًّى ﴾ اوپه ټاکلي وعدې سره (چي هغه يې دفنامبعاداوقيامت ورځ دي) ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ عَمَّآ أُنذِرُوا۟ مُعْرِضُونَ ﴾ (اوهغه کسان چي کافران شوي دي له هغه څېزه چي دوی پرې وېرولی شي مخ ګرزونکي دي) يعني دغه کفار دآخرت دعذاب څخه چي ورباندي وېرولی شي مخ اړونکي اوپکي سوچ نه کوي نه هم دهغي ورځي لپاره تياری نيسي ،کله چي الله جل جلاله دالعزيزالحکيم ذات دوجوداوشتون بيان وفرمايوورپسې يې دبت پرستانوترديد وکړچي: ﴿ قُلْ أَرَءَيْتُم مَّا تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ ووايه ته ای محمده !) آياوينی خبراکړئ تاسي ماته په (حال د ) هغو(بتانو ) چي بولی (عبادت يې کوی) تاسي يې له الله (اودمعبودانو ګمان پرې کوی) ﴿ أَرُونِى مَاذَا خَلَقُوا۟ مِنَ ٱلْأَرْضِ ﴾ وښيي تاسي ماته کوم دی هغه شيزچي پيداکړی دی دوی له ځمکي څخه؟ (له انسان اوحيوان څخه) ﴿ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ ﴾ آياشته دوی ته څه شرکت په (پيداکولود )آسمانونوکي؟ ﴿ ٱئْتُونِى بِكِتَٰبٍ مِّن قَبْلِ هَٰذَآ ﴾ راوړئ تاسي ماته کوم کتاب (چي راغلی وي تاسي ته پخواله دې قرآنه چي دبتانود عبادت ماړيينه کوي ، دغه امردتعجيز لپاره دی څکه دوی کوم کتاب نلري چي داشراک په عقيده دلالت وکړي بلکه ګرد کتابونه په توحيد ګويادي ﴿ أَوْ أَثَٰرَةٍ مِّنْ عِلْمٍ ﴾ يايوه باقي علامه دليل له علمه د(پخوانيوانبياوو ) چي پدې سره شاهدي ورکړي ﴿ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ که چېري يی تاسي رښتوني (پدې دعوی کي چي دوی دالله شريکان دي په البحر المحيط کي وايي له دوی څخه يې وغوښتل چي يوازي يو کتاب ورته وروښيي چي دغيرالله په عبادت ناطق وي

(۱) دموضوع تفصيل دالبقرة سورت په پيل کي وګوره هلته کافي شافي بيان شته

اویاهم دېخوانیوله علمه څه پاتي شوني وړاندي کړي چي همدغه دعوی تائید کړي غرض له دې څخه ددوی توبیخ ده ځکه ګردنازل شوي کتابونه دتوحید سپارښتنه اودشرک بطلان کوي نودوی هیڅ نقلي اوعقلي سندنلري(۱) ورپسې الله تعالی دمشرکانوضلالت داسي بیانوي فرمايي: ﴿ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّن يَدْعُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَن لَّا يَسْتَجِيبُ لَهُۥٓ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَـٰمَةِ ﴾ (اوځوک دی ډېرګمراه (یعني نشته) له هغه چاچي بولي بې له الله څخه هغه چي نشي قبلولای هغه لره (دعا درخواست) ترورځي دقیامته پوري) یعني ترهغه چازیات ګمراه اوناپوه نشته ځوک چي دهغو بتانوعبادت کوي چي نه دعاوري او نه دارکسانوارتیاوحاجت پېژني نه دچاغږ ته ځواب وايي ځکه دوی جمادات دي نه اوري اونه عقل اوپوهه لري ﴿ وَهُمْ عَن دُعَآئِهِمْ غَـٰفِلُونَ ﴾ اودغه (بتان) له دعابلني ددغو(عابدانوڅخه) بې خبره دي (ځکه چي جمادات دي نه اوري اونه عقل اوپوهه لري ﴿ وَهُمْ عَن دُعَآئِهِمْ غَـٰفِلُونَ ﴾ دغه پردوی او عابدانوبې تهکم دی داچي بتان یې دعاقلانوپه ضمیر یادکړل ځکه چي عابدانوبې دوی دهغه چاپه مقام درولي ووچي ګټه اوتاوان رسولای شي سره له دې چي دوی دچاغوښتنه نشي ترسره کولای نه اوري نه ګټه رسوي همدغه ددوی له ګمان سره یې سمه ارزونه کړي ده اودعاقلانوپه ضمیربې راوړي دي ﴿ وَإِذَا حُشِرَ ٱلنَّاسُ كَانُوا۟ لَهُمْ أَعْدَآءً ﴾ اوکله چي رایټول کړل شي خلک (لپاره دحساب) وي به دغه (بتان) دغو(خپلوعابدانو) ته دښمنان (چي ورته تاوان به رسوي خوګټه به یې نه وي) ﴿ وَكَانُوا۟ بِعِبَادَتِهِمْ كَـٰفِرِينَ ﴾ اووي به دغه (معبودان) په عبادت ددغو(عابدینوخپلو) منکران (ځني بېزاره به وي مفسرین کرام وايي الله تعالی به شریکان (بتان) دقیامت په ورځ ژوندي کړي او دخپلوعابدانوڅخه به بېزاري اعلان کړي وايي به: ﴿ تَبَرَّأْنَآ إِلَيْكَ مَا كَانُوٓا۟ إِيَّانَا يَعْبُدُونَ ﴾ القصص: ۶۳ اویادغه دالله ویناچي ﴿ كَلَّا ۚ سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴾ مریم: ۸۲ والله علی کل شئ قدیر(۲) ﴿ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَـٰتُنَا بَيِّنَـٰتٍ ﴾ اوکله چي ولوستل شي پردغو(مکي کفارو) باندي آیتونه د(قرآن) زموږ ښکاره (چي دغه کلام الله دی) ﴿ قَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ﴾ نووايي هغه کسان چي کافران شوي دي حق (قرآن) ته کله چي راشي دوی ته ﴿ هَـٰذَا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴾ داسحرجادودی ښکاره (چي هیڅ شک اوشبه پکي نشته او کله چي بې ظاهرد ضمیرپرځای راووړچي ﴿ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ بې ووېل خوچي پردوی باندي بشپړ کفراوضلالت ولیکي. په البحر کي وايي داچي وبې ویل: لماجاءهم دې ته تنبیه ده چي دوی به له ډېره عناده بېوازي په اورېدلوسره دهغه نسبت سحرته وکړ بې له دې چي په هکله یې فکراوسوچ وکړي چي څه شی ورته لوستل کېږي(۳) ﴿ أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰهُ ﴾

---

(۱) البحرالمحیط ۸/ ۵۵

(۲) تفسیرکبیر ۲۸/ ۲

(۳) البحرالمحیط ۸/ ۵۶

بلکه وايې دوی له ځانه يې جوړکړی دی (محمد )دغه قرآن اوداالله له جانبه نه دی راغلی دغه توبيخي انکاردی ﴿ قُلْ إِنِ افْتَرَيْتُهُ فَلَا تَمْلِكُونَ لِي مِنَ اللَّهِ شَيْئًا ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته !) که ما جوړکړی وی دغه قرآن (فرضا ) له خپله ځانه پس نه به شی تاسي مالکان (خلاصونکي) مالره له (عذابه د)الله په مخکي هيڅ قدر(نوولي به يې زه په الله دروغ ترړم اوعذاب ته به يې ځان وړاندي کوم ؟) ﴿ هُوَ أَعْلَمُ بِمَا تُفِيضُونَ فِيهِ ﴾ الله ته ښې معلومي دي هغه خبري چي تاسي په هغوکي لګيايی (چي قرآن په بدي ستايی اووايا ست چي هغه شعردی، سحردی اوافتراء دی همداسي نورډول ډول پېغورونه ورته برابروی ﴿ كَفَىٰ بِهِ شَهِيدًا بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ ﴾ کافي دی دغه (الله) ښه شاهد حق ښوونکی په مينځ زمااوپه مينځ دتاسي کي (چي زمادرښتنولي اوتبليغ اوستاسي دجحوداوتکذيب شاهددی) ﴿ وَهُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ﴾ اوهمدغه الله دی ښه مغفرت کونکی (دګناهونو ) دهر رحم والا(په مؤمنانو بندګانو خپلو ) ابوحيان وايې چي پدې کي ددوی لپاره زيری دی که چېري دوی له کفرڅخه ايمان ته رجوع وکړي وبه يې ښښي اوهمداسي دغه آګاهي هم پکي شته چي الله پاک دحلم خاونددی ژرترژره يې په عذاب نه اخته کوي ﴿ قُلْ مَا كُنتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته !) نه يم زه اول له رسولانو (بلکه له ماپخواهم ډېر رسولان تېرشوي دي (نوبياولي زمااوپرما باندي ددغه (قرآن دنزول انکارکوی ؟. بدع اوبديع بې مثاله اوبې ساری څېزته ويل کېږي . ابن کثير وايې معناداچي تاسوپه ماولي بدګومانه ياست چي تاسوته به نه يم مبعوث اواستول شوی په تحقيق سره الله بې له استثناء ګردانبياء عليهم السلام خپلو اُمتونوتة الېږلي دي ﴿ وَمَا أَدْرِي مَا يُفْعَلُ بِي وَلَا بِكُمْ ﴾ اونه پوهېږم زه چي څه به وکړل شي له ماسره اوڅه به وکړل شي تاسوسره ؟(په دنياکي ځکه چي دالله تقدير له مغيباتوڅخه دی) ﴿ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ ﴾ نه کوم زه پيروي متابعت مګر خودهغه (حکم) چي ماته رالېږل شوی دی (له وحی څخه اوله خپله ځانه کوم بدعت نه کوم ﴿ وَمَا أَنَا إِلَّا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴾ (١)اونه يم زه مګروېرونکی يم ښکاره (له عذابه دالله تعالی په څرګندوشواهدواو ښکاره معجزاتوسره) ﴿ قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِن كَانَ مِنْ عِندِ اللَّهِ وَكَفَرْتُم بِهِ ﴾ ووايه ته (ای محمده دوی ته !) آياوينی تاسي ماخبرکړی ! که چېري وي دغه (قرآن) له جانبه دالله حال داچي کافران شوي ياست تاسي په ده سره) خواب يې محذوف هغه داچي ستاسوبه څه حال وي؟ ﴿ وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّن بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَىٰ مِثْلِهِ فَآمَنَ وَاسْتَكْبَرْتُمْ ﴾ اوبياشاهدي ويلي ده يوه شاهدله(علماوو ) دبني اسرائيلوپه مثل حقيقت داسي يوکتاب باندي پس ايمان راوړی وي (پرې هغه شاهد ) اوتکبرکړی وای تاسي (له ايمان راوړلو پرې نوستاسوبه څه حال وي؟ آياتاسوبه ظالمان نه ياست ؟ بلکه خامخابه ظالمان ياست زمخشري وايې چې: دشرط ځواب محذوف دی هغه داکه چېري دغه قرآن دالله له جانبه نازل شوی وي اوتاسي ورباندي کافران يی

(١) دابن کثير مختصر ۳/ ۳۱۲

آیاتاسو ظالمان نه یاست؟! او پدې محذوف باندې دالله داوینادلالت کوي چې: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ بېشکه الله نه ښیي سمه صافه لاره قوم ظالمانوته (١) مفسرین کرام وایي: له بنی اسرائیلو څخه شاهد (عبدالله بن سلام) وو کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینې منورې ته تشریف راوړ عبدالله بن سلام ورته دازموینې لپاره راغی کله چې یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیدنو پوه شوچې دغه نوراني څېره دروغجن سړی نه دی اوسوچ یې پرې وکړورته ثابته شوه چې همدغه منتظر پیغمبردی نو یې ورته وویل: زه درېو څېزونو پوښتنه درڅخه کوم چې له الله پرته پرې هېڅوک نه پوهېږي مگرهغه چې پیغمبروي پوهېږي) دقیامت لومړی نښه څه ده؟ جنتیان به لومړی کوم خواړه خوري اوڅه سبب دی چې زوی پلاراو یامور ته کېږي؟ کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ځواب ورکړنو ویې ویل چې: زه شاهدي وایم چې ته په حقه دالله تعالی پیغمبریې (٢) له دې وروسته الله تعالی ددوی مشرکانو یوه بله شبهه داسې تردیدوي چې فرمایي: ﴿ وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَوْ كَانَ خَيْرًا مَّا سَبَقُونَآ إِلَيْهِ ﴾ او وایي هغه کسان چې کافران شوي دي په حق دهغو کسانو کې چې ایمان یې راوړی دی (داسې) که چېرې وای (دایمان راوړل) خیربهترنو نه به وو رومبی شوي دغه (خوارمؤمنان) پر موږ باندې هغه ته (بلکه موږ اشراف اوغټان به تردوی رومبی شوي وو په ایمان راوړلو کې. ابن کثیر وایي چې ددوی مقصد حضرت بلال، عمار، اوصهیب رضوان الله علیهم اوددوی په شان نور مستضعفان مسلمانان مینځې اومریونه ووچې په نبي علیه السلام باندې یې ایمان راوړی وو (٣) ﴿ وَإِذْ لَمْ يَهْتَدُوا۟ بِهِۦ فَسَيَقُولُونَ هَـٰذَآ إِفْكٌ قَدِيمٌ ﴾ او کله چې سمه صافه لاره یې بیانه مونده دغو (منکرانو) په دغه قرآن سره نوژردی چې دوی به ووایي دغه (قرآن) پخواني دروغ دي (چې محمد راوړي او الله ته یې نسبت کوي) ﴿ وَمِن قَبْلِهِۦ كِتَـٰبُ مُوسَىٰٓ إِمَامًا وَرَحْمَةً ﴾ حال داچې پخواله (قرآنه) کتاب (تورات) امام پېشوا لارښوونکی وو مؤمنانوته او (سبب د) رحمت وو (پردوی باندې) امام فخر رازي وایي چې: دآیت تعلق له پخواني سره دادی څرنگه چې مشرکانو دقرآن د سموالي په هکله پېغور خپراوو چې که چېرې دغه قرآن د خیرښېگڼې لپاره وای نودغوبېوزلو پېښې لوڅو به ترموږ دمخه نه وای منلی نوالله ددوی تردیدهسې فرمایي چې تاسوخو پدې کې شک اوشبه نه کوئ چې تورات دالله له لوري په موسی علیه السلام باندې نازل شوی وواودغه تورات امام اومقتداوو بیاهمدغه تورات د محمد رسول الله په راتلوزېری ورکوي که تاسودتورات په هکله منی چې دالله له لوري مقتداکتاب دی نودهغه حکم ومنئ چې همدامحمد صلی الله علیه وسلم دالله له لوري رښتونی پیغمبردی (٤) ﴿ وَهَـٰذَا كِتَـٰبٌ مُّصَدِّقٌ لِّسَانًا عَرَبِيًّا ﴾ اودغه قرآن یو کتاب تصدیق کونکی دی (هغو پخوانیو کتابونو لره) پداسې حال کې چې په عربي ژبه دی

---

(١) د کشاف تفسیر ۴/ ۲۳۶

(٢) دعبدالله بن سلام کیسه په تفصیل سره په بخاري شریف کې راغلې ده.

(٣) دابن کثیر مختصر ۳/ ۳۱۸

(٤) کبیر تفسیر ۲۸/ ۱۲

(نو څرنګه يې انکارکوی دغه بيان چې ډېرفصيح اوبرهان يې ښکاره څرګند او اعجاز يې ترتورات لازيات دی؟ ﴿ لِّيُنذِرَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ وَبُشْرَىٰ لِلْمُحْسِنِينَ ﴾ ددې لپاره چې و وېروي (دغه قرآن) هغه کسان چې ظلم يې کړی دی (پرځانونوخپلو په کفرسره) اوزېری دی نيکو کارانو(مؤمنانو) ته يعني ددې لپاره چې دمکې ظالمان کفارددوزخ له عذابه ووېروي اومؤمنانو نيکو کاروته دجنات النعيم زېری ورکړي کله چې الله دمشرکانو مکذبانو احوال بيان کړ ورپسې يې د مؤمنانوهغوکسانو چې دالله تعالی په شريعت سم ولاړوي بيان داسې پيل کړچې: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ قَالُوا۟ رَبُّنَا ٱللَّهُ ثُمَّ ٱسْتَقَٰمُوا۟ ﴾ (بېشکه هغه کسان چې وايي رب زمونږ الله دی (نه بتان) بيا ټينګ ودرېږي (په عبادت دده ) يعني هغه کسان چې ايمان ، توحيداو استقامت په شريعت سره يوځای کړي ﴿ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ ﴾ پس نه به وي هيڅ وېره پردوی (په آخرت کې چې تکليف ويني) ﴿ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴾ اونه به وي دوی چې خفه به شي په هغه څه چې په دنياکې ترې پاتې شوي دي ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ خَٰلِدِينَ فِيهَا ﴾ دغه کسان اهل دجنت دي پداسې حال کې چې همېشه به وي دوی په دغه (جنت) کې ﴿ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ ور کوله به شي دوی ته جزاء په سبب دهغو(نېکوعملونو) چې کول به يې (په دنياکې) ﴿ وَوَصَّيْنَا ٱلْإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيْهِ إِحْسَٰنًا ﴾ اووصيت حکم موکړی دی هرانسان ته له موراوپلارخپل سره داحسان نيکې کولو، څرنګه چې دالله خوښي دموراوپلارپه خوښۍ کې نغښتې اوغضب يې دموراوپلارپه غضب کې پټ دی ځکه الله تعالی بندګان دهغوی سره احسان کولوته وهخول بيايې سبب داسې بيانوي چې ﴿ حَمَلَتْهُ أُمُّهُۥ كُرْهًا وَوَضَعَتْهُ كُرْهًا ﴾ پورته کړي (ساتلی) يې دی دی(په نس خپل کې) مور دده په سختۍ سره اوبيا يې اېښودلی (زېږولی) دی ده لره په سختۍ سره ﴿ وَحَمْلُهُۥ وَفِصَٰلُهُۥ ثَلَٰثُونَ شَهْرًا ﴾ اوداپورته کول(ساتل) دده (دمورپه نس کې) اوجلاکېدل دده (له تي څخه) دېرش مياشتې وي ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ أَشُدَّهُۥ وَبَلَغَ أَرْبَعِينَ سَنَةً ﴾ ترهغه پورې کله چې ورسېږدی قوت(دهوښياري) خپلې ته او ورسېږ څلوېښت کالونوته (چې هغه دعقل دبشپړتوب اوهوښياري منتهادی([1]) ﴿ قَالَ رَبِّ أَوْزِعْنِىٓ أَنْ أَشْكُرَ نِعْمَتَكَ ٱلَّتِىٓ أَنْعَمْتَ عَلَىَّ وَعَلَىٰ وَٰلِدَىَّ ﴾ وويل ده ای زماربه ماته الهام وکړې په زړه کې ، توفيق راکړې په دې چې شکراداکړم دنعمت ستاهغه چې انعام کړی دی تاپرمااوپه موراوپلارزمابانديې (چې زه يې په ورکتوب کې وروزلم) ﴿ وَأَنْ أَعْمَلَ صَٰلِحًا تَرْضَىٰهُ ﴾ (بل داراته الهام وکړه) چې زه نيک عمل وکړم چې ته په هغه راضي کېږې ﴿ وَأَصْلِحْ لِى فِى ذُرِّيَّتِىٓ ﴾ اوصلاحيت کېږده ته (ياالله) په اولاده زماکې ) شيخ زاده وايي چې دغه دعا کونکی درې څيزونه له الله څخه غوښتې يوداچې په نعمت باندې دشکر ايستلوتوفيق ورکړي دوهم دا چې دالله درضااوخوښې دطاعت کولوتوفيق ورپه برخه کړي او دريم دا چې اولاده اونسل يې صالحان کړي همدغه دبشريت

([1]) علماوو ويلي ځکه نوهيڅ پيغمبرترڅلوېښت کلنۍ مخکې نه دی مبعوث شوی.

دنېکمرغي کمال دی (۱) ﴿إِنِّي تُبْتُ إِلَيْكَ وَإِنِّي مِنَ الْمُسْلِمِينَ﴾ بېشکه ماتوبه کړي ده تاته اوبېشکه زه يم له حکم منونکوڅخه (په اسلام منګولي لګونکی. ابن کثيروايي په آيت شريف کي ددې ارشاداولارښوونه ده چي څوک څلوېښت کلني ته ورسېږي نونوي توبه دي وباسي اوالله ته دي رجوع وکړي اوپدغه تکل دي ټينګ اوسي(۲) ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ نَتَقَبَّلُ عَنْهُمْ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا﴾ داهغه کسان دي چي قبلوومورله دوی نه ډېرښه دهغو (کارونو) چي دوی کړي دي(اوپه ښه توګه جزاء ورکوو) ﴿وَنَتَجَاوَزُ عَن سَيِّئَاتِهِمْ فِي أَصْحَابِ الْجَنَّةِ﴾ اوتېرېږوله ګناهونو ددوی نه پداسي حال کي چي وي به دوی په اوسېدونکودجنت کي ﴿وَعْدَ الصِّدْقِ الَّذِي كَانُوا يُوعَدُونَ﴾ وعده کړي ده الله وعده رښتيني چي وو دوی چي وعده به ورسره کېده (په دنيا کي په) ژبه دپيغمبرانو چي نيک عملونه به يې منل کېږي اوتر ګناهونو به يې ورتېرېږو. کله چي الله دنېک بنده مثال بيان کړچي نيکوکاراولادبه دغسي دنېکمرغي پوړۍ ته رسېږي اورپسې يې د آزاري اولادحال راووړچي څرنګه دبدمرغي په لوردرومي اوهلاکت ته رسېږي ويې فرمايل: ﴿وَالَّذِي قَالَ لِوَالِدَيْهِ أُفٍّ لَّكُمَا﴾ اوهغه( سړی) چي ويې ويل: موراوپلارخپل ته (کله چي ايمان ته يې راوباله) قباحت اوکراهيت دی تاسي دواړوته (په دغه بلنه راکولوباندي) ﴿أَتَعِدَانِنِي أَنْ أُخْرَجَ وَقَدْ خَلَتِ الْقُرُونُ مِن قَبْلِي﴾ آياوعده کوی تاسي له ماسره چي وبه ايستلی شم (له قبره) حال داچي په تحقيق تېرشوي دي ډېراهل دزماني پخواله ماڅخه؟ (اوبيوهم نه دي راژوندي شوی) نوزه څرنګه ژوندی شم)؟ ﴿وَهُمَا يَسْتَغِيثَانِ اللَّهَ وَيْلَكَ آمِنْ﴾ اوهغوی دواړه الله ته زاري کولې (پداسي حال کي چي ويل يې) خرابي ده تاته ايمان راوړه ته (اوپه بعث اونشورباورولره که نه هلاک شوې) ﴿إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ﴾ بېشکه وعده دالله (په بعث بعد الموت سره) حقه رښتياده (خلاف پکي نشته) ﴿فَيَقُولُ مَا هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ﴾ پس وايې دی نه دی دا(قول په بعث) مګردروغي کيسې دي دپخوانيوخلګو (چي واقعيت نلري الله تعالی فرمايې: ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ﴾ داهغه کسان دي چي حقه ثابته شوي ده پردوی باندي خبره (د عذاب)چي دوی به دوزخيان وي. قرطبي وايي معناداچي ورته عذاب واجب دی اودادالله هغه وينا ده چي په حديث شريف کي راغلې چي: ( هؤلاء في النارولا أبالي)دغه کسان دي په اورکي وي پروامي نشته ﴿فِي أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِم مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ﴾ په جمله دنور وامتونو خلګوکي چي په تحقيق تېرشوي دي پخواله دوی څخه له پېريانواوانسانانو(کفاروفجاروڅخه) ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا خَاسِرِينَ﴾ بېشکه دوی وو زيانکاران ) ځکه نوددوی آخرت ضائع شودغه ددوی دجهنم ددخول لپاره علت دی. امام فخر رازي وايې چي

---

(۱) البيضاوي حاشيه ۳ /۳۳۶

(۲) دابن کثيرمختصر ۳ /۳۲۰

ځينو کسانو ويلي دغه آيت د عبد الرحمن بن ابو بکر رضي الله عنه په هکله کله چي په اسلام لا نه وو مشرف شوی نازل شوی دی او سمه خبره داده چي آيت ديوتن په هکله نه دی بلکه هر څوک چي په دغه صفت موصوف او دغه يې حال او قال وي کله چي يې مور او پلار حق دين ته راوبولي نو انکار کوي دهغه لپاره دی او په دې خبره باندي دالله جل جلاله دا وينا هم دلالت کوي چي فرمايي هغه څوک چي مور او پلار ته يې وويل: ﴿ أُفٍّ لَّكُمَآ ﴾ دغه شخص دهغو کسانو له ډلي څخه دی چي دعذاب کلمه ورته واجبه شوي او پدې کي شک نشته چي عبد الرحمن ايمان راوړی او اسلام يې په ښه توګه ساتلی او دمسلمانانو له وتلي ښو او مشهورو کسانو څخه وو نو دا آيت حمل کول ورباندي باطل دی[١] ﴿ وَلِكُلٍّ دَرَجَٰتٌ مِّمَّا عَمِلُواْ ﴾ او هر فرقي ته (دمؤمنانو او کافرانو) مرتبې دي له (جزاء د) هغو اعمالو چي کړي يې دي (په دنيا کي) نو دمؤمنانو درجې په جنت کي اوچتي دي او دکفارو په ښکتني جهنم کي دي ﴿ وَلِيُوَفِّيَهُمْ أَعْمَٰلَهُمْ ﴾ دپاره ددې چي پوره به ورکړی شي دوی ته جزاء دعملونو ددوی (مؤمنانو ته درجات او کفارو ته درکات) ﴿ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴾ حال دا چي پر دوی به ظلم ونکړی شي (په تنقيص دحسناتو يا تزئيد دسيئاتو سره).

الله تعالى فرمايي:

﴿ وَيَوْمَ يُعْرَضُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ عَلَى ٱلنَّارِ أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَٰتِكُمْ فِي حَيَاتِكُمُ ٱلدُّنْيَا وَٱسْتَمْتَعْتُم بِهَا فَٱلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ ٱلْهُونِ
بِمَا كُنتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ فِي ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ وَبِمَا كُنتُمْ تَفْسُقُونَ ﴿٢٠﴾ ۞ وَٱذْكُرْ أَخَا عَادٍ إِذْ أَنذَرَ قَوْمَهُۥ بِٱلْأَحْقَافِ وَقَدْ خَلَتِ
ٱلنُّذُرُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦٓ أَلَّا تَعْبُدُوٓاْ إِلَّا ٱللَّهَ إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿٢١﴾ قَالُوٓاْ أَجِئْتَنَا لِتَأْفِكَنَا عَنْ
ءَالِهَتِنَا فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿٢٢﴾ قَالَ إِنَّمَا ٱلْعِلْمُ عِندَ ٱللَّهِ وَأُبَلِّغُكُم مَّآ أُرْسِلْتُ بِهِۦ وَلَٰكِنِّيٓ أَرَىٰكُمْ قَوْمًا
تَجْهَلُونَ ﴿٢٣﴾ فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُواْ هَٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا بَلْ هُوَ مَا ٱسْتَعْجَلْتُم بِهِۦ رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ
﴿٢٤﴾ تُدَمِّرُ كُلَّ شَيْءٍۭ بِأَمْرِ رَبِّهَا فَأَصْبَحُواْ لَا يُرَىٰٓ إِلَّا مَسَٰكِنُهُمْ كَذَٰلِكَ نَجْزِي ٱلْقَوْمَ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴿٢٥﴾ وَلَقَدْ مَكَّنَّٰهُمْ فِيمَآ
إِن مَّكَّنَّٰكُمْ فِيهِ وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَأَبْصَٰرًا وَأَفْـِٔدَةً فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَآ أَبْصَٰرُهُمْ وَلَآ أَفْـِٔدَتُهُم مِّن شَيْءٍ إِذْ
كَانُواْ يَجْحَدُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُواْ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿٢٦﴾ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُم مِّنَ ٱلْقُرَىٰ وَصَرَّفْنَا
ٱلْءَايَٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٢٧﴾ فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ قُرْبَانًا ءَالِهَةَۢ بَلْ ضَلُّواْ عَنْهُمْ وَذَٰلِكَ إِفْكُهُمْ وَمَا
كَانُواْ يَفْتَرُونَ ﴿٢٨﴾ وَإِذْ صَرَفْنَآ إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ ٱلْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ ٱلْقُرْءَانَ فَلَمَّا حَضَرُوهُ قَالُوٓاْ أَنصِتُواْ فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْاْ
إِلَىٰ قَوْمِهِم مُّنذِرِينَ ﴿٢٩﴾ قَالُواْ يَٰقَوْمَنَآ إِنَّا سَمِعْنَا كِتَٰبًا أُنزِلَ مِنۢ بَعْدِ مُوسَىٰ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ يَهْدِيٓ إِلَى

---

(١) کبير تفسير ۲۸ /۲۳ دغه دمحققينو مفسرينو غورچاڼ دی چي دهغوی نومونه دادي: ابن کثير، قرطبي، ابو السعود، او د البحر المحيط مؤلف رحمهم الله تعالى

ٱلْحَقِّ وَإِلَىٰ طَرِيقٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٣٠﴾ يَٰقَوْمَنَآ أَجِيبُوا۟ دَاعِىَ ٱللَّهِ وَءَامِنُوا۟ بِهِۦ يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ وَيُجِرْكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ
﴿٣١﴾ وَمَن لَّا يُجِبْ دَاعِىَ ٱللَّهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَيْسَ لَهُۥ مِن دُونِهِۦٓ أَوْلِيَآءُ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٣٢﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا۟
أَنَّ ٱللَّهَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَلَمْ يَعْىَ بِخَلْقِهِنَّ بِقَٰدِرٍ عَلَىٰٓ أَن يُحْـِۧىَ ٱلْمَوْتَىٰ ۚ بَلَىٰٓ إِنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴿٣٣﴾
وَيَوْمَ يُعْرَضُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ عَلَى ٱلنَّارِ أَلَيْسَ هَٰذَا بِٱلْحَقِّ ۖ قَالُوا۟ بَلَىٰ وَرَبِّنَا ۚ قَالَ فَذُوقُوا۟ ٱلْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿٣٤﴾
فَٱصْبِرْ كَمَا صَبَرَ أُو۟لُوا۟ ٱلْعَزْمِ مِنَ ٱلرُّسُلِ وَلَا تَسْتَعْجِل لَّهُمْ ۚ كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَ مَا يُوعَدُونَ لَمْ يَلْبَثُوٓا۟ إِلَّا سَاعَةً مِّن نَّهَارٍۭ ۚ
بَلَٰغٌ ۚ فَهَلْ يُهْلَكُ إِلَّا ٱلْقَوْمُ ٱلْفَٰسِقُونَ ﴿٣٥﴾ ﴾ الأحقاف: ۲۰ - ۳۵

## مناسبت

کله چي الله تعالی دځيني بدمرغه کسانو حال بیان کړ او رپسې يې په آخرت کي د کفارو فجارو بيان راوړ او بیايې دعادیانو هغوی چي الله ددوی دطغیان په نتیجه کي سره له دې چي خوراځواکمن اوداقدرت څښتنان وو هلاک کړل کیسه راوړه ترڅو د قریشي کفارو لپاره چي دطغیان او تکذیب آخره خاتمه څه کېدای شي؟ يادونه اوتذکیروی په پای دسورت کي دهغو څوتنو پېریانو چي قرآنکریم یې واورېدو او بیایي خپل تبرته دایمان راوړلو دعوت اوبلنه ورکړه یادونه شوي ده.

## لغتونه:

(الهون) سپکوالی اوذلت (الأحقاف) دشګوغونډۍ، چېري چي ډېري شګي سره پورته شوي وي دغه دعادیانو هستوګنځایونه وو(۱) (لتأفکنا) ترڅو ته مو واړوې (افک) دروغو ته وایه شي (عارض) پلنه وريځ چي دآسمان په کناروکي خپره وي (تدمر) هلاکوي له تدمیر او دمار څخه دی (صرفنا) استولی اومخامخ کړی مودی (یعی) (أعیا) عجز او ستوماني ته ویل کېږي

## تفسیر:

﴿ وَيَوْمَ يُعْرَضُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ عَلَى ٱلنَّارِ ﴾ او (یادکړه) (ای محمده!) هغه ورځ چي وړاندي کړی شي هغه کسان چي کافران شوي دي په اور) یعني درپه یادکړه هغه ورځ کله چي له دوزخ څخه برغولی (سرپوښ) لیري کړی شي او کافرانو ته څرګندشي دوی نږدې وروستل شي او ورته ګوري (او ورته وبه ویل شي چي) ﴿ أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَٰتِكُمْ فِى حَيَاتِكُمُ ٱلدُّنْيَا ﴾ (وړي دي تاسي لذائذ نېکي خپلي په ژوند ددنیا کي) دغه به ورته دتوبیخ او تقریع په توګه وویل شي چي نور نوستاسي برخه او ونډه په آخرت کي پاتي نه ده په البحرالمحیط کي وایي چي مرادله طیباتو څخه دنیوي دخوراک څښناک مستلذات اوخوندونه دي چي نبې جامې، فرشونه دناستي ملاستي کرسی، اوچپرکټونه اویانورڅېزونه چي دسوکاله ژوند خلګ یې په کاروي. مفسرین کرام وايي چي: مقصدله آیت څخه داچي تاسوایمان نه دی راوړی څکه دآخرت له نعمتونو څخه محروم یاست تاسوپه دنیاکي په لذتونوشهوتونوباندي له ایمان څخه مخ اړولی ووخپله خواني مو په کفراو معصیت کي خاوري کړه نوتاسوته دنعمتونوهیڅ ونډه نشته څکه نو وروسته فرمايي

(۱) دقرطبي تفسیر ۱۲ / ۳۰۳

چي: ﴿ وَٱسْتَمْتَعْتُم بِهَا ﴾ او نفع اخيستي تاسي په هغه سره ﴿ فَٱلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ ٱلْهُونِ ﴾ پس نن ورځ به جزا در کوله شي تاسي ته دعذاب سپکونکي ﴿ بِمَا كُنتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ ﴾ په سبب دهغه چي وی تاسي (په دنيا کي ) چي تکبربه موکاوو په ځمکه کي په ناحقه سره (يعني له ايمان او طاعت څخه به موتکبرکاوو ) ﴿ وَبِمَا كُنتُمْ تَفْسُقُونَ ﴾ او په سبب دهغه چي وی تاسي چي نافرماني به موکوله (په دنيا کي به وتلوله طاعته دالله او فسق او فجور موکاوو. امام فخر رازي وايې پدې آيت کي له تنعم څخه ممانعت نه معلومېږي ځکه آيت دکفارو په هکله راغلی ،والله کفارو ته پدې توبيخ فرمايلي چي په دنيا کي خوندونه اخلي اما د نعمتونو کي ډوبيږي) خو دمنعم شکرنه پرځای کوي ايمان ورباندي نه راوړي او مؤمن خو په خپل ايمان د ډېر سره دمنعم شکرادا کوي نو دده لپاره په نعمتونو لذت اخيستلو کي توبيخ نشته دليل يې دالله جل جلاله داوېناده چي فرمايي: ﴿ قُلْ مَنْ حَرَّمَ زِينَةَ ٱللَّهِ ٱلَّتِىٓ أَخْرَجَ لِعِبَادِهِۦ وَٱلطَّيِّبَٰتِ مِنَ ٱلرِّزْقِ ﴾ الاعراف (۳۲) هو کي له تنعم څخه ځان ژغورل بهتردي او همدغه معناد حضرت عمر رضی الله عنه په وينا کي نغښتي چي وايې. که ماغوښتلای ترتاسي به مي ښه خواړه خوړل او ښې جامې به مي اغوستلې خوزه غواړم چي خپل طيبات لذائذ آخرت ته زېرمه کړم. په التسهيل کي وايې چي آيت دکفارو په شان کي راغلی اودليل يې دالله جل جلاله داوېناده چي: ﴿ وَيَوْمَ يُعْرَضُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ خو له دې سره سره بيا هم د متقيانو لپاره پندا و وعظ دی ځکه نو عمر رضی الله عنه حضرت جابربن عبدالله ته هغه وخت چي غوښې يې رانيولي وې ويل چي. آيا تاسو چي هرڅه ته اشتهاء وشي هغه په نس کي اچوی؟ آيا نه وېرېږی چي دهغه چاله ډلي ونه شمېرل شی چي آيت يې په هکله فرمايې ﴿ أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَٰتِكُمْ فِى حَيَاتِكُمُ ٱلدُّنْيَا ﴾ ([1]) ﴿ وَٱذْكُرْ أَخَا عَادٍ ﴾ اوياد کړه (ای محمده دغو منکرانو ته کيسه د )ورور دعاد(هود ) چي ورباندي عبرت واخلي ﴿ إِذْ أَنذَرَ قَوْمَهُۥ بِٱلْأَحْقَافِ ﴾ کله چي ووېراووده قوم خپل په رېګستان (چي نوم يې احقاف ) دی (له عذابه ) احقاف دحقف جمع او دشګو غره ته وايې. قتاده وايې چي: دغه په يمن کي يو کلی ووچي شګلن او د سمندر په غاړه په لوړو غونډيو په هغه ځای کي چي (الشحر ) يې بولي ودان وو([2]) ﴿ وَقَدْ خَلَتِ ٱلنُّذُرُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦٓ ﴾ او په تحقيق تېرشوی وو(نور) وېرونکي ) (انبيآء) وړاندي له دغه(هوده) او وروسته له ده څخه ، دغه جمله اعتراضيه او الله ورباندي ددې اخبارفرمايې چي ترهود(عليه السلام) له مخه او وروسته پخوا انبيآء تېرشوي دي) ﴿ أَلَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ ﴾ چي عبادت بندګي مه کوه دهيچا بې له الله ﴿ إِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴾ بېشکه زه وېرېږم پرتاسي باندي له عذابه دورځي لويې د(قيامت نه چي دوزخ دی) که موچېري دغيرالله عبادت وکړ) ﴿ قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا لِتَأْفِكَنَا عَنْ ءَالِهَتِنَا ﴾ وويل: (هودته قوم

---

([1]) التسهيل ۴/ ۴۴

([2]) دابن کثير مختصر ۳/ ۳۲۲

يې) آيا راغلې ته موږ ته چې وګرزوې موږ له معبودانو خپلو ؟ دغه استفهام او مقصود ورځخه تسفيه يعني دېلونكي بېعقلي ښودل دي او داچې دوی ګواكي دغه بلنه نه پېژني ﴿ فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ پس راوړه موږ ته هغه (عذاب) چې له موږ سره يې وعده كوې كه چېرې يې ته له رښتيا ويونكو ځخه ابن كثير وايي: دوی دعذاب ژرترژره راوستل غوښتل ځكه استبعاد يې كاووچې هسې به نه وي([1]) ﴿ قَالَ إِنَّمَا ٱلْعِلْمُ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ وويل (هود خپل قوم ته) بېشكه همدا خبره ده چې علم (په راتلود عذاب په )نزد دالله دی (له ماسره يې علم نشته) ﴿ وَأُبَلِّغُكُم مَّآ أُرْسِلْتُ بِهِۦ ﴾ او رسوم تاسي ته هغه ځه (احكام ) چې پرې رالېږلی شوی يم (له جانبه دالله )په هغو سره ﴿ وَلَٰكِنِّىٓ أَرَىٰكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ ﴾ وليكن زه وينم تاسي يو قوم جاهل ناپوه (ځكه چې په زوره ځان ته ژرترژره عذاب غواړی) ﴿ فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُّسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ ﴾ پس كله چې وليد دوی هغه (عذاب په شكل د ) يو ې پلني وريځې مخ كونكی كندو فصلونو (كښتونو ) ددوی ته (نو خوشحاله شول) ﴿ قَالُوا۟ هَٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا ﴾ وويل: دوی دغه يوه پلنه وريځ ده باران اورونكي پرموږ باندي مفسرين كرام وايي: له عاديانو ځخه دېروخت باران اوړېدل بند شوي وو او اوږده زمانه قحطي او وچكالي ورباندي تېره شوي وه كله چې يې دغه پلنه وريځ وليد له خوشحاله شول چې دغه پلنه وريځ به باران واوروي ﴿ بَلْ هُوَ مَا ٱسْتَعْجَلْتُم بِهِۦ ﴾ (نو وويل هود: دوی ته چې دغه وريځ نه ده ) بلكه داهغه عذاب دی چې تلوار به موكاوو په هغه (عذاب او تفسيرېي داسي بيان كړچې: ﴿ رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ . يو باد دی چې په ده كي دی عذاب دردناک ) ﴿ تُدَمِّرُ كُلَّ شَىْءٍۭ بِأَمْرِ رَبِّهَا ﴾ چې هلاكوي (او له بېخه كاږي) هرځيز په حكم درب خپل (له سړيو ، ځارويو او مالونو ځخه . ابن عباس وايي: لوړي چې باد په عاديانو راغی سړيو او ځارويو ته يې مخه كړه له ځمكي به يې پورته كول په فضاكي به يې چورلول لكه بڼه غوندي به ايسېدو او بيايه يې په ځمكه باندي ويشتل نو دوی خپلو كورونو ته ننوتل او دروازې يې په ځان پسي وتړلې نو باد يې دروازې ورماتي او وايستلې او دوی يې ووژل همدغه دالله وينا ده چې فرمايي: ﴿ تُدَمِّرُ كُلَّ شَىْءٍۭ بِأَمْرِ رَبِّهَا ﴾ تدمېر هلاكت ته وايي په حديث شريف كي له عائشې صديقې رضوان الله عليها ځخه روايت راځي چې هغه وايي: كله چې به رسول الله صلی الله عليه وسلم وريځ يا باد وليدو په مخ كي به يې ننبې معلومېدې مابه ورته ويل: ای رسول الله خلګ چې كله وريځ ووينې خوشحالېږي چې باران به پكي وي اوزه دي وينم چې ته كله وريځ ووينې دناخوښي ننباني دي په ځېره كي معلومېږي؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل: زه له دې ځخه بېغمه نه يم چې عذاب به پكې وي يو قوم په باد هلاک شوی او يو قوم عذاب وليدو ويل يې: ﴿ هَٰذَا عَارِضٌ مُّمْطِرُنَا ﴾ ([2])

---

([1]) مختصر ابن كثير ۳ /۳۲۲

([2]) بخاري شريف.

﴿ فَأَصْبَحُوا لَا يُرَىٰٓ إِلَّا مَسَٰكِنُهُمْ ﴾ بیا داسي وګرزېدل چي نه به شولیدلی مګر (خالي) کورونه ددوی (ځکه چي باد پرته له کنډوالوبل څه پرې ایښی نه وو) ﴿ كَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْقَوْمَ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴾ همداسي (لکه چي موجزاء ورکړه عادیانوته) جزاء ورکوو موږ قوم ګنهګارانوته (چي ددوی په شان جرمونه کوي. امام رازي وايي چي مقصد له دې څخه دمکې دکفارو تخویف او وېرونه ده ځکه ورپسې فرمایي: (¹) ﴿ وَلَقَدْ مَكَّنَّٰهُمْ فِيمَآ إِن مَّكَّنَّٰكُمْ فِيهِ ﴾ او خامخا په تحقیق قدرت قوت ورکړی وو موږ دوی ته په هغو څېزونو کي چي قوت قدرت مو درکړی دی تاسي ته (ای قریشو) په هغه کي ﴿ وَلَقَدْ مَكَّنَّٰهُمْ فِيمَآ إِن مَّكَّنَّٰكُمْ فِيهِ ﴾ (ځیني مفسرین وايي چي) (ان) نافیه او د (ما) په معنادی یعني (ای دمکې خلګو) موږ عادیانوته قدرت او قوت ورکړی وو چي تاسوته موندی درکړی ځکه چي عادیانوته موقوت، لوړوالی، جسامت او اوږد عمرورکړی وو، دغه دمکې دخلګولپاره دتهدید په توګه خطاب دی (²) ﴿ وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَأَبْصَٰرًا وَأَفْـِٔدَةً ﴾ او ګرزولي دي موږ هغوی ته غوږونه او سترګي او زړونه (ترڅو چي دغه نعمتونه وپېژني او دمنعم په هکله وربانديي استدلال وکړي ﴿ فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَآ أَبْصَٰرُهُمْ وَلَآ أَفْـِٔدَتُهُم مِّن شَىْءٍ ﴾ بیا دفع نکړوله دوی نه غوږونو (سماعت) ددوی او نه سترګو (بصارت) ددوی او نه زړونو (بصیرت) ددوی هیڅ قدر (له عذابه) امام رازي وايي: معنادا چي پردوی مودنعمتونو دروازې پرانستلي وې غوږونه مو ورکړي وو خودوی ددلائلو په اورېدلو کي استعمال نکړل سترګي موورکړي وې پندونه يې وربانديي ونه کتل او زړونه موورکړي وو دالله په معرفت کي يې ونه کارول بلکه دغه ګردشیان يې ددنیا اولذتونولپاره په کار واچول نو خامخا دغو هیڅ عذاب هم ترې منع نکړای شو ﴿ إِذْ كَانُوا۟ يَجْحَدُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴾ له دې جهته چي وو دوی چي انکار به يې کاوو په دلائلو د (قدرت) دالله (دغه د پخواني لپاره علت دی) او نازل شو په هغوی هغه (عذاب) چي وو دوی چي په هغه پوري به يې مسخرې کولې ﴿ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُم مِّنَ ٱلْقُرَىٰ ﴾ (دمکې کفارولره یو بل تخویف دا:) او خامخا په تحقیق هلاک کړي دي موږ هغه چي چاپېرله تاسي څخه دي له (اهل د) کلیو څخه (ای دمکې والو) لکه عادیانو، ثمودیانو، دسبا ښاراو دلوط قوم مراد له کلیو څخه اهل دهغوی دی ﴿ وَصَرَّفْنَا ٱلْءَايَٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ او مکرر مو بیان کړي دي دلائل (دقدرت) لپاره ددې چي دوی بېرته راوګرزي (له کفره څخه) ﴿ فَلَوْلَا نَصَرَهُمُ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ قُرْبَانًا ءَالِهَةًۢ ﴾ پس ولي مرسته ونکړه له دوی سره

---

(¹) امام رازي ۲۸/ ۲۹

(²) ځیني مفسرینو لیکلي چي (ان) زائد توری دی او معنادا چي تاسوته موددوی په شان قدرت درکړی خو دوهم قول چي (ان) نافیه شي بهتره دی ځکه مقصد خودادی چي دوی تر تاسو ډېر قوي وو خوله هغه سره سره هم له عذابه ونه ژغورل شول نو ستاسو به څه حال وي؟ او دا چي (ما) يې رانه وړه چي ویلي يې وای (فیما مکناکم) ترڅو چي دتکرار درروندوالی محسوس نشي.

هغو (بتانو) چي نيولي وودوی هغه (بتان) بې له الله لپاره د نژدېوالي (الله ته په زعم خپل) نورمعبودان (چي دوی شفاعتګران انګېرل ترخو عذاب ورڅخه دفع کړي (لولا) دهڅولو لپاره اود (هلا) په معنادی چي دنفی معناورکوي يعني دوی ته يې مرسته ورنکړه اونه يې عذاب ورڅخه دفع کړ ﴿ بَلْ ضَلُّوا۟ عَنْهُمْ ﴾ بلکه ورک شول (بتان په وخت دعذاب کي) له دوی څخه، اوغوره خوداوي چي مرستندوی دتکليف په وخت کي په کارشي. ابوالسعودوايې: په آيت شريف کي پردوی باندي تهکم اواستهزآء دی لکه چي دامرسته نه ورکول په سبب ددې وي چي ځني ورک شوي دي[1] ﴿ وَذَٰلِكَ إِفْكُهُمْ وَمَا كَانُوا۟ يَفْتَرُونَ ﴾ اودا (نيول دبتانو) ددوی دروغ او هغه چي وو دوی چي له خپله ځانه به يې جوړول (پرالله) چي دغه بتان يې شريکان اودالله په وړاندي ددوی شفاعتګران دي) ﴿ وَإِذْ صَرَفْنَآ إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ ٱلْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ ٱلْقُرْءَانَ ﴾ او (يادکړه هغه وخت ای محمده!) کله چي وګرزول موږ تاته يوه ټولی له پېريانوڅخه چي غوږبه يې اينبود قرآن ته، بيضاوي وايې چي (نفر) هغي ټولګي ته وايې چي ترلس لږوي. روايت کاووشي چي دغه ټولګی هغه مهال چي رسول الله صلی الله عليه وسلم له طآئف څخه راستنېدو دوادی النخلة په مقام کي کله چي رسول الله په تهجدلمانځه کي قرآن لوستل دقرآن استماع وکړه[2] ﴿ فَلَمَّا حَضَرُوهُ قَالُوٓا۟ أَنصِتُوا۟ ﴾ پس کله چي حاضرشول دوی دي (قرآن) ته وويل دوی (پخپل مينځ کي ځينوځينونوروته) چُپ شئ تاسي (ای پېريانو قرآن ته) قرطبي وايې دغه دقريشي مشرکانولپاره توبيخ دی معناداچي پېريانوقرآن واورېدوورباندي ايمان يې راووړېدې وپوهېدل چي دغه دالله له لوري دی مګرتاسويې نه منی اوپه کفرباندي ټينګ ولاړياست[3] ﴿ فَلَمَّا قُضِىَ وَلَّوْا۟ إِلَىٰ قَوْمِهِم مُّنذِرِينَ ﴾ بياکله چي تمام شو (تلاوت دقرآن) بيرته وګرزېدل خپل قوم ته وېرونکي (له عذابه که يې ايمان نه راووړ) امام رازي وايې چي دغه انذاريې پرته له ايمانه نشي کېدای ځکه دوی چي يوڅوک رابولي دغه بلنه يې ددې معنالري چي دوی پخپله ورباندي ايمان راوړی اوتصديق يې کړی دی[4] ﴿ قَالُوا۟ يَٰقَوْمَنَآ إِنَّا سَمِعْنَا كِتَٰبًا أُنزِلَ مِنۢ بَعْدِ مُوسَىٰ ﴾ وويل دوی ای زموږ قومه بېشکه موږ واورېدوداسي يوکتاب (خوندورباعظمته) چي له موسی وروسته نازل شوی دی (په پيغمبرباندي) ابن عباس وايې چي: پېريانودعيسی عليه السلام په هکله معلومات نه درلود[5] ﴿ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ ﴾ پدې حال کي چي تصديق کونکی موافق دی له هغو (کتابونو) سره چي پخواله دې نه وو ﴿ يَهْدِىٓ إِلَى ٱلْحَقِّ وَإِلَىٰ طَرِيقٍ

---

(1) دابوالسعودتفسير: ۵/ ۶۹
(2) دبيضاوي حاشيه ۳/ ۳۴۱
(3) دقرطبي تفسير ۱۲/ ۲۱۰
(4) کبيرتفسير ۲۸/ ۳۲
(5) ابوالسعودتفسير: ۵/ ۷۰

مُسْتَقِيمٍ ﴾ لاره ښيي (داقرآن) حق دين ته او سمي لاري ته ﴿ يَٰقَوْمَنَآ أَجِيبُوا۟ دَاعِىَ ٱللَّهِ وَءَامِنُوا۟ بِهِۦ ﴾ اى
زموږ قومه قبول كړئ تاسي قول د بلونكي د الله (محمد) او ايمان راوړئ په ده باندي (رسالت يې ومنئ)
﴿ يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ ﴾ چي مغفرت وكړي (الله) تاسي ته ګناهونه ستاسي ﴿ وَيُجِرْكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾
او خلاص كړي تاسي (الله) له دردناك عذابه څخه ﴿ وَمَن لَّا يُجِبْ دَاعِىَ ٱللَّهِ فَلَيْسَ بِمُعْجِزٍ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾
او هغه څوك چي ونه مني (بلنه د) بلونكي د الله پس نه به وي عاجز كونكى (د الله په تېښته سره) په ځمكي
2 كي ﴿ وَلَيْسَ لَهُۥ مِن دُونِهِۦٓ أَوْلِيَآءُ ﴾ او نه به وي ده ته بې له الله هيڅ دوستان (چي د الله له عذابه يې وژغوري)
﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ دغه كسان په ښكاره ګمراهي كي دي، تردې ځايه پوري د پېريانو خبره پاى ته
ورسېده وروسته الله د خپل قدرت او وحدانيت دلائل داسي بيانوي چي: ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا۟ أَنَّ ٱللَّهَ ٱلَّذِى خَلَقَ
ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ ﴾ آيا نهويني فكر نه كوي (منكران د بعث) چي بېشكه الله هغه (ذات) دى چي
پيدا كړي يې دي آسمانونه او ځمكه؟ (بې له پخواني مثاله) ﴿ وَلَمْ يَعْىَ بِخَلْقِهِنَّ ﴾ او نه دى ستړى شوى په
پيدا كولو د هغه كي ﴿ بِقَٰدِرٍ عَلَىٰٓ أَن يُحْۦِىَ ٱلْمَوْتَىٰ ﴾ قادر په دې باندي چي ژوندي كړي مړي؟ وروسته له
فنا او را پاڅوي يې وروسته له خاوري كېدلو) ﴿ بَلَىٰٓ إِنَّهُۥ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ بلكه ښه قادر دى بېشكه
دغه الله په هر څېز باندي (ښه قادر دى لكه چي پيدا كړي يې دي همداسي به يې را پاڅوي هم چي اراده
وفرمايي ﴿ وَيَوْمَ يُعْرَضُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ عَلَى ٱلنَّارِ ﴾ او ياد كړه (اى محمده مشركانو ته) هغه ورځ چي وړاندي به
كړل شي په اور باندي هغه كسان چي كافران شوي دي (او ورته وبه ويل شي) ﴿ أَلَيْسَ هَٰذَا بِٱلْحَقِّ ﴾ آيا نه
و دغه عذاب (چي تاسي يې څكى) حق رښتيا ﴿ قَالُوا۟ بَلَىٰ وَرَبِّنَا ﴾ نو وبه وايې دوى چي هو حق رښتيا دى
قسم دي وي زموږ په (عزت د) رب زموږ، دوى خپل كلام په قسم سره تاكيد كړ چي د خلاصون طمع لري.
امام رازي وايي چي په آيت كي مقصد پر دوى تهكم او د دوى په استهزاء باندي كوم چي د الله په وعدو
باندي به يې كولې توبيخ او دوى ته وعيد دى څكه دوى به ويل ﴿ وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ ﴾ ([1]) ﴿ قَالَ فَذُوقُوا۟
ٱلْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴾ فرمايي نو وڅكئ تاسي عذاب په سبب د هغه چي وى تاسي چي كافران
كېدلى ﴿ فَٱصْبِرْ كَمَا صَبَرَ أُو۟لُوا۟ ٱلْعَزْمِ مِنَ ٱلرُّسُلِ ﴾ نو صبر كوه ته (اى محمده) لكه چي صبر كړى
و خاوندانو د عزم (ټينګ د دريدلو په حق) له رسولانو (هغوى چي د انبياوو مشاهيرو و لكه نوح، ابراهيم،
موسى او عيسى عليهم السلام ﴿ وَلَا تَسْتَعْجِل لَّهُمْ ﴾ او تلوار مه كوه (په غوښتلو د عذاب) دوى (قريشو) ته
(څكه ارو مرو و باندي نازلېږي) ﴿ كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَ مَا يُوعَدُونَ لَمْ يَلْبَثُوٓا۟ إِلَّا سَاعَةً مِّن نَّهَارٍۭ ﴾ ګوئيا دوى په

[1]) كبير تفسير ۲۸ / ۳۴

هغه ورځ کي چي و ويني هغه (عذاب) چي وعده يې ورسره کول شوي ډېل نه دی کړی (په دنياکي) مګريوساعت يوه ګړۍ له يوې ورځي څخه کله چي دعذاب سختوالی اواوږدوالی وويني ﴿ بَلَٰغٌ ﴾ دغه پندرسو نه (اوانذار) دی ﴿ فَهَلْ يُهْلَكُ إِلَّا ٱلْقَوْمُ ٱلْفَٰسِقُونَ ﴾ نوآياهلاک به کړشي؟ (نه هلاکېږي) مګرقوم فاسقان سرغړونکي (له احکامودالله وتلي له طاعته).

تنبيه:

2 مفسرين کراموويلي چي پېريانانوبه آسماني خبري غلاکولې کله چي آسمانونه وژغورل شول نو ابليس وويل چي: دغه نوي خبره چي په آسمانونوکي پېښه شوه خامخاپه ځمکه کي کومه پېښه شوي ده نوبې خپلې خبرلوڅي تولی لښکري يوبل لوري ته واستولې نودنصيبين يوه ډله سپاره چي دپېريانو اشراف ووتهامې ته ولاړل کله چي بطن نخلې ته ورسېدل ويې ليدل چي رسول الله صلی الله عليه وسلم لمونځ کوي اوقرآن لولي غوږ يې ورته ونيو اوځيني ځيني نوروته وويل: چي چُپ شئ کله چي رسول الله له لمانځه فارغ شونودوی ايمان راووړ اوخپل قوم ته دوېرونکوپه توګه ستانه شول هغوی يې ايمان راوړلوته وهڅول اوبياټولی ټولی پيغمبرعليه السلام ته راغلل اوهمدغه دالله جل جلاله داويناده چي فرمايي: ﴿ وَإِذْ صَرَفْنَآ إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ ٱلْجِنِّ ﴾ ترپايه پوري.

بلاغت:

پدې سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډ يې دادی:

۱ - دتعجيز صنعت لکه داچي ﴿ ٱئْتُونِى بِكِتَٰبٍ مِّن قَبْلِ هَٰذَآ ﴾ دغه امراومرادورڅخه تعجيز دی.

۲ - اشتقاقي جناس لکه: ﴿ وَهُمْ عَن دُعَآئِهِمْ ﴾ او ﴿ وَشَهِدَ شَاهِدٌ ﴾.

۳ - دطباق صنعت لکه د ﴿ فَـَٔامَنَ ﴾ او ﴿ وَكَفَرْتُم ﴾ او ﴿ لِّيُنذِرَ... وَبُشْرَىٰ ﴾ ترمينځ.

۴ - ذکردخاص وروسته له عام څخه چي پدې کلام کي راځي ﴿ وَوَصَّيْنَا ٱلْإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيْهِ ﴾ او وروسته فرمايي ﴿ حَمَلَتْهُ أُمُّهُۥ كُرْهًا ﴾ دلته يې ذکردخاص وروسته له عام څخه وفرمايو ترڅوچي په هکله يې زياته پاملرنه اواهتمام وشي چي مور خورزياته حق داره ده.

۵ - دطباق صنعت لکه داچي: ﴿ حَمَلَتْهُ .. وَوَضَعَتْهُ ﴾.

۶ - دحصرصيغه چي داسي راځي: ﴿ مَا هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾.

۷ - استعاره کله چي فرمايي: ﴿ وَلِكُلٍّ دَرَجَٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوا۟ ﴾ درجات يې دمراتبولپاره استعاره کړی دی کومي چي دښکمرغه اوبدمرغه کسانولپاره ټاکلي شوي دي.

۸ - ايجازبالحذف کله چي له توبيخ اوتقريع سره يوځای وي لکه دالله جل جلاله په دې ويناکي ﴿ أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَٰتِكُمْ فِى حَيَاتِكُمُ ٱلدُّنْيَا ﴾ يعني دوی ته به وويل شي چي: وړي دی تاسي ....

۹ – داطناب صنعت دلفظ په تکرارسره چي فرمايي: ﴿ وَجَعَلْنَا لَهُمْ سَمْعًا وَأَبْصَـٰرًا وَأَفْـِٔدَةً ﴾ بيازياتوي فرمايي: ﴿ فَمَآ أَغْنَىٰ عَنْهُمْ سَمْعُهُمْ وَلَآ أَبْصَـٰرُهُمْ وَلَآ أَفْـِٔدَتُهُم ﴾ دغه دزياتي تقبيح اوپردوی باندي دشناعت ليکلو په سبب راغلی دی.

۱۰ – دفواصلوتوافق چي دکلام په ښايست اوښه تناسق کي ستره ونډه لري اودبديعي محسناتو څخه يودی چي داسي يې لولو: ﴿ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ...... وَصَرَّفْنَا ٱلْـَٔايَـٰتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ...... وَذَٰلِكَ إِفْكُهُمْ وَمَا كَانُوا۟ يَفْتَرُونَ ﴾ ترپايه پوري

دالله جل جلاله په مرسته دالأحقاف سورت تفسيربشپړشو.

***

## دمحمد سورت مدني او اته دېرش آيتونه لري

### دسورت په وړاندي:

دمحمد سورت له مدني سورتونوڅخه يودی اوتشريعي احکام څېړي پدې سورت کي دقتال، بنديانو، غنيمتونو اومنافقينو احوال راغلي اوهغه محورچي سورت ورباندي راڅرخي (في سبيل الله جهاددی).

سورت په عجيبه توګه پيلېږي هغه داچي په زغرده دالله اودالله درسول ددښمنانوپه وړاندي چاچي له اسلامه سره جګړه کړې پيغمبرعليه السلام يې دروغجن ګڼلی اودمحمدي بلني اودعوت په وړاندي دخلکوخنډجوړشوی دی دجنګ اعلان فرمايي چي: ﴿ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَصَدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ أَضَلَّ أَعْمَـٰلَهُمْ ﴾ دآيتونو ترپايه.

وروسته مسلمانانوته دکفارودجګړې امرکوي ترڅودمجاهدينوپه توروورپېل شي اودڅمکي مخ يې له پليتي څخه پاک شي هغوی ته کوم زور اوځواک پاتي نشي اوبيايې له زياتووژلوڅخه دبندي کولو لورته رابولي چي: ﴿ فَإِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فَضَرْبَ ٱلرِّقَابِ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا۟ ٱلْوَثَاقَ ﴾ دآيتونوترپايه .بيادعزت اوبرياليتوب لاري ښيي اودالله دمؤمنوبندګانودنصرت لپاره شرطونه ټاکي هغه دا چي په شريعت منګولي ولګوي اوددين نصرت وکړي فرمايي: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تَنصُرُوا۟ ٱللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ﴾ دآيتونوترپايه

همداسي د مکي کفارو لپاره د پخوانيو اُمتونو د سرغړونکو جبابره وو مثالونه راوړي چي الله څرنګه د طغيان او ګناه په وجه هلاک کړل ؟ فرمايي: ﴿ أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ دَمَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَلِلْكَافِرِينَ أَمْثَالُهَا ﴾ .

سورت په تفصيل سره د منافقينو صفات ښيي چي دوی د مسلمانانو او اسلام لپاره زيات خطرناک دي نو د دوی ناوړه صفات او خويونه راسپړي چي خلک او مؤمنان د دوی له فريبونو او چلونو څخه ووېروي ﴿ وَلَوْ نَشَاءُ لَأَرَيْنَاكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُم بِسِيمَاهُمْ ﴾ د آيت تر پايه

په پای کي سورت مؤمنان د عزت او نصرت لوري ته رابولي چي دغه په في سبيل الله جهاد کي مونده کېږي هله چي مسلمانان د کفارو او شريرو قوتونو په وړاندي ضعف او سستي ونکړي همداسي له دښمنانو سره د سولي له کولو مؤمنان وېروي او ورته په ډاګه کوي چي دنيوي ژوند فاني دی هغه چي د الله په نزد شته هغه غوره دی فرمايي: ﴿ فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ وَاللَّهُ مَعَكُمْ وَلَن يَتِرَكُمْ أَعْمَالَكُمْ ﴿٣٥﴾ إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا يُؤْتِكُمْ أُجُورَكُمْ وَلَا يَسْأَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ ﴾ د سورت تر پايه پوري

همداسي سورت جهاد ته په بلنه پای ته رسېږي لکه څرنګه چي ورباندي پيل شوی هم وو ترڅو د مؤمنانو اراده او تکلونه وهڅوي او د سورت پيل او پای په ښکلي تناسق سره تړون او پېيلتوب ومومي.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ أَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ ﴿١﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَآمَنُوا بِمَا نُزِّلَ عَلَىٰ مُحَمَّدٍ
وَهُوَ الْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَأَصْلَحَ بَالَهُمْ ﴿٢﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا اتَّبَعُوا الْبَاطِلَ وَأَنَّ الَّذِينَ آمَنُوا اتَّبَعُوا
الْحَقَّ مِن رَّبِّهِمْ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ اللَّهُ لِلنَّاسِ أَمْثَالَهُمْ ﴿٣﴾ فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ حَتَّىٰ إِذَا أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ
فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا ذَٰلِكَ وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَانتَصَرَ مِنْهُمْ وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَ بَعْضَكُم بِبَعْضٍ وَالَّذِينَ قُتِلُوا فِي
سَبِيلِ اللَّهِ فَلَن يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ ﴿٤﴾ سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ ﴿٥﴾ وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ ﴿٦﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا
اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ﴿٧﴾ وَالَّذِينَ كَفَرُوا فَتَعْسًا لَّهُمْ وَأَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ ﴿٨﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَرِهُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأَحْبَطَ
أَعْمَالَهُمْ ﴿٩﴾ ۞ أَفَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ دَمَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَلِلْكَافِرِينَ أَمْثَالُهَا ﴿١٠﴾ ذَٰلِكَ
بِأَنَّ اللَّهَ مَوْلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَأَنَّ الْكَافِرِينَ لَا مَوْلَىٰ لَهُمْ ﴿١١﴾ إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن
تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يَتَمَتَّعُونَ وَيَأْكُلُونَ كَمَا تَأْكُلُ الْأَنْعَامُ وَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ﴿١٢﴾ وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ هِيَ أَشَدُّ قُوَّةً مِّن
قَرْيَتِكَ الَّتِي أَخْرَجَتْكَ أَهْلَكْنَاهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ ﴿١٣﴾ أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّهِ كَمَن زُيِّنَ لَهُ سُوءُ عَمَلِهِ وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُم

﴿١٤﴾ مَّثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ ۖ فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِّن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ
وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى ۖ وَلَهُمْ فِيهَا مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَمَغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ ۖ كَمَنْ هُوَ خَالِدٌ فِي النَّارِ وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ
﴿١٥﴾ وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ حَتَّىٰ إِذَا خَرَجُوا مِنْ عِندِكَ قَالُوا لِلَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ مَاذَا قَالَ آنِفًا ۚ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ طَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ
قُلُوبِهِمْ وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ ﴿١٦﴾ وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَآتَاهُمْ تَقْوَاهُمْ ﴿١٧﴾ فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا السَّاعَةَ أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً ۖ
فَقَدْ جَاءَ أَشْرَاطُهَا ۚ فَأَنَّىٰ لَهُمْ إِذَا جَاءَتْهُمْ ذِكْرَاهُمْ ﴿١٨﴾ فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ
وَالْمُؤْمِنَاتِ ۗ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَاكُمْ ﴿١٩﴾ محمد: ١ ـ ١٩

**لغتونه:**

(كفّر) ليري او محو كړي (أثخنتموهم) كله چي ډېر مو ووژل او بنديان مو كړل په المصباح كې وايې چي (أثخن) د دښمن زياتو وژلو ته وايې (١) (الوثاق) هغه تړونكي پارسى ته وايې چي ورباندي تړل كېږي (منا) بې له فديې د بندي خوشي كول (أوزارها) درندې وسلې آلات ويل كېږي (وضعت الحرب أوزارها) يعني جګړه پاى ته ورسېدله أوزار په اصل كي درندې وسلې او آسونو ته وايې (تعسا) هلاكت او بد مرغي (أسن) بد بويه متغير (حميما) ايشېدلي (انفا) اوس، لكه چي دوى وايې: (استانف الامر) كله چي يې پيل كړي (أشراط) نښې او علامې.

**تفسير:**

﴿ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ (هغه كسان چي كافران شوي دي او منع كړي يې دي (خلك او منع يې راوړي ده له) لاري د الله (اسلام) نه) دغه د الله تعالى له لوري د ده اُو د ده د دين له دښمنانو سره د جنګ اعلان دى ﴿ أَضَلَّ أَعْمَالَهُمْ ﴾ ابته كړي دي (الله) نيک عملونه د دوى، چي هيڅ ثواب ورباندي مرتب نه دى مراد له ابته كولو څخه ضائع كول دي يعني د دوى نيک عملونه الله پاک باطل كړي لكه چي دوى به خلګو ته ډوډۍ وركولې خپلوي به يې پاللې او د مېلمنو اكرام به يې كاوه دغه الله خراب كړي دي. زمخشري وايې چي په حقيقت كي د اعمالو اضلال ورک كول او ضائع كول دي څوک به نه وي چي ورباندي ثواب وركړي او يايې څني قبول كړي لكه ورک شوى اوښ چي خاونديې نه وي چي ويې پاللي او ويې ژغوري او مراد له عملونو څخه هغه نيک اعمال دي چي د كفر په وخت كي يې كړي وي هغه چي دوى به مكارم الاخلاق بلل او له خپلوانو سره صله رحمي، د مېلمانه عزت كول د همسايه (ګاونډي) حقوق پرځاى كول بنديان خوشي كول او نور پكي شامل وو(٢) ﴿ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ﴾ او هغه كسان چي ايمان يې راوړى دى او كړي يې دي ښه (عملونه) يعني صادق او رښتونى ايمان او صالح

---

(١) المصباح المنير مادة (ثخن).
(٢) البيت اللاعشي القرطبي ١٢/ ٢٢٩

عملونه یې سره یوځای کړي وي ﴿ وَءَامَنُوا۟ بِمَا نُزِّلَ عَلَىٰ مُحَمَّدٍ ﴾ اوایمان یې راوړی وي په هغه (قرآن) چې په محمد (علیه السلام ) نازل شوی دی (چې هیڅ شک او شبه پکي نه کوي دغه عطف دخاص پرعام باندي راغلی دی اوباریکي پکي داده چې تعظیم یې وشي اوپه هکله یې اهتمام ترسره شي اودا افاده کړي چې ایمان پرته له دې څخه نه بشپړیږي (۱)څکه وروسته زیاتوي چې ﴿ وَهُوَ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ ﴾ اوهغه حق (کتاب)دی له (نزده د ) ربه ددوی (چې دالله کلام اومنزله وحی ثابته ده له جانبه دالله داجمله اعتراضیه اودسابق لپاره تاکید راغلی ده ﴿ كَفَّرَ عَنْهُمْ سَيِّـَٔاتِهِمْ ﴾ وبه رژوي (الله) له دوی څخه گناهونه ددوی (چې پخوایې کړي وي) ﴿ وَأَصْلَحَ بَالَهُمْ ﴾ اوښه به کړي (الله) حال ددوی (په دین اودنیاکي) وروسته الله تعالی دکفارو دضلالت اودمؤمنانو دهدایت سبب هسي فرمایې چې: ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ٱتَّبَعُوا۟ ٱلْبَٰطِلَ ﴾ دغه (دکفارو داعمالو تخریب) په سبب ددې دی چې بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي متابعت یې کړی دی دباطل (شیطان اوهغه یې په حق باندي غوره کړی دی) ﴿ وَأَنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّبَعُوا۟ ٱلْحَقَّ مِن رَّبِّهِمْ ﴾ اوبېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی متابعت یې کړی دی دحق (قرآن) له جانبه درب ددوی (سبب دمغفرت دبدیو یې هم دادی ) ﴿ كَذَٰلِكَ يَضْرِبُ ٱللَّهُ لِلنَّاسِ أَمْثَٰلَهُمْ ﴾ همداسي (په مثل ددې) بیان بیانوي الله خلگوته مثالونه (احوال) ددوی (له مؤمنانو اوکافرانو څخه په ښکاره بیان او کوتلي برهان سره ترڅوچې دوی پند اوعبرت واخلي ، وروسته له دغه دجنگ له اعلانه الله جل جلاله مؤمنانوته ددوی سره په جهاد کولو داسي امرکوي چې: ﴿ فَإِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فَضَرْبَ ٱلرِّقَابِ ﴾ نوکله چې مخامخ شوی (په جنگ کي) له (هغوکسانو ) سره چې کافران شوي دي نووهي وهل دورمېږونو (دهغویعني په توروبې وربېئ . په التسهیل کي وایې : چې په اصل کي داسي ووچې: (فاضربوا الرقاب ضربًا) بیافعل حذف شوی اومصدریې پرځای باندي دربدلی دی مقصد ددوی وژل دي خودورمېږونو په وهلوځني تعبیرشوی دی څکه چې ورمېږونه پرې کول غالبا دوژلو صفت دی(۲) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا۟ ٱلْوَثَاقَ ﴾ ترهغه پوري چې بنه دېرمو ووژل دوی اوپرې غالب شوی (نووتړئ دوی ) بیاسخت محکم کړئ ترل (ددوی چې درڅخه ونه تښتي )..زمخشري وایې چې په دې عبارت د ﴿ فَضَرْبَ ٱلرِّقَابِ ﴾ کي هغه شدت اوغلظت دی چې دقتل په کلمه کي نشته څکه چې دلته دهغه وژلو انځور دی چې په خوراسخت شکل ووژل شي هغه داچې ورمېږیې په توره له تن څخه والوزول شي (۳) اوددغه غلظت اوسختي په زیاتوالي کي نورداسي فرمایې ﴿ فَٱضْرِبُوا۟ فَوْقَ ٱلْأَعْنَاقِ وَٱضْرِبُوا۟ مِنْهُمْ كُلَّ بَنَانٍ ﴾ الأنفال: ۱۲ اود (اثخنتموهم) معنادېر وژل اوزیات

---

(۱) دصاوي حاشیه ۸۱/۴

(۲) التسهیل ۴ /۴۲

(۳) الکشاف ۴ /۲۵۰

غلظت کول دی او(وثاق) هغه څه ته ویل کېږي چې په هغه سره ترل کېږي لکه رسی. اوپړی (۱) ﴿فَإِمَّا مَنًّۢا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَآءً﴾ پس بیایا احسان ورسره وکړئ وروسته له بندي کولو او ترلویې او یا تاسې فدیه کړئ دوی فدیه کول (په عوض کي یې مال واخلئ او یا یې په مسلمانانو بندیانو تبادله کړئ خو دا په هغه وخت کي چې ددوی شوکت مومات کړی وي زیات مو ژوبل کړي او وژلي وي ﴿حَتَّىٰ تَضَعَ ٱلْحَرْبُ أَوْزَارَهَا﴾ (جنګ ورسره وکړئ) ترهغه پوري چې کېږدي (جنګیالان د )جنګ وسلې خپلې، اوکفارمات شي دا سلام سرلوړي او د کفرپو پناکېدل ترسره شي ﴿ذَٰلِكَ وَلَوْ يَشَآءُ ٱللَّهُ لَٱنتَصَرَ مِنْهُمْ﴾ دغه (حکم دالله په دوی کي ) دی او که اراده فرمایلي وای (الله) دبدل اخیستلو ) نو خامخا به (الله)بدل اخیستی وو له دوی څخه (بې له جنګه) هغوی به یې هلاک کړي وو او تاسو به یې نه مکلف کولای ای مؤمنانو اچې ورسره جګړه وکړی. ابن کثیروایي: معناداچي که الله غوښتي وای دوی به یې له خپله نزده په عذاب اخته کړي وای (۲) ﴿وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَا۟ بَعْضَكُم بِبَعْضٍ﴾ ولیکن (امریې درته وکړ په جهاد سره) لپاره ددې چې وازمویې (الله) ځیني ستاسو په ځینونورو (په جنګ کي) یعني الله تاسو ته له دوی سره په جهادکولو ددې لپاره امروکړچې ستاسوایمان اوثبات وازمویي صادق اوربښتوني له نورو جلاکړي لکه چې الله فرمایي: ﴿وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتَّىٰ نَعْلَمَ ٱلْمُجَٰهِدِينَ مِنكُمْ وَٱلصَّٰبِرِينَ وَنَبْلُوَا۟ أَخْبَارَكُمْ﴾ اوددې لپاره چې مؤمنان په کافرانو اوکافران په مؤمنانو وازمویي نو هغه چې له مؤمنانو څخه ووژل شي جنت ته ولاړشي او څوک چې له کفارو ووژل شي هغه دوزخ ته لاړشي نو څکه فرمایي: ﴿وَٱلَّذِينَ قُتِلُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ فَلَن يُضِلَّ أَعْمَٰلَهُمْ﴾ اوهغه کسان چې دالله په لاره کي وژلي شوي دي پس له سره به (الله ) ضائع نکړي عملونه ددوی (بلکه وده به ورکړي اوزیات به یې کړي ) ﴿سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ﴾ ژربه (الله) سمه لاره وښیي دوی ته (په دنیا او آخرت کي) اوښه به کړي حال ددوی (په دارینو کي) دښه عمل توفیق به ورکړي جنت ته به یې بوزي ﴿وَيُدْخِلُهُمُ ٱلْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ﴾ او داخل به کړي (الله) دوی په جنت کي چې معلوم کړی دی (الله) دغه (جنت) دوی ته (په داسي ډول چې هریو به خپل کورپکي پېژني اوهغه ته به ورځي. مجاهدوایي هرڅوک به خپل هستوګنځي ته داسي ورځي ته به واچې همدلته دپیدا یښت له وخته اوسېږي هیڅکله به ورڅخه نه خطا کېږي (۳) په حدیث شریف کي راځي: زما دي په هغه ذات سوګندوي چې زما روح یې په ید دقدرت کي دی چې جنتیان به دجنت کورته ددنیاترکورسم سیخ ورځي ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تَنصُرُوا۟ ٱللَّهَ يَنصُرْكُمْ﴾ ای هغوکسانوچې ایمان یې راوړی دی(یعني ای مؤمنانو) که مددګاري وکړی تاسې له(دین دالله اورسول د )الله سره نومدد به وکړي (الله) له تاسې سره (په دښمنانو ستاسې به غلبه درکړي ﴿وَيُثَبِّتْ

(۱) الکشاف ۴ /۲۵۱
(۲) البحر المحیط ۸ /۷۵
(۳) دبخاري شریف د حدیث یوه ټوټه ده.

أَقْدَامَكُمْ ﴾ اوثابت به کړي قدمونه ستاسي په ځای دجنګ کي ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فَتَعْسًا لَّهُمْ ﴾ اوهغه کسان چي کافران شوي دي پس هلاک والی شرمول دي دوی ته ، (دغه دوی ته ښېراکول دي يعني دوی دي هلاک اوشرمېدلي وي ﴿ وَأَضَلَّ أَعْمَٰلَهُمْ ﴾ اوخراب عبث به کړي(الله) نېک عملونه ددوی (ځکه چي هغه يې دشيطان په لاري کي ترسره کړي وو ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَرِهُوا۟ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ ﴾ دغه (هلاکوالی اوددوی دعملونوتخريب په سبب ددې دی چي) بېشکه هغوی بد ګڼلي دي هغه (کتب اوشرائع چي) الله نازل کړي دي) زمخشري وايي: معناداچي دوی بدګڼلي دي قرآن اوهغه تکاليف اواحکام چي پکې دي ځکه دوی په نفسي خواهشاتوکي ډوب اوپه خوندونواوملذاتوکي غوپه دي دغه ورته درانه اوسخت ښکاري ([1]) ﴿ فَأَحْبَطَ أَعْمَٰلَهُمْ ﴾ پس (الله) عبث کړل نېک عملونه ددوی ځکه چي شرط دقبلېدادعملونوايمان دی دی اودوی ايمان نلري شرک خودعملونوضائع کونکی دی([2]) بياالله دوی هسي وېروي فرمايي: ﴿ أَفَلَمْ يَسِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ﴾ آيا پس نه ګرزي دوی په ځمکه کي پس چي وګوري دوی (په کتلودعبرت) چي څرنګه وه آخره خاتمه د هغو کسانوچي پخواله دوی وولکه عاديان ، ثموديان دلوط قوم اونورمجرمان چي عذاب ورباندي نازل شو اوکنډوالې يې کيسې کوي ﴿ دَمَّرَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ ﴾ هلاک راووست الله په دوی باندي يعني الله له بېخه وايستل مال، متاع اولاد ددوی ، کوته هلاک شول اودوی ترې لاندي شول دغه عبارت چي ﴿ دَمَّرَ عَلَيْهِمْ ﴾ دی ترهغه چي(دمرهم) ډېرمعنادار دی ځکه چي داسي معناورکوي چي الله دوی سره له مالونواولادونواو هستوګنځيوهلاک کړل هلاکت يې داسي ورباندي راپرېوست چي هيڅ څېزهم ورځخه ونه ژغورل شول ﴿ وَلِلْكَٰفِرِينَ أَمْثَٰلُهَا ﴾ اوشته لپاره دکافرانومثلونه ددغه سخت عذاب اوبدانجام چي پخوانيوته ورکول شوي وو ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ مَوْلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَأَنَّ ٱلْكَٰفِرِينَ لَا مَوْلَىٰ لَهُمْ ﴾ دغه (نصرت دمؤمنانواهلاک د کافرانويه سبب ددی دی چي) الله دوست دهغو کسانودی چي ايمان يې راوړی دی اوبېشکه چي نشته کافرانولره هيڅ دوست مددګار(چي فريادېې واوري وروسته له دې الله ددواړو ډلوحال داسي بيانوي چي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُدْخِلُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ﴾ بېشکه الله به داخل کړي هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه) په جنتونوکي چي بهېږي به له لاندي (دونواومانيو) دهغو ويالې (داسي

---

([1]) الکشاف ۸/۷۵

([2]) په الظلال تفسيرکي ليکي چي ابتداکول دنېکواعمالودقرآني انځوروني په لړکي يوتصويراوانځوردی هغه داچي (حبوط) دخارويو دګېډي پرسېدلوته وايي کله چي زهرجن نبات وخوري اوتندشي چي بالآخره له همدې څخه مري اوهلاکېږي همداسي دغه کفارددوی عملونه وپرسېږي اوبياهلاک اوله مينځه لاړ شي دغه انځوراودغه حرکت دهغه چاله حال سره موافق دی چي هغوی دالله نازل احکام بدګڼي اوبياپخپلوپرسېدلي عملونو لکه دخارويوپرسېدلی لړمونونه چي زهرجن نبات(وابنه) وخوري وياړي ظلال القرآن.

نعمتونه به پکې وي چي نه به ستړګوليدلي ،نه غوږو اورېدلي اونه به هم دچاپه زړه باندي تېرشوي وي ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يَتَمَتَّعُونَ وَيَأْكُلُونَ كَمَا تَأْكُلُ ٱلْأَنْعَٰمُ ﴾ (اوهغه کسان چي کافران شوي دي (لږ) نفع اخلي دوی (په دنیاکي) اوخوراک کوي لکه چي خوراک کوي چارپایان) یعني کافران په دنیاکي په خپلوشهوتونواولذائذونفع اخلي اولکه چارپایان غوندي خوراک کوی دوی، ...ته له [illegible]

څه پروانکوي ﴿ وَٱلنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ ﴾ اواور [illegible] دوزخ) ځای دورتلو (او کوزه [illegible] دی) دوی له زمخشري وايې مقصدداچي دوی لږ موده ددنیاپه متاع باندي ګټه اخیستونکي دي خوراک کوي لکه څاروي خودعاقبت سوچ نکوي چي حلالول ددوی انتظارکوي همدا رنګه اوردکفارولپاره هستوګنځی دی (۱) بیاالله پاک خپل پیغمبرعلیه السلام ته داسي تسلیت ورکوي چي ﴿ وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ هِيَ أَشَدُّ قُوَّةً مِّن قَرْيَتِكَ ٱلَّتِيٓ أَخْرَجَتْكَ ﴾ اوډېرله (أهل د ) کليونه چي هغوی به ډېرسخت محکم وو له جهته دقوت نه له (اهل د ) کلي ستانه هغه (کلی) چي ته یې تړې ایستلی یې (ای محمده !چي مکه ده ) (۲) ﴿ أَهْلَكْنَٰهُمْ فَلَا نَاصِرَ لَهُمْ ﴾ هغوی موهلاک کړل پس نه وو هیڅوک مدد کونکی له هغوی سره (په دفع دعذاب کي) همداسي به له دغوسره چلندوکړ وابن عباس وايې : کله چي رسول الله له مکې څخه ووت اوپه غارکي پټ شومدینې ته یې دهجرت تکل درلودمکې ته یې وکتل اوبیایې وفرمایل : ښېشکه (خدایږو) چي ته ترګردوښارونوالله ته غوره اومحبوبه یې او ماته هم تر ګردوښارونومحبوبه اوغوره یې که ستااهل زه درڅخه ایستلی نه وای زه به هیڅکله هم تللی نه وای نو دغه آیت نازل شو(۳) ﴿ أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّهِۦ ﴾ آیاهغه چي وي په ښکاره حجت (لاري ) له جانبه درب خپل) یعني هغه چي دخپل دین دچاروپه هکله بصیرت، دلیل، ثبات اویقین لري ﴿ كَمَن زُيِّنَ لَهُۥ سُوٓءُ عَمَلِهِۦ ﴾ په شان دهغه دی چي ښایسته کړی شوی دی ده ته ناکاره عمل دده ﴿ وَٱتَّبَعُوٓاْ أَهْوَآءَهُم ﴾ اومتابعت یې کړی وي دخواهشاتوخپلو؟ (بلکه سره برابرنه دی دغه دجمع په صیغه دمعناد مراعات کولولپاره راغلی دی مفسرین کرام وايې چي: مقصدله ﴿ أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّهِۦ ﴾ څخه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوله ﴿ زُيِّنَ لَهُۥ سُوٓءُ عَمَلِهِۦ ﴾ څخه ابوجهل اوقریشي کفاردي او عام دی حکم یې هرهغه چاته چي دالله عبادت کوي اوهغه چي دخپل نفس اوخواهشاتوعبادت کوي شامل دی ځکه یې وروسته په سترتوپیرسره مثال راوړي چي هغه دجنت اودوزخ مثال دی ﴿ مَّثَلُ ٱلْجَنَّةِ ٱلَّتِي وُعِدَ ٱلْمُتَّقُونَ ﴾ مثل صفت بیان (عجیب الشان ) بیان دجنت هغه چي له پرهېزګارانوسره یې وعده کړی شوي ده (او متقیانوته تیارشوی دی) ﴿ فِيهَآ أَنْهَٰرٌ مِّن مَّآءٍ غَيْرِ ءَاسِنٍ ﴾ په هغه کي ویالې دي له اوبوچي بدخوندي به نه وي (نه به بدلېږي بوی دهغو ) ابن مسعود ﷺ وايې چي

---

(۱) دکشاف تفسیر۴ /۲۵۳

(۲) کلام دمضاف په حذف سره دی یعني (اهل دکلي ) اودغه مشهورمجازدی.

(۳) دجمل حاشیه په جلالین باندي ۴ /۱۴۵

دجنت ويالې دمشکو له غره څخه رابهېږي(۱) ﴿ وَأَنْهَٰرٌ مِّن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُۥ ﴾ او ويالې دي له شيدوچي نه به وي متغيري (بلکه صافه اوخوندوره ده )مزه دهغو،يعني دشيدوبهانده ويالې به وي چي خوراسپيني خوږې اوپېړوي(سرشېر) درلودونکي به وي نه به داوږده واټن په سبب تروږېږي اونه به هم لکه ددنياشيدې خوساکېږي، په يومرفوع حديث شريف کي راځي چي داشيدې به له غولانځوڅخه نه وي راوتلي(۲) ﴿ وَأَنْهَٰرٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّٰرِبِينَ ﴾ او پيالې دي له شرابوچي مزه ورکونکي دي(هغه) څښونکوته (څکه چي) ﴿ لَا فِيهَا غَوْلٌ وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنزَفُونَ ﴾ اوداچي مزه ورکونکي يې وستايلې معناداچي ددنيادشرابو په شان بدخونده نه دي چي پرته له فاسد مزاجه سړي بل هرچاته خوندورنه وي اودآخرت شراب به خوندوربوی اومزه دارخوندلري جنتيان به يې يوازي دمزې اخيستلولپاره په سراړوي ﴿ وَأَنْهَٰرٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى ﴾ اوويالې دي له شاتو(ګبين) صفاکړی شوو (له خيريوڅخه) چي دمچيوفضلات اوشمعي موادبه پکې نه وي(۳) ﴿ وَلَهُمْ فِيهَا مِن كُلِّ ٱلثَّمَرَٰتِ ﴾ اوشته دوی ته په دغه (جنت) کي له هررازمېوو. دبيضاوي په حاشيه کي ليکي داچي مېوې يې وروسته له مشروباتويادي کړې دې ته اشاره ده چي دجنت مېوې به هم يوازي دلذت لپاره خوړلی شي نه دارتيااوضرورت لپاره(۴) ﴿ وَمَغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ ﴾ اومغفرت له طرفه درب ددوی) يعني پر دغوهسي نعمتونوسربېره بل روحي نعمت هم ورکولی شي چي هغه دالله له لوري دوی ته له رحمت او رضوان سره مغفرت اوبښنه ده. په حديث شريف کي راځي: چي زه به تاسوته خپله رضادرکړم او هيڅکله به درباندي نه غصه کېږم. صاوي وايې په جنت کي به چي جنتيان څه خوري ياڅښي په خلاف ددنياوي خوراک، څښاک ، حساب اوعذاب به يې نه وي(۵) ﴿ كَمَنْ هُوَ خَٰلِدٌ فِى ٱلنَّارِ ﴾ (آيادغه څښتن دنعمتونو ) په شان دهغه دی چي تل به وي په اورددوزخ کي؟ استفهام انکاري دی يعني سره برابرنه دي هغه چي په تلپاتي نعمتونو کي وي اوهغه چي همېشه ددوزخ په اورکي وي ﴿ وَسُقُوا۟ مَآءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَآءَهُمْ ﴾ او ورڅښولی به شي پرې اوبه ډېري تودې پس پرې به کړي (توته توټه به کړي دغه اوبه) کولمې ددوی (له ډېره ايشېدلوڅخه) مفسرين کرام وايې: اوبه به دومره زياتي ايشېدلي وي چي کله ورنژدې شي مخونه به يې.وربت کړي دسرونوپټوکي اوپوستوکي به يې ولوېږي کله چي يې وڅښي کولمې به يې له مقعده توی کړي (۶) کله چي الله دکفارو حال بيان کړ وروسته يې دمنافقانوهسي يادونه وکړه ﴿ وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ ﴾ اوځيني له دغو کفاروڅخه هغه دي چي تاته غوږ

(۱) دابن کثير مختصر ۳ /۲۳۲
(۲) نفس المرجع.
(۳) دابو السعود تفسير ۵ /۷۴
(۴) شيخ زاده ۳ /۳۴۸
(۵) دصاوي حاشيه ۴ /۸۴
(۶) دقرطبي تفسير ۱۶ /۲۳۷

نیسي (ای محمده !) ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا خَرَجُوا۟ مِنْ عِندِكَ ﴾ ترهغه پوري هرکله چي بهرووزي دوی له نزده دتا څخه ﴿ قَالُوا۟ لِلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ مَاذَا قَالَ ءَانِفًا ۚ ﴾ نو وايي هغوکسانوته چي علم ورکړی شوی دی (له اصحاب کرامو څخه لکه ابن عباس ، ابن مسعوداونور...) څه وویل : (محمد) اوس په دې ساعت کي. ابن کثیروايي چي: الله تعالی دمنافقانودبېعقلي اوناپوهي اخبارفرمايي چي دوی به درسول الله صلی الله علیه وسلم په مجلس کي کښېناستل اودهغه خبري به يې اورېدلې کله چي به پاڅېدل اووتل نو به يې صحابه علماوو ته ويل چي اوس محمد ﷺ څه وویل؟ دوی نه پوهېدل اونه يې ورته پام کاوو. ﴿ أُو۟لَـٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ طَبَعَ ٱللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ ﴾ دوی هغه کسان دي چي مهروهلی دی الله په زړونو ددوی (چي په کفر ټينګ ولاړدي) ﴿ وَٱتَّبَعُوٓا۟ أَهْوَآءَهُمْ ﴾ اومتابعت کړی دوی دهواوو خپلو (په نفاق کي) ﴿ وَٱلَّذِينَ ٱهْتَدَوْا۟ زَادَهُمْ هُدًى وَءَاتَىٰهُمْ تَقْوَىٰهُمْ ﴾ اوهرهغه کسان چي سمه لاره يې موندلي ده زيات کړی دی دوی ته (الله) هدايت بصيرت (اوسمه لاره) او ورکړي يي ده دوي ته (الله) پرهيز ګاري ددوي، امام فخررازي وايي کله چي الله ددې يادونه وکړه چي منافق اوري خو نفع نه اخلي استعداده کوي استفاده نه کوي نو يې ورپسي زياته کړه چي دمؤمن حال دهغه منافق په خلاف دی څکه چي کله واوري ترې ګټه اخلي اووربادي پوهېږي پخپل علم باندي عمل کوي اوپه دې کي دمنافق د عذرنه منل نغښتي څکه که چېري هغه وايي چي زه دخبري دغموض اوابهام له کبله ورباندي ونه پوهېدم نودده ترديدهسي کېږي چي دادی مؤمن ورباندي وپوهېدواو عمل يې وکړدغه ددوی د زړونوړوندوالی دی دمطلب پټ والی اوابهام نه دی [1] ﴿ فَهَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا ٱلسَّاعَةَ أَن تَأْتِيَهُم بَغْتَةً ۖ ﴾ پس انتظارنه کوي دوی مګردقيامت چي رابه شي دوی ته ناڅاپه (او دوی به ترې غافل اوخطاوتلي وي) ﴿ فَقَدْ جَآءَ أَشْرَاطُهَا ۚ ﴾ پس په تحقيق راغلي دي نښي علامې (د قيامت) چي يوه يې هم درسول الله صلی الله علیه وسلم بعثت دی ﴿ فَأَنَّىٰ لَهُمْ إِذَا جَآءَتْهُمْ ذِكْرَىٰهُمْ ﴾ پس بياڅرنګه به (نفع ورسوي) دوی ته هغه وخت چي راشي دوی ته (قيامت) پنداخيستل توبه ايستل ددوی؟ ﴿ فَٱعْلَمْ أَنَّهُۥ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ (نوپوه شه (ای مخاطبه !) شان دادی چي نشته هيڅ برحق معبود مګريوازي الله دی) يعني ای محمده په هغه علم چي ته يې دالله په وحدانيت لري ثابت اودائم اوسه ﴿ وَٱسْتَغْفِرْ لِذَنۢبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَـٰتِ ۗ ﴾ اوبښنه غواړه (له الله) دخپلي ګناه اودپاره دمؤمنانو سړيو اومؤمنانو ښځو ﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَىٰكُمْ ﴾ اوالله ته معلوم دی ځای دګرزېدلو ستاسي (په دنيا کي) اوځای دهستوګني ستاسي په (آخرت کي) نودآخرت لپاره دتوښي برابرولو تياری ونيسئ.

[1] کبيرتفسير ۲۸/ ۵۸

## الله تعالی فرمايي:

﴿وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا لَوْلَا نُزِّلَتْ سُورَةٌ فَإِذَا أُنزِلَتْ سُورَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَذُكِرَ فِيهَا الْقِتَالُ رَأَيْتَ الَّذِينَ فِي
قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ فَأَوْلَىٰ لَهُمْ (٢٠) طَاعَةٌ وَقَوْلٌ مَّعْرُوفٌ فَإِذَا عَزَمَ الْأَمْرُ
فَلَوْ صَدَقُوا اللَّهَ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ (٢١) فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِن تَوَلَّيْتُمْ أَن تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ (٢٢)
أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فَأَصَمَّهُمْ وَأَعْمَىٰ أَبْصَارَهُمْ (٢٣) أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ أَمْ عَلَىٰ قُلُوبٍ أَقْفَالُهَا (٢٤) إِنَّ
الَّذِينَ ارْتَدُّوا عَلَىٰ أَدْبَارِهِم مِّن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَى الشَّيْطَانُ سَوَّلَ لَهُمْ وَأَمْلَىٰ لَهُمْ (٢٥) ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ
قَالُوا لِلَّذِينَ كَرِهُوا مَا نَزَّلَ اللَّهُ سَنُطِيعُكُمْ فِي بَعْضِ الْأَمْرِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ (٢٦) فَكَيْفَ إِذَا
تَوَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ (٢٧) ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اتَّبَعُوا مَا أَسْخَطَ اللَّهَ وَكَرِهُوا
رِضْوَانَهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ (٢٨) أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَن لَّن يُخْرِجَ اللَّهُ أَضْغَانَهُمْ (٢٩) وَلَوْ نَشَاءُ
لَأَرَيْنَاكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُم بِسِيمَاهُمْ وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِي لَحْنِ الْقَوْلِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ أَعْمَالَكُمْ (٣٠) وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتَّىٰ نَعْلَمَ الْمُجَاهِدِينَ
مِنكُمْ وَالصَّابِرِينَ وَنَبْلُوَ أَخْبَارَكُمْ (٣١) إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَشَاقُّوا الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَىٰ
لَن يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا وَسَيُحْبِطُ أَعْمَالَهُمْ (٣٢) ۞ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ
(٣٣) إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ مَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ (٣٤) فَلَا تَهِنُوا وَتَدْعُوا إِلَى السَّلْمِ
وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ وَاللَّهُ مَعَكُمْ وَلَن يَتِرَكُمْ أَعْمَالَكُمْ (٣٥) إِنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا يُؤْتِكُمْ أُجُورَكُمْ
وَلَا يَسْأَلْكُمْ أَمْوَالَكُمْ (٣٦) إِن يَسْأَلْكُمُوهَا فَيُحْفِكُمْ تَبْخَلُوا وَيُخْرِجْ أَضْغَانَكُمْ (٣٧) هَا أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ تُدْعَوْنَ
لِتُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَمِنكُم مَّن يَبْخَلُ وَمَن يَبْخَلْ فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَن نَّفْسِهِ وَاللَّهُ الْغَنِيُّ وَأَنتُمُ الْفُقَرَاءُ وَإِن
تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ثُمَّ لَا يَكُونُوا أَمْثَالَكُم (٣٨)﴾ محمد: ٢٠ – ٣٨

### مناسبت:

دسورت پيل دکافرانوپه احوال بيانولوشوی ورپسې دمؤمنانوپه هکله خبري اوبيادمنافقانو حالات څېړل شوي اودسورت زياتره برخه ددوی په هکله دی ځکه چي همدادوی داسلام اومسلمانانو لپاره ورانونکی خطرپېښوي دلته آيتونه له جهادهٔ غږېږي اودجهاد په هکله دمنافقانودريزښيي.

### لغتونه:

(سوّل) ښايسته کړي دي(أضغانهم) پټي کينې ددوی. جوهري وايې (ضغن) او(ضغينة)کينې ته ويل کېږي چي حقديې بولي([1]) (سيماهم) نښي ددوی (السلم) سولي اوربندته وايې (يحفكم) الحاح اواصرارکوي پرتاسوباندي (يتركم) کموي ستاسي.

---

([1]) صحاح مادة(ضغن).

تفسیر:

﴿ وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَوْلَا نُزِّلَتْ سُورَةٌ ﴾ اووايي هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی ولي نه نازلاوه شي يوسورت (دقرآن په باب دجهادله کفاروسره ، دغه يې دشوق اودثواب دزيات حرص لپاره تمناکوله ﴿ فَإِذَآ أُنزِلَتْ سُورَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَذُكِرَ فِيهَا ٱلْقِتَالُ ﴾ نوپس کله چي نازل کړشي يوسورت محکم اويادکړی شوی وي په هغه کي جنگ (يعني چي دقتال حکم پکي ظاهراوڅرگندوي قرطبي وايې : (محکمة) معناداچي نه وي منسوخ شوی اوقتاده وايې هرسورت چي پکې دجهادحکم وي هغه محکم دی اودغه په منافقينوباندي ترګردوسخت وي (۱) ﴿ رَأَيْتَ ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ ﴾ نو وينې به ته هغه کسان چي په زړونودوی کي ناروغي (دنفاق) وي ﴿ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ نَظَرَ ٱلْمَغْشِىِّ عَلَيْهِ مِنَ ٱلْمَوْتِ ﴾ گوري تاته لکه کتنه دهغه چاچي بېخودي راغلي وي په هغه باندي له ويري دمرگ نه ﴿ فَأَوْلَىٰ لَهُمْ ﴾ پس هلاک دي وي دوی لره. په التسهيل کي وايې چي (أولى) داسي کلمه ده چي معنايې تهديداوپردوی باندي ښېراده لکه دالله جل جلاله داقول چي ﴿ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ﴾ (القيامة:۳۴)(۲) ﴿ طَاعَةٌ وَقَوْلٌ مَّعْرُوفٌ ﴾ اطاعت کول (دغه مبتدااوخبريې محذوف دی يعني) (ددوی الله ته) اوخبره نېکه کول (تاته غوره ده دوی ته)، امام رازي وايې چي دغه مستأنف کلام اوخبريې محذوف دی اوداچي ابتداء په نکره شوي ده ځکه چي هغه موصوف دی اودغه کلام چي: ﴿ وَقَوْلٌ مَّعْرُوفٌ ﴾ دی ورباندي دلالت کوي لکه چي ويلي يې وي مخلصانه طاعت کول اونېکه خبره ددوی لپاره بهتره اوغوره ده (۳) ﴿ فَإِذَا عَزَمَ ٱلْأَمْرُ ﴾ پس هرکله چي فرض شي کارد (جهاد) ﴿ فَلَوْ صَدَقُوا۟ ٱللَّهَ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ﴾ پس که چېري رښتياويل کړي وي دوی له الله سره (نيتونه يې په اخلاص وي په رښتوني اويقين جهاد وکړي) نو خامخابه ودغه رښتياويل بهتردوی ته) دغه جمله دشرط لپاره خواب دی ﴿ فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِن تَوَلَّيْتُمْ أَن تُفْسِدُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوٓا۟ أَرْحَامَكُمْ ﴾ (پس آيانژدې ياست تاسي (ای منافقانو) که چېري پادشاهان اومتصرفان شی) ياوګرزېدی (له طاعته دالله اوسنت درسول الله) نژدې يی دې ته چي فسادبه کوی په ځمکه کي اوپرې به کړی تاسي (خپلوان او) قرابتونه خپل) يعني که تاسوله اسلامه وګرزېدی نوبيابه هغه څه ته چي تاسوپه جاهليت کي پکي اوسېدلاست ستانه شی چي فسادبه موکاوواوصله رحمي به مونه کوله. قتاده وايې آياځنګه موولېدل هغه خلګ چي له کتاب الله يې مخ واړاوو آياحرامي ويني يې ونه بهولې ، اوخپلوي يې پرې نکړه دالله عصيان يې ونکړ؟؟! ابوحيان وايې چي له دغه څخه مرادهغه دفترت زمانه ده کومه چي درسول الله له

---

(۱) دقرطبي تفسير ۱۲/ ۲۴۳

(۲) التسهيل ۴ /۴۹ اوځيني مفسرينوبياداسي معناکړي چي له دوی سره وړاولائق دی اوخبريې داچي ﴿ طَاعَةٌ وَقَوْلٌ مَّعْرُوفٌ ﴾ خوکوم چي موږ وليکل هغه څرګنداودقرطبي غوره دی.

(۳) کبيرتفسير ۲۸/ ۶۲

Bawar.net



زماني مخکي راغلي ده(۱)﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ لَعَنَهُمُ ٱللَّهُ ﴾ دا مفسدان هغه کسان دي چي ليري کړي دي دوی الله (له رحمته خپله) ﴿ فَأَصَمَّهُمْ وَأَعْمَىٰٓ أَبْصَٰرَهُمْ ﴾ پس نو کانه کړي يې دي دوی لره له اوريدلو دحق نه) او ړندې کړي يې دي سترګي ددوی (له ليدلو دحق نه نو سمه لاره نه مومي. قرطبي وايي چي: الله ددې اخبار فرمايلی څوک چي داسي عمل وکړي نو لعنت ورته واجب او په غوږو او سترګو له نفع اخيستلو څخه محروم شي آن تردې چي حق ته غاړه نه ږدي که څه هم چي وايې وري نو لکه څاروی غوندي يې وګرزاوو هغه چي عقل او پوهه نلري(۲)﴿ أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ ٱلْقُرْءَانَ ﴾ آيا فکر نه کوي دوی په قرآن کي دغه استفهام د توبيخ لپاره دی يعني آيا دوی دغه قرآن نه اوري چي پندونه يې ولولي پکي سوچ وکړي نو به يې له دغو ناولي عملو نو څخه چي اوس دوی ورباندي ککړدي وژغوري ﴿ أَمْ عَلَىٰ قُلُوبٍ أَقْفَالُهَآ ﴾ بلکه په زړونو ددوی باندي قفلونه د زړونو ددوی دي (أم) د (بل) په معنا دی چي له يوه توبيخ څخه بل توبيخ ته انتقال ورباندي کېږي چي يو خو ددوی فکر نه کول دي او بل يې د زړونو تياري او قساوت دی چي تفکر او تدبر ورته لاره نلري معنا داچي زړونه يې کلک او په توره تاريکه کي دي لکه چي په أوسپنيز و قفلونو کي بندوي او د نور وړانګي او ايمان ور ته لاره نه مومي امام رازي وايي زړه د معرفت لپاره پيدا شوی دی کله چي معرفت پکي نه وي لکه چي پخپله زړه نشته او داهسي مثال لري لکه چي يو څوک شرير انسان داسي وستايې چي ووايې هغه کله انسان دی هغه خو ځنګله حيوان دی او دغه کله زړه دی بلکه يوه تيږه ده(۳)﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱرْتَدُّواْ عَلَىٰٓ أَدْبَٰرِهِم مِّنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلْهُدَى ﴾ بېشکه هغه کسان چي بيرته ګرزېدلي دي (له ايمانه) پر شاوو خپلو پس له هغه څه چي ښکاره شوي ده دوی ته سمه لاره (په ظاهري او څرګندو دلائلو او معجزاتو سره)﴿ ٱلشَّيْطَٰنُ سَوَّلَ لَهُمْ وَأَمْلَىٰ لَهُمْ ﴾ شيطان ښايسته کړي دي دوی ته دغه چاره د مهلت يې دوی ته ښکاره کړی دی )او دوی يې تېرايستلي دي په دېروآرزو ګانو او وږده عمر باندي)﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُواْ لِلَّذِينَ كَرِهُواْ مَا نَزَّلَ ٱللَّهُ ﴾ (دغه (ګمراه کول) په سبب ددې دی چي ) بېشکه دوی وويل: هغو کسانو ته چي بد يې ګڼو هغه (قرآن) چي الله رالېږلی دی ) يعني دوی يهودوته چي قرآن يې دکينې او حسد له مخي بد ګڼانه وويل ﴿ سَنُطِيعُكُمْ فِى بَعْضِ ٱلْأَمْرِ ﴾ ژر به حکم ومنو (او فرمانبرداري به وکړو ) ستا سي په ځينو چارو کي (لکه داچي جهاد به نه کوو مسلمانان به له هغه څخه بې زړه کوو او نور...)﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ ﴾ او الله ته معلومي دي (پټي خبري (او مشورې ددوی) هم (کوم چي د اسلام او مسلمانانو په خلاف چلونه، فرېبونه او دوکې سنجوي. مفسرين کرام وايي چي منافقينو يهودانو ته دغه پټ رازونه وويل: او الله را وسپړل او څرګند يې کړل دوی

(۱) البحر المحيط ۸/ ۸۲
(۲) د قرطبي تفسير ۱۶/ ۲۴۶
(۳) کبير تفسير ۲۸/ ۶۶

بې رسوا کړل ﴿ فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَٰرَهُمْ ﴾ نو څرنګه به وي (حال ددوی) کله چې دوی لره پرښتې قبض کوي (ساوې یې کاږي) وهي به دوی مخونه ددوی او شاګانې ددوی؟ (په اوسپنیزو ځتکانو باند) قرطبي وايي: معنايې د اړول او تخویف تهدید دی یعني که عذاب وځنډېږي هم ددوی د عمر تر پایه به وځنډېږي. ابن عباس وايي: څوک چې په معصیت کې مړ کېږي پرښتې به يې په مخ او شا ووهي (۱) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمُ ٱتَّبَعُوا۟ مَآ أَسْخَطَ ٱللَّهَ وَكَرِهُوا۟ رِضْوَٰنَهُۥ ﴾ دغه (عذاب سبب دد دی چې) دوی متابعت کړی وو دهغه شي چې الله به يې په غضب کاووا وبده يې ګڼله خوښي دد غه الله (یعني دوی د نفاق لاره نیولې وه او هغه چې الله يې خوښوي لکه ایمان او جهاد دوی نه کاوو) ﴿ فَأَحْبَطَ أَعْمَٰلَهُمْ ﴾ پس ضائع ابته کړل (الله نېک) عملونه ددوی (کوم چې دایمان په وخت کې يې ترسره کړي وو) ﴿ أَمْ حَسِبَ ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَن لَّن يُخْرِجَ ٱللَّهُ أَضْغَٰنَهُمْ ﴾ آیا ګمان کوي هغه کسان چې په زړونو ددوی کې ناروغي (د شک او نفاق) دي چې نه به ښکاروي الله تعالی پټې کینې ددوی له مؤمنانو سره؟ بلکه ظاهر به يې کړي او دوی به خامخا رسوا شي ﴿ وَلَوْ نَشَآءُ لَأَرَيْنَٰكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُم بِسِيمَٰهُمْ ﴾ او که اراده وفرمایو موږ نو خامخا به وښیو موږ تاته دغه کسان نو ارو مرو ته به دوی وپېژنې په (علامو) د څېرو ددوی (مګر الله تعالی ددوی ستر کړی دی تر څو دوی مسلمانان او خپلوان يې پټ پاتې کړی شي لپاره دد دې که منافقان توبه وکاږي ﴿ وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِى لَحْنِ ٱلْقَوْلِ ﴾ او (قسم دی چې) خامخا وبه پېژنې ته دوی په اړولو ګرزولو د خبرو کې (ددوی د خبرو اسلوب به ځانګړی وي په ظاهره به ایمان او اسلام څرګندوي خو په باطن کې به کفر او ښکنځل وي. کلبي رضی الله عنه وايي چې له نزوله ددې آیت شریف څخه وروسته به چې هر منافق خبري کولې رسول الله صلی الله علیه وسلم به پېژاند و (۲) ﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ أَعْمَٰلَكُمْ ﴾ او الله ته معلوم دي ټول عملونه (احوال) ستاسي (هیڅ څیز له الله څخه پټ نه دی نو څرنګه چې ستاسي قصدونه له هغه سره سم به جزادر کړي پدې کې وعدا او وعید نغښتی دی ﴿ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتَّىٰ نَعْلَمَ ٱلْمُجَٰهِدِينَ مِنكُمْ وَٱلصَّٰبِرِينَ ﴾ او خامخا (لازما) موږ تاسي ازمویو (په جهاد او نورو تکالیفو سره) تر هغه پورې چې ظاهر کړو موږ في سبیل الله جهاد کونکي له تاسي څخه او صبر کونکي (په جهاد او نورو شاقه اعمالو احکامو د اسلام کې) ﴿ وَنَبْلُوَا۟ أَخْبَارَكُمْ ﴾ او ازمویو موږ عملونه، حالونه، خبرونه ستاسي (ښه او بد يې) په التسهیل کې وايي چې مراد له دې ویناڅخه چې: ﴿ حَتَّىٰ نَعْلَمَ ﴾ دی علم ظهور په وجود کې دی تر څو چې دلیل ور باندې ونیول شي او الله تعالی ته خو ټول شیان تر پخواله شتون او موجودیت څخه هم څرګند او معلوم دي مګر د حجت د درولو لپاره يې خلګو ته ورښکاره کوي فضیل بن عیاض رضی الله عنه چې به کله دغه آیت لوستل وبه

---

(۱) البحر المحیط ۸/۸۴

(۲) د قرطبي تفسیر ۱۲/۲۵۳

بې ژړل اوداسي به بې وويل اى الله موږ ته ابتلاء مه راكوه كه دي وازمويلو نورسوابه شو اوپردې سترونه به موپورته شي (۱) ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ بېشكه هغه كسان چي كافران شوي دي اومنع كوي (خلګ) له لاري دالله (اسلام) څخه ﴿ وَشَآقُّواْ ٱلرَّسُولَ مِنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلۡهُدَىٰ ﴾ او مخالفت كوي له رسول الله سره پس له هغه چي ښكاره شوي دوى ته سمه لاره درښتنولي اوصدق د پيغمبرپه معجزاتواودلائلوسره) ﴿ لَن يَضُرُّواْ ٱللَّهَ شَيۡـًٔا وَسَيُحۡبِطُ أَعۡمَٰلَهُمۡ ﴾ له سره به ضرر ونه رسوي دوى الله ته هيڅ شى اوژردي چي ابته ضائع به كړي (الله پاک نېک) عملونه ددوى (لكه صدقه وركول اونورچي په آخرت كي به يې هيڅ ګټه ونهويني) ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ ﴾ اى هغوكسانوچي ايمان يې راوړى دى (يعني اى مؤمنانو) اطاعت كوئ دالله اواطاعت كوئ درسول الله ﴿ وَلَا تُبۡطِلُوٓاْ أَعۡمَٰلَكُمۡ ﴾ اومه باطلوئ تاسي عملونه خپل (په هغه څه چي دغوخلګووباندي خپل عملونه باطل كړي دي له كفره اونفاقه اوعُجب اورياڅخه ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ بېشكه هغه كسان چي كافران شوي دي اومنع كوي (خلګ) له لاري دالله (ايمان) څخه ﴿ ثُمَّ مَاتُواْ وَهُمۡ كُفَّارٞ ﴾ بيامړه شي اودوى كافران وي ﴿ فَلَن يَغۡفِرَ ٱللَّهُ لَهُمۡ ﴾ پس له سره به مغفرت ونكړي الله دوى ته په هيڅ حال له احوالواودغه په قطعي توګه تثبيت شوي چي څوک په كفرمړشي الله ورته بښنه نه كوي ځكه چي الله فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَغۡفِرُ أَن يُشۡرَكَ بِهِۦ ﴾ ابوالسعودوايي چي دادهرهغه چاحكم دى چي په كفركي ومري كه څه هم چي دقليب دخاوندانوپه حق كي نازل شوى دى ﴿ فَلَا تَهِنُواْ وَتَدۡعُوٓاْ إِلَى ٱلسَّلۡمِ ﴾ پس سستي مكوئ اومه ضعيفان كېږئ (په جهاد) كي اومه غواړئ تاسي (كفار) روغي ته (بلكه ورسره جنګ وكړئ) كله چي ورسره په جنګ كي مخامخ شى) ﴿ وَأَنتُمُ ٱلۡأَعۡلَوۡنَ ﴾ حال داچي هم دا تاسي غالب يې اى مؤمنانو) پرمنكرانوباندي ځكه چي ايمان لرى ﴿ وَٱللَّهُ مَعَكُمۡ ﴾ اوالله له تاسي سره دى (په نصرت كي) ﴿ وَلَن يَتِرَكُمۡ أَعۡمَٰلَكُمۡ ﴾ اوله سره به ناقص اوضائع نكړي (الله) له تاسي عملونه ستاسي (بلكه په قيامت كي به پوره جزادركړي) ابن كثيروايي چي پدې قول كي چي ﴿ وَٱللَّهُ مَعَكُمۡ ﴾ دالله له لوري پردښمنانو باندي دغلبې اونصرت خوراسترزېرى شته (۲) ﴿ إِنَّمَا ٱلۡحَيَوٰةُ ٱلدُّنۡيَا لَعِبٞ وَلَهۡوٞۚ ﴾ بېشكه داژوندددنيا لوبې او مشغولېده دي (ثبات اواستقرارنلري لكه دماشومانوساعت تېرى داسي دي شيخ زاده وايي چي: معنايې داده دغه ددنيالذتونه پاته كېدونكي دي په دې نه ارزي چي دجهادپه وړاندي دي مانع جوړشي اويادي دآخرت دثوابونوخنډشي ځكه دغه په منزلت دلوبواومشغولتيادي چي ژرله مينځه ځي اوآخرت

(۱) التسهيل ۴/ ۵۰
(۲) ابن كثيرمختصر ۳/ ۳۳۸

تلپاتې اوباقي دی نونه ښايي چې ددنيامينه اودهغې فناکېدونکې لذتونه يوڅوک له جهاده راوګرزوي
اوله غزاکولوڅخه يې بې زړه کړي(۱) ﴿ وَإِن تُؤْمِنُوا۟ وَتَتَّقُوا۟ يُؤْتِكُمْ أُجُورَكُمْ ﴾ اوکه تاسي ايمان راوړی او(له
معاصيو) پرهېزوکړی دربه کړي تاسي ته (الله) اجرونه ستاسي (په بشپړه توګه) ﴿ وَلَا يَسْـَٔلْكُمْ أَمْوَٰلَكُمْ ﴾
اونه به غواړي له تاسي (ګرد) مالونه ستاسي بلکه مفروض زکات درڅخه اخلي. ابن کثيروايي: هغه
(الله) غني دی له تاسي هيڅ هم نه غواړي اوداچې په تاسوېي ستاسي دمال زکات فرض کړی
3 ترڅوستاسودبېوزلو وروڼولاس نيوی وشي اوګټه ثواب يې تاسوته درکول کېږي (۲) ﴿ إِن يَسْـَٔلْكُمُوهَا
فَيُحْفِكُمْ تَبْخَلُوا۟ ﴾ که وغواړي دی له تاسي څخه (مال) پس کوښښ وکړئ په غوښتلوکې له تاسونه
تاسوبه بخل وکړی په دغوسره ﴿ وَيُخْرِجْ أَضْغَٰنَكُمْ ﴾ او راوبه باسي په (په دغوغوښتلوسره) پټې کينې
ستاسي له بخل اودانفاق له بدګڼلوڅخه په التسهيل کې وايې چې دغه په دې چې انسان له مال سره مينه
لري اويوڅوک چې دچاپه محبوب کې ورسره شخړه کوي دانسان پټ رازونه رابرسېره کېږي نودغه دالله
جل جلاله درحمت پايله ده چې په تکاليفوکې يې ورسره تشددنه دی کړی (۳) ﴿ هَٰٓأَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ تُدْعَوْنَ
لِتُنفِقُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ واورئ تاسي ای دغوکسانوچې بللی شوي يی لپاره ددې چې نفقه کړی مال ويې
لګوئ په لاره دالله کې (په هغوطريقوچې فرض دي لکه زکات اوجهادچې له طاقت سره سم مکلف شوي
ياست) ﴿ فَمِنكُم مَّن يَبْخَلُ ﴾ پس ځيني له تاسوهغه دي چې بخل کوي (مال نه لګوي) ﴿ وَمَن يَبْخَلْ
فَإِنَّمَا يَبْخَلُ عَن نَّفْسِهِۦ ﴾ اوهغه څوک چې بخل کوي اومال نه لګوي نوبېشکه چې بخل کوي خپل ځان ته
(چې له ثوابه بې محرومېږي) صاوي وايې چې بخل کله چې (دشح) په معناوي په (على) سره متعدي
کېږي اوکه چېري بياد (امساک) په معناووپه (عن) سره يې تعدی ښايې (۴) ﴿ وَٱللَّهُ ٱلْغَنِىُّ وَأَنتُمُ
ٱلْفُقَرَآءُ ﴾ الله غني بې پرواده (ستاسي له نفقې اوهرڅېزه) اوتاسي الله ته فقيران ياست ﴿ وَإِن تَتَوَلَّوْا۟ يَسْتَبْدِلْ
قَوْمًا غَيْرَكُمْ ﴾ اوکه وګرځېدی تاسي (له ايمان اوسخاڅخه نوالله) به بدل راولي يوقوم بې له تاسو (چې
ترتاسي به زيات دالله حکم مني) ﴿ ثُمَّ لَا يَكُونُوٓا۟ أَمْثَٰلَكُم ﴾ بيابه هغوی نه وي په مثل ستاسو (په بخل
کې بلکه سخيان به وي).

**بلاغت:**

پدې سورت کې چې دبديع اوبيان کومې ښکلاوې شته لنډيزيې داده:

---

(۱) شيخ زاده په بيضاوي باندې ۳/۳۵۲
(۲) مختصرابن کثير ۳/۳۳۸
(۳) التسهيل ۴/۵۰
(۴) دصاوي حاشيه ۴/۸۹

۱ – مقابله دلمري اودوهم آيت ترمينځ لکه: ﴿ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ أَضَلَّ أَعْمَٰلَهُمْ ﴾ اود ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ... ﴾ چي دغه له بديعي محسنا تو څخه ګڼل کېږي.

۲ – ذکرد خاص وروسته له عام څخه لکه: ﴿ وَءَامَنُواْ بِمَا نُزِّلَ عَلَىٰ مُحَمَّدٍ ﴾ اوباريکي پکي دهغه په هکله اعتناء اوتعظيم دی.

۳ – تبعيه استعاره چي فرمايي: ﴿ تَضَعَ ٱلْحَرْبُ أَوْزَارَهَا ﴾ دلته يې دجنګ بند بدل له دې سره تشبيه کړل چي اسباب يې کېښودل شي اوله (وضع) څخه يې (تضع) مشتق کړي چي دپای ته رسېدلواو پرېښودلو په معنادي اودغه تبعيه استعاره ده.

۴ – مرسل مجازچي فرمايي: ﴿ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ﴾ دلته يې دجزء يادونه کړي اومرادخني کل دی يعني تاسوته به ثبات اوټينګاروبښي اوداچي دپښويادونه يې په ځانګړي توګه وکړه ځکه چي ثبات اوتزلزل په هغوکي څرګند ېږي اودغه لکه ﴿ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ ﴾ غوندي مجازدی.

۵ – دطباق صنعت چي د ﴿ مَنًّا ... فِدَآءً ﴾ او ﴿ ءَامَنُواْ ﴾ اود ﴿ كَفَرُواْ ﴾ اود ﴿ ٱلْغَنِىُّ ... ٱلْفُقَرَآءُ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۶ – عقلي مجازچي فرمايي: ﴿ فَإِذَا عَزَمَ ٱلْأَمْرُ ﴾ دعزم نسبت يې امرته وکړاوپه حقيقت کي داهل لپاره دی نودغه لکه چي وايي (نهاره صائم) دغسي دی.

۷ – دالتفات صنعت چي پدې کلام کي دی ﴿ فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِن تَوَلَّيْتُمْ ﴾ اودغه له غيبت څخه خطاب ته التفات دی ترڅو چي توبيخ اوتقريع تشديد کړي.

۸ – تصريحي استعاره چي فرمايي: ﴿ أَمْ عَلَىٰ قُلُوبٍ أَقْفَالُهَآ ﴾ دلته يې زړونه له هغوبندودروازو سره تشبيه کړل کوم چي دواعظانووعظ ته نه پرانستل کېږي اونه پکي پندځای لري دغه خورا باريکه اولطيفه استعاره ده.

۹ – اطناب د(أنهار) دلفظ په تکرارسره چي کله راځي ﴿ فِيهَآ أَنْهَٰرٌ مِّن مَّآءٍ غَيْرِ ءَاسِنٍ وَأَنْهَٰرٌ مِّن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُۥ وَأَنْهَٰرٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّٰرِبِينَ ﴾ ترپايه دآيتونو ترڅوچي جنتي نعمتونوته زيات تشويق پيداشي.

۱۰ – کنايه لکه چي فرمايي: ﴿ ٱرْتَدُّواْ عَلَىٰٓ أَدْبَٰرِهِم ﴾ دغه له کفرڅخه کنايه ده چي وروسته له ايمان څخه يې غوره کوي.

۱۱ – ښايسته ښکلي سجع چي پدې مبارکوآيتونواونوروکي راځي لکه: ﴿ أَضَلَّ أَعْمَٰلَهُمْ.....وَٱتَّبَعُوٓاْ أَهْوَآءَهُم.....وَأَعْمَىٰٓ أَبْصَٰرَهُمْ ﴾ ترپايه پوري.

دالله جل جلاله په مرسته دمحمد سورت تفسير بشپړ شو.

# دالفتح سورت مدني اونه ویشت آیتونه لري

دسورت په وړاندي:

دغه سورت مدني دی اودنورومدني سورتونوپه شان تشریعي امورچي له معاملاتو، عباداتو، اخلاقو اولاربنوونوڅخه عبارت دي څېړي.

سورت په پیل کي دحدیبې له صلحي غږېږي هغه چي درسول الله صلی الله علیه وسلم اومشرکانو ترمینځ دهجرت په شپږم کال کي لاس لیک شوه اوهغه دستري فتحي چي دمکې فتح ده پیلامه وه، به هغې سره دمؤمنانوبری اوتمکین ترلاسه شواوبیاخلګ دالله په دین کي ټولی ټولی داخلېدل ﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا﴾ دآیتونوترپایه.

سورت دمؤمنانوله جهاده اوبیعت الرضوان څخه غږېږي هغه چي اصحابورضوان الله علیهم له رسول الله سره په جهادباندي دمرګ ترشېبې بیعت وکړهغه ډېرمبارک بیعت ووڅکه الله جل جلاله ولمانځه اوله خاوندانوڅخه یې خپله رضا اوخوښي وښوده دتل لپاره یې یادپه خپل کتاب قرآنکریم کي په زرینوکرښوولیکوچي: ﴿لَّقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾ دآیت ترپایه.

بیاالله دهغواعرابوچي په زړونوکي یې رنځ وو اومنافقینویادونه کوي چي په مؤمنانو اورسول الله باندي به یې ډول ډول ګومانونه کول اوله رسول الله سره ونه وتل نوآیتونه رانازلېږي هغوی رسواکوي اوپټ رازونه یې راسپړي ﴿سَيَقُولُ لَكَ الْمُخَلَّفُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ شَغَلَتْنَا أَمْوَالُنَا وَأَهْلُونَا﴾ دآیتونوترپایه.

دغسي سورت درسول الله دهغه خوب یادونه فرمایې کوم چي رسول الله صلی الله علیه وسلم په مدینه منوره کي ولیدواواصحابانو(رضوان الله علیهم) ته یې خبرورکړهغوی خوښ اوخوشحاله شول هغه داچي رسول الله صلی الله علیه وسلم اومسلمانان به ببغمه اوپه اطمینان اوامان مکې ته وردننه کېږي همدغه خوب ربښتیاشواومؤمنان په امن اواطمینان دعمرې اداکولولپاره وردننه شول ﴿لَّقَدْ صَدَقَ اللَّهُ رَسُولَهُ الرُّؤْيَا بِالْحَقِّ لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ إِن شَاءَ اللَّهُ آمِنِينَ مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ وَمُقَصِّرِينَ﴾.

په پای کي سورت په رسول الله اوسپېڅلواصحابانوبې ثنادرودوایې چي: ﴿مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾ دآیت ترپایه

تسمیه اونومول یې:

دغه سورت ته ځکه سورت الفتح وایې چي الله جل جلاله مؤمنانوته دفتح مبین زېری ورکړی دی چي: ﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا﴾ دآیتونوترپایه.

بهتري او فضيلت يې:

دغه سورت په رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه وخت نازل شوچي كله له حديبيې راو گرزېدو او كله چي نازل شو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: نن شپه پرما داسي سورت نازل شو چي ماته تر دنيا او مافيها غوره دى ﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا﴾ دا امام احمد رحمه الله روايت.

***

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا ﴿١﴾ لِّيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَيَهْدِيَكَ صِرَاطًا

مُّسْتَقِيمًا ﴿٢﴾ وَيَنصُرَكَ اللَّهُ نَصْرًا عَزِيزًا ﴿٣﴾ هُوَ الَّذِي أَنزَلَ السَّكِينَةَ فِي قُلُوبِ الْمُؤْمِنِينَ لِيَزْدَادُوا إِيمَانًا مَّعَ إِيمَانِهِمْ وَلِلَّهِ

جُنُودُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿٤﴾ لِّيُدْخِلَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا

وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَكَانَ ذَٰلِكَ عِندَ اللَّهِ فَوْزًا عَظِيمًا ﴿٥﴾ وَيُعَذِّبَ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِينَ

وَالْمُشْرِكَاتِ الظَّانِّينَ بِاللَّهِ ظَنَّ السَّوْءِ عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ

مَصِيرًا ﴿٦﴾ وَلِلَّهِ جُنُودُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿٧﴾ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا ﴿٨﴾

لِّتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُعَزِّرُوهُ وَتُوَقِّرُوهُ وَتُسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴿٩﴾ إِنَّ الَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ إِنَّمَا يُبَايِعُونَ

اللَّهَ يَدُ اللَّهِ فَوْقَ أَيْدِيهِمْ فَمَن نَّكَثَ فَإِنَّمَا يَنكُثُ عَلَىٰ نَفْسِهِ وَمَنْ أَوْفَىٰ بِمَا عَاهَدَ عَلَيْهُ اللَّهَ فَسَيُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿١٠﴾

سَيَقُولُ لَكَ الْمُخَلَّفُونَ مِنَ الْأَعْرَابِ شَغَلَتْنَا أَمْوَالُنَا وَأَهْلُونَا فَاسْتَغْفِرْ لَنَا يَقُولُونَ بِأَلْسِنَتِهِم مَّا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ قُلْ

فَمَن يَمْلِكُ لَكُم مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا بَلْ كَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١١﴾ بَلْ ظَنَنتُمْ أَن لَّن

يَنقَلِبَ الرَّسُولُ وَالْمُؤْمِنُونَ إِلَىٰ أَهْلِيهِمْ أَبَدًا وَزُيِّنَ ذَٰلِكَ فِي قُلُوبِكُمْ وَظَنَنتُمْ ظَنَّ السَّوْءِ وَكُنتُمْ قَوْمًا بُورًا ﴿١٢﴾

وَمَن لَّمْ يُؤْمِن بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ فَإِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَعِيرًا ﴿١٣﴾ وَلِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ

مَن يَشَاءُ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿١٤﴾ سَيَقُولُ الْمُخَلَّفُونَ إِذَا انطَلَقْتُمْ إِلَىٰ مَغَانِمَ لِتَأْخُذُوهَا ذَرُونَا

نَتَّبِعْكُمْ يُرِيدُونَ أَن يُبَدِّلُوا كَلَامَ اللَّهِ قُل لَّن تَتَّبِعُونَا كَذَٰلِكُمْ قَالَ اللَّهُ مِن قَبْلُ فَسَيَقُولُونَ بَلْ تَحْسُدُونَنَا

بَلْ كَانُوا لَا يَفْقَهُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٥﴾ قُل لِّلْمُخَلَّفِينَ مِنَ الْأَعْرَابِ سَتُدْعَوْنَ إِلَىٰ قَوْمٍ أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ تُقَاتِلُونَهُمْ أَوْ يُسْلِمُونَ

فَإِن تُطِيعُوا يُؤْتِكُمُ اللَّهُ أَجْرًا حَسَنًا وَإِن تَتَوَلَّوْا كَمَا تَوَلَّيْتُم مِّن قَبْلُ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٦﴾ لَّيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا

عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَن يَتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ

عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٧﴾﴾ الفتح: ١ ـ ١٧

## لغتونه:

(السكينة) سكون اطمينان اوثبات(السوء) غم اودردجوهري وايې (سوء) په زورسره دخوښي ضد
وايې چي خفګان دی اوپه پښش سره بيابدي اوشکست ته وايې لکه ﴿ عَلَيۡهِمۡ دَآئِرَةُ ٱلسَّوۡءِۖ ﴾ (۱)(تعزرو)
چي تاسي يې تعظيم وکړی مرسته ورسره وکړئ اوتکليف ځني منع کړئ اوپه حدودوکي چي تعزيرلي
کيږي ځکه هغه هم له بدفعل اوعمل څخه منع کونکی وي (نقض) دعهداوبيعت ماتول (بورا)هلاک شوی
جوهري وايې چي (بور) فاسدهلاک شوی سړی دی چي پکي خيرنه وي (حرج) ګناه ته وايې.

## دنزول سبب:

ابن عباس ﷺ وايي چيَ دميدينې کوچيان (اعراب) کله چي رسول الله دفتحي په کال مکې ته
دسفرکولواراده وکړه اوتيولوته يې دتللووړانديزوکړدعمرې داداکولواحرام يې وتاړو اوړ(هدی) يې
ورسره رواني کړې چي خلګ پوه شي رسول الله اومؤمنان دجنګ اراده نلري نودوی بېځايه عذرونه وړاندي
پيل کړل اوترشاشول بيادغه آيت نازل شو: ﴿ سَيَقُولُ لَكَ ٱلۡمُخَلَّفُونَ مِنَ ٱلۡأَعۡرَابِ شَغَلَتۡنَآ أَمۡوَٰلُنَا وَأَهۡلُونَا
فَٱسۡتَغۡفِرۡ لَنَاۚ ﴾ دآيت ترپايه(۲).

## تفسير:

﴿ إِنَّا فَتَحۡنَا لَكَ فَتۡحٗا مُّبِينٗا ﴾ (بېشکه چي فتح اوبری مودرکړی دی تاته فتح اوبری ظاهره ښکاره)
مراددمکې فتح ده الله مخکي تروقوع يې ورسره ژمنه کړي اودماضي په صيغه سره يې دتحقق لپاره
تعبيرفرمايلی دی همدادالله له لوري رسول الله اومؤمنانوته سترزيری اوبشارت وو. زمخشري وايې چي
دغه فتح دمکې له فتحي څخه عبارت اودسورت نزول دحديبې له صلحي وروسته کله چي رسول الله له
مکې راستنېدو وشودغه دالله له لوري ورسره دفتحي ژمنه اووعده ده اوداچي دماضي په صيغه سره
لکه چي دالله جل جلاله په اخبارکولوکي دود اوعادت دی راوړل شوه ځکه چي په ثبوت اويقين کي
داسي ده لکه چي موجوده اوپېښه شوي وي اوپدې کي ددغي فتحي دشان اوشوکت هغه درناوی شته
چي له چاپټ نه دی(۳) ﴿ لِّيَغۡفِرَ لَكَ ٱللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنۢبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ ﴾ (لپاره ددې چي وبښي تاته الله هغه چي
پخواتېرشوي دي له ګناه دتاڅخه اوهغه چي وروسته دي (له ګناه څخه)يعني ترڅوچي وبښي الله تاته
ګردهغه (اولیٰ (بهتر)شيان) چي له تاڅخه ترک شوي وي (ای محمده!) ابوالسعودوايې چي دغوته
دګناه نوم ورکول درسول الله صلّی الله عليه وسلم دسترمنصب په نظرکي نيول دي(۴)ابن کثيروايې چي
دغه درسول الله صلی الله عليه وسلم له خصائصواوځانګړتياووڅخه دی چي څوک ورسره پکي ګډون
نلري اوپدې کي درسول الله صلی الله عليه وسلم دشرافت څرګندېدل دي ځکه چي هغه مطلقًا اکمل

---

(۱) الصحاح للجوهري.
(۲) دقرطبي تفسير ۱۶/ ۲۶۸
(۳) الکشاف ۴/ ۳۶۲
(۴) ابوالسعود ۵/ ۸۰

دبشریت اوسرداردوی په دنیااوآخرت کي دی هغه په گردوچارودطاعت نېکي، استقامت اونوروکي ترټولو انسانانولوړوچي نه پخواني دده ځای ته رسېدلي اونه وروستني او څرنګه چي ترګردو منونکی او(اطوع) ووالله پاک په فتح مبین باندي ونازاووا وپخواني او وروستني ګناهونه يې وروبښل (١)﴿ وَيُتِمَّ نِعْمَتَهُۥ عَلَيْكَ ﴾ او(بل لپاره ددې)چي پوره کړي (الله په فتح دمکې اونوروښارونو سره)خپله مهرباني پرتاباندي (چي دين يې لوړاوشان يې اوچت شي)﴿ وَيَهْدِيَكَ صِرَٰطًا مُّسْتَقِيمًا ﴾ اوبل لپاره ددې چي وښيي الله تاته سمه لاره (رسېدونکي وجنت ته، چي دستردين شريعت درکړي)﴿ وَيَنصُرَكَ ٱللَّهُ نَصْرًا عَزِيزًا ﴾ او(بل دپاره ددې)چي کومک وکړي الله تعالى له تاسره مددغالب زبردست (چي په هغه کي ددنيااوآخرت عزت اوغلبه وي)﴿ هُوَ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ ٱلسَّكِينَةَ فِى قُلُوبِ ٱلْمُؤْمِنِينَ لِيَزْدَادُوٓا۟ إِيمَٰنًا مَّعَ إِيمَٰنِهِمْ ۗ ﴾ دغه(الله) هغه ذات دی چي نازله کړي يې ده ډاډينه (سکينه) په زړونودمؤمنانوکي لپاره ددې چي زيات کړي دوی لره ايمان سره له ايمانه ددوی (دعقيدې په رسوخ اوپه علام الغيوب ذات باندي توکل)﴿ وَلِلَّهِ جُنُودُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ ﴾اوخاص الله لره دي لښکري دآسمانونواودځمکي (له ملائکو، پېريانانو، حيواناتو، زلزلو،تندرونو، ډوبېدلو، بادونو، طوفانونو اونوروڅخه چي شمېر يې نشي کېدای که وغواړي اوپه چايې دګمارلواراده شي (پرته له تاسويې هم) ګماري چي ددين نصرت يې وکړي وايي که چېري الله يوه پرښته په دښمنانو راواستوي ګردبه پوپنا کړي خوالله جهاد فرض کړی چي پکي حکمت اوحجت دی ځکه نوفرمايي (٢)﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴾ اودی الله ښه خبردارښه حکمت والا )يعني ښه خبردارپه احوالودخلګوښه حکمت والاپه تقديراو تدبيرددوی باندي مفسرين کرام وايي چي: مقصدپه نازلولودسکينې په زړونودمؤمنانوکي داهل دحديبې دی کله چي يې له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په جهادباندي بيعت وکړچي دمکې له خلګوسره دمرګ ترشېبې جنګېږي ځکه چي هغوی دوی په داسي نادودوخورول چي زړونه يې خورا خفه اوخواشيني شول اصحابان يې نه پرېښودل چي مکې ته دننه شي اصحابان رضوان عليهم پرته دمقصدله ترسره کېدلوبېرته راستانه شول خو سره له دې چي ډېربحراني دناورين حالت ووبياهم هيڅوک له دين څخه ونه ګرزېدل، يوځل عمربن خطاب رضى الله عنه دومره احساساتي شوچي ويل يې ای رسول الله صلى الله عليه وسلم !آياته دالله حق پيغمبرنه يې؟ رسول الله وفرمايل: هوهمداسي ده بيا يي وويل ايا موږ بر حقه او دښمن پر باطله نه دي ؟ رسول الله وفرمايل: هوهمداسي ده نو عمر ﵁ وويل: چي داسي ده موږ پخپل دين کي سپېتانه، نه منو ! رسول الله صلي الله عليه وسلم وفرمايل: زه د الله پيغمبريم دالله دفرمان سرغړونه نکوم هغه زما مرستندوی دی(٣)﴿ لِيُدْخِلَ

(١) دابن کثير مختصر، چاپيافتح مبين دحديبې صلح بللي چي سترآثاريې پرې ښودل چي هغه بيعت الرضوان، صلح اوډېر کسان په اسلام کي داخلېدل وابن کثيرهم دغه لوري ته تللی دی.

(٢) دابن کثير مختصر ٣ / ٣٤٠

(٣) دکيسې تفصيل دي په بخاري شريف اوابن هشام سيرت کي ولوستل شي.

﴿ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ جَنَّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا﴾ لپاره ددې چې داخل كه مؤمنان سړي او مؤمناني ښځي (په سبب د طاعت او جهاد) په جنتونو كې چې بهيږي له لاندي دونو او ماڼيو د هغو (خلود ولد) ويالې حال دا چې تل به وي دوی په هغو جنتونو كې ﴿وَيُكَفِّرَ عَنْهُمْ سَيِّـَٔاتِهِمْ﴾ او چې ورژوي (الله تعالی) له دوی څخه ګناهونه ددوی ﴿وَكَانَ ذَٰلِكَ عِندَ ٱللَّهِ فَوْزًا عَظِيمًا﴾ همدغه (تكفير د ګناهونو او داخل د جنت) په نزد د الله د پرستر برى (او په مراد رسېدل) دي (چې تر ې پورته برى او فوز نشته ﴿وَيُعَذِّبَ ٱلْمُنَٰفِقِينَ وَٱلْمُنَٰفِقَٰتِ وَٱلْمُشْرِكِينَ وَٱلْمُشْرِكَٰتِ﴾ او (لپاره ددې) چې په عذاب كړي (الله) منافقان سړي او منافقاتي ښځي او مشركان سړي او مشركاتي ښځي (ځكه چې دوی تر مجاهرو كافرانو زيات د اسلام او مسلمانانو لپاره خطرناک دي) ﴿ٱلظَّآنِّينَ بِٱللَّهِ ظَنَّ ٱلسَّوْءِ﴾ چې ګمان كونكي دي پر الله باندي ګمان د بدي (چې هيڅكله به الله رسول الله ته برى ورنكړي، او مشركان به مسلمانان له بېخه وباسي لكه چې الله فرمايي: ﴿بَلْ ظَنَنتُمْ أَن لَّن يَنقَلِبَ ٱلرَّسُولُ وَٱلْمُؤْمِنُونَ إِلَىٰٓ أَهْلِيهِمْ أَبَدًا﴾ قرطبي وايي: دوی دا سې ګمان كاوو چې نه به نبي عليه السلام او نه هم يو صحابي بيرته له حديبې څخه روغ رمټ مدينې منورې ته راستون شي (١) ﴿عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ ٱلسَّوْءِ﴾ (پر دوی باندي دي راګرزېدل د بدي (په ذلت او عذاب سره) يعني دوی چې په مؤمنانو كوم ګمان كوي او د څه شي ورته انتظار باسي هغه هلاكت او تباهي دي پر دوی وي ﴿وَغَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ وَلَعَنَهُمْ﴾ او غضب كړی دی الله پر دوی باندي (په سبب د كفر او نفاق د دوی) او ليري كړي دي الله دوی (له رحمته خپله) ﴿وَأَعَدَّ لَهُمْ جَهَنَّمَ وَسَآءَتْ مَصِيرًا﴾ او تيار كړی دی الله تعالی) دوی ته عذاب د دوزخ او بد ځای دور تلو دی (دغه دوزخ لپاره د منافقانو او ګمراهانو) ﴿وَلِلَّهِ جُنُودُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ او خاص الله لره دي لښكري د آسمانونو او د ځمكي) دغه له دښمنانو څخه د انتقام او كسات اخيستلو لپاره تاكيد دی. امام رازي وايي: چې لفظ د جُنُودُ يې ددې لپاره مكرر راوړی ځكه كله لښكري د رحمت لپاره او كله كله بيا د عذاب لپاره وي نو لومړی يې په مؤمنانو د رحمت بيان وفرمايو او دوهم ځل يې په كفارو د عذاب بيان وكړ (٢) ﴿وَكَانَ ٱللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا﴾ او همېشه دی الله ښه غالب غالب قوي (پخپله پاچهي او سلطان كي) ښه حكمت والا (پخپل صنعت او تدبير كي. صاوي وايي چې دغه آيت يې لومړی د خلق او تدبير په هكله بيان كړی و نو په لمن پسې يې (عَلِيمًا حَكِيمًا) راووړ او دوهم ځل يې د انتقام په وړاندي بيان وو ځكه يې په لمن پسې ﴿عَزِيزًا حَكِيمًا﴾ وفرمايو او دغه خوراښكلی ترتيب دی ځكه) چې الله د رحمت لښكري د مؤمنانو د نصرت لپاره راستوي او دغه د عذاب لښكري

---

(١) د قرطبي تفسير ۱۶/۲۶۵

(٢) كبير تفسير ۲۸/۸۴

دکفارودعذاب اوهلاکت لپاره، وروسته الله ﷻ پخپل پیغمبر علیه افضل التحیة والتسلیم باندي خپل امتنان فرمایي چي په رسالت یې نازولی اوکردمخلوق ته یې رالیږلی دی فرمایي: ﴿ إِنَّآ أَرۡسَلۡنَٰكَ شَٰهِدٗا وَمُبَشِّرٗا وَنَذِيرٗا ﴾ (بېشکه مونږ لېږلی یې ته ( ای محمده ! ) شاهد اوزېری ورکونکی )یعني ته مودقیامت په ورځ په خلکو شاهد ګرزولی اودمؤمنانو لپاره دجنت زېری ورکونکی اوکفاروته ددوزخ له اوره څخه وېرونکی رالېږلی یې ﴿ لِّتُؤۡمِنُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ لپاره ددې چي ایمان راوړی تاسي په الله اوپه رسول ددغه (الله) باندي (په حق دایمان راوړلو په بشپړ باوراویقین سره چي شک ورسره پټلېز نه وي ﴿ وَتُعَزِّرُوهُ ﴾ اومدد وکړی دهغه ددین اوتعظیم وکړی دهغه ﴿ وَتُوَقِّرُوهُ ﴾ اودرناوی وکړی دهغه له تعظیم اوتکریم سره یې امرپرځای کړی ضمیررسول الله ته راجع دی ﴿ وَتُسَبِّحُوهُ بُكۡرَةٗ وَأَصِيلًا ﴾ اوهغه (الله)ته تسبیح (نسبت دپاکي) وکړی په سبااوبېګاکي ([1]) ترڅوچي زړه په هرحال کي له الله سره پیوندوي ، الله تعالی فرمایي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ إِنَّمَا يُبَايِعُونَ ٱللَّهَ ﴾ (یعني ای محمده ! )بېشکه هغه کسان چي بیعت کوي له تاسره بېشکه چي بیعت کوي له الله سره ،څوک چي په حدیبیه کي (بیعت الرضوان )کوي دوی په حقیقت کي له الله سره بیعت کوي دغه درسول الله لپاره تشریف دی چي دده بیعت الله خپل بیعت ونوماووځکه چي رسول د الله سفیر او معبردی . مفسرین کرام وایي چي مرادله بیعت څخه دلته دحدیبیې بیعت رضوان دی کله چي اصحابانورضوان الله علیهم له رسول الله سره په مرګ باندي بیعت وکړچي شیخان له سلمه بن الاکوع څخه روایت کوي چي هغه وویل: مونږ له رسول الله سره په مرګ باندي بیعت وکړ(چي ترمړیني به جهاد کووانه به تښتو ) اودغه ته بیعت الرضوان پدې وایي چي الله یې په هکله فرمایي: ﴿ لَّقَدۡ رَضِيَ ٱللَّهُ عَنِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ إِذۡ يُبَايِعُونَكَ تَحۡتَ ٱلشَّجَرَةِ ﴾ ترپایه ﴿ يَدُ ٱللَّهِ فَوۡقَ أَيۡدِيهِمۡ ﴾ لاس دالله دپاسه دلاسونو ددوی دی. ابن کثیروایي : معنادا چي الله له دوی سره حاضردی ددوی خبري اوري اوددوی ځای ویني په زړونواوښکاره ظواهرویې خبردی الله دخپل پیغمبرپه واسطه له دوی څخه بیعت اخلي([2])زمخشري وایي: معنادا چي درسول الله لاس چي دبیعت کونکوپه لاس دپاسه دی دغه دالله لاس دی اومعنا داچي څوک له رسول الله سره بیعت کوي په تحقیق سره هغه له الله سره بیعت وکړلکه چي الله فرمایي: ﴿ مَّن يُطِعِ ٱلرَّسُولَ فَقَدۡ أَطَاعَ ٱللَّهَ ﴾ (النسآء:۸۰) ([3]) ﴿ فَمَن نَّكَثَ فَإِنَّمَا يَنكُثُ عَلَىٰ نَفۡسِهِۦ ﴾ پس هغه چاچي مات کړدابیعت نوبېشکه چي ماتوي به دی بیعت په خپل ځان (ضرریې هم ده ته راجع دی) ځکه چي پدې ماتولوسره یې ځان له ثوابه محروم اودعذاب مستحق کړ) ﴿ وَمَنۡ أَوۡفَىٰ بِمَا

---

([1]) دلته ضمیرالله ته راجع دی چاپیاویلي ګردضمائرالله ته راجع دي اودادبیضاوي اوابوالسعودغوره دی مونږدضحاک اوقرطبي روایت راوړی دی.
([2]) دابن کثیرمختصر ۳ /۳۴۲
([3]) کشاف ۴ /۳۳۵

عَـٰهَدَ عَلَيۡهُ ٱللَّهَ فَسَيُؤۡتِيهِ أَجۡرًا عَظِيمٗا ﴾ او هغه څوک چي وفا وکړي په هغه څه چي عهد يې کړی پر هغه له الله سره پس ژردی چي وربه کړي الله ده ته اجراو بدل د پرزيات (چي جنت دی د متقيانو ځای) ﴿ سَيَقُولُ لَكَ ٱلۡمُخَلَّفُونَ مِنَ ٱلۡأَعۡرَابِ ﴾ ژردی چي وبه وايي تاته (له تاڅخه) وروسته پاتي شوي (له تګه د مکې د حديبې په کال) له صحرايانو (د مدينې) ﴿ شَغَلَتۡنَآ أَمۡوَٰلُنَا وَأَهۡلُونَا فَٱسۡتَغۡفِرۡ لَنَا ﴾ مشغول کړي يې وو موږ مالونو زموږ او کورنۍ زموږ نو وبښنه وغواړه موږ لره (د ګناهونو زموږ) له الله تعالی څخه ځکه چي موږ په خپل اختيار پاتي شوي نه يو بلکه په اضطراري توګه پاتي شوو. په التسهيل کي وايي چي: دوی نه يې (مخلفون) ځکه وويل چي د حديبې له تګ څخه وروسته پاتي شوي وو. دوی د مدينې منورې صحرايې کوچيان وو کله چي رسول الله ﷺ د عمرې په نيت مکې مکرمې ته روان شو دوی داسي ګڼله چي ګواکي رسول الله له يو سترد ښمن سره چي قريش او نور دي مخامخ کېدونکي دي نو کښېناستل او ورسره ملګري نه شول څپ څپانده ايمان يې وو داسي ګمان يې کاوو چي پيغمبر عليه السلام او مؤمنان به له دغه سفره هډو راستانه نه شي نو الله دوی په دغه سورت کي رسوا کړل او پيغمبر ته يې د دوی دوينا اعلام ورکړ او همداسي يې ترپخواله راتګه د دوی د حيلو او بهانو په باب بشپړ معلومات ورکړ چي د دوی پخپله وينا کي دروغجن دي (۱) ﴿ يَقُولُونَ بِأَلۡسِنَتِهِم مَّا لَيۡسَ فِي قُلُوبِهِمۡ ﴾ وايي دغه پاتي (کېدونکي منافقان) په ژبو خپلو سره هغه (خبري) چي نشته په زړونو د دوی کي دوی پخپل اعتذار او غوښتلو د استغفار کي دروغجنان دي دوی دغه خبري په رياکاري کوي دزړه له کومي يې توبه نه ده ايستلي ﴿ قُلۡ فَمَن يَمۡلِكُ لَكُم مِّنَ ٱللَّهِ شَيۡـًٔا إِنۡ أَرَادَ بِكُمۡ ضَرًّا أَوۡ أَرَادَ بِكُمۡ نَفۡعَۢا ﴾ ووايه ته (ای محمده! دوی ته) نو څوک دی چي مالک به شي تاسي لره په دفع د عذاب کي له جانبه د الله څخه د يو څيز که الله اراده وفرمايي ستاسي د ضرر او نقصان (لکه ماتي او شکست) يا الله تعالی اراده وفرمايي ستاسو د نفعي او ګټي (لکه مرسته او غنيمت)؟ قرطبي وايي چي دغه پردوی باندي ترديد دی چي دوی ګمان کاوو له رسول الله څخه وروسته پاتي کېدل له دوی څخه ضرر دفع کوي او ګټه ورته رسوي (۲) ﴿ بَلۡ كَانَ ٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ خَبِيرَۢا ﴾ بلکه دی الله په هغو ګردو کارونو چي تاسي يې کوی ښه خبر (ستاسو دروغ او نفاق الله ته معلوم دی ورپسې الله د دوی اسرار او دزړه رازونه داسي راڅرګند کړل چي: ﴿ بَلۡ ظَنَنتُمۡ أَن لَّن يَنقَلِبَ ٱلرَّسُولُ وَٱلۡمُؤۡمِنُونَ إِلَىٰٓ أَهۡلِيهِمۡ أَبَدٗا ﴾ (د ابهانې او عذرونه چي کوی داسي نه) بلکه تاسي به ګمان کاوو چي بيا به له سره بيرنه راونه ګرزي رسول الله او مؤمنان (له حديبې) کورونو خپلو ته (په مدينه کي) هيڅکله ﴿ وَزُيِّنَ ذَٰلِكَ فِي قُلُوبِكُمۡ ﴾ او ښايسته کړی شوی دی دغه (ګمان د تباهي د مؤمنانو) په زړونو ستاسي کي (ای منافقانو)

---

(۱) التسهيل ۴/ ۵۲

(۲) د قرطبي تفسير ۱۲/ ۲۲۹

﴿ وَظَنَنتُمْ ظَنَّ ٱلسَّوْءِ ﴾ اوگمان کړی وو تاسي گمان د بدۍ (چي تاسو ویله دوی به یو مخ ایزه ووژل شي اویوتن به هم راستون نشي ) ﴿ وَكُنتُمْ قَوْمًۢا بُورًا ﴾ او وی تاسي یو قوم هلاک (کړی په غضب دالله اومستحق دعقاب یې ) ﴿ وَمَن لَّمْ يُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ او هرهغه څوک چي ایمان یې نه وي راوړی په الله اوپه رسول ددغه (الله) په اخلاص اوربښتنولي سره) کله چي یې دمتخلفینو دفاسد گمان حال بیان کړاوداچي دغسي گمان کفرته سړی بیایې نو یې په عمومي توگه دایمان او توبې لوري ته وهڅول چي که څوک ایمان رانه وړي ﴿ فَإِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلْكَـٰفِرِينَ سَعِيرًا ﴾ نو بېشکه موږ تیارکړی دی لپاره دکافرانو تود اور (ددوزخ )دغه د منافقانو لپاره سخت وعید دی ﴿ وَلِلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ اوخاص الله لره دی پاچهي، سلطنت د آسمانونو اودځمکي (پکي تصرف کوي څرنگه چي یې خوښه شي)

﴿ يَغْفِرُ لِمَن يَشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ ﴾ ببښي هرهغه چي اراده وفرمایې (د مغفرت یې) اوپه عذاب کي اچوي هرهغه چي اراده وفرمایې (دعذاب یې) دغه ددوی دطمع شلولو لپاره دی چي دوی خوله رسول الله څخه داستغفار غوښتلو هیله درلوده ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴾ اُوهمېشه دی الله ډېر ښه ببښونکی د (خطیئاتو ) ډېر رحم والا (په ورکولو داجراوثواب کي) ﴿ سَيَقُولُ ٱلْمُخَلَّفُونَ إِذَا ٱنطَلَقْتُمْ إِلَىٰ مَغَانِمَ لِتَأْخُذُوهَا ﴾ ژر به ووایې (تاته) وروسته پاتي کېدونکي (خلک) کله چي روان شی تاسي غنیمتونو(دخیبرته) دپاره ددې چي ترلاسه کړی تاسي هغه (غنیمتونه) ﴿ ذَرُونَا نَتَّبِعْكُمْ ﴾ پرېږدئ موږ چي په تاسي پسي درځو(اوپه خیبرکي وجنگېږو ) ﴿ يُرِيدُونَ أَن يُبَدِّلُوا۟ كَلَـٰمَ ٱللَّهِ ﴾ غواړي دوی چي بدل کړي کلام الله (دالله حکم) چي دحدیبې له خلگو سره یې دخیبردغنیمتونو وعده هسي فرمایلې وه چي یوازي به ددوی وي هیڅوک به ورسره گډون نلري قرطبي وایي الله دحدیبې له خلگوسره دخیبر دغنیمتونو وعده پدې فرمایلې وه چي دوی له مکې څخه په روغلیک (صلحنامه) راستانه شول په عوض کي یې دخیبرغنیمتونه دوی ته ځانگړي کړل (۱) ﴿ قُل لَّن تَتَّبِعُونَا ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته! چي) له سره به متابعت ونکړی تاسي زموږ(چي ستاسو ونډه په غنیمت کي وشي) ﴿ كَذَٰلِكُمْ قَالَ ٱللَّهُ مِن قَبْلُ ﴾ همداسي فرمایلي وو الله پخوا له دې څخه (چي دخیبرغنیمتونه دحدیبې دخلگودي بل څوک ورسره گډون نلري ﴿ فَسَيَقُولُونَ بَلْ تَحْسُدُونَنَا ﴾ بیا به ژر ووایې چي حسد اوکینه کوی تاسي له موږ سره (په کته زموږ کي ای مؤمنانو! چي) په غنیمت کي مونه درگډوی الله ددوی په تردیدکي فرمایې ﴿ بَلْ كَانُوا۟ لَا يَفْقَهُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴾ (داسي نه ده )بلکه وو دوی چي نه به پوهېدل (له دین داسلامه) مگرخولږ

(۱) القرطبی ۲۷۰-۱۶

څه (چي دغنيمتونو او دنيوي أمورو حرص يې درلود) ﴿قُل لِّلْمُخَلَّفِينَ مِنَ الْأَعْرَابِ سَتُدْعَوْنَ إِلَىٰ قَوْمٍ أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ﴾ ووايه (اې محمده!) وروسته پاتي کېدونکيو ته له صحرايي خلکو څخه ژر دي چي راوبه بللې شي تاسي طرف (دجنګ) د يوقوم ته چي دسخت جنګ خاوندان وي دغه د (مخلفين) لفظ يې په مکرر ډول ځکه راووړ چي ددغه کاربد والی وښيي او په ناولتيا کي يې مبالغه وشي يعني ورته ووايه چي تاسو به دبني حنيفه چي د مسيلمة الكذاب قوم دی جنګ ته وبلل شي هغوی چي مرتدان دي ﴿تُقَاتِلُونَهُمْ أَوْ يُسْلِمُونَ﴾ يا به جنګ کوی تاسي له هغوسره او يا به مسلمانېږي دوی (بې له جنګه) ﴿فَإِن تُطِيعُوا يُؤْتِكُمُ اللَّهُ أَجْرًا حَسَنًا﴾ نو بيا که امرومنی تاسي ددغو بلونکيو در به کړي الله تاسي ته ښه اجر ثواب (چي غنيمت په دنيا او جنت په عقبا کي دی) ﴿وَإِن تَتَوَلَّوْا كَمَا تَوَلَّيْتُم مِّن قَبْلُ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ او که وګرزېدی تاسي لکه چي ګرزېدلي وی پخوا له دې څخه نو په عذاب به کړي (الله) تاسي په دردناک عذاب سره (په جهنم کي له دې وروسته الله معذورکسان داسي بيانوي ﴿لَّيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ﴾ نشته په ړانده باندي هيڅ ګناه او تکليف او نه په ګوډ باندي هيڅ ګناه او تکليف او نه په ناروغ باندي هيڅ ګناه او تکليف (چې جهاد ته ولاړنشي ځکه چي دوی څرګند معذوران دي) ﴿وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ يُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ﴾ او هرڅوک چي اطاعت وکړي د الله (حکم ومني د الله) او د رسول ددغه (الله) نو داخل به کړي الله دی په جنتونو کي چي بهېږي له لاندي (دونو او ماڼيو) د هغه ويالي (تل به هلته اوسي) ﴿وَمَن يَتَوَلَّ يُعَذِّبْهُ عَذَابًا أَلِيمًا﴾ او هرهغه څوک چي وګرزېده (له احکامو د الله) نو (الله) به په عذاب کړي دی په عذاب ډېر دردناک سره (په دنيا کي په ذلت او په آخرت کي په اور سره).

الله تعالی فرمايي:

﴿ لَّقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَنزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا ﴿١٨﴾ وَمَغَانِمَ كَثِيرَةً يَأْخُذُونَهَا ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿١٩﴾ وَعَدَكُمُ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً تَأْخُذُونَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هَٰذِهِ وَكَفَّ أَيْدِيَ النَّاسِ عَنكُمْ وَلِتَكُونَ آيَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ وَيَهْدِيَكُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴿٢٠﴾ وَأُخْرَىٰ لَمْ تَقْدِرُوا عَلَيْهَا قَدْ أَحَاطَ اللَّهُ بِهَا ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرًا ﴿٢١﴾ وَلَوْ قَاتَلَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوَلَّوُا الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا يَجِدُونَ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿٢٢﴾ سُنَّةَ اللَّهِ الَّتِي قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلُ ۖ وَلَن تَجِدَ لِسُنَّةِ اللَّهِ تَبْدِيلًا ﴿٢٣﴾ وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُم بِبَطْنِ مَكَّةَ مِن بَعْدِ أَنْ أَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا ﴿٢٤﴾ هُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْهَدْيَ مَعْكُوفًا أَن يَبْلُغَ مَحِلَّهُ ۚ وَلَوْلَا رِجَالٌ مُّؤْمِنُونَ وَنِسَاءٌ مُّؤْمِنَاتٌ لَّمْ تَعْلَمُوهُمْ أَن تَطَئُوهُمْ فَتُصِيبَكُم مِّنْهُم مَّعَرَّةٌ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۖ لِّيُدْخِلَ اللَّهُ فِي رَحْمَتِهِ مَن يَشَاءُ ۚ لَوْ تَزَيَّلُوا لَعَذَّبْنَا الَّذِينَ

كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿٢٥﴾ إِذْ جَعَلَ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ فَأَنزَلَ اللَّهُ
سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ وَكَانُوا أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَا وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ
عَلِيمًا ﴿٢٦﴾ لَقَدْ صَدَقَ اللَّهُ رَسُولَهُ الرُّؤْيَا بِالْحَقِّ لَتَدْخُلُنَّ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ إِن شَاءَ اللَّهُ آمِنِينَ مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ
وَمُقَصِّرِينَ لَا تَخَافُونَ فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوا فَجَعَلَ مِن دُونِ ذَٰلِكَ فَتْحًا قَرِيبًا ﴿٢٧﴾ هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ
بِالْهُدَىٰ وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا ﴿٢٨﴾ مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ
رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ ذَٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي
التَّوْرَاةِ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ
الْكُفَّارَ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا ﴿٢٩﴾ الفتح: ۱۸ - ۲۹

مناسبت:

کله چي الله تعالی دهغو منافقینو حال کوم چي له رسول الله څخه شاته پاتي شول بیان کړنو دلته الله دهغو مجاهدینو حال راوړي چاچي له رسول الله سره درضوان بیعت وکړاو دغه یادونه ددوی دستري کارنامي دتلپاتي یاداود الله جل جلاله درضاد اثبات لپاره دی په پای کي سورت داصحاب کرامو رضوان الله علیهم په بې ساري ثنا او بې مثله درناوي او تمجید سره بشپړېږي

لغتونه:

(اظفرکم) غالب موکړی تاسي (¹)(معکوفا) تړلی بند، او اعتکاف هم له دغه څخه اخیستل کېږي (معرة) عیب اومشقت چي په انسان پسي پتلېږوي اوله (عَرّ) څخه اخیستل شوی چي هغه د(جرب) ناروغي اورنځ دي (تزیلوا) تمیزاوتوپیرکړي تاسي (الحمیة) سخت غضب ننګ اوغیرت ته وایې (سیماهم) نښانه ددوی (شطأه) ځانګه دده (²)(آزره) ملایې ټینګه کړي مرسته ورسره وکړي اوقوي یې کړي

دنزول سبب:

انس رضی الله عنه وایی دمکې له خلکو څخه اتیاتنه وسله وال له تنعیم څخه راغلل اوپه رسول الله صلی الله علیه وسلم باندي راوګرزېدل غوښتل یې ویې وژني نوموږ هغوی ونیول اوبندیان موکړل نو الله جل جلاله داآیت نازل کړ ﴿وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُم بِبَطْنِ مَكَّةَ﴾ دآیت تر پایه(³)

تفسیر:

﴿لَّقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ﴾ خامخاراضي اوخوښ شوی دی الله تعالی له مؤمنانو نه هغه وخت چي له تاسره یې دوني لاندي بیعت کاوو(په حدیبیه کي) مفسرین کرام

(¹) البحر ۸/ ۸۸
(²) الصحاح للجوهري
(³) ۲۸۰-۱۲

وایې چې ددغه بیعت سبب داووکله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیبې ته ورسېدوحضرت عثمان ﷛ یې دمکې خلګوته ورواستاووچې ورته ووایې رسول الله ﷺ دعمرې داداکولولپاره راغلی اودجنګ اراده نلري کله چې حضرت عثمان ورغی هغوی بندي کړاورسول الله ته خبر ورسېدوچې ګواکي حضرت عثمان وژل شوی دی نورسول الله خپل اصحابان رضوان الله علیهم دبیعت اخیستلولپاره دیوې ونې ترسیوري لاندې راټول کړل چې (که دجنګ وار راغی) مکې ته به داخلېږي اودمرګ ترشېبې پورې به دجهادکولوبیعت ځني واخیست اودغه ته بیعت الرضوان وایې کله چې مشرکانوته داخبره ورسېده نوحضرت عثمان ﷛ خوشی کړ او ویې منله چې راتلونکی کال دې محمد ﷺ دعمرې لپاره مکې ته راشي اودرې شپې ورځې دې پکې واوسي، دغه درسول الله ﷺ سره بیعت د(سمره) ونې لاندې ترسره شواوپه بیعت رضوان سره ونومول شو، کله چې مسلمانان دستنېدلوپه وخت کې غمجن اوخواشیني ووالله ﷻ وغوښتل ددوی غم په خوشحالي وربدل کړي اوتسلیت ورکړي نودحدیبې له راګرزېدلوسره سم دغه سورت الله ﷻ نازل کړ ﴿ إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا ﴾ دهغوکسانوشمېرچې له رسول الله ﷻ سره یې بیعت وکړ یوزراوڅلورسوه تنه وو اوددوی په هکله نازل شوچې ﴿ لَّقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ ﴾ له بیعت څخه پرته له (جدبن قیس) منافق څخه بل هیڅوک هم پرشانشول اودغه بیعت ته حضرت جبرائیل (علیه السلام) هم حاضرشوی وو څکه په قرآن کریم کې لیکل شوي دي ﴿ فَعَلِمَ مَا فِي قُلُوبِهِمْ ﴾ ([1]) بیامعلوم کړالله (په ظاهري علم سره هم) هغه (اخلاص اووفا د دوی (ددښمنانودجنګ په هکله) چې په زړونودوی کې وه ﴿ فَأَنزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ ﴾ بیاراښکته کړه (الله) سکینه اوډاډینه پردوی باندې ﴿ وَأَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا ﴾ اوعوض ورکړالله دوی ته بری نژدې (پدې بیعت باندې چې هغه بری دخیبرفتحه وه چې زیات غنیمتونه ولجې یې لرلې اودغه دآخرت په ثوابونوسربېره یوبل عوض وو ﴿ وَمَغَانِمَ كَثِيرَةً يَأْخُذُونَهَا ﴾ اوولجې (غنېمت) ډېرچې دوی به هغه واخلي (په خیبرکې به یې ترلاسه کړي مفسرین کرام وایې چې الله ﷻ همداسې وکړل ددوی اودښمنانوترمینځ روغه لاس لیک شوه اوپه خیبرکې ورته ډېرمالونه په لاس ورغلل بیااوروسته ډېرځایونه اوملکونه فتح شول اوددنیا اوآخرت سرلوړي یې په برخه شوه ([2]) څکه نوالله تعالی فرمایې:

﴿ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴾ اودی الله همېشه قوي غالب ډېر(پخپل حکم کې) حکمت والا (پخپل تدبیراو صنعت کې) څکه یې تاسوته پردوی بری درکړاوغنیمتونه ولجې یې په لاس دروستلې ﴿ وَعَدَكُمُ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً تَأْخُذُونَهَا ﴾ (وعده کړې ده الله تعالی له تاسې سره دغنیمتونو او ولجوډېروچې وابه یې خلی) یعني ای دمؤمنانوټولی. الله ﷻ له تاسوسره ستاسوپه صبراوجهادد ستروفتوحاتواوزیاترو ولجوچې له دښمنانوڅخه به یې ترلاسه کړی وعده فرمایلې ده. ابن عباس ﷛ وایې چې داګردې هغه

---

([1]) دکیسې تفصیل په قرطبي تفسیرکې ولوله.
([2]) دابن کثیرمختصر ۳/ ۳۴۵

ولجې دي چي ترقيامته پې مؤمنان ترلاسه کوي (۱) په البحرالمحيط کي وايې چي: داسلام قلمرو وغزېدواومسلمانانوبې شمېره فتوحات وکړل اوهمداسي زياتره ولجې او غنيمتونه يې ترګوتوکړل. ختيزاولويديزته ورسېدل آن تردې چي هنداوسودان (توروپوستي آفريقايي دولتونه) يې هم لاندي کړل اودغه دالله تعالى دوعدې تصديق وو. موږ ته دتکرور دهيوادونو د(غانا) له پاچهانوڅخه يوتن راغی چي دتوريانوپنځه ويشت دولتونه يې فتح کړي اوخلک يې مسلمانان شوي وواوځيني پاچهان ورسره ملګري دحج داداکولولپاره راغلل (۲) ﴿ فَعَجَّلَ لَكُمْ هَٰذِهِۦ ﴾ نوالله ژردر کړې تاسي ته دغه ولجې (دخيبرپرته له زياراوجګړې) ﴿ وَكَفَّ أَيْدِيَ ٱلنَّاسِ عَنكُمْ ﴾ اوالله منع کړل لاسونه دخلګوله تاسي نه چي تاسي ته يې په دښمني دروغزوي. مفسرين کرام وايې چي له دې څخه مقصد د خيبرخلک اوددوی دترون ملګري دي چي بني أسداوغطفان ووکله چي ددوی د مرستي لپاره راغلل په زړونوکي.يې الله وېره ورواچوله ﴿ وَلِتَكُونَ ءَايَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴾ (اوچي شي دا کار نښه دقدرت دالله لپاره دمؤمنانو) يعني ترڅودغه غنيمتونه ، دمکې فتح اودمسجد حرام دننه ورتلل درسول الله ﷺ دربښتنولي يوه څرګنده نښه شي چي تاسوته يې دالله له لوري دفتح پيغام ورساوو ﴿ وَيَهْدِيَكُمْ صِرَٰطًا مُّسْتَقِيمًا ﴾ اوالله ښيي تاسي ته لاره برابره (چي جنات النعيم ته رسېږي دغه ستاسي دجهاداواخلاص برکت دی. امام فخر رازي وايې چي په آيت شريف کي دې ته اشاره ده چي کوم غنيمتونه اوفتوحات چي تاسي ته درکول شوي دغه ګردثوابونه ندي بلکه دغه يوه عاجله ونډه ده چي تاسوورباندي ګټه واخلی جزاء اوعوض خو په مخکي دی اوبل داچي دغه دوروسته راتلونکو مؤمنانولپاره يوه نښه وي چي درسول الله دربښتني ژمني اووعدې تصديق کوي ګنه دوی ته به هم درسول الله ﷺ کړی شوي وعدې همداسي يوپه بل پسي ترسره اوربښتيا کېږي لکه چي تاسوته ربښتياشوي (۳) ﴿ وَأُخْرَىٰ لَمْ تَقْدِرُواْ عَلَيْهَا ﴾ اوبل (غنيمت اوبری درکړي تاسي ته) چي لانه وي قادر تاسي په هغو (خوالله پخپل فضل اوکرم فتح درته نصيب کړه او مقصدله فتح څخه دمکې فتح ده) ﴿ قَدْ أَحَاطَ ٱللَّهُ بِهَا ﴾ په تحقيق (علمي) احاطه کړي ده الله په هغو غنائموباندي (په قدرت خپل سره اوتاسوته يې ښنلي دي لکه چي يوڅېزله تولوخواوو راګيرشوی وي اودتللواوضائع کېدلونه وي) ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرًا ﴾ اودی الله په هرشي باندي ښه قادر او توانا (هيڅوک يې مغلوب کولای نشي الله دخپلودوستانوپه مرسته کولواو ددښمنانو په ځپلوښه قادردی. ابن کثيروايې: معناداچي بل غنيمت اوبله تاکلي فتح چي تاسوور باندي قادرنه وی الله تاسوته آسانه کړه ځکه الله خپلو متقيانو بندګانوته(مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ) روزي ورکوي مقصد پدې آيت کي دمکې فتح ده اوطبري هم غوره

(۱) القرطبي ۲۷۸/۱۲

(۲) کبيرتفسير.

(۳) کبير ۲۸/ ۹۲

کړي ده (¹) ﴿ وَلَوْ قَٰتَلَكُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَوَلَّوُا۟ ٱلْأَدْبَٰرَ ﴾ (او كه جنګ وكړي له تاسي سره هغه كسان چي كافران شوي وو نو خامخا به یې ګرزولي وي شاوي خپلي) دغه دیوبل نعمت یادونه اوتذكیردی یعني كه كافرانو دمكې درسره جنګ كړی وای اوترمینځ موسوله نه وای شوي نو اورومروبه دوی مغلوب شوي وای اومقاومت به یې نه وو كړی ﴿ ثُمَّ لَا يَجِدُونَ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴾ بیابه یې څوک دوست نه وو موندلی اونه به یې ساتونكی اومددګارپیداكړی وو(چي دوی یې دالله له عذابه ژغورلي وای) ﴿ سُنَّةَ ٱللَّهِ ٱلَّتِى قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلُ ﴾ (طریقه ایښي ده الله دغالبېدلو دحق) په طریقې هغي سره چي په تحقیق سره تېرشوي دي پخواله دې نه (له ماتي دكفارو او برى دمؤمنانو څخه. په البحرالمحیط كي وایې معناداچي دغه دالله هغه تېره لاره ده كومه چي دخپلو استازو اوپیغمبرانو لپاره یې ټاكلي هغه داویناچي ﴿ كَتَبَ ٱللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا۠ وَرُسُلِىٓ ﴾ (²) ﴿ وَلَن تَجِدَ لِسُنَّةِ ٱللَّهِ تَبْدِيلًا ﴾ اوله سره به ونه مومې طریقې دالله لره تبدیل او اوښتل (دالله لاره تغیر اوتبدیل نه مومي) ﴿ وَهُوَ ٱلَّذِى كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُم بِبَطْنِ مَكَّةَ ﴾ اوالله هغه (ذات) دی چي بندیې كړل لاسونه دهغو له تاسوڅخه اولاسونه ستاسي له هغوی (كفارو) څخه په مینځ دمكې كي(چي دحدیبیې كلی وو. ابن كثیروایې چي دادالله هغه امتنان دی چي خپلو مؤمنانوته یې څرګندوي چي الله دوی دواړه ډلي له جګړې كولوڅخه وژغورل اوترمینځ یې سوله وشوه چي دمؤمنانولپاره پكي خیر اود دنیا اوآخرت ګټه ده(³) ﴿ مِنۢ بَعْدِ أَنْ أَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ ﴾ پس له هغه چي غالب یې كړی تاسي په هغو(چي بندیان موترې ونیول اووربا ندي برلاسي شوی حلال وایې چي اتیاتنه مشركان دمؤمنانوپه قرارګاه باندي یرغل راوړ چي مؤمنان وربړوي مګرمؤمنانوهغوی ونیول اورسول الله ﷺ ته یې (لاس تړلي ) راوستل رسول الله ﷺ دهغوپه تېري باندي سترګي پټي او ویې بښل همدغه دسولي دلاس لیک كېدلوسبب شو. په التسهیل كي وایې چي دقریشویوې ټولۍ څوانانوحدیبیې ته مخه كړه ترڅوچي مسلمانان وربړوي نورسول الله ﷺ خالدبن ولیدله یوې ټولۍ مسلمانانوسره ورواستاووچي هغوی یې مات كړل اوځیني یې ترې ونیول اورسول الله ﷺ ته یې راوستل رسول الله بیاهغوی خوشي كړل نود كفارولاس بندول معناددوی ماتي اوبندي كېدل دي اودمسلمانانولاس بندول معناداچي كفاریې بېر ته پرې ښودل اوویې نه وژل(⁴) ﴿ وَكَانَ ٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا ﴾ اودی الله په هغه څه چي تاسي یې كوی ښه لیدونكی (ستاسومصالح ورته ښه معلوم دي څكه یې تاسوله كافرانوڅخه

---

(¹) هغه چي ابن كثیرلیكلي هغه څرګنداودطبري اوابوحیان غوره دي اوله قتاده اوحسن څخه نقل شوي اوددې تائید دالله جل جلاله داویناهم كوي چي (لم تقدروا علیها ) دغه پدې دلالت كوي چي یوځل پخوایې هم دفتح كولوهڅه شوي وه اودغه دمكې په فتح باندي تطبیقېږي چاپیاویلي چي مرادله فتحي نه دفارس، روم فتوحات دي اوچاپیادغه دهوازن، حنین فتح ګڼلي خوكوم چي موږلیكلي هغه څرګند دي.

(²) البحرالمحیط ۸/ ۹۷

(³) دابن كثیر مختصر ۳/ ۳۴۲

(⁴) التسهیل ۴/ ۵۴

بند کړی او د خپلي بیتې حرمت بې وژغوره چې پکې وینې توی نشوې، بیاالله پاک د مشرکانو د عذاب او هلاکت لپاره استحقاق داسې ښیې ﴿ هُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَصَدُّوكُمْ عَنِ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ ﴾ دوی هغه کسان دي چې کافران شوي او منع کړي یې وی تاسې له مسجد حرام څخه (چې عمره ادا کړی د حدیبې په کال) ﴿ وَٱلْهَدْىَ مَعْكُوفًا أَن يَبْلُغَ مَحِلَّهُۥ ﴾ او (منع کړي یې وې ) قرباني د تاسې په دې حال کې چې بندي کړی شوي وی له دې څخه چې ورسېږي ځای د حلالو لو خپلو ته (چې حرم دی) قرطبي وایې: قریشو د حدیبې په کال مسلمانان د مسجد حرام له ننوتلو څخه هغه مهال چې رسول الله او مؤمنانو د عمرې احرام تړلی وو منع کړل همداسې د دوی قرباني یې نه پرېښودې چې خپل ځای ته ورسېږي . دغه د دوی عقیده نه وه خو بیایې هم د ننګ او غیرت له مخې هغه څه وکړل چې عقیدې یې هم ورته نلرلې الله په همدغه باندې ورته توبیخ وکړ د عذاب تهدید یې ورته راواستاوو او په رسول الله ﷺ باندې یې د دا ډینې . او تسلا یې ورته ولورلاوو(۱) ﴿ وَلَوْلَا رِجَالٌ مُّؤْمِنُونَ وَنِسَآءٌ مُّؤْمِنَٰتٌ ﴾ که چېرې نه وای (پټ په کفارو کې) خوسړي ایمان راوړونکی او ښځې ایمان راوړونکې (هغوی (مستضعفین چې له مشرکانو څخه یې خپل ایمان پټاوو) ﴿ لَّمْ تَعْلَمُوهُمْ ﴾ چې تاسې هغوی نه پېژندل (ځکه چې په مشرکانو کې ګډ وو) که دا خطره نه وای چې ﴿ أَن تَطَـُٔوهُمْ فَتُصِيبَكُم مِّنْهُم مَّعَرَّةٌۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ﴾ پایمال کړي وو تاسو هغوی (هم سره له کفارو) پس رسېدلې به وو له هغوی څخه تاسې ته څه ضرر او غم په ناپوهۍ سره , د (لو) ځواب محذوف او هغه دا چې تاسو ته به یې د مکې د ننوتلو او جهاد حکم درکړی وو او تاسو به یې په مشرکانو مسلط کړي وای صاوي وایې چې ځواب محذوف دی او جلال هغه داسې مقدر کړی چې الله به د فتح حکم درکړی وو لیکن حکم یې درنکړ(۲) ﴿ لِّيُدْخِلَ ٱللَّهُ فِى رَحْمَتِهِۦ مَن يَشَآءُ ﴾ (لپاره د دې چې داخل کړي الله په رحمت خپل کې هرهغه چې اراده وفرمایې (دداخلولو یې) یعني دغه کار یې (دجنګ نه کېدل) د دې لپاره وکړ چې مؤمنان د مشرکانو له مینځ څخه راوباسي او د برخلګ اسلام راوړي کوم چې د اسلام راوړلو برخه لیک یې لارو، او په جګړه کې لتا ړنشي . قرطبي وایې معنادا چې الله د مشرکانو سره په جنګ کولو حکم درنکړ تر څو له سولې وروسته هغه کسان چې په تقدیر کې یې اسلام راوړل شته اسلام راوړي همداسې هم وشول چې زیات کسان مسلمانان شول او د الله په رحمت او جنت کې ګډ شول(۳) ﴿ لَوْ تَزَيَّلُواْ لَعَذَّبْنَا ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴾ که چېرې جلا شوي وای (دغه مؤمنان له کفارو څخه) نو خامخا به مو په عذاب کړي وو هغه کسان چې کافران شوي دي له دغو (اهل د مکې) څخه په عذاب ډېر دردناک سره (چې قتل شړل او بندي کېدل دي ﴿ إِذْ جَعَلَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فِى قُلُوبِهِمُ ٱلْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ ﴾ کله چې ګرزولي وو هغو کسانو چې کافران شوي وو په زړونو خپلو کې ننګ هسې ننګ چې د جاهلیت نا پوهۍ وه

(۱) د قرطبي تفسیر ۱۲/ ۲۸۳

(۲) حاشیة الصاوی علی الجلالین ۴/ ۹۸

(۳) د قرطبي تفسیر ۱۲/ ۲۸۲

(په باطل سره يې تکبرته ملا وتړله اونه يې منل چي دسولي په ليک کي بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ اوياداچي (محمد رسول الله) وليکل شي دوی ويلي که موږدامنلای چي ته رسول الله يې بيابه موستامتابعت (پلوي) کړي وه ، خپل نوم اود پلار نوم دي وليکه ! ﴿ فَأَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ ﴾ نونازل کړالله دادينه او اطمينان خپل په خپل رسول اومؤمنانو باندي (داسي تنګ اوغيرت ورته و... دربدولکه چي مشرکانوته دربدلی وو(۱) ﴿ وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَىٰ ﴾ اوټينګه لازمه يې کړه هغوی لره کلمه دتقوی (خبره دادب ، الزام دتکريم اوتشريف ) جمهور وايي دغه دتوحيد کلمه ده چي لااله الاالله دی اوظاهردادی چي مقصدله کلمې دتقوی څخه ددوی اخلاص اوحکم منل دالله اورسول الله دی يې کله دروغي ليک (صلحنامې) مادې (بندونه) وليکلي شوې نودوی سره له دې چي په ظاهري توګه دمسلمانانو په زيان معلومېدې سرغړونه ونکړه ، نوالله جل جلاله دوی درسول الله په حکم منلو باندي ثابت اوټينګ کړل اوپه دغه سوله کي دمسلمانانو هراړخيزي ګټي خوندي وي (۲) ﴿ وَكَانُوا أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَا ﴾ او وودوی ښه لائق ورله دغه سره اواهل ددې (کلمې دتقوی ) له کفارو د مکې څخه ځکه دوی هغه کسان دي چي الله دخپل دين اوخپل نازولی پيغمبر دملګرتيالپاره غوره اوچاڼ کړي دي ﴿ وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴾ اودی الله په هرشي باندي ښه پوه (چي څوک دفضيلت اهل دی نوزيات خيراوتکريم ورباندي لوروي وروسته الله ﷻ درسول الله ﷺ دخوب (چي رښتونی خوب دی ځکه چي دوحی توته ده بيان داسي فرمايې : ﴿ لَقَدْ صَدَقَ اللَّهُ رَسُولَهُ الرُّؤْيَا بِالْحَقِّ ﴾ خامخا په تحقيق رښتيا ښودلی دی الله رسول خپل ته خوب دده په حقه اورښتيا ) (لام) دقسم لپاره توطئه او(قد ) دتحقيق لپاره دی يعني قسم دی چي الله دپيغمبرخوب رښتيا اوثابت ګرزولی دغه شيطاني خوب نه ووحقاني خوب وومفسرين کرام وايي: رسول الله يووخت په خوب کي وليدل چي: هغه اواصحابان (رضی الله عنهم) مکې ته دننه شول په بيت الله بې طواف وکړاوبيايې حلق اوتقصير وفرمايودغه بشارت يې اصحابانوته واوراووهغوی خوښ شول اويوله بله يې زېري تبادله کړل کله چي بياحديبې ته راغلل اومشرکانودمکې له ننوتلوڅخه راوګرزول اوبياصلح وشوه نومنافقانوداسي ګنګوسې خپرې کړې چي په والله که موبيابيت الله ليدلي اويامو حلق اوتقصير کړی وي هغه خوب څنګه شو؟ ! دځينومسلمانانو په

(۱) سيدقطب رحمه الله په خپل تفسيرالظلال کي ليکي : چي دغه ننګ دکبر ، وياړ ، تعنت اوسرغړوني ننګ دی چي دوی درسول الله اومؤمنانو په مخ کي خنډجوړوي نه پرېږدی چې (هدی) دحلالولو ځای ته ورسي اودهرچادوداود ستورترپښولاندي کوي هرډول عقيده پايمالوي ددې لپاره چي عرب ونه وايي محمد اومسلمانان په زوره مکې ته ورننوتل دغه دجاهليت ناره ده دوی دداسې يوی لويې ګناه ترسره کولو ته اړباسې چي هغه په هردوداودين کي نامنلي ده دوی دبيت الله الحرام حرمت اوعزت ترپښولاندي کوي کوم بيت الحرام چي دوی دهغې دسپېڅلتيا اوقداست په بيه پکي خپل ژوند بسيا کړی دی دوی دحرامومياشتو حرمت چي نه په جاهليت کي اونه هم په اسلام کي له مينځه وړل شوي له مينځه وړي. الظلال ۲۲ / ۱۱۵

(۲) داهغه څه دي چي الله تعالی ماته ددې آيتونو دتفسير په وخت کي الهام وفرمايو (صابوني)

زړونو کي هم يو څه پيدا شول نو دغه آيت شريف نازل شو: ﴿لَقَدْ صَدَقَ ٱللَّهُ رَسُولَهُ ٱلرُّءْيَا بِٱلْحَقِّ﴾ پوه شه چي د پيغمبر خوب حق دی او هغه څه چي پيغمبر يې ويني هيڅکله هم دروغ کېږي نه خو په خوب کي داسي نه وو ورته ويل شوي چي دغه به دهجرت په شپږم کال وي يوازي د ننوتلو انځور ورليدل شوی وو او همدغه الله جل جلاله يو کال وروسته رښتيا کړ همدغه دالله جل جلاله وينا ده چي: ﴿لَتَدْخُلُنَّ ٱلْمَسْجِدَ ٱلْحَرَامَ إِن شَآءَ ٱللَّهُ﴾ چي خامخا به داخل شي تاسي مسجد حرام ته که الله اراده وفرمايي ﴿ءَامِنِينَ مُحَلِّقِينَ رُءُوسَكُمْ وَمُقَصِّرِينَ﴾ په امن او آرام سره حال دا چي خرېيونکي به وي د سرونو خپلو او لنډونکي به وي (د وېښتانو خپلو وروسته له اداکولو د عمرې څخه ﴿لَا تَخَافُونَ﴾ نه به وېرېږی تاسي له هيڅا څخه دلته تکرارنشته ځکه چي يو ځل ﴿ءَامِنِينَ﴾ د داخلېدلو په وخت کي او بيا د اوسېدلو وړيسې د بيرته راوتلو په وخت کي ښيي ﴿فَعَلِمَ مَا لَمْ تَعْلَمُوا۟﴾ نو معلوم دی الله ته (فوائد د دغي سولي هغه چي تاسو ته معلوم نه دي ابن جزي وايي چي مقصد دلته هغه څه دي چي الله د اسلام د خپراوي کومه اراده درلوده هغه ترسره او اسلام خلکو ته مرغوب شو رسول الله ﷺ د حديبې په وخت کي له يو زراو خلور سوه اصحابانو سره وو او دوه کاله وروسته چي د فتحي غزاوه ورسره لس زره کسان ملګري وو([1]) ﴿فَجَعَلَ مِن دُونِ ذَٰلِكَ فَتْحًا قَرِيبًا﴾ نو ويې ګرځوله پخوا له دغه داخلېدلو د مکې نه فتحه او برې نژدې (چي د حديبې صلح ده او وروباندي ستر آثار مرتب شول ښايسته انجام يې درلود ځکه نو امام بخاري له براء رضی الله عنه څخه روايت کوي چي هغه وويل: تاسو خو فتح د مکې فتح ګڼله کومه چي فتح وه او موږ بيا د حديبې په ورځ (بيعت الرضوان) فتحه ګڼو([2]) د حديث تر پايه ﴿هُوَ ٱلَّذِىٓ أَرْسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلْهُدَىٰ وَدِينِ ٱلْحَقِّ﴾ دغه (الله) هغه ذات دی چي رالېږلی يې رسول خپل په (ښوونه د) سمي لاري او حق دين سره (چي اسلام دی) ﴿لِيُظْهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ كُلِّهِۦ﴾ لپاره ددې چي غلبه ورکړي (پورته کړي هغه دين) پر ټولو دينونو باندي ﴿وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ شَهِيدًا﴾ او کافي بس دی الله ښه شاهد (پدې چي محمد ﷺ يې رسول دی بيا الله ﷻ د رسول الله په اصحابانو باندي ښايسته ثنا لوستلي او د خپل پيغمبر د رسالت تصديق يې فرمايلی دی چي: ﴿مُّحَمَّدٌ رَّسُولُ ٱللَّهِ﴾ محمد د الله رالېږل شوی رسول دی (په حقه سره نه داسي لکه چي مشرکان وايي) ﴿وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ أَشِدَّآءُ عَلَى ٱلْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ﴾ او هغه کسان چي له ده سره دي سخت دي پر کافرانو باندي

---

([1]) التسهيل ۴/ ۵۲

([2]) د بخاري حديث او ښپړيې دا چي هغه وخت موږ له رسول الله سره څوارلس سوه تنه وو په حديبيه کي يو کوهی وو چي موږ يې اوبه راايستلي او يو څاڅکی هم پکي پاتي نشوې او رسول الله صلی الله عليه وسلم ته خبر ورسېد وهغه راغی د کوهي په غاړه کښناست او د اوبولوښی يې وغوښت اودس يې تازه کړ مضمضه يې وکړه او اوبه يې په کوهي کي توی کړې يو څه وخت مو کوهی همداسي پرېښود بيا مو هرڅومره اوبه چي ترې راايستلي او موږ او زموږ مرا کبو څښلې پکي پيدا شوي وې.

مهربان اوزړه سواندي دي پخپلو مینځونو کي لکه چي الله فرمایي ﴿ أَذِلَّةٍ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ (المائده ۵۴) ابوالسعود وایي: معناداچي څوک ددوی ددین مخالفت کوي دوی له هغوی سره سختیااوشدت کوي اوڅوک چي بې په دین کي ورسره ګډوي له هغوی سره مهرباني او لورینه کوي (١) مفسرین کرام وایې داپه دې چي الله ورته له کفاروسره دغلظت حکم کوي چي ﴿ وَلْيَجِدُوا۟ فِيكُمْ غِلْظَةً ﴾ ددوی شدت له کفاروسره هغه اندازې ته رسېدلي ووچي نه به یې غوښتل دکفاروجامې له بدن سره ونښلي اوخپل مسلمانان ورونه به یې بیاپه غیږکي نیول اومصافحه به یې ورسره کوله ﴿ تَرَىٰهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا ﴾ وینې به ته هغوی رکوع کونکي اوسجده کونکي یعني ای اورېدونکي دوی به له ډېرولمنځونواوعبادتونوپه رکوع اوسجده کي وینې دشپې عبادت کونکي اودورځې زمریان دي ﴿ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ ٱللَّهِ وَرِضْوَٰنًا ﴾ غواړي دوی په دې عبادت سره فضل اومهرباني له الله څخه اورضامندي یې غواړي. ابن کثیروایې چي دوی یې په ډېرولمنځونو وستایل هغه چي دګردوکارونوبهتردي اوددوی اخلاص چي له الله سره یې لري یادکړچي دالله خوښې اوثواب یې هیله وي اوهمدغه ثواب جنت دی چي دالله په فضل اورضابه مشتمل وي (٢) ﴿ سِيمَاهُمْ فِى وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ ٱلسُّجُودِ ﴾ نښې ددینداري ددوی ثابتي دي په مخونوددوی کي له اثره دسجدوڅخه. قرطبي وایي چي ددوی په مخونوکي دتهجدد لمانځه نورانیت اودې خوبې نښې ښکاري وي. ابن جریج وایي چي دغه نښې عبارت له وقار، عزت اونورانیت څخه دي. مجاهدوایې چي: داخشوع اوتواضع وي منصور وایي: له مجاهدڅخه مي دالله جل جلاله ددې وینا په هکله وپوښتل چي: ﴿ سِيمَاهُمْ فِى وُجُوهِهِم ﴾ آیاداهغه نښې دي چي دسړي په تنده کي وي هغه راته وویل: نه ډېرځله به دیوچاتنده لکه دوزې ښنګري غوندي وي خوزړه به یې له تیږې لاهم کلک وي (٣) بلکه دغه نورانیت دی چي له خشوع څخه پیداکېږي ﴿ ذَٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِى ٱلتَّوْرَىٰةِ ﴾ دااوصاف هغه اوصاف دي چي مثالونه یې په تورات کي بیان شوي (چي شدت په کفارو، زړه سوی په مسلمانانو، زیات لمنځونه اوسجدې دي) ﴿ وَمَثَلُهُمْ فِى ٱلْإِنجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْـَٔهُۥ فَـَٔازَرَهُۥ فَٱسْتَغْلَظَ ﴾ اومثال ددوی انجیل کي لکه هغه کښت چي راباسي ځانګي خپلي بیایې ملاخپله ټینګه کړي بیاکلکه شي دغه ځانګه ﴿ فَٱسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِۦ ﴾ بیاودرېږي دغه (کښت) پس له نرمي اوضعیف والي په پښواوبېخونو خپلو ﴿ يُعْجِبُ ٱلزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ ٱلْكُفَّارَ ﴾ پداسي حال کي چي قوت ددې کښت په تعجب کي اچوي بزګران، داقوت ددې لپاره دی چي کفارپه قهر راولي په سبب دزیاتې ددې اوښکلی منظرسره. ضحاک وایي: دغه یوخوراڅرګندمثال دی کښت محمدرسول الله دی ځانګي یې اصحابان چي لږوو

(١) ابوالسعود ۵/ ٨٢

(٢) دابن کثیرمختصر ٣/ ٣۵۵

(٣) القرطبي ١٢/ ٢٩٣ - ٢٩۵

بیازیات شول کمزوري وو قوي وګرزېدل اوقرطبي وايي چي: داهغه مثال دی چي الله تعالی دپیغمبرعلیه السلام داصحابولپاره راوړی دی دوی لږکي وو بیازیات شول رسول الله په لومړۍ مرحله کي کله چي بلنه پیل کوله ضعیف وو اوبیایوه یوه دهغه بلنه منله ترڅوچي قوت یې وموندلکه چي کښت ورورو خپل قوت وروسته دزړي له زرغونېدومومي ترڅويې ځانګي وغوړېږي تنه یې قوي شي دغه دېرښکلی مثال اوغښتلی بیان دی ﴿ وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ مِنۡهُم مَّغۡفِرَةً وَأَجۡرًا عَظِيمَۢا ﴾ وعده کړي ده الله له هغوکسانوسره چي ایمان یې راوړی اونېک عملونه یې کړي دي (وعده) دبښني اوستراجر(چي رزق کریم په جنات النعیم کي دی (اللهم ارزقنامحبتهم آمین یارب العالمین).

بلاغت:

پدې سورت کي چي دبیان اوبدیع کومي ښکلاوي شته لنډیزیې دادی:

۱- دطباق صنعت چي د ﴿ مَا تَقَدَّمَ ﴾ .. ﴿ وَمَا تَأَخَّرَ ﴾ ترمینځ اود ﴿ وَمُبَشِّرًا ...وَنَذِيرًا ﴾ ترمینځ اود ﴿ بُكۡرَةً ... وَأَصِيلًا ﴾ ترمینځ اود ﴿ نَّكَثَ... أَوۡفَىٰ ﴾ ترمینځ اود ﴿ أَرَادَ بِكُمۡ ضَرًّا ... أَوۡ أَرَادَ بِكُمۡ نَفۡعًاۢ ﴾ ترمینځ اود ﴿ يَغۡفِرُ... وَيُعَذِّبُ ﴾ ترمینځ اود ﴿ مُحَلِّقِينَ ...وَمُقَصِّرِينَ ﴾ ترمینځ اود ﴿ أَشِدَّآءُ ... رُحَمَآءُ ﴾ ترمینځ راغلی دی.

۲ - مقابله چي د ﴿ لِّيُدۡخِلَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتِ ﴾ ترمینځ اود ﴿ وَيُعَذِّبَ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱلۡمُنَٰفِقَٰتِ ﴾ ترمینځ شتون لري.

۳ - تصریحي مکنیه استعاره لکه چي فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُبَايِعُونَكَ إِنَّمَا يُبَايِعُونَ ٱللَّهَ يَدُ ٱللَّهِ فَوۡقَ أَيۡدِيهِمۡۚ ﴾ پدې آیت کي دوې استعارې دي یوه داچي دالله په لارکي هغه دقرباني اوځان جارېدلو وعدې یې مشابه کړې له هغوتوکوسره چي دمال په بدل کي ورکول کېږي اودمشبه به نوم یې دمشبه لپاره استعاره کړچي له بیع څخه مشتق او(يُبَايِعُونَ ) یې وفرمایل چي د(یعاهدون) په معنادی یعني دوی دخپلوځانودالله په لارکي دورکولوعهداوپیمان کوي بله استعاره مکنیه ده چي پدې قول کي راغې ﴿ يَدُ ٱللَّهِ فَوۡقَ أَيۡدِيهِمۡۚ ﴾ دلته یې دالله اطلاع اوخبرداری ددوی بیعت باندي اودوی ته ددوی په طاعت باندي ثواب ورکول یې له هغه پاچاسره مشابه کړل کوم چي خپل لاس یې دخپل امیراورعیت په لاس باندي سربېره اېښی وي مشبه به یې ذکرنکړبلکه دهغه له لوازموڅخه یې یوه ته اشاره وکړه چي هغه لاس دی اودغه ګواکي مکنیه استعاره ده.

۴ - پدې کلام کي چي فرمايي: ﴿ لَوَلَّوُاْ ٱلۡأَدۡبَٰرَ ﴾ دلته له ماتي اوشکست څخه کنایه راغلي څکه مغلوب تن شاګرزوي اوتېښته کوي

۵ - دمضـارع پـه صـیغه تعبیرچـي دمبایعـت صـورت مستحضروښـيي لکـه چـي فرمـــــايي ﴿ لَّقَدۡ رَضِيَ ٱللَّهُ عَنِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ إِذۡ يُبَايِعُونَكَ ﴾ دآيـــــت ترپايـــــــه.

۶ – دالتفات صنعت چي له غائب څخه بې مخاطب ته کوي هلته چي وروسته له دې قوله چي ﴿ فَعَلِمَ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَنزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ ﴾ داسي فرمايي: ﴿ وَعَدَكُمُ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً ﴾ دلته د مؤمنانو دتشريف مقام څرګندوي اوپردوی دالله امتنان ښيي.

۷ – اطناب چي د(حرج) په تکرارسره صورت نيسي هلته چي الله تعالی فرمايي: ﴿ لَّيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ ﴾ ترڅوچي له دغومعذوروکسانوڅخه دبې ګناهي تاکيدافاده کړي.

۸ – تمثيلي تشبيه دالله تعالی پدې کلام کي چي: ﴿ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِ ﴾ دآيت ترپايه څکه چي دتشبيه وجه له متعدد څخه اخيستل شوې ده.

۹ – دفواصلومراعات چي دآيتونوپه پای کي راځي اودغه له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي.

دالله جل جلاله په مرسته دالفتح سورت تفسيربشپړشو.

***

## دالحجرات سورت مدني اواتلس آيتونه لري.

### دسورت په وړاندي:

دغه سورت مدني اوله لنډون سره سره خوراستراولوړمفاهيم پکښې دي چي په ترڅ کي يې دتلپاتي روزني حقائق خوندي دي اودفضيلت لرونکي تولني تادوونه ايږدي آن تردې چي ځيني مفسرين کرامو خو(سورة الاخلاق) بللی.

دسورت پيل داوچت ادب يادونه هغه چي الله مؤمنانوته ورښودلی چي دالهي شريعت اودپيغمبرداوامروپه هکله يې خپل کړی ترڅودوی هيڅکله هم يوکاراوچاره رايه اوياحکم درسول الله په حضورکي پخپله خوښه غوڅه نکړي ترڅودرسول الله صلی الله عليه وسلم مشوره يې ترلاسه کړې نه وي اوداچي دوی دي همېشه درسول الله صلی الله عليه وسلم له حکمته ډکي لارښووني ټينګي په غوږ کي ونيسي اوعمل دي پرې کوي لکه چي فرمايي: ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾.

بيايوبل ادب ته لېږدي هغه داچي درسول الله په وړاندي دي خپل غږ نه اوچتوي ترڅودهغه دستر اوشريف قدردرناوی وشي څکه هغه لکه نورعادي کسان غوندي شخصيت نه دی بلکه دالله استازی اوپيغمبردی په مسلمانانولازم دي چي له هغه سره په خبرو اتروکي ادب وکړي اودهغه ﷺ درناوی تعظيم اوتوقيروشي ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ .. ﴾.

هم داسي له خصوصي ادابوڅخه عمومي ادابوته درومي ترڅوديوې خورابهتري ټولني مراندي ټينګي کړي نومسلمانانوته امرکوي چي آوازې افواهات دي نه اوري اوچي کله کومه خبره اوري څېړنه اوګروېړنه دي وکړي په ځانګړي توګه هغه خبره چي له يوه ناکاره اوتورن سړي څخه واورېدل شي ځکه دېرځله يوه خبره کوم فاسق فاجرخپره کړي اودلوى ناورين سبب وګرزي اودېرځله يوه خبره چي په هکله يې پلټنه ونشي دلوى جنجال اووبال سبب وګرزي نوفرمايي: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن جَآءَكُمْ فَاسِقٌۢ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوٓا۟ ... ﴾.

همدادول سورت ددووجګړه ماروډلوترمينځ دسولي مارېينه کوي ترڅوچي دښمني دفع او ورورولي ټينګه شي فرمايي: ﴿ وَإِن طَآئِفَتَانِ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ٱقْتَتَلُوا۟ فَأَصْلِحُوا۟ بَيْنَهُمَا ﴾ دآيتونوترپايه.

بياسورت له ملنډو، ريشخند، پېشاړو، غيبت اودعيب جوبې ،جاسوسي کولو، چغلي اوپه مسلمانانوله بدګماني څخه نور مسلمانان وېروي اومکارم الاخلاق ته يې رابولي ترڅوټولنيزفضائل په خان کي پيداکړي اوکله چي له غيبت څخه مؤمنان وېروي دغه منع اونهى په يوعجيبه نادرواوبديع تعبيرسره چي قرآنکريم ايجادکړي فرمايي هغه داچي ديوسړي انځور کاږي چي دخپل مړه ورور په څنګ کي ناست اودهغه غوښي رابېلوي اوخوري يې: ﴿ وَلَا تَجَسَّسُوا۟ وَلَا يَغْتَب بَّعْضُكُم بَعْضًا ۚ أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَن يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ ... ﴾ سبحان الله څومره عجيبه نفرت اوکرکه ده؟!.

په پاى کي سورت له هغوصحراپانوڅخه رغېږي کوم چي ګمان به يې کاوو ايمان يوازي په ژبه باندي کلمه ويل دي دوى به راتلل اوپه رسول الله صلى الله عليه وسلم باندي به يې احسان باراوو چي ګنه موږهم ايمان راوړى دى نودسورت پدې برخه کي دايمان اواسلام حقيقت څرګندېږي اودکامل مؤمن شرطونه بيانېږي هغه څوک چي ايمان ، اخلاص ، جهاداوصالح نېک عمل يې سره يوځاى کړي وي رښتونى مؤمن دى فرمايي ﴿ إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا۟ وَجَـٰهَدُوا۟ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ أُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّـٰدِقُونَ ... ﴾ دسورت ترپايه.

**تسميه اونومول يې:**

ځکه يې سورت الحجرات بولي چي الله تعالى پکي دپيغمبرعليه السلام دخونو اوکوټوعزت اوحرمت يادکړى هغه حجرې چي أمهات المؤمنين پکي اوسېدلې رضوان الله عليهن اجمعين

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُقَدِّمُوا۟ بَيْنَ يَدَىِ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ۖ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١﴾ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَرْفَعُوٓا۟ أَصْوَٰتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ ٱلنَّبِىِّ وَلَا تَجْهَرُوا۟ لَهُۥ بِٱلْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ أَن تَحْبَطَ أَعْمَـٰلُكُمْ وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ ﴿٢﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَٰتَهُمْ عِندَ رَسُولِ ٱللَّهِ أُو۟لَـٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ٱمْتَحَنَ ٱللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَىٰ ۚ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿٣﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَآءِ ٱلْحُجُرَٰتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴿٤﴾ وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا۟ حَتَّىٰ تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا

لَهُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٥﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا أَن تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا
فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ ﴿٦﴾ وَاعْلَمُوا أَنَّ فِيكُمْ رَسُولَ اللَّهِ ۚ لَوْ يُطِيعُكُمْ فِي كَثِيرٍ مِّنَ الْأَمْرِ لَعَنِتُّمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ
وَزَيَّنَهُ فِي قُلُوبِكُمْ وَكَرَّهَ إِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوقَ وَالْعِصْيَانَ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الرَّاشِدُونَ ﴿٧﴾ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَنِعْمَةً ۚ وَاللَّهُ
عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٨﴾ وَإِن طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا ۖ فَإِن بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَىٰ فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي
حَتَّىٰ تَفِيءَ إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ ۚ فَإِن فَاءَتْ فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَأَقْسِطُوا ۖ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ﴿٩﴾ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ
فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿١٠﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّن قَوْمٍ عَسَىٰ أَن يَكُونُوا خَيْرًا
مِّنْهُمْ وَلَا نِسَاءٌ مِّن نِّسَاءٍ عَسَىٰ أَن يَكُنَّ خَيْرًا مِّنْهُنَّ ۖ وَلَا تَلْمِزُوا أَنفُسَكُمْ وَلَا تَنَابَزُوا بِالْأَلْقَابِ ۖ بِئْسَ الِاسْمُ الْفُسُوقُ بَعْدَ
الْإِيمَانِ ۚ وَمَن لَّمْ يَتُبْ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿١١﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ ۖ وَلَا
تَجَسَّسُوا وَلَا يَغْتَب بَّعْضُكُم بَعْضًا ۚ أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَن يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ رَّحِيمٌ
﴿١٢﴾ ﴾ الحجرات: ١ ـ ١٢

## لغتونه:

(يفضون) تيښتوي سوکه اوکراروي (فاسق) له شرعي حدودوڅخه وتلي ته وايې دغه کلمه په اصل اشتقاق کې هغې معناته وايې چې په وتلودلالت کوي لکه چې عربوبه ويل (فسقت الرطبة) کله چې به خرماله خپل پټوکي څخه راووتله اوفاسق چې وبلل شوهم ځکه چې دشريعت له حدودو بهرشوی دی (نبأ) مهم خبرته وايې راغب وايې چې هري خبري ته نبأنشي ويل کېدای ځوچي پکي ستره فائده نه وي ترڅوبيا، علم اوغالب ګمان وربانديي حاصل شي([1]) (عنتم) تاسوبه په مشقت کې ولوېږی له (عنت) څخه اخيستل شوی اوهغه هلاکت ته وايې ([2]) (الراشدون) دراشدجمع اوهغه چاته ويل کېږي چې دښوکارونوخواته رهبري شوي وي (تفئ) له فاء څخه اخيستل شوي اوهغه رجوع کولو ته وايي (بغت) په ظلم اوطغيان کې تجاوز کول (تلمزوا) چې تاسويې عيب جويې کوی.

## دنزول سبب:

أ:-روايت کېږي چې ځيني ساده خلک درسول الله ﷺ دازواج مطهراتو حجروته راغلل اورسول الله ته يې ناري کړې: ای محمده ! راووزه ! نوالله ﷻ داآيت نازل کړ: ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴾.

ب:- اوروايت کاوه شي چې رسول الله ﷺ (وليدبن عقبه ) حارث بن ضرارته ورواستاوو ترڅو هغه دزکات مال چې له هغه سره دی ځيني واخلي اوله خپل قوم څخه يې راغونډکړي کله چې وليد بن عقبه

---

([1]) مفردات الراغب.
([2]) لسان العرب.

هلته نژدې ورغی نو وویرېدو اورسول الله ته بیرته راغی ورته ویل یې یارسول الله هغوی مرتدان شوي اوزکات نه ورکوي رسول الله ﷺ وپتېیله چې ځیني اصحابان رضوان الله علیهم دهغوی د سرزنش لپاره ورواستوي نودا آیت نازل شو: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن جَآءَكُمْ فَاسِقُۢ بِنَبَإٖ فَتَبَيَّنُوٓاْ .. ﴾.

ج- له أنس ﷺ څخه روایت کېږي هغه وایي رسول الله ﷺ ته وویل شول که چېري عبدالله بن أبی (هغه چې دمنافقانوسرداروو) ته ورشي رسول الله ﷺ په مرکب سپورشو او اصحابان رضی الله عنهم ور سره پیاده روان شول کله چې رسول الله ﷺ وروررسېدو نوابن أبی ورته وویل له ما څخه لیرې اوسه زما دې په الله سوګندوي ستا دمرکب بوی ماته تکلیف راکوي نو دانصارو څخه یوتن ورته وویل: قسم په الله دی چې درسول الله ﷺ دمرکب خوشبویې له تا څخه زیاته ده نو دابن أبی په ملاتړ دهغه دقوم یوتن ودرېدو او دانصاري په ملاتړ نورکسان دانصارو څخه ودرېدل یوله بله یې په څپلیو، لاسونو اود خرماوو په پټوکوسره وارونه وکړل نودا آیت نازل شو: ﴿ وَإِن طَآئِفَتَانِ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ٱقْتَتَلُواْ فَأَصْلِحُواْ بَيْنَهُمَا ... ﴾ دآیت ترپایه([1]).

تفسیر:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُقَدِّمُواْ بَيْنَ يَدَيِ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ (ای هغوکسانوچې ایمان مو راوړی مه وړاندې کوئ مفکورې خپلې په مخکې له صدوره دامردالله تعالی اورسول دهغه)بلکه دهغوی اوامروته انتظارکوئ) یعنې ای هغوکسانوچې دایمان صفت لرې اوپه کتاب الله موباورډی مه وړاندې کوئ کارونه اوچارې دالله اورسول الله په وړاندې مفعول دتعمیم لپاره حذف شوی دی ترڅوچې هرلورې ته دسامع ذهن ولاړشي یعنې کله چې کومه مسئله پېښه شي درسول الله په مجلس کې تاسې په ځواب ورکولوکې تلوار مه کوئ کله چې خواړه کېښودل شي تاسې په خوړلوکې ترپیغمبردمخه پیل مه کوئ اوچې چېرته دپیغمبرسره ملګرې په لاره درومی ترهغه علیه السلام دمخه مه ځئ اوهمداسې نور. ابن عباس ﷺ وایي: معنادا چې دهغه دخبرې کولوپه وخت کې تاسې ترهغه دمخه مه غږېږئ، ضحاک وایي : تاسودخپلودینې چاروپه هکله درسول الله اوالله تعالی له حکمه پرته فیصلې مه صادروئ( ) ، بیضاوي وایي: معنادا چې دالله اورسول الله دحکم تردمخه تاسوحکم مه کوئ چابیاویلې مقصدرسول الله دی دالله پاک نوم یې دتعظیم لپاره ورسره راوړی چې رسول الله ﷺ دالله په نزددمقام خاونددی چې درناوی اواجلال یې ضروري وواجب دي([2]) ﴿ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴾ او وویرېږئ له الله څخه هروخت الله تعالی بنه اورېدونکی (دخبروستاسې) اوبنه پوه دی ) (په نیتونواواحوالوستاسې ، داچې الله داسم یادونه یې وکړه ترڅودهیبت اواجلال روزنه یې په نفسونوکې وکړي ، ورپسې الله تعالی درسول الله دتوقیراودرناوي وجوب داسې څرګندوي فرمایې: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَرْفَعُوٓاْ أَصْوَٰتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ ٱلنَّبِيِّ ﴾ ای هغوکسانوچې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) مه پورته کوئ آوازونه خپل برسېره په

---

([1]) دشیخینوروایت.

([2]) بیضاوي ۳/۳۶۵

آوازد پیغمبر (کله چي ورسره خبري کوی) ﴿ وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ ﴾ او په لوړه مه پورته کوئ آوازده لره په خبروکي لکه په اوچت آوازخبري دبعضودتاسي له بعضونورو سره (په وخت دمخاطبې کي وي) هغه ته پخپل نامه لکه چي تاسويې يوبل ته کوی آواز مه کوئ چي ورته وایاست: ای محمده! بلکه ورته ووایاست چي یارسول الله، یانبی الله ترڅوچي درناوی یې ترسره شي اوادب یې مراعات شي. مفسرین کرام وایې: چي دغه دځیني صحرایي ناپوهانولپاره چي درسول الله عزت یې نه پېژاندواوپه نامه به یې نارې وروهلې نازل شوی دی ﴿ أَنْ تَحْبَطَ أَعْمَالُكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تَشْعُرُونَ ﴾ له جهته دوېري ددې چي ضائع به شي عملونه دتاسي اوتاسي به پرې خبرنه یاست، ځکه چي دده په وړاندي په لوړ آوازخبري کول اودهغه په آوازباندي غږ اوچتول دهغه استخفاف اوسپکاوی دی اوسړی کفرته رسوي چي عملونه یې ابته کړي. ابن کثیروایې چي: روایت کېږي ثابت بن قیس دلوړآوازخاوندووکله چي داآیت نازل شونوهغه داسي وګڼله چي دده غږ لوړدی اوویې ویل چي زه دوزخي شوم عملونه مي تباه شول غمجن اوخواشینی په کورکي کېناست رسول الله ﷺ څوخته ونه لیدواوځیني کسان ثابت بن قیس ته ورغلل ورته ویل یې ته رسول الله داڅه وخت کېږي لیدلی نه یې څه خبره ده؟! هغه ورته وویل: زه هماغه څوک یم چي په رسول الله مي غږ اوچتېږي زماعملونه ضائع شول اوزه به دوزخي یم نودغه کسان رسول الله ته ورغلل کیسه یې ورته وکړه. رسول الله ﷺ ورته وویل: نه هغه جنتي دی (۱) په بل روایت کي راځي چي رسول الله ﷺ ورته وویل: آیاته غواړې چي په ژوندکي خلګ درباندي ثناوایې اوشهادت دي نصیب اوجنتي شې نوهغه وویل: دالله اودرسول الله په بشارت باندي راضي یم اوهیڅکله به خپل غږ درسول الله په آوازباندي اوچت نکړم (۲) ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَاتَهُمْ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَىٰ ﴾ هرهغه کسان چي ټیټوي آوازونه خپل په نزددرسول الله داډله هغه کسان دي چي ازمویلي دي الله تعالی جل جلاله زړونه ددوی لپاره دپرهېزګاري او وېري له ده څخه، اودغه تقوی پرهېزګاري یې پکي خوندي کړي ده. ابن کثیروایې معناداچي الله ﷻ دوي خالص ګرزولي اوزړونه یې دتقوی اهل اومحل دي ﴿ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ ﴾ دوی لره دي بښنه عوض اوثواب لوی (په جنتونوکي بیاالله دصحرایي ساده ګانوبدي بیانوي کوموچي رسول الله ته په ناره کولوکي یې دادب پاملرنه نکوله فرمایې: ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِنْ وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ ﴾ بېشکه هغه کسان چي چیغي وهي تالره دکورونودامهات المؤمنینوله هاخوانه ﴿ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴾ اکثرددوی عقل نلري، ځکه چي عقل دادب غوښتنه کوي اومشرانودرناوی لازم ګڼي په ځانګړي توګه هغه څوک چي ددومره سترمنصب خاوندوي. بیضاوي وایې: هغه څوک چي دغه چیغي یې وروهلې (عیینة بن حصین) اوبل (أقرع بن حابس) ووچي له اویا تنوډلي سره دبني تمیم له ډېره دغرمې په وخت کي کله چي رسول الله ﷺ قیلوله آرام

(۱) أخرجه احمد.

(۲) ابن جریرطبری دغه روایت یادکړی دی.

کاووراغلل اودوی ویل: ای محمده ! موږ ته راووزه !(۱) ﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا حَتَّىٰ تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ﴾ (که چیري دوی صبرکړی وای نو دا صبربه دوی لره په خیرتمامېدو) یعني که چیري دغوناري کونکو پیغمبرعلیه السلام ته خورنه ورکولای چي چیغي وروهي اوصبریې کړی وای دغه صبربه ددوی لپاره دالله او خلکو په نزدغوره اوافضل وای ځکه چي پدې صبرکولو کي دنبوت دمقام درناوی اود ادب مراعات دی ﴿ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ اوالله تعالی ډېربښونکی اومهربان دی ، په بندګانوخپلو مؤمنانوبندګانوته یې تقریح (مارېینه) اونصیحت وفرمایو،عذاب یې وربانديي نازل نکړ،بیاالله تعالی دهرچا خبري ته غوږنیول اوبې له تثبیت اوڅېړني هغه منل داسي غندي ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ ﴾ ای هغوکسانوچي تاسو ایمان راوړی که چیرته تاسولره فاسق اوبدکارپه یوه خبره سره راتګ وکړي ﴿ فَتَبَيَّنُوا ﴾ نو تاسو ښه تحقیق پکي وکړئ (چي هغه صحیح دی؟) ﴿ أَن تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ ﴾ له جهته دوېري ددې چي وبه رسوي تاسویوه قوم لره ضرر او تاوان په ناپوهي سره پس وبه ګرزی تاسوپه هغه څه سره چي تاسو کړي پښېمانه اوخفه (۲) ﴿ وَاعْلَمُوا أَنَّ فِيكُمْ رَسُولَ اللَّهِ ﴾ اوپوه شئ تاسي چي بېشکه په مینځ ستاسي کي رسول الله دی چي له ګناهونو معصوم معظم پیغمبردی (نودروغ مه وایاست) ﴿ لَوْ يُطِيعُكُمْ فِي كَثِيرٍ مِّنَ الْأَمْرِ لَعَنِتُّمْ ﴾ (که چیري پیروي وکړئ تاسي لره حضرت رسول الله په ډېرو أموروکي چي هغه دواقعیت اوحقیقت خلاف وي نوهروخت به تاسي په مشقت اوګناه کي ولوېږی) ابن کثیروایي : معناداچي پوه شی ستاسوپه مینځ کي دالله پیغمبردی نودهغه درناوی اوتعظیم وکړئ هغه ستاسوپه مصلحتونو ښه خبردار اوپرتاسومهربان دی که تاسو ته په هرڅه کي غوږونیسي اوستاسوپیروي وکړي نودغه به ستاسوپه ضرر تمام شي اودرته به تکلیف اوحرج راوړي ﴿ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ وَزَيَّنَهُ فِي قُلُوبِكُمْ ﴾ لیکن الله تعالی ﷻ دوست اومحبوب ګرزولی دی تاسوته ایمان اوښایسته کړي یې دی دغه (ایمان) په زړونو ستاسي کي (چي ترهرڅه تاسوته ګران دی) ﴿ وَكَرَّهَ إِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوقَ وَالْعِصْيَانَ ﴾ اومنفوریې ګرزولی دی تاسوته کفراونافرماني له اوامرودالله نه . ابن کثیروایي مرادله فسوق څخه سترګناهونه اوله عصیان څخه ګردګناهونه دي(۳) ﴿ أُولَٰئِكَ هُمُ الرَّاشِدُونَ ﴾ دغه (تحقیق کونکي په خبرونو کي چي پدې صفتونو متصف وي) هم دوی دي ثابت په حق دین باندي پخپل سېرت اوسلوک کي. جمله دحصرافاده کوي یعني هم دوی راشدین دي نه بل څوک ﴿ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَنِعْمَةً ﴾ (له جهته دفضله له لوري دالله نه اودنعمت دده دطرف

(۱) بیضاوي وګوره.
(۲) دنزول سبب وګوره.
(۳) دابن کثیرمختصر ۳/۳۶۲

نه) يعني دغه دالله له لوري پردوی باندي فضل او انعام دی ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ او الله تعالى ښه عالم (په مستحق دهدايت) ښه حکمت والادی (پخپل خلقت، صنعت او تدبير کي) او وروسته الله تعالى هغه څه چي له دروغجنو تبليغاتو څخه زيږی داسي بيانوي چي په پايله کي دخلکو ترمينځ بغض، عداوت او جنگ جگړي پېښېږي فرمايي: ﴿ وَإِن طَآئِفَتَانِ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ٱقْتَتَلُوا۟ فَأَصْلِحُوا۟ بَيْنَهُمَا ۖ ﴾ که چېري دمؤمنانو دوه ډلي (پخپلو مينځونو کي) سره په جنگ شي پس روغه او صلح وکړي (ای نورو مؤمنانو) په مينځ دهغوی کي (او ددوی ترمينځ روغه وکړئ زيار وباسئ چي دالله او رسول الله حکم ته يې راوبولئ او داچي (اقتتلوا) دجمع په صيغه راوړل شوي څکه چي دلته دمعنا اعتبار شوی او د(بينهما) په کلمه کي دلفظ اعتبار راغلی دی ﴿ فَإِنۢ بَغَتْ إِحْدَىٰهُمَا عَلَى ٱلْأُخْرَىٰ ﴾ نو که ظلم او تېری وکړ يوې له دغو دواړو په هغې بلې ډلي باندي يعني چي سوله قبوله نکړي او دالله او رسول حکم ته راضي نشي (دتجاوز کولو يې تېنگه اراده وه) ﴿ فَقَٰتِلُوا۟ ٱلَّتِى تَبْغِى حَتَّىٰ تَفِىٓءَ إِلَىٰٓ أَمْرِ ٱللَّهِ ﴾ پس جنگ کوئ تاسي ټول ای مؤمنانو له هغي (ډلي) سره چي ظلم او تجاوز کوي (پر هغې بلي مظلومي ډلي باندي) تر هغه پوري چي بېرته راوگرزي دوی حکم دالله ته او غاړه ورته کېږدئ (د اسلام اخوت، ورورولي ومنئ) ﴿ فَإِن فَآءَتْ ﴾ او که چېري وگرزېده (دغه بې انصافه ډله له ظلم څخه او دالله حکم يې ومانو) نو ﴿ فَأَصْلِحُوا۟ بَيْنَهُمَا بِٱلْعَدْلِ وَأَقْسِطُوٓا۟ ﴾ پس صلح روغه وکړئ تاسي په مينځ ددوی کي په عدل او انصاف کوي (ديوې ډلي ملگرتيا په تنگ سره مکوئ او په يو ددوی دواړو ظلم مکوئ بلکه تل دشريعت تابع اوسئ په گردو چارو کي) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُقْسِطِينَ ﴾ څکه چي بېشکه الله تعالى دوست لري عدل او انصاف کونکي (په وينا او عمل کي) هغوی چي پخپلو فيصلو کي په چا ظلم نه کوي. بيضاوي وايي چي دغه آيت شريف داوس او خزرج ددوو ډلو ترمينځ درسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه کي دجگړې کولو په هکله نازل شوی هلته چي دغو دواړو په يو بل باندي دخرماوو دونو پتوکو او څپليوو ارونه کول او دا آيت پردې هم دلالت کوي چي باغي هم مؤمن دی کله چي له جگړې لاس واخلي پر ښېنو دل کېږي او بل دا چي په سوله کي دزيار ايستلو او نصيحت کولو ډنده لازمي ده([1]) ﴿ إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ ﴾ بېشکه چي مؤمنان ټول په دين کي سره ورونه دي (نو نه ښايي چي ترمينځ يې کيني او عداوتونه يا جنگ جگړې وي مفسرين کرام وايي چي: (انما) دحصر کلمه ده يعني ورورولي پرته له مؤمنانو دبل چانشته يعني دمؤمن او کافر ترمينځ ورورولي هډو نشته او همداسي په آيت کي دې ته اشاره ده چي اسلامي ورورولي دنسب تر هغې زياته ټينگه ده څکه چي که چېري اسلامي اخوت نه وي نسبي اخوت اعتبار نلري ﴿ فَأَصْلِحُوا۟ بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ ﴾ نو پس صلح او جوړښت کوئ تاسي (ای مؤمنانو) په مينځ دخپلو ورونو کي (مه پرېږدئ چي اختلاف او دښمني خپلې ريښې وغزوي او خپل کار وکړئ) ﴿ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴾ او ووېرېږئ له الله تعالى څخه (په

([1]) دبيضاوي تفسير ۳/ ۳۷۱

هرڅېزاوهروخت کي) اوځان وساتئ (له معاصيو) ښايي چي درباندي (دالله له لوري) رحمت وکړی شي (اودجنت اورضايې مستحق شی) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا يَسۡخَرۡ قَوۡمٞ مِّن قَوۡمٍ عَسَىٰٓ أَن يَكُونُواْ خَيۡرٗا مِّنۡهُمۡ ﴾ (ای هغوکسانوچي ايمان يې راوړی دی(ای مؤمنانو) توکي اوسپکاوی دي نه کوي هيڅ يوقوم له تاسي څخه په بل قوم باندي ځکه ښايي چي وي به دغه (مسخره کړی شوی) بهتره اوغوره (په نزددالله) له دې (مسخره کونکيو) څخه، ښايې چي يودخبرنوجامو اوانجرېنجرو ښتانودرلودونکی سري به په الله ﷻ دېرګران وي چي الله يې غوښتنه دعامني ﴿ وَلَا نِسَآءٞ مِّن نِّسَآءٍ عَسَىٰٓ أَن يَكُنَّ خَيۡرٗا مِّنۡهُنَّۖ ﴾ (اونه دي توکي اوسپکاوی کوي) يوه تولی ښځي له تاسي په نوروښځوځکه ښايې چي هغه (مسخره کړی شوي) به بهتري وي ترهغو (مسخره کونکوپه نزددالله ﷻ ﴿ وَلَا تَلۡمِزُوٓاْ أَنفُسَكُمۡ وَلَا تَنَابَزُواْ بِٱلۡأَلۡقَٰبِۖ ﴾ اوعيب جوئي مه کوئ ځيني دتاسودځينو نوروځکه چي بيادتاسوعيب جوئي هم کيږي (چي داپهٔ حقيقت کي دځان عيب جوئي ده) اومه غواړئ تاسي يوتربله په بدونومونواوالقابوسره داچي په آيت شريف کي يې وفرمايل ﴿ أَنفُسَكُمۡ ﴾ ځکه چي مسلمانان لکه چي ګرديوتن وي ﴿ بِئۡسَ ٱلِٱسۡمُ ٱلۡفُسُوقُ بَعۡدَ ٱلۡإِيمَٰنِۚ ﴾ (بدي دادرې نومونه د(سخريې، تلمز، تنابز) له جهته دفاسقي وروسته له ايمان لرلوڅخه) يعني بدی داچي انسان ته وروسته له ايمان راوړلوفاسق وويل شي. بيضاوي وايې چي په آيت شريف کي ددې دلالت شته چي تنابزفسق دی اودهغه اوايمان ترمينځ يوځای والی ناوړه اومستقبح دی[1] ﴿ وَمَن لَّمۡ يَتُبۡ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴾ اوهغه څوک چي توبه يې ونه ايستله نودغه کسان همدوی دي ظالمان (پرځانونوخپلوځکه چي ځانونه يې عذاب ته وراندي کړل) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱجۡتَنِبُواْ كَثِيرٗا مِّنَ ٱلظَّنِّ ﴾ ای هغوکسانوچي ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو) تاسي ځان اوساتئ ډېرله بدګمانيواوتهمتونو (لګولو په خلګو باندي) ﴿ إِنَّ بَعۡضَ ٱلظَّنِّ إِثۡمٞۖ ﴾ بېشکه ځيني بدګمانونه اوتومتونه ګناه دي داچي (کثيرا) يې وفرمايل ددې لپاره چي انسان په هرګمان کي احتياط وکړي اوتلواره ونکړي بلکه سوچ اوتحقيق وکړي ځکه ځيني بدګماني ګناه اوخاونددعذاب مستحق ګرزوي. عمر رضي الله عنه وايې: له مسلمان وروڅخه چي کومه خبره واوروي ترڅوچي دی دخيراوبهتري لپاره دګمان کولووس وي وربانديدخيرګمان کوه ﴿ وَلَا تَجَسَّسُواْ ﴾ اومه پلټئ تاسي پټ عيبونه (دمسلمانانوعورات) [2] ﴿ وَلَا يَغۡتَب بَّعۡضُكُم بَعۡضًاۚ ﴾ اوغيبت دي نکوي ځيني ستاسي دځينونورو ﴿ أَيُحِبُّ أَحَدُكُمۡ أَن يَأۡكُلَ لَحۡمَ أَخِيهِ مَيۡتٗا ﴾ آياخوښوي يوله تاسي څخه داچي وخوري غوښي دوروړ خپل حال داچي مړی وي) دغه دغيبت کولودبدي بيانولولپاره

---

[1] دبيضاوي تفسير ٣/٧٣

[2] په حديث شريف کي راځي ای هغوکسانوچي په ژبه دايمان ناري وهی اوزړه ته يې ايمان ښکته شوی نه وي د مسلمانانو غيبت مکوئ پټ عورات اوعيبونه يې مه لوځوئ څوک چي دمسلمان وروړعيب لټوي الله به دده عيب ولټوي اود چاعيب چي الله ولټوي هغه به اروموالله رسوا کړي که څه هم دخپل کور په انګرکي وي (أخرجه الحافظ ابويعلی).

یوتمثیل دی چي په بدي اوتقبیح کي ترې پورته بدي نشته ﴿ فَكَرِهْتُمُوهُ ﴾ پس بدګنی تاسي هغه (نوهمدارنګه بدوګڼئ دمسلمان ورورغیبت اوعیب لټول ځکه چي دغیبت عذاب دهغه ترغوښنوخوړلوسخت دی ، الله تعالی دمسلمان غیبت کول دمړه ورور له غوښنوخوړلوسره تشبیه کړي که چیري انسان دانسان غوښي خوړل بدګڼي پرته له دې چي هغه یې ورووي اوبیامړهم وي نولازم دی چي غیبت په همدې اندازه بدوګڼئ چي دسکني مړه ورور غوښي خوری اویاتردې لاهم زیات﴿ وَاتَّقُوا اللَّهَ ﴾ او ووېرېږئ تاسي له الله څخه (په امتثال داوامرواواجتناب دنواهیو کي) ﴿ إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ رَّحِيمٌ ﴾ بېشکه الله ښه توبه قبلونکی دستر رحمت خاونددی (په هغه چاچي له الله ووېرېږي او توبه وکاږي پدې کي دتوبې ایستلواوپښېماني کولولپاره هڅونه ده چي پخپله ګناه دي اعتراف وکړي اودالله له رحمت اومغفرت څخه دي ناهیلی نشي.

الله تعالی فرمایي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَٰكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَجَعَلْنَٰكُمْ شُعُوبًا وَقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوٓا۟ ۚ إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ ٱللَّهِ أَتْقَىٰكُمْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ﴿١٣﴾ ۞ قَالَتِ ٱلْأَعْرَابُ ءَامَنَّا ۖ قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا۟ وَلَٰكِن قُولُوٓا۟ أَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ ٱلْإِيمَٰنُ فِى قُلُوبِكُمْ ۖ وَإِن تُطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ لَا يَلِتْكُم مِّنْ أَعْمَٰلِكُمْ شَيْـًٔا ۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٤﴾ إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا۟ وَجَٰهَدُوا۟ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّٰدِقُونَ ﴿١٥﴾ قُلْ أَتُعَلِّمُونَ ٱللَّهَ بِدِينِكُمْ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ۚ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٦﴾ يَمُنُّونَ عَلَيْكَ أَنْ أَسْلَمُوا۟ ۖ قُل لَّا تَمُنُّوا۟ عَلَىَّ إِسْلَٰمَكُم ۖ بَلِ ٱللَّهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ أَنْ هَدَىٰكُمْ لِلْإِيمَٰنِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿١٧﴾ إِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ غَيْبَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ وَٱللَّهُ بَصِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٨﴾ ﴾ الحجرات: ۱۳ - ۱۸

**مناسبت:**

کله چي الله مؤمنان مکارم الاخلاق ته وبلل اوله ناکاره خویونوڅخه یې منع کړل نودلته یې ګردخلګ دپېژندګلوي اویووالي لوري ته راوبلل چي یوپربل دي ویاړ اوافتخارنه کوي په قومونو دي نه نازېږي او ورپسې یې دکامل اوبشپړمؤمن ستایلي صفتونه بیان کړل.

**لغتونه:**

(یلتکم) کم به کړي (قبائل) دقبیلې جمع اوهغي تولی ته وایې چي حسب اویانسب یې سره جمع کړی اوشعب تردې عام دی په شعب کي قبیلې راځي لکه چي موږ ورته ولس وایواوپه قبیلوکي بیاخیلونه اوپښې راځي (یرتابوا) شک وکړي (یمنون) احسان باروي یعني خپلي ښېګڼي اوښه کارونه شمېري (من) په اصل لغت کي قطع ته وایې لکه چي الله فرمایي: ﴿ فَلَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴾

دنزول سبب :عبدالله بن عباس ﷺ وايي : بنوأسد رسول الله ﷺ ته راغلل ورته ويل يې ای دالله پيغمبره موږ ايمان راوړی عربو درسره جګړې کړي موږ درسره جنګېدلي نه يو اوداسي يې احسانات بيانول نو دا آيت نازل شو: ﴿ يَمُنُّونَ عَلَيْكَ أَنْ أَسْلَمُوا ﴾ دآيت تر پايه (۱)

تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَٰكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ ﴾ ای خلګو بېشکه موږ پيدا کړي ياست تاسي ټول اصلاً له يوه سړي (آدم) اوله يوې ښځي (حوآء) څخه (نو په پلرونو اونيکونو فخرمه کوئ په حسب اونسب اعتبار نشته ګرددآدم اولاده اوهغه پخپله له خاورو څخه پيداشوی دی ﴿ وَجَعَلْنَٰكُمْ شُعُوبًا وَقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوٓا ﴾ او ګرزولي ياست موږ تاسي څانګي اوقبيلې قبيلې لپاره ددې چي يوله بله سره وپېژنی (نه داچي سره مخالفت وکړی اوښکرپه ښکرشی. مجاهدوايي: معناداچي انسان خپل نسب وپېژني چي فلانی دفلاني زوی د فلاني قوم (۲) د(تعارفوا) اصل (تتعارفوا) وو يوه (تا) يې دتخفيف لپاره حذف کړي ده. شيخ زاده وايي معناداچي دقبيلواو ولسونو حکمت دادی چي يوله بله سره وپېژنی اويو ځوک پرته له خپله نسبه بل چاته نه منسوب کوی نه داچي په پلرونواونيکونو فخر کوي وياړي که څه هم چي په عرف کي داعتباروړدي څکه چي دشريف خاندان پېغله دبزګرزوی ته نه ورکوي مګردغه دهغه څه په وړاندي چي خوراګران اوقدرخاوند دی هيڅ ګڼل کېږي کوم چي ايمان اوتقوی دی اومثال يې لکه دستوري دغسي دی چي دلمرپه وړاندي بېخي نه ترسترګوکېږي (۳) ﴿ إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ ٱللَّهِ أَتْقَىٰكُمْ ﴾ بېشکه چي ډېرمکرم اومعزز له تاسي څخه په نزدالله ډېرمتقي ستاسي دی ، ځوک چي ددنياشرافت اودآخرت منزلت غواړي متقي اِوادب لرونکی دي جوړشي لکه چي رسول الله فرمايي :که څوک غواړي چي ترخلګوښه عزتمن وي له الله دي ووېرېږي (۴) اوپه حديث شريف کي راځي چي: خلګ په دوه ډوله دي يوهغه نيکوکارمتقي چي په الله عزتمن وي بل هغه فاجربدمرغه چي دالله په وړاندي سپک (اوخوار) وي (۵) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ﴾ (بېشکه چي الله ښه عالم (په بندګانو) ښه خبردارپردوی) چي ظاهراوباطن يې ورته معلوم اوشقي اومتقي يې پېژني ﴿ فَلَا تُزَكُّوٓا أَنفُسَكُمْ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ ٱتَّقَىٰٓ ﴾ ﴿ قَالَتِ ٱلْأَعْرَابُ ءَامَنَّا قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا وَلَٰكِن قُولُوٓا أَسْلَمْنَا ﴾ (وويل صحرايانو ايمان راوړی دی موږ ووايه (ای محمده دوی ته) له سره ايمان نه دی راوړی تاسي وليکن ووايئ اسلام راوړی دی موږ ) يعني صحرايانوداسي ګمان کاووچي ايمان يې راوړی ای محمده دوی ته ووايه چي تاسولاايمان ندی راوړی څکه ايمان دباور اوقلبي اطمينان نوم دی اوداتاسوته حاصل نه دی که حاصل وای نوبه موپه پيغمبرعليه السلام باندي داسلام

(۱) دابن کثيرمختصر ۳ / ۳۶۹
(۲) دابن کثيرمختصر ۳ / ۳۷۰
(۳) دشيخ زاده حاشية ۳ / ۳۷۵
(۴) البيضاوي ۳ / ۳۷۵
(۵) دهغه حديث ټوټه ده چي رسول الله دمکې دفتح په وخت کي وړاندي خطبه ولوستله.

راوړلو او جنګ نه کولو احسان نه باراوو خوداسي وو ایاست چې موږ د مرګ او بندي کېدلو له وېرې تسلیم شوي یو. مفسرین کرام وايي چې دغه دبني أسد قوم ديوې ټولۍ په هکله نازل شوی چې دوی مدینې منورې ته د کاختي په کال راغلل او دشهادت کلمې يې وويلې اورسول الله ته يې وويل: چې موږ تاته درانه اوله عيالونو سره راغلو اولکه فلاني اوفلاني قومونه درسره ونه جنګېدلو، دوی په رسول الله باندي داحسان یادونه کوله آیت شریف پدې دلالت کوي چې ایمان تر اسلام پورته مرتبه ده هغه اسلام چي ظاهره دغاړه ایښودلو او استسلام په معناوي ځکه الله تعالی ورپسې فرمايي: ﴿ وَلَمَّا يَدْخُلِ ٱلْإِيمَٰنُ فِى قُلُوبِكُمْ ﴾ (اوله سره نه دی ننوتی ایمان ستاسو په زړونو کي) یعني لاتر اوسه پوري ستاسو زړونو ته ندی ننوتی او تاسو يې حقيقت ته رسېدلي نه یاست (لمّا) لفظ د توقع افاده کوي لکه چي وايي: ژردی تاسو به بشپړ ایمان هله ومومی چې د اسلام په محاسنو خبرشی او دایمان حلاوت وڅکی. ابن کثیروايي چې دغه کسان چې پدې آیت کي یادشوي منافقین نه وو بلکه داسي مسلمانان وو چي تر اوسه يې ایمان په زړونو کي ټینګ شوی نه وو نو دوی دخان لپاره ترهغه کوم چي ورته رسېدلی وو داوچت مقام دعوی کوله نو پدې هکله ورته دادب ښوونه وشوه او که چېري منافقان وای لکه چې بخاري رحمه الله ویلي نو بیابه رسواشوي او ترټل شوي وای[1] ﴿ وَإِن تُطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ لَا يَلِتْكُم مِّنْ أَعْمَٰلِكُمْ شَيْـًٔا ﴾ او که حکم ومنی تاسي دالله او درسول الله د دغه (الله په صدق او رښتنولي) او احسان پرې وانه چوی نو نه پرې کوي نه کموي (الله) له (جزاء د) نېکو عملونو ستاسي څخه هيڅ شی ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ بېشکه چي الله ښه مغفرت کونکی د ېر رحم والادی. دفعول فعیل صیغې دمبالغې افاده کوي له دې نه وروسته الله تعالی دمؤمنانو صفتونه داسي بیانوي: ﴿ إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ بېشکه چي صادقان مؤمنان هغه کسان دي چي ایمان يې راوړی دی په الله او په رسول د دغه (الله) باندي (په اخلاص او ټینګ باور) ﴿ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا۟ ﴾ بیا شک نه کوي (متزلزل نه دي) په ایمان کي (بلکه په یقین او تصدیق باندي ثابت قدم وي) ﴿ وَجَٰهَدُوا۟ بِأَمْوَٰلِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ او جهاد کوي دوی په مالونو خپلو سره او په ځانونو خپلو سره په لاره دالله تعالی کي (اولپاره درضا دهغه) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّٰدِقُونَ ﴾ داکسان هم دوی رښتوني دي (په دعوی دایمان کي. الله تعالی مؤمنان په دريو صفتونو سره وستایل یوداچي په الله تعالی اورسول الله يې ټینګ ایمان او جازم تصدیق وي دوهم داچي په کي شکمن اوزړه نازړه نه وي دريم داچي په نفس او مال سره جهاد کوي ځوک چي دغه اوصاف راغونډکړي نو هغه رښتونی مؤمن دی ﴿ قُلْ أَتُعَلِّمُونَ ٱللَّهَ بِدِينِكُمْ ﴾ ووایه (ای محمده دوی ته!) آیا خبروی پوهوی تاسي الله په دین دتاسي سره (چي په زړونو ستاسي کي دی) ؟ استفهام دانکار لپاره دی ﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ حال داچي الله ته معلوم دی هرهغه څېزونه چي په آسمانونو کي دي او هرهغه څېزونه چي په

---

(۱) دابن کثیر مختصر ۳ / ۳۶۹

څمکه کي دي (هیڅ څېزله الله جل جلاله څخه پټ او الونیانه دی) ﴿ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٞ ﴾ او الله په هرڅېزباندي پوه او خبرداردی (یوه ذره اونه کم ترذرې اویا پورته ترهغې دالله له علم څخه وتلی نه دی ﴿ يَمُنُّونَ عَلَيۡكَ أَنۡ أَسۡلَمُواْۖ ﴾ دوی احسان باروي په تا باندي (ای محمده!) چي دوی مسلمانان شوي دي (او پدې سره د ثنا صفت ګټندوی دي) ﴿ قُل لَّا تَمُنُّواْ عَلَيَّ إِسۡلَٰمَكُمۖ ﴾ ووایه (ای محمده! دوی ته) تاسي په ما باندي احسان مه باروئ د اسلام راوړلو ستاسي (ځکه چي ګټه یې تاسو ته راجع ده) ﴿ بَلِ ٱللَّهُ يَمُنُّ عَلَيۡكُمۡ أَنۡ هَدَىٰكُمۡ لِلۡإِيمَٰنِ ﴾ بلکه الله احسان کوي په تاسي باندي ددې چي لاره یې وښودله تاسو ته د ایمان راوړلو (او ثابت پاتي کېدلو پرې) ﴿ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴾ که یې تاسي رښتوني (صادقان په دعوی د ایمان کي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَعۡلَمُ غَيۡبَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۚ ﴾ بېشکه الله تعالی ته ښه معلوم دي غیب د آسمانونو او د ځمکي ﴿ وَٱللَّهُ بَصِيرُۢ بِمَا تَعۡمَلُونَ ﴾ او الله تعالی ښه لیدونکی دی په هغو کارونو باندي چي تاسي یې کوی (هیڅ ترې پټ نه دي الله جل جلاله دا چي د ګردو کائناتو او ټولو مخلوقاتو علم ورته شته مکرر راوړچي د الله د علم په پراخي او وېروالي دلالت وکړي چي غټ او واړه پټ او ښکاره، ظاهر او باطن ټولو ته یې علم رسېدلی دی.

## بلاغت:

پدې سورت کي چي د بدیع او بیان کومي ښکلاوي شته لنډیزیې دادی:

۱ - تمثیلي استعاره چي ﴿ لَا تُقَدِّمُواْ بَيۡنَ يَدَيِ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦۖ ﴾ د دوی حال یې هله چي خپله رایه او فیصله مخکي د رسول الله تر رایه او فیصلې صادروي له هغه چا سره مشابه کړ چي دده له موکب څخه له مخه ځیني کسان روان شي د ادب غوښتنه خو داوي چي د پاچاله شاپسي درومي او همدغه د تمثیلي استعارې په توګه راغلي دي

۲ - مرسله مجمله تشبیه چي پدې آیت کي شته: ﴿ وَلَا تَجۡهَرُواْ لَهُۥ بِٱلۡقَوۡلِ كَجَهۡرِ بَعۡضِكُمۡ لِبَعۡضٍ ﴾ ځکه چي د تشبیه ادات (توری) پکي راوړل شوی دی.

۳ - د التفات صنعت چي له خطاب څخه غیبت ته راغلی او فرمایي: ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلرَّٰشِدُونَ ﴾ وروسته له دې وینا څخه چي: ﴿ حَبَّبَ إِلَيۡكُمُ ٱلۡإِيمَٰنَ ﴾ او دغه هم له بدیعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

۴ - د مقابلې صنعت چي پدې وینا کي شته ﴿ حَبَّبَ إِلَيۡكُمُ ٱلۡإِيمَٰنَ وَزَيَّنَهُۥ فِي قُلُوبِكُمۡ ﴾ کله چي ددې کلام نه وروسته بیا فرمایي: ﴿ وَكَرَّهَ إِلَيۡكُمُ ٱلۡكُفۡرَ وَٱلۡفُسُوقَ وَٱلۡعِصۡيَانَۚ ﴾.

۵ - طباق لکه د الله د دې کلام ﴿ وَإِن طَآئِفَتَانِ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ٱقۡتَتَلُواْ فَأَصۡلِحُواْ بَيۡنَهُمَاۖ ﴾ په ترڅ کي راغلی دی.

۶ - اشتقاقي جناس کله چي فرمایي: ﴿ وَأَقۡسِطُوٓاْۖ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُقۡسِطِينَ ﴾.

۷ - تمثيلي تشبيه پدې کلام کې چې: ﴿ أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَن يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا ﴾ هغه څوک چې غيبت کوي له هغه چاسره يې مشابه کړ چې د مړه ورور غوښې خوري او پدې کې څوڅو مبالغې شته ترڅو د غيبت ترټولو بد انځور په ذهن کې وکاږي.

۸ - سلبي طباق لکه داچې: ﴿ ءَامَنَّا قُل لَّمْ تُؤْمِنُوا ﴾ .

۹ - انکاري استفهام د توبيخ لپاره پدې آيت کې: ﴿ قُلْ أَتُعَلِّمُونَ اللَّهَ بِدِينِكُمْ ﴾ ؟

۱۰ - بليغه تشبيه لکه چې فرمايې: ﴿ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ ﴾ د کلام اصلي بڼه خو دا چې مؤمنان لکه ورونه غونډي يو له بله مهرباني زړه سوى او مرسته کوي خو د تشبيه وجه او ادات (توری) يې حذف شوی بليغه تشبيه ګرځېدلي او له دې سره سره پدې جمله کې د حصر افاده هم نغښتې ده.

تنبيه:

سورة الحجرات ته د ادابو او اخلاقو سورت نوم هم ورکړى شوى دى ځکه چې فضائل او مکارم الاخلاق پکې راغلي پنځه ځله پکې د ايمان والو (اى مؤمنانو) په نامه غږشوی دی او په هرځلي کې يو نېک خوى او سپېڅلى ادب ته اشاره شوي ده چې موږ يې په ځانګړي توګه داسي ارزوو:

لومړى: د الله او رسول الله د حکمونو منل او له هغوى څخه په وينا او عمل کې نه وړاندي کېدل لکه چې فرمايي: ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ .. ﴾ .

دوهم: د رسول الله صلى الله عليه وسلم درناوى او د هغه د ستر شان تعظيم کول لکه ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ .. ﴾ .

دريم: د خبرونو تحقيق او پلټنه کول چې فرمايي: ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا إِن جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا ... ﴾

څلورم: له ملنډو وهلو څخه پرهېز کول او د ځان ساتلو مار هېينه لکه داچې: ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا يَسْخَرْ قَوْمٌ مِّن قَوْمٍ عَسَىٰ أَن يَكُونُوا خَيْرًا مِّنْهُمْ ... ﴾ .

پنځم: له غيبته، عيب جوئي او بدګماني څخه منع کېدل چې پدې آيت شريف کې راغي: ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ ... ﴾ .

لطيفه:

له ځينو علماوو څخه وپوښتل شول چې د اصحابو رضوان الله عليهم د خپل منځي جګړو په هکله دي معلومات وړاندې کړي هغه ورته وويل داهسي ويني دي چې الله جل جلاله زموږ لاسونه ورباندي ککړ کړي نه دي نو موږ خپلې ژبې هم ورباندې نه ککړوو او کومې ناوړه اوناوړه اونادوډي پېښې چې د دوی ترمينځ پېښې شوي داسې دي لکه چې د يوسف عليه السلام او د ورونو ترمينځ يې پېښې شوي وې.

د الله جل جلاله په مرسته د الحجرات د سورت تفسير بشپړ شو.

## د(ق) سورت مکي دی او پنځه څلوېښت آیتونه لري

دسورت په وړاندي:

دغه سورت مکي دی او د اسلامي عقيدې بنسټونه (اصول) لکه وحدانيت ، رسالت او بعث څېړي او محورېې ګواکي همدغه بعث او نشور دی آن تردې چي داسي بريښي لکه چي د دي مبارک سورت دغه ځانګړي او يوازني ارزونه وي.

قرآنکريم په کوټلي برهان او ښکاره دليل سره همدغه راپاڅېدل بيان کړي او داهغه سورت دی چي په حواسو خورا اغېزمن او زبردسته تاثيرلري زړه خوځوي روح ځنګوي او پکي اعجاب پنځوي او په ترغيب او ترهيب سره يې لړزوي. 5

دسورت پيل په اساسي پېښه کوي هغه چي قريشي کافران ورڅخه منکر وو او پدې هکله به يې زښته زيات تعجب کاوو چي څرنګه به له ژونده وروسته مړينه او بيابيرته له مړيني راپاڅېدل وي؟

فرمايي: ﴿قٓ ۚ وَٱلْقُرْءَانِ ٱلْمَجِيدِ بَلْ عَجِبُوٓا۟ أَن جَآءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ فَقَالَ ٱلْكَٰفِرُونَ هَٰذَا شَىْءٌ عَجِيبٌ أَءِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۖ ذَٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيدٌ...﴾ دآيتونو ترپايه

بياسورت د مشرکانو هغوی چي له بعث څخه منکردي پام دالله جل جلاله هغه سترخواک او قدرت ته چي د کائناتو د وېړاو منظورکتاب په پاڼوکي ځلېږي راوړي هغه چي په آسمانونو او ځمکو ، او بو او نباتاتو ، مېوو ، خرماوو او کښتونو کي له ورايه ځرګند دي او ټول دالله جل جلاله په سترقدرت باندي پرېکنده دليلونه دي داسي فرمايي: ﴿أَفَلَمْ يَنظُرُوٓا۟ إِلَى ٱلسَّمَآءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنَٰهَا...﴾ دآيتونو ترپايه.

وروسته د سورت د پخوانيو اُمتونو لورته چي خپل پيغمبران يې دروغجن ګڼل لېږدي چي پرهغوی څرنګه ډول ډول عذابونه راپرېوتي اوخه ډول هلاک شوي دي ترڅو د مکې کفارپه دې وو بروي چي پردوی هم هغه رانشي کوم چي پرهغوی راغلي وو: ﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَأَصْحَٰبُ ٱلرَّسِّ وَثَمُودُ...﴾ د آيتونو ترپايه.

وروسته د ځنکدن کړاوونه، د حشرګاه پيل، د حساب وېره او هغه څه سختي او تکليفونه چي مجرم به يې په دغه ورځويني اوزغمي ترڅو چي دوزخ ته وغورځول شي را اخلي چي ﴿وَنُفِخَ فِى ٱلصُّورِ ۚ ذَٰلِكَ يَوْمُ ٱلْوَعِيدِ...﴾ دآيتونو ترپايه.

دسورت پای په (صيحة الحق) باندي کوي کومه چيغه چي د هغې په ذريعه به خلګ له قبرونو لکه تيت شوي ملخان غوندي راپاڅېږي حساب او جزاته به بېول کېږي له الله څخه به يوهم پټېدلای نشي او پدې کي د بعث او نشورهغه اثبات دی کوم چي مشرکانو به دروغ ګڼل فرمايي: ﴿وَٱسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ ٱلْمُنَادِ مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ يَوْمَ يَسْمَعُونَ ٱلصَّيْحَةَ بِٱلْحَقِّ ۚ ذَٰلِكَ يَوْمُ ٱلْخُرُوجِ...﴾ دآيتونو ترپايه.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ قٓ ۚ وَٱلْقُرْءَانِ ٱلْمَجِيدِ (١) بَلْ عَجِبُوٓا۟ أَن جَآءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ فَقَالَ ٱلْكَـٰفِرُونَ هَـٰذَا شَىْءٌ عَجِيبٌ (٢) أَءِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۖ
ذَٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيدٌ (٣) قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنقُصُ ٱلْأَرْضُ مِنْهُمْ ۖ وَعِندَنَا كِتَـٰبٌ حَفِيظٌۢ (٤) بَلْ كَذَّبُوا۟ بِٱلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ فَهُمْ فِىٓ
أَمْرٍ مَّرِيجٍ (٥) أَفَلَمْ يَنظُرُوٓا۟ إِلَى ٱلسَّمَآءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنَـٰهَا وَزَيَّنَّـٰهَا وَمَا لَهَا مِن فُرُوجٍ (٦) وَٱلْأَرْضَ مَدَدْنَـٰهَا
وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَٰسِىَ وَأَنۢبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍۭ بَهِيجٍ (٧) تَبْصِرَةً وَذِكْرَىٰ لِكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيبٍ (٨) وَنَزَّلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً
مُّبَـٰرَكًا فَأَنۢبَتْنَا بِهِۦ جَنَّـٰتٍ وَحَبَّ ٱلْحَصِيدِ (٩) وَٱلنَّخْلَ بَاسِقَـٰتٍ لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيدٌ (١٠) رِّزْقًا لِّلْعِبَادِ ۖ وَأَحْيَيْنَا بِهِۦ بَلْدَةً
مَّيْتًا ۚ كَذَٰلِكَ ٱلْخُرُوجُ (١١) كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَأَصْحَـٰبُ ٱلرَّسِّ وَثَمُودُ (١٢) وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ وَإِخْوَٰنُ لُوطٍ (١٣) وَأَصْحَـٰبُ
ٱلْأَيْكَةِ وَقَوْمُ تُبَّعٍ ۚ كُلٌّ كَذَّبَ ٱلرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيدِ (١٤) أَفَعَيِينَا بِٱلْخَلْقِ ٱلْأَوَّلِ ۚ بَلْ هُمْ فِى لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ (١٥) وَلَقَدْ خَلَقْنَا
ٱلْإِنسَـٰنَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِۦ نَفْسُهُۥ ۖ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ ٱلْوَرِيدِ (١٦) إِذْ يَتَلَقَّى ٱلْمُتَلَقِّيَانِ عَنِ ٱلْيَمِينِ وَعَنِ ٱلشِّمَالِ قَعِيدٌ (١٧)
مَّا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ (١٨) وَجَآءَتْ سَكْرَةُ ٱلْمَوْتِ بِٱلْحَقِّ ۖ ذَٰلِكَ مَا كُنتَ مِنْهُ تَحِيدُ (١٩) وَنُفِخَ فِى ٱلصُّورِ ۚ ذَٰلِكَ
يَوْمُ ٱلْوَعِيدِ (٢٠) وَجَآءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّعَهَا سَآئِقٌ وَشَهِيدٌ (٢١) لَّقَدْ كُنتَ فِى غَفْلَةٍ مِّنْ هَـٰذَا فَكَشَفْنَا عَنكَ غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ ٱلْيَوْمَ
حَدِيدٌ (٢٢) ﴾ ق: ١ – ٢٢

## لغتونه:

(مریج) ګډوډ ابن قتیبه وایې (مرج الدین) معنا ګډوډ شو او اصل یې له اضطراب څخه اخیستل شوی چي استقرار پکي نه وي وایې (مرج الخاتم فی یدی) کله چي انسان کمزوری او ډنګر شي وایي ګوتمۍ مي په ګوته کي خوځېږي (فروج) سوري او سوري د (فرج) جمع او هغه شق او څېري والي ته وایې (باسقات) لوړي او چتي (نضید) یو د بل د پاسه اوډلي (لبس) حیرت او شک اضطراب ته ویل کېږي (عیینا) ستړي شوي یو موږ (عيَ) عجزته وایې (رقیب) څارونکی د اعمالو، ساتندوی د هغو (عتید) چمتو شوی تیار لکه چي وایې (فرس عتید) هغه چي د څغاستي لپاره چمتو شوی وي او له همدې مادې څخه دی چي فرمایې: ﴿ وَأَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَـًٔا ﴾ ([1]) (حدید) معنا تېز ژر رسېدونکی.

## تفسیر:

﴿ قٓ ﴾ له مقطعاتو توروڅخه یو دی او د قرآنکریم په اعجاز دلالت کوي چي دې ته اشاره وکړي چي دغه کتاب له همدې هجائي توروڅخه منظوم دی ([2]) ﴿ وَٱلْقُرْءَانِ ٱلْمَجِيدِ ﴾ قسم دی پر قرآن چي لوی شان لري (او په ګردو آسماني کتابونو مشرف دی ) چي تاسو به راپاڅول شی. ابن کثیر وایې چي د قسم

---

([1]) الصحاح مادة عتد.

([2]) وګوره تفصیل یې د دې کتاب د البقره سورت په پیل کي.

جواب حذف شوی او هغه د کلام مضمون دی چې وروسته راځي کوم چې د رسول الله د نبوت او د بعث او نشور اثبات دی او تقدیرېې داسي راځي چې: ای محمده ته پیغمبر او بعث او نشور حق دي[1] او دغه ډول تعبیر په قرآنکریم کې زیات دی ابو حیان وايي چې قرآن مقسم به او مجید يې صفت دی معنا داچې په نورو کتابونو د شرافت خاوند دی ځواب یې حذف شوی چې وروستنی کلام وربandي دلالت کوي هغه داسي چې: ارومرو ته دوی ته له بعث نه وېرونکی راغلی یې دوی هغه نه مني[2] ﴿ بَلْ عَجِبُوٓا۟ أَن جَآءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ ﴾ بلکه تعجب کوي دوی له دې نه چې راغلی دوی ته وېرونکی له دوی نه (چې بشر دی او دوی د الله له عذابه څخه وېروي) ﴿ فَقَالَ ٱلْكَٰفِرُونَ هَٰذَا شَىْءٌ عَجِيبٌ ﴾ نو وويل (کافرانو) دغه (وېرول) یو عجیب شی دی. دلته اظهار د اضمار په ځای کې پر دوی باندې د کفر د تسجیل لپاره دی او آیت شریف د دوی د تعجب د بدګڼلو او انکار لپاره راغلی چې دغه کومه عجیبه خبره نه ده ځکه دو ی د رسول الله رښتنولي، امانت او نصیحت پېژندلی نو پر دوی لازم داو و چې سمدستي یې وربandي ایمان راوړی وای نه دا چې ملنډې پرې وهي او تعجب کوي بیا الله جل جلاله د دوی د تعجب سبب داسي څرګندوي وايي: ﴿ أَءِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۖ ذَٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيدٌ ﴾ آیا کله چې مړه شو موږ او شو خاوري موږ (بیا به هم ژوندي کېږو ؟) دغه بیرته راتلل د پر لیري دي (له عقله) او محال بریښي) ﴿ قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنقُصُ ٱلْأَرْضُ مِنْهُمْ ﴾ (الله د دوی د قول په رد کې فرمايي) په تحقیق سره معلوم دی موږ ته هغه چې کموي یې ځمکه له وجوده د دوی (او خوري یې له غوښو وښتانو او وینو څخه کله چې مړه شي هیڅ شی له موږ څخه پټ نه پاتي کېږي چې بیرته راپاځول یې راته مشکل کاندي) ﴿ وَعِندَنَا كِتَٰبٌ حَفِيظٌۢ ﴾ او له موږ سره یو کتاب دی چې یادساتونکی د هر شي دی (چې هغه لوح محفوظ دی) او په هغه کې هر څه کښل شوي دي ﴿ بَلْ كَذَّبُوا۟ بِٱلْحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمْ ﴾ (بلکه نسبت د دروغو کړی دی دوی حق او رښتوني دین ته کله چې راغلی دوی ته) دغه کلام هغه لوري ته اضراب او لېږد بدل دي کوم چې تر لومړني تعجب خورا بد تر او شنیع دی هغه د قرآن عظیم څخه انکار دی کله چې دوی ته راغلی سره له دې چې آیتونه یې خورا څرګند او بیان یې بې ساري ښکاره دی ﴿ فَهُمْ فِىٓ أَمْرٍ مَّرِيجٍ ﴾ پس دوی په ګډوډ و مختلفو خبرو کې (مضطرب) دي کله وايي چې رسول الله ساحر دی (العیاذ بالله) کله وايي شاعر دی کله بیا وايي چې کاهن نجوم ګر دی همداسي له قرآنه څخه د دوی برداشت او ارزونه ده چې دغه سحر، شعر، او د رومبنیو خلګو افسانې یې بولي، بیا وروسته الله تعالی د خپل قدرت نښې نښانې هغه چې د ده په عظمت او وحدانیت څرګند دلائل دي داسي راوړي ﴿ أَفَلَمْ يَنظُرُوٓا۟ إِلَى ٱلسَّمَآءِ فَوْقَهُمْ ﴾ آیا پس نه ګوري دغه (منکران د بعث) طرف د آسمان ته د پاسه د دوی (په کتلو د عبرت سره چې پدې پوه شي الله په بعث بعد الموت قادر دی ځکه) ﴿ كَيْفَ بَنَيْنَٰهَا وَزَيَّنَّٰهَا ﴾ چې څرنګه جوړ کړی دی موږ هغه

---

[1] د ابن کثیر مختصر ۳ / ۳۷۱
[2] البحر المحیط

اوهغه مورِ ښایسته کړي دي؟(په ستوروا وبې له ستنومو اوچت کړي دي ﴿ وَمَا لَهَا مِن فُرُوجٍ ﴾ اونشته دغه آسمان ته کوم چاودېدل (سوري) ﴿ وَٱلْأَرْضَ مَدَدْنَٰهَا ﴾ اوآیانظرنه کوي دوی)خمکې ته (چې څرنگه مو) غوړولي ده؟(وېره کړي اوپراخه کړي موده) ﴿ وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَٰسِيَ ﴾ اوغورځولي مودي په هغې کې درانه بارونه غرونه محکم (ځای پرځای ولاړه ده چې په خلگوباندي ونه خوځېږي) ﴿ وَأَنۢبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍۭ بَهِيجٍ ﴾ اوزرغونه کړي مودي په هغې (ځمکې) کې له هره قسمه تازه گیاوي (چې دلیدونکولپاره خوشحالونکي ښکلي اغلي منظرلري ﴿ تَبْصِرَةً وَذِكْرَىٰ لِكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيبٍ ﴾ لپاره دښوونې (دقدرت خپل) اودپند اونصیحت هرهغه بنده ته چې(الله ته) رجوع کونکی وي(اوپه بدیع مخلوقاتوکي فکرچلونکي وي ) ﴿ وَنَزَّلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً مُّبَٰرَكًا ﴾ اونازلي کړي مورِ له (لوري ) دآسمانه اوبه ډېري برکتناکي (گټوري) ﴿ فَأَنۢبَتْنَا بِهِۦ جَنَّٰتٍ وَحَبَّ ٱلْحَصِيدِ ﴾ نوزرغونه موکړل په دغو(اوبو) سره باغونه (چې هررازمېوې لري) اودانې کښت چې فصل یې رېبل کېږي (لکه غنم، اوربشي اونوري غلې دانې ﴿ وَٱلنَّخْلَ بَاسِقَٰتٍ لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيدٌ ﴾ (او (زرغونې موکړل په دغواوبوسره وني د )خرماوو لوړې هغې لره وږي دي لاندي باندي . ابوحیان وایې معناداچې زیاتي اوښکي اوډېره مېوه پکې ده دمېوې پیلامه اونښه یې یودبل دپاسه لکه دانارداني غوندي وي تر څو چې همداسي لاندي باندي سره نښتي وي (نضید ) بلل کېږي اوچې له وږي راووزي بیانضیدنه ورته وایي (١)﴿ رِّزْقًا لِّلْعِبَادِ ﴾ رزق روزي لپاره دبندگانو(چې پرې نفع واخلي) ﴿ وَأَحْيَيْنَا بِهِۦ بَلْدَةً مَّيْتًا ﴾ او ژوندي کړل مورِ په دغو(اوبو ) ښارونه مړه (شاړي ځمکې لامزروع چې بیامو پکې بوټي اوواښه زرغونه کړل ) ﴿ كَذَٰلِكَ ٱلْخُرُوجُ ﴾ همداسي دی راوتل (دمړیوله قبرونوڅخه همداسي به تاسو وروسته له مړیني ژوندي راوباسم. ابن کثیروایې چې دغه ځمکه وچه مړه وه کله چې اوربښت پرې وشو راوپخسېده اووخوځېده اوله هره ډوله گلونه اوښایسته نباتات څیني راوتوکېدل چې سړي یې په لیدلو حیرانېږي اوگرده ځمکه تکه شنه زرغونه برېښي همدغه دبعث بعدالموت مثال هم دی لکه څرنگه چې الله تعالی مړه ځمکه راژوندۍ کوي همداسي به مړي راژوندي کړي (٢)وروسته له دې الله تعالی د مکې کفاروته هغه هلاکتونه ورپه یادوي کوم چې پخوانیوامتونوته چاچې دانبیاوو تکذیب کاوو رسېدلي ووترڅودوی ووېروي فرمایي : ﴿ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ ﴾ دروغجن کړی ووپخواله دغو (کفارو) قوم دنوح (نوح لره) ﴿ وَأَصْحَٰبُ ٱلرَّسِّ ﴾ اوملگري دکوهي (خپل نبي لره چې دوی دثمودیانو پاتي شوني وو اوخپل پیغمبر یې په کوهي کې وغورځاوو) ﴿ وَثَمُودُ وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ وَإِخْوَٰنُ لُوطٍ ﴾ او ثمودیانو(صالح لره) اوعادیانو (هود لره) اوفرعون (موسی لره)

(١) البحرالمحیط ۱۲۲/۸
(٢) دابن کثیرمختصر۳ /۳۷۲

او (نوعي) ورونړو دلوط (لوط لره ) لوط (عليه السلام) لره يې ښکه ورونه وبلل چې له هغوی څخه يې واده کړی وو ) ﴿ وَأَصْحَٰبُ ٱلْأَيْكَةِ ﴾ اوخاوندانو دځنګله (شعيب لره ښکه يې دوی ته دځنګله خاوندان وويل چې پردوی خواوشا باغونه راتاو وواوګڼې وني تيتې او يوپه بل باندې چاپېروې ﴿ وَقَوْمُ تُبَّعٍ ﴾ اوقوم دتبع (خپل نبي لره. مفسرين کرام وايي چې تبع په يمن کې يو پاچا وو چې اسلام يې راوړ او بيايې خپل قوم اسلام ته وباله خوهغوی دده تکذيب وکړ دغه (يماني تبع) دي[1] ﴿ كُلٌّ كَذَّبَ ٱلرُّسُلَ ﴾ دوی ټولو نسبت د دروغو کړی وو خپلو پيغمبرانو لره. ابن کثير وايي داچې پيغمبران يې جمع راوړل ښکه څوک چې ديوه پيغمبر تکذيب وکړي داسې دی لکه چې دګردوانبياوو تکذيب يې کړی وي لکه چې الله فرمايي ﴿ كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوحٍ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴾ (الشعراء ۱۰۵)[2] ﴿ فَحَقَّ وَعِيدِ ﴾ نوبيا حق اوثابت شو (زما عذاب) پردوی پسته. آيت شريف کې دنبي عليه السلام لپاره تسليت اودمجرمينو کفارو لپاره تهديد شته ﴿ أَفَعَيِينَا بِٱلْخَلْقِ ٱلْأَوَّلِ ﴾ پس نو موږ ستړي شوي ووپه لومړني پيدا ايښت باندې؟ يعني آيا موږ له لومړني پيدا ايښت څخه عاجز شوي وو؟ ترڅو چې له بعث بعدالموت څخه عاجز شو (بلکه عاجز شوي نه وو) قرطبي وايي دغه دبعث دمنکرانو لپاره توبيخ دی اوددوی دهغې وينا خواب دی چې ويل يې ﴿ ذَٰلِكَ رَجْعٌۢ بَعِيدٌ ﴾ [3] مقصد داچې موږ له لومړني پيدا ايښت څخه عاجز نه وو نو دوهم خو تر ړومبني د پر آسان دی نو دوی څرنګه فکر کوي چې موږ دي بعث اونشور ترسره نکړای شو؟ ﴿ بَلْ هُمْ فِى لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ ﴾ بلکه دوی په شک کې دي له جوړولو اوژوندي کولو نوي څخه. ألوسي وايي داچې (خلق) يې نکره اوپه (جديد) يې وستايو او داسې يې ونه ويل چې (من الخلق الثاني) ددې لپاره چې ددوی په استبعاد تنبيه وشي چې دغه ستر پيدا ايښت دی چې په هکله يې خامخا بايد اهتمام وشي دغه لره ستره خبره شته[4] وروسته الله تعالی د خپل پرېمانه او وېرعلم اوبشپړ قدرت داسې يادونه کوي: ﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِۦ نَفْسُهُۥ ﴾ اوپيدا کړی دی موږ جنس دانسان په داسې حال کې چې موږ پوهېږو په هغه څېزچې وسوسه کوي په هغه سره زړه دده (له فکرونو عبثو اوناکاروسره) يعني موږ پيدا کړی دی جنس دانسان اوپوهېږو په هغو ګردورازونو چې په زړه اوسينه کې يې دي هيڅ ډول رازونه اونيت يې له موږ څخه الونيا اوپټ نه دی ﴿ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ ٱلْوَرِيدِ ﴾ حال داچې موږ د ېرنژدې يوده ته په علم سره له رګونو دورمېږدده څخه) حبل الوريد هغه غټ دغاړې رګ چې له زړه سره نښتی دی. ابوحيان وايي معناداچې موږ په علم سره هغه ته نژدې يو چې هيڅ څيزيې راڅخه پټ نه دی اولکه داچې پخپله ذات دالله همدومره ورته نژدې وي دغه دخورانژدې والي لپاره يو تمثيل دی (لکه چې په پښتو کې وايي دوی

---

([1]) دجمل حاشيه په جلالين باندې ۴/ ۹۱
([2]) دابن کثير مختصر ۳/ ۳۷۲
([3]) دقرطبي تفسير ۱۷/ ۸
([4]) روح المعاني ۲۲/ ۱۷۸

دواړه سره نوک او ورې دي) یاعرب وایي:(هومني معقدالإزار(۱))ابن کثیر وایي معناداچي زموږ پرښتې هغه ته دغاړې ترشهرګ لانژدې دي، حلول او اتحاد په اجماع سره نشته (تعـــالی الله وتقدس).

اودغه لکه چي دځنکندن په وخت کي وایي ﴿ وَنَحۡنُ أَقۡرَبُ إِلَيۡهِ مِنكُمۡ وَلَٰكِن لَّا تُبۡصِرُونَ ﴾ چي پرښتې مراددي (۲)اوداالله تعالی داوروستی قول هم پدې باندي دلالت کوي چي ﴿ إِذۡ يَتَلَقَّى ٱلۡمُتَلَقِّيَانِ عَنِ ٱلۡيَمِينِ وَعَنِ ٱلشِّمَالِ قَعِيدٞ ﴾ او(یادکړه) کله چي اخلی دوه اخیستونکي پرښتې یوه له ښي لوري ناسته وي لیکلودنکي ته اوبله له کیڼ طرف نه ناسته وي لیکلودبدي ته ، په کلام کي محذوف شته هغه داچي له ښي لوري سره هم ﴿ مَّا يَلۡفِظُ مِن قَوۡلٍ إِلَّا لَدَيۡهِ رَقِيبٌ عَتِيدٞ ﴾ شته اوحذف شوی دی ځکه چي دوهم درباندي دلالت کوي.

مجاهدوایي الله تعالی په انسان باندي دوې پرښتې ګومارلي سره له دې چي په احوالویې علم لري دوې پرښتې دشپې اودوې دورځي له مخي چي دوی یې عمل محفوظ کوي اولیکي ترڅوچي درباندي دحجت الزام وشي یوه یې له ښي لوري چي نېکي یې لیکي بله یې له کیڼ لوري چي بدي یې لیکي همدغه دالله جل جلاله وېناده چي فرمایي: ﴿ عَنِ ٱلۡيَمِينِ وَعَنِ ٱلشِّمَالِ قَعِيدٞ ﴾ (۳)الوسي وایي مقصد داچي الله دانسان په حال ترهرڅازښته ښه پوه اوخبردار دی (کله چي اخلي دوه اخیستونکي پرښتې هغه څه چي انسان درباندي تلفظ کوي ) اوپدې کي ددې خبرداری دی چي الله پاک دپرښتوله خوندي کولو(ساتني) څخه بې پروادی الله تر دوی ښه درباندي پوه دی الله ته هغه څه هم معلوم دي چي دغوپرښتوته معلوم نه دي لیکن دحکمت غوښتنه داده چي پرښتې دانسان عمل ولیکي ترڅودقیامت په ورځ وړاندي شي نوکله چي بنده پدې وپوهېږي چي عملنامه یې وړاندي کېږي سره له علمه دالله چي دده په عمل یې لري نوبه په نېکي کولو پسي هڅه کوي اوله بدو اعمالوبه ځان ژغوري(۴)﴿ مَّا يَلۡفِظُ مِن قَوۡلٍ إِلَّا لَدَيۡهِ رَقِيبٌ عَتِيدٞ ﴾ نه وایي دغه بنده هیڅ خبره مګر خو وي له ده څخه دوه ساتونکي (چي وینایې څاري اولیکي) ﴿ عَتِيدٞ ﴾ چمتو حاضراوتیارچي ژرېې ولیکي. ابن عباس وایي :لیکي ټول هغه څه چي بنده یې وایي که خیروي اوکه شر(۵) حسن رحمه الله وایي کله چي انسان مړشي نوصحیفه یې ونغښتل شي اودقیامت په ورځ ورته وویل شي ﴿ ٱقۡرَأۡ كِتَٰبَكَ كَفَىٰ بِنَفۡسِكَ ٱلۡيَوۡمَ عَلَيۡكَ حَسِيبٗا ﴾ (۶) ﴿ وَجَآءَتۡ سَكۡرَةُ ٱلۡمَوۡتِ بِٱلۡحَقِّ ﴾ او راغلي بېهوښي سختي دمرګ لپاره ددې چي په سترګوېې ووینې په حق سره (څرګندهغه چي ترې منکروو) ﴿ ذَٰلِكَ مَا كُنتَ مِنۡهُ تَحِيدُ ﴾ دامرګ هغه دی چي وې به ته له هغه څخه په ځنګ کېدونکی تېښتېدونکی وېرېدونکی. په حدیث شریف کي راغلي حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنهاوایي : کله چي په رسول

---

(۱) دالبحرالمحیط تفسیر ۸/ ۱۲۳
(۲) دابن کثیرمختصر ۳/ ۳۷۳
(۳) دقرطبي تفسیر ۱۷/ ۹
(۴) دروح المعاني تفسیر.
(۵) دابن کثیرمختصر ۳/ ۳۷۴
(۶) البحرالمحیط ۸/ ۱۲۴

الله (ﷺ) دمرګ خولې راتلې نوبه یې له مخ څخه وچولې او ویل به یې: ( سبحان الله ان للموت لسکرات )([1]) پاکي ده الله لره دمرګ خوراسختي دي) ﴿ وَنُفِخَ فِي ٱلصُّورِۚ ذَٰلِكَ يَوۡمُ ٱلۡوَعِيدِ ﴾ او وبه پو کل شي شي په صور(شپېلۍ) کي چي دا یوه ورځ ده دوېرولو(دکفاروپه عذاب سره) ﴿ وَجَآءَتۡ كُلُّ نَفۡسٖ مَّعَهَا سَآئِقٞ وَشَهِيدٞ ﴾ اوراځي هرنفس پدې ورځ کي چي وي به له ده سره یوشړونکی (محشرته) اوشاهدي ورکونکی (په عملونوېې) ابن عباس وایې چي: سائق به له پرښتوڅخه وي اوشاهدبه یې له خپله ځانه وي لکه لاس، پښې اوداسي نورغړي ﴿ يَوۡمَ تَشۡهَدُ عَلَيۡهِمۡ أَلۡسِنَتُهُمۡ وَأَيۡدِيهِمۡ وَأَرۡجُلُهُم بِمَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴾ مجاهدوایې سائق اوشهیددواړه ملکي دي چي یوه به یې شړي اوبله به پرې شاهدي وایي([2]) ﴿ لَّقَدۡ كُنتَ فِي غَفۡلَةٖ مِّنۡ هَٰذَا ﴾ په تحقیق سره ته وې په غفلت بېخبري کي له دې ورځي دعذاب څخه (په دنیاکي ای انسانه) ﴿ فَكَشَفۡنَا عَنكَ غِطَآءَكَ ﴾ نوبیرته موکړه له تاڅخه پرده دغفلت ستا(کومه چي ستاپه زړه، غوږونو او سترګوپه دنیاکي خپره وه) ﴿ فَبَصَرُكَ ٱلۡيَوۡمَ حَدِيدٞ ﴾ نوسترګي ستانن ډېري تېزي دي (چي هغه له تاپټ شیان هم ورباندي ویني ځکه په بشپړه توګه دلیدلوموانع له مینځه ولاړل.

الله تعالی فرمایي:

﴿ وَقَالَ قَرِينُهُۥ هَٰذَا مَا لَدَيَّ عَتِيدٌ ﴿٢٣﴾ أَلۡقِيَا فِي جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٖ ﴿٢٤﴾ مَّنَّاعٖ لِّلۡخَيۡرِ مُعۡتَدٖ مُّرِيبٍ ﴿٢٥﴾ ٱلَّذِي جَعَلَ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ فَأَلۡقِيَاهُ فِي ٱلۡعَذَابِ ٱلشَّدِيدِ ﴿٢٦﴾ ۞ قَالَ قَرِينُهُۥ رَبَّنَا مَآ أَطۡغَيۡتُهُۥ وَلَٰكِن كَانَ فِي ضَلَٰلِۢ بَعِيدٖ ﴿٢٧﴾ قَالَ لَا تَخۡتَصِمُواْ لَدَيَّ وَقَدۡ قَدَّمۡتُ إِلَيۡكُم بِٱلۡوَعِيدِ ﴿٢٨﴾ مَا يُبَدَّلُ ٱلۡقَوۡلُ لَدَيَّ وَمَآ أَنَا۠ بِظَلَّٰمٖ لِّلۡعَبِيدِ ﴿٢٩﴾ يَوۡمَ نَقُولُ لِجَهَنَّمَ هَلِ ٱمۡتَلَأۡتِ وَتَقُولُ هَلۡ مِن مَّزِيدٖ ﴿٣٠﴾ وَأُزۡلِفَتِ ٱلۡجَنَّةُ لِلۡمُتَّقِينَ غَيۡرَ بَعِيدٍ ﴿٣١﴾ هَٰذَا مَا تُوعَدُونَ لِكُلِّ أَوَّابٍ حَفِيظٖ ﴿٣٢﴾ مَّنۡ خَشِيَ ٱلرَّحۡمَٰنَ بِٱلۡغَيۡبِ وَجَآءَ بِقَلۡبٖ مُّنِيبٍ ﴿٣٣﴾ ٱدۡخُلُوهَا بِسَلَٰمٖۖ ذَٰلِكَ يَوۡمُ ٱلۡخُلُودِ ﴿٣٤﴾ لَهُم مَّا يَشَآءُونَ فِيهَا وَلَدَيۡنَا مَزِيدٞ ﴿٣٥﴾ وَكَمۡ أَهۡلَكۡنَا قَبۡلَهُم مِّن قَرۡنٍ هُمۡ أَشَدُّ مِنۡهُم بَطۡشٗا فَنَقَّبُواْ فِي ٱلۡبِلَٰدِ هَلۡ مِن مَّحِيصٍ ﴿٣٦﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكۡرَىٰ لِمَن كَانَ لَهُۥ قَلۡبٌ أَوۡ أَلۡقَى ٱلسَّمۡعَ وَهُوَ شَهِيدٞ ﴿٣٧﴾ وَلَقَدۡ خَلَقۡنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ وَمَا بَيۡنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٖ وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٖ ﴿٣٨﴾ فَٱصۡبِرۡ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ قَبۡلَ طُلُوعِ ٱلشَّمۡسِ وَقَبۡلَ ٱلۡغُرُوبِ ﴿٣٩﴾ وَمِنَ ٱلَّيۡلِ فَسَبِّحۡهُ وَأَدۡبَٰرَ ٱلسُّجُودِ ﴿٤٠﴾ وَٱسۡتَمِعۡ يَوۡمَ يُنَادِ ٱلۡمُنَادِ مِن مَّكَانٖ قَرِيبٖ ﴿٤١﴾ يَوۡمَ يَسۡمَعُونَ ٱلصَّيۡحَةَ بِٱلۡحَقِّۚ ذَٰلِكَ يَوۡمُ ٱلۡخُرُوجِ ﴿٤٢﴾ إِنَّا

---

([1]) دبخاري روایت.

([2]) موږ دلته دمجاهدوېناغوره کړي ځکه له آیت څخه ځرګند ده اوطبري هم غوره کړي ابن کثیریې ملاتړکړی دي.

﴿ نَحْنُ نُحْيِۦ وَنُمِيتُ وَإِلَيْنَا ٱلْمَصِيرُ ﴿٤٣﴾ يَوْمَ تَشَقَّقُ ٱلْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا ۚ ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ ﴿٤٤﴾ نَّحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ ۖ وَمَآ أَنتَ عَلَيْهِم بِجَبَّارٍ ۖ فَذَكِّرْ بِٱلْقُرْءَانِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ ﴿٤٥﴾ ﴾ ق: ۲۳ - ۴۵

مناسبت:

کله چي الله تعالی په تېرو آيتونو کي له بعث څخه د مشرکانو انکار بيان کړ او په بعث او نشور باندي يې دلائل او براهين وړاندي کړل دلته يې وروسته هغه سختي او کړاوونه چي کافران به په آخرت کي ورسره لاس او ګرېوان وي راوړل او هغه نعمتونه چي الله تعالی په جنت کي دابرارو مؤمنانو لپاره تيار کړي دي وستايل د سورت په پای کي بيا د بعث او نشور د دلائلو او د هغه احوال او ډولونه بيانېږي.

لغتونه:

(أزلفت) چي نژدې کړی شي (أوّاب) الله ته رجوع کونکی (بطشا) په سختي سره نيول (نقبوا) ولاړل وګرزېدل د (نقب) اصلاً يو ځای کيندلو او څېړلتېولو ته وايې :شاعر پدې هکله وايې : نقبوا فی البلاد من حذر الموت * وجالوا فی الأرض کل مجال. يعني په ښارونو کي يې د مرګ له وېري پټ ځايونه ولټول او په ځمکه کي هرلوري ته وخغلېدل (محيص) د خلاصون ځای (لغوب) ستوماني ، ستړيا.

د نزول سبب:

قتادة وايې چي يهودانو به ويل چي الله تعالی آسمانونه او ځمکه په شپږ ورځي کي پيدا کړو لومړی يې د يکشنبې او وروستی يې د جمعې ورځ وه او (العياذ بالله) هغه ستړی شونو د هفتې په ورځ يې رخصتي وکړه ځکه دغي ورځي ته د استراحت ورځ وايې نو الله د دوی تکذيب هسي وفرمايو چي:

﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ ﴾ (۱)

تفسير:

﴿ وَقَالَ قَرِينُهُۥ هَٰذَا مَا لَدَىَّ عَتِيدٌ ﴾ او وايې ملګري دده (پرښته) دادی هغه شی چي له ما سره حاضر دی (کوم چي تا و رباندي ګومارلی وم بني آدم او دفتر د عملونو دده دادی) ﴿ أَلْقِيَا فِى جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيدٍ ﴾ (نو وبه ويل شي دوو پرښتو ته) وغورځوئ تاسي په دوزخ کي هر يو کافر عناد کونکی منع کونکی (هغه چي د حساب په ورځ يې ايمان نه درلود) ﴿ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ ﴾ ډېر منع کونکی د خير (د هر واجب حق چي دده په مال کي وو) ﴿ مُعْتَدٍ مُّرِيبٍ ﴾ تېرېدونکی له مشروعه چارو ظالم او شک کونکی په دين کي ﴿ ٱلَّذِى جَعَلَ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ ﴾ هغه (کافر) چي ګرزولی يې دی له الله سره بل الله (په وحدانيت ايمان نلري) ﴿ فَأَلْقِيَاهُ فِى ٱلْعَذَابِ ٱلشَّدِيدِ ﴾ نو وغورځوئ دی په سخت عذاب د دوزخ) کي د (القيا) کلمه يې مکرر د تاکيد لپاره راوړه ﴿ قَالَ قَرِينُهُۥ رَبَّنَا مَآ أَطْغَيْتُهُۥ ﴾ وبه وايې ملګری دده يعني شيطان ای زموږ ربه ! نه وو ګمراه کړی ما دی

(۱) د ابن کثير مختصر ۳ / ۳۷۸

(په زور) ﴿ وَلَٰكِن كَانَ فِي ضَلَٰلٍۭ بَعِيدٍ ﴾ ليکن وو د ى پخپله ګمراهي لري کي له حقه څخه (پخپل اختيارسره، هغه ګمراهي په هدايت باندي پخپله خوښه يې له جبراواکراه څخه غوره کړي وه په آيت شريف کي محذوف دى چي سياق ورباندي دلالت کوي هغه دالکه چي کافر وايې اى ربه! زه شيطان تېرايستلى وم اوبياددہ شيطان ملګرى پورتنى ويناکوي چي ماهغه نه دى ګمراه کړى بلکه پخپله يې حق نه مانو اوماورسره مرسته وکړه ﴿ قَالَ لَا تَخْتَصِمُوا۟ لَدَىَّ وَقَدْ قَدَّمْتُ إِلَيْكُم بِٱلْوَعِيدِ ﴾ وبه وايې (الله قهراً) چي تاسي دلته زماپه وړاندي جګړه مه کوئ (چي ستاسي جګړې پدې ځاى کي فائده نه لري) اوپه تحقيق ړومبى لېږلي وو ماتاسي ته وېرول خپل (په ژبودانبياووله عذابه څخه خو تاسو ته ننبنانو او وېرونکوهيڅ ګټه هم ونکړه ﴿ مَا يُبَدَّلُ ٱلْقَوْلُ لَدَىَّ ﴾ نشي بدلېدلى هيڅ خبره پدې باره کي په نزدزما (اونه بدلېږي زماحکم چي کفارومجرمينوته به عذاب ورکول کېږي مفسرين کرام وايې مرادله دې څخه دالله جل جلاله هغه حکم دى چي کافران بې په تل ترتله عذاب باندي تهديدکړي دي لکه چي فرمايې: ﴿لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ ٱلْجِنَّةِ وَٱلنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴾ (۱) ﴿ وَمَآ أَنَا۠ بِظَلَّٰمٍ لِّلْعَبِيدِ ﴾ اونه يم زه ظلم کونکى پربندګانو (چي بې ګناه يې په عذاب کړم) ﴿ يَوْمَ نَقُولُ لِجَهَنَّمَ هَلِ ٱمْتَلَأْتِ وَتَقُولُ هَلْ مِن مَّزِيدٍ ﴾ (ياد کړه هغه ورځ) چي موږ دوزخ ته وايو آيادک اوموړشوې ته ؟ هغه به ووايې آيانورهم څه زيات شته ؟ يعني لانبه موړ شوى نه يم. په حديث شريف کي راغلي چي په دوزخ کي کافران پرله پسې غورځول کېږي اوهغه به وايې آيانورهم څه زيات شته ترڅوچي الله جل جلاله خپل قدم پکي کېږدي نوبه هغه و وايې زمادي ستاپه عزت قسم وي قطْ قطْ يعني نورمي بس دي او له يوه اوبل لوري به راونغښتل شي (۲) ظاهر دادي چي سوال اوځواب دي حقيقتًا ترسره شي اوالله په هرڅه باندي قادردى دجماد اودبري خبري کول شرعًا جائزدي اوپه قرآنکريم کي راغلي چي مېږي خبري کړي دي اوهرڅه دالله تسبيح وايې اوپه صحيح مسلم کي حديث شريف راغلي چي په آخرالزمان کي به مسلمانان له يهودانوسره جنګېږي آن تردې چي يهودي به له وني اوډبري لاندي پټېږي اوالله به دغه وني اوډبري ته ژبه ورکوي (چي ور وبې ښيي)..... چابياويلي چي آيت دتمثيل په توګه دى اودغه ددوزخ دپراخوالي يوانځوردى چي که ګرد کافران پکي وغورځول شي هم هغه به ورته پراخېږي (۳) اولکه چي متل کوي: دېوال مېخ ته وويل: ولي مي څيرې ؟ هغه ورته وويل له هغه چاڅخه وپوښته چي ماټک وهي! ورپسې الله تعالى د نېکمرغه خلګوحال داسي بيانوي: ﴿ وَأُزْلِفَتِ ٱلْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِينَ غَيْرَ بَعِيدٍ ﴾ اورانژدې به کړى شي جنت لپاره د پرهېزګارانو چي ليري به نه وي (دوى به يې ويني اودغه ددوى لپاره اعزازدى ﴿ هَٰذَا مَا تُوعَدُونَ لِكُلِّ أَوَّابٍ حَفِيظٍ ﴾ (الله فرمايې چي) داهغه دي چي وعده به يې کول کېده له تاسي سره لپاره دهررجوع کونکي الله ته (اودهرساتونکي دحدودودعهداوأمرداللہ) ﴿ مَّنْ خَشِيَ ٱلرَّحْمَٰنَ بِٱلْغَيْبِ وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيبٍ ٱدْخُلُوهَا بِسَلَٰمٍ ذَٰلِكَ يَوْمُ ٱلْخُلُودِ ﴾ هرهغه

---

(۱) وګوره دجمل حاشيه ۴/۹۲.

(۲) دبخاري اومسلم حديث

(۳) دغه دوروستنيو علماوو ويناده اوقرطبي وايې چي دغه دمجاهد تفسيردى اولومړى دسلفو قول دى.

چي وبربري له (عذابه د) رحمان په غيب سره اوراتلونکی وي (الله ته) په زړه رجوع کونکي سره (نوالله به وفرمايي) ننوځئ پکي په سلامتيا سره! (له عذابونو، کړاوونو) داورځ دورننوتوورځ دهمېشه توب دي چي تل ترتله به پکي اوسئ خکه په جنت کي مړينه اوفناء نشته ﴿ لَهُم مَّا يَشَآءُونَ فِيهَا ﴾ وي به دغو (مؤمنانو) ته په جنت کي هغه څه چي دوی يې غواړي (اوخوښوي يې) ﴿ وَلَدَيْنَا مَزِيدٌ ﴾ اوله موږ څخه زيادت هم شته په هغو باندي (چي هغه دالله ديدار دی (۱) له دې نه وروسته الله دمکې کفار په هغه څه وېروي کوم چي د نورو ډېروکفاروأمتونو چي دانبياوو تکذيب يې کاوو په برخه شوي دي فرمايي ﴿ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ ﴾ او ډېرموهلاک کړي دي پخوا له دې څخه له اهله دزمانو پخوانيو ﴿ هُمْ أَشَدُّ مِنْهُم بَطْشًا ﴾ چي هغوی ډېرسخت اوقوي وو له دغو (مکې کفارونه) له جهته دقوته (اونيولوڅخه) ﴿ فَنَقَّبُوا۟ فِى ٱلْبِلَـٰدِ هَلْ مِن مَّحِيصٍ ﴾ پس ډېر دپناه ځايونه يې په ښارونو کي ولټول (چي ګوندي پيداکړی ځای دساتني له مرګه خوپيدايې نکړ) آياد تېښتي ځای شته؟ (بلکه نشته) ﴿ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِمَن كَانَ لَهُۥ قَلْبٌ أَوْ أَلْقَى ٱلسَّمْعَ وَهُوَ شَهِيدٌ ﴾ بېشکه په دغو (مذکوره ووشيانو) کي خامخاذکراوپند دی هر هغه چاله چي وي هغه لره زړه (روغ فکرکونکی) ياکېږدي غوږ نصيحت ته پداسي حال کي چي دی حاضرمتوجه وي په زړه سره، سفيان (رحمه الله) وايي معناداچي داسي نه وی چي دی حاضرخوزړه يې غائب وي. ضحاک رحمه الله وايي عرب هغه چاته چي په وينې اوحاضرزړه اوربدل کوي وايي چي (القى السمع) يعني غوږ يې کېښود (۲) له عقل څخه يې په زړه تعبيروفرمايولکه چي الله جل جلاله فرمايي ﴿ فَإِنَّهَا لَا تَعْمَى ٱلْأَبْصَـٰرُ وَلَـٰكِن تَعْمَى ٱلْقُلُوبُ ٱلَّتِى فِى ٱلصُّدُورِ ﴾ (الحج: ۴۶) ﴿ وَلَقَدْ خَلَقْنَا ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ ﴾ اوپه تحقيق پيداکړي دي موږ آسمانونه اوځمکه اوهغه نورمخلوقات چي په مينځ ددغو (آسمانونو او ځمکي) کي دي په شپږوورځو کي اونه وه رسېدلې موږته هيڅ ستوماني، دغه آيت په يهودوباندي ردکوي دوی هسي ګڼله چي الله آسمانونه اوځمکه په شپږو ورځو کي پيداکړل چي لومړی يې ديکشنبې او وروستي يې دجمعې ورځ وه اوبيا ستومانه شودهفتې ورځ يې داستراحت لپاره وټاکله چي ستوني ستغ په عرش باندي وغزېدو (العياذبالله) الله پاک ددوی تکذيب پدې مذکور آيت سره وکړ (۳) ﴿ فَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ ﴾ نوصبرکوه (ای محمده!) پرهغه چي دوی وايي (يهودان اويادمکې مشرکان دوی پرېږده په پرېښودلو نېکوسره) ﴿ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ ٱلشَّمْسِ وَقَبْلَ ٱلْغُرُوبِ ﴾ (اوپه تسبيح ووايه پيوسته له حمد درب خپل پخواله

---

(۱) دغه وينا له أنس اوجابربن عبدالله رضى الله عنه څخه روايت شوی دوی دواړه وايي چي زيادت دالله جل جلاله ديدار (ليدنه) ده چي الله جل جلاله به په دوی تجلي وفرمايي ترڅوچي دوی يې ليدنه وکړي اودغه به دهري جمعې په شپه وي
(۲) وګوره روح المعاني ۲۶/ ۱۹۰
(۳) دغه دقتاده اوکلبي وينا ده القرطبي ۱۷/ ۲۴

راختلو دلمر او پخواله لوېدلو دلمر څخه) يعني د سهار او مازيګر لمنځونه کوه داچي په خانګړي توګه يې ياد کړل ځکه چي زيات فضل او شرف لري ﴿ وَمِنَ ٱلَّيۡلِ فَسَبِّحۡهُ وَأَدۡبَٰرَ ٱلسُّجُودِ ﴾ او په ځيني دشپې کي پس تسبيح وايه د دغه الله يعني لمونځ د تهجد او ماسخوتن کوه او وروسته له سجدو د لمنځونو څخه هم تسبيح وايه ابن کثير وايي فرضي لمنځونه تر اسرآء له مخه دوه خلي وو دوه رکعته ترلمرختلو دمخه او دوه ترلمرلوېدلو دمخه او دشپې لمونځ په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندي واجب او تريوه کاله پوري يې په امت هم واجب وو مګر بيا يې وجوب دأمت په باب منسوخ شو او بيا دغه ګردد اسرآء په شپه په پنځو لمنځونو باندي منسوخ شول او له هغوی څخه دوه لمنځونه چي د سهار او مازيګر دي پاتي شول او دغه نو (قبل طلوع الشمس او قبل الغروب) دي ([1]) ﴿ وَٱسۡتَمِعۡ يَوۡمَ يُنَادِ ٱلۡمُنَادِ مِن مَّكَانٖ قَرِيبٖ ﴾ او واوره غوږ کېږده (اى محمده!) هغه ورځ چي آوازو کړي آوازکونکی (اسرافيل) له نژدې ځای نه (چي هرچاته يې برابر غږ رسيږي. ابوالسعود وايي چي پدې کي دخبري د هيبت او سترشان ننبه شته غږ کونکی حضرت اسرافيل عليه السلام دی هغه به وايي: ای ورستو هډوکو، شلېدلي هډونو ټوټه شوي غوښو تيت او پرک وېښتانو الله درته حکم کوي چي د حساب او قضاء لپاره راټول شئ ([2]) ﴿ يَوۡمَ يَسۡمَعُونَ ٱلصَّيۡحَةَ بِٱلۡحَقِّۚ ﴾ هغه ورځ چي واوري دغه خلګ) سخته چيغه (داسرافيل) په حقه سره (چي دوهمه نفخه ده) ﴿ ذَٰلِكَ يَوۡمُ ٱلۡخُرُوجِ ﴾ داورځ (دآواز) ورځ دوتلو ده (له قبرونو څخه) ﴿ إِنَّا نَحۡنُ نُحۡيِۦ وَنُمِيتُ وَإِلَيۡنَا ٱلۡمَصِيرُ ﴾ بېشکه هم دا موږ ژوندي کول کوو او مړه کول کوو (په دنياکي) او وشته خاص موږ ته را ګرځېدل (دټولو أمورو په آخرت کي) ﴿ يَوۡمَ تَشَقَّقُ ٱلۡأَرۡضُ عَنۡهُمۡ سِرَاعٗاۚ ﴾ په هغه ورځ چي وچوي ځمکه له دوی څخه په چابکي سره (به دحساب تم ځای ته ځغلي چي دغږ کونکي استجابت يې کړی وي) ﴿ ذَٰلِكَ حَشۡرٌ عَلَيۡنَا يَسِيرٞ ﴾ دغه (ژوندي کول) ټول دي پرموږ باندي ډېر آسان (تکليف نه غواړي) ﴿ نَّحۡنُ أَعۡلَمُ بِمَا يَقُولُونَۖ ﴾ (موږ ته ښه معلوم دي هغه چي دوي يې وايي) يعني موږ په هغو ښه پوهېږو کوم چي قريشي کفار يې دبعث په هکله وايي پرتا او ستا په نبوت ملنډي او پېشاړي وهي، په دې کي د رسول الله لپاره تسلا او ډاډينه او دکفارو لپاره تهديد دی ﴿ وَمَآ أَنتَ عَلَيۡهِم بِجَبَّارٖۖ ﴾ او نه يې ته په دوی باندي زور کونکی (په ايمان راوړلو سره بلکه ته يو پندورکونکی مبلغ يې) ﴿ فَذَكِّرۡ بِٱلۡقُرۡءَانِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ ﴾ نو پند ورکوه په قرآن سره هغه چاته چي وېرېږي له وعيدونو (او وېرولو زما په عذابونو د آخرت سره، د سورت پای يې هم دقرآن په پندورکولو وفرمايو لکه چي پيل يې دقرآن په لوړه کړی وو ترڅو چي پيل او پای سره ښايسته او بدلی او متناسق وي.

---

([1]) دابن کثير مختصر ۳/ ۳۷۸

([2]) دابوالسعود تفسير ۵/ ۹۲

بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې دبیان اوبدیع کومې ښکلاوې شته لنډ یزېې داسې بیانیږي:

۱- اظهاردااضمارپه ځای کې لکه: ﴿ فَقَالَ ٱلْكَـٰفِرُونَ ﴾ چې ددې پرځای چې (فقالوا) راغلی وای اودغه پردوی باندې دکفردتسجیل لپاره راغلی دی.

۲- انکاري استفهام چې بعث لیرې اومستبعد ګڼي لکه: ﴿ أَءِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ﴾.

۳- لېږدېدل له پخواني کلام څخه هغه ته چې ترلومړي خورازيات بداوناوړه وي لکه ﴿ بَلْ كَذَّبُوا۟ بِٱلْحَقِّ ﴾ چې دغه ترلومړني تعجب ډېرفظیع اوناوړه دی ځکه چې دالله دآیتونوتکذیب اودهغه درسول چې په معجزاتو یې ملاتړشوی تکذیب کول دي

۴- مرسله مجمله تشبیه چې پدې کلام کې ده ﴿ كَذَٰلِكَ ٱلْخُرُوجُ ﴾ دمړو ژوندي کېدل یې له مړې ځمکې سره دنباتاتو په رازرغونولو کې تشبیه کړې ده.

۵- تمثيلي استعاره لکه داچې ﴿ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ ٱلْوَرِيدِ ﴾ دغه دنژدېوالي لپاره تمثيل دی لکه چې په پښتو کې وایې: (دوی سره نوک اووری دي).

۶- ایجازبالحذف لکه پدې آیت کې ﴿ عَنِ ٱلْيَمِينِ وَعَنِ ٱلشِّمَالِ قَعِيدٌ ﴾ اصل یې داچې (عن اليمين قعيدوعن الشمال قعيد) خوله لومړي څخه یې حذف کړی ځکه چې دوهم ورباندې دلالت کوي، او همداسې د ﴿ ٱلْيَمِينِ ﴾ او ﴿ ٱلشِّمَالِ ﴾ ترمینځ دطباق صنعت شته چې له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي

۷- تصریحي استعاره چې فرمایې ﴿ وَجَآءَتْ سَكْرَةُ ٱلْمَوْتِ بِٱلْحَقِّ ﴾ دبېخودي لفظ یې دهغه شدت اوتکلیف لپاره استعاره کړی کوم چې ناروغ یې دځنکدن په وخت کې ګالي.

۸- ناقص جناس لکه: ﴿ عَنِيدٍ ﴾ او ﴿ عَتِيدٌ ﴾ ترمینځ چې دنون اوتادتوروپه تغییرسره دي

۹- دطباق صنعت لکه چې د ﴿ نُحْىِۦ ﴾ او ﴿ وَنُمِيتُ ﴾ ترمینځ راغلی دی

۱۰- دفواصلو یووالی اوباریکه غیرتکلفي سجع لکه چې پدې سورت کې ډېرځایه لیدل کېږي مثلا: ﴿ ذَٰلِكَ يَوْمُ ٱلْوَعِيدِ ﴾ ﴿ مَّعَهَا سَآئِقٌ وَشَهِيدٌ ﴾ ﴿ فَبَصَرُكَ ٱلْيَوْمَ حَدِيدٌ ﴾ اوداچې ﴿ إِنَّا نَحْنُ نُحْىِۦ وَنُمِيتُ وَإِلَيْنَا ٱلْمَصِيرُ ﴾ ﴿ ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ ﴾ اوډېرنورچې دغه له بديعي محسناتوګڼل کېږي اوپه اوريدلوښه اغيزه پرېباسي.

دالله په مرسته د(ق) سورت تفسیربشپړشو.

***

## د (الذاريات) سورت مکي او شپېته آيتونه لري

### د سورت په وړاندي:

دغه مبارک سورت د نورو مکي سورتونو په شان د ايمان ستني ټينګوي او د خلګو پام د واحد قهار ذات قدرت ته راګرځوي او د تقوى او ايمان په تاداو (بنسټ) باندي عقيده بناکوي.

سورت په پيل کي له هغو بادونو څخه غږېږي کوم چي دوړي بادوي او بېړۍ له يو ځای نه بل ځای ته په درياب کي چلوي او هغه وريځي چي د باران درنې اوبه په اوږو وړي او هغه بېړۍ چي داوبو په سر د واحد ذات په ځواک او قدرت رواني وي او هغه سپېڅلي پرښتې چي د خلګو د چارو په تدبير ګمارلي شوي پدې څلورو شيانو لوړه اخلي چي قيامت ارومرو شته او خامخا به بعث او نشور راځي

ورپسې خبره د مکي کفارو لور ته لېږدي هغوی چي قرآن او آخرت دروغ ګڼي نو د دوی د نيوي ژوند او بيا د آخرت برخه ليک هلته چي په اور کي غورځول کېږي او په عذاب اخته کېږي بيانوي

بيا د متقيانو مؤمنانو ستاينه کوي چي دوی ته الله څرنګه اُخروي نعمتونو تيار کړي ځکه دوی په دنيا کي نيکوکار محسنين وو او دغه د قرآنکريم له اسلوب سره سم راوړي چي ترغيب او ترهيب او اعذار او انذار سره يو ځای بيانوي

هله د قدرت او وحدانيت له دلائلو غږېږي چي د کائناتو په دغه وېړه او پراخه ساحه مځکه آسمان غرونو او خورو کي ترسترګو کېږي يا داچي څرنګه يې د انسان په خور ابنکلي جوړښت او اغلي تکوين پنځولي (پيداکړي) دي دغه ګرد د رب العالمين په وتلي قدرت باندي څرګند دلائل دي

له دې هيسې د انبياوو عليهم السلام کيسې او د هغوی د بد مرغه او نامنونکو اُمتونو دريزونه راوړي او هغه هلاکتونه چي پردوی راپرېوتي بيانوي نو د ابراهيم او لوط عليهما السلام کيسه کوي بيا د موسى عليه السلام وروسته د عاديانو. ثموديانو او د نوح عليه السلام د قوم کيسه رااخلي د دغو کيسو په تکرار سره يادونه د پيغمبر عليه السلام تسليت او د پند اخيستونکو لپاره عبرت دی.

د سورت پای د هغه مقصد او غرض په بيانولو فرمايي کوم چي د انسان او پېري پيدا ينښت د هماغه لپاره شوی دی او هغه د الله معرفت ، پېژندګلوی عبادت او توحيد دی چي ګرد عبادات ، صدقات او اخلاص بايد يو ازي د همدغه ذات لپاره ترسره شي.

***

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ وَٱلذَّٰرِيَٰتِ ذَرۡوٗا ﴿١﴾ فَٱلۡحَٰمِلَٰتِ وِقۡرٗا ﴿٢﴾ فَٱلۡجَٰرِيَٰتِ يُسۡرٗا ﴿٣﴾ فَٱلۡمُقَسِّمَٰتِ أَمۡرًا ﴿٤﴾ إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَصَادِقٞ ﴿٥﴾ وَإِنَّ ٱلدِّينَ
لَوَٰقِعٞ ﴿٦﴾ وَٱلسَّمَآءِ ذَاتِ ٱلۡحُبُكِ ﴿٧﴾ إِنَّكُمۡ لَفِي قَوۡلٖ مُّخۡتَلِفٖ ﴿٨﴾ يُؤۡفَكُ عَنۡهُ مَنۡ أُفِكَ ﴿٩﴾ قُتِلَ ٱلۡخَرَّٰصُونَ ﴿١٠﴾ ٱلَّذِينَ هُمۡ فِي غَمۡرَةٖ
سَاهُونَ ﴿١١﴾ يَسۡـَٔلُونَ أَيَّانَ يَوۡمُ ٱلدِّينِ ﴿١٢﴾ يَوۡمَ هُمۡ عَلَى ٱلنَّارِ يُفۡتَنُونَ ﴿١٣﴾ ذُوقُواْ فِتۡنَتَكُمۡ هَٰذَا ٱلَّذِي كُنتُم بِهِۦ تَسۡتَعۡجِلُونَ
﴿١٤﴾ إِنَّ ٱلۡمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٖ وَعُيُونٍ ﴿١٥﴾ ءَاخِذِينَ مَآ ءَاتَىٰهُمۡ رَبُّهُمۡۚ إِنَّهُمۡ كَانُواْ قَبۡلَ ذَٰلِكَ مُحۡسِنِينَ ﴿١٦﴾ كَانُواْ قَلِيلٗا مِّنَ ٱلَّيۡلِ مَا
يَهۡجَعُونَ ﴿١٧﴾ وَبِٱلۡأَسۡحَارِ هُمۡ يَسۡتَغۡفِرُونَ ﴿١٨﴾ وَفِيٓ أَمۡوَٰلِهِمۡ حَقّٞ لِّلسَّآئِلِ وَٱلۡمَحۡرُومِ ﴿١٩﴾ وَفِي ٱلۡأَرۡضِ ءَايَٰتٞ لِّلۡمُوقِنِينَ ﴿٢٠﴾ وَفِيٓ

أَنفُسِكُمْ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ﴿٢١﴾ وَفِي السَّمَاءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوعَدُونَ ﴿٢٢﴾ فَوَرَبِّ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ إِنَّهُ لَحَقٌّ مِّثْلَ مَا أَنَّكُمْ تَنطِقُونَ ﴿٢٣﴾
هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ الْمُكْرَمِينَ ﴿٢٤﴾ إِذْ دَخَلُوا عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلَامًا قَالَ سَلَامٌ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ﴿٢٥﴾ فَرَاغَ إِلَىٰ أَهْلِهِ
فَجَاءَ بِعِجْلٍ سَمِينٍ ﴿٢٦﴾ فَقَرَّبَهُ إِلَيْهِمْ قَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴿٢٧﴾ فَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً قَالُوا لَا تَخَفْ وَبَشَّرُوهُ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ
﴿٢٨﴾ فَأَقْبَلَتِ امْرَأَتُهُ فِي صَرَّةٍ فَصَكَّتْ وَجْهَهَا وَقَالَتْ عَجُوزٌ عَقِيمٌ ﴿٢٩﴾ قَالُوا كَذَٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ إِنَّهُ هُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ
﴿٣٠﴾ ۞ قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ أَيُّهَا الْمُرْسَلُونَ ﴿٣١﴾ قَالُوا إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ ﴿٣٢﴾ لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّن طِينٍ ﴿٣٣﴾
مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِينَ ﴿٣٤﴾ فَأَخْرَجْنَا مَن كَانَ فِيهَا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٣٥﴾ فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٣٦﴾ وَتَرَكْنَا
فِيهَا آيَةً لِّلَّذِينَ يَخَافُونَ الْعَذَابَ الْأَلِيمَ ﴿٣٧﴾ ﴾ الذاريات: ١ ـ ٣٧

## لغتونه:

(الحبک) لاري د(حبيکة) جمع او هغه لکه (طريقة) لفظاً او معناً دی زجاج وايي چي حبک لاري بولي او محبوک په لغت کي هغه شي ته وايي چي ښايسته کارپرې شوی وي([1]) ابن الأعرابي وايي چي هر شی چي ښه او محکم وي هغه محبوک دی (الخراصون) د(خراص) جمع او د پردروغجن ته وايي (غمرة) پټونکی، برغولی (يهجعون) ويده کېږي هجوع دشپې خوب ته وايي (أوجس) احساس او شعور ته ويل کېږي (صرة) چيغه او شور ماشور (مسومة) نښانې شوي

تفسير:

﴿ وَالذَّارِيَاتِ ذَرْوًا ﴾ قسم دی په هغو بادونو چي تيتوي (الوزوي) خاوري او شګي په الوزولو سره (له يوځای نه بل ځای ته) ﴿ فَالْحَامِلَاتِ وِقْرًا ﴾ پس قسم دی په اوريځو پورته کونکو دا و بودرنو (دبارانونو په کوموکي چي دبشرژوندوي ﴿ فَالْجَارِيَاتِ يُسْرًا ﴾ پس قسم دی په کښتيو تلونکو په نرمي سره په سر داو بو (چي بنيادمان پکي سپاره وي) ﴿ فَالْمُقَسِّمَاتِ أَمْرًا ﴾ پس قسم دی په پرښتو وېشونکو دکارونو لويو په حکم دالله سره لکه ارزاق، باران او داسي نور په مينځ دانسانانو کي څکه هغوی هر يو يې دځانګړي چاري لپاره ګمارل شوي حضرت جبريل انبياوو ته وحی راوړي ميکائيل روزي او رحمت وېشي ،اسرافيل شپېلۍ پوکي او حضرت عزرائيل ساوي کاږي عليهم السلام جميعاً([2]) مفسرين کرام وايي الله په دې څېزونو څکه قسم اخيستی چي په دوی کي دالله په عجيبه صنع او قدرت باندي دلائل دي او وروسته دقسم ځواب راوړي چي ﴿ إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَصَادِقٌ ﴾ بېشکه هغه چي له تاسو سره يې وعده کاوو شي (چي هغه عبارت دی له ژوندي کولو پس له مرګه) خامخا يوه رښتوني وعده ده (پکي هيڅ دروغ نشته) ﴿ وَإِنَّ الدِّينَ لَوَاقِعٌ ﴾ او بېشکه چي جزاء دعمل خامخا واقع کېدونکي او راتلونکي ده، وروسته الله تعالي

---

([1]) البحر المحيط ٨/١٣٢
([2]) زاد المسير ٨/٢٩

بله لوره يادوي چي: ﴿ وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْحُبُكِ ﴾ اوقسم دی په آسمان خاوند دلارو (مزينو، اوټينګ جوړښت. ابن عباس رضی الله عنه وايي: معناداچي خاوندد ښايسته اومناسب جوړښت دی (۱) ﴿ إِنَّكُمْ لَفِي قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ ﴾ بېشکه تاسي ياست ای مشرکانو خامخاپه يوه خبره مختلفه ګډه وډه کي! (درسول الله په هکله څوک واياست چي هغه کوډګردی څيني بياواياست چي شاعردی اوځيني نور بيا هغه لېونی بولی اوداسي نوري اپلتي ﴿ يُؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ أُفِكَ ﴾ ګرزول کاووشي له دغه (ايمان په قرآن او محمد ﷺ) هغه څوک چي ګرزولی شوي دي (په علم دالله تعالی کي اوله نېکمرغي څخه محروم دي) ﴿ قُتِلَ الْخَرَّاصُونَ ﴾ لعنت ويل شوی دی په دروغ ويونکو(اټکل کونکو) باندي (چي وايي نبي ﷺ ساحر، دروغجن اوشاعردی. ابن الانباري وايي: قتل چي دالله له لوري اخبارشي هغه دلعنت په معنادي ځکه پرچاچي دالله لعنت وشي هغه دوژل شوي په مرتبه دی (۲) ﴿ الَّذِينَ هُمْ فِي غَمْرَةٍ سَاهُونَ ﴾ هغه کسان چي دوی په نهايت غفلت کي سهوکونکي غافل اوبېخبره دي (له قيامت نه) ﴿ يَسْأَلُونَ أَيَّانَ يَوْمُ الدِّينِ ﴾ سوال کوي منکران (په ملنډوله محمده څخه) کله به وي ورځ دانصاف (اوجزاء) الله ددوی په ترديدکي فرمايي: ﴿ يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُونَ ﴾ هغه ورځ چي دوی په اورباندي معذب شي (ورته وبه ويل شي) ﴿ ذُوقُوا فِتْنَتَكُمْ هَٰذَا الَّذِي كُنتُم بِهِ تَسْتَعْجِلُونَ ﴾ وڅکئ تاسي (خوندد) عذاب ستاسي دادی هغه (عذاب) چي وی تاسي چي په تلوار(جلتي) سره موغوښت (دغه عذاب په دنياکي په استهزاء سره) دغه وينابه ددوزخ دپرښتوله خواورته وشي وروسته بيا الله تعالی دنېکانومؤمنانوحال داسي بيانوي فرمايي: ﴿ إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴾ (بېشکه وېرېدونکي له الله اوپرهېزګاران به په جنت اوپه چينوکي وي (يعني ځښونکي داوبوددې چينوبه وي) معناداچي پرهېزګاران به په داسي باغونوکي وي چي هلته په خوراژره راښکونکي منظرېکي چينې بهېږي ﴿ ءَاخِذِينَ مَآ ءَاتَىٰهُمْ رَبُّهُمْ ﴾ اخيستونکي به وي هغو نعمتونو لره چي دوی ته ددوی رب ورکړي وي (له کرامت اوعزت څخه) ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُحْسِنِينَ ﴾ بېشکه دوی ووپخواله دې څخه (په دنياکي) محسنان اونېکي کونکي، بيادوی څه برخه نېکي: سي بيانوي ﴿ كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ ﴾ ووبه دوی چي په لږ برخه دشپې کي به وېده کېدل (وډېر وخت به بې لمنځونه کول، حسن بصري رحمه الله وايي: معناداچي دوی به دشپې قيام الليل کاوو لږبه ويده کېدل (۳) ﴿ وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴾ اوپه وخت دګهيځ (وختي کي) به وو دوی له الله نه به يي دګناهونو مغفرت غوښت، دوی له خپلي نېکي سره سره ځانونه ګنهګاران بلل ځکه به يي استغفارکاوو. ابوالسعودوايي

(۱) دخازن تفسير۴ /۲۰۰
(۲) زادالمسيرلابن الجوزي ۸/ ۳۰.
(۳) البحرالمحيط۸ /۱۳۵

دوی له دې سره سره چې خوب يې لږ او تهجد لمونځ يې زيات وو بيا هم په سحرګاه کې استغفار کاوو لکه چې کړی شپه يې په ګناهونو تېره کړې وي (۱) دغه دنېکانو دوهم صفت دی ﴿ وَفِىٓ أَمْوَٰلِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّآئِلِ وَٱلْمَحْرُومِ ﴾ او په مالونو ددوی کې حق او ونډه وه سوالګرو له او صبر کونکو له (يعني مسکين سوال نه کونکي له ) هغه برخه چې دوي دمحتاج سوال کونکي او مسکين سوال نه کونکي لپاره په ځان لازمه کړې وه دغه يې دريم صفت دی (۲) ﴿ وَفِى ٱلْأَرْضِ ءَايَٰتٌ لِّلْمُوقِنِينَ ﴾ او په ځمکې کې نښې دقدرت دالله تعالی دي يقين لرونکيو ته (هغوی چې الله په صنعت پېژني . ابن کثير وايي : معنا دا چې په ځمکه کې دالله سبحانه وتعالی په قدرت او وحدانيت باندي ځرګندي نښې شته ځکه چې ډول ډول نباتات پکې دي، حيوانات، غرونه، دښتي بېديا وي، درياب ونه، رودونه او د خلګو درنګونو ، ژبو او عقلونو يو له بله توپېر او اختلاف، نېکمرغي او بدمرغي او عجيبه نادر پيدا ايښتونه پکې شته ځکه نو وروسته فرمايي (۳) ﴿ وَفِىٓ أَنفُسِكُمْ ۚ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ﴾ او په خانونو نفسونو ستاسي کې هم علامې دعبرت دي آيا نو تاسي يې نه وينې چې ترې پند واخلی ؟ (او دالله په قدرت مو باور شي چې له مرګه وروسته هم خلګ راژوندي کولای شي . ابن عباس ﷺ وايي چې مقصد له دي نه هغه اختلاف دصورتونو ، ژبو ، رنګونو ، طبيعتونو، غوږونو ، سترګو او عقلونو او نورو عجائبو دي چې دبنيادم په وجود کې الله تعالی خوندي کړي دي. قتاده وايي : څوک چې دخپل ځان په خلقت کې فکر وکړي دا به ورته معلومه شي چې دده اندامونه او مفاصل د عبادت دکولو لپاره نرم او ملائم جوړ شوي دي ﴿ وَفِى ٱلسَّمَآءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوعَدُونَ ﴾ او په آسمان کې دی (سبب د ) رزق ستاسي (باران دی ) او هغه چې له تاسي سره يې وعده کړی شوي ده (دثواب او عذاب چې هغه هم هلته ليکل شوي . صاوي وايي : چې په آيت شريف کې امتنان ، وعدا و وعيد ټول شته (۴) ﴿ فَوَرَبِّ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ إِنَّهُۥ لَحَقٌّ مِّثْلَ مَآ أَنَّكُمْ تَنطِقُونَ ﴾ او قسم دی وي زما په رب د آسمان او ځمکي باندي بېشکه دا خبره چې وعده يې کړی شوي ده خامخا حقه او رښتيا ده په مثل دهغه حقيقت او واقعيت چې تاسي پرې خبري کوی (لکه چې تاسي په خبرو کولو کې کله چې خبري کوی شک نلری نو همداسي لازم دي چې په رزق او بعث کې هم شک ونکړی لکه چې يو څوک وو ايي دغه داسي حق دی لکه چې ته وينې او اورې (۵) دغه دتمثيل او تشبيه په توګه دی رزق هم لکه نطق له يو چا څخه بېلېدونکی نه دی په حديث شريف کې راغلي : که يو څوک له خپل رزق څخه وتښتي رزق به لکه مرګ ورپسي ورشي (۶) بيا الله تعالی دابراهيم ﷺ

---

(۱) ارشاد العقل السليم ۵-۲۴۰.

(۲) دغه دابن عباس رضی الله عنه څخه مشهور تفسير دی چې دغه ونډه پرته له فرضي زکات څخه دی هغه چې دمېلمانه اکرام دخپلوانو پالل او دمسکينانو لاس نيول پکې راځي چا بيا ويلي چې دغه فرضي زکات دی او دغه رايه دابن سيرين او قتاده رحمهم الله دی

(۳) مختصر ابن کثير ۳ /۳۸۴.

(۴) دصاوي حاشيه ۴ /۱۲۵

(۵) البحر المحيط ۸ /۱۳۷

(۶) قرطبي راوړی او دثعلبي اسناد دی

دمېلمنوکيسه درسول الله ﷺ دتسليت او ډاډيني لپاره داسي بيانوي: ﴿ هَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ ضَيْفِ إِبْرَٰهِيمَ ٱلْمُكْرَمِينَ ﴾ آيارسېدلی او راغلی دی تاته (ای محمده!) خبردمېلمنودابراهيم چي عزتمندوو(په نزددالله ) استفهام دتشويق لپاره اوداچي د کيسې شان سترتوب ته اشاره وشي راغلي دي لکه چي څوک وايي: آيافلانی خبره دي اورېدلی؟ ددې لپاره چي اورېدلوته يې تشويق کړي ابن عباس وايي مرادله مېلمنوڅخه جبرائيل، مېکائيل او اسرافيل عليهم السلام دي څکه يې عزتمندونومول چي دالله په وړاندي دکرامت خاوندان دي ﴿ إِذْ دَخَلُوا۟ عَلَيْهِ فَقَالُوا۟ سَلَـٰمًا ﴾ کله چي ورغلل دغه (پرښتې) هغه (ابراهيم) ته نوويې ويل سلام کوو موږ ه پر تاپه سلام کولو سره ﴿ قَالَ سَلَـٰمٌ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ﴾ وويل (ورته ابراهيم چي) سلام دي وي پرتاسو(اوپه زړه کي يې تېره شوه چي دوی) يوقوم ناآشنادی) يعني زه مونه پېژنم چي تاسوڅوک ياست ؟ ابن کثير وايي داچي ويې نه پېژندل څکه هغوی دپې مخوښايسته زلميانوپه بڼه چي دسترهيبت نښي ورباندي معلومېدې ورته راغلل(۱) ابوحيان وايي دابراهيم عليه السلام له حال سره مناسب دادی چي په مخاطبه کي يې داسي ورته نه وي ويلي چي زه مونه پېژنم څکه پداسي ويناکي بې ميلي اووحشت معلومېږي، ښايي دغه يې په زړه کي ويلي اويايې هم خپلوپلويانواوچوپريانوته ورو ، ويلي وي چي مېلمانه يې وانه وري (۲) ﴿ فَرَاغَ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ ﴾ پس ورغی خپل کورته (په منډه اوله مېلمنوګوښه پټ ؛ څکه چي دکوربه له ادابويودادی چي بې له دې چي مېلمه وغوږوي بايددهغه دمېلمستياپه چټکي سره اهتمام وکړي چي دمېلمانه په خبرولوکي ښايي مېلمه يې له کولوڅخه مانع شي اوپه څنډ راتلل ښايي په مېلمنو درانه شي ابن قتيبه وايي چي له دوی څخه په پټه ووت او(رواغ) هم دې ته وايي چي تلل راتلل په پټه ترسره شي (۳) ﴿ فَجَآءَ بِعِجْلٍ سَمِينٍ ﴾ نوراي يې ووړ خوسی تيار وريت کړی (دابراهيمؑ توله مالدراي غويان وه نويې يوچاغ خمټ دغواخوسی ددوی دزيات اکرام لپاره غوره او ورته کباب کړ ﴿ فَقَرَّبَهُۥٓ إِلَيْهِمْ قَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴾ نو ورنژدې يې کړهغوی ته ويې ويل ولي نه خوری ؟(يعني په ورين تندی يي ورته وويل مهرباني وکړئ وخورئ) ابن کثيروايي چي : په آيت شريف کي دتعبيرنرمښت اودحسن ادب تلطف دی بلکه دمېلمستيااداب يې په ښکلي انداز پېيلی دی چي هغه په ژروخت په ناپامه توګه ورته مېلمستياراوړه هسي نه چي يو خل يې پردوی احسان بارکړی وای چي زه درته مېلمستياتيار وم بل داچي هغه ښه غوښن چاغ سخوندر ورته کباب کړاونژدې يې ورته کېښودهسي نه چي يو ځل يې دمېلمستيادسترخوان اينښی وای اوبيايې دوی ته ويلای چي ورته رانژدې شئ بياداچي دوی ته يې حتمي حکم ونکړ چي خورئ !کوم چي په مېلمنو دروند تمامېږي بلکه دهېلي په ډول يې عرض اوتلطف په کلام کي راووړ چي ولي يې نه خوری؟ ! لکه چي يوڅوک چاته

(۱) دابن کثيرمختصر ۳/۳۸۵
(۲) البحرالمحيط ۸/۱۳۹
(۳) دابن جوزي تفسير ۸/۳۶

وايي كه غوارې چي احسان اوصدقه وكړې نو ويې كړه (١) ﴿ فَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً ﴾ پس پټه كړه (ابراهيم) په زړه كي له دوى نه وېره (كله چي يې ددوى نه خوړل وليدل) ﴿ قَالُوا۟ لَا تَخَفْ ﴾ دوى ورته وويل: مه وېرېږه (موږ ستادرب استازي يو) ﴿ وَبَشَّرُوهُ بِغُلَٰمٍ عَلِيمٍ ﴾ اوزېرى يې وركړده ته په يوهلك ښه عالم هوښيار سره (چي دده له مېرمنې ساره ﷺ څخه به تولد كېږي ابوحيان وايي چي پدې كي دازېرى هم شته چي هغه به لوئېږي اوعالم به شي (٢) جمهورعلماء بياوايي چي دغه اسحاق عليه السلام دى څكه چي الله دهود په سورت كي فرمايي ﴿ فَبَشَّرْنَٰهَا بِإِسْحَٰقَ وَمِن وَرَآءِ إِسْحَٰقَ يَعْقُوبَ ﴾ (هود٧١) ﴿ فَأَقْبَلَتِ ٱمْرَأَتُهُۥ فِى صَرَّةٍ ﴾ پس مخ يې ورواړاوو ښځي دده په حيرانتياسره. حضرت ساره ﷺ كله چي زېرى واوري په زوږ اوشورماشوركي ددوى لوري ته رادرومي. مفسرين كرام وايي چي هغه دانګړپه يوه څنډه كي وه كله چي يې خبر واورېدوپه يوه چيغه دوى ته راغله چي دخبري تفسيرڅني وپوښتي ﴿ فَصَكَّتْ وَجْهَهَا ﴾ نو وې واهومخ خپل (په څپېړه) لكه څرنګه چي دښځودوداو رواج وي چي دتعجب په وخت كي مخ په څپېړه وهي. ابن عباس ﷺ وايي مخ يې له ډېره تعجبه په څپېړه وواهو لكه چي ډېري ښځي له يونادركارليدلوڅخه همداسي كوي(٣) ﴿ وَقَالَتْ عَجُوزٌ عَقِيمٌ ﴾ ويې ويل چي زړه بوډۍ يم شنډه (څنګه به زه زوى وزېږوم ؟) امام جلال وايي چي دبي بي ساري عمرهغه وخت ٩٩ كاله اودحضرت ابراهيم ﷺ يوسل كاله وو(٤) ﴿ قَالُوا۟ كَذَٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ ﴾ وويل دغو(ملائكو) همداسي (لكه چي زېرى مودركړ) ويلي دي رب ستا(په ازل كي نوهيڅ تعجب مه كوه (اومه پكي شك شبه لره) ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْحَكِيمُ ٱلْعَلِيمُ ﴾ بېشكه هغه (الله) ښه حكمت والا(پخپل صنعت كي) ښه خبردار دى (په مصلحتونو دخلكو) ﴿ قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ أَيُّهَا ٱلْمُرْسَلُونَ ﴾ وويل:(ابراهيم) نوڅه كار(شان) دى ستاسواى رالېږل شويو(له جانبه دالله). بيضاوي وايي كله چي دى وپوهېدودغه پرښتې دي اودوى داسي په اجتماعي ډول نه راښكته كېږي مګرچي كومه ستره پېښه كېدونكي وي نوبيې څكه ترې پوښتنه وكړه (٥) ﴿ قَالُوٓا۟ إِنَّآ أُرْسِلْنَآ إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ ﴾ وويل: دوى بېشكه موږ چي يورالېږل شوي يو طرف ديوقوم ګنهګار (كافرانو) ته ،چي دلوط ﷺ قوم دى هغه چي تركردوبداوناولي كارونوته يې ملا تړلې ده لواطت كوي اوكفر اوعصيان يې خپل كړى دى) ﴿ لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّن طِينٍ ﴾ لپاره ددې چي ولېږو(وولو ) پرهغوى باندي تيږي له ختو(پخوشوو په اورلكه پخې خښتي ،دغه تيږى له ختوچي سجيل ورته ويل كېږي. ابوحيان وايي چي هغه خته چي په اور پخه شي

---

(١) دابن كثير مختصر ٣ /٣٨٥
(٢) البحر المحيط٨ /١٨٩
(٣) دابن كثير مختصر ٣ /٣٨٥
(٤) دجلالين حاشيه ٤ /١٣٦
(٥) دبيضاوي تفسير٤ / ١٢٧

اولکه ډبره وګرزي هغې ته سجّيل وايي (۱) ﴿ مُّسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ ﴾ نښان داره شوي (په نامه دهغه چاچي پرې ويشتل کېږي) په نزددرب ستا(دهريوه نوم ورباندي کښل شوی دی) ﴿ لِلْمُسْرِفِينَ ﴾ لپاره دحد تېرېدونکو (په کفراوفجورکي. صاوي وايي چي دلوط ﷺ په کليوکي شپږلکه تنه وو اوجبريل عليه السلام خپل کوڅر ترڅمکه لاندي کړدهغه کلی يې له بېخه راوايستل آسمان ته يې اوچت کړل آن تردې چي غږونه يې آسماني اوسېدونکواورېدل اوبيا يې سرپه څېږه له پاسه راوغورځول اوپه هغوکسانوباندي يې ډبري وويشتلې کوم چي له کليو بهر وتلي وو(۲) ﴿ فَأَخْرَجْنَا مَن كَانَ فِيهَا مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ بيا راوايستل موږ هغه څوک چي وو پدي کليوکي له ايمان لرونکيوڅخه (څوهلاک نشي) ﴿ فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ ٱلْمُسْلِمِينَ ﴾ پس بياونه موندە موږ پدغو کليوکي پرته له يوه کوره دمسلمانانو(چي دلوط ﷺ کورنۍ وه مجاهدوايي چي يولوط ﷺ اودوه يې لوڼي وې ، دآيت شريف مقصددمسلمانانولږوالی(قلت) دی چي وژغورل شول اودکفاروډېروالی اوکثرت دی چی هلاک شول. امام جلال ليکي چي دغه ژغورل شوي يې په ايمان اواسلام وستايل يعني دوی هغه څوک ووچي په زړونويې ايمان اوباور درلودپه اندامونويې طاعات اوعبادات ترسره کول(۳) ﴿ وَتَرَكْنَا فِيهَآ ءَايَةً ﴾ اوپرېښوده موږ په هلاکت ددغو(کليوکي) يوه نښه (دعبرت چي سرپه څېږه مو راوغورځول اوتراوسه يې لادتباهي علائم شته) ﴿ لِّلَّذِينَ يَخَافُونَ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴾ لپاره دهغو کسانوچي وېرېږي له عذابه دردناک څخه (ترڅوله بدوکارونوڅخه ځان وژغوري دوی ورباندي عبرت اخلي. ابن کثيروايي چي ددې کلام ﴿ وَتَرَكْنَا فِيهَآ ءَايَةً ﴾ معناداچي موږ دوی دعبرت وړ و ګرزول اوددوی هستوګنځي موپه بدبويه ټاپو (جزيره) واړول اوپه دې کي دهغومؤمنانولپاره چي له دردناک عذابه وېرېږي عبرت دی(۴).

تنبيه:

امام رازي ليکي چي دابراهيم ﷺ دمېلمنوپه کيسه کي درسول الله لپاره ډاډينه اوتسليت دی چي له ده پرته نورنبيان هم دغسي ووداابراهيم عليه السلام غورچاڼ يې ددې لپاره وکړچي هغه دانبياوو شيخ اوسپين روبی وونبي عليه السلام په ځيني شيانوکي دهغه په سنت ولاړ دي اوپدې کيسه کي درسول الله دقوم لپاره انذاردی چي څرنګه دلوط ﷺ په قوم ډبري راووربدې نودغه دهر ګمراه کافربرخه ليک کېدای شي(۵)

(۱) البحرالمحيط ۸/۱۴۰ – دغه سجّيل ښايي د(سنګ ګل) معرب وي اوهغه ډبره اوخته ښيي (ژباړونکی).
(۲) دصاوي حاشيه ۴/۱۲۲
(۳) دجلالين تفسير.
(۴) دابن کثيرمختصر ۳/۳۸۵
(۵) کبيرتفسير ۷/۲۲۲

الله تعالی فرمايي:

﴿ وَفِي مُوسَىٰٓ إِذْ أَرْسَلْنَٰهُ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ بِسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ ﴿٣٨﴾ فَتَوَلَّىٰ بِرُكْنِهِۦ وَقَالَ سَٰحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ ﴿٣٩﴾ فَأَخَذْنَٰهُ وَجُنُودَهُۥ فَنَبَذْنَٰهُمْ
فِي ٱلْيَمِّ وَهُوَ مُلِيمٌ ﴿٤٠﴾ وَفِي عَادٍ إِذْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ ٱلرِّيحَ ٱلْعَقِيمَ ﴿٤١﴾ مَا تَذَرُ مِن شَيْءٍ أَتَتْ عَلَيْهِ إِلَّا جَعَلَتْهُ كَٱلرَّمِيمِ ﴿٤٢﴾
وَفِي ثَمُودَ إِذْ قِيلَ لَهُمْ تَمَتَّعُوا۟ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿٤٣﴾ فَعَتَوْا۟ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ فَأَخَذَتْهُمُ ٱلصَّٰعِقَةُ وَهُمْ يَنظُرُونَ ﴿٤٤﴾ فَمَا ٱسْتَطَٰعُوا۟ مِن
قِيَامٍ وَمَا كَانُوا۟ مُنتَصِرِينَ ﴿٤٥﴾ وَقَوْمَ نُوحٍ مِّن قَبْلُ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمًا فَٰسِقِينَ ﴿٤٦﴾ وَٱلسَّمَآءَ بَنَيْنَٰهَا بِأَيْي۟دٍ وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ
﴿٤٧﴾ وَٱلْأَرْضَ فَرَشْنَٰهَا فَنِعْمَ ٱلْمَٰهِدُونَ ﴿٤٨﴾ وَمِن كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٤٩﴾ فَفِرُّوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ إِنِّي لَكُم
مِّنْهُ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٥٠﴾ وَلَا تَجْعَلُوا۟ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ إِنِّي لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٥١﴾ كَذَٰلِكَ مَآ أَتَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّن
رَّسُولٍ إِلَّا قَالُوا۟ سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ ﴿٥٢﴾ أَتَوَاصَوْا۟ بِهِۦ بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ ﴿٥٣﴾ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ فَمَآ أَنتَ بِمَلُومٍ ﴿٥٤﴾ وَذَكِّرْ فَإِنَّ
ٱلذِّكْرَىٰ تَنفَعُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٥٥﴾ وَمَا خَلَقْتُ ٱلْجِنَّ وَٱلْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴿٥٦﴾ مَآ أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ وَمَآ أُرِيدُ أَن يُطْعِمُونِ
﴿٥٧﴾ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلرَّزَّاقُ ذُو ٱلْقُوَّةِ ٱلْمَتِينُ ﴿٥٨﴾ فَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ ذَنُوبًا مِّثْلَ ذَنُوبِ أَصْحَٰبِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُونِ ﴿٥٩﴾ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ
كَفَرُوا۟ مِن يَوْمِهِمُ ٱلَّذِي يُوعَدُونَ ﴿٦٠﴾ ﴾ الذاريات: ٣٨ ـ ٦٠

مناسبت:

کله چي الله تعالی دابراهیم علیه السلام دمېلمنو کیسه هغه چي دلوط علیه السلام دقوم دهلاکت لپاره وراستولی شوي وو یاده کړه ورپسې یې دنورو سرکښه قومونو کیسې راوړې چي هغه دفرعون اولښکریانو یې ،دعادیانو اوثمودیانو اودنوح علیه السلام دتېرکیسې دي ترڅو چي درسول الله لپاره تسلیت اوډاډینه اودپنداخیستونکو لپاره عبرت شي چي څرنګه الله له خپلو اودخپلو استازو او پیغمبرانو له دښمنانو څخه کسات اخلي ورپسې الله دخپل قدرت اووحدانیت دلائل یادوي اودسورت پای دظالمانو لپاره په اخطار ورکولو بشپړوي

لغتونه:

(نبذناهم) غورځولي مودي دوي (الیم) بحر(ملیم) ملامت کړی شوی (الرمیم) وروست اوله مینځه تللی څیز، زجاج وایې چي رمیم وچه پاڼه چي ماته اوزړېدلي کونډي کېږوي او(عظم الرمیم) هغه وروست هډوکي ته وايې چي ببخي زوړشوی وي (الماهدون) فرش غوړونکی تمهید دیوشي سمولو اوبرابرولو ته وايې (ذنوبا) دډال په زورسره دعذاب ونډي اوبرخي ته ویل کېږي.

تفسیر:

﴿ وَفِي مُوسَىٰٓ إِذْ أَرْسَلْنَٰهُ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ ﴾ (اوپرې ایښې دي موږ وېرېدونکو ته علامې دقدرت) په (کیسه د ) موسی کي کله چي وروموله بېږل دغه (موسی) طرف دفرعون ته ﴿ بِسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ ﴾ په برهان واضح دلیل سره ﴿ فَتَوَلَّىٰ بِرُكْنِهِۦ ﴾ بیانومخ واړاوو(فرعون) له ایمان راوړلو په موسی) سره له قوت زور

اولښکرو خپلو. مجاهد وايي چي دغه د الله دښمن پخپلو ملګرو غښتلی شو([1]) مقصد دا چي فرعون له دې سببه چي په لښکرو درلود لو پیاوړی وو له ایمان راوړلو یې مخ واړاوه ځکه هغه لکه دده لپاره چي دوداني ستني وي او هغه ته یې لکه تکیه کول داسي حیثیت درلود ﴿ وَقَالَ سَٰحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ ﴾ او وویل (فرعون) چي دغه (موسی) کوډګر او یا لېونی دی) یعني دغه معجزې یې دده ښکارندوی دي چي دی کوډګردی او دغه د نبوت دعوی کول یې د لېونتوب نښه ده، دغه یې د خپل قوم د سترګو پټولو (تمویه) لپاره وویل هسي نه چي د موسی ﷺ په رښتنولي کي یې شک درلود([2]) ﴿ فَأَخَذْنَٰهُ وَجُنُودَهُۥ ﴾ نو ونیو موږ دغه (فرعون) او لښکر دده ﴿ فَنَبَذْنَٰهُمْ فِى ٱلْيَمِّ ﴾ نو وغورځول موږ دوی په سیند کي (کله چي موږ یې په غصه کړو او زموږ د نبي تکذیب یې وکړ ﴿ وَهُوَ مُلِيمٌ ﴾ او هغه ملامت شوی وو (په کفر او طغیان سره، کله چي د فرعون کیسه پای ته ورسېده د (عاد) کیسه یې ورپسې راوړه چي: ﴿ وَفِى عَادٍ إِذْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ ٱلرِّيحَ ٱلْعَقِيمَ ﴾ (او پرې ایښي دي موږ علامې د قدرت) په کیسه د (عاد کي کله چي ومولېږه پر دوی باندي شنډ باد (چي خیر او برکت یې نه درلود، نه پکي باران وو او نه تلقیح یوازي د بربادي او هلاکت لپاره وو هغه چي (دَبُور) یې بولي په حدیث شریف کي راځي چي: ما ته په (صبآء) باندي بری راکول شوی او عادیان په (دَبُور) هلاک شوي دي. مفسرین کرام وایې: دغه باد ته یې عقیم ځکه وواېو چي لکه شنډه مېرمن چي اولادنه زېږوي دغه باد هم بې ښمره او بې ثمره وو، نه یې وریځي شړلې چي باران واوروي او نه یې هم ونې تلقیح کولې نو دغه بې ښېګڼي باد یې له شنډي ښځي سره تشبیه کړ ﴿ مَا تَذَرُ مِن شَىْءٍ أَتَتْ عَلَيْهِ ﴾ نه به پرېښود دغه باد هیڅ شی (له نفس او ماله) چي وابه الوت په هغه باندي (چي د الله به یې د هلاکت اراده وه) ﴿ إِلَّا جَعَلَتْهُ كَٱلرَّمِيمِ ﴾ مګر خو به یې ګرزاوه لکه وچ زوړ رژېدلی (وابښه توټې توټې) ابن عباس ﷺ وايي رمیم زوړ رژېدلي ته وايي او سدي وايي هغه دوړو، ګرد، غبار او خاوروته وايي لکه چي الله فرمايي ﴿ تُدَمِّرُ كُلَّ شَىْءٍۭ بِأَمْرِ رَبِّهَا ﴾ (الاحقاف ٢٥). مفسرین کرام لیکي هغه باد چي پر دوی الله راالوزولی وو د صرصر سخت باد وو چي پر له پسې اته ورځي چلېدو ودانی. به یې نړولې او خلک به یې آسمان ته او چتول او داسي به هغوی معلومېدو لکه واړه مرغان چي په هوا الوتي وي او بیا به یې سارہ بې سا په ځمکه ویشتل ﴿ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ﴾ (الحاقة ) ورپسې الله تعالی د ثمود یانو د هلاکت پېښه داسي بیانوي چي ﴿ وَفِى ثَمُودَ إِذْ قِيلَ لَهُمْ تَمَتَّعُوا۟ حَتَّىٰ حِينٍ ﴾ او پرې ایښي مو دي علامې د قدرت په ) کیسه د ثمود کي کله چي دوی ته وویل شو (وروسته له هلاکته داوښي) نفع واخلئ تاسي تر یوه وخته (چي درې ورځي دي لکه

---

([1]) المختصر ابن عباس وایې (برکنه) یعني په قوت او سلطان خپل موږ په تفسیر کي دواړه وېناوي ځای کړي دي.
([2]) (او) توری د شک لپاره استعمالېږي او خیني مفسرینو هغه د او په معنا اخیستی دی یعني هغه کوډګر او لېونی دی ځکه لعین دوه شیان سره ملګري کړل چي (ان هذا الساحر علیم) او ویې ویل: (ان رسولکم الذی أرسل الیکم لمجنون) دغه د قرطبي غوره دی الوسي وایې چي دغه تأویل ته حاجت نشته ځکه فرعون لکه (حرباء) غوندي هرډول خان کاوو.

چي په هود کي تېرشوچي: ﴿فَقَالَ تَمَتَّعُوا فِي دَارِكُمْ ثَلَٰثَةَ أَيَّامٍ﴾ ﴿فَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ﴾ نو سرېې وغړاوو له امره حکمه درب خپل (او دپېغمبر له لاربشوونوېې څنګ وکړ او ناقه يې ووژله) ﴿فَأَخَذَتْهُمُ الصَّٰعِقَةُ﴾ نو ونيول دوی تکي (دتندرعذاب هلاکونکي چيغي دعذاب) ﴿وَهُمْ يَنظُرُونَ﴾ او دوی به ورته کتل (او هغه به يې ليدل څکه چي په رڼا ورځ ورته راغی. ابن کثيروايي دوی درې ورځي دعذاب انتظاروکړ او څلورمه ورځ په سهارکي ورته عذاب راغی (۱) الوسي وايي صالح عليه السلام دوی ته وروسته له دريوورځود هلاکت وعده ورکړه او ورته يې وويل سبابه مومخونه ژېړشي بل سبابه سره شي او په دريمه ورځ به تک توروا وړي او بيابه درته عذاب راورسېږي کله چي دوی دغه نښي نښانې وليدلې نو يې وپتېيله چي صالح عليه السلام ووژني الله تعالی هغه وژغورل او په څلورمه ورځ پردوی باندي تکه راپرېوته چي آسماني اور ووچابياويلي چي آسماني چيغه وه او هلاک شول (۲) ﴿فَمَا اسْتَطَٰعُوا مِن قِيَامٍ وَمَا كَانُوا مُنتَصِرِينَ﴾ نوبيانه توانېدل دوی چي پورته شي (له عذابه وتښتي) او نه وو دوی بدل اخيستونکي (له موږه مقابله کونکي داالله له عذابه سره) ورپسې الله تعالی دنوح عليه السلام کيسه داسي بيانوي ﴿وَقَوْمَ نُوحٍ مِّن قَبْلُ﴾ (او هلاک کړي وو موږ) قوم دنوح پخواله دې (اهلاک دقومونو) ﴿إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا فَٰسِقِينَ﴾ بېشکه دوی ووقوم فاسقان (وتونکي له حدا وفرمانه چي کفراوطغيان يې خوښ کړی وو) کله چي ددروغجنوګڼونکو قومونودهلاکت بيان وشونو الله دلته د خپل قدرت اووحدانيت بيان داسي فرمايي ﴿وَالسَّمَاءَ بَنَيْنَٰهَا بِأَيْيدٍ وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ﴾ او آسمان مو موجود کړی دی په أيدي (دقدرت خپل) او بېشکه موږ خامخاپراخونکي يو. ابن عباس وايي (بأيد) معناپه قوت سره (۳) ﴿وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ﴾ او موږپراخونکي يو په پيدايښت دآسمان کي څکه چي ځمکه او هغه هوا اوبه چي ور باندي راچاپېردي آسمان ته لکه يوه کړه غوندي ده چي پراخه بېدياکي لوېدلې وي لکه چي په ځينو احاديثوکي هم راغلي دي (۴) ابن عباس وايي چي (لموسعون) معناداچي موږ وس او طاقت لرو له (وسع) څخه اخيستل شوی دی ﴿وَالْأَرْضَ فَرَشْنَٰهَا فَنِعْمَ الْمَٰهِدُونَ﴾ (او ځمکه مو غوړولي ده نو موږ ښه غوړونکي يو) يعني ځمکه موستاسي داستقرار او مېشت لپاره غوړولي ترڅوتاسي يې له هري لاري ګټه واخلئ، او ډول ډول کښتونه ورباندي وکړئ دغه دځمکي له ګرويت سره منافي نه دی دغه ګرويت دمځکي يومنل شوی حقيقت دی خوله ګرويت سره سره دومره پراخه او وېړه ده چي غرونه، درې، دښتي او بېدياوي پکې دي څکه الله فرمايي ﴿فَنِعْمَ الْمَٰهِدُونَ﴾ يعني ښه ويړونکي يو دجمعي صيغه دتعظيم

---

(۱) دجمل حاشيه ۴/ ۲۰۷

(۲) روح المعاني ۲۷/ ۱۲

(۳) نفس المرجع.

(۴) دابن الجوزي تفسير ۸/ ۴۰

لپاره ده ﴿ وَمِن كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ ﴾ اوله هر څېز څخه پيدا کړي دي موږ جوړې دوه قسمه مختلفي نراوښځه ، تروه اوخواږه اوداسي نور(۱) ﴿ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴾ دپاره ددې چې تاسي پند واخلی ، دالله جل جلاله عظمت وپېژنی اوورباندي ايمان راوړی چي د ازواجو پيداکونکی واحداو لاشريک ذات دی ﴿ فَفِرُّوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ اووتښتئ (رجوع وکړئ) په طرف د الله (په طاعت سره توحيدېږ ومنئ ابوحيان وايي چي امرپه رجوع سره امرپه ايمان کي د داخلېدلو دی اوداچي په تېښته سره يې ترې تعبير فرمايلی چي پدې تنبيه وشي چي دخلګوله شا عذاب اوعقاب دی داسي څېزدی چي تېښته ترې لازمه ده دلته يې پدغه لفظ کي تحذير او استدعاداوړه نغښتي دي اومثال يې درسول الله هغه وېناده چي فرمايي : (لاملجأولامنجی منک الا اليک)(۲) يعني نه دپناه اونه هم دنجات ځای شته پرته ستاله جنابه) ابن الجوزي وايي معناداچي وتښتئ له هغه څه څخه د چي کفر، عصيان اوعقاب پرې لازمېږي تهغه لوري ته چي هلته دطاعت او ايمان ثواب شته(۳) ﴿ إِنِّي لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ ﴾ بېشکه زه تاسي ته له طرفه دهغه (الله) وېرونکی (دعذاب اوانتقام ) يم ﴿ مُّبِينٌ ﴾ ښکاره (زماخبره سپينه ده په تحقيق سره الله تعالی ماته څرګندي معجزې راکړي دي ﴿ وَلَا تَجْعَلُوا۟ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ ﴾ اومه ګرزوئ (مه شريکوئ تاسي له الله سره بل معبود(له بشراوحجرڅخه) ﴿ إِنِّي لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴾ بېشکه زه تاسي ته له طرفه دهغه (الله) وېرونکی ښکاره يم، دغه لفظ يې مکررڅکه راووړچي تاکيداودشرک د خطر لپاره تنبيه وښيي. خازن وايي چي دغه لفظ دطاعت له امرسره جوخت اودشرک له نهی سره يو ځای څکه رامکرر کړچي داوښيي ايمان پرته له عمل څخه ګټورنه دی لکه چي عمل پرته له ايمان څخه ګټه نلري اوداچي بشپړبرياليتوب اونجات پدې کي دی چي دواړه سره مل اويوځای وي(۴) ﴿ كَذَٰلِكَ مَآ أَتَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا قَالُوا۟ سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ ﴾ هم داسي (چي وايي تاته قوم ستاساحراو مجنون اوستا تکذيب کوي) ندی راغلی هغوکسانوته پخواله دوی څخه هيڅ رسول مګرخوهغوی ويل چي دی ساحر (کوډګر) دی يالېونی دی ، دغه درسول الله ﷺ لپاره تسليت اوډاډينه ده ﴿ أَتَوَاصَوْا۟ بِهِۦ ﴾ آياوصيت کړی دوی يوبل ته پدې خبره سره (چي تکذيب به کوي؟) استفهام ددوی له اجتماع څخه دی چي څرنګه يې پدې ناکاره خبره کي سره

---

(۱) دکائناتوعظمت اوسترتوب ته دعقل اوعبرت په سترګه وګوره دغه ځمکه چي موږ ورباندي اوسو دکائناتوپه وړاندي لکه يوه ذره غونډي دی دغه سترکائنات چي پراخوالی يې له الله پرته هيچاته نه دی معلوم يوازي الله چي کائنات يې پنځولي اوانسان يې پيداکړی وړباندي خبردی کله چي دغه آيت (وانالموسعون) لولې پکي عقل وچلوه ترڅوچي په زړه اوژبه له تسبيح کونکوڅخه وګڼل شې.

(۲) دغه دابن زيدقول دی اومجاهد وايي مراد په دې کي متقابلات دي لکه نراوښځه ، آسمان اوځمکه ، لمراوسپوږمی ، شپه اوورځ ، رڼااوتياره ، خيراوشراونورامثال يې دغه دطبري غوره ده څکه چي دالله په عظمت خورازيات دلالت کونکي دي

(۳) البحرالمحيط ۸/ ۱۴۲

(۴) دابن الجوزي تفسير ۸/ ۴۷

غونده کړي ده؟ وروسته بیا له دغي نفی او توبیخ څخه کلام داسي لېږدي چي نه داسي نه دی ﴿ بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ ﴾ بلکه هم دوی دي قوم سرکښان، دوی خپلي سرکښي دغه تکذیب او عصیان ته اړ ایستلي دي ځکه دوی هم هماغسي ویناوي کوي لکه چي پخوانیو مکذبینو به کولې ﴿ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ ﴾ پس مخ وګرزوه له دوی څخه (ای محمده!) ﴿ فَمَآ أَنتَ بِمَلُومٍ ﴾ پس نه یې ته هیڅ ملامت کړی شوی (ځکه چي امانت دي اداکړی او رسالت دي تبلیغ کړی په نصیحت او لارښوونه کي دي زیار ایستلی دی) ﴿ وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ ﴾ او تل نصیحت کوه پس بېشکه چي ذکرپندګټه رسوي مؤمنانو ته (دمؤمنانو په زړونو نصیحت اثر کوي، بیا الله تعالی دمخلوقاتو له پیدا ابښت څخه مقصد داسي بیانوي چي ﴿ وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴾ او ماندي پیدا کړي پېریانان او انسانان مګر لپاره ددې چي دوی زما عبادت وکړي (په توحیدمي ومني نه ددې لپاره چي د دنیا راټولولو لپاره ژوند تېر کړي. ابن عباس رضی الله عنه وایي ﴿ لِيَعْبُدُونِ ﴾ معناداچي مګر لپاره د دې چي زما عبادت وکړي هغه که طوعًا او که کرهًا. مجاهد وایي معناداچي ما وپېژني (۱) امام رازي وایي کله چي الله تعالی دمکذبینو حال بیان کړ ورپسې یې دا آیت شریف وفرمایو چي ددوی ناروا کار بیان کړي ځکه چي د الله تعالی عبادت یې پرې ایښی سره له دې چي دوی دعبادت لپاره پیدا شوي دي (۲) ﴿ مَآ أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ ﴾ او اراده نلرم له دوی څخه دهیڅ رزق روزي (ماله او خپلو خانونوته او یا نوروته بلکه زه روزي رسان یم) ﴿ وَمَآ أُرِيدُ أَن يُطْعِمُونِ ﴾ او زه اراده نلرم ددې چي دوی ماله طعام راکړي (یا زما مخلوق لره طعام ورکړي زه غني او ستایلی شوی ذات یم. بیضاوي وایي مقصد له دې څخه دا بیانول دي چي زما شان او حال له دوی سره دبادارانو او مریونو په شان نه دی چي کوم باداران خپل مریونه د معاش دپیداکولو لپاره په کاروي (۳) ګواکي چي الله فرمایي زه نه غوارم له دوی څخه داسي مرسته تر لاسه کړم لکه چي باداران یې له خپلو مریونو څخه لاس ته راوړي نو دوی دي هغه څه ته مخه کړي کوم چي دهغه لپاره پنځول شوي دي ﴿ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ﴾ بېشکه الله هم دی ښه رزق ور کوونکی دی (بندګانوته اوددوی حاجت روادی دلته یې دپروردګار هغه سپېڅلی نوم چي دګردو کمالیه صفاتو مستجمع (ټولګه) دی راوړ او دجملي تاکید یې په (ان) او منفصل ضمیر سره وفرمایو ترڅو خلګو اوهام دروزي په هکله له نورو څخه واوو څخه راوګرزوي او په الله جل جلاله یې اعتماد او ډېسا ټینګه کړي ﴿ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ ﴾ څښتن دقوت محکم او مضبوط دی (چي ضعف او ناتواني ورته نه رسېږي. ابن کثیر وایي چي الله ﷻ ددې اخبار و فرمایو چي الله دوی ته

(۱) دقرطبي تفسیر ۱۷/ ۵۵
(۲) تفسیر امام رازي ۷/ ۲۸۵
(۳) دبیضاوي تفسیر ۴/ ۱۲۸

اړنه دی بلکه دوی په ټولو احوالوکي ده ته اړاومحتاج دي الله ددوی خالق اورازق دی په حديث قدسي کي راغلي دي چي: ای بني آدمه زما دعبادت لپاره ځان فارغ کړه ستاسينه به له غنا (بډايي) څخه ډکه کړم اوکه داسي ونه کړې سينه به دي له کاراوزياره ډکه اوفقربه درسره ملګری وي[1] ﴿ فَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذَنُوبًا مِّثْلَ ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ ﴾ پس بېشکه هغوکسانولره چي ظلم يې کړی دی (په نفسونو خپلو اوپه بل چا) حصه د عذاب دی په مثل دحصې دعذاب ديارانوهلاک کړی شوي ددوی (لکه قوم دنوح اوعاديان او ثموديان)

﴿ فَلَا يَسْتَعْجِلُونِ ﴾ پس دوی دي په مابانديتلوارنه کوي (دعذاب که يې چېري وروستی کړم ځکه هغه خامخا راتلونکی دی که ژروي که وروسته ﴿ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِن يَوْمِهِمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ﴾ پس افسوس هلاکت خرابي سخت عذاب دی هغو کسانوته چي کافران شوي دي له ورځي دعذابه ددوی څخه هغه ورځ چي وعده يې ورسره کړی شوي ده (چي دقيامت ورځ ده).

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱ - دطباق صنعت لکه ﴿ وَفِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ ﴾ ځکه چي سائل عبارت له غوښتونکي اومحروم بياعبارت له پټ خولي بېوزله (متعفف) څخه دی.

۲ - دخبرتاکيد په لوړه (قسم) (ان) او(لام) سره لکه ﴿ فَوَرَبِّ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ إِنَّهُ لَحَقٌّ ﴾ دغه ډول ته انکاري تاکيدوايي ځکه چي مخاطب له دې څخه منکردی.

۳ - دتشويق اوتفخيم اسلوب لکه ﴿ هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ الْمُكْرَمِينَ ﴾.

۴ - استعاره لکه چي فرمايي ﴿ فَتَوَلَّىٰ بِرُكْنِهِ ﴾ رکن يې دلښکرلپاره استعاره کړځکه چي په هغوی باندي تکيه اوقوت موندل کېږي اويادغه دقوت اوشدت لپاره استعاره دی.

۵ - عقلي مجازچي ﴿ وَهُوَ مُلِيمٌ ﴾ دلته يې په اسم مفعول باندي داسم فاعل اطلاق کړی دی يعني پخپل طغيان ملامت کړی شوی.

[1] ترمذي اوامام احمدروايت کړی مختصرابن کثيروګوره ۳ /۳۸۷

۶- تبعیه استعاره ﴿ الرِّيحَ الْعَقِيمَ ﴾ په کلام کي د دوی د هلاکت باد یې له شنډو مېرمنو سره تشبیه کړی هغه چي مېوه نه نیسي او بارنه اخلي د مشبه به اطلاق یې په مشبه کړی او له هغه څخه یې عقیم د استعارې په توګه مشتق کړی او ورا ایستلی دی.

۷- د ایجاز حذف چي فرمایي: ﴿ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ﴾ یعني تاسو نااشنا قوم یاست او همداسي ﴿ عَجُوزٌ عَقِيمٌ ﴾ یعني زه بوډا شنډه یم.

۸- مرسله مجمله تشبیه لکه ﴿ ذَنُوبًا مِّثْلَ ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ ﴾ یعني ونډه په مثل د ونډې د ملګرو د دوی چي پخواني هلاک شوي مکذبین وو او دغه تشبیه په شدت او غلظت کي ده د تشبیه وجه حذف شوې نو مجمله پېژندل کېږي.

۹- اطناب د فعل په تکرار سره چي فرمایي: ﴿ مَا أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ وَمَا أُرِيدُ أَن يُطْعِمُونِ ﴾ تر څو چي مبالغه او تاکید افاده کړي.

۱۰- ښایسته زړه راښکونکي سجع چي بې تکلفه او د اسلوب په ښایست او رونق کي اغېزمنه وي لکه ﴿ وَالسَّمَاءَ بَنَيْنَاهَا بِأَيْدٍ وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ وَالْأَرْضَ فَرَشْنَاهَا فَنِعْمَ الْمَاهِدُونَ ﴾ او دغه هم له بدیعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

لطیفه:

وایې چي یو صحرایي سړي د غه آیت شریف د یو قاري له خولې څخه واورېد و چي ﴿ وَفِي السَّمَاءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوعَدُونَ فَوَرَبِّ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ إِنَّهُ لَحَقٌّ مِّثْلَ مَا أَنَّكُمْ تَنطِقُونَ ﴾ نو ویې ویل: سبحان الله چا حضرت جلیل ذات په غصه کړی دی چي قسم کوي آیا دوی یې په خبرو باور نه درلود چي لوړې او قسم ته یې اړ ایستلی دی افسوس د خلګو په حال؟!

د الله جل جلاله په مرسته د الذاریات سورت تفسیر بشپړ شو.

***

## د (الطور) سورت مکي او نه څلوېښت آیتونه لري.

### د سورت په وړاندي:

دغه سورت د نورو مکي سورتونو په شان د اسلامي عقیدې موضوع څېړي او دهغې بنسټیزتوکي لکه وحدانیت، رسالت او بعث جزا بیانوي

په پیل کي سورت د آخرت له کړاوونو او ستونزو غرېږي هغه څه چي کافران د حساب په تم ځای کي ورسره لاس او ګرېوان وي بیانوي او پدې لوړه کوي چي عذاب به ارومرو په کافرانو راځي هیڅ څېز به له دوی څخه د عذاب مانع نشي ګرزرېدای او دغه قسم په پنځو شیانو اخلي ترڅو چي د موضوع داهمیت څرګندونه وشي.

ورپسې بیاد متقیانو خبرراوړي چي څرنګه به په جنت کي په نعمتونو بسیا او مخامخ په تختونو ناست وي الله به دوی ته حورالعین وربښلي او خپله کورنۍ اولادونه به یې ورسره یو ځای کړي قسماقسم خوراکونه او څښاک به ورکړي د ول ډول غوښې خواړه چي خوندوري او زړه غوښتونکي وي ورباندي لورولي وي او دغه رنګه نورې شمېره نعمتونه چي نه ستر ګو لیدلي ، نه غوږونو اورېدلي او نه هم د بشرپه زړه کله تېرشوي وي.

بیاد محمد بن عبدالله ﷺ د رسالت خبره راوړي او پیغمبرعلیه السلام ته د کفارو د وېرولو او تذکیر امرکوي او ورته وایې چي د کفاروپه وېناګانو دې هیڅکله هم پروانکوي کوم چي دوی د رسالت او رسول په باب چټیات وایې محمد ﷺ هغه ذات دی چي الله ورباندي د پیغمبري ورکولو نعمت لورولي دی هغه خوکاهن او مجنون نه دی لکه چي مجرمان فکرکوي

هله سورت د مشرکانو باطل ګمانونه د کوټلي دلائلو او قاطع براهینو په سېلاب وړي د دوی ملاوي ورماتوي او د محمدي رسالت په رښتنولي باندي حجتونه تېروي.

په پای کي سورت په کافرانو باندي د تهکم او استهزاء په ترڅ کي د توبیخ او تقریع په توګه د دوی عناداوسرکښي ته ګوته نیسي اورسول الله ته ماربینه کوي چي د الله په لارکي دي تحمل اوزغم ولري ترڅو چي د الله نصرت راورسېږي.

### تسمیه اونومول:

دغه سورت ته　　سورت (الطور) وایې ځکه چي الله پدې سورت کي د طورپه غره باندي قسم اخلي هغه غرچي الله په هغه غره باندي له موسی علیه السلام سره خبري کړي او دغه غرله انواروا وتجلیاتو او الهي فیوضاتو څخه دومره برکت منزلت اولوړتیا ومونده چي دګردي ځمکي په نوروګوټونوکي نه شي موندل کېدای

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ وَالطُّورِ ۝١ وَكِتَٰبٍ مَّسْطُورٍ ۝٢ فِي رَقٍّ مَّنشُورٍ ۝٣ وَالْبَيْتِ الْمَعْمُورِ ۝٤ وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ ۝٥ وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ
۝٦ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَٰقِعٌ ۝٧ مَّا لَهُۥ مِن دَافِعٍ ۝٨ يَوْمَ تَمُورُ السَّمَآءُ مَوْرًا ۝٩ وَتَسِيرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ۝١٠ فَوَيْلٌ
يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ۝١١ الَّذِينَ هُمْ فِي خَوْضٍ يَلْعَبُونَ ۝١٢ يَوْمَ يُدَعُّونَ إِلَىٰ نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا ۝١٣ هَٰذِهِ النَّارُ الَّتِي كُنتُم

بِهَا تُكَذِّبُونَ (۱۴) أَفَسِحْرٌ هَٰذَآ أَمْ أَنتُمْ لَا تُبْصِرُونَ (۱۵) ٱصْلَوْهَا فَٱصْبِرُوٓاْ أَوْ لَا تَصْبِرُواْ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ
مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (۱۶) إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ فِى جَنَّٰتٍ وَنَعِيمٍ (۱۷) فَٰكِهِينَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمْ رَبُّهُمْ وَوَقَىٰهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ ٱلْجَحِيمِ
(۱۸) كُلُواْ وَٱشْرَبُواْ هَنِيٓـًٔا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ (۱۹) مُتَّكِـِٔينَ عَلَىٰ سُرُرٍ مَّصْفُوفَةٍ وَزَوَّجْنَٰهُم بِحُورٍ عِينٍ (۲۰) وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ
وَٱتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَٰنٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَآ أَلَتْنَٰهُم مِّنْ عَمَلِهِم مِّن شَىْءٍ كُلُّ ٱمْرِىٍٕۭ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ (۲۱) وَأَمْدَدْنَٰهُم
بِفَٰكِهَةٍ وَلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُونَ (۲۲) يَتَنَٰزَعُونَ فِيهَا كَأْسًا لَّا لَغْوٌ فِيهَا وَلَا تَأْثِيمٌ (۲۳) ۞ وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ كَأَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ
مَّكْنُونٌ (۲۴) وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَآءَلُونَ (۲۵) قَالُوٓاْ إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِىٓ أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ (۲۶) فَمَنَّ ٱللَّهُ عَلَيْنَا وَوَقَىٰنَا
عَذَابَ ٱلسَّمُومِ (۲۷) إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلُ نَدْعُوهُ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْبَرُّ ٱلرَّحِيمُ (۲۸) ﴾ الطور: ۱ ـ ۲۸

## لغتونه:

(رق) په زوراوزېرسره هغه نرى پوستكي اوڅرمني ته وايې چي ليكنه پكي كېږي ابوعبيده وايې چي (الرق) ورقه بولي اوپه صحاح كي راوړي (الرق) هغه نرۍ څرمنه ده چي پكي ليک ليكل كېږي[۱] (المسجور) بل كړى شوى اور (تمور) خوځېدونكى تلونكى راتلونكى جريروايې:

ومازالت القتلى تمور دماءها بدجلة حتى ماء دجلة اشكل (۲) ترهغوپوري دوژل شوو كسانو وينې تلې بهېدلې اوپه دجله كي توئېدلې چي داوبورنګ يې دوينوشو (يدعون) په سختي سره پوري وهل چي سپكاوى ورسره مل وي (التاهم) دوى موناقص كړل (رهين) بنديوان (السموم) ګرم باد چي دتن په مسامونو كي ننوزي

## تفسير:

﴿ وَٱلطُّورِ وَكِتَٰبٍ مَّسْطُورٍ ﴾ (قسم دى په غره دطورباندي اوپه كتاب ليكل شوي باندي الله تعالى دطورپه غره لوړه اخلي هغه غرچي الله ورباندي له موسى عليه السلام سره خبري وكړې اوپه هغه كتاب

چي په رسول الله باندي نازل شوى قرآن اوليكلى شوى دى ﴿ فِى رَقٍّ ﴾ په نري پوستكي ﴿ مَّنشُورٍ ﴾ خوركړى شوي كي (چي نغښتلى شوى اومختوم نه وي) . قرطبي وايې الله تعالى دطورپه غره باندي قسم واخيست هغه چي له موسى عليه السلام سره يې ورباندي خبري كړې وې ترڅوچي دهغه شرافت اوتكريم وښيي اوددې يادونه وشي چي په هغه كي نښانې وې اوبل يې په ليكلي كتاب قسم واخيست هغه چي قرآن كريم دى مؤمنان يې له مصاحفوڅخه لولي اوپرښتې يې له لوح محفوظ څخه تلاوت كوي چابياويلي چي مقصدله كتاب څخه ګردآسماني كتابونه دي هغه چي په نرۍ څرمن ليكلى شوي اوخلګ

يې دلوستلو لپاره غوړوي اوخپروي (۳) ﴿ وَٱلْبَيْتِ ٱلْمَعْمُورِ ﴾ اوقسم دى په بيت المعمور (كورودان كړى شوي ) باندي قسم يې په بيت المعمورباندي واخيست هغه چي دآسماني مخلوقاتولپاره داسي دى لكه

(۱) الصحاح د(رق) ماده.
(۲) دقرطبي تفسير ۱۷/ ۶۳
(۳) دقرطبي تفسير ۱۷/ ۵۸

چي په مخکه کي کعبه شريفه ودانه ده اوهلته پرښتېورباندي طوافونه کوي داسراء په حديث شريف کي راځي چي: بيازه بيت المعمورته پورته کړی شوم ماجبرائيل (ﷺ) ته وويل داکوم ځای دی؟ هغه راته وويل چي دغه بيت المعموردی هره ورځ اويازره پرښتې وردننه کيږي اوچي کله تري بهرراوزي بياترپايه بيرته ورته نه راستنيږي. ابن عباس ﷺ وايي چي دغه په اووم آسمان کي دکعبې شريفي په برابرودانې ده (ځکه يې ودانه خونه بولي چي پرښتې يې په طاعت سره ودانوي) هره ورځ اويازره پرښتې پکي لمونځ کوي اوبياورته نه راځي (١) چي نوبت وروررسيږي) ﴿ وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ ﴾ اوقسم دی په چت پورته کړی شوي باندي چي آسمان دی(بې ستني ولاړدی ځکه يې سقف وباله چي دغه دځمکي لپاره لکه بام او(چت) غوندي دی دليل يې دادی چي الله فرمايي ﴿ وَجَعَلْنَا السَّمَاءَ سَقْفًا مَّحْفُوظًا ﴾ ابن عباس وايي مقصدله (سقف مرفوع) ځخه عرش دی اوهغه دجنت چت دی ﴿ وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ ﴾ اوقسم دی په سيند بل شوي په اور(په ورځ د قيامت لکه چي الله فرمايي ﴿ وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ ﴾ (التکوير٦) يعني هغه بل شوی په اورغندې وهونکي چي دموقف په خلگو راچاپيروي ﴿ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ﴾ بيشکه عذاب درب ستاخامخاواقع کيدونکی دی (په کافرانو باندي) دغه دقسم ځواب دی. ابن الجوزي وايي: الله تعالی په نوموړوپنځوشيانوباندي قسم واخيست(چي مشرکانوته عذاب شته) ځکه پدې کي دالله سترقدرت نغښتی دی (٢) ﴿ مَا لَهُ مِن دَافِعٍ ﴾ نشته هغه لره هيڅوک دافع ليري کونکی. ابوحيان وايي لومړی واودقسم لپاره اونوربياد عطف لپاره دي اومقسم عليهاجمله بيا ﴿ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ﴾ دی اوداچي دعذاب اضافت يې رب ته کړی په دې کي يوه باريکي داده چي الله جل جلاله خومالک اودبنده دمصلحتونوکتونکی دی نوکله چي يې دعذاب نسبت رب ته وکړاودرب اضافت يې بياد خطاب کاف ته وکړنوپه دې کي درسول الله ﷺ لپاره امان دی چي دغه عذاب به په هغه چانازليږي چي ستاتکذيب يې کړی دی اود(واقع) لفظ له (کائن) ځخه ډېرتاثيرلري لکه چي دغه عذاب په اوچت ځای کي چمتوشوی اوپه مستحق کسانو باندي رالويږي (٣) ﴿ يَوْمَ تَمُورُ السَّمَاءُ مَوْرًا ﴾ هغه ورځ چي وخوځيږي آسمان په خوځيدلو(سختو) سره (دقيامت دورځي له هيبت نه) ﴿ وَتَسِيرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ﴾ (اوروان به شي غرونه په روانيدلوسره) يعني غرونه به وران شي لکه دوړي اوغباربه تيت اوالوزي لکه چي الله فرمايي:

---

(١) دابن کثيرمختصر

(٢) زادالمسير ٨/ ٤٨

(٣) البحرالمحيط ٨/ ١٤٧ – په آيت شريف کي دداسي کړاوونواوستونزويادونه دي چي دمسلمانانوزړه له ډېرهيبته بې ځايه کوي اولړزوي يې له جبيربن مطعم ځخه روايت شوی هغه وايي زه مديني منورې ته دبدردبنديانو په هکله له رسول الله صلی الله عليه وسلم ځخه دپوښتلو لپاره راغلم داسي مهال ووچي دماښام دلمانځه جماعت ولاړوو اورسول الله ﷺ داآيتونه لوستل ﴿ وَالطُّورِ ۝ وَكِتَابٍ مَّسْطُورٍ ۝ فِي رَقٍّ مَّنشُورٍ ﴾ آن تردې چي ﴿ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ۝ مَا لَهُ مِن دَافِعٍ ﴾ يې ولوست زه دعذاب دنزول له وېري مسلمان شوم، ماگمان کاووچي سمد ستي به عذاب راباندي ولوېږي.

﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّى نَسْفًا ﴾ (طه:۱۰۵) خازن ليکي چي حکمت په خوځېدلو دآسمان اوتګ دغرونوکي وېرونه اوددې خبري اعلان دی چي بيرته دنياته ستنېدل نشته ځکه چي ځمکه اوآسمان اوددوی ترمينځ غرونه، دريابونه اونورشيان ددې لپاره پيداشوي چي دنياورباندي ودانه اوبنيادم ورباندي ګټه اخلي نوکله چي بيرته ستنېدل نشته نوالله جل جلاله دغه ګردوران کړل اودغه ددنياوراني دآخرت وداني ده[1] ﴿ فَوَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴾ نوخرابي افسوس هلاک دی په دغه ورځ کي دروغجن کونکيو ته ﴿ ٱلَّذِينَ هُمْ فِى خَوْضٍ يَلْعَبُونَ ﴾ هغوله چي دوی په چټي خبروجوړولوکي لګيا، لوبي مشغولتياکوي (له آخرت څخه غافل اوبې پرواوي) ﴿ يَوْمَ يُدَعُّونَ إِلَىٰ نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا ﴾ هغه ورځ چي تېل وهلی پوري وهلی شي دوی اور ددوزخ ته په تېل وهلوسره. په البحرالمحيط کي وايې چي ددوزخ ګمارل شوي پرښتي به ددوی (کفارو) لاسونه وروتړي اوسرتېتي به يې داورخواته تېل وهي ترڅوپې هلته ورسوي[2] کله چي اورته ورنژدې شي نوپرښتې به ورته وايې ﴿ هَٰذِهِ ٱلنَّارُ ٱلَّتِى كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴾ دادی هغه اورچي وی تاسي چي پدې به مو دروغ ويل (په دنياکي ترې منکران وی) ﴿ أَفَسِحْرٌ هَٰذَآ أَمْ أَنتُمْ لَا تُبْصِرُونَ ﴾ آياپس کوډي دی (داعذاب) که يې تاسي چي نه يې وينی (په سترګو باندي) لکه چي په دنياکي له ايمانه راوړلواوبښکني کولوڅخه رانده وی دغه به پرښتې ورته دتوبيخ اوتقريع په توګه ووايې. ابوالسعودوايې دالله جل جلاله داويناچي ﴿ أَفَسِحْرٌ هَٰذَآ ﴾ دغه ددوی لپاره توبيخ اوتقريع دی ځکه دوی برحق قرآن ته په دنياکي دسحراوکوډونسبت کاوونولکه چي ورته ويل شوي وي آيادغه عذاب چي ګوري هم کوډي دی اوکه يې نه ويني لکه چي په دنياکي موسترګي له حقه ړندې وې[3] ﴿ ٱصْلَوْهَا فَٱصْبِرُوٓاْ أَوْ لَا تَصْبِرُواْ ﴾ ځئ ننوزئ په دغه دوزخ کي پس صبروکړئ تاسي ياصبرمه کوئ! (دغه يوبل توبيخ دی) ﴿ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ﴾ برابردي (دغه دواړه کارونه) په تاسي باندي (ځکه تاسوتل ترتله دلته پاتي کېدونکي ياست) ﴿ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ ببشکه هم داخبره ده چي جزادرکولی شي تاسي ته دهغو (کارونو) چي وی تاسي چي کول به مو (په دنياکي (له کفراوتکذيب اونوروناوړه عملونوڅخه الله جل جلاله درباندي ظلم نه دی کړی، کله چي يي دکفاربدکرداروحال بيان کړورپسې يې دنېکمرغه مؤمنانوحال لکه چي دقرآنکريم دوددی چي ترغيب اوترهيب سره يوځای راوړي داسي بيان کړچي ﴿ إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ فِى جَنَّٰتٍ وَنَعِيمٍ ﴾ ببشکه وېرېدونکي له الله (په دنياکي په امتثال داوامرو او اجتناب له نواهيو دده په اخرت کی تل ترتله) په جنتونو کی به وی او په نعمتونوکی ﴿ فَٰكِهِينَ

---

[1] دخازن تفسير ۴/ ۱۰۷

[2] دابوالسعودتفسيردرازي په حاشيه باندي ۷-۶۹۷

[3] دابوالسعودتفسيردرازي په حاشيه ۷-۶۹۷

﴿ بِمَآ ءَاتَىٰهُمْ رَبُّهُمْ ﴾ مېوې خوړونکي خوشحالېدونکي به وي په هغو(شيانو ) چي ورکړي دي دوی ته رب ددوی (له نعمتونواوكرامتونو څخه چي هغه په جنت کي له خوراک، څښاک، پوښاک اوسورليو څخه عبارت دي ﴿ وَوَقَىٰهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ ٱلْجَحِيمِ ﴾ اوساتلي دي دوی رب ددوی له عذاب ددوزخ څخه (چي له کړاوونو بې ژغورلي دي. ابن کثیروایې چي دغه یومستقل ځانته بل نعمت دی چي دجنت په نعمتونوهغه نعمتونه چي نه سترګوليدلي نه غوږونواورېدلي اونه دچاپه زړه باندي تېرشوي سربېره بل نعمت دی(١) ﴿ كُلُوا۟ وَٱشْرَبُوا۟ هَنِيٓـًٔۢا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ خورئ اوڅښئ ښه هضمېدونکي (خوراک، څښاک ) په سبب دهغو(ښو ) اعمالوچي وی تاسي چي په دنیاکي به موکول، وروسته الله جل جلاله د دوی حال دخوړلو،څښلوپه وخت کي داسي بیانوي چي ﴿ مُتَّكِـِٔينَ عَلَىٰ سُرُرٍ مَّصْفُوفَةٍ ﴾ حال داچي تکیه کونکي به ناست وي پر تختونو(دسروزرو چي په دُرِ یاقوت به ښکلي شوي ) برابربه ایښود شوي وي صف، صف.

ابن کثیر وایې چي د ﴿ مَّصْفُوفَةٍ ﴾ معناداچي مخامخ به وي لکه چي الله فرمایې ﴿ عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَـٰبِلِينَ ﴾ (الحجر: ٤٧ ) (٢) په یوحدیث شریف کي راځي چي سړی به په څنګواښتي (متکاء) باندي څلوېښت کاله موده تکیه وهلي وي نه به سترې کېږي اونه به خوځېږي هغه څه چي زړه او سترګي یې غواړي هغه به ورته رسېږي(٣) ﴿ وَزَوَّجْنَـٰهُم بِحُورٍ عِينٍ ﴾ اوپه نکاح به ورکړو دوی لره حوري ښې ښایسته غټي سترګي (حورله حَوَر څخه اخیستلی شوی اوسخت سپین والي ته وایې اوعین بیادعیناء جمع اوغټې سترګي ته وایې دغه دواړه چي سره یوځای شي نودحسن وروستي سرحدته رسېږي ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَٱتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَـٰنٍ ﴾ اوهغه کسان چي ایمان یې راوړی دی اوددوی متابعت کړی وي اولادونوددوی په ایمان سره ﴿ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ ﴾ نوپیوست به کړو په دوی پسي اولاددوی (که څه هم چي اولادونویې دومره عملونه نه وي کړي مګرد پلرونودخوښي اوسترګو دیخوالي لپاره به یې ذوذات ورسره ملګري کړل شي. ابن عباس رضی الله عنه وایې چي الله عزوجل به دمؤمن اولاد د پلار درجې اوپوړۍ ته ورسوي که څه هم چي عمل یې لږوي ترڅوچي دپلرونوسترګي یې په وصال یخي شي اوبیایې دغه آیت شریف تلاوت کړچي ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَٱتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم ... ﴾ (٤) زمخشري وایې الله تعالی به جنتیانوته قسماقسم نعمتونه یوځای جمع ورکړي دوی به پخپله نېکمرغه کړي ، حورالعین به په نکاح ورکړي ، دمؤمنانوورونوملګرتیا اوموانست به یې په برخه شي اوخپل ذوذات اونسل به یې ورسره یوځای شي (٥) ﴿ وَمَآ أَلَتْنَـٰهُم مِّنْ عَمَلِهِم مِّن شَىْءٍ ﴾ اوکم به نکړو موږ دغو(پلرونو ) لره له (جزاء)دعملونوددوی هیڅ

---

(١) دابن کثیر مختصر ٣ / ٢٩٠

(٢) نفس المرجع السابق

(٣) أخرجه ابن ابي حاتم .

(٤) دقرطبي تفسیر ١٧ / ٦٦

(٥) دکشاف تفسیر ٤ / ٢٧٢

شی. په البحر المحيط کي ليکي معناداچي الله تعالى به مقصرله محسن سره يوځای کړي پداسي حال کي چي د محسن او نيکوکار له اجر څخه به هيڅ هم کم نشي (۱) ﴿كُلُّ ٱمْرِيِٕۭ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ﴾ هر سړی به په هغه هغه عمل چي کړی يې وي ګرو اخته وي (د بل چا ګناه به وربا ندي نه بارېږي که څه هم پلار يا زوی وي) خازن ليکي چي مراد له دې څخه کافر دی چي د خپل شرک ګرووي او په اور کي به يې وغورځوي، مؤمن به پخپل عمل ګرو اخته نه وي لکه چي الله تعالى فرمايي ﴿كُلُّ نَفْسِۭ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ إِلَّآ أَصْحَٰبَ ٱلْيَمِينِ﴾ وروسته د هغه فضل او نعمت يادونه کوي کوم چي يې ورسره وعده شوي ﴿وَأَمْدَدْنَٰهُم بِفَٰكِهَةٍ وَلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُونَ﴾ او مدد به وکړو له دوی سره په ورکولو د مېوو او د غوښو له هغه چي د دوی زړه يې غواړي ﴿يَتَنَٰزَعُونَ فِيهَا كَأْسًا﴾ يو له بله به اخلي دوی په دغه جنت کي پيالې (د شرابو په تلذذ او الفت سره. الوسي وايې معناداچي يو له بله به په لوبو او (لتيپير) سره پيالې په خوش طبعي يو د بل له لاسه اخلي لکه چي ملګري انډيوالان په دنياکي د زياتي خوشحالي له کبله همداسي کوي (۲) ﴿لَّا لَغْوٌ فِيهَا وَلَا تَأْثِيمٌ﴾ (داسي شراب چي په څښلو يې) نه وي چټي بېکاره ويل په هغې کي او نه نسبت کول د ګناه يو بل ته قتاده وايې الله جل جلاله د آخرت شراب د دنيا له ناولتيا څخه ژغورلي، نه د سردرد پيداکوي، نه د ګېډي او نه سړی بېخوده کوي او د دې اخبار الله فرمايلی چي د دې شرابو له څښلو وروسته به داسي اپلتي او چټي خبري نه کېږي چي بې ګټي وي او دغه ښايسته منظر او خوندور لذيذ خوند داسي ستايي ﴿بَيْضَآءَ لَذَّةٍ لِّلشَّٰرِبِينَ لَا فِيهَا غَوْلٌ وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنزَفُونَ﴾ (۳) وروسته الله تعالى فرمايي ﴿وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ كَأَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ مَّكْنُونٌ﴾ او چاپېر به ګرزي (د خدمت لپاره) پر دوی باندي زلميان د دوی ګواکي دغه (خدمت ګاران په حسن او پاکي کي) ملغلري پټي په غلاف کي ساتلي شوي به وي (چي د دوی د چوپړ لپاره ځانګړي شوي يعني دوی به په حسن او سپين والي کي لکه د صدف په مينځ کي صفا ملغلري داسي وي. قرطبي وايې دغه غلمان دي چاويلي چي د مشرکانو ماشومان دي چي په جنت کي به خدمت کوي جنت خود خدمت او چوپړ و هلو ځای نه دی او نه هلته کوم زيارته اړتيا شته خود دې لپاره چي و ښيي جنتيان به ښخي د نعمتونو په سمندر کي لامبي ﴿وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَآءَلُونَ﴾ او مخ به کړي ځيني د دوی ځينو ورته چي پوښتني به سره کوي (له دنيوي کړاوونو څخه چي په خبرو اترو خوند و اخلي او د نعمتونو اعتراف وکړي) ﴿قَالُوٓاْ إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِىٓ أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ﴾ وبه وايې چي بېشکه موږ و مبی له دې څخه وو په خپل اهل کي وېرېدونکي (له عذابه) ﴿فَمَنَّ ٱللَّهُ عَلَيْنَا وَوَقَىٰنَا عَذَابَ ٱلسَّمُومِ﴾ نو احسان وکړ الله په موږ باندي (جنت ته يې راوستو) او وې ساتلو موږ له عذابه د تودوخي د دوزخ). امام فخر رازي وايې چي په

(۱) البحر المحيط ۸ / ۱۴۹

(۲) دغه دابن عباس ﷺ تاويل دی.

(۳) دابن کثير مختصر ۳ / ۳۹۷

آيت شريف کي ددې اشاره شته چي جنتيان به په هغه څه چي په دنياکي ورباندي تېرشوي پوهېږي اوهغه به يې په يادوي اوهمداسې دکفاروبه خپل دنيوي نعمتونه ترسترګوګرزي نومؤمنانوته به دغه نورلاهم لذت ورزيات کړي کله چي وګوري له بنديخانې څخه جنت ته راغلي اوکافربه لازيات غمجن شي چي خپل ځان ويني چي له ډول ډول نعمتونوڅخه محروم اوپه دوزخ کي لوېدلی دی (١) ﴿ إِنَّا كُنَّا مِن قَبۡلُ نَدۡعُوهُۖ ﴾ وو موږپخواله دې څخه (په دنياکي) چي عبادت به موکاووددغه (الله او دعاوي به مو ورته کولې الله مودعاوي ومنلې ) ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلۡبَرُّ ٱلرَّحِيمُ ﴾ بېشکه چي دغه (الله) همدی دی ډېرښه احسان کونکی خوراډېررحم والا يعني الله تعالی دفضل اواحسان خاونددی چي په بندګانوباندي رحمت اوغفران لوروي دغه لکه د پخواني لپاره چي تعليل وي حضرت مسروق له عائشې صديقې ﵂ څخه روايت کوي چي هغې دغه آيت ولوست چي ﴿ فَمَنَّ ٱللَّهُ عَلَيۡنَا وَوَقَىٰنَا عَذَابَ ٱلسَّمُومِ إِنَّا كُنَّا مِن قَبۡلُ نَدۡعُوهُۖ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلۡبَرُّ ٱلرَّحِيمُ ﴾ نويې وويل : ای الله په موږ احسان وکړه اودسموم له عذابه مووژغوره بېشکه ته براورحيم ذات يې (٢).

الله تعالی فرمايي:

﴿ فَذَكِّرۡ فَمَآ أَنتَ بِنِعۡمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٖ وَلَا مَجۡنُونٍ (٢٩) أَمۡ يَقُولُونَ شَاعِرٞ نَّتَرَبَّصُ بِهِۦ رَيۡبَ ٱلۡمَنُونِ (٣٠) قُلۡ تَرَبَّصُواْ فَإِنِّي مَعَكُم مِّنَ ٱلۡمُتَرَبِّصِينَ (٣١) أَمۡ تَأۡمُرُهُمۡ أَحۡلَٰمُهُم بِهَٰذَآۚ أَمۡ هُمۡ قَوۡمٞ طَاغُونَ (٣٢) أَمۡ يَقُولُونَ تَقَوَّلَهُۥۚ بَل لَّا يُؤۡمِنُونَ (٣٣) فَلۡيَأۡتُواْ بِحَدِيثٖ مِّثۡلِهِۦٓ إِن كَانُواْ صَٰدِقِينَ (٣٤) أَمۡ خُلِقُواْ مِنۡ غَيۡرِ شَيۡءٍ أَمۡ هُمُ ٱلۡخَٰلِقُونَ (٣٥) أَمۡ خَلَقُواْ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَۚ بَل لَّا يُوقِنُونَ (٣٦) أَمۡ عِندَهُمۡ خَزَآئِنُ رَبِّكَ أَمۡ هُمُ ٱلۡمُصَۣيۡطِرُونَ (٣٧) أَمۡ لَهُمۡ سُلَّمٞ يَسۡتَمِعُونَ فِيهِۖ فَلۡيَأۡتِ مُسۡتَمِعُهُم بِسُلۡطَٰنٖ مُّبِينٍ (٣٨) أَمۡ لَهُ ٱلۡبَنَٰتُ وَلَكُمُ ٱلۡبَنُونَ (٣٩) أَمۡ تَسۡـَٔلُهُمۡ أَجۡرٗا فَهُم مِّن مَّغۡرَمٖ مُّثۡقَلُونَ (٤٠) أَمۡ عِندَهُمُ ٱلۡغَيۡبُ فَهُمۡ يَكۡتُبُونَ (٤١) أَمۡ يُرِيدُونَ كَيۡدٗاۖ فَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ هُمُ ٱلۡمَكِيدُونَ (٤٢) أَمۡ لَهُمۡ إِلَٰهٌ غَيۡرُ ٱللَّهِۚ سُبۡحَٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يُشۡرِكُونَ (٤٣) وَإِن يَرَوۡاْ كِسۡفٗا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ سَاقِطٗا يَقُولُواْ سَحَابٞ مَّرۡكُومٞ (٤٤) فَذَرۡهُمۡ حَتَّىٰ يُلَٰقُواْ يَوۡمَهُمُ ٱلَّذِي فِيهِ يُصۡعَقُونَ (٤٥) يَوۡمَ لَا يُغۡنِي عَنۡهُمۡ كَيۡدُهُمۡ شَيۡـٔٗا وَلَا هُمۡ يُنصَرُونَ (٤٦) وَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُواْ عَذَابٗا دُونَ ذَٰلِكَ وَلَٰكِنَّ أَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُونَ (٤٧) وَٱصۡبِرۡ لِحُكۡمِ رَبِّكَ فَإِنَّكَ بِأَعۡيُنِنَاۖ وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ (٤٨) وَمِنَ ٱلَّيۡلِ فَسَبِّحۡهُ وَإِدۡبَٰرَ ٱلنُّجُومِ (٤٩) ﴾ الطور: ٢٩ - ٤٩

مناسبت:

کله چي الله کفاروته دعذاب په ورکولوباندي لوړه ياده کړه اودمعذبينواوژغورل شوو کسانو له احواله يې څه بيان وفرمايونورسول الله ته يې امروکړچي دپندورکولودنده پرمخ بوزي ترڅودکفارو

(١) کبيرتفسير٧/٧٠٥

(٢) دابن کثيرمختصر٣ /٣٩٢

لپاره وېرونه او د مؤمنانو لپاره زېرى وي او د سورت پاى يې د دروغجن ګڼونکو په بد مرغه عاقبت او انجام باندې او د الله په هغه ساتنه او پاملرنه چې د خپل پيغمبر عليه السّلام په هکله يې لري و تاکل.

**لغتونه:**

(ريب المنون) د زماني پېښې او حوادث (منون) دهر ته وايي (احلامهم) عقلونه د دوى جمع د (حلم) دى (المسيطرون) مسلط شوي (كسفا) ټوټې (مركوم) يو د بل د پاسه غونډ.

**تفسير:**

﴿ فَذَكِّرْ فَمَا أَنتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ وَلَا مَجْنُونٍ ﴾ پس پند ورکوه ته (اى محمده خلګو ته) پس نه يې ته په سبب د فضل نعمت د رب خپل سره فال ګر (خبرورکونکى له غيبه) او نه لېونى (لکه چې مشرکان ګمان کوي بلکه ته له وحى څخه غږېږې وروسته د دوى باطل ګمانونه د پيغمبر په هکله داسې ترديدوي چې ﴿ أَمْ يَقُولُونَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴾ آيا وايې دوى دى شاعر دى موږ تول په ده باندې د زماني حوادثو ته منتظريو ترڅو چې هلاک يې کړي او موږ ورڅخه آرام او مستريح شو خازن وايې چې ﴿ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴾ د زماني پېښې او حوادث دي د دوى مقصد داوو چې دى به لکه نور شاعران غونډې هلاک او ومري ، منون د مرګ او دهر لپاره نوم دى او اصل يې قطع او پرېکړې ته وايي په دوى سره هم اجل پرې کېږي[1] ﴿ قُلْ تَرَبَّصُوا فَإِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُتَرَبِّصِينَ ﴾ ووايه (اى محمده دوى ته!) تاسې منتظر اوسئ (زما هلاک ته) دغه له تهديد او وعيد سره نغښتې پر دوى باندې تهکم او استهزاء ده) ﴿ أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُم بِهَٰذَا ﴾ آيا حکم کوي دوى ته عقلونه د دوى په دې (کار چې دروغ او بهتان ووايي؟ خازن ليکي چې د قريشو سرداران به په هوښيارتوب او پوهې ستايل کېدو الله جل جلاله د دوى د عقلونو پوچوالى وښود چې دوى له باطل څخه د حق پېژندګلوي ته نه شي رهبري کولاى او دغه پر مشرکانو باندې يو بل تهکم دى[2]) ﴿ أَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ ﴾ يا دوى يو قوم دى سرکښه شرخوښونکى تېرېدونکى له حده (په کفر او طغيان کې) ﴿ أَمْ يَقُولُونَ تَقَوَّلَهُ ﴾ آيا وايې دوى چې له ځانه يې جوړ کړى دى دا (قرآن) قرطبي وايي چې (تقوّل) په ويناکې تکلف ته وايي او غالبًا چې په دروغو ويلو کې استعمالېږي لکه چې وايې په ماپې هغه وتړل چې ما ويلي نه وو[3]) ﴿ بَل لَّا يُؤْمِنُونَ ﴾ (دغسې نه ده لکه چې دوى ګمان کوي) بلکه دوى ايمان نه راوړي (په قرآن د تکبر او عناد له مخې ورپسې دغه حجت ورباندې تېروي چې ﴿ فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ مِّثْلِهِ إِن كَانُوا صَادِقِينَ ﴾ پس راوړي دوى يوه خبره (جوړه شوي) په شان د دې (قرآن په فصاحت او بلاغت کې) که چېرې وي دوى رښتوني (په دې ويناکې چې محمد ﷺ قرآن له ځانه جوړ کړى دى دغه د دوى لپاره

[1] الخازن ۲۰۹/۴.

[2] پخوانى مرجع.

[3] د قرطبي تفسير ۷۳/۱۷

له توبيخ سره يوځای تعجبږدی) ﴿ أَمْ خُلِقُوا۟ مِنْ غَيْرِ شَىْءٍ ﴾ آياپيداکړی شوي دي دوی بې له يوڅېزه پيدا کونکي پخپل سر، ابن عباس ﷺ وايې معناداچې: آيابې له خالقه اوپالونکي پيداشوي دي ؟(١) ﴿ أَمْ هُمُ ٱلْخَٰلِقُونَ ﴾ ياکه دوی پيداکونکي دي دخپلوځانونو؟(چې ددې جرأت کوي اودالله جل جلاله له ذاته منکرېږي ﴿ أَمْ خَلَقُوا۟ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ ﴾ آياپيداکړي دي دوی آسمانونه اوځمکي (نه ده داسي خالق دټولو الله دی داچي آسمانونه او ځمکي بې په ځانګړي توګه يادي کړې ځکه چي عظمت اوشرافت لري اوبيا الله ددوی انکارله وحدانيته داسي بيانوي چي ﴿ بَل لَّا يُوقِنُونَ ﴾ بلکه دوی يقين نه کوي ، له خالقه انکارکوي. خازن وايې چي دآيت شريف معناداچي آيادوی بې له پيداکونکي پيداشوي؟ اودغه خوناشوني ده ځکه دپيدا شوي (مخلوق)اړومروله پيداکونکي سره تعلق وي نوکله چي دوی له خالق څخه انکارکوي دا خوروا نه دي چي له خالقه پرته دي مخلوق موجودشي اوآيادوی پخپله دځان پيدا کونکي دي؟ دغه ترلومړني ګمان لاپسي باطل اوناروادی ځکه يوڅوک چي پخپله موجودنه وي هغه به څرنګه بل څوک پيداکړي ؟ نو کله چي دواړه ډوله ګمانونه باطل شول نودغه ثابته شوه چي دوی خالق لري په هغه دي ايمان راوړي ، په وحدانيت دي وپېژني اوپه دې باندي دي يقين اوباورولري چي هغه ددوی پالونکی اوپيدا کونکی دی (٢) ﴿ أَمْ عِندَهُمْ خَزَآئِنُ رَبِّكَ ﴾ آياله دوی څخه دي خزانې (د نعمت نبوت) درب ستا؟ (چي نبوت يوچاته ورکړي اوله يو چاڅخه يې منع کړي. ابن عباس ﷺ وايې چي ﴿ خَزَآئِنُ رَبِّكَ ﴾ له باران اوروزي څخه عبارت دي.عکرمة وايې چي نعمت هغه نبوت دی(٣) ﴿ أَمْ هُمُ ٱلْمُصَۜيْطِرُونَ ﴾ آياهم دوی د ي واکداران ؟(چي په مخلوق کي څرنګه چي يې خوښه شي هغسي تصرف کوي ؟ نه داسي نه ده بلکه يوازي الله غالب واکدارمالک خالق اومتصرف دی. عطآء وايې ﴿ خَزَآئِنُ رَبِّكَ ﴾ معناداچي آيادوی خپلواکه اربابان دي چي هرڅه غواړي هغه کوي دبل چاترامراونهی لاندي نه دي ؟(٤) ﴿ أَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ يَسْتَمِعُونَ فِيهِ ﴾ آياشته دوی ته اندرپايه (چي پرې خبري آسمان ته او ) اورېدل کوي په هغه باندي (خبري دملائکواووحی نودوی پوهېږي چي دوی پرحق دي ځکه نوټينګارکوي؟ ﴿ فَلْيَأْتِ مُسْتَمِعُهُم بِسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ ﴾ پس رادي وړي هغه اورېدونکی ددوی يوبرهان ښکاره سند(په اورېدلو دده باندي (لکه چي محمدرسول الله کوټلی برهان لري، ورپسي ددوی دهغوباطلوګمانونوپه لړکي هغه ترګردوبد اوناوړه ګمان رااخلي کوم چي دوی الله ته دلونړونسبت کوي هغه لوني چي دوی بې له درلودلوڅخه کرکه اونفرت کوي فرمايې: ﴿ أَمْ لَهُ ٱلْبَنَٰتُ وَلَكُمُ ٱلْبَنُونَ ﴾ (آياهغه الله) لره لوني دي (په زعم

---

(١) نفس المرجع
(٢) دخازن تفسير ۴ /۲۱۰
(٣) دقرطبي تفسير ۱۷ /۷۴
(۴) دابن الجوزي تفسير ۸ /۵۷

ستاسو ) اوتاسي لره زامن دي؟) يعني څرنګه الله ته دلوڼونسبت کوی سره له دې چي تاسويې نه خوښوی بلکه زامن غواړی آيا دغه دمنطق اوانصاف خبره ده ؟قرطبي وايې ددوی دعقلونوپوچوالی بې بربنداوهغوی ته يې توبيخ او تقريع وفرمايل چي آياتاسوالله ته لوڼي ثابتوی اوپخپله لوڼې نه غواړی اودچاچي همدغه عقل او پوهه وي نوبياله بعث څخه انکارکول هم ورسره مستبعدنه دي . ابوالسعودوايې (دغه ددوی د عقلونو تسفيه اوخام والی ښيي يعني دچاچي دغه هوښياري وي هغه له عاقلانواوپوهانوڅخه نه ګڼل کېږي څه خولاداچي عالم ملکوت ته وخيژي اوپه غيبي اسرارو وپوهيږي دلته دالتفات صنعت هم له غيبت څخه خطاب ته دانکاراوتوبيخ دزياتوالي لپاره راغلی دی ﴿ أَمْ تَسْأَلُهُمْ أَجْرًا ﴾ آياته غواړې (ای محمده!) له دوی څخه څه اجربدل (په تبليغ د رسالت او احکامود دين باندي؟ ﴿ فَهُم مِّن مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُونَ ﴾ پس دوی له تاوانه دهغه درانه کړی شوي دي (ځکه نو ستاپيروي نه کوي اوايمان نه راوړي هوکي دود اوعادت داسي دی چي کله په يوچاباندي ټيکس اوماليه ولګول شي نوهغه بيادغه مکلفيت دروندوالی احساسوي اوتورخوري خبره نه اوري اوحکم نه مني ﴿ أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُونَ ﴾ آياپه نزد ددوی علم دغيبو دی چي په دی بې پوهوی چي کوم څه چي رسول الله ورته دحشرنشراواخروي أموروپه هکله وايې باطل دی؟ قتاده وايې دغه دهغې وينا ترديددی چي دوی به ويل ﴿ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴾ معناداچي آيادوی خبردي چي محمدبه تر دوی دمخه مري چي دوی دغسي حکم کوی ؟اوابن عباس وايې : معناداچي آيادوی په نزدلوح محفوظ شته چي دوی دهغه له مخه ليکنه کوي او خلګوته بيادهغه له رويه اخبارکوي؟ داسي نه ده په غيبو باندي پرته له الله نه هيڅوک له ځمکني او آسماني مخلوقاتوڅخه علم نلري ﴿ أَمْ يُرِيدُونَ كَيْدًا ﴾ آيادوی اراده لري دمکرکولو؟(پرتا باندي ای محمده!) مفسرين کرام وايې چي پدې آيت کي هغه ددوی فريب اوچل ته اشاره ده کوم چي الله فرمايلي دي ﴿ وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ ﴾ (الانفال ۳۰) ﴿ فَالَّذِينَ كَفَرُوا هُمُ الْمَكِيدُونَ ﴾ پس هغه کسان چي کافران شوي دي هم پردوی باندي مکر کړی شوی دی (خپله جزابه ومومي ځکه چي جزايې دوی ته راجع ده لکه چي الله فرمايې :﴿ وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ ﴾ (فاطر:۴۳) صاوي وايې چي ظاهربې چي ﴿ فَالَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ دی دضميرپرځای راووړترڅوپردوی باندي دکفرصفت دليکلو تشنيع اوتقبيح وښيي([1]) ﴿ أَمْ لَهُمْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ ﴾ آياشته دوی ته کوم معبودبې له الله (چي خالق اورازق وي ترڅودوی دمشکلاتوپه وخت کي هغه ته پناه ورړي اوهغه له دوی څخه ضرر اوعذاب دفع کړي ﴿ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ پاکي ده الله لره له هغه شي چي دوی يې ورسره شريکوي (له بتانواونورومعبودانوڅخه امام جلال الدين وايی چي استفهام په (أم) سره دهغه په ينځلس

---

([1]) دصاوي حاشيه ۴/ ۱۳۴

خایونوکي د توبیخ تقریع اوانکارلپاره دی (۱) ورپسې الله تعالی ددوی دبې ساري طغیان سرغړوني او عنادبېلګي داسي بیانوي چي ﴿ وَإِن يَرَوۡا۟ كِسۡفࣰا مِّنَ ٱلسَّمَاۤءِ سَاقِطࣰا ﴾ اوکه ووینې دوی یوه ټوټه له آسمانه رالوېدونکي (هم به له خپله عناده راونه ګرزي اودغه ټوټه به دملنډواومسخروپه توګه داسي ستایې:

﴿ یَقُولُوا۟ سَحَابࣱ مَّرۡكُومࣱ ﴾ وبه وایې (دا) وریځ ده پرېره یوپربلې باندي سپره شوي (چي پر موږ راولوېده.

ابوحیان وایې چي دقریشوپه وړاندیزونوکي یوداهم وو چي ویل به یې ﴿ أَوۡ تُسۡقِطَ ٱلسَّمَاۤءَ كَمَا زَعَمۡتَ عَلَیۡنَا كِسَفًا ﴾ نوالله جل جلاله ددې اخبارفرمایې چي که دوی دسر په سترګودغه لکه چي یې وړاندیزکوي ووینې هم بیابه له ډېره جهله اوعناده ځان په دې غولوي وایې به چي دغه وریځ ده موږ شوي چي په موږ باران اوروي دغه دعذاب ټوټه نه ده (۲) ﴿ فَذَرۡهُمۡ حَتَّىٰ یُلَـٰقُوا۟ یَوۡمَهُمُ ٱلَّذِی فِیهِ یُصۡعَقُونَ ﴾ نوپرېږده دوی ترهغه پوري چي یوځای شي دوی له خپلي ورځي سره هغه چي پکي وبه لوېږي پردوی باندي تکه (چي ورځ دقیامت دی ددوی هوښ به یوسي عقلونه به یې کارپرېږدي) ﴿ یَوۡمَ لَا یُغۡنِی عَنۡهُمۡ كَیۡدُهُمۡ شَیۡـࣰٔا ﴾ هغه ورځ چي دفع به نکړي له دوی نه کید مکرددوی هیڅ څېز (له عذابه دالله) ﴿ وَلَا هُمۡ یُنصَرُونَ ﴾ اونه به له هغوی سره څه مرسته مددوکړی شي (چي عذاب په آخرت کي ترې دفع کړي) ﴿ وَإِنَّ لِلَّذِینَ ظَلَمُوا۟ عَذَابࣰا دُونَ ذَ ٰلِكَ ﴾ اوبېشکه هغو کسانولره چي ظلم یې کړی (کافران شوي ) دي (اخروي ) عذاب دی بې له دې (دنیوي) عذابه. ابن عباس ﷺ وایې دغه د قبر عذاب دی اومجاهدوایې چي دغه هغه اوه کاله وچکالي اوکاختي لوږه ده ﴿ وَلَـٰكِنَّ أَكۡثَرَهُمۡ لَا یَعۡلَمُونَ ﴾ ولیکن اکثره (زیاتره) ددوی نه پوهېږي چي عذاب به ورباندي نازل شي (نوځکه له ایمانه مخ ګرزوي) ﴿ وَٱصۡبِرۡ لِحُكۡمِ رَبِّكَ ﴾ اوصبرکوه ته (ای محمده ! فیصلې حکم درب خپل ته (په درسپارل شوي رسالتي دنده کي) ﴿ فَإِنَّكَ بِأَعۡیُنِنَا ﴾ بېشکه ته په ځای دلیدلوزموږ کي یې (موږدي له ضررونوڅخه ژغورو او ستاپاملرنه کوو) ﴿ وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ حِینَ تَقُومُ ﴾ اوتسبیح وایه پیوست له حمده درب خپل سره په هغه وخت کي چي راپاڅېږي (له خوبه اویا مجلسه داسي وایه چي ( سبحان الله وبحمده ) ابن عباس وایې معناداچي کله له خوابه پاڅې لمونځ کوه (۳) ﴿ وَمِنَ ٱلَّیۡلِ فَسَبِّحۡهُ ﴾ اوپه ځیني (برخه) دشپې کي پس تسبیح وایه (الله یادوه اوعبادت کوه کله چي خلګ ویده وي لکه چي الله فرمایې ﴿ وَمِنَ ٱلَّیۡلِ فَتَهَجَّدۡ بِهِۦ نَافِلَةࣰ لَّكَ ﴾ (الاسراء ۷۹) ﴿ وَإِدۡبَـٰرَ ٱلنُّجُومِ ﴾ او وروستود ستوروڅخه (یعني دشپې په آخره کي هم تسبیح وایه کله چي دشپې ستوري

(۱) دجلالین تفسیر ۴ /۲۲۶
(۲) البحرالمحیط ۸ /۱۵۳
(۳) دابن جوزي تفسیر ۸ /۶۷

دګهيځ په رڼاکي مخ پټوي ابن عباس ﷺ وايي دغه دسهار دوه رکعته لمونځ دی اوپه حديث شريف کې راغلي چي: دسهاردوه رکعته ترګرده دنيااومافيهاغوره اوښه دي(۱)

بلاغت:

پدې سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱-اشتقاقي جناس د﴿ يَوْمَ تَمُورُ السَّمَآءُ مَوْرًا ﴾ اود﴿ وَتَسِيرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ﴾ ترمينځ.

۲-اهانت اوتوبيخ لکه د﴿ اصْلَوْهَا فَاصْبِرُوا أَوْ لَا تَصْبِرُوا ﴾ په کلام کي اود﴿ فَاصْبِرُوا ﴾ او﴿ لَا تَصْبِرُوا ﴾ ترمينځ بياسلبي طباق دی چي هغه هم له بديعي محسناتوګڼل کيږي.

۳-مرسله مجمله تشبيه چي فرمايي﴿ لُؤْلُؤٌ مَّكْنُونٌ ﴾ دتشبيه وجه ترې حذف شوي نومجمله بلل کيږي.

۴-تبعيه استعاره چي د﴿ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴾ په کلام کي ده دزمانې حوادث يې له ريب سره مشابه کړي چي شک ته وايي اوترمينځ يې وجه جامع حيرانتيااولالهاندتوب دی چي په دواړوکي سړی په يوحال نه پاتي کيږي اوبيايې دزمانې دحوادثواوپيښو کړاوونو لپاره دريب کلمه دتبعي استعارې په توګه راوړه.

۵-تهکمي اسلوب لکه﴿ أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُم بِهَٰذَا ﴾ دغه يې ددوی دعقلونوپه هکله داستهزاء اوسخرې منطق کارولی دی.

۶-دالتفات صنعت له غيبت څخه خطاب ته لکه﴿ أَمْ لَهُ الْبَنَاتُ وَلَكُمُ الْبَنُونَ ﴾ ترخوددوی لپاره زيا ت توبيخ اوتکول (تقريع) افاده کړي.

۷-دفرض اوتقديراسلوب لکه﴿ وَإِن يَرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَاءِ سَاقِطًا ﴾ يعني که چېري دوی دغه وويني نوداسي به ووايي چي﴿ سَحَابٌ مَّرْكُومٌ ﴾ دغه بالفرض والتقديردی.

۸-ښايسته اوګلالی سجع چي بې تکلفه راغلي لکه:﴿ وَالطُّورِ وَكِتَابٍ مَّسْطُورٍ ﴾ اويادا چي﴿ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ مَّا لَهُ مِن دَافِعٍ ﴾ اودسورت ترپايه نورځايونه.

فائده:

جبيربن مطعم رضی الله عنه وايي: زه مدينې منورې ته دبدر دبنديانوپه هکله دپوښتلولپاره راغلم هغه مهال رسول الله ﷺ دماښام لمونځ په جماعت اداکولو اودغه مبارک سورت يې لوست چي﴿ وَالطُّورِ وَكِتَابٍ مَّسْطُورٍ ﴾ کله چي يې دغه آيتونه ولوستل چي﴿ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ مَّا لَهُ مِن دَافِعٍ ﴾ مافکرکاوه چي زړه مي وچاودېدو نودعذاب دراتلوله وېري مسلمان شوم کله چي رسول الله دغه آيت پسي ولوست

(۱) دابن کثيرمختصر ۳/ ۳۹۵

چي: ﴿ أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ أَمْ هُمُ الْخَالِقُونَ أَمْ خَلَقُوا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بَل لَّا يُوقِنُونَ ﴾ نژدې وو زړه مي په هواشي والوزي

دالله جل جلاله په مرسته د(الطور) سورت تفسیربشپړشو.

***

## د(النجم) سورت مکي اودوه شپېته آیتونه لري.

دسورت په وړاندي:

دالنجم سورت مکي اودرسالت موضوع پخپل عام چوکاټ کي څېړي او لکه نورګردمکي سورتونه ایمان په بعث اونشور باندي بیانوي.

سورت په پیل کي دمعراج واقعه هغه چي دانسانیت داستازي محمدبن عبدالله صلوات الله و سلامه علیه معجزه وه راوړي هغه همداسي معجزه چي رسول الله ﷺ دملکوت خوراعجائب او غرائب چي عقلونه هېښوي پکي ولیدل نوسورت خلګوته پندورکوي چي په دغولیدنودي ایمان راوړي اودغیب اووحی په هکله دي شک اوجګړه نه کوي.

وروسته خبره دبتانواوناروامعبودانوراخلي هغوی چي مشرکانوپرته له الله په ألوهیت منلی وو سورت په هغوی باندي دبطلان کرښه راکاږي هغه که بتان وي اوکه نور مکرم مخلوقات لکه پرښتې اوملائکي.

بیادجزاء دورځي عادلانه فیصلې بیانوي چي هرچاته به دهغه دکړو وړو سره سمه جزاورکول کېږي که نېکي یې کړې وه دنېکي جزابه مومي اوکه یې بدي کړي وه دبدي جزاء به ورته رسېږي خلګ به په دوو ډلوبېلېږي چي یوه به یې ابرار اوبله به یې فجار اشرار وي.

پدې هکله سورت برهان راوړي چي جزابه ښځي عادلانه وي هیڅ انسان به دبل چاپه ګناه نه نیول کېږي څکه چي جزابه هم پرته له مجرم اوګنهکارڅخه بل چاته نشي ورکولای همدغه الهي شریعت او دالله عادلانه حکم دی چي په قرآنکریم اونوروآسماني کتابونوکي ذکرشوی دی.

له دې وروسته سورت دالله تعالی دقدرت نښي نښانې په ژوندي کولو اومړکولوکي همداسي په بداې کولو اونېستمن کولوله فناوروسته په بیاراژوندي کولو اودنارینه اوښځینه جوړه پیداکولو کي بیانوي چي څرنګه یې له نطفې څخه پنځولی دی؟

په پای کي سورت دسرغړونکي قومونولکه عادیان ، ثمودیان ، دنوح اولوط علیهماالسلام قومونو دهلاکت بېلګي راوړي اودمکې کفارومشرکانوته ورپه یادوي چي دعذاب انتظاردي وکړي څکه چي درسول الله ﷺ تکذیب یې کړی دی همداسي دباغیانوسرغړونکوهغولپاره چي په سرغړونه اوطغیان کي یې دالله دښمني ته ملاتړلي وي زجرفرمایې:

***

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ وَٱلنَّجۡمِ إِذَا هَوَىٰ (١) مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمۡ وَمَا غَوَىٰ (٢) وَمَا يَنطِقُ عَنِ ٱلۡهَوَىٰٓ (٣) إِنۡ هُوَ إِلَّا وَحۡيٞ يُوحَىٰ (٤) عَلَّمَهُۥ شَدِيدُ
ٱلۡقُوَىٰ (٥) ذُو مِرَّةٖ فَٱسۡتَوَىٰ (٦) وَهُوَ بِٱلۡأُفُقِ ٱلۡأَعۡلَىٰ (٧) ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّىٰ (٨) فَكَانَ قَابَ قَوۡسَيۡنِ أَوۡ أَدۡنَىٰ (٩) فَأَوۡحَىٰٓ إِلَىٰ
عَبۡدِهِۦ مَآ أَوۡحَىٰ (١٠) مَا كَذَبَ ٱلۡفُؤَادُ مَا رَأَىٰٓ (١١) أَفَتُمَٰرُونَهُۥ عَلَىٰ مَا يَرَىٰ (١٢) وَلَقَدۡ رَءَاهُ نَزۡلَةً أُخۡرَىٰ (١٣) عِندَ سِدۡرَةِ
ٱلۡمُنتَهَىٰ (١٤) عِندَهَا جَنَّةُ ٱلۡمَأۡوَىٰٓ (١٥) إِذۡ يَغۡشَى ٱلسِّدۡرَةَ مَا يَغۡشَىٰ (١٦) مَا زَاغَ ٱلۡبَصَرُ وَمَا طَغَىٰ (١٧) لَقَدۡ رَأَىٰ مِنۡ ءَايَٰتِ رَبِّهِ
ٱلۡكُبۡرَىٰٓ (١٨) أَفَرَءَيۡتُمُ ٱللَّٰتَ وَٱلۡعُزَّىٰ (١٩) وَمَنَوٰةَ ٱلثَّالِثَةَ ٱلۡأُخۡرَىٰٓ (٢٠) أَلَكُمُ ٱلذَّكَرُ وَلَهُ ٱلۡأُنثَىٰ (٢١) تِلۡكَ إِذٗا قِسۡمَةٞ ضِيزَىٰٓ
(٢٢) إِنۡ هِيَ إِلَّآ أَسۡمَآءٞ سَمَّيۡتُمُوهَآ أَنتُمۡ وَءَابَآؤُكُم مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ بِهَا مِن سُلۡطَٰنٍۚ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ وَمَا تَهۡوَى ٱلۡأَنفُسُۖ
وَلَقَدۡ جَآءَهُم مِّن رَّبِّهِمُ ٱلۡهُدَىٰٓ (٢٣) أَمۡ لِلۡإِنسَٰنِ مَا تَمَنَّىٰ (٢٤) فَلِلَّهِ ٱلۡأٓخِرَةُ وَٱلۡأُولَىٰ (٢٥) ۞ وَكَم مِّن مَّلَكٖ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ لَا
تُغۡنِي شَفَٰعَتُهُمۡ شَيۡـًٔا إِلَّا مِنۢ بَعۡدِ أَن يَأۡذَنَ ٱللَّهُ لِمَن يَشَآءُ وَيَرۡضَىٰٓ (٢٦) إِنَّ ٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡأٓخِرَةِ لَيُسَمُّونَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةَ تَسۡمِيَةَ
ٱلۡأُنثَىٰ (٢٧) وَمَا لَهُم بِهِۦ مِنۡ عِلۡمٍۖ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّۖ وَإِنَّ ٱلظَّنَّ لَا يُغۡنِي مِنَ ٱلۡحَقِّ شَيۡـٔٗا (٢٨) فَأَعۡرِضۡ عَن مَّن تَوَلَّىٰ عَن ذِكۡرِنَا
وَلَمۡ يُرِدۡ إِلَّا ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا (٢٩) ذَٰلِكَ مَبۡلَغُهُم مِّنَ ٱلۡعِلۡمِۚ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعۡلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِۦ وَهُوَ أَعۡلَمُ بِمَنِ ٱهۡتَدَىٰ (٣٠)
وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ لِيَجۡزِيَ ٱلَّذِينَ أَسَٰٓـُٔواْ بِمَا عَمِلُواْ وَيَجۡزِيَ ٱلَّذِينَ أَحۡسَنُواْ بِٱلۡحُسۡنَى (٣١) ٱلَّذِينَ يَجۡتَنِبُونَ
كَبَٰٓئِرَ ٱلۡإِثۡمِ وَٱلۡفَوَٰحِشَ إِلَّا ٱللَّمَمَۚ إِنَّ رَبَّكَ وَٰسِعُ ٱلۡمَغۡفِرَةِۚ هُوَ أَعۡلَمُ بِكُمۡ إِذۡ أَنشَأَكُم مِّنَ ٱلۡأَرۡضِ وَإِذۡ أَنتُمۡ أَجِنَّةٞ فِي
بُطُونِ أُمَّهَٰتِكُمۡۖ فَلَا تُزَكُّوٓاْ أَنفُسَكُمۡۖ هُوَ أَعۡلَمُ بِمَنِ ٱتَّقَىٰٓ (٣٢) ﴾ النجم: ١ ـ ٣٢

لغتونه:

(هوى) ښکته غورځېدل (مرة) قوت ، قطرب ليکي چي عربان هرهغه چاته چي ښايسته رأيه او روڼ عقل لري (ذومرة) وايي ([1])(تدلى) ځړېدل له پاسه ترښکته پوري ، وايي (تدلى الغصن) يعني ښاخ راځړېدلی دی (قاب) اندازه په البحرالمحيط کي راوړي چي (قاب، قاد ،قيد ) مقدارته وايي ([2]) (ضيزى) ناروااوناحقه ،تاواني (اللمم) وړوکي ګناهونه. زجاج وايي لمم هغه عمل دی چي انسان يې يو واروروسته له بل واره کوي او وربانديي اصرارنه کوي (أجنة) دجنين جمع اوهغه ماشوم ته وايي چي په ګېډه کي وي (جن) پټوالي ته وايي داهم له سترګوپټ اوالونياوي

تفسير:

﴿ وَٱلنَّجۡمِ إِذَا هَوَىٰ ﴾ قسم دی په ستوريوباندي کله چي پرېوزي (دوبېږي يا راخېژي) ابن عباس وايي چي الله جل جلاله په هغوستوروباندي کوم چي دشيطانانوپه تعقيب پسي ځغلنده لوېږي قسم

---

([1]) دقرطبي تفسير ۱۷/ ۸۲

([2]) البحرالمحيط۸/ ۱۵۴۰

کوي[۱] او حسن وايي چي مراد په آيت کي هغه ستوري دي چي د قيامت په ورځ به وشيندل شي لکه چي الله تعالی فرمايي ﴿ وَإِذَا ٱلْكَوَاكِبُ ٱنتَثَرَتْ ﴾ (الانفطار ۲) ابن کثير وايي چي الله تعالی چي وغواړي په هرڅه مخلوق باندي قسم وکړي کولای شي مګر مخلوق ته نه ښايي چي پرته له خالقه په بل څه باندي قسم وکړي[۲] ﴿ مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوَىٰ ﴾ (نه دی ګمراه شوی ملګری (رسول) ستاسي او نه يې لاره ورکه کړي ده) يعني نه خو له سمي لاري څخه کوږ شوی او نه يې هيڅکله په باطل عقيده لرلي بلکه په نهايته سمه لار روان دی ابو السعود وايي چي دغه قريشي کفارو ته خطاب دی او تعبير په دې لفظ چي (صاحبکم) راغلی د دې لپاره دی چي دوی د هغه په بشپړ تفصيلي احوالو خبر دي دوی ور سره اوږده ملګرتيا لرلي او د هغه ګردو تلي صفات او ستايلي خويونه ورته معلوم دي نو د دې غوښتنه دا ده چي ملګری يې وګڼل شي[۳] ﴿ وَمَا يَنطِقُ عَنِ ٱلْهَوَىٰ ﴾ او خبري نه کوي (محمد) له (خپلي) هوا (او شخصي رايې) څخه ﴿ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْىٌ يُوحَىٰ ﴾ نه دی دغه (قرآن) مګر وحی ده چي ورته لېږل شوي ده (د الله له لوري) بيضاوي وايي معنا دا چي دا قرآن نه دی مګر وحی دی د الله له لوري ورته وحی کړی شوي دی[۴] ﴿ عَلَّمَهُۥ شَدِيدُ ٱلْقُوَىٰ ﴾ ښودلی دی ده ته د سختو قوتونو مالک (جبريل عليه السلام). مفسرين کرام وايي چي هغه څه چي د ده په سخت قوت دلالت کوي دا دی چي د لوط عليه السلام د قوم کلی يې له بېخه وايستل او په کوڅريې د ومره لوړ او چت يووړل چي آسمان ته نژدې شول او بيا يې سرپه څېرې را وغورځول په ثمود يانو يې داسي چيغه وکړه چي ساړه پرېوتل او انبياء عليهم السلام ته يې د وحی راوړلو لپاره تګ راتګ د ستر ګو په رپ کي ترسره کېدو ﴿ ذُو مِرَّةٍ فَٱسْتَوَىٰ ﴾ چي خاوند د ښه صورت عقل دی بيا کېناست (پخپل حقيقي صورت) ﴿ وَهُوَ بِٱلْأُفُقِ ٱلْأَعْلَىٰ ﴾ او هغه وو په کنارو لوړو له آسمانه (له هغه لوري چي د لمر ختيز دی. ابن عباس ﷺ وايي چي: مراد له اعلی افق څخه د لمر ختيز دی[۵] خازن وايي: جبريل عليه السلام به رسول الله ته د بنيادمو په شکل راتلو لکه چي پخوانيو انبياوو عليهم السلام ته به هم پدې صورت راتو نو رسول الله ورته وويل چي: ځان دي په هغه ډول لکه چي ور باندي پيدا شوې ور وويني نو يې دوه ځله خپل ځان په اصلي بڼه ور وښود يو ځل په ځمکه کي او يو ځل په آسمان کي په ځمکه کي هغه مهال چي رسول الله د حراء په غار کي وو نو د ختيز له لوري په اعلی أفق څرګند شو او دواړه وزري يې وغوړولې د مشرق او مغرب ترمينځ واټن يې ونيو رسول الله د بېهوښی په حالت کي پر مخي ولوېدو او جبريل عليه السلام د بنيادم په شکل راښکته شو رسول الله يې په غېږ کي ونيو او له مبارک مخ څخه يې دوړي پاکول پيل کړل او هغه دا وينا ده چي: ﴿ ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّىٰ ﴾ بيا نژدې شو (جبرئيل عليه السلام

(۱) دغه د ابن عباس رضی الله عنه يو روايت دی بل روايت يې دا چي مراد له ستوري څخه ثريا ده چي له سهاره سره لوېږي.
(۲) د ابن کثير مختصر ۳/۳/۳۹۲
(۳) البيضاوي ۴/۱۷۱
(۴) البيضاوي ۴/۱۷۱
(۵) د قرطبي تفسير ۱۷/۸۸

محمد علیه السلام ته) پس بنه نژدې شو. او هغه چې په آسمان کې وو هغه له سدرة المنتهی سره نژدې یې ځان پخپل اصلی شکل ورو ښود دیادولو وړ ده چې هیڅ پیغمبر پرته له محمد رسول الله څخه حضرت جبریل پخپله اصلي بڼه لیدلی نه دی (۱) ﴿ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ ﴾ پس وو په مینځ د نژدې والي د دوو لیندیو یاله دې نه هم ډېر نژدې. الوسي لیکي چې مقصد د خورا نژدې والي افاده ده لکه چې وایې هغه ورته نژدې وو (۲) ﴿ فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ ﴾ پس وحی وکړه (الله په ژبه د جبریل) بنده خپل ته هغه چې وحی یې وکړه (له احکامو او امرو څخه) ﴿ مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَىٰ ﴾ نه وو ویلي دروغ زړه (د محمد) هغه (جبریل) چې لیدلی یې وو (په سترګو خپلو په حقیقي بڼه) ابن مسعود ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ په داسي شکل کې ولید چې شپږ سوه کوځرې لرل او هر کوځرې افق نیولی وو او ور څخه دریاقوت ملغلرې او (تهاویل) ګلان چې یوازې یو الله پرې خبر وو راتوېدل ﴿ أَفَتُمَارُونَهُ عَلَىٰ مَا يَرَىٰ ﴾ (آیا پس تاسې جګړه کوی له هغه (محمد) سره په هغه کې چې ده لیدلي ده (په شپه د معراج کې. په البحر المحیط کې وایې کله چې رسول الله ﷺ قریشو ته د معراج پېښه بیان کړه دوی یې تکذیب وکړ او ملنډې یې وګنلې ترڅو چې د بیت المقدس په هکله یې معلومات ورکړ. او جمهور مفسرین وایې چې له دغه څخه مراد دوه خله د جبریل علیه السلام لیدل دي. له ابن عباس او عکرمة ﷺ څخه روایت شوی چې رسول الله ﷺ پخپلو سترګو خپل رب لیدلی دی خو حضرت عائشة ﷺ دا نه مني بلکه وایې چې حضرت جبریل یې پخپله اصلي بڼه دوه خله لیدلی ابو حیان وایې چې صحیح دا دی چې ګرد هغه چې پدې آیتونو کې دي هغه له حضرت جبریل سره دي او دلیل یې دا الله جل جلاله داوینا ده چې ﴿ وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَىٰ ﴾ (ځکه دغه د پخواني لیدلو تقاضا کوي) (۳) ﴿ وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرَىٰ ﴾ او خامخا په تحقیق لیدلی وو محمد هغه (جبریل پخپل ملکي شکل) په ښکته کېدلو کې بل ځلي ﴿ عِندَ سِدْرَةِ الْمُنتَهَىٰ ﴾ په نزد دوني د بېرې د سدرة المنتهی (چې منتها د علم د خلګو دی) هغه چې په اوم آسمان کې له عرش سره پوري ده. مفسرین کرام وایې چې سدرة هغه ونه ده چې له بېخه یې نهرونه رابهېږي او د عرش ښي لوري ته دی ځکه یې سدرة المنتهی بولي چې د ګردو مخلوقاتو او ملائکو علم همدلته انتها مومي او له دې ورها خوا پرته له الله جل جلاله څخه هیڅوک هم علم نلري په حدیث شریف کې راځي چې: (ثم صعد بي الی السماء السابعة ورفعت الیّ سدرة المنتهی فاذا نبقها ای ثمرها مثل قلال هجر، واذا أوراقها کأذان الفیلة (*) بیا زه اووم آسمان ته وخېژول شوم او سدرة المنتهی راته ښکاره شوه مېوه یې لکه د هجر صراحي غوندې او پاڼي یې

(۱) د خازن تفسیر ۴/ ۲۱۳

(۲) د الوسي تفسیر ۲۷/ ۴۸

(*) أخرجه الامام احمد (۱) البحر المحیط ۸/ ۱۵۸ زه وایم چې د البحر المحیط مؤلف بڼه پرخای لیکلي چې دلالت هم دغه غوښتنه کوي او د اهل سنتو مذهب دادی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د معراج په شپه په پورتني آسمانونو کې پروردګار د سرپه سترګو لیدلی دی او له احادیثو څخه دلائل لري مګر د آیتونو په باب غوره دادی چې جمهورو مفسرینو لیکلي دي

دفیل دغوړونو په شان وي ﴿ عِندَهَا جَنَّةُ ٱلْمَأْوَىٰٓ ﴾ په نزدد هغې جنت المأوی دی (یعني جنتي هستوګنځي دی چې ملائکې او د شهداوو او متقینو ارواح ورته راځي ﴿ إِذْ يَغْشَى ٱلسِّدْرَةَ مَا يَغْشَىٰ ﴾ (لیدلی وو محمد ﷺ جبریل علیه السلام لره ) کله چې پټې کړې هغه ونې دبېري لره هغه څه چې پټ کړي يې وو (له عجائباتو، حسن رحمه الله وايي يعني د حق تعالی انوارو پدغې ونې باندې پلوشې اچولې وې او هغه ځلېدله ، ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې د سروزرو پتنګانو پټه کړې وه (۱) په حدیث شریف کې راځي چې: لماغشيهامن أمر الله ماغشيهاتغيرت فما أحد من خلق الله يستطيع أن يصفهامن حسنها ) يعني کله چې دالله په حکم په هغه څه پټه کړی شوه چې پټه کړی شوه بیا بدله شوه نو دالله په مخلوق کې هیڅوک نشي کولای دهغې له حسن او ښکلا سره ورستاینه يې وکړي (۲) مفسرین کرام وايي: رسول الله ﷺ دسدرة المنتهی ونه پداسې حال کې ولیدله چې په الهي انوارو کې نغښتې وه چې هیڅانشوای کولای هغې ته وګوري او پرښتو د مرغانو په څېر پټه کړې وه چې هلته يې عبادت کاوو له هغې سره راغونډې شوې وې تسبیحات يې ويل او زیارت يې کاوو لکه چې خلګ د کعبې شریفې زیارت کوي، په حدیث شریف کې راځي چې: ماسدرة المنتهی داسې ولیدله چې د سروزرو پتنګانو اخیستې پټه کړې وه او په هره پاڼه يې یوه پرښته وه چې دالله تعالی تسبیح او پاکي يې بیانوله (۳) ﴿ مَا زَاغَ ٱلْبَصَرُ وَمَا طَغَىٰ ﴾ نه وې ګرزېدلې سترګې د (محمد بلې خواته ) له دې څخه بنې او کیڼ لوري ته ) او نه وې تېرې شوې (له حده (هغه چې ويې لیده) قرطبي وايي معناداچې دالله له نښانو نو لیدلو پرته يې بل څه ته سترګې نه دي غړولې او دغه درسول الله داادب ستاینه ده چې پداسې سترمقام کې چې هلته عقلونه هېښ او حیرانېږي، پښې ښوئېږي او سترګې یوه بل خوا غړېږي مګر رسول الله ﷺ پخپل استقامت او ثبات همدأسې په یو حال پاتې کېږي (۴) ﴿ لَقَدْ رَأَىٰ مِنْ ءَايَٰتِ رَبِّهِ ٱلْكُبْرَىٰٓ ﴾ (په تحقیق لیدلی دی (محمد ) له (څېنو ) دلائلو (د قدرت) د رب خپل ) چې ډېر لوی (دلائل ) وو )يعني قسم دی چې محمد ﷺ د معراج په شپه دالله ملکوت ولیدل ، سدرة المنتهی ، بیت المعمور، جنت او دوزخ او حضرت جبریل يې پخپل ملکي صورت ولید چې شپږ سوه کوځري يې لرلې ،د جنت زرغون رفرف يې ولید چې افق يې پټ کړی وو(۵) او داسې نور دالله د قدرت ستر دلائل يې وکتل امام رازي رحمه الله وايي په آیت شریف کې د دې دلیل شته چې نبي علیه السلام د معراج په شپه دالله د قدرت دلائل ولیدل او الله تعالی يې ندی لیدلی لکه چې ځیني علماوو ویلي او وجه يې داده چې الله تعالی د معراج کیسه د قدرت د دلائلو په لیدلو پای ته رسولې او په سورت اسرآء کې يې فرمایلي دي ﴿ لِنُرِيَهُۥ مِنْ ءَايَٰتِنَآ ﴾ (اسرآ ۱) او که چېرې يې خپل رب پروردګار لیدلی وای نو ارو مرو به الله

(۱) رواه مسلم.
(۲) أخرجه مسلم ایضا.
(۳) دابو السعود تفسیر ۷ / ۷۴۰
(۴) دخازن تفسیر ۴ / ۲۱۲
(۵) دغه وينا ابن مسعود يې روایت کړی حدیث بخاري شریف راوړی دی.

تعالى دهغه اخبار فرمايلي وو(١) ﴿ أَفَرَءَيْتُمُ ٱللَّٰتَ وَٱلْعُزَّىٰ وَمَنَوٰةَ ٱلثَّالِثَةَ ٱلْأُخْرَىٰٓ ﴾ آيا پس ويني تاسي لات او او عزى او منات (په مرتبه كي) دريم له دغو (يعني دوى هم هغسي عظمت او قدرت لري لكه چي د الله عظمت او قدرت وستايل شو؟ چي تاسو پرې د معبودانو گمان كوى؟! خازن ليكي چي دغه دهغو بتانو نومونه دي كوم چي دوى به يې عبادت كاوو او هغوى ته يې دالله له نومونو څخه نومونه سكنلي وو اوله الله څخه لات، له عزيز څخه (عزى چي لات په طائف كي او عزى په غطفان كي وو او خالد بن وليد رهز مرېزاو و نړول منات بياد خزاعه د ټبر بت وو چي د مكې خلكو به يې عبادت كاوو(٢) ﴿ أَلَكُمُ ٱلذَّكَرُ وَلَهُ ٱلْأُنثَىٰ ﴾ آيا تاسو لره (اى كفارو) هلكان دي او دغه (الله) لره نجوني دي) دغه توبيخ او تقريع دى يعني تاسو يې هغه غوره برخه او الله ته مونا كاره ونده (ستاسو په گمان) وركړه؟ ﴿ تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزَىٰٓ ﴾ (دا قسمت د اولاد) پدې شان وېش دى ډېر كوږ ناكاره (غير عادلانه چي پروردگار ته مو هغه څه وركړل چي تاسي ور څخه كركه كوى. امام رازي وايي دوى داسي نه ويل چي زموږ زامن او د الله لوڼي بلكه الله ته يې د لوڼو نسبت كاوو هغه لوڼي چي دوى هيڅكله نه خوښولې لكه چي الله فرمايي ﴿ وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ مَا يَكْرَهُونَ ﴾ (النحل:٦٢) نو كله چي يې الله ته د لوڼو نسبت وكړ هم دغه پخپله يو غير عادلانه وېش شو (٣) ﴿ إِنْ هِىَ إِلَّآ أَسْمَآءٌ سَمَّيْتُمُوهَآ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُم ﴾ ندي دا بتان مگر خو(تش) نومونه دي چي تاسي دوى لره ايښي دي تاسو او پلرونه ستاسي (دغه نه گټه رسوى او نه تاوان دفع كوى) يوازي د جماداتو لپاره نومول دي) ﴿ مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَٰنٍ ﴾ ندى نازل كړى الله په دغه (عبادت د بتانو) باندي كوم برهان (علمي سند) ﴿ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ وَمَا تَهْوَى ٱلْأَنفُسُ ﴾ متابعت نه كوي دوى مگر خو د گمان خپل او د هغه شي چي د دوى نفسونه يې غواړي (كوم چي شيطان ور ته ښايسته كړي وي) ﴿ وَلَقَدْ جَآءَهُم مِّن رَّبِّهِمُ ٱلْهُدَىٰٓ ﴾ او خامخا په تحقيق سره راغلى دى دوى ته له ربه د دوى څخه هدايت لارښوونه (روښانه بيان او كوټلي برهان چي بتان معبودان نه دي او دا چي عبادت له الله واحد قهار ذات پرته بل چاسره نه ښايي. ابن الجوزي وايي چي په دې كي تعجيب دى چي دوى له دې روښانه بيان سره سره بيا هم د بتانو عبادت پرې نښود(٤) ﴿ أَمْ لِلْإِنسَٰنِ مَا تَمَنَّىٰ ﴾ آيا شته (كافر) انسان لره هغه چي غواړي يې (له خواهشاتو يعني آيا انسان لره شته گرد هغه څه چي غواړي يې آن تردې چي د بتانو د شفاعت طمع كوي صاوي وايي مراد له انسان څخه كافر انسان دى اوله دې آيت څخه د هغه چالپاره چي له غير الله څخه طمع كوي او يا د خپلو خواهشاتو پيروي كوي معلومېږي چي دغه طمع تر سره كېدونكي نه ده او خواري يې په برخه ده(٥)

(١) كبير تفسير ٧٤٠/٧
(٢) د خازن تفسير ٢١٨/٤
(٣) كبير تفسير ٧٤٣/٧
(٤) د ابن جوزي تفسير ٧٤/٨
(٥) صاوي په جلالين باندي ١٣٩/٤

﴿ فَلِلَّهِ ٱلْأٓخِرَةُ وَٱلْأُولَىٰ ﴾ پس خاص الله لره دي (پاچهي سلطنت د) آخرت او دنيا (چاته يې وركوي او له چا څخه يې اخلي او منع كوي داسې نه دی لكه چي انسان يې غواړي بلكه الله يې هغه چاته وركوي چي دالله په لاري سم وي او خپل خواهشات تر پښو لاندي كړي بيا دغه معنى داسي تائيدوي چي ﴿ وَكَم مِّن مَّلَكٍ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ ﴾ او ډېر دي له ملائكو څخه په آسمانونو كي (ابرار او اطهار) ﴿ لَا تُغْنِي شَفَٰعَتُهُمْ شَيْـًٔا إِلَّا مِنۢ بَعْدِ أَن يَأْذَنَ ٱللَّهُ لِمَن يَشَآءُ وَيَرْضَىٰٓ ﴾ چي نه دفع كوي سپارښت (شفاعت) د دوی هيڅ شی (مګر په اجازه دالله) دهغه چا لپاره چي اراده وفرمايي او راضي وي په شفاعت يې) نو څرنګه به خوار كوتي بتان شفاعت وكړای شي ؟﴿ وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ٱرْتَضَىٰ ﴾ (الانبيآء:٢٨) يعني ملائكي وروسته له اذن دالله جل جلاله بيا د اهل ايمان او توحيد لپاره شفاعت كولای شي لكه چي الله فرمايي ﴿ وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ٱرْتَضَىٰ ﴾ ابن كثير وايي مقصد دا كله چي دغه خبره د مقربينو ملائكو په هكله ده نو اى جاهلانو تاسو بيا څرنګه د بتانو او د شريكانو د سپارښت او شفاعت هيله كوى؟ او ر پسې الله د مشركانو ګمراهي او ضلالتونه داسي شمېري: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱلْأٓخِرَةِ ﴾ بېشكه هغه كسان چي ايمان په آخرت نه راوړي (بعث او نشور نه مني) ﴿ لَيُسَمُّونَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ ٱلْأُنثَىٰ ﴾ (خامخا نو مونه ايږدي پر ملائكو باندي په نوم اېښودلو د ښځو سره) يعني دوی ګمان كوي چي پرښتې ښځې او دالله لوڼي دي ﴿ وَمَا لَهُم بِهِۦ مِنْ عِلْمٍ ﴾ او نشته دوی ته په دې ويناكي هيڅ علم پوهه، ځكه دوی په خپله د ملائكو پيدا اېښت ندی ليدلی او نه دالله له لوري كوم علمي سند او برهان ورته راغلی دی ﴿ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا ٱلظَّنَّ ﴾ نكوي دوی پلوي مګر د ګمان (يعني دغه د دوی اوهام او ګمانونه دي) ﴿ وَإِنَّ ٱلظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ ٱلْحَقِّ شَيْـًٔا ﴾ او بېشكه نه دفع كوي ګمان له حق څخه هيڅ شی (او نه هم كله د حق پر ځای د رېږي ﴿ فَأَعْرِضْ عَن مَّن تَوَلَّىٰ عَن ذِكْرِنَا ﴾ پس مخ وګرزوه ته له هغه چا څخه چي مخ يې ګرزولی دی له ذكر پند ه زمونږ (چي ايمان او قرآن دی) ﴿ وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا ﴾ او اراده نلري مګر خو د ژوندون د دنيا (او مافيها له زائلو نعمتونو او فاني لذتونو خوندونو څخه) ابو السعود وايي چي مقصد له آيت څخه داسي كسانو ته د بلني نه وركول دي ځكه څوک چي دالله له كلام څخه مخ واړوي او هغه ته پام ملرنه نكوي او په دنيا كي داسي غوپه وي ته به واهغه بې يو ازنی موخه او هدف دی نو دغه دعوت بيا هغوی ته پرته له عناده او پښو خرلو (اصرار) څخه نور ګټه نه رسوي (١) ﴿ ذَٰلِكَ مَبْلَغُهُم مِّنَ ٱلْعِلْمِ ﴾ دا (اختيارول د ده دنيا لره) ځای د رسېدلو د دوی دی له علمه پوهي (د دوی نه) يعني د دوی د پوهي منتها او ادراک همدغه دنيا په آخرت باندي غوره كول دي

(١) دابو السعود تفسير ٥ / ١٧٠

﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِۦ وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ ٱهْتَدَىٰ ﴾ بېشکه رب ستا همدی ښه عالم دی په هغه چاباندي چي ګمراه شوی دی له لاري دده څخه (چي اسلام دی) اوهم دی دی ښه عالم پوه په هغه چا باندي چي سمه لاره يې موندلي ده (يعني الله په دواړو ډلو ضالينو او مهتدينو باندي ښه پوه دی ددوی په عملونو به جزاورکړي ﴿ وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ اوخاص الله دي هرهغه څه چي په آسمانونو کي دي اوهرهغه چي په ځمکه کي دي (خلقًا ملکًا وتصرفًا چي دبل هيڅا ورباندي واک نشته)

﴿ لِيَجْزِيَ ٱلَّذِينَ أَسَٰٓـُٔوا۟ بِمَا عَمِلُوا۟ ﴾ لپاره ددې چي (الله) جزا ورکړي هغو کسانو ته چي بدي يې کړې وي په سبب دهغه (بد) عمل چي کړی يې وي ﴿ وَيَجْزِيَ ٱلَّذِينَ أَحْسَنُوا۟ بِٱلْحُسْنَى ﴾ اوجزاورکړي هغو کسانو ته چي نېکي يې کړې وي په نېکو (اعتقادونواو ښو) عملونو سره (په جنت سره) ابن الجوزي وايې چي پدې آيت شريف کي دالله دپراخي پاچهي سلطنت او سترقدرت او ځواک اظهاردی اودغه معترض کلام دی چي دلومړي آيت اوددې چي ﴿ لِيَجْزِيَ ٱلَّذِينَ أَسَٰٓـُٔوا۟ بِمَا عَمِلُوا۟ ﴾ ترمينځ راغلی ځکه کله چي الله ښه خبردار په نېکوکاراوبدکاروي هريوه ته به ورسره وړجزا ورکړي اودابه هله دی کولای شي چي مقتدر اود پراخ سلطنت خاوند وي ([1]) وروسته الله تعالی دمتقيانو اونېکانو صفات هسي بيانوي چي ﴿ ٱلَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَٰٓئِرَ ٱلْإِثْمِ ﴾ (نيکوکاران) هغه کسان دي چي ځان له کبائروساتي (لکه شرک، قتل اوديتيم مال خوړل)

﴿ وَٱلْفَوَٰحِشَ ﴾ اوله لويوفواحشو قبيحو کارونو څخه (فاحشه هغه ناولي کار ته وايې چي عقلاو شرعًا په بدي کي منتهاته رسېدلی وي لکه زنا اود پلار ارتينه په نکاح اخيستل لکه چي الله فرمايې ﴿ وَلَا تَقْرَبُوا۟ ٱلزِّنَىٰٓ ۖ إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةً ﴾ اويـاداچي ﴿ وَلَا تَنكِحُوا۟ مَا نَكَحَ ءَابَآؤُكُم مِّنَ ٱلنِّسَآءِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةً وَمَقْتًا وَسَآءَ سَبِيلًا ﴾. ﴿ إِلَّا ٱللَّمَمَ ﴾ مګر وړې وړې ګناوي قرطبي وايې داهغه وړې ګناوي دي چي هرسړی ځان ورڅخه ساتلی نشي مګر هغه چي الله تعالی ساتلی وي دالکه: حراموته کتل، مچکه (بوسه) اخيستل سترګکونه وهل ([2]) او په حديث شريف کي راخي چي: الله بنيادم ته دزنايوه برخه ليکلي چي اورومرو به ورته رسېږي نود سترګو زناکتل دي دژبي زناخبري کول دي اودنفس زنا بياچورتونه اوحرامي هيلي اوغوښتني دي نو فرج بيايادغه رښتوني کوي اويايې هم تکذيبوي ([3]) کله چي بنده له غټو ګناهونو څه ځان وژغوري الله به پخپل فضل او کرم سره وړې ګناوي وروبښي چي الله فرمايې ﴿ إِن تَجْتَنِبُوا۟ كَبَآئِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ ﴾ يعني که له غټو منهی عنها ګناهونو موځان وژغورل نو وړې ګناوي به دروبښم ﴿ إِنَّ رَبَّكَ وَٰسِعُ ٱلْمَغْفِرَةِ ﴾ بېشکه رب ستا واسع (پراخ کونکی دبښني او) مغفرت دی) يعني الله غفار الذنوب اوستار العيوب دی ځوک چي

---

([1]) دابن الجوزي تفسير ۸/ ۷۵

([2]) دقرطبي تفسير ۱۷/ ۱۰۶

([3]) دبخاري روايت.

گناه وکړي او توبه وباسي الله يې مني. ابن کثير وايې يعني رحمت يې پراخ دی او چې څوک توبه گار شي
مغفرت يې گرد گناهونه ځايوي (١) بيضاوي وايې ښايې چې پدې تعقيب کې چې د گناهکارانو لـه
تهديد او د نيکوکارانو له زېرې څخه وروسته راغلی دې ته اشاره وي چې د کبيره گناهونو خاوندان د الله
رحمت څخه نا هيلي نشي او دا چې په الله د عذاب دلزوم گمان و نکړای شي (٢) ﴿ هُوَ أَعْلَمُ بِكُمْ إِذْ أَنشَأَكُم
مِّنَ الْأَرْضِ ﴾ الله ښه عالم دی په تاسي باندي کله چې پيدا يې کړی (پلار د) تاسي د ځمکي څخه
﴿ وَإِذْ أَنتُمْ أَجِنَّةٌ فِي بُطُونِ أُمَّهَٰتِكُمْ ﴾ او کله چې وی تاسي (پټ) بچي په گېډو د ميندو خپلو کي (الله ته
شقي او تقي مؤمن او کافر، نيکوکار او فاجر معلوم دي پوهېږي چې تاسو به څه کوی او بر خه ليک به مو څه
وي؟) ﴿ فَلَا تُزَكُّوٓا أَنفُسَكُمْ ﴾ نو مه ستايئ، مه پاکوئ تاسي ځانونه خپل (چې په ځان و يارئ ځکه نفس
د بر خسيس دی کله چې يې وستايي نو غرورو او تکبرو کړي. ابو حيان وايې معنا دا چې تاسو خپل ځانونه
له گناه پاک مه گڼئ او صفت يې مه کوئ الله پاک ته پخواله دې چې تاسو د خپل پلار آدم لـه شا څخه
را ووزی گرد معلوم وی چې څوک پاکيزه او څوک په گناهونو لړلی دی همدا سي پخواله زېږېدلو ستاسي
چې تاسو د ميندو په گېډو کي وی هم الله ته معلوم واست ﴿ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَىٰٓ ﴾ هم دغه (الله) ښه عالم دی
په هغه چا باندي چې له الله څخه (په پټه او ښکاره) وېرېږي

الله تعالی فرمايي:

﴿ أَفَرَءَيْتَ الَّذِي تَوَلَّىٰ ﴿٣٣﴾ وَأَعْطَىٰ قَلِيلًا وَأَكْدَىٰ ﴿٣٤﴾ أَعِندَهُۥ عِلْمُ الْغَيْبِ فَهُوَ يَرَىٰ ﴿٣٥﴾ أَمْ لَمْ يُنَبَّأْ بِمَا فِي صُحُفِ
مُوسَىٰ ﴿٣٦﴾ وَإِبْرَٰهِيمَ الَّذِي وَفَّىٰ ﴿٣٧﴾ أَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ﴿٣٨﴾ وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَٰنِ إِلَّا مَا سَعَىٰ ﴿٣٩﴾ وَأَنَّ سَعْيَهُۥ
سَوْفَ يُرَىٰ ﴿٤٠﴾ ثُمَّ يُجْزَىٰهُ الْجَزَآءَ الْأَوْفَىٰ ﴿٤١﴾ وَأَنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ الْمُنتَهَىٰ ﴿٤٢﴾ وَأَنَّهُۥ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكَىٰ ﴿٤٣﴾ وَأَنَّهُۥ هُوَ أَمَاتَ
وَأَحْيَا ﴿٤٤﴾ وَأَنَّهُۥ خَلَقَ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنثَىٰ ﴿٤٥﴾ مِن نُّطْفَةٍ إِذَا تُمْنَىٰ ﴿٤٦﴾ وَأَنَّ عَلَيْهِ النَّشْأَةَ الْأُخْرَىٰ ﴿٤٧﴾ وَأَنَّهُۥ هُوَ أَغْنَىٰ وَأَقْنَىٰ
﴿٤٨﴾ وَأَنَّهُۥ هُوَ رَبُّ الشِّعْرَىٰ ﴿٤٩﴾ وَأَنَّهُۥٓ أَهْلَكَ عَادًا الْأُولَىٰ ﴿٥٠﴾ وَثَمُودَا فَمَآ أَبْقَىٰ ﴿٥١﴾ وَقَوْمَ نُوحٍ مِّن قَبْلُ إِنَّهُمْ كَانُوا هُمْ
أَظْلَمَ وَأَطْغَىٰ ﴿٥٢﴾ وَالْمُؤْتَفِكَةَ أَهْوَىٰ ﴿٥٣﴾ فَغَشَّىٰهَا مَا غَشَّىٰ ﴿٥٤﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكَ تَتَمَارَىٰ ﴿٥٥﴾ هَٰذَا نَذِيرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْأُولَىٰٓ
﴿٥٦﴾ أَزِفَتِ الْآزِفَةُ ﴿٥٧﴾ لَيْسَ لَهَا مِن دُونِ اللَّهِ كَاشِفَةٌ ﴿٥٨﴾ أَفَمِنْ هَٰذَا الْحَدِيثِ تَعْجَبُونَ ﴿٥٩﴾ وَتَضْحَكُونَ وَلَا تَبْكُونَ ﴿٦٠﴾ وَأَنتُمْ
سَٰمِدُونَ ﴿٦١﴾ فَاسْجُدُوا لِلَّهِ وَاعْبُدُوا ۩ ﴿٦٢﴾ ﴾ النجم: ٣٣ – ٦٢

(١) د ابن کثير مختصر ٣ / ٤٠٣
(٢) د بيضاوي تفسير ٤ / ١٧٣

مناسبت:

کله چې په تېروآيتونوکې الله تعالی دمشرکانوناپوهي اودهغوی دعبادت په هکله گمراهي او ضلالت چې دوی به بتانوته عبادت کاوو، همداسې دمؤمنانواوکفاروتوپېربيان کړنودلته يې د مجرمينو دگناه يوځانگړی ډول راوړ او ورپسې بيې سورت په هغوهلاکتونو اوعذابونوچې مکذبينو کفاروته ورکول شوی پای ته ورساووترڅوچې دمشرکانولپاره يادونه وکړي چې الله جل جلاله هروخت له هغوکسانوڅخه چې دالله استازي دروغجن بولي انتقام اخلي.

لغتونه:

(أكدى) دورکړې قطع ،له(أكدية) څخه اخيستل شوی هغه چاته ويل کېږي چې دکوهي دکيندلو په وخت کې يوه تېږه مخې ته ورشي اوله بشپړولوڅخه يې پاتې کړي بياعربودهغه چاپه هکله استعمال کړي چې څه ورکول پيل اوبيايې منع کړي اويايې څوک ديوڅه غوښتل شروع کړي خوپای ته يې ونه رسوي (أقنى) په بشپړه توگه ورکړه اواعطاء ته وايې جوهري ليکي ددې معناچې:(قنى الرجل يقنى) لکه داسې دی چې (غنى الرجل يغنى) يعني الله تعالی هغه ته مال اودولت ورکړی اوچې څوک وايې (أقناه الله) معناداچې (رضاه الله) يعني الله هغه راضي کړی دی ([1])(الشعرى) هغه روښانه ستوری دی چې په سخته گرمۍ کې له جوزاوروسته راخېژي (أزفت) نژدې شوه (الآزفة) قيامت ته ويل کېږي څکه يې (آزفة) بولي چې نژدې راتلونکی دی (سامدون) غافل اوبې پروالوبي کونکی (سمود) لهو اوعبث ته وايې.

دنزول سبب:

روايت کېږي چې وليدبن مغيرة درسول الله ﷺ خواته کېناست اووعظ نصيحت يې واورېدو زړه يې نرم شو نژدې ووچې مسلمان شي نودمشرکانوڅخه يوچاپېغور ورکړچې تادخپلوپلرونو ددين د پرېښودلواراده کړې ته داسې گمان کوې چې هغوی گمراهان اوپه اورکې دي؟ وليدورته ووېل: زه د الله له عذابه ووېرېدم. هغه مشرک ورته ويل که يوڅه مال ماته راکړې اوشرک ته راوگرزې بيايې دالله عذاب زماپه غاړه نو وليديوڅه مال دولت ورکړاوبيايې ترې منع کړنو الله داآيت نازل کړچې: ﴿ أَفَرَءَيْتَ ٱلَّذِى تَوَلَّىٰ ۝ وَأَعْطَىٰ قَلِيلًا وَأَكْدَىٰٓ ﴾ ([2])

تفسير:

﴿ أَفَرَءَيْتَ ٱلَّذِى تَوَلَّىٰ ﴾ آياپس تاليدلی دی هغه څوک چې مخ يې واړاوو(له ايمانه؟) ﴿ وَأَعْطَىٰ قَلِيلًا وَأَكْدَىٰٓ ﴾ او وريې کړلږ شی (له مقرر مال څخه) اونوريې منع کړ. مجاهدوايې چې دغه آيت دوليد بن مغيرة په باب کې نازل شوی دی([3])﴿ أَعِندَهُۥ عِلْمُ ٱلْغَيْبِ فَهُوَ يَرَىٰٓ ﴾ آياشته له ده سره علم دغيبو پس دیويني (نجات خپل چې ملگری يې عذاب په غاړه اخلي؟) ﴿ أَمْ لَمْ يُنَبَّأْ بِمَا فِى صُحُفِ مُوسَىٰ ﴾ آيا ندی

---

([1]) دقرطبي تفسير ۱۷/ ۱۱۹

([2]) پخوانی دنزول سبب

([3]) دابن کثيرمختصر ۳/ ۴۰۴

خبرکړی شوی دی په هغه (شي) چي وو په صحیفو د موسی ﷺ (په تورات) کي ﴿ وَإِبْرَٰهِيمَ ٱلَّذِى وَفَّىٰٓ ﴾ او (په صحیفو پاڼو) دابراهیم کي هغه (ابراهیم) چي وفايې کړې وه (په احکامو د الله) چي په بشپړه توګه يې دالله د طاعت اوامر پرځای کړي او درسالت تبليغ يې سرته رسولی وو حسن وايې چې الله د هرڅه امر ورته کړی هغه يې پرځای کړی دی لکه چي الله جل جلاله يې په هکله فرمايي ﴿ وَإِذِ ٱبْتَلَىٰٓ إِبْرَٰهِـۧمَ رَبُّهُۥ بِكَلِمَٰتٍ فَأَتَمَّهُنَّ ﴾ (البقرة:۱۲۴) ﴿ أَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ﴾ (هلته داوو) چي نه پورته کوي هيڅ نفس پورته کونکی بارپيټی دبل نفس. آيت شريف په هغه چاباندي ردکوي چي څوک داسي ګمان کوي يوڅوک دبل چاعذاب په غاړه اخلي لکه چي الله فرمايي ﴿ وَأَن لَّيْسَ لِلْإِنسَٰنِ إِلَّا مَا سَعَىٰ ﴾ اوبله داچي نشته هيڅ انسان لره مګر (جزاء دهغه شي) چي کړي يې دي. ابن کثيروايي يعني لکه چي يوڅوک دبل باراوپېټی نه وړي همداسي دبل چاثواب اواجرهم ده ته نه ورکول کېږي څوچي پخپله يې کوم کاردځان لپاره نه وي کړی[1] ﴿ وَأَنَّ سَعْيَهُۥ سَوْفَ يُرَىٰ ﴾ اوبېشکه (داچي) جزادعمل دده ژرده چي ده ته به وښودلي شي (په مېزان کي. خازن وايي په آيت شريف کي دمؤمن لپاره بشارت دی چي الله به يې نېک اعمال وروښني ترڅوچي وربانديخوشحاله شي اوکافرته به بيادديلپاره ورليدل کېږي چي خفګان يې زيات شي[2]).

﴿ ثُمَّ يُجْزَىٰهُ ٱلْجَزَآءَ ٱلْأَوْفَىٰ ﴾ بيابه جزاورکړی شي هغه ته جزادپوره بدل بنه (د نېکي نېکه دبدي بده دغه دمؤمن لپاره وعده اودکافرلپاره وعيددي ﴿ وَأَنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ ٱلْمُنتَهَىٰ ﴾ او بېشکه (داچي) رب ستاته ده انتهاء دګردو (مخلوقاتوپس له مرګه چي دجزاء لپاره ورته ورځي) چاته ثواب اوچاته عقاب ورکوي، وروسته الله دخپل قدرت آثارهسي بيانوي چي: ﴿ وَأَنَّهُۥ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكَىٰ ﴾ او(داچي) بېشکه همغه (الله) خندوي اوژړوي (خوښي اوغم يې په واک کي دی نوپه دنياکي څوک خندوي اوڅوک ژړوي. مجاهدوايي جنتيان خندوي اودوزخيان ژړوي[3]) ﴿ وَأَنَّهُۥ هُوَ أَمَاتَ وَأَحْيَا ﴾ او بېشکه همغه (الله) وژني اوژوندي کوي) يعني يوازي الله په احيااو اماتت باندي قادردی خکه يې په (هو) سره اسنادمکرر راوړی چي دغه دالله اختصاص دی ﴿ وَأَنَّهُۥ خَلَقَ ٱلزَّوْجَيْنِ ٱلذَّكَرَ وَٱلْأُنثَىٰ ﴾ او(داچي) بېشکه همغه (الله) پيداکړي يې دي جوړي نراوښځه (له بنيادمواوحيواناتو څخه خازن وايي معنا دا چي الله پاک په يوه ځای کي دضدينوپه پيداکولوقادردی، خنداوژړا، ژوند اومرګ، نر او ښځه اودا هغه څه دي چي دېوهانوعقل هم نه وررسېږي اويوازي دالله جل جلاله په قدرت سره کېږي د طبيعت کارنه دی، په دې کي دالله په بشپړقدرت باندي تنبيه ده څکه چي نطفه يوڅېزدی خوالله جل جلاله ور څخه مختلف غړي اواندامونه پيداکړي جلاجلاطبائع يې ترې جوړکړي نراوښځه يې ورڅخه پنځولي اودغه دالله دکمال

---

[1] دابن کثيرمختصر ۳/ ۴۰۴

[2] خازن ۴/ ۲۲۳

[3] البحرالمحيط ۸/ ۱۶۶

قدرت عجیبه نمونه دي څکه نوفرمايي ﴿ مِن نُّطْفَةٍ إِذَا تُمْنَىٰ ﴾ له يوه څاڅكي اوبو (د مني) څخه كله چې وڅڅاوو شي (دښځي په رحم كي) ﴿ وَأَنَّ عَلَيْهِ ٱلنَّشْأَةَ ٱلْأُخْرَىٰ ﴾ اوبېشكه په ده باندي دی پيدا كول دوهم خلي (پس له مرگه ددوی. په البحركي ليكي څرنگه چي له دغه بعث او نشور څخه د هركافران منكر وونو الله دهغه په هكله مبالغه راوړه چي د(عليه) په توري يې وستايل لكه چي د غه الله تعالى پخپل خان باندي واجب گرزولي وي(١) ﴿ وَأَنَّهُۥ هُوَ أَغْنَىٰ وَأَقْنَىٰ ﴾ اوبېشكه همغه (الله) غني كوي اوخواروي (چاته چي يې رضاشي(٢) او ابن عباس وايي: معناداچي غني يې كړي اوبيايې راضي كړي په هغه باندي ﴿ وَأَنَّهُۥ هُوَ رَبُّ ٱلشِّعْرَىٰ ﴾ او بېشكه همغه (الله) رب د شعرى دى ) هغه روښانه ستورى چي دوى يې عبادت كاوو. ابوالسعود وايي معناداچي الله ددوی د معبودرب دی ددغه ستوري عبادت به دخزاعه قوم كاوو چي ددوی يوه تن چي ابو كبشة نوميده دغه دود ، سنت او (لاره) ورته پرې اينبي وه ﴿ وَأَنَّهُۥٓ أَهْلَكَ عَادًا ٱلْأُولَىٰ ﴾ اوبېشكه همغه (الله) وژلي هلاک كړي دي عاديان رومبی (هغوی چي هود عليه السلام ورته رالېږل شوی وو اودوی تر گردو خلگو خښت ، قوي اوله الله څخه تر گردو انسانانو زيات سرغړونكي اوباغيان وونوالله په سركښه صرصرباد باندي ووژل صاوي وايي دوی ته يې عادأولی څكه وويل چي له نوح عليه السلام راوروسته لومړني خلگ چي هلاكت يې په برخه شو همدادوی وو(٣) ﴿ وَثَمُودَا فَمَآ أَبْقَىٰ ﴾ او (هلاک كړي دي )ثموديان پس باقي يې پرې نښودبل هيڅوک (له هغوی نه) ﴿ وَقَوْمَ نُوحٍ مِّن قَبْلُ ﴾ او (هلاک كړی يې دی) قوم د نوح پخوا له دوی (عاديانو او ثموديانو ) نه ﴿ إِنَّهُمْ كَانُواْ هُمْ أَظْلَمَ وَأَطْغَىٰ ﴾ بېشكه چي دوی ووهم دوی ډېر سركښه ډېر ظالمان (يعني دوی تردا نورودوو ډلولاپسي زيات ظالمان او سركښان وو، په البحركي راوړي چي دوی نهايته سر غړونكي اونوح ته آزار رسونكي وو نوح عليه السلام به يې ترهغووهل ډبول چي له خوځېدوبه ووت اودنوح عليه السلام وعظ اوپندبه وورباندي هيڅ اغېزه نه كوله قتاده وايي ۹۵۰ نه سوه پنځوس كاله يې قوم ته تبليغ وكړچي يوه پېړۍ به له مينځه لاړه بله پېړۍ به راغله آن تردې چي يوسړي به خپل زوی ترلاس نيولی د نوح مخي ته ودراوو چي ځني و يې وېروي او ورته ويل به يې ای زويه زه خپل پلار هم داسي را وستلم اوده ته يې ودرولم لكه چي ماته راوستلي گوره چي ددغه خبره ونه منې ، نو لوی به يې په كفر مړشواوماشوم به دنوح ﷺ په بغض اوعداوت لوئېدو(٤) ﴿ وَٱلْمُؤْتَفِكَةَ أَهْوَىٰ ﴾ اوهغو كليوااړول شويولره چي ښكته يې ځمكي ته پس له پورته كېدلو دجبريل راوغورځول ﴿ فَغَشَّىٰهَا مَا غَشَّىٰ ﴾ پس راولوېدلې په هغوی باندي هغه څه چي راولوېدل، (له

(١) البحر المحيط ٨ /١٦٨

(٢) دغه دابن زيد وينا ده چي بيايې دا آيت ولوست ﴿ ٱللَّهُ يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقْدِرُ (٢٦) ﴾ الرعد

(٣) دبيضاوي تفسير ٤ /١٧٤

(٤) البحر المحيط ٨ /١٧٠

عذابونو څخه اوپدې کې د عذاب هیبت اوسترتوب همدا راز تعمیم ته اشاره ده. په البحرکې راوړي چې : مؤتفکة دلوط علیه السلام هغه کلی دی چې پخپل اهل باندې یې راپرېوتل هسې چې جبریل ﷺ دآسمان لورته اوچت کړل اوبیایې په خمکه راوویشتل دپخوګټوورېایې ورباندې وکړه همدغه ددې کلام معنا ده چې فرمایې (١) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكَ تَتَمَارَىٰ ﴾ ؟ پس په کومونعمتونودرب خپل ته شک کوې (ای کافر انسانه؟) ﴿ هَٰذَا نَذِيرٌ مِّنَ ٱلنُّذُرِ ٱلْأُولَىٰٓ ﴾ دغه (محمد رسول الله هم) وېرونکی له (جملې د) وېرونکیو رومبنیو څخه ده (چې تاسوېې دقومونو حال واورېدو) ﴿ أَزِفَتِ ٱلْـَٔازِفَةُ ﴾ رانژدې شوراتلونکی (قیامت) قرطبي وايې څکه یې (آزفة) بولي چې راتلل یې نژدې دي (٢) ﴿ لَيْسَ لَهَا مِن دُونِ ٱللَّهِ كَاشِفَةٌ ﴾ (نشته هغه لره لره پرته له الله ښکاره کونکی) یعني هیڅوک پرته له الله دهغه کړاوونه اوشدائدپورته کولای نشي کله چې خلک ونغاړي ﴿ أَفَمِنْ هَٰذَا ٱلْحَدِيثِ تَعْجَبُونَ ﴾ آیاپس له دې خبرې (قرآن) څخه تعجب کوی تاسي (ای مشرکانوچې ملندې یې بولی؟ استفهام دتوبیخ لپاره دی ﴿ وَتَضْحَكُونَ وَلَا تَبْكُونَ ﴾ اوخاندئ تاسي (تمسخرًا په اورېدلوېې اونه ژاړی (خوفًا) کله چې زواجر اوآیتونه یې اوری حق او ورخودرسره داووچې داوښکوپرځای ویني توی کړی ! ﴿ وَأَنتُمْ سَٰمِدُونَ ﴾ اوتاسي غافلان یی (له مطلوبه) چتې بېکاره لوبې کوی ﴿ فَٱسْجُدُوا۟ لِلَّهِ وَٱعْبُدُوا۟ ﴾ پس سجده کوئ تاسي (خاص) الله ته اوعبادت کوئ دهمدغه (الله یوازې دبل چاعبادت لکه دلات ، عزی، منات اوشعری مه کوئ الله واحد ،فرد ،صمد ، احدذات دی چې له ده پرته بل څوک د سجدې اوعبادت وړ اولائق نشته.

بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې دبدیع اوبیان کومې ښکلاوې شته لنډ یې دادي:

١ – دتعظیم اوتهویل لپاره ابهام لکه ﴿ فَأَوْحَىٰٓ إِلَىٰ عَبْدِهِۦ مَآ أَوْحَىٰ ﴾ اوددې په څېر ﴿ إِذْ يَغْشَى ٱلسِّدْرَةَ مَا يَغْشَىٰ ﴾ اوهمداسې ﴿ فَغَشَّىٰهَا مَا غَشَّىٰ ﴾.

٢ – دجناس صنعت چې فرمایې ﴿ وَٱلنَّجْمِ إِذَا هَوَىٰ ... وَمَا يَنطِقُ عَنِ ٱلْهَوَىٰٓ ﴾ لومړی (هَوَىٰ) د لوېدلو په معنی اودوهمه (هَوَىٰ) دنفسي خواهشاتونوم دی.

٣ – دطباق صنعت لکه د ﴿ أَضْحَكَ وَأَبْكَىٰ ﴾ اود ﴿ أَمَاتَ وَأَحْيَا ﴾ اود ﴿ ضَلَّ... ٱهْتَدَىٰ ﴾ اود ﴿ ٱلْـَٔاخِرَةُ وَٱلْأُولَىٰ ﴾ اود ﴿ وَتَضْحَكُونَ ..... تَبْكُونَ ﴾ ترمینځ چې راغلی دغه له بدیعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي.

---

(١) نفس المرجع السابق.
(٢) القرطبي ١٧/ ١٢٢

۴ - مقابله چي فرمايي ﴿ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ أَسَٰٓـُٔوا۟ بِمَا عَمِلُوا۟ وَيَجْزِيَ الَّذِينَ أَحْسَنُوا۟ بِالْحُسْنَى ﴾ لكه چي دلفظ په تكرارسره اطناب صنعت هم پكي راغلى اودواړه له بديعي محسناتو څخه ګڼلى شي.

۵ - استفهام دتوبيخ لپاره اوداچي ددوى په عقلونو پېشاړي ووهي لكه ﴿ أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنثَىٰ ﴾ ..... ﴿ تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزَىٰ ﴾ .

۶ - ناقص جناس چي د ﴿ أَغْنَىٰ ﴾ اود ﴿ أَقْنَىٰ ﴾ ترمينځ راغلى اودځينوتورو اختلاف دى.

۷ - اشتقاقي جناس پدې كلام كي ﴿ أَزِفَتِ الْآزِفَةُ ﴾ .

۸ - عطف دعام پرخاص باندي كله چي الله فرمايي: ﴿ فَاسْجُدُوا۟ لِلَّهِ وَاعْبُدُوا۟ ﴾ .

۹ - دفواصلو اوآيتونو دپيل مراعات چي په اوربدلو باندي خوراښه اغېزپرې باسي لكه ﴿ أَفَرَءَيْتُمُ اللَّٰتَ وَالْعُزَّىٰ ﴾ ..... ﴿ وَمَنَوٰةَ الثَّالِثَةَ الْأُخْرَىٰٓ ﴾ ..... ﴿ أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنثَىٰ ﴾ اوددې په شان ﴿ أَفَمِنْ هَٰذَا الْحَدِيثِ تَعْجَبُونَ ﴾ ..... ﴿ وَتَضْحَكُونَ وَلَا تَبْكُونَ ﴾ ..... ﴿ وَأَنتُمْ سَٰمِدُونَ ﴾ ؟ اودغه ته سجع وايي (چي ښكلا يې دپېټېدو نه ده).

تنبيه:

هغه بتان چي مشركانو به يې عبادت كاوو خوراډېروو چي نژدې درې سوه شپېته بتان كېږي او زياتره يې دكعبې شريفي خواوشا دړول شوي وو كوم چي دمكې شريفي دفتحې په كال ونړول شول اوترګردومشهور يې لات، عزى اومنات وو چي رسول الله صلى الله عليه وسلم په همدغه كال خالدبن وليدوروا ستاووچي عزّاونړوي نوهغه يې ونړاوو اوويل يې:

يا عزّ كفرانك لا سبحانك * انى رايت الله قد اهانك

اى عزى دغندلو يې دستايلو نه يې * زه پدې باوريم چي الله سپك كړې همداسي دمكې له فتحې سره جوخت دبتانو عبادت هم پاى ته ورسېد او خلكو ټولى ټولى دالله جل جلاله په دين كي داخلېدل پيل كړل.

دالله جل جلاله په مرسته دالنجم سورت تفسير بشپړ شو.

***

## د (القمر) سورت مکي او پنځه پنځوس آيتونه لري

دسورت په وړاندې

دالقمرسورت چې دمکي سورتونوڅخه يودی داسلامي عقيدې اصول ښيي اوله پيله ترپايه په قرآني آيتونوباندې دتکذيب کونکوسره دجګړې اوشخړې بڼه لري ددغه سورت ځانګړې ښه ګرد سره دوعيد، اخطار اوانذاردی چې په ترڅ کې يې دډول ډول هلاکتونواوعذابونوڅېرې بربنډ ېږي.

لومړی داسورت دغه دکائناتومعجزه چې دسپوږمۍ چاودېدل دي راوړي هغه چې درسول الله سيدالبشرله بېشمېره معجزاتوڅخه يوه ده کومه چې مشرکانوورڅخه په وړاندېز وغوښتلې اوپه خاصه توګه داچې سپوږمۍ دوه ټوټې کړي نوبيابه يې دوی دنبوت تصديق کوي خوله دې سره سره بيا يې هم ونه مانوالله فرمايي ﴿ اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانشَقَّ الْقَمَرُ وَإِن يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ﴾ دآيتونوترپايه.

وروسته دقيامت کړاوونه اوسختي راوړي اوداسي يې انځوروي چې خورا وېرونکي اومشاعر خوځوي په زړه کې له دغې سختي ورځې څخه وېره راپاخوي فرمايي: ﴿ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ يَوْمَ يَدْعُ الدَّاعِ إِلَىٰ شَيْءٍ نُّكُرٍ خُشَّعًا أَبْصَارُهُمْ يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنتَشِرٌ مُّهْطِعِينَ إِلَى الدَّاعِ يَقُولُ الْكَافِرُونَ هَٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ ﴾.

له دې په ورروسته چې دمکې دکفاروخبرې پای ته رسوي ددروغجن ګڼونکوکفاروحال بيانوي چې څرنګه يې په دنيااوآخرت کې عذابونه په برخه شوي اودنوح له قومه يې پيلوي چې ﴿ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ فَكَذَّبُوا عَبْدَنَا وَقَالُوا مَجْنُونٌ وَازْدُجِرَ ﴾.

وروسته دتېروأمتونوله سرغړونکو، جبابره ووڅخه هغوی چې دانبياووتکذيب يې کاووغږېږي چې الله تعالی هغوی څنګه هلاک کړل اوبېخ اوبکريې وايستل؟ چې پدې لړکې دعاد، ثمود، لوط اوفرعون قومونه اونورباغيان په يوڅه تفصيل سره راوړي اودعذابونوتصويريې ښيي.

وروسته له دغه دردناکه عذابونواونيمه خواهلاکتونوچې محمدرسول الله ته يې بيان وشو سورت دقريشومخاطبي ته مخ را اړوي اوداسي هلاکتونواوعذابونوڅخه يې وېروي بلکه تردغه لازيات اوسخت عذاب لپاره ورته ګوت څنډنه کوي چې: ﴿ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ ﴾ دآيتونوترپايه

بياوروسته سورت دنېکمرغه متقيانوبرخه ليک را اخلي کله چې دبدمرغه اشقياوو يې پخوا ښودلې دي اودغه قرآني اسلوب دی چې ترغيب اوترهيب سره يوځای راوړي اوپه عجيبه ښکلي اسلوب يې بيانوي فرمايي: ﴿ إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَهَرٍ فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِندَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍ ﴾.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ ٱقۡتَرَبَتِ ٱلسَّاعَةُ وَٱنشَقَّ ٱلۡقَمَرُ ﴿١﴾ وَإِن يَرَوۡاْ ءَايَةٗ يُعۡرِضُواْ وَيَقُولُواْ سِحۡرٞ مُّسۡتَمِرّٞ ﴿٢﴾ وَكَذَّبُواْ
وَٱتَّبَعُوٓاْ أَهۡوَآءَهُمۡۚ وَكُلُّ أَمۡرٖ مُّسۡتَقِرّٞ ﴿٣﴾ وَلَقَدۡ جَآءَهُم مِّنَ ٱلۡأَنۢبَآءِ مَا فِيهِ مُزۡدَجَرٌ ﴿٤﴾ حِكۡمَةُۢ
بَٰلِغَةٞۖ فَمَا تُغۡنِ ٱلنُّذُرُ ﴿٥﴾ فَتَوَلَّ عَنۡهُمۡۘ يَوۡمَ يَدۡعُ ٱلدَّاعِ إِلَىٰ شَيۡءٖ نُّكُرٍ ﴿٦﴾ خُشَّعًا أَبۡصَٰرُهُمۡ يَخۡرُجُونَ مِنَ
ٱلۡأَجۡدَاثِ كَأَنَّهُمۡ جَرَادٞ مُّنتَشِرٞ ﴿٧﴾ مُّهۡطِعِينَ إِلَى ٱلدَّاعِۖ يَقُولُ ٱلۡكَٰفِرُونَ هَٰذَا يَوۡمٌ عَسِرٞ ﴿٨﴾ ۞ كَذَّبَتۡ قَبۡلَهُمۡ قَوۡمُ نُوحٖ فَكَذَّبُواْ
عَبۡدَنَا وَقَالُواْ مَجۡنُونٞ وَٱزۡدُجِرَ ﴿٩﴾ فَدَعَا رَبَّهُۥٓ أَنِّي مَغۡلُوبٞ فَٱنتَصِرۡ ﴿١٠﴾ فَفَتَحۡنَآ أَبۡوَٰبَ ٱلسَّمَآءِ بِمَآءٖ مُّنۡهَمِرٖ ﴿١١﴾ وَفَجَّرۡنَا
ٱلۡأَرۡضَ عُيُونٗا فَٱلۡتَقَى ٱلۡمَآءُ عَلَىٰٓ أَمۡرٖ قَدۡ قُدِرَ ﴿١٢﴾ وَحَمَلۡنَٰهُ عَلَىٰ ذَاتِ أَلۡوَٰحٖ وَدُسُرٖ ﴿١٣﴾ تَجۡرِي بِأَعۡيُنِنَا جَزَآءٗ لِّمَن كَانَ كُفِرَ
﴿١٤﴾ وَلَقَد تَّرَكۡنَٰهَآ ءَايَةٗ فَهَلۡ مِن مُّدَّكِرٖ ﴿١٥﴾ فَكَيۡفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿١٦﴾ وَلَقَدۡ يَسَّرۡنَا ٱلۡقُرۡءَانَ لِلذِّكۡرِ فَهَلۡ مِن
مُّدَّكِرٖ ﴿١٧﴾ كَذَّبَتۡ عَادٞ فَكَيۡفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿١٨﴾ إِنَّآ أَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِمۡ رِيحٗا صَرۡصَرٗا فِي يَوۡمِ نَحۡسٖ مُّسۡتَمِرّٖ ﴿١٩﴾ تَنزِعُ
ٱلنَّاسَ كَأَنَّهُمۡ أَعۡجَازُ نَخۡلٖ مُّنقَعِرٖ ﴿٢٠﴾ فَكَيۡفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٢١﴾ وَلَقَدۡ يَسَّرۡنَا ٱلۡقُرۡءَانَ لِلذِّكۡرِ فَهَلۡ مِن مُّدَّكِرٖ ﴿٢٢﴾ كَذَّبَتۡ ثَمُودُ
بِٱلنُّذُرِ ﴿٢٣﴾ فَقَالُوٓاْ أَبَشَرٗا مِّنَّا وَٰحِدٗا نَّتَّبِعُهُۥٓ إِنَّآ إِذٗا لَّفِي ضَلَٰلٖ وَسُعُرٍ ﴿٢٤﴾ أَءُلۡقِيَ ٱلذِّكۡرُ عَلَيۡهِ مِنۢ بَيۡنِنَا بَلۡ هُوَ كَذَّابٌ أَشِرٞ
﴿٢٥﴾ سَيَعۡلَمُونَ غَدٗا مَّنِ ٱلۡكَذَّابُ ٱلۡأَشِرُ ﴿٢٦﴾ إِنَّا مُرۡسِلُواْ ٱلنَّاقَةِ فِتۡنَةٗ لَّهُمۡ فَٱرۡتَقِبۡهُمۡ وَٱصۡطَبِرۡ ﴿٢٧﴾ وَنَبِّئۡهُمۡ أَنَّ ٱلۡمَآءَ قِسۡمَةُۢ
بَيۡنَهُمۡۖ كُلُّ شِرۡبٖ مُّحۡتَضَرٞ ﴿٢٨﴾ فَنَادَوۡاْ صَاحِبَهُمۡ فَتَعَاطَىٰ فَعَقَرَ ﴿٢٩﴾ فَكَيۡفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٠﴾ إِنَّآ أَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِمۡ صَيۡحَةٗ وَٰحِدَةٗ
فَكَانُواْ كَهَشِيمِ ٱلۡمُحۡتَظِرِ ﴿٣١﴾ وَلَقَدۡ يَسَّرۡنَا ٱلۡقُرۡءَانَ لِلذِّكۡرِ فَهَلۡ مِن مُّدَّكِرٖ ﴿٣٢﴾ ﴾ القمر: ١ - ٣٢

## لغتونه:

(الاجداث) د جدث جمع او قبرته وايي (مهطعين) چابک تېزګرندی (منهمر) په شېبو شېبو اوربنت (دُسُر) مېخونه د (دسار) جمع لکه کتب او کتاب غوندي دی په صحاح کي وايي چي دَسَّارد (دسر) مفرد دی او هغو مزيو ته وايي چي د بېړۍ تختې ورباندي ټينګوي چابيا مېخونه بللي دي [1] (مدکر) وېرېدونکی پند اخيستونکي ته وايه شي اصل يې (مذتکر) و (تا) يې په دال بدله او ذال يې په دال کي دننه (مدغم) کړ (مدکر) جوړشو (صرصر) سخت ديخني تندباد دغه له (صرير الباب) څخه اخيستل شوی چي د دروازې غږ ته ويل کېږي (منقعر) له بېخه ايستل شوی (سعر) جنون او لېونتوب ته وايي ويل کېږي (ناقة مسعورة) لکه چي له ډېري مستي لېونۍ وي. (أشر) متکبر هغه چي له ډېره نازاو نعمته متکبروي

تفسير: ﴿ ٱقۡتَرَبَتِ ٱلسَّاعَةُ وَٱنشَقَّ ٱلۡقَمَرُ ﴾ رانژدې شو قيامت او څيري دوه ټوټې شوه سپوږمۍ

﴿ وَإِن يَرَوۡاْ ءَايَةٗ يُعۡرِضُواْ ﴾ (او که ووينې دغه (قريشي کفار) کوم دليل (د قدرت) نو پر څنګ به شي (مخ به ترې واړوي) يعني که د قريشو کفار کومه ښکاره معجزه او د رسول الله په رسالت باندي څرګنده نښه

[1] الصحاح مادة (دسر).

چي په ربښتنولي بې دلالت کوي وويني نوله ايمانه به ګرزي ﴿ وَيَقُولُواْ سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ﴾ اووايي به دغه سحرکوونکي دي چي له پخواراهيسي راځي (چي محمدزموږ په سترګو باندي جادوکوي مفسرين کرام وايي چي دمکې کفارورسول الله ﷺ ته وويل كه ته په ربښتيا پيغمبربې نودغه سپوږمۍ راته دوه ټوټې کړه که دي هسي وکړل نوموږ به ايمان راوړو دغه دځورلسم سپوږمۍ اودبدرپه حالت کي وه نورسول الله ﷺ له پروردګارڅخه غوښتنه وکړه چي ددوی داوړاندېزشوي معجزه ورکړي نوسپوږمۍ دوه ځایه شوه نيمه ټوټه يې دصفاپه غره اونيمه پاتي يې دقيقعان په غره چي صفاته مخامخ وو راغله چي دوی يې ترمينځ مسافه وليدله اوبيايې وويل چي محمدپرموږباندي کوډي وکړې اوبيايې وويل :که ده پرموږباندي کوډي وکړې خوهغه نشي کولای چي په ګردو خلګوکوډي وکړي !! ابوجهل وويل تاسوصبروکړئ چي دصحرا خلګ راشي نوکه چېري دوی هم دغه پېښه ليدلي وه بيانوخبره سمه ده او که هغوی نه وه ليدلي نوبياخومحمدراباندي کوډي کړي دي ، کله چي له بيابان څخه خلګ راغلل او دوی دغه هېښوونکي پېښه ترې وپوښتله هغوی هم له بيابان څخه دغسي شاهدي وويله نوهله دوی ويل چي:

(هذاسحرمستمر) نوالله جل جلاله داآيت نازل کړ ﴿ اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانشَقَّ الْقَمَرُ ۝ وَإِن يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ﴾ (۱) خازن وايي چي شق القمردرسول الله ﷺ له ځرګندومعجزاتوڅخه ووچي دشيخينوروايت کړی حديث شريف وربانديدلالت کوي هغه داچي له حضرت انس رضي الله عنه روايت دی هغه وايي : دمکې خلګوله رسول الله ﷺ څخه وغوښتل چي کومه معجزه وروښيي نويې دوه ځله انشقاق القمر(دسپوږمۍ ټوټه کېدل) وروښودل اوبل له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه وايي: درسول الله په زمانه کي سپوږمۍ دوه ټوټې شوه اورسول الله ﷺ وفرمايل: شاهدان اوسئ (۲)بل هغه دجبيربن مطعم څخه روايت شوی چي هغه وايي درسول الله په زمانه کي سپوږمۍ دوې ټوټې شوه نوقريشوو ويل محمدزموږ په سترګوسحروکړنوځينو وويل: که زموږپه سترګويې سحروکړدګردو خلګوپه سترګوخوسحرنشي کولای !! نودوی به له سپرو پوښتني کولې هغوی به ويل چي په ربښتيا موږهم (په صحراکي) وليدله نودوی به دروغجن ګڼل(۳)دغه ګردصحيح احاديث دي چي په دغه ستره معجزه باندي شاهدي وايي اوپردوی سربېره دقرآنکريم شهادت دی چي ترګردوقوي اوغښتلی دليل دی اوددغه انشقاق په امکان لرلو مؤمن کله هم شک نه کوي ، دآيت په معناکي ځينوخلګوويلي چي دغه به دقيامت په ورځ ترسره کېږي نودغه ويناباطله ده ثبوت يې هڅو نه دی راغلی داجماع هم مخالف دی اودقرآنکريم له تعبيرسره هم سمون نه خوري ځکه چي دماضي په لفظ ﴿ وَانشَقَّ الْقَمَرُ ﴾ باندي ويل شوی اوداچي ماضي په مستقبل اړول کېږي داخوراليري برېښي (۴) ﴿ وَكَذَّبُوا وَاتَّبَعُوا أَهْوَاءَهُمْ ﴾

---

(۱) دغه دجمهورومفسرينوويناده اوله ابن عباس رضی الله عنهما څخه روايت شوی او انس او ابن عمر رضی الله عنهما هم ورسره ملګري دي ځينو بياولي چي دغه شق القمربه دقيامت په ورځ وي خودغه شاذقول دی اوداجماع سره نه شي پرتله کېدای

(۲) رواه البخاري

(۳) ترمذي اونورو روايت کړی

(۴) دخازن تفسير ۴/ ۲۳۲

(او دروغجن کوي دوی (حق لره) او متابعت کوي دوی د خواهشاتو خپلو) يعني دوی د پيغمبر او هغه نښ
چي د الله د قدرت نښي بې په اُنشقاق القمر کي وليدلې تکذيب وکړ او د هغه څه چي شيطان ورته ښايسته
کړي وو پلوي بې وکړه ﴿ وَكُلُّ أَمْرٍ مُّسْتَقِرٌّ ﴾ او هر کار قرار نيونکی دی (که خيرو و خو خير او که
شر وو بيا نو شر مقاتل وايي: معنا داچي هري وينا ته منتها او حقيقت شته چي هلته به رسېږي، قتاده وايي
معنا داچي هر کار قرار نيونکی دی (سره له خپله اهله خير له اهل خير سره او شر بيا له اهل شر سره)
(۱) ﴿ وَلَقَدْ جَاءَهُم مِّنَ الْأَنبَاءِ مَا فِيهِ مُزْدَجَرٌ ﴾ او خامخا په تحقيق راغلي دي دوی ته خبري
د پخوانيو اُمتونو هغه شی چي په هغه کي امتناع سرزنش وو (له کفره) ضلالته) ﴿ حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ ﴾
حکمت دی کامل نهايت ته رسېدلی (دغه قرآن په هدايت او بيان کي) ﴿ فَمَا تُغْنِ النُّذُرُ ﴾ (پس هيڅ نفع
نه رسوي (دوی ته) وېرونکي) يعني کوم يوشی هم هغه چاته نفع رسوي څوک چي الله هغه ته شقاوت
ليکلی وي په غوږونو اوزړه بې مهرلګولی وي؟ مفسرين کرام وايي معنا داچي: دوی ته قرآن راغی هغه
بشپړ حکمت دی چي نهايت ته رسېدلی دی خو هغه چاته چي غوږونو بې د کلام الله له اورېدلو کانه وي څه
ګټه رسوي؟ لکه چي الله فرمايي ﴿ قُلِ انظُرُوا مَاذَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَمَا تُغْنِي الْآيَاتُ وَالنُّذُرُ عَن قَوْمٍ لَّا
يُؤْمِنُونَ ﴾ ﴿ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ ﴾ نو مخ وګرزوه ته له هغوی څخه (ای محمده او دوی ته منتظر اوسه!) ﴿ يَوْمَ
يَدْعُ الدَّاعِ إِلَىٰ شَيْءٍ نُّكُرٍ ﴾ (او ياد کړه هغه) ورځ چي راوبولي (دوی لره) بلونکی يوشي نا اشنا ته)
يعني چي اسرافيل دوی هغه څه ته چي له شدت او هيبت سره بې خلګ نا اشنا وکړه لري راوبولي هغه
د قيامت ورځ او د ناورين او کړاوونو درلودونکی دی ﴿ خُشَّعًا أَبْصَارُهُمْ ﴾ حال داچي وېرېدونکي خړي
خواري به وي ستر ګي د دوی (له ډېري سختي څخه به يي پورته کولای نشي) ﴿ يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ ﴾
راوزي به دوی له قبرونو څخه ﴿ كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنتَشِرٌ ﴾ ګواکي دوی به ملخان وي خواره واره (چي له وېري
څخه به نه پوهېږي چېرته درومي؟ ابن جوزي وايي داچي له خورو ورو ملخانو سره يې د دوی تشبيه
وکړه څکه چي ملخان د مقصد لوری نلري همداسي به دوی وېرېدلي له قبرونو راپاڅي چي يو به هم داسي
معلوم لوری نلري چي هلته ولاړشي مراد له بلونکي څخه اسرافيل دی(۲) ﴿ مُّهْطِعِينَ إِلَى الدَّاعِ ﴾ تلوار
کونکي به وي په لوري د خپل بلونکي (څنډ به نکوي) ﴿ يَقُولُ الْكَافِرُونَ هَٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ ﴾ وايي به کافران
دا ورځ ده ډېره سخته. خازن وايي: پدې کي دې لوري ته اشاره ده چي دغه ورځ به په کافرانو باندي سخته
وي په مؤمنانو سخته نه ده لکه چي الله فرمايي ﴿ عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ ﴾ (المدثر ۱۰) بيا الله تعالی
د دروغجن ګڼونکو اُمتونو عذاب او کړاوونه د رسول الله ﷺ د ډاډيني او د کفارو د وېروني لپاره داسي

---

(۱) د ابن جوزي تفسير ۸/ ۸۹
(۲) د ابن جوزي تفسير ۸/ ۹۱

فرمايي ﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ﴾ دروغجن كړى دي پخوا له دوى څخه قوم دنوح (نوح لره) ﴿فَكَذَّبُوا عَبْدَنَا وَقَالُوا مَجْنُونٌ وَازْدُجِرَ﴾ نو دروغجن كړ دوى بنده زموږ او ويې ويل چي دغه (نوح) لېوني دى او منع كړى شوى دى (له دعوته) يعني هغه يې دنبوت له دعوى څخه منع كړ بښكنځل يې ورته كول هغه يې وېراوو اخطارونه به يې وركول چي ﴿قَالُوا لَئِن لَّمْ تَنتَهِ يَا نُوحُ لَتَكُونَنَّ مِنَ الْمَرْجُومِينَ﴾ په البحر المحيط كي راوړي چي دوى يوازي دهغه په دروغجن گڼلو بسنه (قناعت) ونكړه ان تردې چي لېونى يې وباله يعني دى هغه څه وايې چي هوښيار سړى يې هڅونه مني او دغه گواكي ددوى له خوا د حضرت نوح عليه السلام په تكذيب كي مبالغه ده او داچي الله تعالى حضرت نوح عليه السلام په عبوديت وستايه او ويې ويل (عبدنا) دغه دهغه تشريف او په عبوديت كي ځانگړتيا ښيي[1] ﴿فَدَعَا رَبَّهُ أَنِّي مَغْلُوبٌ فَانتَصِرْ﴾ پس سوال دعا وكړه (نوح) له خپله ربه (داسي چي) بېشكه زه مغلوب عاجز شوى يم نو بدل مي واخله (له كفارو څخه) يعني اى الله زه ددغو مجرمانو سره دمقابلې كولو توان نلرم له دوى څخه زما كسات واخله او دخپل دين مرسته وكړه. ابو حيان وايې هله يې ښېراورته وكړه چي كله ترې ناهيلى شو او دوى په خپله سركښي كي اوج ته رسېدلي وو يو تن ددې ظالمانو به حضرت نوح ترستوني ونيو چي څو به بېخوده شو خو بيا به هم ده داسي ويل: اى الله زما قوم ته ببښنه وكړه دوى نه پوهېږي[2] ﴿فَفَتَحْنَا أَبْوَابَ السَّمَاءِ بِمَاءٍ مُّنْهَمِرٍ﴾ نو وپرانستل موږ ورونه دآسمان په اوبو ډېرو راتوى شويو. ابو السعود وايې دغه دډېر اورښت اوزيات په شېبو شېبو باران څخه يو تمثيل دى[3] ﴿وَفَجَّرْنَا الْأَرْضَ عُيُونًا﴾ (او وبهولې موږ له ځمكي څخه (هم) چينې) يعني گرده ځمكه مو راخوټېدونكي چينې وگرزوله ﴿فَالْتَقَى الْمَاءُ عَلَىٰ أَمْرٍ قَدْ قُدِرَ﴾ بيا سره گډي شوې ټولې اوبه (دآسمان او ځمكي) په هغه كار چي پرتا كل شوى وو) پداسي حال كي چي الله يې په ازل كي تقدير فرمايلى او فيصله يې كړې وه چي كافران به گرد غرقېږي. قتاده رحمه الله وايې: معنا داچي الله په لوح محفوظ كي ليكلي وو كله چي كافران شي دوى به غرقېږي ﴿وَحَمَلْنَاهُ عَلَىٰ ذَاتِ أَلْوَاحٍ وَدُسُرٍ﴾ او سپور كړى وو موږ نوح پر بېړۍ چي خاونده دتختو پلو او مېخونو پر بېړووه. په البحر كي ليكي چي دغه دنوح عليه السلام دبېړۍ صفتونه دي او دغه صفتونه دموصوف پرځاى ولاړدي لكه چي يو څوك ووايې: زما قميص له اوسپنو څخه گنډل شوى دى چي مراد ځيني (زغره) وي او دغه د فصيح او بديع كلام نمونه ده كه چېري موصوف او صفت دواړه راوړل شوي واى بيا به فصيح نه گڼل كېدو (دُسُر) مېخونه بولي[4] ﴿تَجْرِي بِأَعْيُنِنَا﴾ (چي تلله گرزېدله په ځاى دستر گو دليد لو زموږ) يعني د اوبو په

---

[1] تفسير البحر المحيط ۱۷۶/۸

[2] پورتني مرجع.

[3] ابو السعود ۷۸۲/۷

[4] البحر المحيط ۱۷۷/۸

سرروانه وه زموږ په ساتنه اورعايت کې وه ﴿ جَزَآءً لِّمَن كَانَ كُفِرَ ﴾ (واقع شوی وودا طوفان) لپاره دامداد دهغه چاچې کفران داحسان يې کړی شوی وو(چې نوح وو) الوسي وايي: معناداچې موږ دغه د نوح لپاره په کارولي ووځکه هغه(نوح) دالله يولوی نعمت ووچې قوم ته يې ورکړی وومګرقوم يې قدرونه پېژانده اوکفران يې وکړهوکې هرپيغمبردخپل قوم لپاره يو نعمت دی (۱) ﴿ وَلَقَد تَّرَكْنَاهَا ءَايَةً ﴾ او خامخاپه تحقيق پرېښودله موږ دغه (پېښه دطوفان) يو دليل (دقدرت خپل چې پند شي لپاره دخلګو) ﴿ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴾ نوآياشته څوک يادوونکی پند اخيستونکی ؟﴿ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِى وَنُذُرِ ﴾ پس څرنګه ووعذاب زما(په دوی چې ټول مي په طوفان هلاک کړل) اووېرول زما (په ژبه دنوح) دغه استفهام دتهويل اوتعجيب لپاره دی ﴿ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا ٱلْقُرْءَانَ لِلذِّكْرِ ﴾ (اوخامخاپه تحقيق آسان کړی دی موږ قرآن لپاره ديادولو اوپند اخيستلو ) يعني قسم دی چې موږ قرآن دحفظ، تدبر او پند اخيستلو لپاره آسان کړی دی ځکه چې ډول ډول نصيحتونه او پندونه پکې دي ﴿ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴾ نوآياشته څوک يادونکی پند اخيستونکی ؟ له مواعظو څخه يې اويا له زواجرو اوکيسونه ؟ خازن ليکي چې پدې کې دقرآنکريم د زده کړې اوپه هغه دمشغولاهڅونه ده ځکه چې الله هغه پخپلو بندګانو چې چاته يې خوښه شي آسانه کړی دی چې يادول يې دکشراومشرلپاره آسان دی عربي اوعجمي يې يادولی شي. سعيدبن جبيروايي معنا داچې دحفظ اولوست لپاره مي آسان کړی دی (۲) اودالله له کتابونو څخه يوازې همدا قرآن دی چې ټول ظاهرا(په ياد )لوستل کېدلای شي لنډه داچې الله قرآن دهغه چالپاره چې د يادولو او يا پکې سوچ کولو قصدلري ياترې پنداخلي آسان کړی دی هغه ددنيوي اواخروي نېکمرغيو مجموعه اوټولګه دی ﴿ كَذَّبَتْ عَادٌ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِى وَنُذُرِ ﴾ دروغجن کړي ووعاديانو(هود ) نو څرنګه ووعذاب زمااو وېرول زما(دوی ته په عقاب ورکولو ؟ او ورپسې دهغه پوپناکونکي عذاب تفصيل داسي بيانوي ﴿ إِنَّآ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا فِى يَوْمِ نَحْسٍ ﴾ (موږ لېږلی وو پردوی باندې باد ډېر سخت په ورځي نحسي (د بدي) کې ) يعني موږ پردوی باندې طوفاني ډېرسخت بادچې سخت غږ او زور يې درلود رااستولی وو. ابن عباس وايي (صرصر ) سخت سوړباد بولي اوسدي وايي چې معنايې سخت آوازلرونکی دی (۳) ﴿ مُّسْتَمِرٍّ ﴾ چې تل دی بدي يې (پردوی باندې چې پکې هلاک شول (۴) يعني په بدمرغه ورځ کې چې بدمرغي اوشوميت يې ورباندې مستمرشوچې يوهم ژوندی پاتې نشو چې هلاک شوي نه وي. ابن کثيروايي: معناداچې بدمرغي يې ورباندې استمرارومونداچې دنيوي عذاب يې له اخروي سره پتليز

(۱) روح المعاني ۲۷ / ۸۳

(۲) دخازن تفسير ۴ / ۲۲۸

(۳) ابن کثيرچې کله دعلماوو ويناوي راوړي بياوايي زماپه نزددغه بادپدې ټولوصفتونوموصوف وو سخت قوي بادډېرسخت سوړ اودخورا سخت آواز خاوندوو اوهمدغه ويناموږ هم غوره کړي ده.

(۴) ابن کثير تفسير

او پیوند کړ﴿ تَنزِعُ النَّاسَ ﴾ چي را ایستل به (بادله پټوژورو کندو (ځایونو خپلونه) خلګ (او ویشتل به یې
سرپه ککرۍ ورمېږونه به یې وربانديي ماتول) ﴿ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنقَعِرٍ ﴾ ګواکي دوی تنې د خرماوو وې
چي له بېخه راایستل شوي په ځمکه راپرېوتلي وي ، ددوی تشبیه یې له خرماوو کجورو سره وکړه ځکه
چي دوی لوړقد قامت اولوی پیاوړي بدنونه لرل. خازن لیکي سیلۍ به دوی له ځمکي اوچت کړل اوبیا به
یې په ځمکه وویشتل ورمېږونه به یې مات اوسرونه به یې له تنو بېل شول اوتنې به یې لکه د خرماوو
دونوغوندي په ځمکه پرتې وې(۱) ﴿ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴾ نوځرنګه وو عذاب زما او وېرول زما (له بېخه
ایستل ددوی آیا خوراسخت اوهیبتناک نه وو؟ ﴿ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴾ او خامخا په
تحقیق آسان کړی دی موږ قرآن لپاره دذکرپنداخیستلو نوآیاشته څوک یادونکی پند اخیستونکی ؟
دغه یې مکرر ځکه راووړچي الله په مؤمنانوباندي دخپل فضل اومهرباني یادونه وښیي چي دقرآن کریم
یادول اوفهمول یې آسانه کړي نوآیاڅوک شته چي له زواجروځخه یې پند واخلي؟ بیاالله تعالی
دثمودیانو یادونه هغوی چي صالح علیه السلام یې دروغجن کړی وو داسي کوي ﴿ كَذَّبَتْ ثَمُودُ بِالنُّذُرِ ﴾
(دروغجن کړي وو ثمودیانو (انبیاء اونور) وېروونکي) یعني ثمودیانو هغه انذارونه اومواعظ دروغ
ګڼلي وو کوم چي ددوی نبي صالح علیه السلام ورته ورلاندي کړي وو ﴿ فَقَالُوا أَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا نَّتَّبِعُهُ ﴾
(پس وویل دوی آیا یو بشرلره له موږ ځخه چي یو دی متابعت وکړو موږ (چي ډېریو) ده لره) یعني آیا موږ
دیوه انسان چي زموږ په شان اویوازي تنهادی متابعت وکړو؟ هغه خو څه داشرافوځخه نه دی موږ یوه
ټولی یوهغه یوازی دی. په البحرالمحیط کي راوړي چي دوی دغه خبره درخې اوکینې په توګه کوله
استبعادیې کاووچي ځرنګه موږ یوټولګی دیوه سړي متابعت وکړو؟!!) خودوی پدې نه پوهېدل چي
فضل دالله جل جلاله په یدقدرت کي دی چاته چي یې خوښه شي ورکوي یې دهدایت پلوشې په هغه
چاځلوي چي ترې راضي وي(۲) ﴿ إِنَّا إِذًا لَّفِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ﴾ بېشکه موږ په دغه وخت کي خامخابه یو په
ګمراهي اولېونتوب کي (نو متابعت یې نه کوو) ابن عباس ﷺ وایې (سعر) جنون ته وایې لکه چي دوی
به ویل (ناقة مسعورة) کله چي به له ډېري مستي ځخه لېونۍ وه (۳) ﴿ أَؤُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِن بَيْنِنَا ﴾
آیاغورځول شوی دی ذکروحی په ده باندي په مینځ زموږکي (نه ده شوي) استفهام انکاري دی یعني
آیادی زموږ ټولوځخه په وحی باندي ځانګړی شوی ؟ سره له دې چي ترده بډایان اوسوکاله خلګ په
موږکي شته امام فخر رازي وایې چي: په آیت شریف کي هغه څه ته اشاره ده چي دوی دمبالغې په توګه
ترې انکارکاووهغه داچي له القاء یې انکاروکړاوالقاء په ګړندي والي سره انزال ته وایې لکه چي دوی
ویل: ملائک ستراوآسمان لیري دی نوځرنګه په یوه شېبه کي ورباندي وحی راوړي اوداچي (علیه) یې
وویل یوبل انکاردی لکه چي ویلي یې وي هیڅ وحی په ده نه ده راغلي اوبالفرض که راغلي هم وي

(۱) دخازن تفسیر ۴ / ۲۲۹
(۲) البحرالمحیط ۸ / ۱۸۰
(۳) قرطبي ۱۷ / ۱۳۸

نوبيابه ولي پرده باندي وي ځکه چي زموږ په مينځ کي ترده زيات دشرافت اوذکاوت خاوندان شته اوداچي وايې (ءألقي) هسي يې ونه ويل (ألقی الله) دې ته اشاره ده چي القاء له آسمانه هسي هم غيرممکن دی بې له دې چي دالله تعالی له لوري وي(۱) ﴿بَلْ هُوَ كَذَّابٌ أَشِرٌ﴾ بلکه دی ډېر دروغجن متکبردی (چي پخپله ځان غټوي پرموږ باندي اودا چي په (أشر) يې ونوماوودغه دهغه ددعوی دنه منلوپه باب مبالغه ده لکه چي دوی وايې دغه هسي دروغ نه دي لکه چي يو کمزوری سړی يې دځان ژغورلولپاره وايې بلکه دی يې دلويني اوتکبردپاره وايې چي پرموږ مشرتوب وکړي نوغواړي چي موږيې متابعت وکړونويې په الله دروغ وتړل دده خبروته اعتبار نشته ځکه چي دوه ناکاره خويونه يې دي يودروغ لوبل تکبردی دواړه ددې مانع دي چي موږيې متابعت وکړو الله ددوی دبهتان دترديداوددوی لپاره تهديدداسي فرمايې ﴿سَيَعْلَمُونَ غَدًا مَّنِ ٱلْكَذَّابُ ٱلْأَشِرُ﴾ ژردی چي پوه به شي دوی سبا(په آخرت کي) چي څوک دی هغه ډېر دروغجن متکبرآياصالح دی اوکه يې گنهگارقوم؟ الوسي وايې: مقصدداچي ژردی دوی به وپوهېږي چي دوی پخپله دروغجنان اومتکبرين دي خودغه يې دابهام په صورت کي انځورکړچي دې ته اشاره وکړي دا هسي څه دي چي له هيچاڅخه هم پټ نه دي(۲) ﴿إِنَّا مُرْسِلُوا۟ ٱلنَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ﴾ (بېشکه موږ لېږونکي يو داوښې لپاره دازموږېښت ددوی) يعني موږ دوی ته ددوی له غوښتني سره سم اوښه له تيږې را وايستله چي دوی وازمويو. ابن کثيروايې الله تعالی دوی ته دلسومياشتو (بلاربه) اوښه له کاڼي تيږې څخه راوايستله لکه چي دوی غوښتي وه ترڅوپردوی باندي دصالح عليه السلام دنبوت په رښتنولي حجت او(دليل) وي(۳) ﴿فَٱرْتَقِبْهُمْ وَٱصْطَبِرْ﴾ (پس منتظراوسه (ای صالحه) اوصبروکړه!) يعني دوی ته انتظار وکړه چي دوی څه کوي؟ اوپردوی څه کېږي؟ ددوی په تکاليفوباندي صبرکوه الله به تاپردوی غالب کړي ﴿وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ ٱلْمَآءَ قِسْمَةٌۢ بَيْنَهُمْ﴾ اوخبرکړه دوی (پدې چي اوبه بېشکه وېشلي شوي په مينځ ددوی (ثموديانواوداوښې کي) لکه چي الله فرمايې ﴿قَالَ هَٰذِهِۦ نَاقَةٌ لَّهَا شِرْبٌ وَلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ﴾ (الشعرآ.۱۵۵) ابن عباس ﷺ وايې: کله چي به ددوی وار وو نو اوښې به هيڅ څاڅکی اوبه هم نه څښلې اودوی ته به يې شيدې ورکولې دوی به په راحت کي وو اوکله چي به داوښې دڅښلو وار شونوبيابه يې گردي اوبه وڅښلې دوی ته به هيڅ نشوې پاتي اوداچي الله تعالی (بينهم) وفرمايل دغه يې دتغليب په هکله چي هغه يې هم گواکي دعقلاووڅخه وشمېرله ﴿كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ﴾ هروارداوبوته حاضرکړي شوي دي(خاوندان داوبوپه خپل وارچي کله به داوبوداوښې وارووهغه به راغله او وبه يې څښلې اوچي کله به ددوی وارشودوی به راغلل اووبه يې څښلې ﴿فَنَادَوْا۟

(۱) کبيرتفسير ۷۹۹/۷
(۲) روح المعاني ۲۷ ۸۸
(۳) دابن کثيرمختصر.

صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطَىٰ فَعَقَرَ ﴾ (نو راوبالودوى ملگرى خپل (لپاره دوژلودواوښي اوتوره يې واخيسته) پس پښې
يې وپرې کړې اومره يې کړه) يعني ثموديانودخپل تېرترګردوبدمرغه انسان چي (قداربن سالف)
نومېدوراوباله ترڅوچي اوښه ووژني نو هغه هم په توره ووهله اوويې وژله يې پرواله دې چي عواقب به
يې څه وي ؟﴿ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴾ پس څرنګه ووعذاب زمااووېرول زما(دوى لره آياډېرسخت نه
وو؟!!)﴿ إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَاحِدَةً ﴾ بېشکه موږلېږلی وو پردوی باندي غږ يو(دجبريل عليه السلام
چي بياکومه رپانده سترګه ژوندۍ پاتي نشوه )﴿ فَكَانُوا كَهَشِيمِ الْمُحْتَظِرِ ﴾ نوشول دوی لکه وچ مات
شوي(توتې خس خاشاک واښه شپول جوړونکی) امام جلال وايې (المحتظر) معنا هغه چي دپسونو لپاره
شپول تري جوړوي چي له څېرونکو ځناوروڅخه لېوانو اونوروڅخه يې ورباندي ژغوري اوهغه چي له دې
څخه ولوېږي اوپه پښوباندي ريز مريزشي هغه (هشيم) بولي ﴿ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴾ او
خامخاپه تحقيق آسان کړی موږ قرآن لپاره دذکر،يادولو،پنداخيستلوآيا څوک پند اخيستونکی شته؟!

الله تعالی فرمايي:

﴿ كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ بِالنُّذُرِ ﴿٣٣﴾ إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا إِلَّا آلَ لُوطٍ نَّجَّيْنَاهُم بِسَحَرٍ ﴿٣٤﴾ نِّعْمَةً مِّنْ عِندِنَا كَذَٰلِكَ
نَجْزِي مَن شَكَرَ ﴿٣٥﴾ وَلَقَدْ أَنذَرَهُم بَطْشَتَنَا فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ ﴿٣٦﴾ وَلَقَدْ رَاوَدُوهُ عَن ضَيْفِهِ فَطَمَسْنَا أَعْيُنَهُمْ فَذُوقُوا عَذَابِي
وَنُذُرِ ﴿٣٧﴾ وَلَقَدْ صَبَّحَهُم بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ ﴿٣٨﴾ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٩﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ
﴿٤٠﴾ وَلَقَدْ جَاءَ آلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ ﴿٤١﴾ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا كُلِّهَا فَأَخَذْنَاهُمْ أَخْذَ عَزِيزٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿٤٢﴾ أَكُفَّارُكُمْ خَيْرٌ مِّنْ أُولَٰئِكُمْ أَمْ لَكُم
بَرَاءَةٌ فِي الزُّبُرِ ﴿٤٣﴾ أَمْ يَقُولُونَ نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ ﴿٤٤﴾ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ ﴿٤٥﴾ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ
أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ ﴿٤٦﴾ إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ﴿٤٧﴾ يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ ﴿٤٨﴾ إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ
خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ﴿٤٩﴾ وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ ﴿٥٠﴾ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا أَشْيَاعَكُمْ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٥١﴾
وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ ﴿٥٢﴾ وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ ﴿٥٣﴾ إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَهَرٍ ﴿٥٤﴾ فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ
عِندَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿٥٥﴾ ﴾ القمر: ٣٣ – ٥٥

**مناسبت:** کله چي الله تعالی دعاديانو ثموديانو يادونه وکړه دلته يې دلوط اوفرعون دقومونو خبر
راووړ اوهغه عذابونه اوهلاکتونه يې چي پردوی راغلي ووبيان کړل ترڅوچي دمکې دکفارولپاره
تذکېر او يادونه وي چي الله تل له خپلو اودخپلو پيغمبرانوله ددښمنانوڅخه کسات اخيستونکی دی
دسورت پای يې په دې وفرمايل چي دالله دودهمداسي دی چي تل مجرمينو کفاروته سزاورکوي

**لغتونه:** (حاصبا) ډېره اوچاپياويلي هغه باد چي ډبري اوکاڼي تېري غورځوي (بطشتنا) زموږسخت
عذاب (الزبر) آسماني کتابونه د(زبور) جمع اوهغه آسماني کتاب ته وايي (أدهى) ډېرناوړه کاراوچاره (سعر)
تاوان اولېونتوب (سقر) ددوزخ له نومونوڅخه يونوم دی الله جل جلاله مودې ځني وژغوري

دنزول سبب:

ابوهریرة وایې دقریشومشرکان رسول الله ته راغلل اودتقدیرپه هکله یې وېره شخړه پیل کړه نودغه آیتونه نازل شول چې ﴿ يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ﴾ (۱).

تفسیر:

﴿ كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ بِالنُّذُرِ ﴾ (دروغجن کړي ووقوم دلوط وېرونکي انبیاء) انذارات کوم چې لوط دوی ورباندي وېرولي وو) ﴿ إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا ﴾ (بېشکه لېږلی وو موږ پردوی باندي بادکاني ویشتونکی) یعني دوی دآسمان له لوري په کانوویشتل شول ابن کثیروایې چې الله تعالی حضرت جبریل ته امروکړاوددوی کلی یې (له بېخه وایستل) آسمان ته یې اوچت کړل اوبیایې ځمکي ته کوز راوغورځول اوبیا په ختي کانوچې پخې شوي وې وویشتل (۲) شول (حاصب) کاني ته وایې ﴿ إِلَّا آلَ لُوطٍ نَجَّيْنَاهُمْ بِسَحَرٍ ﴾ مګرکورنی دلوط وموو ژغورله په پیشلمي کي (ترسباله مخه وخت) ﴿ نِعْمَةً مِنْ عِنْدِنَا ﴾ له جهته د مهرباني له نزده زموږ (مودوی وژغورل) ﴿ كَذَٰلِكَ نَجْزِي مَنْ شَكَرَ ﴾ همداسي (دلوط دآل په شان) جزا ورکوو موږهغه ته چې شکر وباسي (په نعمت زموږپه ایمان راوړلو او طاعت کولوسره) ﴿ وَلَقَدْ أَنْذَرَهُمْ بَطْشَتَنَا ﴾ او خامخا په تحقیق وېرولي (لوط) دوی لره له نیولوزموږ څخه (چې له دوی به په عذاب ورکولو انتقام واخلو) ﴿ فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ ﴾ نوشک وکړ دوی په وېرولودهغه کي ﴿ وَلَقَدْ رَاوَدُوهُ عَنْ ضَيْفِهِ ﴾ اوخامخا په تحقیق غوښتي وو دوی له دغه (لوط) څخه مېلمانه دهغه چې پرښتې وې (بد کاری ته) ﴿ فَطَمَسْنَا أَعْيُنَهُمْ ﴾ نومحو، ړندي کړې موږ سترګي ددوی مفسرین کرام وایې کله چې ملائکي دښایسته زلمیانو په شکل لوط علیه السلام ته راغلل اوهغه مېلمانه کړل نودوی (قوم یې) په منډه دبدفعلي لپاره ورته راورسېدل لوط یې په وړاندي دروازه وتړله اودوی هڅه کوله چې دروازه ماته کړي نوحضرت جبریل علیه السلام ورته راووت اودوی یې دخپل کوځرپه څنده په مخ ووهل سترګي یې ړندي اومحوه شوې (۳) ﴿ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ ﴾ پس (و فرمایل الله دوی ته دملائکو په ژبه) وڅکئ تاسي (ثمرد) عذاب زما اودوېرولوزما (هغه چې لوط تاسي ورباندي وېرولي یاست) ﴿ وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُسْتَقِرٌّ ﴾ (او خامخاپه تحقیق راغلی وو دوی ته عذاب قرارنیونکی ثابت په وخت دسباکي) یعني دوی ته دغه عذاب چې دآخرت له عذاب سره متصل وو دسهار په وخت کي راغلی وو . صاوي وایې داپډې چې جبریل علیه السلام ددوی کلی آسمان ته نږدې اوچت کړل او بیاسرپه څېږی راوغورځول

---

(۱) أخرجه الترمذي.

(۲) دابن کثیرمختصر.

(۳) وګوره خازن ۴ /۲۳۰ –امام رازي ۷ /۸۰۸

اودختي كاني بې ورباندې واورول ددوی دنيوي عذاب له أخروي سره يو ځای شو اوترهغوپوري به ورباندي اخته وي څوچي په اورکي لوېږي (١)﴿فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ﴾ نووڅکئ عذاب زمااودوېرولوزما(چي د پيغمبر په ژبه مي درته استولی وو﴿ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْءَانَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ﴾ اوخامخاپه تحقيق آسان کړی دی موږ قرآن لپاره دذکريادولوپنداخيستلوآياشته څوک پنداخيستلويادونکی؟! مفسرين کرام وايې چي حکمت له تکرارولوددې کلام څخه چي وروسته له هري کيسې راځي دادی ترڅودتېروأمتونوله حاله پند واخيستل شي اوپه هلاکتونوکي يې فکروشي اودې ته اشاره ده چي دپيغمبرتکذيب ددې غوښتونکی دی چي په مکذبينودې عذاب راپرېوزي لکه دالله جل جلاله داقول چي ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ ددې لپاره دی چي دمختلفو ګڼونعمتونو اثبات وښيي اوهرکله چي کوم نعمت ياد کړی ورپسې يې په تکذيب باندي توبيخ فرمايې (٢)﴿ وَلَقَدْ جَآءَ ءَالَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ ﴾ اوخامخاپه تحقيق راغلي وو (فرعون او) قوم دفرعون ته وېرونکي (په تکرارخودوی ترې پندوانه خيست. ابو السعود وايې چي ددوی دکيسې په پيل کي يې ټينګ قسم راوړچي په شان کي يې اهتمام وښيي څکه چي پکي خورازيات اوښکاره معجزات اودسخت عذاب يادونه همدا راز دلته دطغيان مخکښ فرعون پکي دی (٣)﴿ كَذَّبُوا بِـَٔايَٰتِنَا كُلِّهَا ﴾ دروغجن کړل هغوی دلائل دقدرت زموږ ټول (هغه نه (٩) معجزې چي موږ موسی عليه السلام ته ورکړي وې (٤)﴿ فَأَخَذْنَٰهُمْ أَخْذَ عَزِيزٍ مُّقْتَدِرٍ ﴾ نوونيول موږ دوی په نيولو دذات ډېرغالب او قادرسره (چي په درياب کي موغرق کړل دغه دداسي غالب ذات عذاب ووچي د دوی په هلاکولو ښخي قادراوهيڅوک يې مغلوبولای نشي ورپسې دمکې کفاروته داسي تخوېف او وېرونه ورکوي فرمايې ﴿ أَكُفَّارُكُمْ خَيْرٌ مِّنْ أُوْلَٰٓئِكُمْ ﴾ آياستاسي کفار(ای عربو) غوره دي له ړومبنيو (کفارو) دتاسي څخه) استفهام انکاري اولپاره دتوبيخ اوتقريع دی يعني ای عربوستاسوکفار ترهغو ړومبنيو چي زموږ عذاب ورباندي نازل شوی لکه دنوح، عاد ،لوط، اوفرعون قومونوغوره دی چي عذاب به نه ورکوم؟ قرطبي وايې استفهام انکاري اومعنايې نفی ده يعني ستاسوکفاروترهغو پخوانيوکفارو چي په کفر هلاک شوي غوره نه دي (٥)﴿ أَمْ لَكُم بَرَآءَةٌ فِى الزُّبُرِ ﴾ اياتاسي ته حکم د خلاصي دی په (ړومبنيو آسماني ) کتابونوکي (کوم چي په انبياوو رانازل شوي دي؟)﴿ أَمْ يَقُولُونَ نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ ﴾ (آيا وايې دوی (چي)موږ يوټولی مرستي کونکي يوله بل سره بدل

---

(١) دصاوي حاشيه ٤ /١٥٠

(٢) امام رازي تفسير٧ /٨١٠

(٣) دابو السعود تفسير٥ /١٧٨

(٤) قرطبي وايې چي هغومعجزود الله په توحيداودموسی عليه السلام په نبوت دلالت کاووهغوی عبارت وې له لکړي، يدبيضا، کاختي، طمس محو، طوفان، ملخان، قمل حشرات، چنګښي اووينې

(٥) دقرطبي تفسير١٧ /١٤٥

اخیستونکي ؟) یعني بلکه دوی وایې موږ ډېریو په خپل قوت اوکثرت باندي باوري یو په پیغمبرغښتلي یو الله ددوی په ردکي فرمایې ﴿ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ ﴾ ژردی چي ماته به کړی شي جمع ددوی او وبه گرزوي دوی شاوي خپلي (مسلمانانو ته له جنګه مات شوي .ابن جوزي وایې داهغه غیبي معلومات او خرګندوني دي چي الله یې خپل نبي ته وایې اودغه شکست دبدرپه ورځ وو[۱]) ﴿ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ ﴾ (دغه قتل اوماتي دوی ته کافي نه دي) بلکه قیامت دی ځای دوعدې (دعذاب) ددوی ﴿ وَالسَّاعَةُ أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ ﴾ اوقیامت ډېر سخت دی ترقتل اوبند (چي قیامت هیڅ علاج نلري) ﴿ إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ﴾ (بېشکه گنهګاران په ګمراهي او اورګرم (ددوزخ اولېونتوب ) کي دی) یعني مجرمین په دنیاکي په حیرانتیااوپه آخرت کي په ګرم بلېدونکي اورکي دي.ابن عباس وایې معناداچي په خسران او لېونتوب کي دي[۲]) ﴿ يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ ﴾ هغه ورځ چي راکش کړل به شي دوی په اور (د دوزخ) کي په مخونو ددوی (وبه ویل شي دوی ته زجراً چي ددوی ذلت وشي) ﴿ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ ﴾ (وڅکئ تاسي مزه دمس کولو (رسېدلو ) (داور) ددوزخ یعني ای دروغجن ګڼونکو د جهنم عذاب وڅکئ. ابوحیان وایې چي سقردجهنم نوم ځکه نوغیرمنصرف دی [۳]) ﴿ إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ﴾ بېشکه موږ هرشی پیدا کړی مودی (په ازلي) اندازه سره (چي په لوح محفوظ کي لیکل شوي) ﴿ وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ ﴾ اونه دی امرزموږ (یوشي لره چي اراده موکړي ده دهغه د پیداکولو ) مګر(امر) یوځل لکه رپول دسترګو(په چټکتیاکي )چي ورته ووایو(موجود) شه نو (موجود ) شي. ابن کثیر وایې معناداچي موږ یوځل یوڅېزته امرکوو دوهم ځل تأکیدته اړتیانشته نو سمدستي د سترګو په رپ کي هغه موجودشي[۴]) ﴿ وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا أَشْيَاعَكُمْ ﴾ او(قسم دی) خامخاپه تحقیق هلاک کړی وو موږ مشابه نظائرستاسي (په کفراوضلالت کي له پخوانیوامتونو څخه) ﴿ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴾ نو آیاشته څوک یادونکی پنداخیستونکی ؟ ﴿ وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ ﴾ اوهرهغه شی چي هغوی کړی دی (لیکل شوی دی په پاڼو ) داعمالناموددوی کي . ابن زید وایې (في الزبر) معناداچي د پرښتوپه لیکل شویودفترونو دېوانونوکي ﴿ وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُّسْتَطَرٌ ﴾ اوهر وړوکی اولوی (عمل که خیروي که شر) لیکلی شوی دی (په لوح محفوظ کي ) ﴿ إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَهَرٍ ﴾ بېشکه متقیان به په جنتونو او ویالوکي وي. قرطبي وایې یعني داوبو، شرابو، شاتو او د شیدوویالې ﴿ فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ ﴾ په مجلس

---

(۱) ابن الجوزي ۸ / ۱۰۰

(۲) روح المعاني ۲۷/۹۳

(۳) دابو السعود تفسیر ۵ /۱۷۹

(۴) المختصر ۳ /۴۱۴

(حق) رښتيا د جنت (ښکلي او په زړه پوري ځای کې) ﴿ عِندَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍ ﴾ په نزد د باچا لوی قدرت لرونکي (چې هيڅوک يې نشي عاجزولای او هغه الله او رب العالمين دی.

بلاغت:

پدې سورت کې چې د بديع او بيان کومې ښکلاوې شته لندون يې دادی:

۱ - تمثيلي استعاره چې فرمايي: ﴿ فَفَتَحْنَا أَبْوَابَ السَّمَاءِ بِمَاءٍ مُّنْهَمِرٍ ﴾ دلته يې په شېبو شېبوله وريځي څخه د باران اوربنت له او چتو آسماني دروازو څخه د ويالو له راخلاصولو او پرانستلو سره مشابه کړاو بيا يې ورباندې د زرغونې ځمکې لمن خپرل د تمثيلي استعارې په توګه راوړل

۲ - اشتقاقي جناس لکه ﴿ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ يَوْمَ يَدْعُ الدَّاعِ إِلَىٰ شَيْءٍ نُّكُرٍ ﴾.

۳ - کنايه چې کله فرمايي: ﴿ وَحَمَلْنَاهُ عَلَىٰ ذَاتِ أَلْوَاحٍ وَدُسُرٍ ﴾ دغه له هغې بېړۍ څخه کنايه ده چې په تختو او مېخونو باندې جوړه وه.

۴ - مرسله مجمله تشبيه لکه پدې آيت کې ﴿ تَنزِعُ النَّاسَ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنقَعِرٍ ﴾ او بل مثال يې ﴿ إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَاحِدَةً فَكَانُوا كَهَشِيمِ الْمُحْتَظِرِ ﴾.

۵ - د مبالغې صيغه چې وايي ﴿ أَؤُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِن بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ أَشِرٌ ﴾ يعني خورا زيات دروغجن او زيات متکبر څکه چې فعال او فعيل د مبالغې لپاره وي

۶ - اطناب د (السَّاعَةُ) لفظ په تکرار سره لکه داچې ﴿ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ ﴾ ترڅو چې زيات تخويف او تهويل افاده کړي

۷ - د مقابلې صنعت چې د مجرمينو او متقينو ترمينځ راغلی چې الله جل جلاله فرمايي ﴿ إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ﴾ او بيا ﴿ إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَهَرٍ ﴾ راځي.

۸ - طباق لکه د ﴿ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ ﴾ ترمينځ چې راغلی دي.

۹ - مرصع سجع چې بې تکلفه او د لفظ په ښکلا او آهنګ کې زياتوالی راولي د الله جل جلاله داقول ولوله: ﴿ يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمْحٍ بِالْبَصَرِ ﴾ ترپايه.

د الله په مرسته د سورة (القمر) تفسير بشپړ شو.

***

## دالرحمن سورت مدني اواته اويا آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

دالرحمن سورت له مدني سورتونوڅخه يودى هغه چي دعقيدې اصول ښيي اولكه ناوي غوندي دگردو سورتونو په مينځ كي ښكلى دى په حديث شريف كي راغلي چي هرشى ناوي لري او دقرآن ناوي دالرحمن سورت دى.

دسورت پيل دالهي نعمتونو په يادولو كېږي كوم چي شمېرا وګڼل يې ممكن نه دي اودنعمتونو په سركي دقرآنكريم دزده كړي نعمت دى هغه چي آن دانسان ترپيدا ينبت لاهم ړومبى يادشوى دى چي ﴿ ٱلرَّحْمَٰنُ ۝١ عَلَّمَ ٱلْقُرْءَانَ ۝٢ خَلَقَ ٱلْإِنسَٰنَ ۝٣ عَلَّمَهُ ٱلْبَيَانَ ﴾ راغلي.

وروسته سورت دهغو موجوداتو چي دالله په سترونعمتونو ګويا اوشاهدي وركوي نومونه اخلي چي لمر، سپوږمى، ستوري، وني، بې ستني اوچت آسمان اوهغه څه عجائبات دقدرت اودصنعت نوادرات چي پكي شتون لري بيانوي بيا وروسته ځمكه اوهغه مېوې، كښتونه، فصلونه، چي دبشرلپاره الله روزي تياره كړي يادوي ﴿ ٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ۝٥ وَٱلنَّجْمُ وَٱلشَّجَرُ يَسْجُدَانِ ﴾ دآيتونوترپايه

بيا سورت دالهي قدرت هغه ستردلائل راوړي چي دافلاكو په څرخولو او دستروبېړيو چي دسيند په مخ لكه غرونه غوندي غتې غتې دروميې موجوددي الله فرمايي ﴿ وَلَهُ ٱلْجَوَارِ ٱلْمُنشَـَٔاتُ فِى ٱلْبَحْرِ كَٱلْأَعْلَٰمِ ﴾. له دغه څغلنده كتني وروسته كله چي دغه كائنات پوپناكېږي اودمرګ وېرونكي انځور ورباندي غوړېږي يوازي (الحى القيوم) ذات به تل ترتله وي هله فرمايي ﴿ كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ۝٢٦ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو ٱلْجَلَٰلِ وَٱلْإِكْرَامِ ﴾.

سورت دقيامت كړاوونه راوړي اودمجرمينو حال احوال بيانوي چي څومره سختي اوزحمتونه به يې په برخه وي ﴿ يُعْرَفُ ٱلْمُجْرِمُونَ بِسِيمَٰهُمْ فَيُؤْخَذُ بِٱلنَّوَٰصِى وَٱلْأَقْدَامِ ﴾ دآيتونوترپايه

له دې په وروسته چي دكفارو له عذاب څخه پرده پورته كړي بيا په يوڅه تفصيل سره دهغو نعمتونو يادونه كوي كوم چي متقيانوته الله جل جلاله وربښلي اوپه جنات النعيم كي به وي كله چي دوى هلته له حوروا وغلمانوسره اوسي نو فرمايي ﴿ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِۦ جَنَّتَانِ ﴾ دآيتونوترپايه.

دسورت پاى دالله جل وعلا په تمجيد اوثناسره كېږي چي پخپلو بندګانويې څومره زيات ډول ډول انعامونه، اكرامونه كړي دي اودغه دسورت الرحمن مناسبه خاتمه ده ﴿ تَبَٰرَكَ ٱسْمُ رَبِّكَ ذِى ٱلْجَلَٰلِ وَٱلْإِكْرَامِ ﴾ همداسي پيل اوپاى په ښايسته پېيلتوب اوخوندوراندازكي راغلى دى!

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿الرحمن (١) علم القرآن (٢) خلق الإنسان (٣) علمه البيان (٤) الشمس والقمر بحسبان (٥)
والنجم والشجر يسجدان (٦) والسماء رفعها ووضع الميزان (٧) ألا تطغوا في الميزان (٨) وأقيموا الوزن
بالقسط ولا تخسروا الميزان (٩) والأرض وضعها للأنام (١٠) فيها فاكهة والنخل ذات الأكمام (١١) والحب
ذو العصف والريحان (١٢) فبأي آلاء ربكما تكذبان (١٣) خلق الإنسان من صلصال كالفخار (١٤)
وخلق الجان من مارج من نار (١٥) فبأي آلاء ربكما تكذبان (١٦) رب المشرقين ورب المغربين (١٧) فبأي آلاء
ربكما تكذبان (١٨) مرج البحرين يلتقيان (١٩) بينهما برزخ لا يبغيان (٢٠) فبأي آلاء ربكما تكذبان (٢١) يخرج منهما اللؤلؤ
والمرجان (٢٢) فبأي آلاء ربكما تكذبان (٢٣) وله الجوار المنشآت في البحر كالأعلام (٢٤) فبأي آلاء ربكما تكذبان
(٢٥) كل من عليها فان (٢٦) ويبقى وجه ربك ذو الجلال والإكرام (٢٧) فبأي آلاء ربكما تكذبان (٢٨) يسأله من في السماوات
والأرض كل يوم هو في شأن (٢٩) فبأي آلاء ربكما تكذبان (٣٠) سنفرغ لكم أيه الثقلان (٣١) فبأي آلاء ربكما تكذبان
(٣٢) يا معشر الجن والإنس إن استطعتم أن تنفذوا من أقطار السماوات والأرض فانفذوا لا تنفذون إلا بسلطان (٣٣)
فبأي آلاء ربكما تكذبان (٣٤) يرسل عليكما شواظ من نار ونحاس فلا تنتصران (٣٥) فبأي آلاء ربكما تكذبان (٣٦)
فإذا انشقت السماء فكانت وردة كالدهان (٣٧) فبأي آلاء ربكما تكذبان (٣٨) فيومئذ لا يسأل عن ذنبه إنس ولا
جان (٣٩) فبأي آلاء ربكما تكذبان (٤٠) يعرف المجرمون بسيماهم فيؤخذ بالنواصي والأقدام (٤١) فبأي آلاء
ربكما تكذبان (٤٢) هذه جهنم التي يكذب بها المجرمون (٤٣) يطوفون بينها وبين حميم آن (٤٤) فبأي آلاء ربكما تكذبان
(٤٥)﴾ الرحمن: ١ ـ ٤٥

**لغتونه:**

(بحسبان) حسبان مصدر راولکه غفران او کفران دغسي وزن لري معنايې حساب دی (الأنام) خلک او په ځمکه اوسېدونکي خوځېدونکي بولي (العصف) زرغونه پاڼه چي کله وچه شي (ريحان) هروابښه چي خوشبويي درلونکي وي ريحان باله شي (مارج) هغه لمبې چي په اور د پاسه دی. ليث وايې چي دا هغه اوچتي لمبې او شغلې دي چي له سخته اوره راپاڅېږي (¹) (الجوار) د جارية جمع او بېړۍ ته وايې (جارية) يې ځکه بولي چي داو بو په مخ درومي روانه وي (الأعلام) د علم جمع او علم اوږده غره ته وايې شاعر وايې (اذا قطعن علما بدا علمٌ) کله چي يو غر به بې وو اهو بل به پيدا شو (تنفذوا) له يو څېز څخه په منډه وتلو ته (نفوذ) وايې (شواظ) هغه سرې لمبې چي لوګی، دود ورسره نه وي (الدهان) سور پوستکی (آن) له ډېره حرارته ايشېدونکي ته (آن) وايې.

(¹) دقرطبي تفسير ١٧/١٢١

تفسیر:

﴿ اَلرَّحۡمٰنُ عَلَّمَ الۡقُرۡاٰنَ ﴾ رحمان ښودلی دی قرآن (او آسانه کړی یې دی لپاره دیادولو او فهمولو،
مقاتل وایې کله چې دالله جل جلاله داقول نازل شوچې: ﴿ اسۡجُدُوۡا لِلرَّحۡمٰنِ ﴾ نو دمکې کفارو وویل رحمان
څوک دی؟ له هغه څخه یې انکار وکړاوویې ویل چې مونږ رحمان نه پېژنو نوالله تعالی وفرمایل
:(الرحمن) هغه چې ترې انکارکوي هغه ذات دی چې ﴿ عَلَّمَ الۡقُرۡاٰنَ ﴾ اوخازن وایې الله جل جلاله خپل
ورکړي نعمتونه بندګانو ته بیانوي اوترګردو سترنعمت چې قرآن مجید دی ړومبی راوړ دغه سپېڅلی
کتاب دالله ترټولو ستره وحی ده چې خپلو پیغمبرانوته یې رالېږلی اوداولیآء الله په نزد ترټولو اشرف
اوداوچتي مرتبې درلودونکی دی دغه مقدس کتاب په دین کې خوراغېزمن باب اوداِلهي کتابونو
ترټولو غوره کتاب دي چې په انبیاء علیهم السلام کي ترګردوپه غوره نبي باندي راتازل شوی
دی[1]) ﴿ خَلَقَ الۡاِنۡسَانَ ﴾ پیداکړی یې دی انسان ( اوربدونکی، لیدونکی، ګرځېدونکی مرادله انسان
څخه یې جنس دی ﴿ عَلَّمَهُ الۡبَیَانَ ﴾ بیایې ورښودلی بیان خبرې (چې دزړه مقصدونه یې پرې اداکېږي
اوله ګردوحیواناتوڅخه ورباندي متمیزدی. بیضاوي وایې چې مقصدله دې څخه دالله دنعمتونو شمېرل
دي ترڅویې انسان شکرپرځای کړي اوداچې دقرآن زده کړې یې دانسان ترپیدا ایښت لاهم ړومبی ذکرکړه
څکه چې هغه دګردودیني نعمتونوبنسټ دی نو هغه ترټولو غوره اوداهمیت وړدی ([2]) ﴿ اَلشَّمۡسُ وَالۡقَمَرُ
بِحُسۡبَانٍ ﴾ لمراوسپوږمی (جاري اوروان) دی په حساب سره (په خپلوبروجوکې
دبندګانودمصلحتونولپاره له یوځایه بل ته لېږدي. ابن کثیروایې معنادا چې په دقیق حساب سره یوپه
بل پسې رادرومي نه پکې څه اختلاف راځي اونه هم اضطراب ([3]) ﴿ وَالنَّجۡمُ وَالشَّجَرُ یَسۡجُدَانِ ﴾ او
ونې اوونې سجده کوي دوی دواړه دالله حکم ته غاړه ایښودونکي دي ستوري له یوبرج څخه بل ته په قدري
لېږدېدلواوونې په مېوې راوړلوسره ([4]) ﴿ وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الۡمِیۡزَانَ ﴾ اوآسمان پورته کړی دی
(الله) هغه (په ځمکه باندي) او ایښی یې ده تله دمېزان (دعدل په دنیاکي څوچې هرچاته خپل حق په
ورکړه راکړه کي ورسېږي) ﴿ اَلَّا تَطۡغَوۡا فِی الۡمِیۡزَانِ ﴾ لپاره ددې چې ونکړی تاسي تېری په مېزان تله
(دعدل) کي ﴿ وَاَقِیۡمُوا الۡوَزۡنَ بِالۡقِسۡطِ ﴾ اوبرابروي تول په انصاف سره ﴿ وَلَا تُخۡسِرُوا الۡمِیۡزَانَ ﴾ اومه

---

([1]) خازن تفسیر۴ /۲۴
([2]) دشیخ زاده حاشیة ۳ /۴۲۷
([3]) دابن کثیرمختصر ۳ /۴۱۵
([4]) څرګندله (النجم) څخه دآسمان ستوري اودغه دمجاهدوینااودابن کثیرغوره دی ابن عباس رضی الله عنه وایې چې مرادله (نجم) څخه هغه نباتات دي چې تنه نلري (ویرپراته وی) څکه چې د(الشجر) په مقابل کي راغلی دی اودغه قول ابن جریرغوره کړی خولومړی اظهردی.

کموئ مېزان تلل (په تول کي کمی مکوئ) لکه چي الله فرمايي ﴿ وَيْلٌ لِلْمُطَفِّفِينَ ﴾ (المطففين:۱) ﴿ وَٱلْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ ﴾ اوځمکه غوړولې تيته کړي ده (الله) لپاره دخلګو(چي ورباندي واوسي اوله محصولاتويې ګټه واخلي. ابن کثيروايي معناداچي په ستروغرونويې تينګه کړي ترڅوورباندي دالله ډول ډول مخلوقات چي مختلف اشکال اوالوان لري ودان اوواوسي (۱) ﴿ فِيهَا فَٰكِهَةٌ ﴾ پدې ځمکي کي (ډول ډول) مېوې دي ﴿ وَٱلنَّخْلُ ذَاتُ ٱلْأَكْمَامِ ﴾ اوخرماګاني دي خاونداني دپوښو(هغه چي مېوه ترې راوزي. ابن کثيروايي په ځانګړي توګه يې خرمايادو کړه ځکه چي شرافت لري اوګټه وره ده وچه اولمده خوړلی شي. ابن عباس ﷺ وايي چي اکمام هغه پوښونه دي چي وښکي ترې راوزي او بياترې خرماوي، ورپسې رطب (تازه) اوبياوروسته ببخي پخې شي(۲) ﴿ وَٱلْحَبُّ ذُو ٱلْعَصْفِ وَٱلرَّيْحَانُ ﴾ (اوپدې ځمکه کي دي ډول ډول دانې) خاونداني دوښواو(خاونداني) دښوو بوو (خوشبويه) يعني په ځمکه ډول ډول غلې دانې راټوکېږي چي پروره لري لکه غنم، اوربشي اوهمداسي بوټي اودانې هم وي چي خوشبويې لري لکه دګلاب او ياسمين ګل اوداسي نور.په البحرالمحيط کي وايي چي الله تعالی لومړی دفاکهې يادونه وکړه اونکره يې ذکرکړه ځکه په هغې پخپله ګټه اخيستل کېږي اوبيايې دخرمايادونه وکړه چي دمېوې نوم يې نه واخيستل ځکه چي هغه سراسرګټوره ده پټوکي يې ، بڼې يې، وښکي اومېوه يې ورپسې يې غلې دانې راوړې چي دانسان ژوندپه همدې دی لکه غنم، اوربشي ، جوار اوګردهغه خوشبويه نباتات يې هم په پای کي راوړل چي پيل په فاکهه اوپای په خوشبويه وړمه وشي تول هغه څه چي غذا اوياهم لذت وي راوړل شوورپسې چي کله ددغو نعمتونو يادونه وشوه نوانسانانواوپېريانانوته داسي خطاب دی: ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يونعمت دنعمتونودرب دتاسي دروغ وايی؟ (ای انسانانو، پېريانانو اوترې منکرېږی بلکه نشي کېدای) آيادالله نعمتونه دومره ډېرنه دي چي شمېرل کېږي نه؟ابن عمر ﷺ وايي رسول الله دالرحمن سورت خپلواصحابانو ﷺ ته ولوست هغوی چپ شول نورسول الله ﷺ وفرمايل: ولي پېريان ترتاسوالله ته ښه ځواب ورکونکي وو ماچي به هم کله هم دغه آيت ورته لوست چي ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ نودوی به ويل: (موږستاله نعمتونوپه هيڅ څېزباندي دروغ نه وايوثناتالره ده)(۳)له دې په وروسته الله ﷻ دخپل قدرت دلائل داسي يادوي چي ﴿ خَلَقَ ٱلْإِنسَٰنَ مِن صَلْصَٰلٍ كَٱلْفَخَّارِ ﴾ پيداکړی دی (الله) انسان (آدم) له ختې کړنګېدونکي وچي ځخه په شان دکودري مفسرين کرام وايي: الله تعالی پدې سورت کي دانسان پيدايښت داسي ذکرکړی چي ﴿ مِن صَلْصَٰلٍ كَٱلْفَخَّارِ ﴾ اوپه سورت الحجرکي راوړي چي: ﴿ مِّن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴾ يعني له توري متغيري ختې ځخه په صافات کي بياداسي

(۱) مختصرابن کثير ۳/ ۴۱۲.
(۲) مختصرابن کثير ۳/ ۴۱۲
(۳) أخرجه الترمذي وصححه الحاکم.

فرمايي ﴿ مِّن طِينٍ لَّازِبٍ ﴾ يعني سريښناکي خټي په آل عمران کي بيا راځي چي ﴿ كَمَثَلِ ءَادَمَ خَلَقَهُۥ مِن تُرَابٍ ﴾ (آل عمران ۵۹) خودديٖ ترمينځ کوم اختلاف نشته ځکه الله هغه د ځمکي له خاورو څخه اخيستى په اوبوېي اغښلى چي خټه جوړه شوي اوسريښناکه شوي بيايې پرېٖ ايښى ترڅوتوره بوينه متغيره خټه شوي او بيايې انځورنه شوي لکه چي دلوښوجوړول کېږي بيا داسي وچ شوی لکه چي کودرى وي کوم وخت چي يې وکړنګوي غږکوي نودلته يې هغه وروستۍ مرحله راوړل شوي ده(¹) ﴿ وَخَلَقَ ٱلْجَآنَّ مِن مَّارِجٍ مِّن نَّارٍ ﴾ اوپيداکړى دى (الله) (پلارد) پېريانو(ابليس) له خالصي شغليٖ داورڅخه (چي لوګى پکي نه وو. مجاهدوايي (مارج) هغه لمبه ده چي داورتوروالى پکي ګډوي په حديث شريف کي راځي چي پرښتې له نورڅخه پيداشوي اوجان (ابليس) له خالصي شغليٖ څخه اوآدم (عليه السلام ) له هغه څه نه چي (په قرآن کي) ذکرشوى دى (²) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يونعمت له نعمتونودرب دتاسي دروغ وايى (اوترې منکرېږى اى انسانانواوپېريانانو؟ ابوحيان وايي تکرارپه دغوفواصلوکي لپاره دتاکيداوتنبيه دى چي خوځښت او هڅونه افاده کوي اوابن قتيبه وايي چي دغه تکراردنعمتونوله مختلف والي سره تړون لري هرکله چي يونعمت ذکرکړي بياورسره راوړي چي ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ اودغه آيت دسورت په اوږدوکي يودېرش ځلي ذکرشوى دى استفهام پدې آيت کي دتقريع اوتوبيخ لپاره دى. ﴿ رَبُّ ٱلْمَشْرِقَيْنِ وَرَبُّ ٱلْمَغْرِبَيْنِ ﴾ رب ددواړومشرقونو (دلمراوسپوږمۍ اورب دى ددواړومغربونو (دلمراوسپوږمۍ )کله چي يې شمس اوقمرپه دې کلام کي چي ﴿ ٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ﴾ دى راوړل ورپسې دلته وفرمايل چي الله ددوى دمغرب اومشرق رب دى ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت دنعمتونودرب دتاسي دروغ وايى(او منکرېږى ترې اى انسانانواوپېريانانوبلکه نشى کېداى) ﴿ مَرَجَ ٱلْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيَانِ ﴾(بهولي يې دي دوه بحرونه چي يوځاى ښکاريږي)دوه بحرونه عبارت له ترووا وخوږوڅخه دى چي څنګ په څنګ روان او نه سره ګډېږي ﴿ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيَانِ ﴾ په مينځ ددواړوکي يوه پرده (دقدرت) ده چي نه ګډېږي يوپه بل باندي. ابن کثيروايي مقصدله بحرونوڅخه تروه اوخواږه دي تروه دغه سيندونه دي اوخواږه بيانهرونه (رودونه) چي په سېموکي بهېږي اوالله ددوى ترمينځ دمځکي پرده غوړولي چي يويې پربل تجاوزونشي کړاى اويوبل ته تاوان ونه رسولاى شي (³) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت دنعمتونو درب دتاسي درواغ وايى او منکرېږى اى انسانانواوپېريانانو؟ ﴿ يَخْرُجُ مِنْهُمَا ٱللُّؤْلُؤُ وَٱلْمَرْجَانُ ﴾ راوزي له دې دواړوڅخه لؤلؤ اومرجان (لکه چي راوزي له خاوروڅخه عصف اوريحان. الوسي وايي لؤلؤ دملغلرو

---

(¹) دشيخ زاده حاشيه ۳ /۴۳۰

(²) صاوي په جلالين باندي ۴ /۱۵۴

(³) دابن کثير مختصر ۳ /۴۲۷

کوچني ډول ته وايي اومرجان يې هغه غټوته دغه دابن عباس ﷺ تعريف دی اوابن مسعود ﷺ وايي چې مرجان هغه تکي سرې دانې بولي (¹) په آيت شريف کې دالهي مصنوعاتو دعجائبوبيان دی چې له ترووااوبوڅخه ډول ډول ګاڼې اوزينتي شيان راباسي لکه ملغلرې، ياقوت اومرجان فسبحان الله الواحدالمنان ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو درب دتاسي دروغ وايی اومنکرېږی ترې ای انسانانواوپېريانانو(بلکه نشي کېدای) ﴿ وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنشَآتُ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ ﴾ اوخاص دغه (الله) لره دي بېړۍ تلونکي نوي پيداکړی شوي لوړي اوچتي په بحرکي لکه لوی اوچت غرونه . قرطبي وايي چې د(اعلام) معنااوږده غرونه دي بېړۍ په درياب کي لکه غرونه په ځمکه کي داسي ايسي ، د امتنان وجه داده چې دريابونه اواوبه يې له دې سره سره چې لطيف مائع جسم دی خوبياهم دالله په قدرت ددغه بحرپه مخ باندي درنې بارشوي بېړۍ چې رزق روزي غلې دانې اودسوداګرۍ توکي پکي باروي له يوه ځايه بل ځای ته په آساني درومي، شيخ زاده ليکي: پوه شه چې دګردوشيانو بنسټ له څلوروڅېزوڅخه دی ؛ خاوره ، اوبه، هوا، اواور نوالله پدې ويناچې ﴿ خَلَقَ الْإِنسَانَ مِن صَلْصَالٍ ﴾ دی دخپل مکرم اوشريف مخلوق آر(اصل) وښوداوپدې ويناچې ﴿ وَخَلَقَ الْجَانَّ مِن مَّارِجٍ مِّن نَّارٍ ﴾ سره يې دبل عجيب الشان مخلوق پېري اصل وښود او پدې ويناچې ﴿ يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ ﴾ يوبل مخلوق چې دقدراوارزښت وړدی بيان کړورپسې يې ددې يادونه وکړه چې هواهم ستري اغېزي اولوی تاثېرات لري چې دغرونوپه شان بېړۍ داوبو په سرله يوځايه بل ځای ته بيايې نويې وفرمايل : ﴿ وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنشَآتُ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ ﴾ اوپه ځانګړي توګه يې دبېړيو ذکروفرمايوځکه دبېړيو په روانولو کي دبشرواک نشته اودوی پدې اعتراف کاووچې ويل به يې (لک الفلک ولک الملک) يعني تا لره بېړۍ اوتالره پاچهي ده کله چې به له غرقېدلواو ډوبېدلو وېرېدونويوازي الله ته به يې زارۍ جګي کولې ﴿ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ ﴾ (²)﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت دنعمتونو درب دتاسي دروغ وايی (او منکرېږی ترې ای انسانانو اوپېريانانو بلکه نشي کېدای ﴿ كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ﴾ ټول هغه څوک چې پدې (ځمکي) کي دي (له انسانه او حيوانه )فاني کېدونکي دي (وبه مري) ﴿ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ﴾ اوباقي به پاتي شي ذات درب ستاچې خاوند دجلال لويي (اوخاوند ) دعزت ورکولو عظمت فضل اواحسان دی لکه چې الله فرمايي ﴿ كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ ﴾ (القصص:۸۸) ابن عباس ﷺ وايي (وجه الله)عبارت دالله جل جلاله له دائم اوباقي ذات څخه دی . قرطبي ليکي چې دنعمت وجه په مرينه کي دغه تسويه اوبرابري ده اوپه مرګ سره له دارالفناء څخه دارالبقاء ته لېږدېدل دي هلته چې داردثواب اوجزاء

---

(¹) روح المعاني.
(²) دشيخ زاده حاشيه ۳ /۴۳۰.

دی[1] ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم یوه نعمت له نعمتونو درب دتاسي دروغ وایی؟! (اومنکرېږی ترې؟ ای انسانانو او پېریانو بلکه نشي کېدای ﴿ يَسْـَٔلُهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ سوال غوښتنه کوي له دغه (الله) څخه (درزق ، مغفرت اونوروارتیاوو) هرهغه څوک چي په آسمانونو اوځمکي کي دی (په لسان حال یاقال سره) ﴿ كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِى شَأْنٍ ﴾ هره ورځ هروخت دی په یوه کار کي دی (دمخلوقاتو، ځینوته مغفرت کوي دچاړتیاوي پوره کوي ځیني لوړوي اوځیني ټیټوي. مفسرین کرام وایې داهغه شئون دي چي خلګوته یې څرګندوي هسي نه چي یې پیداکوي ځکه چي قلم دټولوشیانوله لیکلوڅخه کوم چي شوي اویاترقیامته کېږي وزګارشوي اووچ شوي دي. الله تعالی ځیني قومونه اوچتوي اوځیني چي ورته یې خوښه شي ټیټوي اوذلیل کوي یې ناروغه ته روغتیاوربښي اوروغ رمټ سړی ناروغه کوي ، ذلیل ته عزت ورکوي اوعزیزته ذلت ، بډای نادارە کوي اوفقیرته بډایي وربښي ، مقاتل وایې: دغه آیت دیهودانو په هکله نازل شوی دوی به ویل: الله جل جلاله دشنبې (خالي) په ورځ هیڅ فیصله نه کوي نو الله ددوی تردید وفرمایو اودایادشوي آیت نازل شو (٢) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم یوه نعمت دنعمتونودرب دتاسي دروغ وایی (او منکرېږی ترې ای انسانانو او پېریانو بلکه نشی کېدای) ﴿ سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَ ٱلثَّقَلَانِ ﴾ ژردی چي فارغ وزګاربه شو موږ (اوقصدبه وکړوحساب د ) تاسي ته ای دوو درنو قبیلو (د انسانانو او پېریانانو) ابن عباس ﷺ وایې: دغه دالله ﷻ له لوري بندګانوته وعیددی اوالله خومشغول نه دی وزګاردی (٣) په البحرکي لیکي: یعني موږ به ستاسو په اموروکي دقیامت په ورځ کتنه وکړو هسي نه چي الله په کوم شغل لګیادی چي ترې فارغ شي ,دغه دعربودهغي وینا په څېردی کله چي یو څوک بل ته اخطار ورکوي ورته وایې ژردی چي زه به دروزګارشم ستادانتقام لپاره به له ګردوهغو کارونوچي مامشغولوي ځان درخلاص کړم (٤) بیضاوي وایې: معناداچي زه به دقیامت په ورځ ستاسي حساب اوجزاته ځان فارغ اوخلاص کړم اوپدې کي هغه تهدیدشته چي ستاله دغي وینا څخه استعاره شوی کله چي یوڅوک تهدیدوي ورته وایې ژردی چي درفارغ به شم ځکه یوڅوک چي کوم کارته وزګار اوفارغ وي بیا ورباندي زیات زورور اوغښتلی پیاوړی وي او(ثقلان) بیاانسان اوپېري ته وایې ځکه یې (ثقلان) بولي چي په ځمکه باندي درانه دي (٥) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم یوه له نعمتونودرب ستاسي دروغ وایی (او منکرېږی ترې ای انسانانو او پېریانانو بلکه نشي کېدای) ﴿ يَـٰمَعْشَرَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ إِنِ ٱسْتَطَعْتُمْ أَن تَنفُذُوا۟ مِنْ أَقْطَارِ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ فَٱنفُذُوا۟ ﴾ ای ټولیه دپېریانانو او انسانانو که چېري قدرت لری تاسي چي بهرووزی

(١) دقرطبي تفسیر ١٧/ ١٢٥
(٢) د الوسي تفسیر ٢٧/ ١١١
(٣) دابن کثیر مختصر ٣/ ٤١٩
(٤) البحرالمحیط ٨/ ١٩٤
(٥) دبیضاوي تفسیر ٣/ ٤٣٢

(وتښتي) له څنډو دآسمانونو او (له څنډو) دځمکي نه پس ووزئ) امر دلته دتعجیز لپاره دی یعني كه كولای شئ (دالله له قضاء او قدر څخه وتښتئ نو ووزئ او ځانونه دالله له عذابه وژغورئ ﴿لَا تَنفُذُونَ إِلَّا بِسُلْطَٰنٍ﴾ وبه نه وزئ وبه نه تښتئ تاسي مګر په قوت او زور سره (چي هغه تاسو سره چېرته دی ؟ بلكه نه یې لرئ) ابن كثیر وایي :دآیت معنادا چي تاسو دالله له حكم او قدر څخه تښتېدلای نشئ بلكه (قدرت د) الله پر تاسو باندي محیط دی چي خلاصون نلرئ او نشئ كولای چي له حكمه یې خلاص شئ هرچېري چي ولاړ شئ الله پر تاسو را ګرځېدلی دی دغه دحشر ګاه په میدان كي كله چي پرښتې په مخلوقاتو باندي اوه صفونه را ګرځېدلي وي نو هیڅوک نشي كولای له دې ځایه بهر ووزي مګر دالله په امر او اراده سره ﴿يَقُولُ ٱلْإِنسَٰنُ يَوْمَئِذٍ أَيْنَ ٱلْمَفَرُّ﴾ (القیامة:۱۰)([1]) او دغه به په قیامت كي وي په دنیا كي نه دی او دلیل یې دالله جل جلاله دا قول دی چي فرمایي ﴿يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّن نَّارٍ﴾ ([2]) ﴿فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ پس په كوم یوه نعمت له نعمتونو درب دتاسي دروغ وایی (او منكرېږی ترې ای انسانانو او پېریانو بلكه نشی كېدای.

﴿يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّن نَّارٍ﴾ وبه لېږلی شي په تاسي باندي خالصي لمبې داور (په ورځ دقیامت كي) ﴿وَنُحَاسٌ﴾ او ویلي شوي ژېړ (چي ستاسو په سرونو به توئېږي . مجاهد وایي دنحاس معنا هغه معلوم ژېړ دي چي ددوی په سرونو به دقیامت په ورځ توئېږي او ابن عباس ﷺ وایي چي (نحاس) هغه لوګی دی چي لمبې پكي نه وي دمجاهد قول څرګند دی ﴿فَلَا تَنتَصِرَانِ﴾ بیا به تاسي یو له بله مدد نشئ كولای (چي دالله له عذابه سره وژغوروي) ابن كثیر وایي دآیت معنا دا چي كه تاسو دقیامت په ورځ وتښتئ نو د جهنم څوكیداران او نوري پرښتې به مو داور په لمبو او ویلي شوي ژېړو باندي بېرته را وګرزوي بیا به تاسو كوم مرستندوی ونه مومی([3]) ﴿فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ پس په كوم یوه نعمت دنعمتونو درب دتاسي دروغ وایی (او منكرېږی ترې ای انسانانو او پېریانو بلكه نشي كېدای) ﴿فَإِذَا ٱنشَقَّتِ ٱلسَّمَآءُ﴾

---

([1]) دابن كثیر مختصر ۳/ ۴۱۹

([2]) متاخرینو پدې وروستیو ختونو كي ددې آیت دتفسیر په هكله كجروي كړي او ګمان یې كړی چي انسان كولای شي آسمانونو او ستورو ته وخېژي او د (سلطان) تعریف یې په علم كړی دی او دغه دمفسرینو له ویناو څخه مخالفه او دآیت سباق او سیاق یې تردیدوي ځكه چي آیت شریف دقیامت ذكر او ونو په باب دی دلیل یې دالله هغه وینا ده چي تردې دمخه تېره شوي ﴿سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَ ٱلثَّقَلَانِ﴾ او له دې وروسته بیا هغه وینا چي ﴿يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّن نَّارٍ﴾ او د مفسرینو پدې اتفاق دی چي دغه ګردشیان به په آخرت كي وي، موږ له دې څخه منكر نه یو چي د انسان ختل په توغندیو او نویو مخترعاتو باندي سپوږمی ته ممكن دي چي دځمكي په خواوشا دي وګرزي او په هواكي دي لوړشي خونشي كولای چي آسمان ته دي ورسېږي ځكه الله جل جلاله هغه محفوظ چت (بام) جوړ كړی دی مګر سپوږمی او نور ټول ستوري ددنیا تر آسمان را ښكته دي هغوی ته رسېدل ممكن دي خو موږ هغه چاته تعجب كوو چي په قرآنكريم باندي پرته له پوهي او فهمه یرغل كوي او پخپله رایه یې تفسیربیانوي دمعتمدو مفسرینو اقوالو ته رجوع نه كوي وګوره درابطة العالم الاسلامي مجله كال : ۱۳۸۹ چي موږ هلته سپوږمی ته دختلو په باب تفصیلي مقاله لیكلی ده.

([3]) دابن كثیر مختصر ۳/ ۴۱۹

بیاکله چي وچوي خیري شي آسمان (چي پربنتې ترې رانبکته شي اوپه خلګوباندي له هره لوري راوګرزي ) ﴿ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ﴾ نووبه ګرزي اسمان ګل سوررنګ (داورله تودوخي) لکه سرې خرمني، دغه دابن عباس ﷺ وینا ده اودغه به ددې ستري ورځي له شدت اوسختي څخه وي ﴿ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم یوه نعمت له نعمتونودرب دتاسي دروغ وایې (اومنکرېږی ترې ای انسانانواوپېریانانوبلکه نشی کېدای ) ﴿ فَيَوْمَئِذٍ لَا يُسْأَلُ عَنْ ذَنْبِهِ إِنْسٌ وَلَا جَانٌّ ﴾ نوپه دغه ورځ (دچاودېدلوخیرېدلودآسمان) نه به پوښتېدل کېږي له ګناه ددوی نه ) له انسانانواونه له پېریانانو(څکه چي دګناهګارنښې به څرګندي وي لکه توروالی دمخ اوشین والی دسترګویې امام فخررازي لیکي هیڅوک به له ګناه نه پوښتل کېږي چي ورته وویل شي آیاته ګنهګارې که بل څوک؟ یاګنهګارڅوک دی؟ بلکه ګردبه دمخونوپه توروالي اونورونښوپېژندل کېږي (۱) ﴿ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم یوه نعمت له نعمتونودرب دتاسي دروغ وایی اومنکرېږی ترې (ای انسانانواوپېریانانوبلکه نشی کېدای) ﴿ يُعْرَفُ الْمُجْرِمُونَ بِسِيمَاهُمْ ﴾ پېژندل کېږي ګنهګاران (کافران) په علائمونښوددوی سره (په ورځ دقیامت هغه داچي دوی به په خفګان کي نغښتي وي . حسن رحمه الله وایې چي دغه نښې عبارت دي له توروالي دمخ او شین والي دسترګو څخه لکه چي الله فرمایې ﴿ وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِينَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا ﴾ (طه:۱۰۲)اوودالله داویناچي ﴿ يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ ﴾ (۲) ﴿ فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِي وَالْأَقْدَامِ ﴾ نووبه نیولی شي (دغه منکران ) په وېښتود(وچولي (تندي) سره اوپه قدمونوسره (اوپه اورکي به وغورځولی شي. ابن عباس ﷺ وایې : مجرم به له پېکي اوپښوونیولی شي اولکه وچ خس اوخاشاک غوندي به مات کړی شي اوپه اورکي به بیا وغورځولی شي ﴿ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم نعمت درب دتاسي دروغ وایی(او منکرېږی ترې ای انسانانواو پېریانانوبلکه نشی کېدای) ﴿ هَٰذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُونَ ﴾ دتوبیخ اوتقریع په توګه به ورته وویل شي ) داهغه دوزخ دی چي دروغ به یې ویل په ده سره مجرمانو (ابن کثیروایې معناداچي مجرمانوتاسو به دوزخ نه مانو دغه دی حاضردی په سترګویې وینی (۳) ﴿ يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ آنٍ ﴾ ګرزي به دوی په مینځ ددوزخ اوپه مینځ داوبوډېروتودوډېرو ګرمو کي .قتاده وایې چي یو واري به حمیم اوبیابه جحیم ته درومي جحیم اوراوحمیم ایشېدلي اوبه دي ﴿ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم یوه نعمت له نعمتونودرب خپل دروغ وایی (اومنکرېږی ترې ای انسانانواو پېریانانو بلکه نشی کېدای).

---

(۱) کبیرتفسیر ۲۹/ ۱۱۸

(۲) دقرطبي تفسیر ۱۷/ ۱۷۵

(۳) دابن کثیرمختصر ۳/ ۴۲۶

## الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِۦ جَنَّتَانِ ﴿٤٦﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٧﴾ ذَوَاتَآ أَفْنَانٍ ﴿٤٨﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٩﴾
فِيهِمَا عَيْنَانِ تَجْرِيَانِ ﴿٥٠﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥١﴾ فِيهِمَا مِن كُلِّ فَٰكِهَةٍ زَوْجَانِ ﴿٥٢﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٣﴾
مُتَّكِـِٔينَ عَلَىٰ فُرُشٍۭ بَطَآئِنُهَا مِنْ إِسْتَبْرَقٍ وَجَنَى ٱلْجَنَّتَيْنِ دَانٍ ﴿٥٤﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٥﴾ فِيهِنَّ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ لَمْ
يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ﴿٥٦﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٧﴾ كَأَنَّهُنَّ ٱلْيَاقُوتُ وَٱلْمَرْجَانُ ﴿٥٨﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا
تُكَذِّبَانِ ﴿٥٩﴾ هَلْ جَزَآءُ ٱلْإِحْسَٰنِ إِلَّا ٱلْإِحْسَٰنُ ﴿٦٠﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦١﴾ وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ ﴿٦٢﴾
فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٣﴾ مُدْهَآمَّتَانِ ﴿٦٤﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٥﴾ فِيهِمَا عَيْنَانِ نَضَّاخَتَانِ ﴿٦٦﴾ فَبِأَيِّ
ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٧﴾ فِيهِمَا فَٰكِهَةٌ وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ ﴿٦٨﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٦٩﴾ فِيهِنَّ خَيْرَٰتٌ حِسَانٌ ﴿٧٠﴾
فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧١﴾ حُورٌ مَّقْصُورَٰتٌ فِى ٱلْخِيَامِ ﴿٧٢﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧٣﴾ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ
قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ﴿٧٤﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧٥﴾ مُتَّكِـِٔينَ عَلَىٰ رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَعَبْقَرِىٍّ حِسَانٍ ﴿٧٦﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا
تُكَذِّبَانِ ﴿٧٧﴾ تَبَٰرَكَ ٱسْمُ رَبِّكَ ذِى ٱلْجَلَٰلِ وَٱلْإِكْرَامِ ﴿٧٨﴾ ﴾ الرحمن: ٤٦ - ٧٨

## مناسبت:

کله چې الله تعالی د دوزخیانو احوال بیان کړ ورپسې یې هغه څه راوړل کوم چې د ابرارو مؤمنانو لپاره الله ﷻ تیار کړي هغه چې جنتونه حورې او غلمان دي تر څو چې د مجرمینو او متقینو مرتبې سره بېل او وپېژندل شي همدغه د قرآنکریم اسلوب دی چې ترغیب او ترهیب سره یوځای راوړي

## لغتونه:

(افنان) د (فنن) جمع او هغه ښاخ ته وايي ، شاعر کوتره داسې ستايي:

*رُب ورقاء هتوف في الضحی * ذات شجو صدحت في فنن * ذکرت الفا و دهرا صالحا * فبکت شوقا فهاجت حزن.*

ډېر ځله په څاښت مهال کې نارې وهونکې (کوتره) چې په ښاخ ناسته وي پخوانۍ مينه او وخت يادوي ، بیا له شوقه ژاړي نو زما خواشيني را وپاروي

(استبرق) پریړ وریښم (وجنی) جنی هغه مېوه تولول بولي (یطمثهن) (طمث) په پیل کې هغه کوروالي (جماع) ته ویل کېدو چې د باکرې (پېغلې) وینې به له هغه ځخه څرګندې شوې وروسته بیا هرې جماع ته وویل شو ، فرآء وايي طمث هغه جماع ته ویل کېږي چې وینه ترې پیداشي([1]) (مدهامتان) له ډېره زرغونوالي تور (دهمة) په لغت کې توروالي ته وايي (نضاختان) په اوبو باندې فوارې چې وچېدل او تم کېدل بې نه وي (عبقري) فرشونه (دعبقرية) جمع او هغو پنډو فرشونو (نالیو) ته وايي چې ډول ډول نقشونه پکې

([1]) دقرطبي تفسير ١٧/١٨

وي فرآء وايي عبقري پريړ فرشونه دي اوابو عبيد بيا وايي هره جامه چي نقشونه ولري عرب ورته عبقري وايي.

تفسير:

﴿ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِۦ جَنَّتَانِ ﴾ او هغه لره چي وېرېږي (په وخت د گناه کي) له دربېدلو څخه په مخ د رب خپل کي (حساب ته) دوه جنتونه دي (يو جنت يې د اوسېدلو بل يې د ازواجو د خدمتگارانو لپاره لکه چي د دنيا پاچهان يو قصر يې د ځان او بل يې د مېرمنو لپاره وي (١) ابن کثير وايي دغه دوه ددې لپاره چي په انتقال له يو ځای نه بل ته يې خوند اخيستل دوه چنده شي اوزمخشري وايي چي يو جنت به يې د طاعاتو د کولو په نتيجه کي ورکول کېږي او بل به د معاصيو د پرېښودلو لپاره ورکول کېږي په حديث شريف کي راځي چي: دوه جنتونه به د سپينو زرو چي لوښي او ټول مافيها به يې هم د سپينو زرو وي او دوه جنتونه به د سرو زرو چي لوښي او ټول مافيها به يې هم د سرو زرو وي د الله دليدلو (ديدار) او د دوی ترمينځ به په جنت عدن کي يوازي د الهي کبريا ، رداء (پرده) وي (٢) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم کوم يوه نعمت د نعمتونو درب د تاسي دروغ وايی او منکرېږی ترې ای انسانانو او پېريانو بلکه نشی کېدای) ورپسې الله جل جلاله د جنتونو ستاينه داسي کوي چي ﴿ ذَوَاتَآ أَفْنَانٍ ﴾ هسي جنتونه چي خاوندان د ډېرو ښاخونه او ښاخونو وي ، په البحر المحيط کي راوړي چي په ښاخونو کي يو ټوگه يې ښاخونه او ښاخونه راوړي څکه چي هغه پاڼي کوي او مېوه راوړي سيوري خپروي ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت له نعمتونو درب د تاسي دروغ وايی (او منکرېږی ترې (ای انسانانو او پېريانو بلکه نشي کېدای)

﴿ فِيهِمَا عَيْنَانِ تَجْرِيَانِ ﴾ په دې دواړو جنتونو کي دوې چينې دي چي بهېږي به (هر چېري چي دوی غواړي) لکه چي الله فرمايي ﴿ فِيهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ ﴾ (الغاشية ١٢) ابن کثير وايي: معنا دا چي دغه چينې به نومو ري ښاخونه اووني او بوي خړوبوي او بيا به ډول ډول مېوې راوړي (٣) حسن رحمه الله وايي چي دغه چينې به د خوږو اوبوو چي يوه يې تسنيم او بله سلسبيل ده ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت له نعمتونو درب د تاسي دروغ وايی (او منکرېږی ترې ای انسانانو او پېريانو بلکه نشی کېدای) ﴿ فِيهِمَا

---

(١) امام فخر رازي ليکي کله چي الله جل جلاله د مجرم په هکله وفرمايل چي: هغه به د اور او ايشېدلو اوبو ترمينځ څي او راځي نو د وېرېدونکي مؤمن په هکله يې داسي ارشاد وکړ چي: ﴿ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِۦ جَنَّتَانِ ﴾ او الله پاک کله جنت کله دوه جنتونه او کله بيا جمع جنات راوړي داسي فرمايي ﴿ إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ فِي جَنَّٰتٍ ﴾ او بيا فرمايي ﴿ مَّثَلُ ٱلْجَنَّةِ ٱلَّتِي وُعِدَ ٱلْمُتَّقُونَ ﴾ نو دغه له دې کبله چي گڼي ونې او ودانۍ يې سره پټلېزاو ښتي جلا والی نلري نو لکه چي گرد يو جنت وي او دا چي خورا زيات پراخوالی او ډول ډول ماڼۍ او ودانۍ لري لکه چي جلا جلا جنتونه وي او له دې کبله چي د روح او جسم تلذذ ورباندي مرتب دی لکه چي دوه جنتونه وي کبير تفسير ٢٩ / ١٢٣

(٢) رواه البخاري.

(٣) د ابن کثير مختصر ٣ / ٤٢٢

﴿ مِن كُلِّ فَٰكِهَةٖ زَوۡجَانِ ﴾ پدې دواړو (جنتونو) کې به له هرې مېوې (آشنانا آشنا) وچې، لمدې) دوه دوه قسمونه وي ابن عباس رضي الله عنه وايي: په دنياکې چې هرډول خوږه اوتروه مېوه شته هغه به په جنت کې هم وي آن تردې چې حنظل به لاهم هورې وي خوهغه به خوږه وي په دنياکې يوازې دآخرت دمېوونومونه شته

﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت له نعمتونو درب د تاسي دروغ وايي (اومنکرېږی ترې ای انسانانواوپېريانانوبلکه نشی کېدای) امام فخر رازي رحمه الله وايې چې دالله جل جلاله داويناچې

﴿ ذَوَاتَآ أَفۡنَانٖ ﴾ او ﴿ فِيهِمَا عَيۡنَانِ تَجۡرِيَانِ ﴾ او ﴿ فِيهِمَا مِن كُلِّ فَٰكِهَةٖ زَوۡجَانِ ﴾ دغه گرددهغو دوونوموروجنتونواوصاف دي اوداچې دڅانگواومېوو ترمينځ يې دچينو ذکروفرمايودغه يې دسوکاله اوهوسانعمت دخاوندانوله دودسره سم يادونه کړي ځکه کله چې دغه کسان بڼ اوجنت ته داخل شي نوسمدستي دمېووپه خوړلوپيل نه کوي بلکه يوځل سيل اوتفريح کوي سره له دې چې انسان په دنياکې هم ترهغوڅه نه خوري څوېې ښه اشتهانه وي پيداکړي اووږی شوی نه وي نوپه جنت کې به څرنگه خوراک وکړي؟ نو ځکه الله لومړی ونې يادې کړې زرغونه سيمه اوروانې چينې يې وستايلې اوبيايې له ساتېرې اوتفريح نه وروسته دمېوودخوړلو دوخت يادونه راوړه (سبحان الله من يأتی بالآيات بأحسن المعاني في أبين المباني) (١)﴿ مُتَّكِـِٔينَ عَلَىٰ فُرُشِۭ بَطَآئِنُهَا مِنۡ إِسۡتَبۡرَقٖۚ ﴾ په هسې فرشونوباندې به يې ځنگونه لگولي وي چې استرونه دهغوبه له کلکووربښموڅخه وي (چې په زروبه ښايسته شوي وي دغه ددغوفرشونود نهايت شرف ځرگندويي کوي کله چې دهغه استرله پنډوپېړو وربښموڅخه وي نواټکل وکړه چې مخ به يې څرنگه نرم اوپوست وربښمن وي. ابن مسعود رضي الله عنه وايې چې همدغه يې استرونه دي نومخ به يې لا څرنگه وي؟ له ابن عباس رضي الله عنه څخه ددې آيت په هکله وپوښتل شول هغه وويل داهغه څه دي چې الله فرمايې ﴿ فَلَا تَعۡلَمُ نَفۡسٞ مَّآ أُخۡفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعۡيُنٖ جَزَآءَۢ بِمَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴾ (السجدة ١٧) ﴿ وَجَنَى ٱلۡجَنَّتَيۡنِ دَانٖ ﴾ اوشوکول (دمېوې) ددغودوو جنتونوبه ترلاس لاندې وي) يعنې ناست ولاړاوڅملاستي ټول به يې يوډول ترلاسه کولای شي ددنيادمېوې په ډول به نه وي چې ربړونه اوتکليفونه به يې دلاسته راوړلوپه لارکې گاللې کېږي. ابن عباس رضي الله عنه وايې ونه به ورته رانژدې کېږي چې دالله ولي يې په هرحال که ولاړوي ، که ناست اوکه پروت مېوه راشوکولای شي (٢) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت له نعمتونو درب ستاسي دروغ وايی (اومنکرېږی ترې بلکه نشی کېدای) ﴿ فِيهِنَّ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرۡفِ ﴾ په دغو (جنتونوکې) به بندکونکی دسترگو (حورې) وي چې پرته له خپلوخاوندانوبه بل چاته نه گوري لکه چې دپاک لمنوسپېڅلومېرمنودستوروي ﴿ لَمۡ يَطۡمِثۡهُنَّ إِنسٞ قَبۡلَهُمۡ وَلَا جَآنّٞ ﴾ چې نه وي مسه کړي دوی لره انسان پخوا له دغو (جنتيانومېړوخپلو) اونه پېري (بلکه

(١) کبيرتفسير ٢٩/١٢٥

(٢) روح المعاني ٢٧/١١٨

پېغلي تاندي به وي. الوسي ليکي چي طمث په اصل کي دوينو وتلو ته وايي ځکه نو حيض ته طمث وايي اوبيايې د پېغلو سره په کوروالي (جماع) باندي اطلاق وشو ځکه چي هلته هم وروسته له جماع ويني ليدل کېږي اوبيا وروسته په هرډول جماع باندي بې اطلاق شوکه څه هم ويني وتل ورسره نه وي (۱)﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت له نعمتونو درب دتاسي دروغ وايی (اومنکرېږی تريِ ای انسانانو او پېريانو بلکه نشی کېدای ﴿ كَأَنَّهُنَّ ٱلْيَاقُوتُ وَٱلْمَرْجَانُ ﴾ ګواکي دغه (حوري) ياقوت لعل دي (په صفايي) اومرجان وي (په سوروالي کي) قتاده وايې: يعني دوی د ياقوتو غوندي صفااود مرجان غوندي سوربخوني وي که چېري ياقوت په مزي کي وپېيل شي اوبيا ورته وګوري نومزي به له ورايه پکي ښکاري په حديث شريف کي راغلي چي: دجنتي مېرمنو، ساق (لينګی، ورون، پتون) به له اوياورېښمنو جامولاندي داسي معلومېږي چي آن ماغزه به پکي ښکاري (۲)﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت له نعمتونو درب دتاسي دروغ وايی (اومنکرېږی تريِ بلکه نشی کېدای) ﴿ هَلْ جَزَآءُ ٱلْإِحْسَٰنِ إِلَّا ٱلْإِحْسَٰنُ ﴾ نه ده جزا بدل داحسان مګر احسان نېکي ده (په آخرت کي ، ابوالسعودوايې چي جزادعمل داحسان نه ده مګرثواب داحسان دی (۳) اومقصدداچي يو څوک نېکي اواحسان وکړي هغه دانعام اواکرام وړاومستحق دی ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت له نعمتونو درب دتاسي دروغ وايی اومنکرېږی تريِ بلکه نشی کېدای) ﴿ وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ ﴾ اوبې له دغو (دووجنتونو) دوه جنتونه نورهم دي. مفسرين کرام ليکي چي لومړني دوه جنتونه دسابقينو لپاره اودغه وروستني جنتونه ، باغونه داصحاب اليمين لپاره دي اوبېشکه چي دسابقينو مرتبه لوړه اوچته ده چي الله فرمايي ﴿ فَأَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ مَآ أَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ ﴿٨﴾ وَأَصْحَٰبُ ٱلْمَشْـَٔمَةِ مَآ أَصْحَٰبُ ٱلْمَشْـَٔمَةِ ﴿٩﴾ وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلسَّٰبِقُونَ ﴿١٠﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلْمُقَرَّبُونَ ﴾ ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت له نعمتونو درب دتاسي دروغ وايی (اومنکرېږی تريِ ای انسانانو او پېريانو بلکه نشی کېدای) ﴿ مُدْهَآمَّتَانِ ﴾ تک توربه وي (له ډېره شين والي شخه (اوله ډېرو اوبو ، الوسي وايې: معناداچي دوی به زښته زيات زرغونه وي اوزرغون والی چي خورازيات شي نوتوربخون ښکاري او دغه ډېرو اوبو اوښېرازي نښه ده (۴)﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت له نعمتونو رب دتاسي درواغ وايی (اومنکرېږی تريِ بلکه نشی کېدای )﴿ فِيهِمَا عَيْنَانِ نَضَّاخَتَانِ ﴾ وي به په دغو (جنتونو) کي دوه چيني جوش وهونکي (چي پرېکړون به نه لري . ابن عباس اوابن مسعود رضی الله عنهماوايي:

---

(۱) دالوسي تفسير ۲۷/ ۱۱۹

(۲) ترمذي له ابن مسعود رضی الله عنه څخه مرفوع اوموقوف روايت کړی ابن کثيرليکي چي موقوف يې أصح دی.

(۳) ابوالسعود تفسير.

(۴) روح المعاني ۲۷/ ۱۲۱

معناداچي دأولياء الله په جنتي كورونوبه مشک اوعنبرلکه شبنم اونري باران غوندي شيندي (۱)
﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په كوم يوه نعمت له نعمتونودرب دتاسي دروغ وايې (اومنكرېږى ترې اى انسانانواوپېريانانوبلکه نشى كېداى) ﴿ فِيهِمَا فَٰكِهَةٌ وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ ﴾ وي به په دغو دوو(جنتونو) كي هرراز مېوې اوخرما او آنار او داچي خرمااوآنارېې په خانګړي توګه يادكړل ترڅوچي په ګردومېوو يې فضيلت اوشرف وښيې بل داچي دعربوغالبًامېوې همدادوه څيزونه وو. الوسي ليكي چي دجنت خرماوي اوآنارپرته له هغودي چي مونږ يې پېژنو (۲) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په كوم يونعمت له نعمتونو درب دتاسي دروغ وايې (اومنكرېږى ترې بلكه نشى كېداى ) ﴿ فِيهِنَّ خَيْرَٰتٌ حِسَانٌ ﴾ وي به په دغو (ټولو جنتونو ) كي حوري ، پى مخي نېكي ښايسته (نيک خويه صالحاتي كريماتي) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په كوم يو نعمت له نعمتونودرب دتاسي دروغ وايې (اومنكرېږى ترې اى انسانانواوپېريانانوبلكه نشى كېداى ) ﴿ حُورٌ مَّقْصُورَٰتٌ فِى ٱلْخِيَامِ ﴾ حوري به وي پټي كړى شوي په خېموكي (نه به راوزي دشرف اوكرامت له مخي. دوى به دملغلرو(لؤلؤ)په خېموكي اوسي.ابوحيان وايې چي دغه دمېرمنوثنا اوستاينه ده څكه څوک چي په كوردننه اوسي دغه يې دخوندي توب اوصيانت ننبه ده ، حسن رحمه الله وايې معنادا: چي په لاروكوڅوكي ګرځېدونكي نه دي ،دجنت خېمې دلؤلؤملغلرووداني دى په حديث شريف كي راځي: په جنت كي به يوه خيمه وي چي له مُجوّف لؤلؤڅخه به تياره شوي اوپسوربه يې شپېته ميله وي ......... (۳) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په كوم يوه نعمت له نعمتونودرب دتاسي دروغ وايې (اومنكرېږى ترې بلكه نشى كېداى) ﴿ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ﴾ چي نه به وي مسه كړي دوى لره سړو(پخواله دغو (جنتيانو مېړونوڅخه) اونه پېريانو. په التسهيل كي وايې لومړني يادشوي دوه جنتونه دسابقينولپاره او وروستني يادشوي دوه جنتونه بيادأصحاب اليمين لپاره دي وګوره چي څرنګه يې دلومړنيو دوو جنتونواوصاف تر وروستنيو دوو جنتونولوړ ذكركړي ؟ هلته يې فرمايې ﴿ فِيهِمَا عَيْنَانِ تَجْرِيَانِ ﴾ اودلته وايې ﴿ فِيهِمَا عَيْنَانِ نَضَّاخَتَانِ ﴾ اوڅرګنده ده چي بهېدل تر اورېدلو زيات وي ، هلته يې فرمايلي چي ﴿ فِيهِمَا مِن كُلِّ فَٰكِهَةٍ زَوْجَانِ ﴾ اودلته فرمايې ﴿ فِيهِمَا فَٰكِهَةٌ وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ ﴾ اومعلومه ده چي لومړنى عام اوشامل دى ، همداسي هلته يې دحوروپه ستاينه كي ويلي چي ﴿ كَأَنَّهُنَّ ٱلْيَاقُوتُ وَٱلْمَرْجَانُ ﴾ اودلته بيا فرمايې چي ﴿ فِيهِنَّ خَيْرَٰتٌ حِسَانٌ ﴾ اوهر حسن اوښكلالكه دياقوت اومرجان غوندي نشي كېداى هلته ستاينه زياته ده ، هلته يې دفرش په

(۱) دقرطبي تفسير ۱۷/ ۱۸۵
(۲) روح المعاني ۲۷ /۱۲۱
(۳) دبخاري حديث

هکله فرمايلي چي ﴿ مُتَّكِـِٔينَ عَلَىٰ فُرُشٍۭ بَطَآئِنُهَا مِنْ إِسْتَبْرَقٍ ﴾ اوهغه پرېر وربښم دي چي دېباج يې بولي او دلته فرمايې: ﴿ مُتَّكِـِٔينَ عَلَىٰ رَفْرَفٍ خُضْرٍ ﴾ اوپدې کي شک نشته چي هغه دتکيې لپاره چمتوشوی فرش تربالښتونو غوره وي ﴿ مُتَّكِـِٔينَ عَلَىٰ رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ ﴾ تکيه کونکي به وي دوی پر بالښتونو شين رنګو باندي اوپه عمده نفيسو فرشونوښايسته وو باندي. صاوي وايې چي: دغه پنډي نالی ښايسته فرشونه يې (عبقر) ته نسبت کړی چي په يمن کي يو کلي ده اوخورا ښايسته په نقش او نګار فرشونه پکي اوبدل کېږي نو الله موږته دجنت فرشونه په همدغو ښايسته فرشونو راوپېژندل (۱) ﴿ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴾ پس په کوم يوه نعمت له نعمتونو درب دتاسي درواغ وايی (اومنکرېږی ترې ای انسانانو اوپېريانانو بلکه نشی کېدای) ﴿ تَبَٰرَكَ ٱسْمُ رَبِّكَ ﴾ برکت ناک دی نوم درب ستا (زيات دي فيوضات اوبرکتونه يې) ﴿ ذِى ٱلْجَلَٰلِ وَٱلْإِكْرَامِ ﴾ چي خاوند دلويي سترتوب اودعزت ورکولو انعام دی. په البحرالمحيط کي راوړي چي کله الله پاک ددنيا دنعمتونو خاتمه پدې قول چي ﴿ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو ٱلْجَلَٰلِ وَٱلْإِكْرَامِ ﴾ وفرمايله نودآخرت نعمتونه يې بيا پدې ختم کړل چي ﴿ تَبَٰرَكَ ٱسْمُ رَبِّكَ ذِى ٱلْجَلَٰلِ وَٱلْإِكْرَامِ ﴾ اوهلته دامناسب ووچي دعالم له فنا وروسته دالله جل جلاله دبقا او تلپاتي يادونه وشي، دلته بيا دبرکت (ودي) دزيات والي يادونه ده چي الله يې په مؤمنانو په دارالنعيم کي احسان فرمايلی دی اوخير، فضيلت يې ورکړی دی (۲).

## بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډ يزيې دادی:

۱ – باريکه مقابله چي فرمايې ﴿ وَٱلسَّمَآءَ رَفَعَهَا ...... ﴾ اوداچي ﴿ وَٱلْأَرْضَ وَضَعَهَا ﴾ همدارنګه ددې وينا وو ترمينځ چي ﴿ خَلَقَ ٱلْإِنسَٰنَ مِن صَلْصَٰلٍ كَٱلْفَخَّارِ ﴾ او ﴿ وَخَلَقَ ٱلْجَآنَّ مِن مَّارِجٍ مِّن نَّارٍ ﴾ راغلي ده.

۲ – مرسله مجمله تشبيه لکه ﴿ وَلَهُ ٱلْجَوَارِ ٱلْمُنشَـَٔاتُ فِى ٱلْبَحْرِ كَٱلْأَعْلَٰمِ ﴾ يعني لکه غرونه غوندي په لوی والي کي.

---

(۱) دصاوي حاشيه ۴ / ۱۲۰

(۲) البحرالمحيط

۳ - مرسل مجازچي فرمايي ﴿ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ ﴾ يعني مقدس ذات دده اودغه راوړل د جزء اواراده دکل ده چي مرسل مجازيې بولي.

۴ - تمثيلي استعاره لکه ﴿ سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَ ٱلثَّقَلَانِ ﴾ ددنيافاني کېدل اودهغې دشئونو اوچاروسرته رسېدل اود آخرت راتلل اويوازي ديوه کارچي هغه حساب کتاب دی پاتي کېدل يې له هغه چاسره مشابه کړل چي په کارونولګياوي اوبيا ديوه کارلپاره ځان وزګارکړي، الله جل جلاله خوهغه ذات دی چي يو کاريې له بل څخه نه مشغولوي مګردغه دتمثيل په توګه راغلی دی.

۵ - تعجيزي امرلکه ﴿ إِنِ ٱسْتَطَعْتُمْ أَن تَنفُذُوا۟ ...فَٱنفُذُوا۟ ﴾ امردلته دتعجيزلپاره دی.

۶ - بليغه تشبيه لکه: ﴿ فَإِذَا ٱنشَقَّتِ ٱلسَّمَآءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَٱلدِّهَانِ ﴾ يعني لکه ګل په سوروالي کي دتشبيه وجه اوادات حذف شوی نوبليغه تشبيه ګڼلی شي.

۷ - ناقص جناس لکه ﴿ وَجَنَى ٱلْجَنَّتَيْنِ دَانٍ ﴾ چي دځينوتورو تغييرراغلی اودغه اشتقاقي جناس دی.

۸ - ايجازبالحذف لکه ﴿ فِيهِنَّ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ ﴾ يعني هغه مېرمني چي يوازي خپلو مېړونوته ګوري.

۹ - مرصع سجع چي تکليف پکي نه ليدل کېږي اولکه پېيلي ملغلري غوندي په يوه مزي کي منظومي وي ولوله دالله داويناچي: ﴿ ٱلرَّحْمَٰنُ ۝١ عَلَّمَ ٱلْقُرْءَانَ ۝٢ خَلَقَ ٱلْإِنسَٰنَ ۝٣ عَلَّمَهُ ٱلْبَيَانَ ﴾ اونورمثالونه يې.

فائده:

سورت الرحمن دقرآن عروس اوناوي بلل شوي ده ، په حديث شريف کي راغلي چي (لکل شئ عروس وعروس القرآن سورة الرحمن).

دالله په مرسته دالرحمن سورت تفسيربشپړشو.

***

## د(الواقعة) سورت مكي او شپږ نوي آيتونه لري.

### د سورت په وړاندي:

دغه سورت د قيامت دورځي حالات او هغه کړاوونه بيانوي چي ترمخه بې راځي او بيا خلګ په دريو ډلو وېشل کېږي (أصحاب اليمين ، أصحاب الشمال او سابقين).

سورت دهري يوې ډلي برخه ليک او هغه څه بيانوي چي الله په عادلانه ډول د دوی لپاره پېرزو کړي دي لکه چي دالله په وحدانيت ، وجود ، بشپړ قدرت ، بديع خلقت او صنعت باندي دلائل راوړي چي څرنګه يې انسان پيدا کړی، نباتات يې راټوکولي (زرغون کړي) او به يې اورولي او په اور کي يې قوت او خواک خوندي کړی دی او بيايې دقرآن کريم په هکله فرمايلي چي دغه سپېڅلی کتاب دالله رب العالمين له لوري نازل شوی دی ورپسي بيا دځنکندن سختي او کړاوونه بيانوي.

دسورت پای د دريو ټولګيو په يادونه کوي چي هغوی نېکمرغه يابدمرغه او سابقين دي چي نعمتونه ورکول شوي اودهري ډلي او ټولګي برخه ليک او عاقبت بيانوي او دغه لکه د سورت د پيل له اجماله وروسته تفصيل غوندي دی راوړي او داولياء الله مقربينو ستاينه په پيل او پای کي کوي.

بهتري او فضيلت يې: أ - ابن مسعود رضی الله عنه وايي چي رسول الله وفرمايل: څوک چي د(الواقعه) سورت هره شپه وايي هغه ته به خواري بېوزلي هيڅکله هم ونه رسي.(¹)

ب:- حافظ ابن عساکر دعبدالله بن مسعود په سوانحو کي له ابي ظبية څخه داسي راوړي چي هغه وويل: عبدالله ابن مسعود په هغه رنځ کي چي له هغه څخه ومړ(وفات شو) يوه ورځ يې عثمان بن عفان پوښتني (عيادت) ته ورغی ورته وېې ويل له څه شي څخه شکايت لري؟ هغه ورته وويل له ګناهونو څخه ، هغه ورته وويل: څه شي ته دي اشتهاء کېږي ده ورته وويل: دالله رحمت ته نو حضرت عثمان ورت وويل : طبيب ډاکټر درته راوبولم ؟ هغه ورته وويل: زه همدغه طبيب (ډاکټر) ناروغه کړی يم نو حضرت عثمان ورته وويل: تاته ديو بخشش مارپينه ونکړم ؟ نوده ورته وويل: زماورته اړتيا نشته هغه ورته وويل: ستاله مرګه وروسته به ستالوڼي ورڅخه ګټه واخلي نوعبدالله رضی الله عنه ورته وويل : آيا ته زما د لوڼو له خواري او فقر څخه وېرېږې؟ ماخپلو لوڼو ته امر کړی چي هره شپه دي سورة الواقعه لولي ، بېشکه ماله رسول الله څخه اورېدلي چي ويل يې: څوک چي هره شپه سورة (الواقعة) لولي ( فقراو )فاقه ورته نه رسېږي ، ابو ظبية به تل هغه سورت تلاوت کاوو.(²)

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴿١﴾ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ﴿٢﴾ خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ ﴿٣﴾ إِذَا رُجَّتِ الْأَرْضُ رَجًّا ﴿٤﴾ وَبُسَّتِ
الْجِبَالُ بَسًّا ﴿٥﴾ فَكَانَتْ هَبَاءً مُّنبَثًّا ﴿٦﴾ وَكُنتُمْ أَزْوَاجًا ثَلَاثَةً ﴿٧﴾ فَأَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ مَا أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ ﴿٨﴾
وَأَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ مَا أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ ﴿٩﴾ وَالسَّابِقُونَ السَّابِقُونَ ﴿١٠﴾ أُولَٰئِكَ الْمُقَرَّبُونَ ﴿١١﴾ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿١٢﴾ ثُلَّةٌ مِّنَ

---

(¹) أخرجه الحافظ ابويعلي وابن عساکر.

(²) دابن کثير تفسير ۴/ ۲۸۱

ٱلْأَوَّلِينَ ﴿١٣﴾ وَقَلِيلٌ مِّنَ ٱلْآخِرِينَ ﴿١٤﴾ عَلَىٰ سُرُرٍ مَّوْضُونَةٍ ﴿١٥﴾ مُّتَّكِـِٔينَ عَلَيْهَا مُتَقَـٰبِلِينَ ﴿١٦﴾ يَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَٰنٌ مُّخَلَّدُونَ
﴿١٧﴾ بِأَكْوَابٍ وَأَبَارِيقَ وَكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ ﴿١٨﴾ لَّا يُصَدَّعُونَ عَنْهَا وَلَا يُنزِفُونَ ﴿١٩﴾ وَفَـٰكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُونَ ﴿٢٠﴾ وَلَحْمِ طَيْرٍ مِّمَّا
يَشْتَهُونَ ﴿٢١﴾ وَحُورٌ عِينٌ ﴿٢٢﴾ كَأَمْثَـٰلِ ٱللُّؤْلُؤِ ٱلْمَكْنُونِ ﴿٢٣﴾ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٢٤﴾ لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا ﴿٢٥﴾
إِلَّا قِيلًا سَلَـٰمًا سَلَـٰمًا ﴿٢٦﴾ وَأَصْحَـٰبُ ٱلْيَمِينِ مَآ أَصْحَـٰبُ ٱلْيَمِينِ ﴿٢٧﴾ فِى سِدْرٍ مَّخْضُودٍ ﴿٢٨﴾ وَطَلْحٍ مَّنضُودٍ ﴿٢٩﴾ وَظِلٍّ مَّمْدُودٍ
﴿٣٠﴾ وَمَآءٍ مَّسْكُوبٍ ﴿٣١﴾ وَفَـٰكِهَةٍ كَثِيرَةٍ ﴿٣٢﴾ لَّا مَقْطُوعَةٍ وَلَا مَمْنُوعَةٍ ﴿٣٣﴾ وَفُرُشٍ مَّرْفُوعَةٍ ﴿٣٤﴾ إِنَّآ أَنشَأْنَـٰهُنَّ إِنشَآءً ﴿٣٥﴾
فَجَعَلْنَـٰهُنَّ أَبْكَارًا ﴿٣٦﴾ عُرُبًا أَتْرَابًا ﴿٣٧﴾ لِّأَصْحَـٰبِ ٱلْيَمِينِ ﴿٣٨﴾ ثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿٣٩﴾ وَثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْآخِرِينَ ﴿٤٠﴾ وَأَصْحَـٰبُ
ٱلشِّمَالِ مَآ أَصْحَـٰبُ ٱلشِّمَالِ ﴿٤١﴾ فِى سَمُومٍ وَحَمِيمٍ ﴿٤٢﴾ وَظِلٍّ مِّن يَحْمُومٍ ﴿٤٣﴾ لَّا بَارِدٍ وَلَا كَرِيمٍ ﴿٤٤﴾ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَبْلَ ذَٰلِكَ
مُتْرَفِينَ ﴿٤٥﴾ وَكَانُوا۟ يُصِرُّونَ عَلَى ٱلْحِنثِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٤٦﴾ وَكَانُوا۟ يَقُولُونَ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَـٰمًا أَءِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿٤٧﴾
أَوَءَابَآؤُنَا ٱلْأَوَّلُونَ ﴿٤٨﴾ قُلْ إِنَّ ٱلْأَوَّلِينَ وَٱلْآخِرِينَ ﴿٤٩﴾ لَمَجْمُوعُونَ إِلَىٰ مِيقَـٰتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿٥٠﴾ ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا ٱلضَّآلُّونَ
ٱلْمُكَذِّبُونَ ﴿٥١﴾ لَـَٔاكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ ﴿٥٢﴾ فَمَالِـُٔونَ مِنْهَا ٱلْبُطُونَ ﴿٥٣﴾ فَشَـٰرِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ ٱلْحَمِيمِ ﴿٥٤﴾ فَشَـٰرِبُونَ شُرْبَ ٱلْهِيمِ ﴿٥٥﴾
هَـٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ ٱلدِّينِ ﴿٥٦﴾ ﴾ الواقعة: ١ - ٥٦

لغتونه:

(رُجّت) ولړزېدله په سخته لړزېدلو سره (بُسّت) میده شوه لکه اوړه غوندي (هبآء) دوړي اوغُبار (ثلة) ټولی ټوټه زجاج وايي ثلة لکه فرقة غوندي په وزن اومعناکي دی (موضوعة) داسي اوبدلي لکه چي يوپربل کي سره دننه شوي وي (يصدعون) صدع دسردروندوالي اودردته وايي (ينزفون) بېهوښه کونکي اوعقل له مينځه وړونکی (مخضود) بې ازغيو، امية بن ابي صلت وايي:

ان الحدائق في الجنان ظليلة * فيها الكواعب سدرها مخضود.

دجنت باغچې سيوري لرونکي دي ، هلته ښېغلې نجوني، اوبېري يې اغزي نه لرونکي دي (طلح) د کېلې ونه (منضود) يوپربل دپاسه (عربًا) د(عرب) جمع او خپلو خاوندانوته محبوبې مېرمنې (سموم) سخت تودباد چي دبدن په مسامونو کي دننه کېږي (يحموم) سخت تور (الحميم) ايشېدلي اوبه (الهيم) هغه تږی اوښ چي دکومي ناروغي له کبله نه اوبېږي

تفسير:

﴿ إِذَا وَقَعَتِ ٱلْوَاقِعَةُ ﴾ کله چي واقع شي واقع کېدونکی دقيامت هغه له هيبته ډکه ورځ چي زړونه لړزوي داسي هول اوهيبت لرونکي چي دانسان خيال يې انځورولی نشي ، واقعه يې ځکه ونوموله چي پېښېدل يې متحقق اوثابت دي ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي واقعه دقيامت له نومونوڅخه يو نوم دی لکه چي صاخة ، آزفة اوطامة يې هم بولي اودغه شيان دشان دلوړوالي غوښتنه کوي [1] ﴿ لَيْسَ

---

[1] البحر المحيط ٨/ ٢٠٢

﴿لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ﴾ نشته پېښېدلو د هغې لره هيڅ نفس دروغ کونکی (په وخت د پېښېدلو کي يې لکه چي نن يې کفار دروغ ګڼي په هغه ورځ به ګرد خلک وربانډي باورکوي ځکه چي د سرپه سترګو باندي به عذاب ويني لکه چي الله فرمايي ﴿فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥ﴾ (¹) (غافر: ۸۴) ﴿خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ﴾ (قيامت) ښکته کونکی دی (د کفارو په جحيم کي) پورته کونکی دی (د ابرارو نعيم ته) حسن رحمه الله وايي : ښکته کونکی دی دخينو جحيم ته که څه هم چي په دنياکي معززين وي اوپورته کونکی دی خينو خلکولره اعلیٰ عليين ته که څه هم په دنياکي ټيټ اوو روسته پاتي وي بيا الله فرمايي چي دا به کله وي ؟ ﴿إِذَا رُجَّتِ ٱلْأَرْضُ رَجًّا﴾ کله چي وخوځولی شي ځمکه په لړزولو سختو سره (چي وران شي ټول اوچت ودان کورونه اوقصرونه، مفسرين کرام وايي داسي به وځنګول شي لکه چي ماشوم په ځانګوکي ځنګول کېږي اوبيابه يې ټول تعميرات اوداني وراني شي غرونه اوبرجونه به يې ټوټې ټوټې شي (²) ﴿وَبُسَّتِ ٱلْجِبَالُ بَسًّا﴾ اوورژول شي غرونه په سختو رژولو سره (ترڅو ټوټې ټوټې شي) ﴿فَكَانَتْ هَبَآءً مُّنۢبَثًّا﴾ نوشي به داغرونه يوه دوړه خوره کړی شوي ، ذرې ذرې وروسته له دې چي لوړ اوچت دنګ ولاړوو داسي به وګرزي لکه دوړانګي خاشې (منبث) تيت اوپرک ته وايي لکه چي الله فرمايي ﴿وَتَكُونُ ٱلْجِبَالُ كَٱلْعِهْنِ ٱلْمَنفُوشِ﴾ (القارعة:۵) اويادا چي ﴿وَسُيِّرَتِ ٱلْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا﴾ (النبا: ۲۰) ﴿وَكُنتُمْ أَزْوَٰجًا ثَلَٰثَةً﴾ اوشی به تاسي صنفونه درې (دوه جنتيان اويو دوزخيان) چي هغوی اهل يمين اهل شمال اوسابقين دي سابقين به په لوړو درجاتو کي اوسي اصحاب اليمين به عام جنتيان اوأصحاب الشمال به دوزخيان وي دغه مرتبې په آخرت کي دي ميمون بن مهران وايي دوه ډلي به په جنت کي او يوه به په دوزخ کي وي وروسته يې الله تعالی تفصيل داسي بيانوي چي ﴿فَأَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ مَآ أَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ﴾ پس ياران ملګري د ښي لاس څومره ښه دي ياران ملګري د ښي لاس، استفهام د تفخيم اوتعظيم لپاره دی يعني آيا ته پوهېږې چي د ميمنې ياران څوک دي څه يې حال اوڅه يې صفت دی ؟ دوی هغه څوک دي چي اعمالنامې به په ښي لاس ورکولی شي دغه ددوی له حاله سره تعجب اودشان يې تعظيم اودرناوی دی چي دوی به د جنت نعمتونو ته واصل شي ﴿وَأَصْحَٰبُ ٱلْمَشْـَٔمَةِ مَآ أَصْحَٰبُ ٱلْمَشْـَٔمَةِ﴾ (اوياران ملګري د کيڼ لاس څومره بد سپک دي ياران ملګري د کيڼ لاس؟) يعني آيا ته پوهېږې دوی څوک دي څه يې حال اوڅه يې وصف دی ؟ دوی هغه څوک دي چي اعمالنامې به په کيڼ لاس ورکولی شي پدې کي ددوی دوزخ ته په ننوتلو تعجب دی چي څومره بدمرغه دي؟ . قرطبي وايي چي تکرار په ﴿مَآ أَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ﴾ ﴿مَآ

---

(¹) دغه وينادآيت په تفسيرکي راجح اوجمهوروعلماوولکه بيضاوي ابوالسعوداوالوسي غوره کړي ابن کثيروايي : معناداچي دهغې دپېښېدلوچي الله اراده وکړي څوک يې ګرزولی نشي اودامعنايې له حسن اوقتاده څخه روايت کړي خولومړنی قول ښه څرګند اوباريک دی والله اعلم.
(²) دابن کثيرمختصر ۳ /۴۲۸

﴿ أَصْحَٰبُ ٱلْمَشْـَٔمَةِ ﴾ كي دتعجب لپاره دي لکه چي فرمايي ﴿ ٱلْحَآقَّةُ مَا ٱلْحَآقَّةُ ﴾ ﴿ ٱلْقَارِعَةُ مَا ٱلْقَارِعَةُ ﴾ [1]
[1] او الوسي وايي چي په لومړني تکرارکي تفخيم (لويوالی) اوپه دوهم کي تقطيع (بدوالی) او اوربدونکي ته ددواړو دلوپه هکله دتعجيب افاده کول دي لکه چي ويلي يې وي دښي لاس ياران په نهايته خوښي اوښه حال کي دي اودکيڼ لاس ملګري په نهايته بدحال کي[2] ﴿ وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلسَّٰبِقُونَ ﴾ اوړومبي کېدونکي (حسناتوته) ړومبي کېدونکي دي (جنت ته) اوبياورباندي ثنالولي چي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلْمُقَرَّبُونَ ﴾ هم دوی نژدې کړی شوي دي (الله ته دعرش په سيوري ، کرامت ځای اودالله جل جلاله په جوارکي دي ﴿ فِي جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ ﴾ په جنتونو دنعمتونوکي به وي (تل ترتله ، خازن وايي: که ته وپوښتې چي ولي يې سابقين تراصحاب اليمين وروسته راوړل ؟ سره له دې چي دړومبي والي وړ وو خواب داچې: دلته باريکي ده اوهغه داچي دسورت په پيل کي دقيامت له راتلوسره هيبت ناک څېزونه يادشول ترڅوچي دبندګانوتخويف وشي نيکوکاران به دثواب رغبت پيداکړي اوبدکاران به له ګناهونوڅخه راوګرزي ځکه يې لومړی اصحاب اليمين ذکرکړل چي واوري اورغبت وومومي اوبيايې اصحاب الشمال يادکړل چي ووېرېږي ورپسې يې سابقين راوړل هغوی چي له فزع اکبرڅخه نه غمګين کېږي ترڅوچي زياروباسي اوکوښښ وکړي[3] ﴿ ثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ لويه ډله به وي له اولينوړومبنيوڅخه (چي مقربين سابقين دي) ﴿ وَقَلِيلٌ مِّنَ ٱلْءَاخِرِينَ ﴾ اولږدي له آخرينووروستنيوڅخه. قرطبي وايي چي: لږيې دپخوانيو په نسبت ونومول ځکه چي دړومبنيوامتونو انبيآء عليهم السلام ډېر وو اوددوی شمېرزموږ دامت ترمؤمنانونزيات وو، حسن رحمه الله وايي: پخواني زموږ تر سابقينوزيات دي اوبيايې آيت تلاوت کړ[4] چابياويلي دي چي مقصدله دې ويناڅخه ﴿ وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلسَّٰبِقُونَ ﴾ زموږ دامت لومړني مؤمنان دي اوله آخرينوڅخه هم زموږ دامت وروستني مراددي نو دواړه ډلي به له محمدي امت څخه وي[5] ﴿ عَلَىٰ سُرُرٍ مَّوْضُونَةٍ ﴾ ناست به وي جنتيان په تختونو اوبدلي شوي جړاو شوي په زرو جواهروباندي ابن عباس

---

[1] مختصرابن کثير ۳ /۴۲۸
[2] الوسي تفسير ۲۷ /۱۳۱
[3] دخازن تفسير ۴ /۱۵
[4] قرطبي تفسير ۱۷ /۲۰۰
[5] لومړنی قول دجمهورومفسرينولکه ابن جرير، ابوالسعود، قرطبي، بيضاوي اوالوسي دی ابن کثيردوهم قول ته ترجيح ورکړي اوويلي يې دي چي کومه ويناابن جريرغوره کړي په هغه کي پوښتنه پيداکېدای شي بلکه ضعيف دی ځکه زموږ امت دامتونو غوره دی اودغه دقرآنکريم منطوق دی نوداليري بريښي چي دنورو امتونو مقربين دي ددې امت څخه زيات وي زه وايم چي انبيآء عليهم السلام زيات دي اوتول له سابقينوڅخه دي چي دامتونو خواص ورسره شي نوبياددې امت ترخواصوزياتېږي ، خودرسول الله امت به ترګردوزيات جنت ته دړومي اوپه مجموع کي ترګردوامتونو بهتردی نوددې پوښتني خواب وشووالله اعلم.

وايي (موضونة) معنادا چي په سروزرو به اوبدل شوي وي(١) ﴿ مُتَّكِـِٔينَ عَلَيْهَا ﴾ چي تكيه وهونكي به وي جنتيان په هغو (تختونو) باندي (هوسا سوكاله) ﴿ مُتَقَـٰبِلِينَ ﴾ مخامخ كېناستونكي يوبل ته (چي يو د بل شاته به نه وي او دغه ډول ناستي د خوشحالي لپاره اغېزمنه او د كښېناستلو دا ابو بشپړونكي دي ﴿ يَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَٰنٌ مُّخَلَّدُونَ ﴾ گرزي به پردوی باندي (د خدمت لپاره ) هلكان تلپاتي كېدونكي (په هلكوالي سره تراوتازه چي نه به مري اونه به زړېږي. ابوحيان وايي چي دوى بې په تلپاتي سره وستايل كه څه هم په جنت كي هرڅوک تل پاتي وي ترڅو پدې دلالت وكړي چي دوى به په هلكوالي كي تل ترتله وي اونه به غټېږي اوبيا الله ستايلي دي (٢)﴿ بِأَكْوَابٍ ﴾ په گيلاسونو او پيالو (چي لاستي نلري) ﴿ وَأَبَارِيقَ ﴾ او په كوزو سره (چي لاستي لري اوله ډېري صفايي څخه برېښي) ﴿ وَكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ ﴾ او په كاسولو بهيو سره له صافو پاكو شرابو بهېدونكو څخه . ابن عباس ﷺ وايي د دنيا د شرابو غوندي نچوړ شوي نه بلكه له بهېدونكو چينو څخه به وي قرطبي وايي د (معين) معنا بهېدونكي او به او شراب دي اودلته هغه شراب مراد دي كوم چي له چينو څخه رابهېږي د دنيا د شرابو په څېر نه دي چي له مختلفو توكيو څخه نښتېخل كېږي او وروسته له تكليفه لاس ته راځي ﴿ لَّا يُصَدَّعُونَ عَنْهَا ﴾ چي نه به سرخوږېږي له دغو (شرابو) څخه ﴿ وَلَا يُنزِفُونَ ﴾ او نه به بېهوښه كېږي (چي عقل يې ولاړ شي لكه د دنيا شراب. ابن عباس ﷺ وايي: په شرابو كي څلور (ناولي) صفتونه دي نشه، د سردرد، استفراق او بولي كول اوالله تعالى جنتي شراب له دغو ناكاره صفتونو څخه پاک وستايل(٣)﴿ وَفَـٰكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُونَ ﴾ (او وي به دوى ته) مېوې له هر راز څخه چي جنتيان يې خوښوي ﴿ وَلَحْمِ طَيْرٍ مِّمَّا يَشْتَهُونَ ﴾ او غوښه د مرغانو سره له هغه ډوله چي زړونه يې غواړي. ابن عباس وايي د يو سړي به په زړه كي د مرغه غوښه وگرزي نو سمدستي به هغه مرغه ده ته پداسي ډول راوړاندي كړى شي لكه چي زړه يې غواړي كباب شوى او يا پوخ شوى ؟ په حديث شريف كي راځي چي: په جنت كي به ته مرغه ته گورې زړه به دي وغواړي چي هغه دي خوړلاى واى سمدستي به ستا په مخ كي وريت شوى كېښودل شي(٤) امام رازي وايي فاكهة يې ترغوښو د مخه ياده كړه ځكه چي جنتيان خوله لوږي خوراک نه كوي بلكه د تفكه لپاره يې كوي او ترخوړويې فاكهې ته زړه كېږي لكه چي په دنيا كي يې موړ سړي غواړي (٥)﴿ وَحُورٌ عِينٌ كَأَمْثَـٰلِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ ﴾ او حوري يې مخي غټ سترگي په شان د لؤلؤ ملغلرو ساتلي شوو په پوښو كي (چي لاس ور وړل شوي نه وي او نهايته ښايسته وي په التسهيل كي وايي چي دوى يې له لؤلؤ ملغلرو سره په سپين

(١) مختصر ابن كثير
(٢) البحر ٨/ ٢٠٥
(٣) د ابن كثير مختصر ٣ /٤٣٠
(٤) أخرجه ابن ابي حاتم ابن كثير ٣ /٤٣١
(٥) كبير تفسير ٢٩ /١٥٣

والي کي تشبيه کړي ځکه چي د هغوی حسن تغيير نه مومي او کله چي أم سلمه رضی الله عنها له رسول الله ﷺ څخه د دې تشبيه په هکله پوښتنه وکړه هغه ورته وفرمايل د دوی صفايي د ملغلرو د صفايي په شان ده کوم چي په صدف کي وي او چاورته لاس نه وي وروړی (۱)﴿ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴾ جزاء بدل ورکول دي په هغو چي وو دوی چي کول به يې (له حسناتو په دنيا کي) ورپسې الله د جنتي نعمتونو د بشپړتيا يادونه هسي فرمايې ﴿ لَا يَسۡمَعُونَ فِيهَا لَغۡوٗا وَلَا تَأۡثِيمًا ﴾ (نه به اوري دوی په دغه جنت کي چټي بېکاره خبري او نه د ګناه خبري) يعني نه به په غوږونو چټيات اوري او نه به داسي خبري چي دوی ورباندي ګنهګارېږي ابن عباس رضي الله عنهما وايي نه به باطل اوري او نه به دروغ (۲)﴿ إِلَّا قِيلٗا سَلَٰمٗا سَلَٰمٗا ﴾ مګر اوري يوه خبره سلام سلام (يعني تل به په جنت کي جنتيان يو بل ته سلام اچوي) په البحر المحيط کي راوړي څرګنده ده چي دغه منقطع استثناء ده ځکه چي په لغو او تأثيم کي نه ګډېږي (۳) ابو السعود ليکي: معنادا چي يو بل ته به سلام اچوي پس له سلام اچولو اويادا چي له بل څخه به نه اوري مګر سلام او يا د سلام ځواب چي عليکم دی (۴) ورپسې د اصحاب اليمين د احوالو تفصيل داسي بيانوي ﴿ وَأَصۡحَٰبُ ٱلۡيَمِينِ مَآ أَصۡحَٰبُ ٱلۡيَمِينِ ﴾ او ملګري ياران د ښي لاس څومره ښه دي ياران ملګري د ښي لاس؟ استفهام د تعجيب او تعظيم لپاره دی چي د دوی به څه حال وي؟ ﴿ فِي سِدۡرٖ مَّخۡضُودٖ ﴾ (لاندي له) بېروبې اغزيو کي به وي. مفسرين کرام وايي چي (سدر) د بېري ونه ده (مخضود) يعني داچي اغزي يې توږل شوي وي په حديث شريف کي راځي چي يو اعرابي رسول الله ته راغی او ورته ويل ای رسول الله صلی الله عليه وسلم پاک الله په جنت کي ديوې وني يادونه کوي چي هغه سړي ته تکليف او ځور ورکوي رسول الله ورته ويل چي کومه ونه ده؟ هغه ورته وويل د بېري ونه نو رسول الله په ځواب کي ورته وفرمايل چي آيا الله جل جلاله نه دي فرمايلي؟ چي ﴿ فِي سِدۡرٖ مَّخۡضُودٖ ﴾ الله جل جلاله د دغي وني اغزي پرې کړي دي او د هري اغزي پر ځای يې مېوه راز رغونه کړي او مېوه له داسي مېوې څخه ده چي د خوړو دوه او يا رنګونه به پکې وي چي يو به يې د بل په شان نه وي (۵)﴿ وَطَلۡحٖ مَّنضُودٖ ﴾ او په کېلو له بېخه ترسره د کوکړی شويو کي به وي ﴿ وَظِلّٖ مَّمۡدُودٖ ﴾ او په سيورو اوږدو کړی شويو تلپاتي کي به وي (ځکه چي په جنت کي لمر نشته)﴿ لَا يَرَوۡنَ فِيهَا شَمۡسٗا وَلَا زَمۡهَرِيرٗا ﴾ په حديث شريف کي راځي چي په جنت کي داسي ونه ده چي سپور به يې په سيوري کي سل کاله درومي لا به هم پای ته نه رسېږي نو که غواړی ولولئ ﴿ وَظِلّٖ مَّمۡدُودٖ ﴾ (۶) امام رازي رحمه الله

---

(۱) التسهيل ۸۹/۴
(۲) قرطبي تفسير ۲۰۲/۱۷
(۳) البحر ۲۰۲/۸
(۴) ابو السعود ۱۳۰/۵
(۵) أخرجه الحاكم روح المعاني ۱۴۰/۲۷
(۶) أخرجه البخاري

وايي چي د(ممدود) معنادائم او لازواله دي ﴿ أُكُلُهَا دَآئِمٌ وَظِلُّهَا ﴾ يعني هرڅه به يې دائم وي دغه داسي سيوری نه دی چي لډ ونو څخه پيداشوی وي بلکه الله جل جلاله به پيداکړي وي (١) ﴿ وَمَآءٍ مَّسْكُوبٍ ﴾ اوپه اوبو بهېدونكو توئېدونكو همېشه ووكي به وي. قرطبي وايي عرب په وچه صحراكي اوسېدل رودونه او نهرونه يې نه درلودل اوبه به يې په سلواغه اورسۍ باندي موندلي نوالله په جنت كي دونو او سيورو او بهانده اوبو ژمنه ورسره وكړه ﴿ وَفَٰكِهَةٍ كَثِيرَةٍ لَّا مَقْطُوعَةٍ وَلَا مَمْنُوعَةٍ ﴾ (اوپه مېوو ډېرو كي به وي چي نه به قطع كولي كېږي په هيڅ وخت اونه به منع كولی كېږي په هيڅ عذرسره) يعني قسماقسم ډېري مېوې به وي نه داسي لكه ددوی په تاتوبي كي چي مېوې يې ښځي لږدي اونه به قطع كېږي لكه چي په ژمي كي ددنيامېوې نه موندل كېږي نه به له هېچاڅخه منع كېږي. ابن عباس وايي: معناداچي كله وشوكول شي تمامېږي نه اوچي څوک يې غواړي ترې منع كېږي نه (٢) په حديث شريف كي كي راغلي هره جنتي مېوه چي وشوكول شي پرځاى يې بله رادبره شي (٣) ﴿ وَفُرُشٍ مَّرْفُوعَةٍ ﴾ اوپه فرشونو اوچتوكړی شويو كي به وي (په پالنگونوباندي) په حديث شريف كي راغلي چي لوړتيابه يې دځمكي اوآسمان د مسافې په شان اودتگ واټن به دپنځوسوو كالو وي (٤) ألوسي وايي دغه لوړوالي اوچت والی دښكته كېدو اوپورته كېدو په باب څه مستبعد نه دی څكه هغه گوښی عالم دی چي زموږ عقل ورته نه رسېږي مؤمن ته به چي كله وغواړي راښكته كېږي چي ورباندي كېني اوبيابه يې اوچت كړي والله على كل شئ قدير (٥) ﴿ إِنَّآ أَنشَأْنَٰهُنَّ إِنشَآءً ﴾ بېشكه موږ نوي پيداكړي دي دغه (دجنت مېرمني) په يوه بڼه پيدا كولو سره. په التسهيل كي وايي چي د(انشآء) معناداچي الله به يې په جنت كي په يوه بل خوراښكلي پيدايښت پيداكړی چي بوډۍ به ځوانه شي اوبدرنگه به ښايسته شي (٦) دغه دابن عباس ﵄ وينا ده هغه وايي بې رنگه شاډوله بوډۍ به الله وروسته له زوړوالي په بل پيدايښت سره وپنځوي (٧) ﴿ فَجَعَلْنَٰهُنَّ أَبْكَارًا ﴾ نوگرزولي موږ دوی بكري پېغلي (هركله چي جنتي خاوندورسره مجامعت كوي دوی به باكرې وي ﴿ عُرُبًا ﴾ عاشقاني مينه لرونكي (پرجنتي خاوندانو. مجاهدوايي يعني معناداچي دخپلو مېړونوبه عاشقاني اوميني وي (٨) ﴿ أَتْرَابًا ﴾ همزولي (هم منكي به وي له خپلو مېړونوسره په عمركي چي ددرې دېرش كلونو په عمربه وي ، أم سلمه رضى الله عنهاوايي ماددې آيت په هكله چي :

---

(١) كبيرتفسير ٢٩/ ١٧٤
(٢) دخازن تفسير ٤/ ١٨
(٣) أخرجه الطبراني
(٤) أخرجه النسائي
(٥) دالوسي تفسير ٢٧/ ١٤٣
(٦) التسهيل ٤/ ٩٠
(٧) دخازن تفسير ٤/ ١٨
(٨) دالوسي تفسير ٢٧/ ١٤٣

﴿ إِنَّآ أَنشَأْنَٰهُنَّ إِنشَآءً فَجَعَلْنَٰهُنَّ أَبْكَارًا عُرُبًا أَتْرَابًا ﴾ دي له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه راته وبې ویل چي: ای أم سلمه ! داهغه ښځي دي چي په دنیاکي بوډۍ شاډوله سپین سري وفات شوي وي بیايې الله پاک باکري پېغلي اوهمزولي وګرزوي (¹) اوپه حدیث شریف کي راځي چي یوه زړه بوډۍ مېرمن رسول الله (ص) ته راغله ورته ویل یې ای دالله استازي ماته دعاوکړه چي الله مي له جنتیانووګنې نورسول الله (ص) ورته وفرمایل: ای دفلاني موري جنت ته خوبوډۍ نه ننوزي نوهغه په ژړاروانه شوه رسول الله وفرمایل چي دې ته خبروکړئ ورته وواياست چي هغه دزړښت اوبوډاتوب په حال کي نه داخلېږي بلکه الله (یې ځوانوي) چي فرمایي ﴿ إِنَّآ أَنشَأْنَٰهُنَّ إِنشَآءً فَجَعَلْنَٰهُنَّ أَبْكَارًا ﴾﴿ لِّأَصْحَٰبِ ٱلْيَمِينِ ﴾ (²) دپاره دملګرودښي لاس (چي په جنت کي ترې خوندواخلي) وروسته الله داسي فرمایي: ﴿ ثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْأَوَّلِينَ وَثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْءَاخِرِينَ ﴾ اصحاب الیمین به یوه لویه ډله وي له رومبنیو اُمتونواو یوه لویه ډله به وي له وروستنیو دمحمدي اُمت نه، په التسهیل کي وایې چي ددې آیت شریف چي ﴿ وَثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْءَاخِرِينَ ﴾ پکي راغلي له هغه پخواني آیت سره منافات نشته چېري چي الله فرمایلي وو ﴿ وَقَلِيلٌ مِّنَ ٱلْءَاخِرِينَ ﴾ ځکه دغه داصحاب الیمین په باره کي وي نوځکه یې وفرمایل چي ﴿ وَثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْءَاخِرِينَ ﴾ وروسته الله تعالی ددریم تولګي یادونه هسي کوي چي هغوی داوراوجهنم خلګ دي فرمایي ﴿ وَأَصْحَٰبُ ٱلشِّمَالِ مَآ أَصْحَٰبُ ٱلشِّمَالِ ﴾ او ملګري یاران دکیڼ لاس څوک دی یاران دکیڼ لاس؟) استفهام دهیبت اوتعجب لپاره دی چي ددوی به څومره بدحال وي ؟ هغوی چي اعمالنامې به په چپ لاس ورکول کېږي یعني ددوی حال اوعاقبت به څه وي ؟ نوفرمایي ﴿ فِى سَمُومٍ وَحَمِيمٍ ﴾ په اور تاوده کي به وي اوپه سوځونکواوبو ﴿ وَظِلٍّ مِّن يَحْمُومٍ ﴾ اوپه سیوري کی به وي دلوګي ډېر تور ﴿ لَّا بَارِدٍ ﴾ چي نه به سوړوي ددغه سیوري چي دانسان د هوسايي سبب شي اوله ګرمي یې وژغوري ﴿ وَلَا كَرِيمٍ ﴾ اونه به دعزت، راحت وي (چي ښکلی منظر ولري اوڅوک یې په لیدلو خوشحاله شي. خازن وایې: دسیوري دوې فائدې وي یوه داچي له ګرمي سړی وژغوري دوهمه بیاداچي ښکلي ښایسته منظره ولري چي انسان یې له لیدلو کېناستلو خوند اخلي اوددوزخیانو سیوري ددې دواړوپه خلاف دي نه یې له ګرمي څخه ژغوري اونه یې هم له لیدلو څخه څه خوند اخیستلای شي هغه به دتک تورلوګي چي سخت به ګرم اوتودوي جوړشوی وي ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَبْلَ ذَٰلِكَ مُتْرَفِينَ ﴾ (داعذابونه په سبب ددې دي چي) بېشکه ددوی پخوا له دې څخه په دنیاکي وو بسیا په نعمتونو (چي په لذتونو اوشهوتونو کي لوبېدل) ﴿ وَكَانُوا۟ يُصِرُّونَ عَلَى ٱلْحِنثِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ اووودوی چي اصرار (دوام) به یې کاووپه لویه ګناه (کفرشرک) باندي. مفسرین کرام وایې اصرار په ګناه باندي مداومت ته

(¹) القرطبي ۲۱۰/۱۷

(²) أخرجه الترمذي في الشمائل.

وايي او د (حنث) معنا ستره ګناه ده چي دلته مراد ورڅخه کفردی همدغه دا ابن عباس رضی الله عنه وينا ده ﴿ وَكَانُوا يَقُولُونَ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَءِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴾ او وو دوی چي ويل به يې آيا کله چي مړه شو موږ او خاوري هډوکي شو آيا بېشکه خامخا به موږ بيا را پورته کړی شو؟ دغه ددوی له لوري د بعث او نشور په هکله استبعاد او تکذيب دی ﴿ أَوَءَابَآؤُنَا ٱلْأَوَّلُونَ ﴾ او پلرونه زموږ ړومبني هم (به بيا ژوندي را پورته کېږي؟ بلکه نه کېږي دغه دانکار لپاره تاکيد او مبالغه ده) ﴿ قُلْ إِنَّ ٱلْأَوَّلِينَ وَٱلْـَٔاخِرِينَ لَمَجْمُوعُونَ إِلَىٰ مِيقَٰتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴾ ووايه ته (ای محمده دوی ته) بېشکه چي ړومبني خلک او وروستني خلک به خامخا ګرد به ټول کړی شي وخت د ورځي معلومي ته چي قيامت دی او پکي حساب کتاب به کېږي ﴿ ذَٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوعٌ لَّهُ ٱلنَّاسُ وَذَٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُودٌ وَمَا نُؤَخِّرُهُۥٓ إِلَّا لِأَجَلٍ مَّعْدُودٍ ﴾ ﴿ ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا ٱلضَّآلُّونَ ٱلْمُكَذِّبُونَ لَـَٔاكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ ﴾ بيا به بېشکه تاسي ای ګمراهانو دروغ ويونکيو خامخا خوړونکي به يې په دوزخ کي) له وني د زقوم څخه (کومه چي د دوزخ په بېخ کي شنه کېږي) ﴿ فَمَالِـُٔونَ مِنْهَا ٱلْبُطُونَ ﴾ پس ډکونکي به يې له هغي (وني) څخه خپلو ګېډو لره (له ډېري ولږي ستاسو) ﴿ فَشَٰرِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ ٱلْحَمِيمِ ﴾ پس څښونکي به ياست په هغه د زقوم خوړولي شوي باندي) له اوبو سوځونکيو څخه ﴿ فَشَٰرِبُونَ شُرْبَ ٱلْهِيمِ ﴾ پس څښونکي به يې (په شان) د څښلو د اوښانو ډېر تږو ابن عباس رضی الله عنه وايي (هيم) هغه اوښ ته وايي چي تنده يې د ناروغي له کبله نه ماتېږي(١) ابو السعود وايي چي په دوزخيانو به داسي لوږه راشي چي د زقوم خوړلو ته خوړلو ته يې اړباسي هغه چي لکه (مهل) غوندي خوراتريخ او ګرم وي چي ګېډي ځني ډکي کړي نو بيا به سخته تنده وربا ندي راشي چي د (حميم) څښلو ته به يې اړباسي هغه چي کولمې به يې ټوټه ټوټه ورتوی کړي او دوی به داسي سخت تږي وي لکه چي (هيام) وهلی اوښ تږی وي دغه يو ډول ناروغي ده چي اوښ هرڅو مره اوبه څښي تنده يې نه ماتېږي (٢) ﴿ هَٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ ٱلدِّينِ ﴾ (داخوړل او څښل) مېلمستيا د دوی دي په ورځ د جزاکي (په دي کي تهکم نغښتی دی. صاوي وايي (نزل) هغه تياري ته وايي چي د مېلمانه د راتګ په وخت کي له سوغاتونو او تکريم څخه ورته چمتوکېږي نو د زقوم د خوړلو تعبير په مېلمستيا کولو سره تهکم او استهزاء ده.

الله تعالی فرمايي:

﴿ نَحْنُ خَلَقْنَٰكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُونَ ﴿٥٧﴾ أَفَرَءَيْتُم مَّا تُمْنُونَ ﴿٥٨﴾ ءَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلْخَٰلِقُونَ ﴿٥٩﴾ نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ ٱلْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ﴿٦٠﴾ عَلَىٰٓ أَن نُّبَدِّلَ أَمْثَٰلَكُمْ وَنُنشِئَكُمْ فِى مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦١﴾ وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ ٱلنَّشْأَةَ ٱلْأُولَىٰ فَلَوْلَا تَذَكَّرُونَ

(١) قرطبي تفسير ٧/٢١٥
(٢) د ابو السعود تفسير ٥/١٣٢

(٦٢) أَفَرَءَيۡتُم مَّا تَحۡرُثُونَ (٦٣) ءَأَنتُمۡ تَزۡرَعُونَهُۥٓ أَمۡ نَحۡنُ ٱلزَّٰرِعُونَ (٦٤) لَوۡ نَشَآءُ لَجَعَلۡنَٰهُ حُطَٰمٗا فَظَلۡتُمۡ تَفَكَّهُونَ (٦٥) إِنَّا
لَمُغۡرَمُونَ (٦٦) بَلۡ نَحۡنُ مَحۡرُومُونَ (٦٧) أَفَرَءَيۡتُمُ ٱلۡمَآءَ ٱلَّذِي تَشۡرَبُونَ (٦٨) ءَأَنتُمۡ أَنزَلۡتُمُوهُ مِنَ ٱلۡمُزۡنِ أَمۡ نَحۡنُ ٱلۡمُنزِلُونَ (٦٩) لَوۡ نَشَآءُ
جَعَلۡنَٰهُ أُجَاجٗا فَلَوۡلَا تَشۡكُرُونَ (٧٠) أَفَرَءَيۡتُمُ ٱلنَّارَ ٱلَّتِي تُورُونَ (٧١) ءَأَنتُمۡ أَنشَأۡتُمۡ شَجَرَتَهَآ أَمۡ نَحۡنُ ٱلۡمُنشِـُٔونَ (٧٢) نَحۡنُ
جَعَلۡنَٰهَا تَذۡكِرَةٗ وَمَتَٰعٗا لِّلۡمُقۡوِينَ (٧٣) فَسَبِّحۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلۡعَظِيمِ (٧٤) ۞ فَلَآ أُقۡسِمُ بِمَوَٰقِعِ ٱلنُّجُومِ (٧٥) وَإِنَّهُۥ
لَقَسَمٞ لَّوۡ تَعۡلَمُونَ عَظِيمٌ (٧٦) إِنَّهُۥ لَقُرۡءَانٞ كَرِيمٞ (٧٧) فِي كِتَٰبٖ مَّكۡنُونٖ (٧٨) لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلۡمُطَهَّرُونَ (٧٩) تَنزِيلٞ
مِّن رَّبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ (٨٠) أَفَبِهَٰذَا ٱلۡحَدِيثِ أَنتُم مُّدۡهِنُونَ (٨١) وَتَجۡعَلُونَ رِزۡقَكُمۡ أَنَّكُمۡ تُكَذِّبُونَ (٨٢) فَلَوۡلَآ إِذَا بَلَغَتِ ٱلۡحُلۡقُومَ (٨٣)
وَأَنتُمۡ حِينَئِذٖ تَنظُرُونَ (٨٤) وَنَحۡنُ أَقۡرَبُ إِلَيۡهِ مِنكُمۡ وَلَٰكِن لَّا تُبۡصِرُونَ (٨٥) فَلَوۡلَآ إِن كُنتُمۡ غَيۡرَ مَدِينِينَ (٨٦) تَرۡجِعُونَهَآ إِن
كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ (٨٧) فَأَمَّآ إِن كَانَ مِنَ ٱلۡمُقَرَّبِينَ (٨٨) فَرَوۡحٞ وَرَيۡحَانٞ وَجَنَّتُ نَعِيمٖ (٨٩) وَأَمَّآ إِن كَانَ مِنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلۡيَمِينِ
(٩٠) فَسَلَٰمٞ لَّكَ مِنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلۡيَمِينِ (٩١) وَأَمَّآ إِن كَانَ مِنَ ٱلۡمُكَذِّبِينَ ٱلضَّآلِّينَ (٩٢) فَنُزُلٞ مِّنۡ حَمِيمٖ (٩٣) وَتَصۡلِيَةُ جَحِيمٍ
(٩٤) إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ حَقُّ ٱلۡيَقِينِ (٩٥) فَسَبِّحۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلۡعَظِيمِ (٩٦) ﴾ الواقعة: ٥٧ - ٩٦

### مناسبت:

کله چي الله تعالی دمجرمینو یادونه وکړه اوددوی حال یې په دوزخ کي بیان کړ نودلته یې پخپل قدرت اووحدانیت باندي دلائل راوړل چي الله جل جلاله څرنګه دبدیع صفت اوخلقت خاونددی؟ ترڅو چي دالله له وجودڅخه پرمنکراومکذب باندي حجت اوبرهان شي دسورت پای یې دنېکمرغه او بدمرغه په یادونه وکړاوسابقین الی الخیرات یې پکي وستایل ترڅودغه دهغه اجمال کوم چي په سورت کي راغلی تفصیل څرګنداودمقربینو یادونه په پیل اوپای کي وشي.

### لغتونه:

(تفکهون) تعجب کونکي (المزن) د(مزنة )جمع او وریځي ته وایې شاعرلیکي:

**ونحن کماء المزن مافی نصابنا * کهام ولافینا یُعد بخیل.**

موږ لکه دباران اوبه غوندي یو په موږ کي ناکام اوبخیل هډونشته

(تورون) بلوی اور( المقوین) مسافران پردېسان وُیل کېږي (أقوی الرجل) کله چي صحرابېدیاته ولاړشي (قوي) لوږي ته وایې (مدهنون) مداهن غوړه مال ته وایې هغه چي ظاهرېې دباطن په خلاف وي (مدینین) له دین څخه اخیستل شوی اودین جزاته وایې یعني جزاورکړل شوی (فروح) دراء په زورسره استراحت ته وایې (ریحان) هغه دنباتاتو خوشبوئي ته ویل کېږي

### تفسیر:

﴿ نَحۡنُ خَلَقۡنَٰكُمۡ فَلَوۡلَا تُصَدِّقُونَ ﴾ موږ تاسي پیداکړي یاست (له نشتوالي) نوولي تاسي باورنه کوی په بعث بعدالموت باندي؟ (څکه څوک چي په لمړي ځل پیداکولو قادروي هغه په اعاده هم قادروي .

﴿ أَفَرَءَيْتُم مَّا تُمْنُونَ ﴾ آياوينی تاسي (خبراکړئ) له هغه اوبوڅخه چي څڅوی يې تاسي (په رحمونو د ښځوخپلو کي) ﴿ ءَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلْخَٰلِقُونَ ﴾ ( ) آياپيداکوی تاسي (له دغه مني څخه بشر؟) که يوموږپيداکونکي دتولو مواليدو؟قرطبي وايي دغه په مشرکانوباندي احتجاج اودلومړي آيت لپاره بيان دی معناداچي تاسوپدې اقرار وکړچي زه يې پيداکونکی يم نوپه بعث هم اقرار وکړئ ﴿ نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ ٱلْمَوْتَ ﴾ موږ مقدرکړی دی په مينځ ستاسي کي (ای مخلوقاتو) مرګ مرينه (يو رنګه ضحاک وايي چي: دآسمان اوځمکي اوسېدونکي ګرددمرګ په هکله برابردي (١) ﴿ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ﴾ اونه يوموږعاجزچي څوک تېری راباندي وکړي ﴿ عَلَىٰٓ أَن نُّبَدِّلَ أَمْثَٰلَكُمْ ﴾ له دې نه چي پيدا کړوبدل ستاسي (نورخلق) چي ترتاسوزيات دالله طاعت کونکي اومنونکي وي لکه چي الله فرمايي ﴿ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَأْتِ بِخَلْقٍ جَدِيدٍ ﴾ (ابراهيم:۱۹) ﴿ وَنُنشِئَكُمْ فِى مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴾ (اوموږبه پيداکړو تاسي په هغوصورتونوسره) چي تاسي به علم نه پرې لرئ) يعني موږ له دې څخه هم عاجزنه يوچي تاسودقيامت په ورځ په داسي پيدا ښت پيداکړو چي تاسوپرې خبر نه ياست اونه موعقل ورته رسېږي ، مقصدداچي الله پدې قادردی چي تاسي هلاک کړي اوبياموبېرته د قيامت په ورځ را پاڅوي په آيت کي تهديداو دبعث په هکله احتجاج دواړه نغښتي دي (٢) ﴿ وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ ٱلنَّشْأَةَ ٱلْأُولَىٰ ﴾ اوخامخا په تحقيق پوهېدلي يی تاسي په پيداکولورومبنيوباندي چي هيڅ هم نه وي الله له نطفې څخه پيداکړی چي بيا علقه او وروسته مضغة ورپسې بياالله زړونه ، غوږونه اوسترګي درکړې ﴿ فَلَوْلَا تَذَكَّرُونَ ﴾ نوولي نه يادوی؟ پندنه اخلی ددغه الله په قدرت باندي اويقين نه کوی په بياراژوندي کولو باندي چي لومړی خل الله

(١) شهيد سيد قطب رحمه الله پخپل تفسيرفي ظلال کي کاږي دغه يوشاندارحقيقت دی چي هره شېبه تکرارېږي خوانسان يې دهمدغه تکرارپه سبب هېروي دغه ترګردوعجائبوعجيب دی کوم چي په خيال کي راځي هغه داچي يوڅاڅکی نطفه وڅڅېږي هغه چي ددغه انساني بدن له افرازاتوڅخه چي لکه خولم ، اوښکي اودپوزي افرازات غوندي دي مګر وروسته له څه مودې بيا اورېدونکی ليدونکی انسان شي هغه بيانارينه ياښځينه وي څرنګه دغه خلقت بشپړشي چي پخوانه وو؟ دغه انسان له خپلوغړښو هډوکوپوستکي نوکانواو وېښتانواوخويونو اخلاقوسره چېرته وو؟ کوم يوبشري زړه دی ددغه عظيم الشان حقيقت په وړاندي تم شي اوبيادي له دې څخه انکاروکړي چي داهمداسي پخپله پيداشو والسلام دانسان د لوبي ونډه په دغه پيدا ښت کي يوازي همدومره ده چي نارينه خپلي مني دخپلي ښځي په رحم کي وڅڅوي نوربيا قدرت لاس په کارشي هغه چي پرته له الله جل جلاله څخه يې دبل چاتوان نشته اوهمدغه ددې معجزې دمنلولپاره بس دی خود دغه معجزه بشپړېږي کله چي وڅڅېږي بيالاعجيبه ده دغه يوه خليه بياډېري نوري مليون مليون خلیې جوړي شي هره ټولګه يې خانله خانګړتياوي اوخصوصيات لري دغه دهډوکو خليې دغه دعضلاتودانوري بيادپوستکي اودغه بيادسترګو نوري بيادغوږونواوپوزي چي هره ټولګه يې خپل ځای پېژني مثلاً دسترګوخلاياوو ټولګه په نس کي نه راځېږي اونه هم په پښوکي رادبره کېږي سبحان الله العظيم القادرالذي يقول ﴿ ءَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلْخَٰلِقُونَ ﴾.

(٢) التسهيل لعلوم التنزيل ۴ /۹۱

ځنګه پيدا کړی ؟ ﴿ أَوَلَا يَذْكُرُ ٱلْإِنسَـٰنُ أَنَّا خَلَقْنَـٰهُ مِن قَبْلُ وَلَمْ يَكُ شَيْـًٔا ﴾ ﴿ أَفَرَءَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ﴾ آيا پس وينی (چي خبر را کړی ماته) هغه څه چي کری يې تاسي ) دغه د الله په قدرت او وحدانيت باندي يو بل دليل دی يعني ماته له هغه تخم خبر را کړئ چي تاسو يې په لمده ځمکه کي اچوئ ﴿ ءَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُۥٓ أَمْ نَحْنُ ٱلزَّٰرِعُونَ ﴾ آيا تاسو زرغونوی هغه (کرل شوی ) که موږ يو زرغونونکي ؟ (پخونکي چي تنه او دانه پکي وي کله چي پدې اقرار کوي چي الله جل جلاله يې زرغونوي بيا نو څرنګه له ځمکي څخه را پورته کېدل او بعث بعدالموت نه منی؟) ﴿ لَوْ نَشَآءُ لَجَعَلْنَـٰهُ حُطَـٰمًا ﴾ که اراده وفرمايو موږ نو خامخا و به ګرزو و هغه کښت (لره چي تاسو کرلی دی بې داني بې حاصله ) وچ وابښه ذره ذره (چي د هيڅ ښمري به نه وي . قرطبي وايې (هشيم) هغه وچ خاوري اېرې وابښه دي چي په خوراک او غذاکي ترې کارنشي اخيستل کېدای نو دلته يې په دووڅېزونو تنبيه وفرمايله لومړی داچي دوی ته يې کښت او فصل يو نعمت ورکړی چي دوی شکراداکړي بل داچي دوی پخپلو ځانونوکي پند واخلي لکه چي الله پاک فصل او کښت وچ وابښه ګرزولی شي همداسي دوی هم هلاکولای شي نودوی دي له دې څخه عبرت ترلاسه کړي (۱) ﴿ فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُونَ ﴾ نو وبه ګرزی تاسي تعجب کونکي (غمجن او خوار وزار چي څرنګه موفصل خاوري ايرې شونو وايا ست به چي ﴿ إِنَّا لَمُغْرَمُونَ ﴾ بېشکه موږ خامخا تاواني کړی شوي يو (۲) په خپل فصل او کښت کي چي تخم موهم ضائع شو او کښت موهم له مينځه لاړ ﴿ بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ ﴾ بلکه موږ بې برخي محروم کړی شوي يو (له روزي نه چي هم موتخم له مينځه لاړ او هم موکښت ونه شو ) ﴿ أَفَرَءَيْتُمُ ٱلْمَآءَ ٱلَّذِى تَشْرَبُونَ ﴾ آيا پس وينی (چي خبر را کړی) تاسي او به هغه چي تاسي يې څښی (او ژوند ورسره تړلی دی) ﴿ ءَأَنتُمْ أَنزَلْتُمُوهُ مِنَ ٱلْمُزْنِ أَمْ نَحْنُ ٱلْمُنزِلُونَ ﴾ آيا تاسو نازلي کړي دي هغه خوږې او به له سپينو وريځو څخه او که موږ را نازلونکي يو دهغو او بو؟ (پخپل قدرت سره ) خازن ليکي چي الله جل جلاله دوی ته خپل هغه نعمت چي دباران او رښت دی ورو ښود هغه چي پرته له الله څوک ورباندي قدرت نلري ﴿ لَوْ نَشَآءُ جَعَلْنَـٰهُ أُجَاجًا ﴾ که اراده وفرمايو موږ نو وبه ګرزوو دا او به تروې ترخې. حسن رحمه الله وايې چي: ( اجاج) هغه بې خونده تروو او بو ته وايې چي څوک يې څښلای نشي، ابن عباس يې زښته تروې معناکوي (چي نه د څښلو او نه دکښت داو بولوو ي ) ﴿ فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ ﴾ نو ولي شکر نه وباسی په دغو نعمتونو باندي) ؟ په حديث شريف کي راغلي کله چي به رسول الله ﷺ او به وڅښلې ويل به يې: الحمد لله الذي سقانا عذبًا فراتًا برحمته ولم يجعله ملحًا أجاجًا بذنوبنا ) يعني ګرد ثنا او صفت هغه ذات لره دی چي پخپل رحمت سره يې

---

(۱) دقرطبي تفسير ۱۷/ ۲۱۸
(۲) ضحاک وايې دغه له غرم څخه اخيستل شوي او هغه تاوان ته وايې چي ديو چا مال بې له عوضه ولاړ شي ابن عباس وايې معنا داچي په عذاب شوي يو او غرام عذاب ته وايې

لطيفي اوخوږې اوبه راباندي وښنولې او زموږ دګناهونو په سبب يې تروې ترخې نکړې (۱) ﴿ أَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ ﴾ آيا پس وينی(چي خبر راکړی) تاسي داورهغه چي تاسي يې بلوی (اوراوباسی يې له لمدې وني څخه) ﴿ ءَأَنتُمْ أَنشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا أَمْ نَحْنُ الْمُنشِئُونَ ﴾ آياتاسي پيداکړي ده ونه ددې (اور) اوکه موږ پيداکونکي يو؟ ابن کثير وايې په عربوکي دوې وني وې چي يوې ته مرخ اوبلې ته عُفار ويل کېدو کله چي به تکي شنې څانګي يې يوله بل سره وسولول شوې ترې به اورپيداشواوسپرغي به ترې غورځېدل(۲) اوچابيا ويلي چي ګردي وني ورڅخه مراددي هغه چي ورڅخه اورلګېږي اوبلېږي څکه چي ابن عباس ﷺ وايې هيڅ يوه ونه نشته چي اورپکي نه وي ماسوی دانګورله تاک څخه (۳) ﴿ نَحْنُ جَعَلْنَاهَا تَذْكِرَةً ﴾ موږ ګرزولی دی دغه (دنيوي) اورتذکره يادونه (داخروي اورددوزخ) کله چي يې ليدونکي ووينې دوزخ ورپه يادېږي نوله الله جل جلاله څخه وږېږي په حديث شريف کي راځي: دغه اورچي تاسي يې بلوی ددوزخ له اورڅخه له اويايمي برخي څخه يوه برخه ده )(۴) ﴿ وَمَتَاعًا لِّلْمُقْوِينَ ﴾ او ګرزولی وي موږ دا اورګټه ور) په کارراتلو دمسافرانو محتاجانو. ابن عباس وايې (مقوين) مسافران دي اومجاهدوايې مسافراوکه حاضروي ددواړولپاره نفعمن اوګټوردی (۵) خازن ليکي چي (مقوي) هغه څوک دی چي په دښته بېدياکي له آبادي ليري اوسي اومعنداچي په دې اورباندي مسافران اوکوچيان ګټه اخلي څکه ددوی ګټه ترمقيم خلګو زياته ده دوی اورددې لپاره بلوي چي ځيرونکي حيوانات وشړي لارورکي ورباندي لاره وموومي اودغه داکثره مفسرينورايه ده (۶) کله چي الله په انسان کي همدارنګه په نبات اوبو اواورکي دخپل قدرت او وحدانيت دلائل يادکړل نورسول الله صلی الله عليه وسلم ته يې وفرمايل چيُ دواحد قهارذات تسبيح دي وايې ﴿ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴾ نووکړه نسبت دپاکي نامه درب خپل ته چي له ګردوڅخه ډېرلوی دی. داسي وايه چي پاکي ده هغه ذات لره چي دغه شيان يې پخپل قدرت پيداکړي اوپخپل حکمت يې زموږلپاره تابع او مسخرګرزولي دي. الله دخپلو نعمتونو شمېرله انسانه پيل کړی چي ﴿ أَفَرَءَيْتُم مَّا تُمْنُونَ ﴾ بيايې دهغه دودې او معېشت څېزيادونه کړي چي ﴿ أَفَرَءَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ﴾ اوبيايې دهغه څه يادونه کړي چي ژونداو بقاورسره تړلي ده فرمايي ﴿ أَفَرَءَيْتُمُ الْمَاءَ الَّذِي تَشْرَبُونَ ﴾ اوبياهغه څيزيادوي کوم چي په هغه سره يې خواړه ،غوښي اوسابه پخېږي چي اوردی فرمايې ﴿ أَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ ﴾ سبحان المنعم العظيم الكريم وروسته الله تعالی دقرآنکريم

---

(۱) أخرجه ابن ابي حاتم
(۲) دابن كثير مختصر
(۳) دصاوي حاشيه په جلالين باندي ۴/ ۱۶۶
(۴) أخرجه الشيخان ومالک رحمهم الله
(۵) دابن كثير مختصر ۳/ ۴۳۸
(۶) دخازن تفسير ۴/ ۲۴

په جلال او رفعت سوگند اخلي فرمايي چي دغه دعزيزالحكيم ذات له لوري نازل شوى دى ﴿ فَلَآ أُقْسِمُ بِمَوَٰقِعِ ٱلنُّجُومِ ﴾نوقسم خورم زه په ځايونو د پرېوتلودستوروباندي ، لام كلمه دتاكيداوټينگارلپاره راغلى دى د(لا) زياتوالى دعربوپه كلام كي مشهوردى لكه چي وايي:

*تذكرت ليلى فاعترتني * وكاد نياط القلب لا يتقطع* ليلا راپه يادشوه داسي حالت راباندي راغى نژدې وودزړه رگونه پرې شوي واى. قرطبي وايي داكثرومفسرينو په وينا(لا) صله بلل شوي ده اومعناداچي نوزه قسم كوم اودليل يې داچي له ده وروسته راځي چي: ﴿ وَإِنَّهُۥ لَقَسَمٌ ﴾ اوبېشكه (قسم) خامخاقسم دى. يعني زه قسم كوم په ځايونو دپرېوتلو دستوريو ﴿ لَّوْ تَعْلَمُونَ عَظِيمٌ ﴾ اودغه قسم كه تاسوپوهېږى ډېرلوى قسم دى (۱)كه يې په لوى والي وپوهېږي نو درباندي ايمان به راوړي ځكه چي په مقسم به كي په سترقدرت اوبشپړحكمت اوزيات رحمت باندي دلالت شته دالهي رحمت غوښتنه داده چي بندگان به هسي چټي نه پرېږدي ﴿ إِنَّهُۥ لَقُرْءَانٌ كَرِيمٌ ﴾ چي بېشكه (داكتاب لوستى شوى) خامخاقرآنكريم عزت والادى ، سحر كهانت او دروغ نه دى بلكه سترقرآن دنبي عليه السلام ستره معجزه دبركاتواوخيراتومجموعه اودمنافعو ټولگه ده ﴿ فِى كِتَـٰبٍ مَّكْنُونٍ ﴾ په كتاب پټ ساتلي شوي (لوح محفوظ) كي (چي له تغيره اوتبديله خوندي كړى شوى دى. ابن عباس وايي: كتاب مكنون لوح محفوظ دى اومجاهدوايي: داله دې مصحف څخه عبارت دى كوم چي زموږ په لاسونوكي دى(۲)﴿ لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا ٱلْمُطَهَّرُونَ ﴾ چي نه يې مسه كوي اونه دي مسه كوي مگرهغه چي پاک کړى شوي وي) يعني نه يې مسه كوي مگر پرښتې هغه چي له شركه، گناهونواوبې اودسي څخه پاک دي اويادي نه مسه كوي خلک مگرپه اوداسه باندي. قرطبي وايي مرادله كتاب څخه مصحف دى چي زموږپه لاسونوكي دى ځكه چي ابن عمروايي: قرآن ته په بې اودسي لاس مه وروړه او ياهغه دپيغمبرعليه السلام حكم اومارېينه ده چي عمروبن حزم ته يې وليكل: قرآن ته دي څوک لاس نه وروړي مگرهله چي اودس ولري ﴿ تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴾ (هغه قرآن چي ټوټه ټوټه) نازل كړى شوى دى له (طرفه دپالوكي) رب دعالميانو ، كله چي يې دقرآنكريم دلويي ستاينه يې وكړه نودكفاروتوبيخ يې هسي وفرمايو: ﴿ أَفَبِهَـٰذَا ٱلْحَدِيثِ أَنتُم مُّدْهِنُونَ ﴾ آيا پدې خبري (د قرآن) باندي تاسي دروغ گڼونكي يى؟ (كافران كېږى؟ ﴿ وَتَجْعَلُونَ رِزْقَكُمْ أَنَّكُمْ تُكَذِّبُونَ ﴾ اوگرزوى تاسي

---

(۱) پخوانيو خلگوته دستوروپرېوتلو ځايونه لږمعلوم وومگراوسني خلگوته دقرآنكريم معجزه ښځي څرگنده ده د فلكياتو پوهان وايي يوه ټولگه چي پدې عظيم الشان فضاء كي شتون لري هيڅاته يې حدودنه دي معلوم هغه چي (مجرة) يې بولي اوزموږدلمركورنى. ورته منسوب ده يوزرمليون ستوري پكې دي اوله دغوستوروڅخه چي ترڅوبليونه لازياتېږي يو ستورى داسي وي چي په تشه ستركه يوازي نشي ليدل كېداى بلكه په ميكروسكوب ليدل كېږي دغه ټول په دغه فلک كي لامبي اوددې احتمال نشته چي يودبل سره ټكروكړي اوياخپل خاى غلط كړي دواره په يوه لوري اوپه يوډول سرعت روان وي خودلگېدلواوتېروتلواحتمال يې هيڅ نشي كېداى. الله والعلم الحديث(دالله اونوى علم ) له كتاب څخه صفحه: ۳۳

(۲) دقرطبي تفسير ۱۷/ ۲۲۵

روزي برخه خپله (له قرآنه دا خبره) چي تاسي دروغ کونکي يی؟ يعني تاسو د خپل رزق شکر د خپل رازق پهتکذيب کوی کوم چي په تاسويې انعام فرمايلی دی؟﴿ فَلَوْلَآ إِذَا بَلَغَتِ ٱلْحُلْقُومَ ﴾ نوولي په هغه وخت کي چي ورسېږي (روح دسږي) ستوني ته (دسکرات الموت په وخت کي)﴿ وَأَنتُمْ حِينَئِذٍ تَنظُرُونَ ﴾ (حال داوي چي) تاسي په دغه وخت کي حاضر اوربدونکي نظر کونکي يی (دغه سړي ته چي څه پرې تېرېږي؟﴿ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنكُمْ وَلَٰكِن لَّا تُبْصِرُونَ ﴾ اوموږ ډېر نژدې يوهغه ته (په علم او اطلاع) له تاسي څخه مګرتاسي نه وينی اونه هغه پرښتې وينی چي دده د روح اخيستلولپاره راغلي دي، ابن کثيروايي: معنادا چي زموږ پرښتې هغه ته ترتاسونژدې دي خوتاسويې نه وينی لکه چي الله فرمايي ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ ﴾ (الانعام ۶۱)﴿ فَلَوْلَآ إِن كُنتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ ﴾ پس ولي که يی تاسي چي جزاء نه درکوله کېږي اونه ژوندی کېږی (لکه چي تاسي ګمان کوی)﴿ تَرْجِعُونَهَآ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ نوبېرته راوګرزوئ تاسي دا(روح) که چېري يی تاسي رښتوني (پدې ګمان خپل چي جزاء نشته) ابن عباس ﷺ د﴿ غَيْرَ مَدِينِينَ ﴾ معناپدې کوي چي حساب نه ورسره کېږي اوجزانه ورکوله کېږي ، خازن تفسير ليکي: ددې قول چي﴿ فَلَوْلَآ إِذَا بَلَغَتِ ٱلْحُلْقُومَ ﴾ اوددې ويناچي﴿ فَلَوْلَآ إِن كُنتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ ﴾ دواړوخواب يودی اوهغه داچي﴿ تَرْجِعُونَهَآ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ د آيت معنادا چي که رښتيا هم داسي وي لکه چي تاسي واياست چي نه دالله حساب اوکتاب اونه بعث اوجزاء شته نوبياولي دهغه چاروح چي ډېردرته ګران اوعزيزوي دزنکندن په وخت نه راستنوی؟اوچي دغه درته ممکن نه دی نوپدې وپوهېږی چي دګردوچارواګي له الله سره دي په هغه ايمان راوړئ[1]) بيا الله تعالی دخلګوپښ دمړيني اوبعث په وخت کي داسي کوي اوددوی درجاتي داسي ستايي:﴿ فَأَمَّآ إِن كَانَ مِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ فَرَوْحٌ وَرَيْحَانٌ وَجَنَّتُ نَعِيمٍ ﴾ نوکه چېري وي (دغه مړي) له مقربينوڅخه (الله ته) نو(شته ده لره) راحت هوسايي اوښه رزق اوجنت ډک له نعمتونوڅخه، قرطبي وايي: مقصد له مقربينو څخه هغه سابقين دي چي دسورت په پيل کي رومبی يادشول[2])﴿ وَأَمَّآ إِن كَانَ مِنْ أَصْحَٰبِ ٱلْيَمِينِ ﴾ اوکه چېري وي (دامړی) له ملګرودښي لاس ....(چي اعمالنامې يې په ښي لاس اخيستي وي)﴿ فَسَلَٰمٌ لَّكَ مِنْ أَصْحَٰبِ ٱلْيَمِينِ ﴾ نوسلامتيا ده تالره له يارانوملګرودښي لاس څخه (يعني ای محمده! ددوی له لوري داده اوسه دوی په راحت نېکمرغي اونعمت کي دي﴿ وَأَمَّآ إِن كَانَ مِنَ ٱلْمُكَذِّبِينَ ٱلضَّآلِّينَ فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيمٍ ﴾ اوکه چېري وي دغه (مړی) له دروغ ويونکوګمراهانوڅخه نومېلمستياده(ده ته)له سوځونکيو اوبوڅخه(يعني دلومړي ورتللوسره به پدې باندي دوی نازول کېږي) چي له ډېره جوشه به يې لړمون ويلي کړي په التسهيل کي ليکي (نزل) هغه

---

[1]) خازن ۴/ ۲۷
[2]) القرطبي ۱۷/ ۲۳۲

لومړنی سوغات او پیشکش ته ویل کېږي چي مېلمانه ته وړاندي کاوه شي (١) ﴿ وَتَصْلِيَةُ جَحِيمٍ ﴾ او ننه ایستل دي په اور د دوزخ کي (چي یې وګالي) ﴿ إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ حَقُّ الْيَقِينِ ﴾ بېشکه دا خبره (چي ذکر شوه له جزاد سابقینو، سعدا وو او بد مرغانو) خامخا همدا حقه یقیني ده (هیڅ شک او شبهه پکي نشته او انکار تري نشي کېدای) ﴿ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴾ پس وکړه نسبت د پاکي نامه د رب خپل ته چي له ټولو څخه ډېر لوی دی، کله چي دغه آیت شریف نازل شو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دغه تسبیح خپلو رکوع ګانو کي لولئ او کله چي دا آیت شریف نازل شو چي ﴿ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى ﴾ نو بیې وفرمایل دا تسبیح مو په سجدو کي وایاست (٢).

## بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي د بدیع او بیان کومي ښکلاوي شته لنډیزیې دا دی:

١- اشتقاقي جناس لکه ﴿ إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴾ او ناقص جناس لکه ﴿ فَرَوْحٌ وَرَيْحَانٌ ﴾.

٢- د طباق صنعت چي د ﴿ الْمَيْمَنَةِ ﴾ او ﴿ الْمَشْأَمَةِ ﴾ ترمینځ راغلی او هم داسي د ﴿ الْأَوَّلِينَ ﴾ او ﴿ الْآخِرِينَ ﴾ او د ﴿ خَافِضَةٌ رَافِعَةٌ ﴾ ترمینځ شتون لري او دا چي دلوړتیا او کوزېدا نسبت یې قیامت ته کړی پدې کي عقلي مجازدی څکه په حقیقت کي پورته کونکی او ښکته کونکی الله دی خو قیامت ته یې نسبت کول مجازي دي لکه چي وایې ورځ یې روژه ده یا (ویالې بهېږي).

٣- مرسله مجمله تشبیه چي فرمایې ﴿ وَحُورٌ عِينٌ كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ ﴾ یعني په مثال د ملغلرو په حسن او پاکي صفایې کي د شبه وجه حذف شوې نو مرسله مجمله یې بولي.

٤- تفخیم او تعظیم لکه دا چي ﴿ وَأَصْحَابُ الْيَمِينِ مَا أَصْحَابُ الْيَمِينِ ﴾ دغه یې د استفهام په توګه مکرر راوړ چي د تفخیم افاده وکړي.

٥- دوه ډوله یوه ټولګه یادول یو ځل په ﴿ أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ ﴾ او بل ځل په ﴿ أَصْحَابُ الْيَمِينِ ﴾ همداسي یو ځل په ﴿ الْمَشْأَمَةِ ﴾ او بل په ﴿ أَصْحَابُ الشِّمَالِ ﴾ چي دغه د تفنن صنعت دی.

---

(١) التسهیل ٩۴/۴

(٢) أخرجه ابو داؤد وابن ماجه وصححه الحاکم.

۶ – دمدحي تأكيد په هغه څه چي له ذم سره مشابه وي چي فرمايي ﴿ لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا تَأْثِيمًا إِلَّا قِيلًا سَلَٰمًا سَلَٰمًا ﴾ ځکه چي سلام خو دلغو او ګناه له جملې څخه نه دي د دوی مدح يې د سلام په ډېر اچولو وکړه لکه چي يو شوک وايي (زمانو ره ګناه نشته مګر ستا محبت دی).

۷ – تهکم او استهزآء چي فرمايي: ﴿ هَٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ ٱلدِّينِ ﴾ يعني دغه عذاب د قيامت په ورځ د دوی لومړنی مېلمستيا ده دغه پر دوی باندي تهکم دی.

۸ – د التفات صنعت له خطاب څخه غياب ته چي فرمايي: ﴿ ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا ٱلضَّآلُّونَ ٱلْمُكَذِّبُونَ ﴾ او وروسته فرمايي ﴿ هَٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ ٱلدِّينِ ﴾ او دغه التفات د دوی د شان د تحقير لپاره دی.

۹ – اعتراضيه جمله چي د صفت او موصوف ترمينځ راغلې تر څو چي د قسم د شان عظمت او ستر توب وښيي لکه چي فرمايي ﴿ وَإِنَّهُۥ لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُونَ عَظِيمٌ ﴾ دا د دي لپاره چي د قسم اهميت نه پام راوګرزوي راوړل شوی دی.

۱۰ – د فواصلو توافق چي په وروستنيو تورو کي راځي او کلام ته رونق او جمال ، ښکلا وربښي لکه ﴿ فِى سِدْرٍ مَّخْضُودٍ وَطَلْحٍ مَّنضُودٍ وَظِلٍّ مَّمْدُودٍ ﴾ يا لکه دا چي ﴿ فَشَٰرِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ ٱلْحَمِيمِ فَشَٰرِبُونَ شُرْبَ ٱلْهِيمِ ﴾ دغه ته مرصع سجع وايي او له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

## لطيفه:

د مقسم او مقسم به ترمينځ مناسبت چي قرآنکريم او ستوري دي هلته چي الله فرمايي ﴿ فَلَآ أُقْسِمُ بِمَوَٰقِعِ ٱلنُّجُومِ ۝ وَإِنَّهُۥ لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُونَ عَظِيمٌ ۝ إِنَّهُۥ لَقُرْءَانٌ كَرِيمٌ ﴾ مناسبت يې دا دی چي: په ستوريو سره الله پاک خلګو ته دوچي او سيند په تاريکيو کي لارښوونه کوي همدا سي د قرآنکريم په آيتونو باندي د جهل ګمراهي له تورتم څخه هغه چي لومړی محسوسي تيارې او وروستنی معنوي تيارې دي هدايت موندل کېږي نو قسم د لته د دواړو هدايتونو ديوځای والي لپاره راغلی چي محسوس دستورو او معنوي د قرآنکريم دی دغه يې د مناسبت وجه ده.

والله أعلم

دالواقعة تفسير ژباړه د الله جل جلاله په مرسته ترسره شوه.

## د(الحديد )سورت مدني او نه ویشت آیتونه لري

### د سورت په وړاندې:

دغه سورت مدني دی او د تشریع ، اسلامي روزني او توجیه ښودني لاري چاري ښیي ، اسلامي ټولنه د سپېڅلي عقیدې په بنسټ ودانوي او ښکلي اخلاق او له حکمته ډکه تشریع بیانوي.

پدې سورت درې مهم ټکي راغي چي هغه:

- لومړی دا چي کائنات ګرد د الله تعالی دي الله یې پیدا کونکی او متصرف دی.
- دوهم دا چي د دین د لوړتیا لپاره د مال او ځان قرباني په هر چا لازم دي
- دریم د دنیا د حقیقت انځور دی چي دغه غولونکي خلا او بربښناده انسان باید و ور باندي تېر نه وزي.

د سورت پیل د خالق په عظمت باندي کېږي هغه لوړ ذات چي د کائناتو هر توکی د هغه تسبیح وايې که و نه ده که تېره که انسان دی که حیوان او که نبات دی که جماد, ګرد د الله په عظمت ګواه او په وحدانیت یې ګویا دي.

ورپسې د الله حسنی صفات او علیا اسماء راوړي چي الله بې له ابتدآء اول او بې له انتهاء آخر دی د خپلو مخلوقاتو په آثاروکي ظاهر او دا چي حقیقت یې هیڅوک نه شي درکولای باطن دی هغه جل جلاله د انسان خالق او د کائناتو تدبیر فرمایونکی دی.

بیا آیتونه پر له پسې مسلمانان سخا او خیرات کولو ته رابولي چي د اسلام په لارکي د دین د اعتلاء او لوړتیا لپاره دي خپل مالونه ولګوي نو هرومرو دي مؤمنان په نفس او مال جهاد وکړي ترڅو د دنیا ښکمرغي او د آخرت ثواب ترلاسه کړي.

سورت د مؤمنانو او منافقانو حالات رااخلي د مؤمنانو نور به د دوی ترمخه او په ښي لوري ځغلي او منافقان به په تورو تیارو کي تیندکونه خوري کوم چي په دنیاکي په تیاروکي لکه ځاروي او سېدل او په ګمراهي او ضلالت کي یې شپې سباکولې.

سورت د دنیا حقیقت او د آخرت حقیقت په خورا ښکلي انځورسره کاږي دنیا د فنا ځای ګڼي او لکه کښت چي د باران په اوربښت سره زرغون شي بیا تک ژېړ شي او بیا ورژېږي او بیایې باد او دوړي هر لوري ته یوسي مګر آخرت بیاد بقاء او خلود ځای دی هلته چي نه ربړشته او نه ستوماني نه غم شته او نه هم بد مرغي.

سورت په پای کي د انبیآء علیهم السلام د بعثت مقصد راوړي او د الله عزوجل په تقوی امر کوي لکه چي د انبیآء علیهم السلام د هدایت د پیروي لارښوونه فرمایې.

### تسمیه او نومول یې:

دغه سورت ته ځکه سورت (الحدید )وایې چي د اوسپني یادونه پکي شوي ده او هغه د انسان لپاره د سولي او جګړې په وخت کي د زور او پیاوړتیا سبب وي ځکه چي په ودانیو کي استعمالېږي غټ پلونه ترې جوړېږي لوړي ماڼۍ پوړ پوړ ترې تیارېږي ، زغري، نېزې ، توري،شوبلي او بټلونه او توپونه زغره لرونکي موټري او نور ورځخه جوړېږي او نوري زیاتي ګټي پکې دي.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١﴾ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ
قَدِيرٌ ﴿٢﴾ هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٣﴾ هُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ
أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ
وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٤﴾ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٥﴾ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي
اللَّيْلِ وَهُوَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٦﴾ آمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَأَنْفِقُوا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُسْتَخْلَفِينَ فِيهِ فَالَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَأَنْفَقُوا
لَهُمْ أَجْرٌ كَبِيرٌ ﴿٧﴾ وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ لِتُؤْمِنُوا بِرَبِّكُمْ وَقَدْ أَخَذَ مِيثَاقَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿٨﴾ هُوَ
الَّذِي يُنَزِّلُ عَلَىٰ عَبْدِهِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ لِيُخْرِجَكُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ وَإِنَّ اللَّهَ بِكُمْ لَرَءُوفٌ رَحِيمٌ ﴿٩﴾ وَمَا لَكُمْ أَلَّا
تُنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَا يَسْتَوِي مِنْكُمْ مَنْ أَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ أُولَٰئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِنَ
الَّذِينَ أَنْفَقُوا مِنْ بَعْدُ وَقَاتَلُوا وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَىٰ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿١٠﴾ مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا
فَيُضَاعِفَهُ لَهُ وَلَهُ أَجْرٌ كَرِيمٌ ﴿١١﴾ يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ يَسْعَىٰ نُورُهُمْ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ بُشْرَاكُمُ الْيَوْمَ جَنَّاتٌ تَجْرِي
مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿١٢﴾ يَوْمَ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ لِلَّذِينَ آمَنُوا انْظُرُونَا نَقْتَبِسْ مِنْ
نُورِكُمْ قِيلَ ارْجِعُوا وَرَاءَكُمْ فَالْتَمِسُوا نُورًا فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُورٍ لَهُ بَابٌ بَاطِنُهُ فِيهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهُ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴿١٣﴾ يُنَادُونَهُمْ
أَلَمْ نَكُنْ مَعَكُمْ قَالُوا بَلَىٰ وَلَٰكِنَّكُمْ فَتَنْتُمْ أَنْفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ وَارْتَبْتُمْ وَغَرَّتْكُمُ الْأَمَانِيُّ حَتَّىٰ جَاءَ أَمْرُ اللَّهِ وَغَرَّكُمْ بِاللَّهِ الْغَرُورُ
﴿١٤﴾ فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنْكُمْ فِدْيَةٌ وَلَا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مَأْوَاكُمُ النَّارُ هِيَ مَوْلَاكُمْ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿١٥﴾﴾ الحديد: ١ - ١٥.

## لغتونه:

(سبح) نسبت دپاكي كوي (العزيز) زوروړ په هرڅېزباندي غښتلى (الأول) لومړنى ترګردو موجوداتو (الآخر) تلپاتي وروسته ترفناكېدلودټولو (يلج) ننوتي باسي (يعرج) خېژي (الظاهر) څرګند پخپلوآثاروا ومصنوعاتو كي (الباطن) پټ حقيقت يې له ليدلوڅخه (الحسنى) ښكلى ثواب اومقصدترې نه جنت دى (انظرونا) انتظاروكړئ موږ ته (نقتبس) چي ستاسي له نورڅخه لاره وموموو (سور) دېوال پرده دجنت اودوزخ ترمينځ (الغرور) تېرايستونكى غولونكى.

## تفسير:

﴿سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ نسبت دپاكي كوي الله ته هغه څه چي په آسمانونوكي دي اوپه ځمكه كي (له انسان ، حيوان اونباتاته څخه) صاوي ليكي چي دتسبيح معنادمولى تنزيه اوپاكي ده له ګردوهغوشيانوڅخه چي ورسره ورنه وي دغه تسبيح به په وينا ، فعل اواعتقادكي وي (سبح) لامبووهلو ته وايي چي په اوبو كي وړاندي لاړشي دعقل دخاوندانو تسبيح دقال په ژبه اودجماداتوپه لسان الحال

سره وي يعني پخپله دجماداتو ذات دهغوی دصانع په پاکي دلالت کوي اوچابياويلي چي هغوی تسبيح هم دقال په ژبه وي لکه چي الله فرمايي ﴿ وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ ﴾ (الاسرآء:۴۴)(١) خازن بياوايي چي دعقل دخاوندانو تسبيح دالله پاکي ده له هره بدي اوهغه څه نه چي ورسره نه ښايي اودجماداتو اوغير عاقلانوپه تسبيح کي اختلاف دی ځيني وايي چي ددوی وجودپخپل پيداکونکي (صانع) باندي دتسبيح ويلوپه معناده اوځيني بيا وايي چي هغوی پخپله دتسبيح ويناکوي چي دالله داقولورباندي دلالت کوي چي فرمايي ﴿ وَإِن مِّن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ ﴾ خو حقيقت دادی چي تسبيح هغه قول ته وايي چي له عاقل اودالله له پېژندونکی (عارف) څخه صادرېږي اوهغه چي عاقل نه وي دهغه تسبيح دوه ډوله لري يوداچي دهغه شتون دالله په عظمت او پاکي دلالت کوي بل داچي ټول موجودات الله ته اېل اوتابع دي څرنګه چي يې خوښه شي هماغسي پکي تصرف کوي نوکله چي موږ له تسبيح څخه ويناواخلو نومقصدبه له دې قول دالله جل جلاله نه چي فرمايي: ﴿ سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ مؤمنان اوپرښتي وي اوکه چېري بيامعنوي تسبيح ورڅخه مرادشي نوبيادا آسمانونو ګردتوکي لکه لمر، سپوږمۍ ستوري او دځمکي ګردي ذرې ، غرونه ، وني ، سيندونه ، حيوانات او نورټول دالله تسبيح ويونکي اوهغه ته تابع اومسخردي څرنګه چي الله غواړي هغسي پکي تصرف کوي دغه يې تسبيح دی. که څوک پوښتنه کوي چي دځينوسورتونوپه پيل کي راځي چي ﴿ سَبَّحَ لِلَّهِ ﴾ اودغه دماضي صيغه ده په ځينونوروکي )﴿ يُسَبِّحُ لِلَّهِ ﴾ چي دمضارع صيغه ده ددوی ترمينځ توپيرڅه دی؟ خواب داچي پدې کي دااشاره شته چي ټول شيان تل ترتله الله تعالی ته تسبيح وايي په ځانګړي وخت پسي اړه نلري هغوی خوپخواهم تسبيح ويله اوپه راتلونکي کي به يې هم وايي(٢) ﴿ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ اوهم دغه الله ښه غالب ښه حکمت والادی (هيڅوک يې له هيڅ کار څخه منع کولای نشي اوهيڅ کار يې له حکمته اومصلحته نه کوي، وروسته الله خپل عظمت اوقدرت داسي يادوي چي ﴿ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يُحْيِي وَيُمِيتُ ﴾ خاص دغه (الله) لره ده پاچهي دآسمانونو اوپاچهي دځمکي(هم دغه الله) ژوندي کول کوي اومړه کول کوي (څنګه چي غواړي) قرطبي وايي: معناداچي ژوندي کوي مړي په آخرت کي دبعث اونشورپه وخت اومړه کوي ژوندي په دنياکي(٣) ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾ اوهم دغه (الله) په هرشي باندي (چي اراده وفرمايي) ښه قادر دی، د(قدير) لفظ د(قادر) مبالغه ده ﴿ هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ ﴾ همدغه (الله) اول دی (له هرشي څخه چي ابتداء نلري) او آخردی (له هرشي څخه چي انتهاء نلري ﴿ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ﴾ اوظاهردی (په دليلونوسره عقلونوته) او پټ دی (له سترګوڅخه په دنياکي

(١) دصاوي حاشيه په جلالين باندي ۴/ ۱۷۸

(٢) دخازن تفسير ۴/ ۲۹

(٣) دقرطبي تفسير ۱۷/ ۱۳۶

اوداچي عقلونه يې دذات دحقيقت ادراک نشي کولای ([1]) په حديث شريف کي راځي: (أنت الأول فليس قبلک شئ وأنت الآخرليس بعدک شئ......الحديث) ([2]) شيخ زاده ليکي چي کشاف د(باطن) معنا پدي کړي ده چي په حواسونه موندل کېږي اودغه داسي تفسيردی چي دده له خوښي سره سم دی چي دده دمذهب ملاتړکوي چي په آخرت کي هم دالله ليدل محال ګڼي .حقيقت دادی چي الله په خپل وجودسره ښکاره او په خپل حقيقت سره پټ اوباطن دی اودواړه صفتونه يې ازلي اوابدي دي ([3]) ﴿ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴾ او همدغه (الله) په هرشي باندي ښه عالم ښه پوهېدونکی دی (له علمه څخه يې په ځمکي آسمان کي هيڅ شی هم الونياوپټ نه دی ﴿ هُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ فِى سِتَّةِ أَيَّامٍ ﴾ او دغه (الله) هغه ذات دی چي پيداکړي يې دي آسمانونه اوځمکه په مقدارد شپږو ورځوکي (اوکه يې غوښتي وای دسترګوپه رپ کي به يې پيداکړي وو دغه دالله دعزت اودبشپړقدرت ثبوت دی لکه دغه ويناچي ﴿ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ يې دبشپړعلم اوحکمت ثبوت دی ﴿ ثُمَّ ٱسْتَوَىٰ عَلَى ٱلْعَرْشِ ﴾ بياي استوآء وکړه په عرش باندي (هسي استوآء چي له جلال سره يې ښايي بې له تمثيل اوتکييف څخه ) ([4]) ﴿ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِى ٱلْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا ﴾ معلوم دي الله ته هغه څه چي ننوزي په ځمکه کي (لکه مړي او باران) اوهرهغه چي راوزي له دغي زمکي نه (له معدنياتونباتاتو څخه) ﴿ وَمَا يَنزِلُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ﴾ اومعلوم دي (الله ته) هغه څه چي نازلېږي له آسمانه (له ارزاقو، پرښتو رحمتونو اوعذابونو) او هرهغه څه چي پورته خېژي په دغه (آسمان)کي (له پرښتو او نېکواعمالوڅخه) لکه چي الله فرمايي ﴿ إِلَيْهِ يَصْعَدُ ٱلْكَلِمُ ٱلطَّيِّبُ ﴾ (فاطر: ۱۰) ﴿ وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ ﴾ اودغه (الله) له تاسي سره دی (په علم او قدرت سره) هرچېري چي تاسي يئ. ابن عباس وايي: معناداچي الله په تاسوخبردی چي هرچېري ياست، ابن کثيروايي: معناداچي هغه ستاسودکړو وړو ليدونکی اوڅارونکی دی که هرچېري ياست په سيندکي ياست اوکه په وچه کي په شپه کي ياست اوکه په ورځ کي په کورکي ياست اوکه په ښديا کي ټول دالله پوهي ته يوشان دي ستاسوځای ويني اوکلام مواوري ستاسي پټ رازونه هغه ته ښکاره دي ([5]) ﴿ وَٱللَّهُ

---

([1]) دغه دظاهر اوباطن په تفسيرکي راجح قول دی چي الوسي اوابوالسعودغوره کړی دی.

([2]) هذاجزء من حديث أخرجه الامام احمد ومسلم.

([3]) په بيضاوي باندي دشيخ زاده حاشيه .

([4]) داستوآء تفصيل په سورة اعراف کي وګوره.

([5]) دابن کثيرمختصر ۳ /۴۴۵- په البحرالمحيط کي ليکي چي دګرداُمت پدې باندي اجماع راغلي چي ددغه آيت تأويل وکړي اوپخپل ظاهريې چي(معيت بالذات دی) پرې نږدي نود(وهومعکم) معناداچي په علم اوقدرت له تاسوسره دی، قرطبي وايي: د(وهومعکم) معناداچي په قدرت، سلطان اوعلم له تاسوسره دی ، بيضاوي ليکي: معناداچي علم اوقدرت يې له تاسوڅخه ليري اوګوښی نه دی ، الوسي بياوايي چي آيت دالله دعلم داحاطې تمثيل کوي اوددې تصويروړاندي چي دوی دالله له علم څخه هېڅېري هم وتلي نه دي ، زه وايم چي دغه دپخوانيواو وروستنيوعلماوو اقوال ګرد په هغه چاباندي ترديدکوي چي دوی وايي په کتاب الله کي مطلقاتأويل نشته ځکه که داسي وي بيامورڅنګه پوهېږو چي دالله دنوح دبېړۍ په

﴿ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ اوالله په هرهغه څه چي تاسي كوى ښه ليدونكى دى (كه صغيره وي او كه كبيره) ﴿ لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ خاص هغه (الله) لره دي پاچهي اوسلطنت دآسمانونو اود ځمكي، ددې تكراربې دحشراونشرداثبات لپاره دتمهيد په توګه كړى دى يعني الله په حقيقت سره معبوداو هرځنګه چي غواړي په مخلوقاتوكي تصرف كونكى دى ﴿ وَإِلَى ٱللَّهِ تُرْجَعُ ٱلْأُمُورُ ﴾ اوخاص الله لره ګرزول كيږي ټول كارونه (نوبه الله هرچاته ددوى له عمل سره سمه جزاوركړي) ﴿ يُولِجُ ٱلَّيْلَ فِى ٱلنَّهَارِ وَيُولِجُ ٱلنَّهَارَ فِى ٱلَّيْلِ ﴾ ننه باسي (الله) شپه په ورځي كي اوننه باسي (الله) ورځ په شپې كي (پخپل حكمت اوتقديرسره نوكله ورځي اوږدې اوشپې لنډي وي اوكله بياشپې اوږدې اوورځي لنډي وي) ﴿ وَهُوَ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ اودغه (الله) ښه عالم دى په پټوخبرو، نيتونو، عقائدوسينوزړونوباندي (او' هرڅوک چي دغه صفت ولري له هغه پرته دبل چاعبادت كول روانه دي كله چي يې دعظمت اوقدرت دلائل ذكركړل نوبې دخپل توحيدمنلواو طاعت كولوپه هكله امر وفرمايوچي ﴿ ءَامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ ايمان راوړئ تاسي (اوپه ايمان همېشه اوسئ) په الله اوپه رسول ددغه (الله) باندي (چي محمدبن عبدالله دى) ﴿ وَأَنفِقُوا۟ مِمَّا جَعَلَكُم مُّسْتَخْلَفِينَ فِيهِ ﴾ اولګوئ (په لاره دالله كي) له هغو(اموالو) څخه چي الله تاسوګرځولي يې خليفګان (خپل) په هغو(مالونو) كي يعني دغه خوپه حقيقت كي دالله مالونه دي ستاسونه دي په التسهيل كي ليكي: معناداچي هغه مالونه چي ستاسوپه لاس كي دي دغه دالله اموال دي څكه چي هغه پيداكړي دي خوالله تاسوته دمنفعت اخيستلولپاره درسپارلي دي نوتاسولكه چي د الله له لوري وكيلان ورته ټاكل شوي ياست بياهركله چي مالک درته امركوي چي دغه دالله په لاركي ولګوئ نوتاسي ممانعت مكوئ[1]) اومقصودله آيت شريف څخه دالله په لاركي دمال لګولولپاره هڅونه ده اوپه دنياپسې زړه نه تړل (زهدكول) دي څكه وروسته فرمايې ﴿ فَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنكُمْ وَأَنفَقُوا۟ لَهُمْ أَجْرٌ كَبِيرٌ ﴾ پس هغه كسان چي ايمان يې راوړى دى له تاسي اولګولي يې دي (اموال خپل په لاره دالله كي) هغوى لره دى اجراوثواب ډېرلوى (په جنت كي) ابوالسعودوايې چي په آيت شريف څرګنده مبالغه شته چي جمله اسميه يې ﴿ فَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ ياده كړي اوبيايې دايمان اوانفاق ذكركړى په مكرر ډول يې دوى ته اسناد كړى چي (لهم) يې راوړى اوبيايې اجرنكره راوړى اوپه كبيرسره يې ستايلى چي (لهم اجركبير) دى ﴿ وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ ﴾ اوڅه مانع دى تاسي لره (بلكه هيڅ نشته) چي ايمان نه راوړي په الله اوپه رسول ددغه الله باندي، استفهام دانكاراوتوبيخ لپاره دى ﴿ وَٱلرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ لِتُؤْمِنُوا۟ بِرَبِّكُمْ ﴾ حال داچي رسول رابولي تاسي چي ايمان راوړئ په رب خپل باندي ﴿ وَقَدْ أَخَذَ مِيثَٰقَكُمْ ﴾ اوپه تحقيق اخيستي ده

هكله وايې (تجري بأعيننا) اوهمداسې موسى ته يې داويناچي (ولتصنع على عيني) اوداقول يې چي فرمايې (ونحن أقرب اليه من حبل الوريد) اويادغه درسول الله صلى الله عليه وسلم ويناچي فرمايې: (الحجرالاسوديمين الله فى الارض).

[1]) التسهيل ٩٥/٤

(الله) کلکه وعده دتاسو(چي ستاسو په عقلونو کي یې دالله په وجودباندي دلالتونه خوندي کړي دي، خازن وایي: دکلکي وعدې اخیستل معناداچي هغه وخت یې لا وعده درڅخه اخیستي وه چي دآدم له شا څخه یې وایستلی اوپدې یې وپوهولی چي له الله پرته بل معبودنشته همدغه الله ستاسومعبوددی، چاییاویلي معناداچي هغه وخت یې له تاسوڅخه کلکه وعده واخیستله کله چي یې عقلونه درکړل اودلائل، براهین یې دروښودل چي درسول الله متابعت ته یې وبللی (۱) ﴿إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ که چېري یې تاسي ایمان راوړونکي ؟ ، دغه شرط دی اوځواب یې حذف شوی یعني که چېري یې تاسي ایمان راوړونکي په یووخت له وختونو څخه نودغه یې غوره وخت دی ځکه چي دلائل اوبراهین موګردولیدل وریسې الله دایمان دوجوب دلائل داسي بیانوي فرمایي: ﴿ هُوَ الَّذِي يُنَزِّلُ عَلَىٰ عَبْدِهِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ ﴾ دغه (الله) هغه ذات دی چي نازلوي پربنده خپل باندي دلائل (دقدرت خپل) ښکاره ، قرطبي وایي ﴿آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ ﴾ قرآنکریم دی چاییاویلي چي معجزات دي معناداچي په تاسو یې په محمد رسول الله ایمان راوړل لازم کړي ځکه چي له هغه سره معجزات اوترګردولوړه معجزه قرآن کریم دی (۲) ﴿لِيُخْرِجَكُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ﴾ (لپاره ددې) چي وباسي تاسي له تیارو(دکفر) څخه رڼا(د ایمان ) ته ﴿وَإِنَّ اللَّهَ بِكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾ اوبېشکه الله په تاسي باندي خامخابنه مهربان دېر رحم والا دی، چي کتابونه یې درته رانازل کړي اوستاسي دلارښوونې لپاره یې پیغمبران رااستولي دي اویوازي په عقلي دلیلونویې اکتفاء اوبسنه نه ده کړي ﴿ وَمَا لَكُمْ أَلَّا تُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ﴾ اوڅه مانع عذردی تاسي لره چي نه نفقه کوی (مال خپل) په لاره دالله کي اوخاص الله لره دی میراث دآسمانونواودځمکي) یعني تاسوبه مړه کېږی مالونه به درڅخه پاتي کېږي ، امام فخررازي لیکي: معناداچي نژدې دی تاسوبه مړه شی اومال به مو درڅخه پاتي شي نوولي یې دالله د طاعت په لاره کي نه لګوی؟(۳) اودغه دالله په لارکي دمال دولت دلګولو ډېره ښه هڅونه ده ﴿ لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ ﴾ ندی برابرله تاسي څخه هغه چي لګولي یې دي (مال خپل په لاره د الله کي) پخواله فتحي دمکې) اوبیایې جنګ کړی دی (له اعداء الله سره) مفسرین کرام لیکي : داچي نفقه پخواترفتحي ځکه سترتوب درلودچي اسلام جهاداوانفاق ته اړتیالرله اوبیاچي فتح ترسره شوه نودالله په دین کي ټولي ټولې خلګ دننه کېدل اومرستندویان یې زیات شول ﴿أُولَٰئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِينَ أَنفَقُوا مِن بَعْدُ وَقَاتَلُوا ﴾ دغه کسان ډېرلوی دي له جهته دمرتبې له هغوکسانوچي لګولی یې دی مال خپل په لاره دالله کي وروسته (له فتح دمکې نه) اوجنګېږي (لپاره داعلاء کلمة الله) کلبي رحمه الله وایي: دغه دابوبکرالصدیق ﷺ په هکله نازل شوی ځکه چي هغه لومړنی تن وو چي ایمان یې راووړ دالله په لارکي یې خپل مال مصرف کړاوله رسول الله ﷺ

(۱) دخازن تفسیر۴ /۲۷
(۲) دقرطبي تفسیر۱۷ / ۲۳۹
(۳) کبیرتفسیر۲۹ / ۲۱۸

څخه یې دفاع وکړه (١) ﴿ وَكُلًّا وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلْحُسْنَىٰ ﴾ اوله دواړو طائفو سره الله د نېکي وعده کړي ده (چي جنت دی خو ددوی درجات متفاوت دي) ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ اوالله په هغو کارونو باندي چي تاسي یې کوی ښه خبردار دی (نوجزا به وربانذي درکړي په آیت کي وعدا او وعید دواړه نغښتي دي ﴿ مَّن ذَا ٱلَّذِى يُقْرِضُ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا ﴾ څوک دی هغه ذات چي قرض ورکوي الله ته په قرض ورکولو نېکو سره (خاص لپاره درضا دده) ﴿ فَيُضَٰعِفَهُۥ لَهُۥ ﴾ بیا به (الله) دوچنده کړي (هغه قرض) ده لره (په ثواب کي) ﴿ وَلَهُۥٓ أَجْرٌ كَرِيمٌ ﴾ اوخاص ده لره اجرثواب دی نیک (دعزت چي جنت دی ، کله چي دغه آیت شریف نازل شو نوابو دحداح انصاري وویل ای دالله استازي آیا الله جل جلاله له موږ څخه دقرض اخیستلو غوښتنه کوي رسول الله وفرمایل هو ! نوابو دحداح پیغمبر علیه السلام ته وویل : لاس دي راواوږد کړه ! نورسول الله ﷺ خپل لاس په لاس کي ورکړ ابودحداح وویل: ماخپل بڼ چي شپږسوه دخرماوني لري اودد حداح مور اودهغې ماشومان هلته اوسي الله ته قرض ورکړي دي نوراغی اودباغ په دروازه کي یې ناري کړې ای دد حداح موري له باغه راووزه چي دغه ما الله جل جلاله ته قرض ورکړ (هغې په خوشحالی ) وویل : واه واه څومره ګټه وره سودادي کړي ده نوهغه اوماشومان یې له بڼ څخه بهرراووتل (٢) ورپسې الله جل جلاله دنېکانو مؤمنانو حال داسي بیانوي چي په پل صراط به یې نورله مخه درومي فرمایي ﴿ يَوْمَ تَرَى ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ يَسْعَىٰ نُورُهُم بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَٰنِهِم ﴾ یادکړه (ای محمده !) هغه ورځ (دقیامت) چي وینې ته مؤمنان سړي اومؤمناتي ښځي چي ځغلي به رڼاددوی مخکښي له دوی څخه اوله ښي لوري ددوی څخه (چي له تولو خوااوو پل صراط ورته روښانه کړي ، مخونه به یې دخورلسم سپوږمۍ په شان روښانه وي ﴿ بُشْرَىٰكُمُ ٱلْيَوْمَ جَنَّٰتٌ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ﴾ (اوو به ویل شي دوی ته چي ) زېری دتاسي نن ورځ دی (ننوتل په) جنت چي بهېږي له لاندي (دمانیو اوونو دهغو ) ویالې ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَا ﴾ تل به وي دوی په هغو کي ﴿ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴾ دغه دي همدغه بری موندل دېرلوی چي ترې پورته بری نشته روایات کېږي چي دهرچانوربه دهغه دایمان په اندازه وي دچابه دومره نوروي چي دپېښونژدي به روښانه کوي دچابه یوځل مرکېږي بیابه بلېږي ، زمخشري وایي داچي ویې فرمایل ﴿ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَٰنِهِم ﴾ ځکه نېکمرغه کسانوته په همدغه لوري اعمالنامې ورکول کېږي لکه چي بدمرغه کسانوته دشاله لوري اوپه کیڼ لاس ورکول کېږي (٣) کله چي یې دمؤمنانو حال شرح کړ دمنافقینو یادونه کوي چي ﴿ يَوْمَ يَقُولُ ٱلْمُنَٰفِقُونَ وَٱلْمُنَٰفِقَٰتُ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱنظُرُونَا نَقْتَبِسْ مِن نُّورِكُمْ ﴾ (یادکړه ای محمده !) هغه ورځ چي وایې به منافقان سړي او منافقاني

(١) دخازن تفسیر ٤ / ٣٢٠
(٢) دابن کثیر مختصر ٣ /٤٤٨
(٣) الکشاف ٤ /٣٤٢

بنځي هغو کسانو ته چي ايمان يې راوړی دی (داسي) چي انتظارو کړئ موږ ته (وګورئ) چي رڼا واخلو له رڼا ستاسي څخه مفسرين کرام وايي: الله تعالى به مؤمنانو ته دقيامت په ورځ ددوی د اعمالو په اندازه نور ورکړي چي په پل صراط باندي تېرشي اوکفار منافقين به بې له نوره څخه وي نو منافقان به دمؤمنانو دنور څخه په استفادې روان شي اوپدې حال کي به الله تياره اوهوارا واستوي چي دوی به پکي راايسارشي دخپلو پښو ځای به نه ويني نو به مؤمنانو ته وايي ﴿ انظُرُونَا نَقْتَبِسْ ... ﴾ هلته به ورته وويل شي: ﴿ قِيلَ ارْجِعُوا وَرَاءَكُمْ فَالْتَمِسُوا نُورًا ﴾ نو وبه ويل شي دوی ته (تمسخرًا) چي وګرزئ شا وو خپلو ته (په دنياکي) پسې ولټوئ رڼا (هلته چي دغه رڼا هلته مونده شي. ابوحيان وايي چي دوی ته خو معلومه ده چي دغه کسان رڼا نلري دغه ددوی ناهيلي ده ([1]) ﴿ فَضُرِبَ بَيْنَهُم بِسُورٍ لَّهُ بَابٌ ﴾ پس وبه وهل شي په مينځ ددغو (منافقانو او مؤمنانو کي) يو دېوال هغه لره به دروازه وي ﴿ بَاطِنُهُ فِيهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهُ مِن قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴾ دننه لوری (دهغې دروازې به چي دجنت خوادی) رحمت وي (مؤمنانو ته) اودباندي لوری دهغه (چي دکفارو منافقانو خوادی) له طرفه دهغه څخه به عذاب وي (چي اوردی. ابن کثير ليکي: چي دابه هغه دېوال وي چي دقيامت په ورځ به دمؤمنانو اوکفارو ترمينځ ووهل شي نو کله چي مؤمنان ورور سېږي له دروازې څخه به يې دننه شي اوچي ګردنوزي بيابه دروازه وتړل شي او منافقان به په حيرانتيا تياره اوعذاب کي پرېښودل شي ([2]) ﴿ يُنَادُونَهُمْ أَلَمْ نَكُن مَّعَكُمْ ﴾ غږبه وکړي (دغه منافقان) دغو (مؤمنانو) ته آيا نه وو موږ له تاسي سره ملګري په دنيا کي؟ (لمنځونه موکول له چي تاسو به کول روژې مو نيولې لکه چي تاسو به نيولې له تاسو سره به جمعي او جماعت لمنځونو ته حاضرېدلو په غزا ګانو کي مو درسره ګډون کاوو ﴿ قَالُوا بَلَىٰ وَلَٰكِنَّكُمْ فَتَنتُمْ أَنفُسَكُمْ ﴾ نو وبه وايي (مؤمنان دوی ته چي هو وئ مګر تاسو په فتنه کي اچولی وو ځانونه خپل (چي نفاق موکاوو) ﴿ وَتَرَبَّصْتُمْ ﴾ او انتظار کاوو تاسي (دآفتونو په مؤمنانو) ﴿ وَارْتَبْتُمْ ﴾ اوشک موکاوو تاسي (په اسلام کي) ﴿ وَغَرَّتْكُمُ الْأَمَانِيُّ ﴾ او غولولي تېرايستلي وی تاسي آرزوګانو خپلو (په پراخي درحمت دالله باندي) ﴿ حَتَّىٰ جَاءَ أَمْرُ اللَّهِ ﴾ ترهغه پوري چي راغی حکم امر دالله (چي ستاسي مرګ دی) ﴿ وَغَرَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ ﴾ او غولولي ياست تاسي (په کرم د) الله باندي غولونکي (چي شيطان لعين دی درته وايي چي: الله غفور رحيم دی عذاب به نه درکوي، قتاده وايي تر هغو به يې شيطان تېرباسي تر څوچي يې الله په اور کي وغورځوي ([3]) مفسرين کرام ليکي چي (غرور) د غين په زبر سره شيطان ته وايي ځکه چي هغه خلک تېرباسي او غولوي يې الله تعالى فرمايي ﴿ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا ﴾ وروسته الله تعالى فرمايي

---

([1]) البحر المحيط ۸/ ۲۲۱

([2]) دابن کثير مختصر ۳/ ۴۵۰

([3]) دخازن تفسير ۴/ ۳۴

﴿ فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنكُمْ فِدْيَةٌ وَلَا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ پس نن ورځ به وانه خیستل شي عوض فدیه له تاسي ځخه (ای منافقانو) اونه له هغو کسانو څخه چي کافران شوي وو (په الله تعالی او آیتونو یې، په حدیث شریف کي راځي چي الله تعالی به کافرته وایې: آیا که ستا ددنیا څوچنده مال دولت وای ددغي ورځي له عذاب څخه دژغورلو په بدل کي به دي ورکړي وو؟ هغه به ووایې هو نو الله جل جلاله به ورته وفرمایې: ماتردې ډېرداسانه چاري درڅخه غوښتنه کړي وه هلته چي ته لادآدم علیه السلام په ملاکي وې مګرتا ونه منله زماغوښتنه داوه چي له ماسره شریک ونه نیسی مګرتاونه منل اومشرک شوې (١) ﴿ مَأْوَاكُمُ النَّارُ هِيَ مَوْلَاكُمْ ﴾ ځای دورتلوستاسي (اوددوی ټولو) اور (ددوزخ) دی همغه (اورلائق او) ملګری ستاسي دی، ستاسي مرستندوی دی له ده پرته بل مرستندوی نشته دغه پردوی باندي تهکم دی ﴿ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴾ اوبدځای دورتلودی (دغه دوزخ). ځیني علماء کرام وایې: بختورسړی به په طمع نه تېروزي اونه به تمه کوي دچاچي هیلي زیاتي وي عمل به یې لږوي له اجل څخه به غافل اوبې پرواوي. (٢)

الله تعالی فرمایې:

﴿ أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَن تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن
قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴿١٦﴾ اعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ
الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿١٧﴾ إِنَّ الْمُصَّدِّقِينَ وَالْمُصَّدِّقَاتِ وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَاعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ
﴿١٨﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ أُولَٰئِكَ هُمُ الصِّدِّيقُونَ وَالشُّهَدَاءُ عِندَ رَبِّهِمْ لَهُمْ أَجْرُهُمْ وَنُورُهُمْ وَالَّذِينَ كَفَرُوا
وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ﴿١٩﴾ اعْلَمُوا أَنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَزِينَةٌ وَتَفَاخُرٌ بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ
فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ كَمَثَلِ غَيْثٍ أَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُونُ حُطَامًا وَفِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ
شَدِيدٌ وَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٌ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ ﴿٢٠﴾ سَابِقُوا إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا
كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أُعِدَّتْ لِلَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ
الْعَظِيمِ ﴿٢١﴾ مَا أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي أَنفُسِكُمْ إِلَّا فِي كِتَابٍ مِّن قَبْلِ أَن نَّبْرَأَهَا إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى
اللَّهِ يَسِيرٌ ﴿٢٢﴾ لِّكَيْلَا تَأْسَوْا عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوا بِمَا آتَاكُمْ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ﴿٢٣﴾
الَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٢٤﴾ لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ

---

(١) دالوسي تفسیر دصحاحو حدیث.
(٢) دقرطبي تفسیر

وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ
وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ وَرُسُلَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٢٥﴾ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا وَإِبْرَاهِيمَ وَجَعَلْنَا فِي ذُرِّيَّتِهِمَا النُّبُوَّةَ
وَالْكِتَابَ فَمِنْهُم مُّهْتَدٍ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴿٢٦﴾ ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلَىٰ آثَارِهِم بِرُسُلِنَا وَقَفَّيْنَا بِعِيسَى ابْنِ
مَرْيَمَ وَآتَيْنَاهُ الْإِنجِيلَ وَجَعَلْنَا فِي قُلُوبِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ رَأْفَةً وَرَحْمَةً وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ
إِلَّا ابْتِغَاءَ رِضْوَانِ اللَّهِ فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا فَآتَيْنَا الَّذِينَ آمَنُوا مِنْهُمْ أَجْرَهُمْ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴿٢٧﴾ يَا أَيُّهَا
الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَآمِنُوا بِرَسُولِهِ يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِن رَّحْمَتِهِ وَيَجْعَل لَّكُمْ نُورًا تَمْشُونَ بِهِ وَيَغْفِرْ لَكُمْ وَاللَّهُ
غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٨﴾ لِّئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَلَّا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ مِّن فَضْلِ اللَّهِ وَأَنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ
وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٢٩﴾ ﴾ الحديد: ١٦ - ٢٩

### مناسبت:

کله چي الله تعالی دمنافقینو او کفارو په دنیاباندي دتېروتني یادونه وکړه نو مؤمنانو ته یې تنبیه وفرمایله چي دهغوی په شان دي نه کېږي اونه دي هم داهل کتابو په څېرپه فاني دنیاباندي غولېږي وریسې دفاني کېدونکي دنیا لپاره مثالونه راوړي چي څرنګه یې په ظاهري ښکلا خلګ تېروزي دسورت پای یې دتقوی په فضیلت اودنېک عمل په بهتري راوړی اومؤمنانو ته درسول الله صلی الله علیه وسلم دپیروي اوزیات اجرتر لاسه کولو ښودنه کوي.

### لغتونه:

(یان) نژدې شوی (أنیٰ یأني) لکه (رمیٰ یرمي) غوندي دی اونژدې والي ته وایي (تخشع) چي نرم وو ېږېدل شي (الأمد) اجل اوموده ته وایي (یهیج) چي وچه اوزېړې ښکلایي ولاړه شي (حطاما) توټه توټه رژېدلي (کفلین) دکفل تثنیه وندي اوبرخي ته وایه شي.

### دنزول سبب:

کله چي مؤمنان مديني منورې ته راغلل دسو کاله ژوندانه اوعشرت خاوندان شول نوله ځیني هغو کارونو څخه چي پخوابه یې کول سست شول بیادغه آیت شریف نازل شو چي ﴿ أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَن تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ ﴾ ابن مسعود وایي زمونږ داسلام اودغه آیت دنزول ترمینځ چي مونږ الله تعالی ورباندي وترټلو یوازي څلور کاله موده وه ([1]).

---

([1]) أخرجه مسلم.

تفسير:

﴿أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَن تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ ٱللَّهِ﴾ آياندى راغلى وخت هغو كسانولره چي ايمان يې راوړى دى (دديې) چي وويريږي زړونه ددوى (له جهته) دذكرپند دالله نه؟ ﴿وَمَا نَزَلَ مِنَ ٱلْحَقِّ﴾ او(له جهته دهغه څېزچي نازل شوى له حق څخه (چي قرآن دى) ﴿وَلَا يَكُونُوا۟ كَٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلُ﴾ اوندي كېږي په شان دهغو كسانوچي وركړى شوى وو هغوى ته كتاب پخواله دې څخه (چي يهود اونصارا وو الله ورته تورات اوانجيل وركړى وو ﴿فَطَالَ عَلَيْهِمُ ٱلْأَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ﴾ (نواوږده شوه پر دوى باندي زمانه نوسخت شول زړونه ددوى) يعني اوږده شوه زمانه په مينځ ددوى اونبيانوكې تر څو چي زړونه يې دډبروپه شان او آن ترهغه لازيات سخت شول . ابن عباس وايې چي ﴿فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ﴾ معناداچي ددنيالوري ته كاږه اوله قرآني ارشاداتو اومواعظوڅخه يې څنګ وكړ ابوحيان يې بياداسي معناكوي چي كلك اوسخت شول چي خيرطاعت ورباندي اغيزه نه كوله مقصدتري دادى چي الله مؤمنان له دې څخه وېروي چي له قرآن سره داسي چلندونكړي لكه ديهودواوانصاراوو چي دوخت په تېرېدلويې زړونه سخت شول ﴿وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَٰسِقُونَ﴾ اوډېرله دوى څخه فاسقان نافرمانان دي(چي د خپل دين لاربنوونې نه مني ځكه چي زړونه يې سخت شوي دي. ابن كثيرليكي: معناداچي مؤمنان دي دپخوانيواهل كتابوپه دود نه كېږي كوم چي كتاب وركول شوخودوخت په تېرېدلوسره يې هغه په خپل لاس تحريف كړاوشاته يې وغورځاوو دخپلو احبارو اورهبانيانوپيروي يې وكړه نوزړونه يې سخت شول پنديې نه مانواونه به هم پرې وعد اووعيداغېز كاوو[1] ﴿ٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ يُحْىِ ٱلْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا﴾ پوه شئ تاسي (اى مؤمنانو) چي الله ژوندى كوي زرغونوي ځمكه وروسته له (وچوالي) له مړيني د هغې (په باران سره) دغه دمړوزړونو دژوندي كولو لپاره يوتمثيل دى چي دارنګه زړونه هم د قرآنكريم په تلاوت اوذكرسره ژوندمومي لكه چي وچه ځمكه يې په باران مومي. ابن عباس ﷺ وايې: سخت زړونه پدې سره نرمېږي اوخشوع خپلوي لكه څرنګه چي مړه زړونه په علم اوحكمت سره راژوندي كېږي[2] په البحرالمحيط كي كي راوړي داسي برېښي لكه چي دغه دي دزړونودنرمښت لپاره يوتمثيل وي چي څرنګه وروسته له سخت والي ذكرپكي تاثيركوي نولكه چي باران په وچه ځمكه كي اغېزكوي همداسي په ذكرسره هغه تښتېدلي زړونه بيرته راستنېږي اوخشوع طاعات پكي اثركوي[3] ﴿قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ ٱلْءَايَٰتِ﴾ په تحقيق ښكاره بيان كړي دي موږتاسي ته دلائل (دقدرت ، وحدت او عظمت خپل) ﴿لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ﴾ دپاره

---

(۱) دابن كثيرمختصر ۳ /۴۵۱

(۲) دخازن تفسير ۴ /۳۵

(۳) البحرالمحيط ۸ /۲۲۳

ددې چې تاسي عقل پکي وچلوی (دقرآن په احکامو کي تدبر وکړی) ﴿ إِنَّ ٱلْمُصَّدِّقِينَ وَٱلْمُصَّدِّقَٰتِ وَأَقْرَضُوا۟ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا ﴾ ببشکه خیرات ورکونکي سړي او خیرات ورکونکي ښځي اوهغه څوک چي قرضونه يې کړي دي له الله سره قرض ښک )يعني دالله د رضالپاره يې فقيرانو ته مالونه ورکړي اودالله په لاره کي يې دخيرښېګني لپاره په ښه نيت اوزړه باندي لګولي دي ﴿ يُضَٰعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ ﴾ دوچنده به کړشي دوی ته (ثواب دقرض ددوی) اووي به دوی ته اجرثواب ډېرلوی (چي جنت دی هره نېکي به يې يوپه لس وليکل شي اوجنت به يې نصيب شي . مفسرين کرام ليکي چي:(مصدقين) په اصل کي (متصدقين)وو تاپه صادکي مدغم شوه نو (مصدقين) جوړشواوقرض حسن هغه ته وايې چي په پاک نيت اودزړه له اخلاصه وي نولکه چي انسان پدغه عمل باندي له الله سره پورکړی وي چي په آخرت کي به يې دوراداکولووړ اومستحق وي ﴿ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦٓ ﴾ اوهغه کسان چي ايمان يې ژاوړی دی په الله (اوپه (ټولو) هغورسولانو د دغه (الله) بشپړايمان چي شک اوشبه ورته لاره نلري) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلصِّدِّيقُونَ ۖ وَٱلشُّهَدَآءُ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ (دغه کسان هم دوی دي ډېررښتوني اوشاهدان دي په نزددرب خپل) يعني دوی مؤمنان هغه کسان دي چي لوړومرتبوصديقيت اوشهادت في سبيل الله ته رسېدلي دي مجاهدوايې هرڅوک چي په الله او پيغمبرانوعليهم السلام ايمان راوړي هغه شهيد اوصديق دی([1]) ﴿ لَهُمْ أَجْرُهُمْ وَنُورُهُمْ ﴾ وي به دغو (مؤمنانوصديقانو) ته اجرددوی اورڼاددوی (چي په پُل صراط به وربانديي تېرېږي) څلااونوربه يې له مخي اوله ښي لوري څغلي ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَآ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَحِيمِ ﴾ اوهغه کسان چي کافران شوي دي او نسبت ددروغو يې کړی دی آياتونو زمونږته هغوی دي ياران ملګري ددوزخ (چي اصلاددوی لپاره جوړ شوی دی تل ترتله به پکې وي بيضاوي ليکي چي پدې آيت کي دادليل شته چي تل ترتله اوسېدل د کفارولپاره ځانګړی دی څکه چي دغه صيغه چي ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَحِيمِ ﴾ ده په دې دلالت کوي څکه چي صحبت په ملازمت کي وي([2]) کله چي الله تعالی دمؤمنانواوکافرانواحوال ذکرکړل له دې په وروسته يې د هغه څه يادونه کړي کوم چي ددنيا په حقارت اوسپکوالي ګواهي ورکوي فرمايي ﴿ ٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّمَا ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا لَعِبٌ ﴾ پوه شئ تاسي (ای اورېدونکو) چي ببشکه دغه ژوندون ددنياخوشي بې فائدې لوبي دي (چي خلګ پکي ببڅايه ستومانه کېږي لکه چي ماشومان په لوبوکي ځانونه ستړي کوي ﴿ وَلَهْوٌ ﴾ اوبېکاره عبث مشغولتيا ده (چي انسان دالله له طاعت اودآخرت څخه مشغولوي) ﴿ وَزِينَةٌ ﴾ اوښايست دی (چي ناپوهان وربانديي خان سينګار وي لکه ښې جامې ، شانداره دسورلی سامان اولوړي بنګلې اوماني

([1]) کبيرتفسير ۲۳۲/۲۹
([2]) دبيضاوي تفسير ۴۵۳/۳

﴿ وَتَفَاخُرٌۢ بَيْنَكُمْ ﴾ اوويار (فخر) لوبي كول دي په مينځ ستاسي كي يو په بل باندي (چي د مال ، اولاد ، د حسب اونسب په هكله يې كوى لكه چي شاعروايي:

اری اهل القصور اذا امیتوا * بنوا فوق المقابر بالصخور * ابوا الا مباهاة وفخرا * علی الفقراء حتی فی القبور(۱)

لنډه معنا داچي: بډايان كله چي ومري لاهم په بېوزلانو فقيرانو باندي لويي اوفخركوي هغه داچي په قبرونو باندي مرمريني لوحې لګوي ﴿ وَتَكَاثُرٌ فِي ٱلْأَمْوَٰلِ وَٱلْأَوْلَٰدِ ﴾ اوزيادت ډېروالى دى په اموالواو اولادكي، ابن عباس رضى الله عنهما وايي چي: مال له هغولاړو راټولوي چي دالله جل جلاله پكي ناخوښي وي اوبيا په اوليآء الله باندي په دغه مال سره لويي اوويار كوي اود الله په قهراونارضايي كي يې لګوي نوهمدغه تيارې سربېره په نورو تيارودي (ظلمات بعضهافوق بعض)(۲) ﴿ كَمَثَلِ غَيْثٍ أَعْجَبَ ٱلْكُفَّارَ نَبَاتُهُۥ ﴾ (داژوندون ددنيا په فناكېدلوكي) په مثل (دنباتاتو) دباران دي چي پرځمكي اوري ښه ښكاري (نا شكره) كروندګروته زرغونه ددغه (باران) ﴿ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَىٰهُ مُصْفَرًّا ﴾ بياوچه شي (داګياه) نوبه ويني هغه زېړ شوي (پس له شين والي دهغه) ﴿ ثُمَّ يَكُونُ حُطَٰمًا ﴾ بياشي هغه (وچ وابنه )مات تارپه تار(رژېدلي چي هرلوري ته يې باد الوزوي همداسي ددنياحال دى. قرطبي وايي مرادله (كفار) څخه دلته كروندګر دى ځكه چي دوى تخم په ځمكه كي پټوي ، دآيت معناداچي دغه دنيوي ژوندلكه كښت اوفصل غوندي دى چي كتونكى كروندګركله چي وورباندي په ښېوښېو باران اوري په ليدلوخوشحالېږي مګرلږڅه وروسته بيا ورژېږي كله چي كروندګراوكتونكي خوشحالوي هغه وخت په نهايت حسن اوجمال كي وي(۳) ﴿ وَفِي ٱلْءَاخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيدٌ وَمَغْفِرَةٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَرِضْوَٰنٌ ﴾ اوپه آخرت كي سخت عذاب دى (فجارولره چي آخرت ته يې شاكړه يوازي دنيايې غوره كړه) اومغفرت بښنه لويه ده له جانبه دالله او رضوان رضا خوښي ده (لپاره دابرارو چي مشغول شي په اُخروي چارو اودنياته شاكړي) ﴿ وَمَا ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَآ إِلَّا مَتَٰعُ ٱلْغُرُورِ ﴾ اونه دى دغه ژوند ددنيامګرمتاع اسباب دغرور غولېدلودى (چي غافلان ورباندي تېر وزي سعيدبن جبير رحمه الله وايي دنياهغه وخت دغرور اسباب دي چي كله دي دآخرت له طلب اولټولو راوګرزوي مګركه د آخرت لوري ته يې بېولې اودالله رضوان اوخوښي ته يې دعوت اوبلنه دركوله بيا ډېره ښه وسيله او خوندور اسباب دي(۴) كله چي يې دددنياحقارت اوسپكاوي بيان كړ وروسته يې د الله درضا او خوښي لوري ته هڅونه ، هغه رضوان چي دتلپاتي نېكمرغي اوسعادت سبب ګرزي داسي پيل كړه چي ﴿ سَابِقُوٓاْ إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ ﴾ تلوار وكړئ وځغلئ (اى مؤمنانو) طرف دمغفرت اوبښني ته چي له جانبه درب ستاسي ده يعني تلواروكړئ نېكواعمالوته چي دمغفرت موجب

(۱) دغه دوه بيتونه به ماله شيخ عبدالفتاح ابو غدة څخه اورېدلي الله دي عمرزيات كړي.
(۲) دامام رازي تفسير كبير ۲۹/ ۲۳۳
(۳) قرطبي تفسير ۱۷/ ۲۵۵
(۴) كبيرتفسير. ۲۹/ ۲۳۳

وي ، ابوحيان وايي چي دلته تعبيرپه لفظ د(سابقوا ) راغلی لکه چي دوی دمسابقې په ډګرکي وي اوديوتاکلي هدف لوري ته ځغلي معنادا چي دمغفرت اسبابوته وځغلئ چي ايمان اوطاعات دي[1] ﴿وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾ او(وکړئ ښه عملونه اوتلوار وکړئ وځغلئ تاسي ای مؤمنانو ) هغه جنت ته چي پلنوالی يې داسي دی لکه پلن والی دآسمان اوځمکي (چي دواړه سره يوځای شي) سدي وايې الله تعالی دجنت پلن والی (پسور) له اوو آسمانونواوو ځمکوله پلن والي (پسور) سره مشابه کړاوپدې کي شک نشته چي اوږدوالی يې ترپسورخورازيات دی[2] بيضاوي وايي چي پسوربې دغومره وي بيايې داوږدوالي په هکله څه ګمان کوی ؟[3] ﴿أُعِدَّتْ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ﴾ (داسي جنت ته چي) تيارکړی شوی دی دپاره دهغوکسانوچي ايمان يې راوړی دی په الله اوپه رسولانوددغه الله باندي مفسرين کرام ليکي چي: په آيت شريف کي ددې دليل شته‌چي جنت پيداشوی او موجود دی ځکه کوم څيزچي پيداشوی نه وي په تيارېدلونه ستايل کېږي چي ووېل شي چمتوشوی دی ﴿ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ﴾ دغه (موعودجنت، مغفرت، رضاء، لقاء ) فضل دالله دی چي عطاکوي يې هغه چاته چي اراده وفرمايې دعطايې (چي مؤمنان دي) اووربان‍دي ايجاب نه دی) ﴿وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ﴾ اوالله خاوندد عظيم فضل دی ﴿مَا أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ فِي الْأَرْضِ﴾ نه رسېږي هيڅ مصيبت آفت غم په ځمکه کي (لکه کاختي، زلزلې، دکښتونو آفتونه اود مېووتباهي) ﴿وَلَا فِي أَنفُسِكُمْ﴾ اونه ستاسي په ځانونوکي (له رنځونو، ببوزليو، دردونوکړاونو اوداولادونو له مړينو څخه) ﴿إِلَّا فِي كِتَابٍ مِّن قَبْلِ أَن نَّبْرَأَهَا﴾ مګرهغه خوليکلی شوی دی په کتاب (لوح محفوظ) کي پخواله هغه چي پيداکړی وي مونږ هغه (په دنياکي) په التسهيل کي ليکلی معناداچي ټولي چاري په لوح محفوظ کي ترپخواله ايجاده ليکلی شوي دي په حديث شريف کي راغلي چي: (ان الله خلق مقادير الاشياء قبل أن يخلق السماوات والأرض بخمسين الف سنة وعرشه على المآء) [4] ببشکه الله تعالی د ګردوشيانومقادير دآسمان اوځمکي ترپيدايښت پنځوس زره کاله پخواپيداکړي چي عرش يې په اوبودپاسه وو ﴿إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ﴾ (ببشکه دا(اندازه پخواله پيداکولو ) پرالله ډېره آسانه ده) يعني دغه اثبات سره له کثرته ددوی په الله جل جلاله ډېره آسانه ده که څه هم په بندګانوډېره سخته ده وروسته مونږ ته ددغي خبري چي ګردي پېښي په قضاوقدرباندي واقع کېدونکې دي حکمت بيانوي چي ﴿لِّكَيْلَا تَأْسَوْا عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ﴾ لپاره ددې چي تاسوخفه نشی پرهغه څه چي ستاسوله لاسه وتلي

---

([1]) البحرالمحيط ۸/ ۲۲۵
([2]) کبيرتفسير ۲۹/ ۲۳۴
([3]) بيضاوي ۳/ ۴۵۴
([4]) التسهيل لعلوم التنزيل ۴/ ۹۹

فوت شوي دي(له دنیوي نعمتونوڅخه) ﴿ وَلَا تَفْرَحُوا بِمَآ ءَاتَىٰكُمْ ﴾ اوخوشحاله نشی تاسي پرهغه څه چي تاسي ته یې درکړي وي (له دنیاوي سوکالیوپه خوشحالتیادکبراوغرور سره . مفسرین کرام کاږي چي مرادله خفګان څخه هغه خواشیني ده چي ناهیلي (قنوط) راولي اومرادله خوښي څخه بیاهغه دی چي غرور اوتکبرترې پیداکېږي څکه نوابن عباس رضي الله عنهما وایې چي هرڅوک خفګان او خوشحالي کوي مګرد مؤمن له خفګان سره صبروي اوله نعمت اوخوښي سره یې شکر(۱) څکه نوخیني عارفانوویلي: څوک چي دالله سِر( راز)دقدرپه هکله وپېژني نومصیبتونه ورته آسان شي(۲) حضرت عمر رضی الله عنه وایې: ماته چي هرمصیبت رسېدلی دړي نعمتونه مي پکي موندلي دي لومړی داچي هغه مصیبت به په دین کي نه وو، دوهم داچي هغه به ترخپل څان غټ نه وو، دریم داچي پوهیږم ببښکه په هغه باندي الله سترثوابونه اولوړاجرونه ورکوي ﴿ وَبَشِّرِ ٱلصَّٰبِرِينَ ٱلَّذِينَ إِذَآ أَصَٰبَتْهُم مُّصِيبَةٌ قَالُوٓا۟ إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّآ إِلَيْهِ رَٰجِعُونَ أُو۟لَٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَٰتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ ۖ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُهْتَدُونَ ﴾ ﴿ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ﴾ اوالله نه خوښوي هرمتکبر(په نعمت باندي) اوفخر کونکی (په نورو باندي) ور پسې الله ددغوناولیوکسانوخویونه داسي بیانوي ﴿ ٱلَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ ٱلنَّاسَ بِٱلْبُخْلِ ﴾ هغه کسان چي(همدوی پخپله) بخل کوي (له نفقي ورکولوفي سبیل الله) او(هم) امرکوي خلګوته په بخل سره (چي کنجوسي ته یې هڅوي) ﴿ وَمَن يَتَوَلَّ ﴾ اوهرهغه چي مخ یې وګرزاوو (له انفاق کولوڅخه) ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْغَنِىُّ ٱلْحَمِيدُ ﴾ (نوببښکه الله همغه غني بې پروا په صفتونوسره ښه ستایلی شوی دی) یعني الله له دوی اوددوی له انفاق څخه مستغني اوبې پروادی پخپلوصفاتوښه ستایلی شوی دی نه د چامځ ګرزول له شکره څخه ورته ضرر رسوي اونه هم دچاطاعت عبادت ورته ګټه رسوي پدې کي وعیداوتهدید نغښتی دی ﴿ لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِٱلْبَيِّنَٰتِ ﴾ (خامخاپه تحقیق لېږلي وومونږ پیغمبران خپل سره له ښکار وودلائلو) لام دقسم لپاره توطیه معنادا چي قسم دی مونږ خپل پیغمبران په څرګندو دلائلواوکوتلي براهینوسره را استولي ﴿ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْمِيزَانَ ﴾ (اونازل کړی وو مونږ له هغوی سره کتاب اومېزان تله(دعدل) یعني مونږ له دوی سره آسماني کتابونه نازل کړي وو چي دبشر دښېګړغي اوسعادت ضامن وو اوهغه قانون چي دخلګوترمینځ به ورباندي حکم کېدومونږ را استولی ووخینو مفسرینو دمېزان معنی په عدل سره کړي ابن زیدلیکي مېزان هغه څه دي چي ورباندي تول کېږي اودخلګوترمینځ ورباندي تعامل کېږي ﴿ لِيَقُومَ ٱلنَّاسُ بِٱلْقِسْطِ ﴾ لپاره ددې چي ودرېږي خلګ په انصاف باندي (پخپلو معاملاتو کي) ﴿ وَأَنزَلْنَا ٱلْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ ﴾ اوراليږلي ده مونږ او سپنه چي پدې کي سخت جنګ دېرقوت دی (ګرد جنګي آلات اسباب له دې څخه تیارېږي لکه زغري، دالونه،

(۱) دقرطبي تفسیر۱۷/ ۲۵۸

(۲) کبیرتفسیر۲۹/ ۲۳۹

شوبلي ، تانګونه اونور ﴿ وَمَنَٰفِعُ لِلنَّاسِ ﴾ اوپکي دېر منافع ګټي دي دپاره دخلګولکه د کرکیلي لپاره تراکتوران ، چاړې، تبرونه اونور لنډه داچي هيڅ سامان به نه وي چي اوسپنه پکي کارول شوي نه وي . ابوحيان وايي چي الله تعالى داوسپني له پيدايښت څخه په انزال تعبيروفرمايولکه چي د حيواناتوپه هکله يې فرمايلي ﴿ وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ ٱلْأَنْعَٰمِ ثَمَٰنِيَةَ أَزْوَٰجٍ ﴾ ځکه ټول اوامر اواحکام څرنګه چي له آسمانه راځي نوبې دګردوپه هکله نزول وفرمايواومقصد له وسپني څخه دهغې معدنونه او کانونه دي لکه چي جمهور مفسرينو ليکلي دي(١) ﴿ وَلِيَعْلَمَ ٱللَّهُ مَن يَنصُرُهُۥ وَرُسُلَهُۥ بِٱلْغَيْبِ ﴾ اولپاره ددې چي عالم شي الله (په علم ظاهري سره) په هغه چاباندي چي مرسته کوي له ده اورسولانودده سره په غيبو(بې ليدلو) دغه په مقدرمحذوف باندي عطف دی يعني مونږ اوسپنه ددې دپاره رالېږلي ده چي مؤمنان دهغې په وسيله له دښمنانوسره وجنګېږي اودالله دکلمې دلوړتيالپاره جهادوکړي او هغه څوک کوم چي دده ددين اوپيغمبرانومرسته کوي په وسلو، تورو او نېزو استعمالولو باندي جهادکوي اومؤمنان بالغيب وي الله ته په علم ظاهري سره معلوم شي. ابن عباس وايي معناداچي سره له دې چي الله جل جلاله يې ليدلى نه وي مګردهغه ددين اوپيغمبرانومرسته کوي(٢) وروسته الله تعالى فرمايي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴾ بېشکه الله دېرقوي دی، ښه غالب دی)يعني قوي دی په انتقام اخيستوله دښمنانواوښه غالب دی څوک درباندي زوروركېدای نشي ترهرچاپه قدرت اوعزت کي لوړ دی. بيضاوي وايي: معناداچي قوي دی په هلاکولودهغه چاچي دهلاکولو اراده يې وکړي زبردست الله دی چي دچامرستي ته اړنه دی، دجهادامريې ددې لپاره مؤمنانوته کړی ترڅوچي دثواب مستحق شي، ابن کثيروايي: دآيت معناداچي اوسپنه يې دهغه چاډټکولو لپاره چي څوک حق نه مني اوله دليل او حجت څخه وروسته هم دحق دښمني کوي رالېږلي ځکه نورسول الله صلى الله عليه وسلم ديرلس کاله په مکه مکرمه کي تېرکړل سورتونه به ورته رانازلېدل اودوی ته به يې دلائل اوبراهين وړاندي کول او کله چي په مخالفينوباندي حجت ودرول شونوالله تعالى دهجرت کولو حکم صادراومؤمنانوته يې له کفاروسره دقتال اوجهادکولو امروفرمايوترڅود کفارو ورمېږونه په تورو غوڅ کړي ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: زه دقيامت په مخ کي په توره رااستولی شوی يم زماروزي دنېزې تر سيوري لاندي ده سپکتيا اوخواري دهغه چاده چي زمادحکم مخالفت وکړي څوک چي له چاسره مشابهت کوي دهغوی له ډلي څخه دی(٣)بياالله فرمايي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴾ بېشکه الله قوي زورور دی)هرچاته چي وغواړي مرسته ورکوي پرته له دې چي خلګوته دي محتاج وي اوجهاديې دازمويښت لپاره رواکړی دی چي ځيني په ځينونورو وازمويي (٤) ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا وَإِبْرَٰهِيمَ وَجَعَلْنَا فِى ذُرِّيَّتِهِمَا ٱلنُّبُوَّةَ وَٱلْكِتَٰبَ ﴾

---

(١) البحر المحيط ٨ / ٢٢٢

(٢) دجلالين تفسير ٤ / ١٧٢

(٣) أخرجه احمد وابو داؤد.

(٤) دابن کثير مختصر ٣ / ٤٥٥

اوخامخا په تحقيق لېږلي وو موږ نوح اوابراهيم اوګرزولي وو موږ په اولاده د دغه (نوح اوابراهيم) کي نبوت پيغمبري ، لکه چي څلور کتابونه ؛ تورات ، زبور ، انجيل اوقرآن مود دوی په اولادنازل کړی اوداچي نوح اوابراهيم عليهما السلام بې په ځانګړي توګه يادکړل ترڅو چي د دوی په يادولوددوی درناوی اوتشريف وښيي اوددوی دستايلي خويونوخاطره تلپاتي خوندي کړي ﴿ فَمِنْهُم مُّهْتَدٍ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَٰسِقُونَ ﴾ نوځيني له دوی (دنوح اوابراهيم له اولادې) لار موندونکي دي اوډېرله دوی څخه فاسقان نافرمانان وتونکي دي (له حقي لاري څخه) ﴿ ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِم بِرُسُلِنَا ﴾ بيا وروسته ولېږل موږ په آثاروقدمونودهغوی باندي نور رسولان خپل (موسی، الياس، داؤد، سليمان ، يونس اونورعليهم السلام ﴿ وَقَفَّيْنَا بِعِيسَى ٱبْنِ مَرْيَمَ ﴾ او وروسته راووست موږ عيسی زوی دمريمي (څکه هغه دبني اسرائيلو وروستنی پيغمبر وو ) ﴿ وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْإِنجِيلَ ﴾ او ورکړ موږ ده ته انجيل (هغه کتاب چي دمحمدصلی الله عليه وسلم په هکله پکي زېری شته ) ﴿ وَجَعَلْنَا فِى قُلُوبِ ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُ رَأْفَةً وَرَحْمَةً ﴾ (اوګرزولي وو موږ په زړونودهغوکسانوکي چي ددغه عيسی متابعت بې کړی وونرمي اورحمت مهرباني) يعني دده د اتباعو حوارييونو په زړونوکي شفقت اونرمي وه لکه چي د سيدنارسول الله دااصحابو ستاينه کوي چي ﴿ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ ﴾ [1] ﴿ وَرَهْبَانِيَّةً ٱبْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَٰهَا عَلَيْهِمْ ﴾ اوپيداکړی وودوی له ځانه رهبانيت (ترک ددنيا ) چي نوی بې له ځانه جوړکړی وو دوی هغه ؛ نه وو مقررکړی موږ دغه (رهبانيت) په دوی باندي (اونه موفرض کړی وو ) ابو حيان وايي رهبانيت داچي ښځه به بې نه لرله ددنيالذتونه بې نه خپلول اوتکيه خاني به بې داعتکاف ځای وې د (ابتدعوها )معناداچي له ځانه بې نوي جوړکړي وو[2] ﴿ إِلَّا ٱبْتِغَآءَ رِضْوَٰنِ ٱللَّهِ ﴾ (دوی غوره کړی وو رهبانيت) لپاره دخوښي دالله) يعني موږ په رهبانيت ورته حکم نه ووکړی بلکه دوی له خپله ځانه داالله دخوښي لپاره غوره کړی وواستثناء دلته منقطع ده ﴿ فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا ﴾ پس ونکړ دوی رعايت ددې لکه چي حق درعايت بې وو. ابن کثيروايي : دغه ددوی له خواوودبدي څرګندبدل دي يودا چي دوی په دين کي بدعت راوړی بل داچي دوی هغه دغسي لکه چي دثواب ګمان بې کاووترسره نکړ [3] په حديث شريف کي راځي : ( لكل أمة رهبانية ورهبانية أمتى الجهادفي سبيل الله ) هرامت ته رهبانيت شته زمادامت رهبانيت في سبيل الله جهاددی [4] ﴿ فَـَٔاتَيْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنْهُمْ أَجْرَهُمْ ﴾ پس ورکړ موږ هغوکسانوته چي ايمان بې راوړی وو(په محمدصلی الله عليه وسلم) له هغوڅخه اجرثواب ددوی (څو چنده) ﴿ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَٰسِقُونَ ﴾

---

[1] التسهيل لعلوم التنزيل ۴ / ۱۰۰
[2] البحر المحيط ۸ / ۳۲۸
[3] ابن كثير ۳ / ۴۵۶
[4] أخرجه امام احمد.

او د پرله دوی څخه فاسقان نافرمانان دي يعني د بر نصارا دالله د طاعت له حدودو وتلي او د محارمو خيال نه ساتي لکه چي الله فرمايي ﴿ إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ﴾ (التوبة ۳۴) ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَآمِنُوا بِرَسُولِهِ ﴾ ای هغو کسانو چي ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو پرپخوانيو انبياوو) و وېرېږئ تاسي له الله (په امتثال داوامرواو اجتناب له نواهيو څخه) او ايمان راوړئ پر رسول د دغه الله (چي محمد دی) يعني په ايمان ثابت او ټينګ اوسئ ﴿ يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِن رَّحْمَتِهِ ﴾ چي درکړي تاسي ته دوی حصې له رحمته خپله ﴿ وَيَجْعَل لَّكُمْ نُورًا تَمْشُونَ بِهِ ﴾ او چي وګرزوي تاسي ته يوه رڼا چي تلل به کوي په هغې سره (په آخرت کي په پل صراط باندي) ﴿ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ﴾ او وبښي تاسي ته (ګناهونه ستاسي) ﴿ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ او الله ښه مغفرت کونکی د خطيئاتو) د ېر رحم کونکی دی ﴿ لِّئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَلَّا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ مِّن فَضْلِ اللَّهِ ﴾ لپاره ددې چي وپوهېږي اهل کتاب (په دې) چي قادران نه دي دغه (منکران) په هيڅ شي له فضل دالله نه يعني مونږ ددغه بيان په هکله څکه مبالغه وکړه چي اهل کتاب پدې وپوهېږي چي دالله فضل پردوی پسي ځانګړی نه دی او نه هم رسالت او نبوت پدوی کي حصر دی د(لا) توری په (لئلا) کي زائد دی او معنا يې داچي (ليعلم). مفسرين کرام ليکي: اهل کتابو به ويل چي: وحی او رسالت په مونږ پسي ځانګړی او کتاب او شريعت په مونږ پسي خاص دی الله مونږ پر دغه فضيلت باندي نازولي يو نو الله په دغه آيت باندي ددوی ترديد وفرمايو ﴿ وَأَنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ ﴾ او (چي عالمان شي دغه منکران پدې) چي ښبشکه فضل او بهتري په يد (بلاکيف) دالله کي ده ورکوي يې هرهغه چاته چي اراده وفرمايي (دورکولو يې) يعني دنبوت ورکولو، هدايت او ايمان راوړلو چاري دالله په لاس کي دي له مخلوق څخه يې چي هرچاته خوښه شي په هغه يې لوروي ﴿ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴾ او الله خاوند دفضل د ېرلوی دی.

بلاغت: پدې سورت کي چي دبيان او بديع کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱ – د طباق صنعت لکه چي د ﴿ الْأَوَّلُ ﴾ او د ﴿ وَالْآخِرُ ﴾ او د ﴿ وَالظَّاهِرُ ﴾ ﴿ وَالْبَاطِنُ ﴾ ترمينځ شته.

۲ – مقابله کله چي فرمايي ﴿ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا ﴾ او داچي ﴿ وَمَا يَنزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ﴾ ترمينځ راغلي ده.

۳ – ردالعجز على الصدر پدې کلام کي چي ﴿ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ ﴾ چي بديعي محسنات دي.

۴ - حذف بالایجازکله چي فرمايي ﴿ لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ ﴾ چي دغه جمله دلندون لپاره تري حذف شوي چي (ومن أنفق من بعد الفتح وقاتل ) دغه ددې لپاره چي كلام وربانديي دلالت كوي اودغه ته (حذف بالايجاز) وايي.

۵ - لطيفه استعاره پدې كلام كي ﴿ لِيُخْرِجَكُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ﴾ يعني ترڅوو باسي تاسي له تاريكيودشرک څخه نوردايمان ته نودلته يې دظلمات كلمه دكفراوضلالت لپاره استعاره راوړه اودنوركلمه يې بيادايمان اوهدايت لپاره چي دغه پخواهم تېرشوي دي

۶ - تمثيلي استعاره چي فرمايي ﴿ مَّن ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا ﴾ دهغه چامثال چي خپل مال دالله په لاره كي دالله درضالپاره لګوي الله ته پور وركونكى وباله هغه پورچي واجب الاداء وي اودغه دتمثيلي استعارې په توګه راغلى دى.

۷ - تهكمي اسلوب لكه پدې آيت كي ﴿ مَأْوَاكُمُ النَّارُ ۖ هِيَ مَوْلَاكُمْ ﴾ يعني ستاسوبل مرستندوى نشته مګردوزخ او ردي دغه پردوى باندي استهزاء اوتهكم دى.

۸ - لطيفه مقابله د ﴿ بَاطِنُهُ فِيهِ الرَّحْمَةُ ﴾ اود ﴿ وَظَاهِرُهُ مِن قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴾ ترمينځ راغلي ده.

۹ - تمثيلي تشبيه پدې آيت كي چي فرمايي ﴿ كَمَثَلِ غَيْثٍ أَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا ﴾ ځكه وجه دشبه له متعدد څخه اخيستل شوي نوتمثيلي تشبيه يې ګڼلاى شو.

۱۰ - ناقص جناس لكه ﴿ لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا ﴾ چي دځينوتورو دشكل په تغيرموندل كېږي

۱۱ - لكه پېيلي ملغلري غوندي مرصع سجع چي فرمايي: ﴿ وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ ﴾.

اويادغه الهي ويناچي ﴿ فَضُرِبَ بَيْنَهُم بِسُورٍ لَّهُ بَابٌ بَاطِنُهُ فِيهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهُ مِن قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴾ اودغه په قرآن كريم كي زښته ډېرځايه راغلي ده.

دالله په مرسته دالحديد سورت تفسيراوژباره بشپړه شوه

***

## د (المجادلة) سورت مدني او دوه ويشت آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

دالمجادلې سورت مدني اوتشريعي احكام پکې راځي لکه دظهارکفارت چي په مظاهرباندي اوري همدغسي دتناجې حکم اودمجالسواوياد رسول الله صلى الله عليه وسلم سره دليده کاته په وخت کي دصدقې وړاندي کول اوداچي دالله له دښمنانوسره دي مينه ونکړای شي اوداسي نوري خبري چي ديهودانواومنافقانو څخه غږېږي.

سورت په پيل کي د(خولة بنت ثعلبة) کيسه رااخلي چي مېړه يې ورسره ظهارکړی ووهغه چي د جاهليت له دودسره سم به ښځه له ظهارڅخه حرامېدله نو(خولة) رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغله دخپل خاوندظلم يې ورته بياناوو ويل يې: ای دالله استازي ! زمامال دولت يې وخوړ ځواني مې خاوري کړه لړمون يې راوشيندل آن تردې چي زه بوډۍ شوم اواولاد زېږولونه يم نو يې ظهار راکړ. رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وويل: ماته داسي معلومېږي چي ته وريباندي حرامه شوي يې ! هغې به بياناري سورې پيل کړې ويل به يې: (ای رسول الله ماته يې طلاق نه دی راکړی يوازي ظهاريې کړی دی رسول الله صلى الله عليه وسلم به پخوانۍ خبره ورته تکراروله نوهغې وويل: ای الله زه تاته خپل شکايت وړاندي کوم ! الله يې دعاومنله اوتکليف يې آسانه کړچي ويې فرمايل ﴿ قَدْ سَمِعَ ٱللَّهُ قَوْلَ ٱلَّتِي تُجَٰدِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِيٓ إِلَى ٱللَّهِ وَٱللَّهُ... ﴾ دآيتونوترپايه پوري.

وروسته دظهاردکفارت حکم پکي راځي چي فرمايي: ﴿ ٱلَّذِينَ يُظَٰهِرُونَ مِنكُم مِّن نِّسَآئِهِم مَّا هُنَّ أُمَّهَٰتِهِمْ إِنْ أُمَّهَٰتُهُمْ إِلَّا ٱلَّٰٓـِٔي وَلَدْنَهُمْ وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنكَرًا مِّنَ ٱلْقَوْلِ وَزُورًا وَإِنَّ ٱللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ... ﴾ د آيتونوترپايه.

له دې په وروسته دتناجې په هکله هغه چي ددووتنوترمينځ پټي خبري وي بيان راوړي دغه خوی به ديهودانواومنافقانووچي ديوبل په غوږکي به يې پټي خبري کولې ترڅومؤمنان وځوروي نوددغسي خواله اورازونوويل يې وغندل اومؤمنان يې له داسي کولوڅخه ووېرول چي ددې کارعواقب اوانجام نيمه خوادی ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ مَا يَكُونُ مِن نَّجْوَىٰ ثَلَٰثَةٍ إِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ... ﴾ ترپايه.

بياله ملعونويهودانوڅخه غږېږي هغوی چي درسول الله مجلس ته به راتلل اوداسي ژوولی سلام به يې کاووچي په ښکاره به سلام معلومېدو خوپه حقيقت کي به ښکنځل وولکه چي ويل به يې (السام عليک يامحمد ! ددوی به له دغي خبري څخه مقصدمرګ وويعني پرتادي مرګ وي (العياذبالله) الله يې داسي انځوروي ﴿ وَإِذَا جَآءُوكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ ٱللَّهُ... ﴾.

بياهمداسي له منافقينوڅخه په تفصيل سره غږېږي هغوى چي يهودان يې په ملګرتيانيولى وو له هغوى سره يې مينه اومحبت درلود دمسلمانانورازونه به يې هغوى ته لېږدول نوالله ددوى له ناولي اعمالوڅخه پرده پورته کړه اوويې فرمايل: ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِم ... ﴾ دآيتونو ترپايه.

دسورت په پاى کي الله تعالى دمحبت في الله اوبغض فى الله حقيقت بيانوي همدغه دايمان نښه اوددين ټينګ ځنځېردى دايمان په بشپړتوب کي دکفاروسره دښمني کول خوراداهميت ورخبره ده نوفرمايي: ﴿ لَا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ أُولَٰئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ ... ﴾ دسورت ترپايه پوري

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِي إِلَى اللَّهِ وَاللَّهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ (۱) الَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنكُم مِّن نِّسَائِهِم مَّا هُنَّ أُمَّهَاتِهِمْ إِنْ أُمَّهَاتُهُمْ إِلَّا اللَّائِي وَلَدْنَهُمْ وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُورًا وَإِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ (۲) وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِن نِّسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا ذَٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ (۳) فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا فَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا ذَٰلِكَ لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ (۴) إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ كُبِتُوا كَمَا كُبِتَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَقَدْ أَنزَلْنَا آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ مُّهِينٌ (۵) يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا أَحْصَاهُ اللَّهُ وَنَسُوهُ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ (۶) أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ مَا يَكُونُ مِن نَّجْوَىٰ ثَلَاثَةٍ إِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ إِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ وَلَا أَدْنَىٰ مِن ذَٰلِكَ وَلَا أَكْثَرَ إِلَّا هُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوا ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ (۷) أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ نُهُوا عَنِ النَّجْوَىٰ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا نُهُوا عَنْهُ وَيَتَنَاجَوْنَ بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُولِ وَإِذَا جَاءُوكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ اللَّهُ وَيَقُولُونَ فِي أَنفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا اللَّهُ بِمَا نَقُولُ حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ الْمَصِيرُ (۸) يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَنَاجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَاجَوْا بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُولِ وَتَنَاجَوْا بِالْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ (۹) إِنَّمَا النَّجْوَىٰ مِنَ الشَّيْطَانِ لِيَحْزُنَ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَيْسَ بِضَارِّهِمْ شَيْئًا إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ (۱۰) ﴾ المجادلة: ۱ ــ ۱۰

**لغتونه:**

(تحاوركما) ستاسي دواړوخبري محاوره يوله بله خبري اتري کول له حورڅخه اخيستل شوى چي رجوع ته وايي اوپه مأثوره دعاووکي راغلي چي (نعوذبالله من الحوربعدالکور) عنتره دخپل آس په هکله داسي وايي:

لوکان يدري ماالمحاورة اشتكى * ولكان لو علم الكلام مكلمي.

که پدې پوهېدای چې محاوره څه ده ؟ نو بيا يې شکايت کړی وواوکه په خبرو پوهېدای راسره به ګرېدلی وو (يظاهرون) ظهار له ظهر څخه مشتق دی وايې (ظاهرمن امرأته) کله چې داسي ويناوکړي چې ورته ووايې ته په ما باندې لکه د مور شاداسي حرامه يې ! (منکرا) منکرهرناولي کار ته وايې چې شريعت يې حرام بولي اوترې کرکه کوي دغه د معروف ضد دی (يحادون) چې دښمني کوي محادات مخالفت او دښمني ته وايه شي. زجاج ليکي چې (محادّة ) دې ته وايې چې ته د خپل ملګري له حد څخه په مخالف حد کې يې او اصل يې له ممانعت څخه اخيستل شوی دی (کبتوا) مقهور شوي کبت قهرته وايې (نجوی) د دوو يا زياتو کسانو ترمينځ پټې خبرې کول دي (حسبهم) کافي دی دوی ته.

د نزول سبب:

أ- روايت کېږي چې (خولة بنت ثعلبة) د أوس بن صامت مېرمن يوه ورځ چې خاوندېې ورڅخه د کوروالي غوښتنه وکړه هغې ونه منل نومېړه ته يې قهر ورغی ورته يې د ظهار ويناوکړه (خولة) رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغله اوورته يې وويل چې اوس يې له ماسره ظهار کړی دی وروسته له هغه چې زه بوډۍ شوم هډوکي مې ناتوانه شول زماورې نجوني دده لوني دي که يې ده ته ورپرېږدم نوهغوی له مينځه ځي اوکه يې له ځانه سره بيايم وږې کېږي نوته څه حکم کوې؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل: ماته داسي معلومېږي چې ته وربانديې حرامه شوي يې ! هغې ورته وويل: قسم دی چې طلاق يې نه دی يادکړی هغه زما داولادو نو پلار دی پرما ترګردو خلګو ګران دی ! رسول الله به خپله وينا تکرارکړه چې (ماته داسي معلومېږي چې ته وربانديې حرامه شوي يې) هغې به بيا خپلې خبرې تکرارولې ترهغوبې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه د حکم پوښتنه کوله څو چې نازل شو: ﴿ قَدۡ سَمِعَ ٱللَّهُ قَوۡلَ ٱلَّتِي تُجَٰدِلُكَ فِي زَوۡجِهَا وَتَشۡتَكِيٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ د آيتونو تر پايه ([1]).

ب – بخاري له حضرت عائشې رضی الله عنها څخه روايت کوي چې هغې وويل: تبارک وتعالی ديرکت خاوند دی هغه ذات چې د ګردو خلګو آوازونه اوري (خولة بنت ثعلبه) رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغله زه دانګړ په يوه کونج کي ناسته وم چې دد ې ځيني خبرې مې اورېدې اوځيني نورې مې نشوای اورېدلای هغې د خپل خاوند شکايت رسول الله ته کاوو.ويل يې زما ځواني يې رابربادکړه ماخپل لړمون ورته غوړولی وو تردې پورې چې زه بوډۍ شوم نور د اولاد زېږولو نه يم نويې (ظهار) راکړ؟ الهي زه تاته خپل شکايت وړاندې کوم هغه ووچې حضرت جبريل عليه السلام ددې آيتونو په راوړلو سره راورسېدو ([2]).

تفسير:

﴿ قَدۡ سَمِعَ ٱللَّهُ قَوۡلَ ٱلَّتِي تُجَٰدِلُكَ فِي زَوۡجِهَا ﴾ (په تحقيق اورېدله الله خبره د هغې (ښځې) چې سوال اوځواب يې کاوو له تاسره په شان د خپل خاوند کې)(قد ) يوازې په افعالو داخلېږي اوکله چې له ماضي سره راشي نو د تحقيق افاده کوي خوله مضارع سره راتلل يې د تقليل معنا ورکوي چې ووايې

([1]) د صاوي حاشيه په جلالين باندې ۴/ ۱۷۹
([2]) أخرجه البخاري وابن ماجه والبيهقي

(قديجودالبخيل) بخيل هم كله كله دسخا لاس اوږدوي اوياداچي (قدينزل المطر) كله به باران واوري زمخشري ليكي چي مقصدله اوربدلو دوينادهغې څخه ددعامنل اواجابت دی يوازي دالله علم ترې مرادنه دی اوددې مثال هغه دلمونځ كونكي دوينا په څېردي كله چي وايې (سمع الله لمن حمده) (١)﴿وَتَشْتَكِىٓ إِلَى ٱللَّهِ﴾ اوشكايت يې كاوو طرف دالله ته (په عاجزي سره چي مشكل يې حل كړي) ﴿وَٱللَّهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَآ﴾ اوالله اوربده سوال اوځواب ستاسي (چي هغې څه درته وويل اوتاڅرنګه ځواب وركړ؟) ﴿إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌۢ بَصِيرٌ﴾ بېشكه چي الله ښه اوربدونكى دى (چي څوک ورته مناجات اوزارى كوي) ښه كتونكى دى (داعمالودبندګانو؛ دغه لكه دماقبل تعليل غوندي دی پورتنی دواړه صيغې دمبالغې دي(٢) وروسته الله دظهارناسم والى بيانوي دهغه حكم اودفاعل جزايې داسي څرګندوي فرمايې ﴿ٱلَّذِينَ يُظَٰهِرُونَ مِنكُم مِّن نِّسَآئِهِم مَّا هُنَّ أُمَّهَٰتِهِمْ﴾ (هغه كسان چي ظهاركوي(مورروايي) له تاسي څخه خپلوښځوته نه كېږي دغه ښځي (په بللوددوی سره) ميندي ددوی )يعني هغه كسان چي خپلومېرمنوته وايې چي (تاسي پرمونږ باندي لكه دميندوشاګاني دغسي ياست) چي ددوی مقصدپه دې سره دهغوی تحريم وی دغه په حقيقت كي ددوی ميندي نه بلكه ددوی ښځي دي ، امام رازي ليكي چي(ظهار) عبارت دمېږه له هغې ويناڅخه دی چي خپلې ښځي ته ووايې چي: ته پرماباندي لكه د خپلې مورشاغوندي يې) معنادا چي په تاباندي زماپورته كېدل (ختل) لكه پخپله موردغسي دي ، عرب دطلاق په هكله وايې له خپلي ښځي كښته شوم مقصديې داوي چي طلاق مي وركړنوله دغه لفظ څخه دهغې دجماع (كوروالي) تحريم دی ځكه چي له مورسره يې تشبيه كړي ده اوداچي فرمايې (منكم) دغه دعربولپاره توبيخ دی ځكه دغه ظهاردجاهليت دوختونوله ځانګړي لورو(قسمونو) څخه وولـه دوی پرته بل چادغسي لوړه نه ده اخيستي (٣)﴿إِنْ أُمَّهَٰتُهُمْ إِلَّا ٱلَّٰٓـِٔى وَلَدْنَهُمْ﴾ نه دي ميندي ددوی مګرهغه ښځي دي چي دوی يې زېږولي دي ؛ دغه دلومړني لپاره تاكيددی چي فرمايلي يې وو ﴿مَّا هُنَّ أُمَّهَٰتِهِمْ﴾ اودزيات بيان اوتوضيح لپاره راغلی دی ﴿وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنكَرًا مِّنَ ٱلْقَوْلِ وَزُورًا﴾ اوبېشكه خامخادوی وايې يوه خرابه (خبره) له خبري اودروغ وايې (چي حقيقت اوشريعت يې نه مني) ﴿وَإِنَّ ٱللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ﴾ اوبېشكه الله خامخاښه عفوكونكى ښه مغفرت كونكى دی هغه چاته چي توبه وباسي اوالله ته رجوع وكړي په التسهيل كي راوړي چي ظهاريې منكراودروغ ونوماوو ځكه چي منكرهغه دی چي حقيقت نلري اودروغ يې ځكه وبلل چي (مظاهر) خپله ښځه مورنوموي او هغه دغسي نه ده ظهارله څلورو وجوهاتو حرام دی يوداچي دالله داوينا ﴿مَّا هُنَّ أُمَّهَٰتِهِمْ﴾ دغه د (مظاهر) تكذيب دی دوهم داچي (منكر) يې وبالو دريم داچي (زور) يې وګڼه ، څلورم داچي په پای كي يې وفرمايل

(١) كشاف ٤/ ١٥٠
(٢) دابو السعود تفسير
(٣) كبيرتفسيرپه لندون سره ٢٩/ ٢٥١

﴿ وَإِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ ﴾ څکه عفو او مغفرت وروسته له ګناه څخه وي، دغه ګناه تر هغو پوري له مظاهر سره ملګري ده څوچي کفاره يې اداکړي، ورپسې بيا الله تعالی دکفارې بيان داسې فرمايي ﴿ وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِن نِّسَآئِهِمْ ﴾ او هغه کسان چي (موروالی) ظهار کوي له ښځو خپلو نه ﴿ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُواْ ﴾ بيا راګرزي دوی (ماتولود) هغې خبري ته (چي ويلي يې وي) پښېماني څرګنده کړي غواړي چي بيرته يې خپلې ارتيني کړي ﴿ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَآسَّا ﴾ نو لازم دی دوی ته آزادول دمريي پخوا دهغه چي يو بل سره مسه کړي (په وطی کولو سره) تماس له جماع او دهغې له دواعيو څخه کنايه ده دواعي دجمهورو په نزد لکه مچول او لاس اچول دي. خازن ليکي چي مراد له تماس څخه (جماع) کول دي مظاهر ته روانه دي چي پخوا تر کفارې ورکولو له ښځي سره (کوروالی) وکړي (١) قرطبي وايي چي مظاهر ته پخوا له کفارې اداکولو مجامعت روانه دی او که يې وکړ نو بيا ګنهګار او کفاره يې په ذمه پاتي کيږي او مجاهد بيا وايي چي په دغسې حالت کي دوه کفارې ورباندي اوړي (٢) ﴿ ذَٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِۦ ﴾ دغه (حکم په کفارت سره ) پند درکاوه شي تاسي ته په دغه (حکم) سره (چي ظهار پريږدئ او بيا دغسې مکړئ) ﴿ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ او الله په هغه څه چي تاسي يې کوی ښه پوهېدونکی دی (ظاهر او باطن ګردو ته معلوم دي نو دالله دحقوقو اود شرعي حکمونو پاملرنه کوئ) ﴿ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِن قَبْلِ أَن يَتَمَآسَّا ﴾ پس هغه چاچي ونه موند (مريی) نو (پرې لازم) روژه نيول دي ددوو مياشتو پرله پسې تر پخوا (له جماع کولو) چي يو بل سره مسه کړي ، مفسرين کرام ليکي: که چېري يوه ورځ هم روژه ونه نيسي نو دغه پرله پسې والی له مينځه ځي او بيا به دوه مياشتي پرله پسې روژه نيسي ﴿ فَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا ﴾ پس هغه چي توان نلري (دروژې نيولو) نو (پرې لازم) خواړه ورکول دي شپېتو مسکينانو ته (چي ماړه شي) ﴿ ذَٰلِكَ لِتُؤْمِنُواْ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ دغه (بيان داحکام دظهار) دپاره ددې دی چي ايمان راوړی تاسي په الله او په رسول د دغه (الله) باندي (او دجاهليت په دودونو عمل ونکړی) ﴿ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ ﴾ دغه (مذکور احکام) حدونه (مقرر شوي) دالله دي (معين کړی شوي نو ترې تجاوز مکوئ) ﴿ وَلِلْكَٰفِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ او کافرانو ته عذاب دېر دردناک دی) يعني هغه څوک چي ددې حدودو منکر وي دردناک عذاب به يې په برخه شي ، الوسي ليکي چي دحدودو متجاوز ته يې دتغليظ په توګه زجرًا کافر وو وايو (٣) ﴿ إِنَّ الَّذِينَ يُحَآدُّونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾ هغه کسان چي مخالفت کوي له الله او له رسول د دغه (الله) څخه (او ورسره دښمني کوي ابوالسعود وايي: معنا داچي دالله سره په مخالف حد کي ولاړوي او دغه (محادات) کلمه يې د (معادات) پرځای څکه راوړه چي پخوا (حدود الله) تېر شوي

---

(١) دخازن تفسير ۴/۳۸

(٢) دقرطبي تفسير ۱۷/۲۸۳

(٣) دالوسي تفسير ۲۸/۲۰

وونوددغي کلمې او هغې ترمينځ خوراحسينه موقع دی چې ترې پورته نشي موندل کېدای(١) ﴿كُبِتُوا كَمَا كُبِتَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ خوارهلاک به کړل شي دوی لکه چې خوارهلاک کړی شوي وو هغه کسان چې پخوا له دوی څخه وو (له منافقينو او کفارو څخه چې خواراوذليل شول) ﴿وَقَدْ أَنزَلْنَا آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ﴾ او په تحقيق نازل کړي دي موږ دلائل (چې پکې حلال اوحرام اوفرائض احکام دي) روښانه ﴿وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ مُّهِينٌ﴾ اوکافرانومنکرانوته عذاب سپکونکی رسواکونکی دی. صاوي ليکي چې: دغه آيت شريف دمکې دکفاروپه هکله نازل شوی دی کله چې يې داحزاب دجګړې په ښپنه کې ګردو ګوندونوپه رسول الله صلی الله عليه وسلم او مسلمانانوباندي يرغل وکړ اومقصدېي کې درسول الله داډينه اومسلمانانوته زيری ورکول دي چې ددوی دښمنان به الله ګردسره ذليل او وښويوي مسلمانان دي ورڅخه ونه وېرېږي ددوی دښمنان به الله تيت اوپرک ،تارپه تارکړي(٢) ﴿يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ جَمِيعًا﴾ يادکړه يادکړه (ای محمده!) هغه ورځ چې ژوندي به پورته کړي الله دوی ټول له قبورو(په يوه ميدان کي) ﴿فَيُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا﴾ پس خبربه کړي (الله) دوی په هغوکارونوباندي چې کړي يې وي (په دنياکي له ګناهونواومعاصيوڅخه) ﴿أَحْصَاهُ اللَّهُ وَنَسُوهُ﴾ شمېرلي ساتلي دي الله هغه (اعمال) اوهېرکړي دي هغوی هغه اعمال يعني الله د دوی عملونه په صحائفوکي خوندي کړي خودوی پدې چې په حساب اوجزايې باورنه درلودهېرکړي وو ﴿وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ اوالله په هرشي باندي ښه شاهدښه خبردار دی (هيڅ څېزورڅخه پټ نه دی ورپسې الله دخپل علم پراخي داسي ستايې چې علم يې په ګردوشيانومحيط دی الله خلګ ټول هرڅېري اوهرډول چې وي ويني اوخبري يې اوري بيافرمايې ﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ مَا يَكُونُ مِن نَّجْوَىٰ ثَلَاثَةٍ إِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ﴾ آيانه ويني ته نه يې خبرچې بېشکه الله ته ښه معلوم دی هرهغه څه چې په آسمانونوکي دي اوهرهغه څه چې په ځمکه کي دي (بلکه خبريې) نه به وي پټي خبري (يودبله په غوږونوکي) ددرې تنومګرخودغه (الله) به څلورم دهغوی وي (علماً) چې ددوی هغه پټي خبري او مشورې به اوري اوويني به يې ﴿وَلَا خَمْسَةٍ إِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ﴾ اونه به وي پنځه تنه (راز ويونکي) مګرخودغه (الله) به شپږم دهغوی وي (په اعتباردعلم سره) ﴿وَلَا أَدْنَىٰ مِن ذَٰلِكَ وَلَا أَكْثَرَ إِلَّا هُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوا﴾ اونه به وي لږله دې(عدد) نه اونه به وي ډېر(له دې عددنه) مګر خووي به دغه (الله) له هغوی سره په اعتباردعلم سره هرڅېري چې وي هغوی (اوهرڅه خبري اتري چې کوي غرض داچې الله تعالی له خپلوبندګانوسره حاضراوناظردی دهغوی په احوالواعمالواوپټودزړه په رازونوخبردار دی هيڅ شی ورڅخه الونيا(پټ) نه دی ځکه نو وروسته فرمايې ﴿ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا يَوْمَ

(١) دابوالسعود تفسير ٥/ ١٤٥
(٢) صاوي په جلالين باندي ٤/ ١٨٧

ٱلْقِيَـٰمَةِ إِنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ﴾ بیا به خبرکړي الله دوی په هغو (دنیوي اعمالو) چي کړي یې دي په ورځ د قیامت کي بېشکه الله په هرڅېز باندي ښه پوهېدونکی ښه خبردار دی (هغه که نېک وي اوکه بد الله به وربا ندي جزاء ورکړي. مفسرین کرام وایي: الله تعالی دغه آیت په علم پیل کړی ﴿ أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُ ﴾ او پای یې بیا په علم فرمایلی چي ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ﴾ ددې لپاره چي پدې تنبیه وفرمایې چي دالله علم په کلیاتواوجزئیاتومحیط دی اودکائناتوهیڅ شی ورڅخه پټ نه دی، ابن کثیرلیکي چي دېروخلکوداسي ویلي چي دعلماوو پدې اجماع راغلي ده چي مراد له (معیت) څخه پدې آیت کي دالله دعلم معیت دی اوپدې اراده کولوکي شک اوشبه نشته ځکه چي دالله سمع سره له علمه پردوی محیط دی اوبصربې پردوی کي نافذدی نوالله سبحانه وتعالی پر خپل مخلوق ښه خبردار دی چي هیڅ چاره بې له (الله) څخه پټه نه ده له دې وروسته الله دمنافقینو او یهودانو احوال داسي بیانوي ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ نُهُوا۟ عَنِ ٱلنَّجْوَىٰ ﴾ آیانه وینې ته نه یې خبرهغه کسان چي منع کړی شوي وو له پټوخبروڅخه. قرطبي وایي: دغه دمنافقینواویهودانوپه هکله نازل شوی چي دوی به پټې خبري سره کولې اودسترګواوسر په اشاروبه یې مؤمنان ځورول، مسلمانانو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته شکایت وکړاورسول الله هغوی له داسي کولوڅخه منع کړل خودوی له دې سره سره منع نه شول نوبیادا آیت نازل شو[1] ﴿ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا نُهُوا۟ عَنْهُ ﴾ بیا بیرته وروګرزېدل دوی هغه شي ته چي دوی ترې منع کړی شوي وو. ابوالسعود لیکي چي همزه په (ألم تر) کي ددوی دحال دتعجیب لپاره دی اودمضارع صیغه چي ﴿ ثُمَّ يَعُودُونَ ﴾ دی ددوی دبیابیاراګرزېدلو په تکرار ددلالت کولولپاره راغلي اودهغه عجیبه تصویرڅرګندوي[2] ﴿ وَيَتَنَـٰجَوْنَ بِٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ وَمَعْصِيَتِ ٱلرَّسُولِ ﴾ اوپټې خبري کوي دوی په ګناه سره (ځکه چي ددوی ددوی خبري دمسلمانانولپاره دچل ول اومکرونو پلموبهانوجوړولولپاره وې، ابوحیان لیکي لومړی یې (أثم) یادکړچي عام دی اوبیایې دښمني یاده کړه چي په زړونوکي سترتوب لري اودخلګوترمینځ پېښېږي وروسته یې تردې لوړڅه بیان کړل چي هغه دپیغمبرنافرماني ده اوپدې کي دمنافقانولپاره پیغوردی ځکه چي دوی په همدې ډول پټې غونډې او مرکې کولې[3] ﴿ وَإِذَا جَآءُوكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ ٱللَّهُ ﴾ اوکله چي راشي دوی تاته ای محمده نوپېشکشي درکوي سلام اچوي تاته په هغه شي سره چي پېشکشي نه ده مقررکړي په هغه شي سره الله (په ځای دالسلام علیک، السام علیک وایي یعني مرګ دي پرتاوي. مفسرین کرام کاږي یهودان به کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلل نوبه یې ورته ویل: (السام علیکم) اوسام مرګ ته وایي ددوی به همدامقصدوواو رسول الله به په ځواب کي

---

(1) دقرطبي تفسیر ۱۷/ ۲۹۱ درمیان انجمن ها حرف سرګوشي زدن درمیان سینه ها تخم نفاق افکندن است.
(2) دابوالسعود تفسیر ۵/ ۱۴۵
(3) البحرالمحیط ۸/ ۳۶

ورته ويل (وعليكم) بل څه به يې نه پرې زياتول نو يوه ورځ حضرت عائشې صديقې واورېدل ورته ويې ويل (عليكم السام واللعنة) پرتاسي دي مرګی اولعنت وي ، کله چي دوی بېرته ستانه شول نو رسول الله صلى الله عليه وسلم عائشې رضى الله عنهاته وويل: داسي مه وايه الله جل جلاله فحش نه خوښوي هغې ورته وويل: ای رسول الله تاوانه ورېدل چي دوی څه وويل ؟! رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: آياتاوانه ورېدل چي ماڅه ورته وويل؟! ماورته وويل : (وعليكم) الله جل جلاله زمانښراپر دوی باندي مني اُوددوی هغې زماپه باب نه مني ﴿ وَيَقُولُونَ فِيٓ أَنفُسِهِمۡ لَوۡلَا يُعَذِّبُنَا ٱللَّهُ بِمَا نَقُولُۚ ﴾ اووايي دوی په نفسونو(زړونو ) خپلوکي ولي نه په عذابوي موږ الله په هغه (غلط) څه چي وايو يې ( که رښتيامحمد پيغمبروای نود داسي وينااو ويلوسره به پرموږ عذاب راپرېوتی وای ، الله جل جلاله ددوی په ردکي فرمايي ﴿ حَسۡبُهُمۡ جَهَنَّمُ يَصۡلَوۡنَهَاۖ ﴾ بس دی دوی ته (په تعذيب کي) دوزخ (چي ورننوځي به) ﴿ فَبِئۡسَ ٱلۡمَصِيرُ ﴾ نوبدځای دورتللودی (دادوزخ) ابن عربي ليکي: دوی به ويل که محمد په رښتياد الله پيغمبروی نوبه موږالله دده د سپکاوي اوښکنځلوپه سبب خوشي نه پرېږدي اوژرترژره به عذاب راکړي نوپدې نه پوهېدل چي الله تعالى حليم ذات دی ژرترژره هغه چاته هم عذاب نه ورکوي کوم چي پخپله الله جل جلاله ته ښکنځل وکړي څه خولادا چي دهغه پيغمبرته يې کړي وي په صحيح حديث شريف کي راځي چي په ځورولوکي ترالله هيڅوک هم زيات صبرناک (زغمونکی) نشته خلګ هغه ته دمېرمني درلودلواوذوذات (اولاد ) نسبت کوي خوهغه بياهم دغه نسبت کونکوته روغتيااوروزي وربښي ، هوکي الله جل جلاله دغه آيتونوددوی دپټواسرارو درسوا کولو لپاره نازل کړي اودرسول الله صلى الله عليه وسلم تکريم يې فرمايلی دی ([1]) اوداچي دوی يې په دنياکي له عذابه بېغمه پرې ايښي دي دغه هم درسول الله صلى الله عليه وسلم په خپل پروردګار باندي يوبل کرامت دی څکه چي الله تعالى هغه (رحمة للعالمين) رااستولی دی ورپسې الله تعالى مؤمنان له داسي پټوخبرواتروڅخه چي ګناه اومعصيت وي راګرزوي ورته فرمايي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا تَنَٰجَيۡتُمۡ فَلَا تَتَنَٰجَوۡاْ بِٱلۡإِثۡمِ وَٱلۡعُدۡوَٰنِ وَمَعۡصِيَتِ ٱلرَّسُولِ ﴾ ای هغوکسانوچي ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو ) کله چي تاسي پټي خبري کوی يوله بله سره په (غوږونوکي) پس مکوئ پټي خبري پخپلومنځونوکي په ګناه سره اوپه تجاوز دښمني ظلم اوپه نافرماني درسول (الله) سره ﴿ وَتَنَٰجَوۡاْ بِٱلۡبِرِّ وَٱلتَّقۡوَىٰۖ ﴾ اوپټي خبري مصلحت کوئ پخپلومنځونوکي په احسان نېکي اوپرهېزګاري سره ، قرطبي ليکي: الله تعالى مؤمنان له دې څخه ووېرول چي دمنافقانواويهودانوپه شان پټي خبري اومصلحتونه وکړي اوپدې يې ورته حکم وفرمايوچي په احسان نېکي اوطاعت تقوي مصلحتونه ترسره کړي دالله له نواهيوڅخه ځان وژغوري ([2]) ﴿ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ ٱلَّذِيٓ إِلَيۡهِ تُحۡشَرُونَ ﴾ اووېرېږئ له (عذابه د ) الله هغه (الله) چي خاص ده ته به تاسي جمع کړی شی په قيامت کي

---

([1]) قرطبي تفسير ١٧/ ٢٩٢

([2]) نفس المرجع ١٧/ ٢٩٤

(جزاء ته چي هرچاته به پخپل عمل باندي ورکول شي) ﴿ إِنَّمَا ٱلنَّجْوَىٰ مِنَ ٱلشَّيْطَٰنِ لِيَحْزُنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ بېشکه چي پټي خبري (په ګناه) کارد شيطان دی لپاره ددې چي خفه کړي هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی. ابن کثيروايي: معنا داچي کله له پټي خبري کونکو څخه داکار صادرېږي دغه د شيطان له خواورته ښايسته کول او وسوسه کېدل دي(۱) ﴿ وَلَيْسَ بِضَآرِّهِمْ شَيْـًٔا إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ﴾ اونه ده دغه (تناجي پټه خبره) ضرر رسونکي دغو(مؤمنانو)ته دهيڅ شي مګرپه حکم اراده دالله ﴿ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُؤْمِنُونَ ﴾ اوښايې چي خاص پرالله پس توکل وکړي مؤمنان (اوالله ته دي خپلي ګردي چاري وسپاري دخلګوپه پټ رازويلودي هيڅ پرواهم نه کوي څکه الله يې دهغوی له ضررڅخه ژغوري په حديث شريف کي راځي: که تاسي درې تنه ملګري وی نودوه تنه دي يوله بله پټي خبري نه سره کوي څکه چي دريم تن خواشينی کېږي.

***

الله تعالى فرمايي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوا۟ فِى ٱلْمَجَٰلِسِ فَٱفْسَحُوا۟ يَفْسَحِ ٱللَّهُ لَكُمْ ۖ وَإِذَا قِيلَ ٱنشُزُوا۟ فَٱنشُزُوا۟ يَرْفَعِ
ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنكُمْ وَٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ دَرَجَٰتٍ ۚ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿١١﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا نَٰجَيْتُمُ ٱلرَّسُولَ
فَقَدِّمُوا۟ بَيْنَ يَدَىْ نَجْوَىٰكُمْ صَدَقَةً ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَأَطْهَرُ ۚ فَإِن لَّمْ تَجِدُوا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٢﴾ ءَأَشْفَقْتُمْ أَن تُقَدِّمُوا۟ بَيْنَ يَدَىْ
نَجْوَىٰكُمْ صَدَقَٰتٍ ۚ فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا۟ وَتَابَ ٱللَّهُ عَلَيْكُمْ فَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ۚ وَٱللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ
﴿١٣﴾ ۞ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ تَوَلَّوْا۟ قَوْمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم مَّا هُم مِّنكُمْ وَلَا مِنْهُمْ وَيَحْلِفُونَ عَلَى ٱلْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿١٤﴾ أَعَدَّ ٱللَّهُ
لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ۖ إِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿١٥﴾ ٱتَّخَذُوٓا۟ أَيْمَٰنَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿١٦﴾ لَّن
تُغْنِىَ عَنْهُمْ أَمْوَٰلُهُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُهُم مِّنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿١٧﴾ يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ ٱللَّهُ جَمِيعًا فَيَحْلِفُونَ لَهُۥ
كَمَا يَحْلِفُونَ لَكُمْ ۖ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ عَلَىٰ شَىْءٍ ۚ أَلَآ إِنَّهُمْ هُمُ ٱلْكَٰذِبُونَ ﴿١٨﴾ ٱسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ ٱلشَّيْطَٰنُ فَأَنسَىٰهُمْ ذِكْرَ ٱللَّهِ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ حِزْبُ
ٱلشَّيْطَٰنِ ۚ أَلَآ إِنَّ حِزْبَ ٱلشَّيْطَٰنِ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴿١٩﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُحَآدُّونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ أُو۟لَٰٓئِكَ فِى ٱلْأَذَلِّينَ ﴿٢٠﴾ كَتَبَ ٱللَّهُ
لَأَغْلِبَنَّ أَنَا۠ وَرُسُلِىٓ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ قَوِىٌّ عَزِيزٌ ﴿٢١﴾ لَّا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ يُوَآدُّونَ مَنْ حَآدَّ ٱللَّهَ
وَرَسُولَهُۥ وَلَوْ كَانُوٓا۟ ءَابَآءَهُمْ أَوْ أَبْنَآءَهُمْ أَوْ إِخْوَٰنَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ كَتَبَ فِى قُلُوبِهِمُ ٱلْإِيمَٰنَ
وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ ۖ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ رَضِىَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا۟ عَنْهُ ۚ
أُو۟لَٰٓئِكَ حِزْبُ ٱللَّهِ ۚ أَلَآ إِنَّ حِزْبَ ٱللَّهِ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿٢٢﴾ ﴾ المجادلة: ۱۱ ـ ۲۲

(۱) دابن کثير مختصر ۳ / ۴۶۳

مناسبت:

کله چي الله مؤمنان له هغه څه نه کوم چي ددوی ترمینځ کرکه او نفرت پیدا کوي وو پرول نو هغوی ته بې دصبر او زغم مارېینه وکړه څکه چي دمیني دزیاتوالی سبب ګرزي هغه دا چي په مجالسو کي یود بل لپاره ځای پرانیزي پراخي ورته جوړه کړي او ورپسې يې دالله ددښمنانو سره له دوستي کولو څخه منع کړل او دسورت پای یې بیاد کاملو مؤمنانو په اوصافو ستایلو بشپړ کړ.

لغتونه:

(تفسحوا) ځای ارت کړئ لکه چي ویل کېږي (مکان فسیح) یعني ارت ځای (انشزوا) پورته شئ پاڅئ له (نشز) څخه اخیستل شوی او هغه لوړي ځمکي ته وایې (جُنّة) دجیم په ضمه سره ژغورونکی (استحوذ) غالب شوی دی (په عقلونو ددوی) (الأذلین) ذلیلان مغلوبان هغوی چي په ذلت کي غوپه وي.

دنزول سبب:

أ- مقاتل وایې رسول الله صلی الله علیه وسلم به دبدریانو اصحابانو که به مهاجرین او که انصار وو درناوی کاوه یوه ورځ ځیني دبدر اصحاب چي ثابت بن قیس هم پکې وو مجلس ته ناوخته راورسېدل او درسول الله صلی الله علیه وسلم خواوشا ته په پښوولاړ ودرېدل او په مجلس کي دکېناستلو لپاره دځای موندلو په انتظار وو خو چاهم ځان ونه خوځاوه او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دغه حالت لیدل ناخوښه وو نو یې ځینو هغو کسانو ته چي بدریان نه وو وویل: فلانیه پورته شه! فلانیه پورته شه! څو تنه چي شمېرېې دبدریانو په شمېر وو له ځایه ولټول او دغه خبر په دغو پورته کړی شو یو باندي سخته تمامه شوه او دوی غوښتل چي رسول الله ته نژدې کېني خو هغه کسان چي ناوخته راغلي وو تردوی نژدې کېنول شول نو الله جل جلاله دا آیت نازل کړ: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُواْ فِى ٱلْمَجَٰلِسِ فَٱفْسَحُواْ يَفْسَحِ ٱللَّهُ لَكُمْ ﴾ ([1]).

ب- ابن عباس رضی الله عنه وایې چي: دېرو خلکو به له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتني کولې او په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندي به زښته زیاته ګنه ګونه وه الله جل جلاله وغوښتل چي دوی یو څه راتم کړي او په رسول الله آساني جوړه شي نو یې وفرمایل ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا نَٰجَيْتُمُ ٱلرَّسُولَ فَقَدِّمُواْ بَيْنَ يَدَىْ نَجْوَىٰكُمْ صَدَقَةً ﴾ دآیت ترپایه نو کله چي دا آیت نازل شو ډېر مسلمانان بې زړه شول او پوښتني يې پرېښودې ([2]).

ج- سدي وایې: (عبدالله بن نبتل) یو منافق وو درسول الله په مجلس کي به کېناست او دهغه خبري به یې یهودانو ته رسولې یوه ورځ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم پخپله یوه حجره کي وو نو ویې ویل: اوس به یوتن رادننه شي چي دکبرجن زړه به لري او دشیطان په سترګو به ګوري چي (عبدالله بن نبتل) راغی او شني سترګي يې وې رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: ولي ته او ستا ملګري ماته

---

([1]) القرطبي ١٧/ ٢٩٧

([2]) مختصر ابن کثیر ٣/ ٤٦٥

ښکنځل کوی ؟ هغه لوړه وکړه چې موږ ښکنځل ندي کړي رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل بلکه تاسو کړي دي نو هغه ولاړ او ملګري یې راوبلل هغوی قسم وخوړ چې هډو ښکنځل یې ندي کړي نو الله دا آیت نازل کړ ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ تَوَلَّوْاْ قَوْمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم مَّا هُم مِّنكُمْ وَلَا مِنْهُمْ وَيَحْلِفُونَ عَلَى ٱلْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾ ([1]).

**تفسیر:**

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ ﴾ ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی (ای مؤمنانو !) دالله تعالی له لوري په ښایسته لفظ او لطیف عبارت ندا راغلي یعني ای په ایمان ښایسته کسانو ! ﴿ إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُواْ فِى ٱلْمَجَـٰلِسِ فَٱفْسَحُواْ ﴾ کله چې وویل شي تاسو ته چې ځای ارت کړئ په مجلس کې نو ځای ارت کړئ (دغه که هر مجلس وي د رسول الله او یا نور مجالس) ﴿ يَفْسَحِ ٱللَّهُ لَكُمْ ﴾ چې ارتیا وکړی الله تاسي لره (په رحمت او جنت خپل کي ) مجاهد وایي : اصحابانو به د رسول الله مجلس ته یو له بله سیالي کوله نو ورته حکم وشو چې ځای دیو بل لپاره ارت کړي ([2]) خازن لیکي چې الله تعالی مؤمنانو ته د تواضع کولو ماړینه کړې او دا چې د مجلس د ګډون کونکو لپاره ځای پرانیزي ([3]) ترڅو چې ګرد اصحابان یوشان د رسول الله په مجلس کي بارياب اوله ګټو فیوضاتو یې برخمن شي. په حدیث شریف کي راځي هیڅوک دي بل سړی له ځایه نه پاڅوي چې بیا دهغه پرځای کښني لکن په مجلس کي پراختیا راولئ او ځای ارت کړئ چې الله پر تاسو (د جنت رحمت ) ارتیا راولي ([4]) امام فخر رازي لیکي : چې دالله دغه وینا چې فرمایي ﴿ يَفْسَحِ ٱللَّهُ لَكُمْ ﴾ دغه مطلقا یاده شوي چې ټول هغه خلګ یې د پراختیا غوښتونکي وي لکه د ځای ، رزق ، روزي سینې (صدر) قبر ، جنت او نورېکي راځي او پدې و پوهېږه چې په آیت شریف کي ددې دلالت شته چې هر څوک دالله په بندګانو د خیر او هوسایي پراختیا راولي الله به ورباندي د دنیا او آخرت پراختیا پېرزو کړي په حدیث شریف کي راځي : الله ترهغو پوري د یوه بنده په مرسته کي وي څو چې بنده د خپل ورور په مرسته کي لګیاوي ([5]) ﴿ وَإِذَا قِيلَ ٱنشُزُواْ فَٱنشُزُواْ ﴾ او کله چې تاسو ته وویلی شي چې پورته شئ (له

---

([1]) تفسیر خازن ۴ /۵۲
([2]) القرطبي ۱۷ /۲۰۴
([3]) خازن ۴ /۵۰
([4]) أخرجه البخاري ومسلم.
([5]) تفسیر الرازي ۲۹ /۲۶۹ (۳) علامة ابن کثیر د دغه آیت سره د راتلونکي سړي لپاره د پورته کېدلو حکم داسي لیکلي دي وايې : فقهاء رحمهم الله دیو چاد راتلو په وړاندي د پورته کېدلو (قیام) په هکله ټول یوه خوله (متفق) نه دي ځیني وايې : پورته کېدل روا دي او دلیل راوړي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یو وخت وفرمایل : (قوموا لسيدکم) ستاسو د مشر لپاره پورته شئ ! او ځینو بیا هغه ممنوع بللي او دلیل راوړي چې رسول الله فرمایي : څوک چې دا خوښوي د هغه د راتلو په وخت کي خلګ ورته ولاړ شي نو په دوزخ کي دي خپل ځای جوړ کړي ، څوک بیا وایي : په ځانګړي حالاتو کي پورته کېدل روا دي لکه چې یو څوک د مسافرد راتلو لپاره ورته ولاړ شي او یا دوخت د حاکم په وړاندي د هغه د ولایت په وخت کي لکه چې سعد بن

مجلس څخه ځوچي نوروته ځای پیدا شي) نوپورته شئ !، ابن عباس رضی الله عنه وايي: معناداچي کله درته وويل شي چي پورته شئ نو پورته شئ په البحرالمحیط کي راوړي چي لومړی ځل په مجلس کي دارتیااوپراخي کولو ورته وويل شول اوبیاکله چي ورته امروشي دهغه د امتثال په هکله یادونه وشوه چي پدې هکله دي نه خواشیني کېږي ﴿ يَرْفَعِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنكُمْ وَٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ دَرَجَٰتٍ ﴾ پورته کوي الله هغه کسان چي ایمان يې راوړی دی له تاسوڅخه (په امتثال د اوامرودالله اورسول الله) او(خاص هغه کسان)چي دوی ته علم ورکړی شوی دی (پورته کوي يې لوړو مرتبودجنت ته . ابن مسعود ﷺ وايي: الله پدغه آیت کي دعلماوو ستاینه کړي اوبیایې وويل : ای خلکوپه دې آیت وپوهېږئ اودغه مودعلم په هکله دترغیب ذریعه جوړه کړي ځکه چي الله تعالی وايي: عالم مؤمن په هغه مؤمن چي عالم نه وي په درجاتوپورته دی، قرطبي لیکي: چي پدې آیت کي ددې څرګندونه شته چي لوړوالی دالله په نزدپه ایمان اوعلم دی نه پدې چي يوڅوک دمجلس په سرکي ناست وي ، په حدیث شریف کي راغي چي دعالم فضل اوبهتري په نوروخلکولکه دڅورلسم سپوږمۍ بهتري په نورو ستوروباندي ده اوهمداسي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي چي: دآخرت په ورځ به درې ډلي شفاعت کوي: نبیان، بیاعلماء او ورپسې شهیدان) نودنبوت او شهادت ترمینځ واسطه د رسول الله په شاهدي سره دغه ستره دعلم واسطه ده (۱) ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴾ اوالله په هغو(کارونو) چي تاسويې کوی ښه خبردار دی (چي جزابه پرې در کړي یعني الله ستاسو دفضل اوثواب په مستحقو کسانوښه خبردار دی ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا نَٰجَيْتُمُ ٱلرَّسُولَ فَقَدِّمُوا۟ بَيْنَ يَدَىْ نَجْوَىٰكُمْ صَدَقَةً ﴾ ای هغو کسانو چي ایمان يې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو ) کله چي اراده کوئ دپټو خبروله رسول (دالله) سره نو وړاندي کړئ په مخ کي درازخپل څه صدقه خیرات (فقراوو لره) الوسي وايي: پدې حکم کي درسول الله دمقام تعظیم اودرناوی اودفقراوو لپاره ګټه ده اوددې لپاره ترڅوچي مخلص مؤمن اومنافق سره بېل کړي اوهمداسي هغه کسان چي دنیاخوښوي اوهغوی چي آخرت غواړي سره جلاشي (۲) ﴿ ذَٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَأَطْهَرُ ﴾ دغه (ورکول دصدقې مخکي له پټوخبرونه) خیربهتر ډېرغوره اوپاکېزه دی تاسو لره (په نزددالله ځکه چي دالله دحکم امتثال دی او ستاسي ګناوي پاکوي ﴿ فَإِن لَّمْ تَجِدُوا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ نوکه بیانه مومی (تاسي هغه شی چي صدقه يې کړی) پس بېشکه الله ښه مغفرت کونکی د( خطیئاتو ) ډېررحم والادی (په انعام داجراوثواب سره) چي ناوسه کسان پدې حکم باندي نه مکلف کوي ﴿ ءَأَشْفَقْتُمْ

---

معاذرضی الله عنه ته پاڅېدل کله چي رسول الله هغه دبني قریظه وړه هکله دفیصلې کولولپاره وګمارواوکله چي راورسېدونو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دخپل مشرلپاره پاڅئ اودغه ددې لپاره ووچي دهغه حکم ښه اغېزناک شی اوبیالیکي هغه څوک چي همدغه دودستورجوړوي نودغه دعجموشعاردی ، په سنتوکي داسي څرګندوني شته چي رسول الله صلی الله علیه وسلم به چي کله کوم ځای ته راغي هغلته به کېناست او همغه ځاي به دمجلس صدرمقام شو...

(۱) القرطبي ۱۷/ ۳۰۰

(۲) دالوسي تفسير ۲۸/ ۳۰

أَن تُقَدِّمُوا۟ بَيْنَ يَدَىْ نَجْوَىٰكُمْ صَدَقَٰتٍ ﴾ آيا وېرېږى تاسي (له فقره) چي وړاندي کړى په مخکي د پټي خبري ستاسي صدقات خيراتونه دغه مؤمنانوته نرم اوخوږ عتاب دى اوغرض ورڅخه دادى چي له فقره مه وېرېږئ! دالله په لاس کي د ځمکي، آسمان خزانې دي چاته چي يې خوښه شي ورکوي يې وروسته بيادغه حکم منسوخ شو اودغه دالله له لوري په مؤمنانوباندي دآساني پېرزوينه ده نوفرمايي: ﴿ فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا۟ وَتَابَ ٱللَّهُ عَلَيْكُمْ ﴾ پس په هغه وخت کي چي ونکړتاسي دغه (خيرات) او رجوع په رحمت سره وکړه الله پرتاسي باندي (چي دغه صدقه ورکول يې درته معاف کړل) ﴿ فَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ ﴾ نوقائم کړئ (سم ودروئ سره له ټولوحقوقو) لمونځ او ورکړئ تاسي زکات (کوم چي فرض دى) ﴿ وَأَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾ اوحکم ومنئ تاسي دالله (اوحکم ومنئ تاسي) درسول الله (په ټولو حالاتوکي) ﴿ وَٱللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ اوالله ښه خبردار دى په هغو اعمالوباندي(هم) چي تاسي يې کوى (نوجزاء به درباندي درکړي) يعني الله ستاسو په اعمالو او نيتونوخبردار دى. مفسرين کرام وايي: الله تعالى پخپلوبندګانودتخفيف له مخي دغه صدقه ورکول منسوخ کړل، ابن عباس وايي: دورځي يوڅه برخه لانه وه تېره شوي چي دغه حکم منسوخ شو(١) قرطبي ليکي فرضي زکات دغه صدقه منسوخ کړه اودغه ددې رواوالى ښيي چي يوکار دمخه ترکولو منسوخ شي اوهغه چي له علي رضى الله عنه څخه روايت راغلى چي وايي: په قرآنکريم کي يوآيت دى چي له ماپرته بل هيچاترماد مخه او وروسته درباندي عمل نه دى کړى ما يو دينار درلودهغه مي صدقه کړاودرسول الله مناجات مي وکړ دغه ضعيف بربېښي ځکه چي الله فرمايي ﴿ فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا۟ ﴾ او دغه پدې دلالت کوي چي هيچاهم هيڅ صدقه ورکړي نه ده (٢) ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ تَوَلَّوْا۟ قَوْمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم ﴾ آيانه ګورې ته (اى محمده!) هغو (منافقانو) ته چي دوستي کوي له هغه قومه (ديهودانو) سره چي الله پرهغوى غضب کړى دى؟ دغه رسول الله ته دمنافقانوپه حال باندي تعجب ورکول دي چي آياته د دغوله حاله تعجب نکوې چاچي د ايمان دعوه کړي اوبياله يهودانوسره دوستي پالي دمسلمانانو اسرار هغوى ته رسوي. امام فخر الاسلام وايي: منافقانوبه له يهودانوسره دوستي پالله هغه کسان چي الله ددوى په هکله فرمايلي: ﴿ مَن لَّعَنَهُ ٱللَّهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ ﴾ اوهم دوى ته به يې دمؤمنانواسرار اوپټ رازونه ويل (٣) ﴿ مَّا هُم مِّنكُمْ وَلَا مِنْهُمْ ﴾ نه دي دغه منافقان له تاسواونه له دوى څخه (بلکه ځپ ځپانده مذبذب دي لکه چي الله جل جلاله فرمايي ﴿ مُّذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذَٰلِكَ لَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ ﴾ (النسآء ١٤٣) صاوي ليکي: معنادا چي دوى له خالصومؤمنانوڅخه نه دي اونه هم له خالصو

(١) خازن ٤/ ٥٣
(٢) قرطبي ١٧/ ٣٠٣
(٣) كبيرتفسير ٢٩/ ٣٢٩

کفاروځخه دي نونه یې دوی، نه یې هغوی ته نسبت کېږي (۱) ﴿ وَيَحْلِفُونَ عَلَى ٱلْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾
اوقسمونه خوري (منافقان په دعوی داسلام ) په دروغوباندي حال داچي دوی پوهېږي (پخپلو دروغو )
ابوالسعودليکي چي دغه تعبيرددوی د خورابدعمل افاده کوي ځکه په هغه څه قسم خوړل چي پوهېږي
دغه دروغ دي خوراناده بدکاردی(۲) ﴿ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ﴾ تيارکړی دی الله دوی ته عذاب
ډېرسخت (په سبب دنفاق ددوی چي په درک أسفل د دوزخ کي به اوسي ) ﴿ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ فِى ٱلدَّرْكِ
ٱلْأَسْفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا ﴾ ﴿ إِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴾ بېشکه دوی لره بددی هغه شی چي
ور دوی چي کول به يې (له ګناهونو ) ﴿ ٱتَّخَذُوٓا۟ أَيْمَٰنَهُمْ جُنَّةً ﴾ ګرځولي دي دوی قسمونه خپل ډال (چي
سراومال خپل پرې خوندي کړي چي څوک يې ونه وژني او مال يې لوټ نه کړي، په التسهيل کي ليکي
ډال هغه څه ته وايي چي سړی ورباندي ځان ژغوري اودلته يې داستعارې په توګه راوړي يعني دوی
اسلام ددې لپاره څرګنداوو چي ځان اومال ورباندي وژغوري (۳) ﴿ فَصَدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ﴾ پس منع ستانه
کړل دوی (په دغوقسمونوسره مؤمنان له لاري دالله نه (چي په زړونوکي يې شکوک اوشبهات ورواچول
بهانې پلمې يې ورته جوړي کړې ﴿ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴾ پس دوی لره دی عذاب سپکونکی (اوسخت )
﴿ لَّن تُغْنِىَ عَنْهُمْ أَمْوَٰلُهُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُهُم مِّنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا ﴾ له سره به دفع نکړي له دوی څخه (په قيامت کي) مالونه
ددوی او نه اولادددوی له (عذابه د ) الله څخه هيڅ څېز ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ دغه کسان
ياران ملګري ددوزخ دي دوی به پدې دوزخ کي تل اوسېدونکي وي (چي نه به ترې وزي) ﴿ يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ ٱللَّهُ
جَمِيعًا ﴾ (يادکړه ای محمده ! ) هغه ورځ چي ژوندي پورته کړي (دوی ) الله ټول (په قيامت کي د حساب
لپاره) ﴿ فَيَحْلِفُونَ لَهُۥ كَمَا يَحْلِفُونَ لَكُمْ ﴾ نوقسمونه به خوري دوی هغه (الله) ته لکه چي قسمونه خوري دوی
تاسي ته (په دنياکي ای مسلمانانو ! ابن عباس وايي: دغه ددوی هغه وينا ده چي وايي ﴿ وَٱللَّهِ رَبِّنَا مَا
كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴾ (۴) ﴿ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ عَلَىٰ شَىْءٍ ﴾ (اوګمان به کوي (دوی) چي بېشکه دوی په يوشی دي(نفعمن
اوپه بنه لاره درومي ) يعني دوی به ګمان کوي چي په قيامت کي هم قسمونه خوړل ورته ګټه رسوي او له
عذابه يې ژغوري لکه چي دوی يې په دنياکي ژغوړل اوچابه نه وژل چي مسلمانان دي. ابوحيان وايي:
دتعجب ځای دادی چي دوی څرنګه داسي عقيده لرله چي ددوی کفرعلام الغيوب ذات ته ندی معلوم
اوالله داسي ګڼي لکه مسلمانان چي ددوی کفر ورته نه معلومېږي مقصدداچي دوی په دروغو داسي

(۱) دصاوي حاشيه په جلالين ۴ / ۱۸۴
(۲) دابوالسعود تفسير
(۳) التسهيل ۴ / ۱۰۵
(۴) قرطبي ۱۷/ ۵

رورېدی شوي چي په آخرت کي به يې هم داسي وايې لکه چي په دنيا کي يې ويل(۱) ﴿ أَلَآ إِنَّهُمْ هُمُ ٱلْكَٰذِبُونَ ﴾ واورئ! خبردار شئ! چي بېشکه دوی همدوی دروغجنان دي (چي له الله سره هم دروغ چلوي هغه چي علام الغيوب ذات دی) ﴿ ٱسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ ٱلشَّيْطَٰنُ فَأَنسَىٰهُمْ ذِكْرَ ٱللَّهِ ﴾ غالب شوی دی پردوی باندي شيطان نوهېر کړی دی شيطان له دوی نه ذکریاددالله (يعني ددوی په زړونو اووجودونو باندي واکمن شوی چي دالله يادېې ترې هېرکړی دی ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ حِزْبُ ٱلشَّيْطَٰنِ ﴾ دغه (هېرونکي کسان) لښکر دشيطان دي (دهغه پيروان ملګري اومرستندويان دي) ﴿ أَلَآ إِنَّ حِزْبَ ٱلشَّيْطَٰنِ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴾ خبردارشئ بېشکه لښکر تابعان د شيطان هم دوی دي زيانکاران (چي ابدي نعمتونه يې له لاسه ورکړل اوپه تلپاتي زحمت کي يې ځانونه وغورځول ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يُحَآدُّونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓ أُوْلَٰٓئِكَ فِى ٱلْأَذَلِّينَ ﴾ بېشکه هغه کسان چي مخالفت کوي له الله اوله رسول ددغه (الله) څخه دغه (دمخالفانو ټولی) په (جملې د) ذليلانو مغلوبانو کي ده (دالله له رحمت څخه دوی ليري دي) ﴿ كَتَبَ ٱللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا۠ وَرُسُلِىٓ ﴾ ليکلي دي الله (په لوح محفوظ کي)چي خامخابه غلبه بری وکړم هرومروزه اورسولان زما (يعني الله دخپلوانبياوو اولياوو پيغمبرانو اومؤمنانوپه بريالي کولوغښتلی ، قوي اوپياوړی دی ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ قَوِىٌّ عَزِيزٌ ﴾ بېشکه الله د هرقوي بنه غالب دی قوي دی چي انبياووا‌ولياوو ته بری ورکړي اوښه غالب په دښمنانو دی ، مقاتل رحمه الله وايې: کله چي الله جل جلاله مؤمنانوته دمکې ، خيبر اوطائف فتح ورکړه نودوی وويل: موږ هيله من يوچي الله به موپه فارس اوروم هم غالبه کړي عبدالله بن سلول وويل: آياګمان کوی چي فارس اوروم هم داسي کلي ، ښارګوټي دي لکه چي تاسو وربانديې بری موندلی قسم دی چي ترهغه چي تاسي پرې ګمان کوی هغوی ډېر ځواکمن اوپه شمېرکي زيات دي نودا آيت نازل شوچي ﴿ كَتَبَ ٱللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا۠ وَرُسُلِىٓ ﴾ (۲) ﴿ لَّا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ يُوَآدُّونَ مَنْ حَآدَّ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ﴾او نه به مومې ته (ای محمده! اونه ښايې چي بيامومې) يوقوم چي ايمان يې راوړی وي په الله اوپه ورځي دآخرت (قيامت) چي دوستي به کوي له هغه چاسره چي مخالفت کوي له الله اوله رسول ددغه (الله) څخه (څکه څوک چي له الله سره دوستي کوي نودالله دښمنان بدايسوي په يوه زړه کي دالله اود هغه د دښمن دواړو مينه نه ځائېږي لکه چي رڼا اوتياره نه يو ځای کېږي همداسي مثال دغه دالله مينه اود دښمن مينه يې ده. مفسرين کرام وايې چي: دآيت شريف څخه مقصد له کفارو اومجرمينوسره مينه نه کول دي خو دغه داخبارپه بڼه ځکه راوړل شوچي په نهی اوتحذيرکي مبالغه افاده کړي امام فخر رازي ليکي: معنا داچي ايمان او د الله ددښمنانومينه سره يو ځای کېدای نشي ، کله چي دالله دد ښمنانومينه زړه ته ورد‌نته

---

(۱) البحرالمحيط ۸ / ۲۳۸

(۲) البحرالمحيط ۸ / ۲۳۸

شي نوبياهلته دايمان ځاى نشته (١) ﴿ وَلَوْ كَانُوٓا۟ ءَابَآءَهُمْ أَوْ أَبْنَآءَهُمْ أَوْ إِخْوَٰنَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ ﴾ اګركه وي دغه (مخالفين) پلرونه ددوى اوزامن د دوى ياورونه ددوى يا(نورقبيله) خپلوان ددوى (ځکه چي دايمان غوښتنه داده چي دالله له دښمنانوسره دي عداوت وکړي په البحرالمحيط کي ليکي چي: پيل يې له پلرونوکړى ځکه چي ددوى طاعت په اولادونوواجب دى ورپسې يې دزامنوکړى چي په هغوى باندي د سړي مټ اووزرقوي کېږي اوبيايې دقبيلې اوخپلوانونوم اخيستى ځکه چي د دښمنانوپه وړاندي دخپلوقومونواوقبيلوله وګروڅخه مرسته غوښتل کېږي لکه چي شاعروايي: لايسألون اخاهم حين يندبهم * في النائبات على ماقال برهانا. دوى له خپله وروره څخه کله چي هغه يې مرستي اومددکولو ته دمشکلاتوپه وخت کي وبولي کوم دليل نه غواړي. ابن کثيرليکي: دغه آيت چي ﴿ وَلَوْ كَانُوٓا۟ ءَابَآءَهُمْ ﴾ دى دابوعبيده په هکله رانازل شوى کله چي (جراح) پلار يې دبدرپه ورځ ووواژه، اوداچي ﴿ أَوْ أَبْنَآءَهُمْ ﴾ دى دغه بياد ابوبکرصديق رضى الله عنه په باب کله چي دخپل زوى عبدالرحمن بن ابي بکردوژلوقصديې وکړ ﴿ أَوْ إِخْوَٰنَهُمْ ﴾ بيادمصعب بن عميرپه باره کي دى کله چي يې ورور عبيدبن عميزوواژه ﴿ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ ﴾ بيادحضرت حمزه ، علي ، عبيدة بن حارث په هکله دى کله چي يې عتبه اووليدبن عتبه وواژه (٢) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ كَتَبَ فِى قُلُوبِهِمُ ٱلْإِيمَٰنَ ﴾ دغه (قوم چي له اعداء الله سره دوستي نه کوي ) ليکلى دى (الله) په زړونودوى کي ايمان يعني په کي تثبيت کړى يې دى دوى مخلص مؤمنان دي ﴿ وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ ﴾ اوقوي کړى يې دي دوى په غيبي فيض مددله نزده خپله. ابن عباس رضى الله عنه وايې: معناداچي په دښمن يې برى ورکړى اودغه مددته يې روح ځکه ويلي چي دوى ورباندي ژوند اوحيات مومي(٣) ﴿ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ﴾ اوداخل به کړي الله دوى په جنتونوکي چي بهېږي له لاندي دونواومانيودهغوويالې ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَا ﴾ تل به وي دوى په هغو(جناتو ) کي ﴿ رَضِىَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا۟ عَنْهُ ﴾ راضي شوالله له دوى څخه (ددوى عملونه يې قبول کړل ) اوراضي شو دوى له الله څخه (چي دخپلونېکواعمالوثواب يې جنت وموند اوداچي رضايې د جنت له دخول څخه وروسته ذکرکړه ځکه هغه دنعمتونو خوراسترنعمت فضل اوزښته لوړه مرتبه ده . ابن کثيرليکي چي: په آيت شريف يوعجيبه رازپروت دى هغه داچي کله دوى پخپلوخپلوانودالله په وجه په غصه شول نوالله دوى ته په دغه عوض کي خپله رضاورکړه اودوى يې هم په مقيم نعيم باندي راضي کړل چي ستربرى يې ورپه برخه کړ(٤) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ حِزْبُ ٱللَّهِ ﴾ دغه (خلک ) دالله لښکردي (دالله خاصان اواولياء دي) ﴿ أَلَآ إِنَّ حِزْبَ ٱللَّهِ

---

(١) کبيرتفسير ٢٩ / ٢٧٦

(٢) مختصرابن کثير ٣ / ٤٢٧

(٣) کبيرتفسير ٢٩ / ٢٧٧

(٤) مختصرابن کثير ٣ / ٤٢٨

﴿ٱلْمُفْلِحُونَ﴾ واورئ ! خبردار شئ! چي بېشكه لښكردالله چي دی هم دوی دي په مرادرسېدونكي (برياليان په دنياا و آخرت كي) اودغه دالله جل جلاله ددې ويناپه مقابل كي چي ﴿أُولَٰٓئِكَ حِزْبُ ٱلشَّيْطَٰنِ ۚ أَلَآ إِنَّ حِزْبَ ٱلشَّيْطَٰنِ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ﴾(المجادلة :١٩) دی راورل شول.

بلاغت:

پدې مبارک سورت كي چي دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته لنډيزيې دادی:

١ - دمبالغې صيغې لكه ﴿إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌۢ بَصِيرٌ﴾ او ﴿عَفُوٌّ غَفُورٌ﴾ او ﴿عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ﴾ چي راغلي دي.

٢ - اطناب چي دمېندوپه تكرارپدې كلام كي شته چي ﴿مَّا هُنَّ أُمَّهَٰتِهِمْ ۖ إِنْ أُمَّهَٰتُهُمْ﴾ دغه په تقريراوبيان كي زياتوالی دی.

٣ - دطباق صنعت چي فرمايې ﴿وَلَآ أَدْنَىٰ مِن ذَٰلِكَ وَلَآ أَكْثَرَ﴾ ځكه دأدنی معنالږ دی اوداكثرپه وړاندي طباق ګڼل كېږي

٤ - عطف دخاص په عام باندي چي په شرافت يې تنبيه وښيي لكه ﴿يَرْفَعِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنكُمْ وَٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ دَرَجَٰتٍ﴾ ځكه دغه كسان چي ﴿أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ﴾ دي دمؤمنانوپه ډله كي لومړی يادشول اوبيايې په خاص ډول يادول دتعظيم دافادې لپاره راغلي دي

٥ - استعاره چي فرمايې: ﴿فَقَدِّمُوا۟ بَيْنَ يَدَىْ نَجْوَىٰكُمْ صَدَقَةً﴾ دلته يې ديومعنوي څېزلپاره چي هغه مناجات دی د لاسونواستعاره راوړه يعني ترپخواله مناجاته خپله صدقه وركړي

٦ - استفهام چي مرادورڅخه تعجيب دی لكه پدې كلام كي ﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ تَوَلَّوْا۟ قَوْمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم﴾.

٧ - ناقص جناس چي د ﴿يَعْمَلُونَ﴾ او ﴿يَعْلَمُونَ﴾ ترمينځ راغلی دی اويوازي ليک دودېږي تغيرلري

٨ - مقابله چي د ﴿أُو۟لَٰٓئِكَ حِزْبُ ٱللَّهِ ۚ أَلَآ إِنَّ حِزْبَ ٱللَّهِ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ﴾ او ﴿أُو۟لَٰٓئِكَ حِزْبُ ٱلشَّيْطَٰنِ..﴾ ترمينځ شتون لري

٩ - دجملې ښكلاپه ډېروتاكيداتوباندي لكه ﴿أَلَآ ، إِنَّ ، هُمُ﴾ چي كله فرمايې ﴿أَلَآ إِنَّ حِزْبَ ٱللَّهِ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ﴾.

١٠ - دفواصلوتوافق اويووالی چي په وروستني توري كي ليدل كېږي لكه ﴿ٱلْخَٰسِرُونَ ، ٱلْكَٰذِبُونَ ، خَٰلِدُونَ ، يَعْمَلُونَ﴾.

لطيفه:-

امام احمد له ابو طفيل څخه روايت کوي چي نافع بن عبدالحارث له عمربن الخطاب سره په عسفان کي وليدل عمر (رضی الله عنه) هغه په مکه باندي والي ګمارلی وو، عمرورته وويل څوک دي په خپل ځای خليفه وټاکل هغه ورته وويل (ابن ابزی) مي خپل خليفه ټاکلی عمرورته وويل داڅوک دی هغه وويل زموږ له موالينوڅخه يوڅوک دی عمررضی الله عنه ورته وويل مولی دي ورته خليفه کړی؟ هغه په ځواب کي ورته وويل: ای اميرالمؤمنينه هغه دقرآن کريم قاري اوپه ميراث علم باندي پوه د قضاء کولوجوګه اوور دی عمر رضی الله عنه وويل: ستاسونبي صلی الله عليه وسلم فرمايلي: (ان الله يرفع بهذالکتاب اقوامًا، ويضع به آخرين).

دالله جل جلاله په مرسته د (المجادلة) سورت دتفسيرژباړه بشپړه شوه.

***

## دالحشرسورت مدني او څليرويشت آياتونه لري

دسورت په وړاندي:

دالحشرسورت مدني دی اودتشريع دبيانولوپه هکله لکه نورمدني سورتونه غوندي انځورلري خوبنسټيزمحوريې کوم چي سورت ورباندي څرخي راڅرخي دبني نضيردغزاء څخه بيان دي بني نضيرهغه يهودان ووچي له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره يې خپله ژمنه اووعده ماته کړه هغه وو چي رسول الله صلی الله عليه وسلم هم دوی له مديني منورې څخه وايستل اوله دې کبله به عبدالله بن عباس ﷺ دغه سورت ته دبني نضيرسورت نوم هم ورکاوو.

همداسي په دغه سورت کي دمنافقينويادونه هم شوي کوم چاچي له يهودانوسره يې لاس يوکړی وو، په لنډه توګه دغه سورت دجهاداوغزاء په باب دی چي غنيمتونه اوولجې هم پکي يادېږي

دسورت پيل دالله جل جلاله په تمجيد، لوېې اوپاکي سره کېږي چي ګرد کائنات که انسانان دي که حيوانات، نباتات، جمادات اويانوردالله جل جلاله په وحدانيت، قدرت اوجلال شاهدان اوپه عظمت اوسلطان يې ګويادي فرمايي: ﴿ سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾.

وروسته په سورت کي ځيني دالله دقدرت آثاراودعزت څرګندوني دي چي يهودان يې له خپلو هستوګنځيو، اوچتومانيوبرجونو اوکلاګانو څخه وايستل دوی خوګمان کاوو چي هيڅوک دوی له دغه ځايه ايستلای نشي دوی خورا ژغورلي اولوړ، محکم داوسېدلوځايونه لرل خودالله عذاب له داسي لوري ورباندي راپرېوت چي هېڅ دوی يې ګمان هم نه کاوو ﴿ هُوَ الَّذِىٓ أَخْرَجَ الَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِنْ أَهْلِ الْكِتَٰبِ مِن دِيَٰرِهِمْ لِأَوَّلِ الْحَشْرِ... ﴾ دآيتونوترپايه.

بياسورت دغنيمتونو اوولجويادونه کوي شروط اوحکمونه يې ښيي اودفئ ځانګړتيا تخصيص فقيرانوته حکمت بيانوي څوچي غنيان اوبډايان يې په بډه ونه وهي اوداچي دټولني دګردو طبقاتوترمينځ يواندول توب موجودوي چي ددواړو ډلوعام مصلحتونه خوندي اودواړوته پکي خيروي ﴿ مَّآ أَفَآءَ اللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ مِنْ أَهْلِ الْقُرَىٰ فَلِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِى الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَٰمَىٰ وَالْمَسَٰكِينِ ... ﴾ دآيتونو ترپايه.

دسورت په ترځ کي د رسول الله ﷺ په اصحابانو باندي د ثناباران دی چي د مهاجرينو فضائل بيي او دانصارو پېرزوينه ، مهاجرينو خپل هيوادونه پرې ايښي او د الله جل جلاله مينه او محبت بې غوره کړی او انصارو بيا دالله ددين مرسته کړي او د خپلو مهاجرينو ورونو په وړاندي يې د خپلو مالونو او ملکونو لورينه منلي وه که څه هم چي دوی پخپله ورته اړتيا لرله او فقيران هم وو آيتونه فرمايي ﴿لِلۡفُقَرَآءِ ٱلۡمُهَٰجِرِينَ ٱلَّذِينَ أُخۡرِجُواْ مِن دِيَٰرِهِمۡ وَأَمۡوَٰلِهِمۡ يَبۡتَغُونَ فَضۡلٗا مِّنَ ٱللَّهِ وَرِضۡوَٰنٗا ...﴾ دا آيتونو ترپايه.

همداسي د مهاجرينو او انصارو په وړاندي يې د منافقينو او اشرارو يادونه هم کړي ده کوم چي د اسلام په خلاف يې له يهودانو سره تړون کړی وو د دوی لپاره يې زښته بد مثال راوړی هغه دا چي دوی لکه د شيطان غوندي هغه چي انسان تېر باسي او کفر ضلالت ته يې وهڅوي او چي هغه کافر او گمراه شي بيا نو شيطان ورڅخه لاس پر ‌ېمنځي او پښېمانه شي همداسي د منافقينو حال له يهودانو سره هم وو ﴿أَلَمۡ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ نَافَقُواْ يَقُولُونَ لِإِخۡوَٰنِهِمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ لَئِنۡ أُخۡرِجۡتُمۡ لَنَخۡرُجَنَّ مَعَكُمۡ ...﴾ دا آيتونو ترپايه.

همداسي مؤمنانو ته د هغي هيبتناکي ورځي په يادونه پند ورکوي کوم چي هلته حسب او نسب گټه نه رسوي مال او رتبه منصب چاته په ښه نه ورځي.

بيا د جنتيانو او دوزخيانو جلاوالی فرمايي د نېکمرغه کسانو او بدمرغانو برخه ليک هلته د عدل او جزا په ورځ څرگندوي چي فرمايي ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَلۡتَنظُرۡ نَفۡسٞ مَّا قَدَّمَتۡ لِغَدٖ ...﴾ د آيتونو ترپايه.

د سورت پای د الله جل جلاله په حسنی نومونو او عُليا صفاتو کبري او له نقصانه څخه پاکي بې ستايي چي ﴿هُوَ ٱللَّهُ ٱلَّذِي لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ...﴾ همداسي پيل او پای يې په يو ښکلي تناسق او ترتيب سره پېيي.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۖ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ١ هُوَ ٱلَّذِيٓ أَخۡرَجَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ مِن
دِيَٰرِهِمۡ لِأَوَّلِ ٱلۡحَشۡرِۚ مَا ظَنَنتُمۡ أَن يَخۡرُجُواْۖ وَظَنُّوٓاْ أَنَّهُم مَّانِعَتُهُمۡ حُصُونُهُم مِّنَ ٱللَّهِ فَأَتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِنۡ حَيۡثُ لَمۡ يَحۡتَسِبُواْۖ
وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ ٱلرُّعۡبَۚ يُخۡرِبُونَ بُيُوتَهُم بِأَيۡدِيهِمۡ وَأَيۡدِي ٱلۡمُؤۡمِنِينَ فَٱعۡتَبِرُواْ يَٰٓأُوْلِي ٱلۡأَبۡصَٰرِ ٢ وَلَوۡلَآ أَن كَتَبَ ٱللَّهُ
عَلَيۡهِمُ ٱلۡجَلَآءَ لَعَذَّبَهُمۡ فِي ٱلدُّنۡيَاۖ وَلَهُمۡ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ عَذَابُ ٱلنَّارِ ٣ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ شَآقُّواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥۖ وَمَن يُشَآقِّ ٱللَّهَ فَإِنَّ ٱللَّهَ
شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ٤ مَا قَطَعۡتُم مِّن لِّينَةٍ أَوۡ تَرَكۡتُمُوهَا قَآئِمَةً عَلَىٰٓ أُصُولِهَا فَبِإِذۡنِ ٱللَّهِ وَلِيُخۡزِيَ ٱلۡفَٰسِقِينَ ٥ وَمَآ
أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ مِنۡهُمۡ فَمَآ أَوۡجَفۡتُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ خَيۡلٖ وَلَا رِكَابٖ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهُۥ عَلَىٰ مَن يَشَآءُۚ وَٱللَّهُ عَلَىٰ
كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٞ ٦ مَّآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ مِنۡ أَهۡلِ ٱلۡقُرَىٰ فَلِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي ٱلۡقُرۡبَىٰ وَٱلۡيَتَٰمَىٰ وَٱلۡمَسَٰكِينِ وَٱبۡنِ ٱلسَّبِيلِ

كَيْ لَا يَكُونَ دُولَةً بَيْنَ ٱلْأَغْنِيَآءِ مِنكُمْ ۚ وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ ٱلرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمْ عَنْهُ فَٱنتَهُوا۟ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ
ٱلْعِقَابِ ﴿٧﴾ لِلْفُقَرَآءِ ٱلْمُهَٰجِرِينَ ٱلَّذِينَ أُخْرِجُوا۟ مِن دِيَٰرِهِمْ وَأَمْوَٰلِهِمْ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ ٱللَّهِ وَرِضْوَٰنًا وَيَنصُرُونَ ٱللَّهَ
وَرَسُولَهُۥٓ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّٰدِقُونَ ﴿٨﴾ وَٱلَّذِينَ تَبَوَّءُو ٱلدَّارَ وَٱلْإِيمَٰنَ مِن قَبْلِهِمْ يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُونَ فِى
صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّآ أُوتُوا۟ وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ۚ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِۦ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ
ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿٩﴾ وَٱلَّذِينَ جَآءُو مِنۢ بَعْدِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا ٱغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَٰنِنَا ٱلَّذِينَ سَبَقُونَا بِٱلْإِيمَٰنِ
وَلَا تَجْعَلْ فِى قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ رَبَّنَآ إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١٠﴾ الحشر: ۱ - ۱۰

## لغتونه:

(الحشر) جمع اوټولولوته وايي قيامت ته ځکه حشروايي چي هلته هم دانسانانوستره ټولنه او اجتماع دحساب اوجزاء لپاره راغونډېږي اوهمداسي پدې آيت کي چي ﴿ وَحُشِرَ لِسُلَيْمَٰنَ جُنُودُهُۥ ﴾ يعني لښکرورته راغونډکړی شو (قذف) په سختي سره له پاسه راغورزول (الجلآء) له اهل اولادسره له هيواده وتلوته وايي (شاقوا) دښمني اومخالفت يې وکړ (لينة) دلام په زېرسره هغه دخرماوني ته وايي چي ځمکي ته لنډه اونژدې اودخوندوري مېوې درلودوونکي وي ځکه يې لېنه بولي چي مېوه يې خورانبه وي (أوجفتم) وجيف ګرندي تګ ته وايي ويل کېږي: (أوجف البعير) کله چي اوښ ګرندی تګ ته وهڅوي (دولة) ددال په پېښ سره هغه څه ته وايي چي لاس په لاس شي (خصاصة) فقراوارتيابولي (غلًا) رخه اوکينې (حسد) ته وايي

## دنزول سبب: -

کله چي دبني نضيريهودانوله رسول الله صلى الله عليه وسلم سره کړی عهداوپيمان مات کړنو رسول الله صلى الله عليه وسلم دوی محاصره کړل ددوی دونودسوځولو اوپرېکولوامريې وفرمايو ترڅوددوی په زړونوکي وېره واچوي اوددوی سپکاوی وشي نودوی وويل: ای محمده! آياته داسي ګمان نکوې چي ته پيغمبريې؟ اوته له فسادڅخه خلک راګرزوې؟ نوبياولي زرغونې وني سوځوې اوپرېکوې يې؟! نوالله جل جلاله داآيت نازل کړچي: ﴿ مَا قَطَعْتُم مِّن لِّينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَآئِمَةً عَلَىٰٓ أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ ٱللَّهِ ... ﴾ [1].

## تفسير:

﴿ سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ نسبت دپاکي کوي الله ته هرهغه چي په آسمانونوکي او هرهغه چي په ځمکه کي دي (له پرښتو، انسانانو، جماداتواوونوڅخه ، لکه چي الله فرمايي ﴿ وَإِن مِّن شَىْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِۦ ﴾ (الاسرآء: ۴۴) ابن کثيرليکي چي: الله ددې اخبارفرمايي چي ګردمخلوقات د ځمکي

[1] کبيرتفسير ۲۹ / ۲۸۳

اوآسمان دالله تسبيح وايې تقديس اوپاكي يې بيانوي اودتوحيدخرگندونه يې كوي (۱) ﴿ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ او همدغه الله ښه غالب دی ښه حكمت والا دی (پخپله پاچهي اوصنعت كي) ﴿ هُوَ الَّذِىٓ أَخْرَجَ الَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِنْ أَهْلِ الْكِتَـٰبِ مِن دِيَـٰرِهِمْ ﴾ دغه الله هغه ذات دی چي ايستلي دي هغه كسان چي كافران شوي وو له اهل كتابو څخه له كورونو خپلو څخه ، دغه دالله دقدرت دځينو آثارو بيان دی يعني الله جل جلاله هغه ذات دی چي بني نضيرې دمدينې منورې له خپلو كورونو څخه په لومړي ځل ټولونه كي پسي واخيستل ځكه دوی ته داسي سپكتيا اوخواري كله هم نه وه رسېدلي ، بيضاوي ليكي: كله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم مدينې منورې ته راغی نوله بني نضيرسره يې داسي سوله روغه وكړه چي نه به ورسره ملاتړي اونه به يې په خلاف درېږي خو كله چي دبدر ورځ راغله اودمسلمانانو برى په برخه شونودوی وويل: داهغه پيغمبردی چي صفت يې په تورات كي راغلی چي دده بيرغ به كله هم نسكور نشي خو كله چي مسلمانانو د اُحُد په ورځ ماتي وخوړله نودوی شكمن اوله خپلي وعدې واوښتل كعب بن اشرف سره له څلوېښت تنه سپرومكې ته راغی اوله ابوسفيان سره يې تړون لاس ليک كړ نورسول الله صلى الله عليه وسلم محمد بن مسلمه ته دكعب دوژلو وويل: اوهغه هم درسول الله ماربينه پرځای اوكعب يې له مينځه يوړ اوبيا د مسلمانانو لښكري پردوی راوگرزېدې ترڅوچي دوی داسي روغي ته غاړه كېښوده چي له مدينې منورې څخه دي دباندي ووزي ,اكثره يې شام ته وكوچېدل اويوه طائفه خيبرته ورغلل همدا دالله وينا ده چي ﴿ هُوَ الَّذِىٓ أَخْرَجَ الَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِنْ أَهْلِ الْكِتَـٰبِ مِن دِيَـٰرِهِمْ لِأَوَّلِ الْحَشْرِ ﴾ (۲) الوسي ليكي چي ددې قول چي ﴿ لِأَوَّلِ الْحَشْرِ ﴾ دی معناداچي دغه ددوی شام ته لومړنی حشراوټولنه ده اوپدې (اول) سره پدې تنبيه ده چي ترديې له مخه كله هم دوی ايستل شوي نه وو (۳) ﴿ مَا ظَنَنتُمْ أَن يَخْرُجُوا۟ ﴾ گمان نه كاووتاسي (ای مؤمنانو) چي دوی به (له مدينې منورې) څخه ووزي (خپل كورونه او وداني به په داسي سپكتيا پرېږدي ځكه دوی خوراغښتلي په عزت اوپرتم كي اوسېدل ډېري خمكي ،كښتونه ، فصلونه ، دخرماوو اومېوو وني اوټينگي اوچتي كلاگاني يې درلودې ﴿ وَظَنُّوٓا۟ أَنَّهُم مَّانِعَتُهُمْ حُصُونُهُم مِّنَ اللَّهِ ﴾ اوگمان به كاوودوی چي بېشكه دوی لره منع كونكي، ساتونكي دي گلاكاني ددوی له (عذابه د ) الله (اوانتقام څخه يې. بيضاوي ليكي چي په اصل كي داسي ووچي وويل شي دوی گمان كاووچي ددوی كلاگاني دوی دالله له عذابه منع كوي خودغه ترتيب په اوښتي دول داسي راوړل شوچي خبرومبی راوړل شوي اودجملې اسناد ضمير ته شوی دی ترڅوددوی هغه پوخ باور افاده كړي چي دوی به درلودچي هيڅوک نشي كولای دوی له دغودنگومانيو اوټينگو كلاگانو څخه وباسي ځكه دوی خوراپه قوت څواک اوعزت كي اوسېدل

(۱) مختصرابن كثير ۳ /۴۲۹
(۲) البيضاوي ۳ /۴۲۹ .
(۳) تفسيرالوسي ۲۹ /۲۸۳

(۱)﴿ فَأَتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِنۡ حَيۡثُ لَمۡ يَحۡتَسِبُواْۖ ﴾ پس راغی پردوی (عذاب د) (الله) له هغه ځایه چې دوی ګمان نه کاوو﴿ وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ ٱلرُّعۡبَۚ ﴾ اوواچوله (الله) په زړونوددوی کي وېره (چي قوت يې په کمزوري بدل شواوامن يې په وېره واوښت ترڅوچي درسول الله صلی الله علیه وسلم په حکم راښکته شول. په حديث شريف کي راځي (نُصِرتُ بالرعب من مسيرة شهر) ماته ديوې مياشتي واټن په اندازه د وېرېدلوبرې راکول شوی دی (۲)﴿ يُخۡرِبُونَ بُيُوتَهُم بِأَيۡدِيهِمۡ وَأَيۡدِي ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ چي ورانول به يې کورونه خپل په لاسونوخپلوسره (دننه له خوا) اوپه لاسونودمسلمانانو(له بهر اوباندي څخه) مفسرين کرام ليکي چي بني نضيرمخکي له دې نه چي له خپلو کورونو وشړل شي خپل کورونه يې ورانول باموبه يې اړول اودېوالونه يې نړول ترڅوچي بيامسلمانان پکي هستوګنه ونه کړي اومسلمانانوبياددوی کورونه دباندي له خواله هره لوري ورانول ترڅو وردننه شي او ورباندي يرغل وکړي ﴿ فَٱعۡتَبِرُواْ يَٰٓأُوْلِي ٱلۡأَبۡصَٰرِ ﴾ پس عبرت واخلئ تاسي ای خاوندانودسترګو (عقلونوپه احوالوددوی) ﴿ وَلَوۡلَآ أَن كَتَبَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِمُ ٱلۡجَلَآءَ ﴾ اوکه نه وی (مقررکړی) ليکلی الله په دوی باندي وتل (فرارکول) له وطنه (له کور کهول سره) ﴿ لَعَذَّبَهُمۡ فِي ٱلدُّنۡيَاۖ ﴾ نوخامخاپه عذاب کړي به وو(الله) دوی لره په دنياکي (په وژلو او بندي کولو سره(لکه چي ددوی له ورونويهودودبني قريظه سره چلندوشو) ﴿ وَلَهُمۡ فِي ٱلۡأٓخِرَةِ عَذَابُ ٱلنَّارِ ﴾ اودوی لره دي په آخرت کي عذاب داور (دجهنم تل ترتله) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ شَآقُّواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥۖ وَمَن يُشَآقِّ ٱللَّهَ فَإِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ﴾ دغه (تعذيب ددوی) په سبب ددې ووچي ببشکه دوی ووچي مخالفت به يې کاوو له الله اوله رسول ددغه (الله) سره اوهرهغه چي مخالفت کوي له الله څخه نو ببشکه دالله سخت عذاب دی. ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَخۡذُ رَبِّكَ إِذَآ أَخَذَ ٱلۡقُرَىٰ وَهِيَ ظَٰلِمَةٌۚ إِنَّ أَخۡذَهُۥٓ أَلِيمٞ شَدِيدٌ ﴾ وروسته الله جل جلاله دهغه څه يادونه کوي کوم چي دمسلمانانو په لاس ترسره شوي چي ځيني ونې يې غوڅي کړي اوځيني مېوه لرونکي ونې يې سوځولي دي چي دغه کاردالله په حکم اواراده باندي صورت نيولی نوفرمايي ﴿ مَا قَطَعۡتُم مِّن لِّينَةٍ أَوۡ تَرَكۡتُمُوهَا قَآئِمَةً عَلَىٰٓ أُصُولِهَا فَبِإِذۡنِ ٱللَّهِ ﴾ هغه چي پرې کوی تاسي له تنو دونو (دکم اصلوخرماوو) ياپې پرېږدی هغه ولاړي په بېخونو خپلوباندي نودغه (تول) په اذن حکم دالله سره دي ﴿ وَلِيُخۡزِيَ ٱلۡفَٰسِقِينَ ﴾ او(بل لپاره ددې) چي (الله) رسواکړي فاسقانو نافرمانو(يهودانو) لره يعني ترڅو دوی سپک او وقهروي ،افسوس يې يوپه دوه کړي. امام رازي ليکي: معناداچي الله دغه اذن ځکه ورکړی چي دکفارو قهر اوکاوړزيات اوحسرت يې څوچنده شي ځکه چي ددوی دښمنان ددوی په خورا

(۱) شيخ زاده دبيضاوي حاشيه ۳ / ۳۷۰
(۲) أخرجه الشيخان.

ګرانومالونوکي تباهي کوي (١) مفسرين کرام ليکي: کله چي رسول الله صلی الله عليه وسلم بني نضير محاصره کړل نودغه وخت ځينو اصحابانو رضوان الله عليهم ددوی د خرماوو په وهلو اوسوځولو پيل وکړ ترڅو دوی ووېروي اوسپکاوی بې وکړي نو دوی وويل: ای محمده! دغه خو تباهي اوفساد دی تاخو به دفساد مخنيوی کاوو نو اوس بياولي (زرغونې مېوه لرونکي) ونې غوځوی؟! چي الله جل جلاله يادشوی آيت نازل کړ ﴿ وَمَآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ مِنْهُمْ ﴾ اوهغه مال چي راګرزولی دی الله په خپل رسول باندې (غنيمت) له مالونوددوی (بني نضيريهودانو) ﴿ فَمَآ أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ ﴾ پس نه وو ځغلولی تاسي پردوی هيڅ آس اونه هيڅ اوښ (يعني ستړی نشوی په لاسته راوړلو يې) قرطبي وايي چي: ( وجف البعيروجيفا ) معناداچي ګړندی ولاړ اوښ په تللوکي او(أوجف صاحب البعير) معناداچي اوښبه اوښ چټک تګ ته وهڅاوه او د(رکاب) معناهغه دسپرلی وړ اوښان دي يعني داچي نه تاسوکوم مشقت اوسختي وګالله اونه موکوم جنګ جګړه وکړه بلکه مدينې ته دوه ميله نژدې ورغلی اورسول الله هغه ځای په سوله سره فتح کړدوی بې وايستل اومالونه يې ترې واخيستل نوپه ځانګړې توګه دغه درسول الله صلی الله عليه وسلم لاس ته راغ ورنه وه الله هغه رسول الله ته خاص کړی چي هرچاته وغواړي ورويې بښي(٢) ﴿ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهُۥ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ ﴾ (ليکن الله مسلط کوي (برى ورکوي) رسولانوخپلوته پرهغه چاباندي چي اراده وفرمايې) يعني دالله له سنتو(طريقو)څخه يودادی چي ددښمنانوپه زړونوکي وېره غورځوي اوانبياووته ورباندي برى ورکوي پرته له دې چي دجنګ سختي اوکړاوونه وګالي ﴿ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ اوالله په هرڅيزباندي ښه قادر دی (چي هيڅوک يې مغلوبولای نشي ، ورپسې الله د(فئ) بې جګړې ولجوعمومي حکمونه داسي بيانوي فرمايې ﴿ مَّآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ مِنْ أَهْلِ ٱلْقُرَىٰ ﴾ هغه شی چي راګرزولی دی الله په رسول خپل باندي له (مالونود)اهل دکليو(يعني هغه څه چي الله رسول الله ته بې له جنګه غنيمت په لاس وروستلی له مالونودکليودکفاروڅخه ابن عباس ﷺ وايي چي: دغه کلي عبارت دي له قريظه ، نضير، فدک، او خيبرڅخه (٣) ﴿ فَلِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ ﴾ نوهغه دي الله اورسول (دالله) لره يعني دهغوحکم دادی چي دغه دالله جل جلاله اودرسول الله دي چي هرچاته يې ورکوي، رسول الله يې ځانته اخلي اود مسلمانانو په مصلحتونوکي يې لګوي ﴿ وَلِذِى ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْيَتَٰمَىٰ وَٱلْمَسَٰكِينِ ﴾ اودغه اموال دي خپلوانو درسول الله لره (له بني هاشم اوبني عبد المطلب څخه) اويتيمانولره (هغه چي پلرونه يې وفات شوي وي) او مسکينانو لره (چي اړتيا ولري) ﴿ وَٱبْنِ ٱلسَّبِيلِ ﴾ اومسافرانولره ,په التسهيل کي ليکي: چي ددغه آيت شريف او دسورت انفال په آيت کي څه توپيرنشته هلته چي کوم غنيمت راځي هغه دجنګ په کولو دآسانو

---

(١) کبيرتفسير ٢٩ / ٢٨٣

(٢) دقرطبي تفسير ١٨ / ١٠

(٣) خازن تفسير ٤ / ٦٠

اوښانوپه ځغلولو لاسته راوړل کېږي او پنځمه برخه تري بېلولای شي نو ربه غنيمت کونکو وېشل کېږي اودغه د(فئ) حکم لري کوم مال چي له کافرانو څخه پرته له جنګ کولو څخه لاس ته راوړل کېږي نوددې آيتونوترمينځ توپيراونسخ نشته ځکه نوفقهاوو رحمهم الله ددې دواړوولاس ته راوړنو حکمونه بيان کړي چي (غنيمت) يې هغه مال ګڼلى چي دجګړې په نتيجه کي دمسلمانانولاس ته ورسېږي او(فئ) بياهغه مال اوشتمني ده چي بې له جګړې اوپه سوله سره مسلمانانوته رسېدلى وي همدغه توپيردالله جل جلاله په دې ويناووکي وګوره چي دلته فرمايي ﴿ مَّآ أَفَآءَ ٱللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِۦ ﴾ اوپه انفال کي فرمايي ﴿ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّمَا غَنِمْتُم ﴾ (١) ﴿ كَىْ لَا يَكُونَ دُولَةًۢ بَيْنَ ٱلْأَغْنِيَآءِ مِنكُمْ ﴾ (مقرر کړى دى داقسمت الله )لپاره ددې چي ونه ګرزي (دغه مالونه) دولت په مينځ دغنيانو کي (لاس په لاس بې) له فقيرانوچي هغوى ورته سخته اړتياهم لري. قرطبي ليکي: معناداچي مو ږ داهسي وېش کړى ترڅو دغه مالونه سرداران اوبډايان ترخپل مينځ ونه وېشي اوفقيران بېوزله محروم پاتي نشي ځکه دجاهليت په زمانه کي به کله چي غنيمت لاسته ورغى نوربئيس به څلورمه ونډه دځان لپاره واخيسته چي (مرباع) به يې بالواونوربه يې هم چي خوښه شوه هغومره تري اخيستل (٢) مفسرين کرام ليکي چي : رسول الله صلى الله عليه وسلم دبني نضيرمالونه په مهاجرينوباندي ووېشل ځکه دوى هغه وخت سخته اړتيا درلوده انصاروته يې هيڅ هم ورنه کړل ځکه چي هغوى په خپلو پښو ولاړ اوغنيان وو ، ځينو انصاروﷺ وويل چي : موږته دي هم له دغي ولجې څخه څه برخه واى ( ! ) نو الله دغه آيت نازل کړ چي ﴿ وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ ٱلرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمْ عَنْهُ فَٱنتَهُوا۟ ﴾ اوهغه څه چي درکړي تاسي ته رسول (دالله) نوواېي خلئ ويې نيسئ ويي منئ اوهغه څه چي منع کوي (رسول الله ) تاسي له هغه څخه نوتري بيرته شئ (مه يې غواړئ ! ) مفسرين کرام ليکي چي: آيت شريف که څه هم چي د(فئ) په مالونوکي رانازل شوى دى مګردغه درسول الله په ګردواوامرواو نواهيوپوري اړوندڅيزونه ښيي هغه که واجب وي ، مستحب اوياحرام وي نو(فئ) اونورټول څېزونه پکي داخل دي (٣)له ابن مسعودﷺ څخه روايت دى چي هغه وويل: (لعن الله الواشمات و المستوشمات، والمتنمصات، والمتفلجات للحسن المغيرات خلق الله) نودبني أسدد ټبر يوې مېرمني ته دغه خبره ورسېده چي (أم يعقوب) يې بلله اودقرآنکريم تلاوت به يې کاوو هغه راغله ابن مسعودﷺ ته يې وويل: چي ستاڅخه داسي خبره ماته رسېدلي او هغه يې ورته وويله، ابن مسعود ﷺ وويل: زه به ولي په هغه چالعنت نه وايم چي رسول الله ورباندي لعنت ويلى اود الله په کتاب کي راغلي ، أم يعقوب ورته وويل: ماخوټول قرآن کريم تلاوت کړى لوستلى خودامي پکي نه دي ليدلي ابن مسعودﷺ ورته وويل: که دي لوستلى واى موندلي به دي وو آيادالله جل جلاله داقول دي نه دى لوستلى ؟ چي ﴿ وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ ٱلرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا

---

(١) التسهيل لعلوم التنزيل ٤/ ١٠٨

(٢) قرطبي تفسير ١٨/ ١٢

(٣) کبيرتفسير ٢٩/ ٢٨٦

نَهٰكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا﴾ (¹)﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ اوو ېرېږئ له (عذابه د) الله په ځان ساتلوله معاصيو (اوامتثال داوامرو يې) ﴿إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ﴾ بېشکه الله سخت دی عذاب دده (هغه چا لره چې ترې سرغړونه کوي اوحکمونه يې نه مني ﴿لِلْفُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا﴾ (دغه اموال دي) لپاره دفقيرانوهجرت کونکيو(هغوی) چې ايستل شوي دي دوی له کورونو کليوخپلو څخه اوله اموالوخپلوڅخه پدې حال کې چې طلبوي دوی فضل بښنه مهرباني له الله اورضا (دده) دغه په پخواني حکم پسې اړونددی يعني دغه فئ اوغنيمت ددغوکسانودپاره دی چې کفارو دهيواد پرېښودلوته اړايستلي وي اودوی خپل مال اوجايداددالله دخوښي اورضوان لپاره پرې ايښي وي ﴿وَيَنصُرُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾ اومرسته کوي له الله اوله رسول ددغه (الله) سره (په دغه هجرت سره) ﴿أُولَٰئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ﴾ دغه (مهاجرين) هم دوی دي صادقان رښتيني (په ايمان اوجهادکې) قتاده وايې : دغه مهاجرين هغه کسان دي چې هيوادونه اومالونه ، خپلوان يې دالله اورسول الله په مينه کې ترشاکړي دي آن تردې چې يوه تن به له لوږې په ګېډه پوري ډبره وتړله ترڅوچې وتوانېږي. له دې په وروسته الله دانصارو ﷺ يادونه داسې کوي ﴿وَالَّذِينَ تَبَوَّءُوا الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ اوهغوانصارولره دي (دغه اموال) چې ځای يې نيولی دی (پدې) کور (مدينه) کې اوخاص کړی يې دی خپل ايمان پخواله دغو (مهاجرانو) څخه (يعني هغه کسان چې مدينه يې خپل منزل او مسکن نيولی اوترډېرومهاجرينو پخوا يې ايمان راوړی دی. قرطبي وايې : معناداچې دوی مدينه پخواترمهاجرينو خپل مسکن غوره کړی او دايمان عقيده يې خپله کړې اواخلاص يې لرلی دی ﴿تَبَوَّءُوا﴾ استقرارته وايې دامقصدنه دی چې انصاروترمهاجرينودمخه ايمان راوړی بلکه مقصد دا دی چې دنبي عليه السلام ترهجرت دمخه يې ايمان راوړی دی(²) ﴿يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ﴾ خوښوي (محبت کوي) دوی له هغه چاسره چې هجرت يې کړی دی دوی ته. خازن ليکي داپدې کله چې مهاجرين راغلل نودوی پخپلوکورونو کې ورته ځای ورکړاوپخپلومالونوکې ورګډ کړل (³) ﴿وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوتُوا﴾ اونه مومي دوی په زړونوسينوخپلوکې څه تنګي (حسد) له هغه شي څخه چې ورکړی شوی وي (مهاجرينوته له غنيمت څخه)مفسرين کرام ليکي چې : رسول الله صلی الله عليه وسلم دبني نضيرمالونه دمهاجرينو ترمنځ ووېشل اوانصاروته يې پرته له دريوتنو څخه هيڅ هم ورنکړل خوله دې سره دانصارورضوان الله عليهم لخوا پدغه وېش هيڅ ګوت نيونه او انتقادونشو ﴿وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾ او غوره

(¹) دبخاري اومسلم روايت دی علماء وايې چې (وشم) خالونه دي او(مستوشمه) هغه ښځه ده چې دغه دخالونوايښودل غواړي (نامصة) هغه مېرمن ده چې دخپل مخ وېښتان او وروځي کاږي او(متفلجة) بياهغه ښځه ده چې دغاښونوترمنځ دحسن اوښکلالپاره بېل والی اودرز جوړوي دغه ټول ناروادي ځکه چې دالله دپيدا ينښت (خلق الله) تغيرراولي.

(²) دقرطبي تفسير ۱۸/ ۱۹

(³) دخازن تفسير ۴/ ۲۲

کوي (مهاجران مقدموی یې پرخپلوځانونواکرکه وي پردوی باندي تنګي (فاقه اوحاجت او همدغه خوراغېږ ایثاراوغوراوی دی) ﴿ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِۦ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴾ اوهرهغه څوک چي وساتل شي له بخل د نفس دده نه (اوله حرص نه په مال باندي) نوهمدغه کسان دي دوی مراد موندونکي په مراد رسېدونکي ) یعني څوک چي الله له بخل څخه وژغوري هغه په مرادورسېدو(شح) هغه خوراسخت بخل ته وایې چي طمع ورسره ملګري وي اودغه دنفس غریزه ده څکه یې ورته نسبت شوی دی. ابن عمر ﷺ وایې (شح) دي ته نه وایې چي خپل مال له ورکولوڅخه راوګرزي بلکه (شح) هغه ته وایې چي دبل په مال کي یې سترګي ښخي کړي وي (١) په حدیث شریف کي راځي ﴿ واتقوا الشح فانه أهلك من كان قبلكم ، حملهم على أن سفكوادماء هم واستحلوا محارمهم ﴾ (٢) له شح څخه ځانونه وژغورئ څکه شح پخواني خلګ هلاک کړل هغوی یې دیوبل ویني تویولوته وهڅول اودبل حرام مالونه یې ځانونو ته حلال وبلل ﴿ وَٱلَّذِينَ جَآءُو مِنۢ بَعْدِهِمْ ﴾ او(اموال) هغو(کسانولره دي) چي راغلي دي راځي وروسته له دغو (مهاجرو اوانصارو) نه ,دغه دمؤمنانومستحقینودریم ټولګی دی چي دوی ترقیامته تابعین بالاحسان رحمهم الله دي ﴿ يَقُولُونَ رَبَّنَا ٱغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَٰنِنَا ٱلَّذِينَ سَبَقُونَا بِٱلْإِيمَٰنِ ﴾ وایې دوی چي ای ربه زموږ مغفرت وکړه موږ ته اوهغو(دیني) ورونوزموږ ته چي ړومبی داخل شوي دي (له موږڅخه) په ایمان کي . ابوالسعودلیکي چي : ددوی صفت یې په ړومبني ایمان راوړلوسره ددې لپاره وکړچي دیني ورورګلوي ددوی په وړاندي ترنسبي وروروګلوي ډېره ګرانه ده (٣)﴿ وَلَا تَجْعَلْ فِى قُلُوبِنَا غِلًّا لِّلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ اومه ګرزوه په زړونوزموږ کي بغض کینه دهغو کسانوسره چي ایمان یې راوړی دی﴿ رَبَّنَآ إِنَّكَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴾ بېشکه ته (یاالله) ښه مهرباني کونکی خوراډېررحم والایې (زموږدعاومنه . ابن کثیرلیکي چي امام مالک ﷺ له دې آیته څومره ښکلی استنباط کړی دی هغه وایې چي روافض له غنیمته څخه برخه نلري څکه دوی اصحاباتوته ښکنځل کوي اودمؤمنانو صفات پکي نشته شیخ زاده لیکي الله بیان کړی چي دهغوکسانوچي له مهاجرینواوانصاروڅخه وروسته راغلي شان دادی چي پخواني کسان به په مهربانۍاو دعاسره یادوي ,اوڅوک چي پخواني مؤمنان په بدي سره ستایي هغوی دمؤمنانوله ډلي ددغه آیت په استدلال سره نشي ګڼل کېدای ، له شعبي څخه روایت شوی چي ویل یې یهوداونصارا په روافضوباندي په یوه خوی بهتري لري څکه کله چي له یهودوانو څخه وپوښتل شول ستاسودملت تر ګردوغوره کسان څوک دي؟ دوی وویل دموسی علیه السلام اصحابان دي اوچي له نصاراوو څخه وپوښتل شوستاسوددین غوره کسان څوک دي ویې ویل د عیسی علیه السلام اصحابان مګرکله چي له روافضوڅخه وپوښتل شول چي ستاسوددین بدمرغه

(١) دصاوي حاشیه۴ /۱۹۰
(٢) أخرجه مسلم
(٣) دابوالسعودتفسیر۵ /۱۵۲

کسان څوک دي ويې ويل چي د رسول الله اصحابان (معاذالله) الله دغوته د استغفار کولو حکم وکړ خو دوی ورته ښکنځل کوي نو د دغو په وړاندي تر قيامته پوري دا يستلي توري حکم دی.

اللهم ارزقنا محبة أُصحاب نبيک الکريم آمين يارب العالمين.

***

## الله تعالى فرمايي:

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ نَافَقُوا يَقُولُونَ لِإِخْوَانِهِمُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَئِنْ أُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ
مَعَكُمْ وَلَا نُطِيعُ فِيكُمْ أَحَدًا أَبَدًا وَإِنْ قُوتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّكُمْ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ (١١) لَئِنْ أُخْرِجُوا لَا يَخْرُجُونَ مَعَهُمْ
وَلَئِنْ قُوتِلُوا لَا يَنْصُرُونَهُمْ وَلَئِنْ نَصَرُوهُمْ لَيُوَلُّنَّ الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا يُنْصَرُونَ (١٢) لَأَنْتُمْ أَشَدُّ رَهْبَةً فِي صُدُورِهِمْ
مِنَ اللَّهِ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَفْقَهُونَ (١٣) لَا يُقَاتِلُونَكُمْ جَمِيعًا إِلَّا فِي قُرًى مُحَصَّنَةٍ أَوْ مِنْ وَرَاءِ جُدُرٍ بَأْسُهُمْ
بَيْنَهُمْ شَدِيدٌ تَحْسَبُهُمْ جَمِيعًا وَقُلُوبُهُمْ شَتَّىٰ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَعْقِلُونَ (١٤) كَمَثَلِ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ قَرِيبًا
ذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (١٥) كَمَثَلِ الشَّيْطَانِ إِذْ قَالَ لِلْإِنْسَانِ اكْفُرْ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِنْكَ إِنِّي
أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ (١٦) فَكَانَ عَاقِبَتَهُمَا أَنَّهُمَا فِي النَّارِ خَالِدَيْنِ فِيهَا وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الظَّالِمِينَ (١٧) يَا أَيُّهَا
الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ (١٨) وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ
نَسُوا اللَّهَ فَأَنْسَاهُمْ أَنْفُسَهُمْ أُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ (١٩) لَا يَسْتَوِي أَصْحَابُ النَّارِ وَأَصْحَابُ الْجَنَّةِ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ
هُمُ الْفَائِزُونَ (٢٠) لَوْ أَنْزَلْنَا هَٰذَا الْقُرْآنَ عَلَىٰ جَبَلٍ لَرَأَيْتَهُ خَاشِعًا مُتَصَدِّعًا مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ
نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ (٢١) هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ
(٢٢) هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ
سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ (٢٣) هُوَ اللَّهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ يُسَبِّحُ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ
وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ (٢٤) ﴾ الحشر: ١١ - ٢٤

### مناسبت:

کله چي الله تعالى د مخلصو مؤمنانو صفتونه ياد کړل وروسته يې د تېرايستونکو فريبګرو منافقانو يادونه وکړه هغه کسان چي د مسلمانانو مرسته يې پرېښوده اوله يهودانو سره يې تړون لاس ليک کړ تر څو د مسلمانانو په خلاف سره يوموټي وي او ورسره وجنګېږي بيا يې هغه اوږد واټن (مسافه) کوم چي د جنتيانو او دوزخيانو ترمينځ دی بيان کړ چي دوی سره برابر نه دي نه اوس سره يوشان دي او نه په راتلونکي کي د سورت په پای کي د ځيني اسماء الله الحسنى او علياء صفاتو يادونه کېږي.

لغتونه:

(شی) تیت اوپرک (خاشعًا) ذلیل اومتواضع (متصدعًا) څیري اوتوټې کله چي دېوال درزونه وکړي نوویل کیږي (تصدع البنیان) (القدوس)منزه له هره نقصه اوعیبه (المؤمن) په معجزاتوسره دخپل پیغمبرتصدیق کونکی (المهیمن) په هرشي څارونکی (العزیز) قوي اوغالب(الجبار) ستر، عظیم اوقاهرذات چي د جبروت خاوندوي (المتکبر) په عظمت اوکبریاکي مبالغ(الباریٔ) مخترع اوپیداکونکی (المصور) دانځورونو تصویرونوخالق اوپنځونکی.

تفسیر:

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ نَافَقُوا﴾ (آیانه ګوري ته هغوکسانوته چي منافقان دغابازان شوي دي ؟ دغه دالله له لوري رسول الله ته تعجیب ورکول دي یعني ای پیغمبره ته ددغومنافقینوله شانه څخه تعجب نه کوې چي دوی دظاهر په خلاف په باطن کي نورڅه پټ ساتي؟﴿يَقُولُونَ لِإِخْوَانِهِمُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ﴾ هغوی وایي هغو ورونوخپلو(یهودانو) ته چي کافران شوي دي له اهل کتابوڅخه(چي یهودان دبني قریظه اوبني نضیردي ﴿لَئِنْ أُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ﴾ قسم دی که خامخاوایستل شی تاسي (له مدینې څخه) نوخامخاوبه وزو موږ هرومروله تاسي سره. په التسهیل کي لیکي چي دغه دعبدالله بن سلول اودهغه دمنافقي ډلګی په هکله نازل شوی دی کوم چي دبني نضیریهودانوته یې پلاوي واستول او ورته یې ویل تاسوپخپلوکلاګانوکي ټینګ شئ موږ له تاسوسره یوهږدول چي ستاسوبرخه لیک وو موږبه هم ستاسي ملګري یو(۱) اوداچي منافقان بې ددوی ملګري وستایل څکه دوی هم دهغوی په شان کافران وو. ﴿وَلَا نُطِيعُ فِيكُمْ أَحَدًا أَبَدًا﴾ اونه به منو موږ (خبره په ضرردتاسي کي) دهیچاهیڅکله، یعني موږ به دپیغمبرخبره ستاسوسره په جنګ کولو کي ونه منواونه به ستاسي دخذلان فیصله له چا څخه قبوله کړو ﴿وَإِنْ قُوتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّكُمْ﴾ اوکه چیږي جنګ شروع کړی شي له تاسي سره نوخامخامددبه وکړو موږ هرومرو له تاسي سره (په څنګ کي اوله دښمن سره به مووجنګیږو) ﴿وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ﴾ اوالله ګواهي ورکوي چي بېشکه خامخادوی دروغجنان دي (په همدې خبرو کي چي وعدې ورکوي ، وروسته الله دمنافقانودحال تفصیل بیانوي فرمایي ﴿لَئِنْ أُخْرِجُوا لَا يَخْرُجُونَ مَعَهُمْ﴾ قسم دی که وایستل شي دغه یهودان (له کورونو خپلوڅخه) نه وزي دغه منافقان له یهودانو سره (له کورونو خپلونه) ﴿وَلَئِنْ قُوتِلُوا لَا يَنْصُرُونَهُمْ﴾ اوکه جنګ وکړی شي له هغو(یهودانو ) سره نو مرسته نه کوي دغه منافقان له هغوی سره. قرطبي لیکي پدې کي درسول الله صلی الله علیه وسلم د نبوت دربښتنولي دلیل دی چي همداسي وشول بني نضیروایستل شول مګردوی ورسره ونه وتل هغوی ووژل شول منافقانوبې مرستي ته ور ونه

(۱) التسهیل ۱۱۰/۴

دانګل دقرآنکریم پېشګويي رښتياشوه (¹) ﴿ وَلَئِن نَّصَرُوهُمْ لَيُوَلُّنَّ ٱلْأَدْبَـٰرَ ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ ﴾ اوکه
(اراده د )مرستي وکي دغه منافقان دغو (يهودانو ) لره خامخا وبه ګرزوي دغه منافقان په تېښته سره
شاوي خپلي بيابه مددونه مومي ، وبه نکړی شي (منافقان يهودانوسره مرسته وروسته له ماتي) يعني
بياهم که بالفرض والتقديردهغوی مرستي ته راشي نو ماتي به خوري دمنافقانومرسته به ورته ګټه ونه
رسوي . امام فخررازي ليکي : الله تعالی ددې اخبار فرمايلی که چېري يهودان وايستل شي منافقان به
ورسره ونه وزي اوهمداسي وشول کله چي بني نضير وايستل شول منافقان ورسره ونه وتل او ورسره
جګړه وشوه مګرمنافقانويې مرسته ونکړه او دا چي الله تعالی فرمايي ﴿ وَلَئِن نَّصَرُوهُمْ ﴾ دغه دفرض
اوتقديرپه توګه دي(²) يعني که چېري منافقان د دغويهودانود مرستي کولواراده هم وکړي خامخابه
ورته شاکوي مرسته به يې نکوي اوماتي به خوري ﴿ لَأَنتُمْ أَشَدُّ رَهْبَةً فِى صُدُورِهِم مِّنَ ٱللَّهِ ﴾
(خامخاتاسو(ای مؤمنانو ) ډېرسخت يې له جهته د وېري په سينوزړونو ددغو(منافقانو ) کي له (وېري د)
الله يعني دوی له الله څخه دومره نه وېرېږي لکه چي له تاسوڅخه وېرېږي ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا
يَفْقَهُونَ ﴾ دغه (وېره دمنافقانوله مؤمنانوڅخه) په سبب د دې دی بېشکه چي دوی داسي قوم دی
چي نه پوهېږي (په عظمت اولويې دالله چي ترې و وېرېږي . قرطبي ليکي:معنادا چي دوی دالله دعظمت
قدراوقدرت نه پېژني(³) )وروسته الله تعالی ديهودانواو منافقانو بې زړه توب ښکاره کوي چي دوی
دومره ډارن دي چي له مؤمنانوسره دجګړې توان نلري مګر هغه وخت چي په دنګو کلاګانواودهغو په
برجانوکي ناست وي الله فرمايي ﴿ لَا يُقَـٰتِلُونَكُمْ جَمِيعًا إِلَّا فِى قُرًى مُّحَصَّنَةٍ ﴾ جنګ به ونکړي دغه
(يهودان) له تاسي سره (ای مؤمنانو) ټول په ګډه سره مګرپه کليو کلک کړی شويو(په
دېوالونواوخندقونوباندي) ﴿ أَوْ مِن وَرَآءِ جُدُرٍۭ ﴾ ياوروسته له دېوالونو سنګرونه څخه (چي دهغوی له
شادرته پټ وي اودغه ددوی له بې زړه والي څخه دی ﴿ بَأْسُهُم بَيْنَهُمْ شَدِيدٌ ﴾ جنګ ددوی په مينځ
ددوی کي ډېرسخت دی (يعني ددوی ترمينځ سخته دښمني ده ) ﴿ تَحْسَبُهُمْ جَمِيعًا وَقُلُوبُهُمْ شَتَّىٰ ﴾ (ګمان
به کوې ته په دوی چي سره يودي او(حال دا چي)زړونه ددوی سره جلادي ) يعني ته به ظاهره خيال کوې
چي دوی په يوه خوله يوه سلادي الفت او اتحادلري مګر دوی يوله بله سره سخت اختلاف لري خکه يوله
بله يې رايه ګوښي بېله لري زړونه يې سره بېل بېل دي قتاده وايې دباطل پرستانورايي ، خواهشات
اوشهادتونه ګواهي مختلفي اوتيت او پرک وي مګرد حق په دښمني کي ګردسره يوموټي دي(⁴) ﴿ ذَٰلِكَ
بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ ﴾ دغه (پرېشاني اختلاف د زړونوددوی ) په سبب ددې دی چي بېشکه دوی

(¹) قرطبي ۱۸/ ۳۴
(²) کبيرتفسير ۲۹ / ۲۸۹
(³) تفسيرقرطبي ۱۸/ ۳۵
(⁴) خازن تفسير ۴ / ۲۲

داسي يو قوم دی چي نه پوهېږي (داسي عقل نلري چي دالله حکم ور باندي وپېژني په البحر کي ليکي چي ددغه تفرق موجب ددوی دعقلونو نېستي ده دوی لکه څلورېول ځاروي غوندي دي چي په يوه حال سره متفق نه دي (١)) ﴿ كَمَثَلِ ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ قَرِيبًا ﴾ (مثال ددوی په ايمان نه راوړلو کي) لکه مثال کيسه دهغو کسانو ده چي وو دوی پخواله دوی نه په نژدې زمانه کي) يعني مثال دبني نضيرو په سپکتيا او ايستلو کي لکه مثال دمکې دکفارو غوندي دی هغوی چي دبدر په غزاکي ووژل شول اوبنديان شول بيضاوي ليکي: معناداچي مثال ددغو يهودانو لکه دمکې دکفاروغوندي دي چي په بدرکي تارومارشول اويالکه دهغو نژدې هلاک شوي امتونوغوندي دی (٢)) ﴿ ذَاقُوا۟ وَبَالَ أَمْرِهِمْ ﴾ چي وڅکله هغوی سزادبدو چارو خپلو (په دنياکي په بند اوقتل سره) ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ اوشته هغوی ته عذاب دردناک (په آخرت کي) ﴿ كَمَثَلِ ٱلشَّيْطَـٰنِ إِذْ قَالَ لِلْإِنسَـٰنِ ٱكْفُرْ ﴾ (مثال دمنافقانو په مخالفت دوعدې کي) لکه مثال د شيطان داسي دی کله چي وايې انسان ته چي کافرشه !(اوبياترې بېزاره شي اوهغه دنېروي) ﴿ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّى بَرِىٓءٌ مِّنكَ ﴾ نو کله چي (انسان) کافرشي وايې (شيطان) زه له تاڅخه بېزاره يم (اووايي) ﴿ إِنِّىٓ أَخَافُ ٱللَّهَ رَبَّ ٱلْعَـٰلَمِينَ ﴾ بېشکه چي زه وېرېږم له الله چي پالونکی دټولو عالميانو دی) يعني زه دالله له عذاب او انتقام څخه که چېري ورباندي ايمان نه راوړم وېرېږم. په التسهيل کي ليکي: چي داهغه مثال دی چي الله دمنافقانو لپاره راوړی دی هغه کسان چي يهودان يې تېرايستلي اوهغوی يې سپکه سپانده کړل لکه چي شيطان يوځل بني آدم تېرباسي (وغولوي) اوبياترې بېزاره شي مراد له شيطان او انسان څخه دلته جنس دی او دشيطان دغه وينا چي ﴿ إِنِّىٓ أَخَافُ ٱللَّهَ ﴾ دهغه رياکاري اودروغ دي ځکه که چېري هغه په رښتيا له الله څخه وېرېدلای نوبه يې سرغړونه نه کوله دهغه الله جلت عظمته دحکم امتثال به يې کړی وو (٣)) ﴿ فَكَانَ عَـٰقِبَتَهُمَآ أَنَّهُمَا فِى ٱلنَّارِ خَـٰلِدَيْنِ فِيهَا ﴾ پس دی انجام ددواړو منافقينو اويهودانو يعني گمراه کونکو او گمراه شويو شيطانانو او انسانانو) داسي چي بېشکه هغوی دواړه به په اورکي وي تل ترتله به په هغه (اور) کي اوسېږي ﴿ وَذَٰلِكَ جَزَٰٓؤُا۟ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ اودغه خلودداوردوزخ جزا د ظالمانو (کافرانو) ده) هغه کسان چي دالله ددين اوحرماتو پابندي نه کوي ، کله چي دمنافقينو او يهودانو صفتونه يادشول اودهغوی لپاره يې مثالونه وړاندي کړل نو وروسته يې دمؤمنانو لپاره يو ښکلی نصيحت راووړچي دتېروکسانو په څېرونگرزي ويې فرمايل: ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ﴾ ای هغو کسانو چي ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو ! ځان وساتئ له گناهونو)

---

(١) البحرتفسير ٨ / ٢٤٩

(٢) البيضاوي

(٣) ابن کثيرليکي : يعني داچي ددغويهودانو دتېروتلو مثال داسي دی لکه چي کله شيطان انسان ته کفرښايسته کړي اوبيااورڅخه بېزاره شي همداسي منافقان يهودان تېرباسي اوبيا ورسره ملگرتيانه کوي المختصر ٣ / ٤٧٢.

ووېرېږئ له (عذابه د) الله (په امتثال كولو د اوامرودالله اواجتناب له نواهيوڅخه ﴿ وَلْتَنظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ ﴾ او ښايي چي ودي ګوري هرنفس هغه څه ته چي ړومبی يې لېږلي دي لپاره دسبا (قيامت دورځي) ابن كثير ليكي: معناداچي وګورئ دسبالپاره موله نيكواعمالو څه لېږلي دي؟ كله چي الله ته ورِاندي كېږئ؟ قيامت يې سباځكه وبالوچي نژدې دى لكه داچي ﴿ وَمَآ أَمْرُ ٱلسَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ ٱلْبَصَرِ ﴾ او تنكيرپه (غد) دتهويل اوتفخيم لپاره دى (١) ﴿ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ ﴾ اوو ېرېږئ له الله (په ځان ساتلوله ګناهونو تكرارېي ځكه راوړچي تاكيدافاده كړي اوداچي دتقوى رتبه اومنزلت وښيي چي دغه دالله وصيت دى چي ړومبنيواو وروستنيوته يې فرمايلي دي (٢)) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ بېشكه چي الله ښه خبرداردى په هغوعملونو چي تاسي يې كوى (نوجزابه ورباندي دركړي) ﴿ وَلَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ نَسُواْ ٱللَّهَ فَأَنسَىٰهُمْ أَنفُسَهُمْ ﴾ اومه كېږئ تاسي (اى مؤمنانو) په څېردهغوكسانوچي الله يې هېر كړى دى (طاعت ,يادا ومراقبت يې نكوى) بياهېركړي الله پردوى حق دنفسونوددوى (چي مصلحتونه ددوى يې ترې هېركړي دي ابوحيان ليكي: چي دغه مجازات دګناه پر ګناه دى دوى دالله عبادت اوداوامرو امتثال پرېښود نوپه دې مجازات باندي اخته شول چي دځپلوځانونو مصلحتونه اوښېګړي ترې هېري شوې چي دځان لپاره يې هيڅ دښمرې اوګټي كارترسره نكړ(٣)) ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْفَٰسِقُونَ ﴾ دغه خلك هم دوى دي فاسقان (نافرمانه فاجران وتلي له طاعته درب خپل) ﴿ لَا يَسْتَوِىٓ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ وَأَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ ﴾ نه دي سره برابر(په ورځ دقيامت په بهتري اومرتبه كي) ياران ملګري داور(بد مرغه كسان) اوياران ملګري دجنت (نېكمرغه كسان) ﴿ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ هُمُ ٱلْفَآئِزُونَ ﴾ ياران ملګري د جنت هم دوى دي مرادموندونكي په مرادرسېدلي چي په تل ترتله سعادت نازېدلي چي دار النعيم جنت دى له دې په وروسته الله دقرآن كريم هيبت اواغېزبيانوي چي اوچت اودنګ غرونه يې هم له وېري ويلي كېږي فرمايي ﴿ لَوْ أَنزَلْنَا هَٰذَا ٱلْقُرْءَانَ عَلَىٰ جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهُۥ خَٰشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ ٱللَّهِ ﴾ كه نازل كړي واى موږ (احكام ددغه) قرآن په يوه غره باندي (په مثل دانسان چي عقل ، تميزاوفهم مو وركړى واى لكه د انسان نوخامخاليدلى به دې وتاهغه غر وېرېدونكى فرمان منونكى ټوټې ټوټې كېدونكى له وېري (دعذابه د الله دغه دقرآن كريم دعظمت انځوردى چي قوت اواغېزيې دومره دى چي كه غريې سره له سختي كلكوالي اولوى والي مخاطب شي نوهغه به له ډېري وېري وچوي مقصدله دې څخه د انسان توبيخ دى چي ولي يې دتلاوت په وخت كي خشوع اوخضوع نه كوي بلكه له هغو عجائباتو او عظائمو څخه يې چي پكې دي ځنګ كوي، دغه آيت دقرآن عظمت او دانسان وروكتوب (دنائت) بيانوي په البحرالمحيط كي ليكي چي په آيت شريف كي دانسان زړه دكلكتيا(قسوت) په هكله توبيخ دى چي داهسي قرآن ورباندي

(١) دابوالسعود تفسير ٥/ ١٥٤ (٢) ﴿ وَلِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ۗ وَلَقَدْ وَصَّيْنَا ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكُمْ وَإِيَّاكُمْ أَنِ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ ﴾ النساء: ١٣١
(٣) تفسيرالبحر المحيط ٨/ ٢٥١

اغېزنه کوي کوم چي که چېري په غره نازل شوی وای له وېري څخه به يې ټوټې ټوټې شوی وای سره له دي چي خوراټينګ اولوی هم دی نودبنيادم لپاره چي خورا بېوزله اوناتوانه دی دابېخي سمه وه چي قرآنکريم ورباندي اغېزه کړي وای مګرهغه سره له حقارت اوضعفه له قرآنکريم څخه نه متأثرکېږي

(١)﴿وَتِلْكَ ٱلْأَمْثَٰلُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ اودامثالونه بيانوو اوروو موږ هغه خلګوته (لپاره ددې)چي دوی فکر غور پکي وکړي (ګټه ترې پورته کړي دالله دقدرت او وحدانيت آثاراونښي ووينې او ايمان پرې راوړي کله چي الله تعالی دقرآنکريم ستاينه وکړه ورپسې يې دالله دعظمت اوجلال دځېرلو په هکله داسي وفرمايل ﴿هُوَ ٱللَّهُ ٱلَّذِى لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ دغه (الله) هغه ذات دی چي نشته بل هيڅ معبودبرحق مګرخوهم دی (دی له ده پرته بل برحق معبوداورب نشته )﴿عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ﴾ عالم دی په غيبوباندي او (عالم دی) په ښکاره ووباندي) يعني په ټولو هغوپټواوښکاره وودبندګانوپرګردوعالم دی ﴿هُوَ ٱلرَّحْمَٰنُ ٱلرَّحِيمُ﴾ همغه (الله) دی خورامهربان ډېر رحم والا(په دنيااوآخرت کي) ﴿هُوَ ٱللَّهُ ٱلَّذِى لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ دغه الله (هغه ذات دی ) چي نشته هيڅ معبودبرحق خوهم دی دی ، دغه لفظ يې ددې لپاره مکرر راووړچي دتوحيد په هکله پاملرنه افاده کړي ﴿ٱلْمَلِكُ﴾ (يوازي) بادشاه دی (مالک دی دټولو مخلوقاتواوتصرف کونکی دی پخپل مخلوق کي په امر اونهی کولو اوايجاد (پيداکولو)اواعدام (پناه کولو) کي ﴿ٱلْقُدُّوسُ﴾ ښه پاک دی (له ټولو قبائحواودحوادثوله صفاتو څخه ، په التسهيل کي ليکي چي قدوس له تقديس څخه مشتق اوهغه دمخلوقاتوله صفاتواوِ ګردو عيوبو څخه دمنزه په معنی دي اولکه (سبوح) غوندي دمبالغي صيغه ده په احاديثوکي راغلي چي ملائکي خپل تسبيحات داسي لولي :( سبوح ، قدوس ، رب الملائکة والروح) ﴿ٱلسَّلَٰمُ﴾ سالم دی (له ګردو عيوبو ) هغه ذات دي چي خلک يې له ظلمه خوندي دي ﴿وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ أَحَدًا﴾ بيضاوي ليکي: معناداچي سالم دی له هره نقص اوآفته څخه دغه مصدر دی دمبالغې لپاره ورباندي موصوف شوی دی(٢)﴿ٱلْمُؤْمِنُ﴾ امان ورکونکی دی ،تصديق کونکی دی دنبيانوخپلوپه اظهاردمعجزاتوپه لاسونو ددوی ﴿ٱلْمُهَيْمِنُ﴾ ساتونکی څارونکی دی (په اعمالودبندګانواوهرڅېزباندي ابن عباس رضی الله عنه وايي معناداچي شاهددی په اعمالود بندګانو هيڅ څېزترې پټ نه دی (٣)﴿ٱلْعَزِيزُ﴾ ښه زبردست دی ، قاهراوقادردی هيڅوک ورباندي برلاسی کېدای نشي او نه ورته ذلت رسېږي ﴿ٱلْجَبَّارُ﴾ دوېري خاوندی (عاليجناب دی چي له ده پرته ګردتيټ دي. ابن عباس وايي: معناداچي دومره عظيم ذات دی که هرڅه وغواړي هغه کوي دالله جبروت

(١) البحرالمحيط ٨ /٢٥١
(٢) الخازن ٤ /٧٢
(٣) القرطبي ١٨ /٤٧

يعني دهغه عظمت (١) ﴿ ٱلْمُتَكَبِّرُ ﴾ لوی څښتن دی چي لويوالی له ده پرته له بل چاسره نه ښايي په قدسي حديث کي راغي چي: (العظمة ازاري والکبرياء رداءي فمن نازعني فيهما قصمته ولا أبالي)(٢) عظمت زما ازاراوکبرياء مي څادردی ځوک چي په دغودواړو کي له ماسره شخړه کوي هغه به مات کړم اوپروا به يې ونلرم. امام فخررازي ليکي: پوه شه چي تکبرپه خلګوکي دذم صفت دی ځکه چي متکبرهغه ځوک دی چي خپل ځان لوی ګڼي اودغه دمخلوق په باب کي نقص دی ځکه چي هغه خو دلويي او لوړتياخاوندنه دی بلکه هغه ته پرته له مسکنت اوذلت څخه بل څه نشته او کله چي ځان لوی وبولي دروغجن دی نوځکه دخلګوپه هکله دغه مذموم صفت دی اوحق تعالی سبحانه خودګردو انواعوکبرياء،علواوعظمت خاوند دي او کله چي يې ځرګندکړي نو خپلو بندګانو ته دخپل جلال ،علواوعظمت ښودنه اوارشادکوي دغه دالله جل جلاله په باب نهايته مدح اوصفت دی(٣) ځکه په پای کي الله فرمايي ﴿ سُبۡحَٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يُشۡرِكُونَ ﴾ پاک دی ذات دالله له هغو شيانو چي (مشرکان يې) ورسره شريکوي (له اندادوامثالوڅخه) ﴿ هُوَ ٱللَّهُ ٱلۡخَٰلِقُ ٱلۡبَارِئُ ﴾دغه الله (هغه ذات دی) چي پيداکونکی دی راويستونکی دی (له عدمه وجودته) ﴿ ٱلۡمُصَوِّرُ ﴾ صورت ورکونکی دی (په خپله اراده باندي) ﴿ هُوَ ٱلَّذِي يُصَوِّرُكُمۡ فِي ٱلۡأَرۡحَامِ كَيۡفَ يَشَآءُ ﴾ خازن ليکي معنا دا چي مخلوق په داسي پيدايښت پيداکوي لکه څنګه چي يې غواړي (٤)﴿ لَهُ ٱلۡأَسۡمَآءُ ٱلۡحُسۡنَىٰ ﴾ هم دغه (الله) لره دي نومونه نيک عمده مخصوص (لوړچي په ښکليوحسينو معناګانودلالت کوي ﴿ يُسَبِّحُ لَهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ ﴾ په پاکي سره يادوي هغه (الله) لره هرهغه څه چي په آسمانونوکي دي او (هر هغه څه چي په ځمکه کي دي (په زبان حال ياقال سره. صاوي ليکي: چي سورت يې په تسبيح سره پای ته ورساوولکه چي په تسبيح يې پيل کړی وو ترڅودي ته اشاره وشي چي همدغه خوراستر مقصوددی اوهمدغه پيل اوپای اودالله دپېژندګلوي غايه اوموخه ده همدغه دالله دعظمت له هغه څه نه تنزيه او تقديس دی کوم چي عقلونودالله په هکله انځورکړي وي (٥)﴿ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ﴾ اوهم دغه (الله)ښه غالب دی ښه حکمت والادی په خپله پاچهي اوخلق اوصنعت کي.

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

١- سلبي طباق لکه ﴿ مَا ظَنَنتُمۡ أَن يَخۡرُجُواْۖ وَظَنُّوٓاْ أَنَّهُم مَّانِعَتُهُمۡ حُصُونُهُم مِّنَ ٱللَّهِ ... ﴾.

---

(١) خازن تفسير ۴ /۷۲
(٢) القرطبي ۱۸ /۴۷
(٣) کبيرتفسير ۲۹ /۲۹۴
(۴) خازن تفسير ۴ /۷۳
(۵) دصاوي حاشيه ۴ /۱۲۴

۲- لطیفه مقابله چې د﴿ وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ ٱلرَّسُولُ فَخُذُوهُ ﴾ او د﴿ وَمَا نَهَىٰكُمْ عَنْهُ فَٱنتَهُوا۟ ﴾ ترمینځ راغلي ده.

۳- دمبتداء او خبر ترمینځ دضمیر راوړل چې حصرافاده کړي لکه داچې فرمایي: ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّٰدِقُونَ ﴾.

۴- لطیفه استعاره پدې آیت کې چې ﴿ وَٱلَّذِينَ تَبَوَّءُو ٱلدَّارَ وَٱلْإِيمَٰنَ ﴾ هغه په دې چې ایمان یې هم له قرارګاه سره تشبیه کړی کوم چې ددوی په زړونو کې مېشت دی لکه چې انسان په هستوګنځي اومستقر کې اوسي او هغه یې ځای وي نو دغه لطیفه باریکه استعاره ده.

۵- استفهام چې انکاري او د تعجب دافادې لپاره وي لکه داچې فرمایي ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ نَافَقُوا۟ ﴾ دآیت شریف تر پایه.

۶- دطباق صنعت کوم چې د﴿ جَمِيعًا ﴾ او﴿ شَتَّىٰ ﴾ ترمینځ په دې مبارک کلام کې راغلی دی چې ﴿ تَحْسَبُهُمْ جَمِيعًا وَقُلُوبُهُمْ شَتَّىٰ ﴾.

۷- تمثیلي تشبیه هلته چې فرمایي: ﴿ كَمَثَلِ ٱلشَّيْطَٰنِ إِذْ قَالَ لِلْإِنسَٰنِ ٱكْفُرْ ﴾ دلته دشبه وجه له متعدد څخه رااېستل شوي نو تمثیلي تشبیه بلل کېږي.

۸- لطیفه کنایه چې پدې قول دالله جل جلاله کې راغلي چې ﴿ وَلْتَنظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ ﴾ له قیامت څخه یې په سبا کنایه راوړې ځکه چې نژدې دی.

۹- دطباق صنعت چې د﴿ ٱلْغَيْبِ ﴾ او﴿ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ ترمینځ راغلی او یا هم د﴿ ٱلْجَنَّةِ.. ٱلنَّارِ ﴾ ترمینځ شته.

لطیفه:

بخاري او مسلم یو حدیث شریف له ابي هریرة ﷺ څخه روایت کوي چې یوه ورځ یو سړی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغی ورته ویل یې ای پیغمبره زه دېر سخت وږی یم نو رسول الله صلی الله علیه وسلم خپلو مېرمنو ته څوک واستاوو چې آیا په کورکې څه خواړه شته؟ هغوی په خواب کې ورته وویل: زمادې په هغه الله سوګند وي چې ته یې په حقه رااستولی یې له اوبو پرته بل هیڅ نشته بیایې بلې مېرمنې ته وروااستاوو هغې هم داسې ځواب ووایو او ګرد و أمهات المؤمنین رضی الله عنهن همداسې وویل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څوک به داسړی نن شپه مېلمه کړي الله دې وربانديې مهربانه شي؟ له انصارو څخه یو تن پاځېدو چې ابو طلحة یې بالو ویې ویل ای رسول الله زه به یې مېلمه کړم! هغه یې کورته بوت او خپلې مېرمنې ته یې وویل: دغه درسول الله صلی الله علیه وسلم مېلمه دی ښه عزت یې وکړه څه چې په کورکې دي هغه ورڅخه مه سپموه! هغې ورته وویل: زموږ کره یوازې دماشومانو خواړه شته نو ابو طلحة ورته وویل: هغوی یو نه یو ډول آرام او ویده کړه او کله چې مېلمه دننه راشي ډوډۍ تیاره

کړه او بیا پدې پلمه چې څراغ سموې څراغ ووژنه هغه به داسي انګېري چې موږ هم ورسره یوځای ډوډۍ خورو نو خپله به په ښېغمي ډوډۍ وخوري هغې هم دغسې وکړل او مېلمانه ډوډۍ وخوړه دوی ورېږي ویده شول کله چې سهار شو او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورغلل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم چې ورته وکتل په موسکا شو او ویې ویل ستاسو له مېلمانه سره ښېګاني چلند الله جل جلاله ته خوندور کړه په تعجب شو او دا آیت یې نازل کړ چې ﴿ وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ﴾ د آیت تر پایه.
د الله جل جلاله په مرسته د الحشر سورت د تفسیر ژباړه بشپړه شوه.

***

## د (الممتحنة) سورت مدني او دیارلس آیتونه لري

دسورت په وړاندي:

دغه مبارک سورت له مدني سورتونو څخه یو دی چې د تشریع په هکله ارشادات کوي د سورت محور د (الحب في الله والبغض في الله) په خواوشا راڅرخي هغه چې د ایمان مضبوطه کړۍ ده د سورت پیل د حاطب بن ابي بلتعه د ترټلو په هکله دی کله چې یې د مکې خلګو ته لیک واستاوو چې رسول الله د دوی د غزا لپاره چمتو کېږي ، لکه چې الله پدې سورت کي د کفارو سره د دوستي نه کولو حکم راوړي او الله پاک د حضرت ابراهیم علیه السلام او مؤمنانو مثال یادوي چې څرنګه له مشرکانو څخه بېزاره وو او د هغو کسانو حکم بیانوي چې له مؤمنانو سره جنګېدلي نه دي او د مؤمناتو مهاجراتو مېرمنو د ازموینې حکم او دارنګه نور تشریعي احکام رااخلي.

دسورت پیل پدې وېرونه او تحذیر شوی چې د الله له دښمنانو سره دي موالات او دوستي ونکړي شي هغوی مؤمنانو ته ډېر آزارونه رسولي تر څو چې هیواد پرېښودلو (هجرت) ته یې اړ ایستلي فرمایي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ عَدُوِّى وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ ... ﴾ د آیت تر پایه ، ورپسې دا ځرګندوي چې د دغه ژوندانه خپلوي ، قرابت او دوستي ملګرتیا په قیامت کي هیڅ ګټه نه رسوي هلته پرته له ایمان او صالح عمل څخه بل څه چاته نه په کار ېږي ﴿ لَن تَنفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُمْ ۚ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ... ﴾ د آیتونو تر پایه.

بیا د حضرت ابراهیم علیه السلام او د هغه د پلویانو مؤمنانو مثال راوړي چې له خپله مشرکه قومه او تبره څخه بېزاره شول تر څو د ګردو مؤمنانو لپاره هڅونکی پیغام وي چې د انبیاوو په پلارپسي هغه چې د الله خلیل وو اقتداء وکړي الله فرمایي: ﴿ قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِىٓ إِبْرَٰهِيمَ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ إِذْ قَالُوا۟ لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُا۟ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا ... ﴾ د آیتونو تر پایه.

له دې وروسته سورت د هغه چا حکم راوړي چې له مؤمنانو سره یې دښمني او جنګ جګړه نه وي کړي فرمایي: ﴿ لَّا يَنْهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ ٱلَّذِينَ لَمْ يُقَٰتِلُوكُمْ فِى ٱلدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُم مِّن دِيَٰرِكُمْ أَن تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوٓا۟ إِلَيْهِمْ ۚ ﴾ او همداراز د هغه چا حکم بیانوي چې مؤمنانو ته یې کړاوونه رسولي او هغوی یې ځورولي وي فرمایي ﴿ إِنَّمَا يَنْهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ ٱلَّذِينَ قَٰتَلُوكُمْ فِى ٱلدِّينِ ... ﴾ د آیتونو تر پایه.

همداسي سورت دمؤمنو مېرمنو کله چي هجرت وکړي ازموينه لازمه ګڼي ترڅو بيرته يې کفاروته
له ايمان سره ونه سپاري اوهمداسي نبيي چي کافرعصمت نلري اوبياله رسول الله صلى الله عليه وسلم
سره دمېرمنوبيعت اودهغه شرطونه بيانوي فرمايي ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا جَآءَكُمُ ٱلْمُؤْمِنَٰتُ مُهَٰجِرَٰتٍ
فَٱمْتَحِنُوهُنَّ ...﴾ دآيتونو ترپايه اوداچي فرمايي ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُؤْمِنَٰتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَىٰٓ أَن لَّا يُشْرِكْنَ
بِٱللَّهِ شَيْـًٔا﴾ دآيتونو ترپايه

دسورت په پای کي دمؤمنانولپاره دکفارو له موالات اودوستي څخه تحذيرراغلی اوداسي
فرمايي ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَوَلَّوْاْ قَوْمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ قَدْ يَئِسُواْ مِنَ ٱلْـَٔاخِرَةِ كَمَا يَئِسَ ٱلْكُفَّارُ مِنْ أَصْحَٰبِ
ٱلْقُبُورِ﴾ اوهمداسي سورت لکه چي پيل شوی وو پای ته رسېږي پيل اوپای يې له کفاروسره دوستي نه
کول څرګندوي اودغه دپيل اوپای تناسق اونظم په ښه پېيلتوب کي شته دی.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ عَدُوِّى وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُواْ بِمَا جَآءَكُم مِّنَ ٱلْحَقِّ
يُخْرِجُونَ ٱلرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَن تُؤْمِنُواْ بِٱللَّهِ رَبِّكُمْ إِن كُنتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَٰدًا فِى سَبِيلِى وَٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِى تُسِرُّونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَأَنَا۠
أَعْلَمُ بِمَآ أَخْفَيْتُمْ وَمَآ أَعْلَنتُمْ وَمَن يَفْعَلْهُ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ ﴿١﴾ إِن يَثْقَفُوكُمْ يَكُونُواْ لَكُمْ أَعْدَآءً وَيَبْسُطُوٓاْ إِلَيْكُمْ
أَيْدِيَهُمْ وَأَلْسِنَتَهُم بِٱلسُّوٓءِ وَوَدُّواْ لَوْ تَكْفُرُونَ ﴿٢﴾ لَن تَنفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ وَٱللَّهُ بِمَا
تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٣﴾ قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِىٓ إِبْرَٰهِيمَ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ إِذْ قَالُواْ لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُاْ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن
دُونِ ٱللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُواْ بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥٓ إِلَّا قَوْلَ إِبْرَٰهِيمَ لِأَبِيهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ
وَمَآ أَمْلِكُ لَكَ مِنَ ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ رَّبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ ٱلْمَصِيرُ ﴿٤﴾ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُواْ وَٱغْفِرْ
لَنَا رَبَّنَآ إِنَّكَ أَنتَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴿٥﴾ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُواْ ٱللَّهَ وَٱلْيَوْمَ ٱلْـَٔاخِرَ وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ ٱللَّهَ هُوَ
ٱلْغَنِىُّ ٱلْحَمِيدُ ﴿٦﴾ ۞ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ ٱلَّذِينَ عَادَيْتُم مِّنْهُم مَّوَدَّةً وَٱللَّهُ قَدِيرٌ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٧﴾ لَّا يَنْهَىٰكُمُ ٱللَّهُ
عَنِ ٱلَّذِينَ لَمْ يُقَٰتِلُوكُمْ فِى ٱلدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُم مِّن دِيَٰرِكُمْ أَن تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوٓاْ إِلَيْهِمْ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُقْسِطِينَ ﴿٨﴾ إِنَّمَا يَنْهَىٰكُمُ ٱللَّهُ
عَنِ ٱلَّذِينَ قَٰتَلُوكُمْ فِى ٱلدِّينِ وَأَخْرَجُوكُم مِّن دِيَٰرِكُمْ وَظَٰهَرُواْ عَلَىٰٓ إِخْرَاجِكُمْ أَن تَوَلَّوْهُمْ وَمَن يَتَوَلَّهُمْ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٩﴾
يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا جَآءَكُمُ ٱلْمُؤْمِنَٰتُ مُهَٰجِرَٰتٍ فَٱمْتَحِنُوهُنَّ ٱللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَٰنِهِنَّ فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مُؤْمِنَٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ إِلَى
ٱلْكُفَّارِ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ وَءَاتُوهُم مَّآ أَنفَقُواْ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَن تَنكِحُوهُنَّ إِذَآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ وَلَا تُمْسِكُواْ
بِعِصَمِ ٱلْكَوَافِرِ وَسْـَٔلُواْ مَآ أَنفَقْتُمْ وَلْيَسْـَٔلُواْ مَآ أَنفَقُواْ ذَٰلِكُمْ حُكْمُ ٱللَّهِ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١٠﴾ وَإِن فَاتَكُمْ شَىْءٌ مِّنْ
أَزْوَٰجِكُمْ إِلَى ٱلْكُفَّارِ فَعَاقَبْتُمْ فَـَٔاتُواْ ٱلَّذِينَ ذَهَبَتْ أَزْوَٰجُهُم مِّثْلَ مَآ أَنفَقُواْ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ ٱلَّذِىٓ أَنتُم بِهِۦ مُؤْمِنُونَ ﴿١١﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ

إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَىٰ أَن لَّا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا وَلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِينَ وَلَا يَقْتُلْنَ أَوْلَادَهُنَّ وَلَا يَأْتِينَ بِبُهْتَانٍ يَفْتَرِينَهُ بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ وَلَا يَعْصِينَكَ فِي مَعْرُوفٍ فَبَايِعْهُنَّ وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۲﴾
يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ قَدْ يَئِسُوا مِنَ الْآخِرَةِ كَمَا يَئِسَ الْكُفَّارُ مِنْ أَصْحَابِ الْقُبُورِ ﴿۱۳﴾

الممتحنة: ۱ - ۱۳

## لغتونه:

(أولياء) د(ولي) جمع او دوستانو ملګروته وايې هغه چې مرستندوى او كومک كونكى وي (يثقفوكم) چې پرتاسو برياليي شي، (ثقف) په اصل كې په يوشي ښه پوهېدل او ديوكارپه ښه توګه سرته رسول دي لكه چې وايي: ( رجل ثقفٌ لقفٌ) او بيا وروسته په بري موندلو او لاس ته راوړلو كې مستعمل شو(۱)(أسوة) اقتداء كول (أرحامكم) ستاسو قرابتونه درحم جمع او په اصل كې دښځي رحم ته وايې خو بيا په قرابت او خپلوي كې داسي مستعمل شو لكه چې حقيقت يې هم داوي (ظاهروا) دوى مرسته كوي (عصم) دعصمت جمع او هغه څه ته وايي چې انسان ورباندې منګولي لګوي هغه كه رسۍ ،پړى او يا غوټه وي اودلته مقصد نكاح ده (الكوافر) د(كافرة )جمع او هغه مېرمن ده چې په الله تعالى ايمان نلري.

## دنزول سبب:

كله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دمكې دفتحې لپاره ترتيبات نيول نو حاطب بن ابي بلتعه دمكې خلكوته ليک واستاوو او پدې يې خبر كړل چې رسول الله صلى الله عليه وسلم غواړي پرتاسو يرغل وكړي تاسو خپله چاره وكړئ دغه ليک يې ديوې مسافرې مېرمنې په واسطه ولېږل هغه وو چې په رسول الله صلى الله عليه وسلم وحى نازله شوه او دغه خبره يې ورته څرګنده كړه نو حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت على ، حضرت زبير، اوحضرت مقداد رضي الله عنهم واستول او ورته ويل يې چې تاسو به دمكې معظمې په لوري په (روضة خاخ) نومې ځاى كې له يوې مسافرې مېرمنې سره مخامخ كېږئ او له هغې څخه يو ليک به ترلاسه كوئ هغه ترې واخلئ او ماته يې راوړئ (دوى وايي: ) موږ همغه ځاى ته راغلو او هغه مېرمن موږ وموندله دليک غوښتنه مو ځنې وكړه هغې د هر وروسته وړاندې وكړل ويل يې له ما سره هډو ليک نشته ! موږ ورته وويل: يا به ليک راكوې او كه نه جامې دې پلټو هغه وو چې ليک يې له كوڅيو څخه راوكيښ او موږ رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راوړ چې پكې ليكلي وو: ( دحاطب بن ابي بلتعه له لوري دمكې مشركانو ته چې: درسول الله صلى الله عليه وسلم دځينو چارو څخه خبرو ركوي) نو رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت حاطب رضى الله عنه ته وويل چې دا څه دي ؟ هغه وويل: يارسول الله ته په ما تلوار مكوه زما خپلوان عيال په مكه كې اوسېدل زه دقريشو له ټبر څخه نه يم ما غوښتل زما د خپلو خپلوانو اهل او عيال په هكله دهغوى خواخوږي ځان ته راجلب كړم زه مرتد او كافر شوى نه يم حضرت عمر رضى الله عنه وويل يارسول الله !ماته اجازه راكړه چې ددغه منافق ورمېږ ووهم رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: داهغه څوک دى چې بدريې ليدلى او تاسي ته نه دى معلومه چې الله تعالى دبدرد اصحابانو ګردګناهونه ښنلي دي؟( فرمايي : هرڅه چې كوى ما

---

(۱) دالوسي تفسير ۲۸/ ۲۸.

ستاسو ګناهونه ببښلي دي) ورپسې دا آيت نازل شو ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ عَدُوِّى وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ ﴾ (١).

تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ عَدُوِّى وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ ﴾ اى هغو کسانوچي ايمان يې راوړى دى (اى مؤمنانو) مه نيسئ دښمنان زمااودښمنان ستاسي دوستان (ځکه چي دايمان ننبه هم داده چي دالله د دښمنانوسره کرکه اونفرت وکړى نه داچي ورسره مينه اومحبت پالى په التسهيل کي ليکي چي دغه آيت شريف دحضرت حاطب لپاره ترتنه اودهرهغه چالپاره چي داسي کوي زجردى همداسي پدې کي د حضرت حاطب لپاره تشريف هم شته ځکه چي الله يې دايمان ګواهي ورکوي چي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ (٢)﴿ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ ﴾ پداسي حال کي چي غورځوى (لېږى تاسي خبرونه ) هغوى ته په سبب د دوستي سره ، قرطبي وايې: معناداچي دوى ته دمسلمانانواسرار او رازونه وربښياست اوپندونه ور کوى(٣)﴿ وَقَدْ كَفَرُواْ بِمَا جَآءَكُم مِّنَ ٱلْحَقِّ ﴾ حال داچي په تحقيق کافران شوي دي هغوى په هغه شي چي راغلى دى تاسي ته له حق څخه (چي قرآن دى په ښکاره حق نازل شوى دى ) ﴿ يُخْرِجُونَ ٱلرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ ﴾ چي باسي دوى رسول (دالله) اوهم تاسو(له خپله هيواده مکې مکرمې څخه په ظلم او دښمني سره. په البحر المحيط کي ليکي: رسول الله صلى الله عليه وسلم يې ځکه رومبى يادکړى چي تشريف يې وشي (٤) اوداچي هغه دمسلمانانوپيل اوسردى دايستلومعناداچي هغوى يې وځورول اووکرول ترڅويې ايستلوته اړ کړل چي مدينې منورې ته ولېږدي ﴿ أَن تُؤْمِنُواْ بِٱللَّهِ رَبِّكُمْ ﴾ ځکه چي تاسوايمان راوړى دى په الله چي ستاسي رب دى ، لکه چي الله بل ځاى فرمايې ﴿ وَمَا نَقَمُواْ مِنْهُمْ إِلَّآ أَن يُؤْمِنُواْ بِٱللَّهِ ٱلْعَزِيزِ ٱلْحَمِيدِ ﴾ (البروج:٨)﴿ إِن كُنتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَٰدًا فِى سَبِيلِى وَٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِى ﴾ که چيرې يى تاسي چي راوتلي ياست (له وطنو خپلو) لپاره دجهاد په لاره زماکي اولپاره درضاخوښي غوښتلوزما ) نومه نيسئ زمااوستاسي دښمنان په دوستي سره. الوسي وايې چي: دشرط ځواب محذوف دى چي پخوانى ورباندې دلالت کوي لکه چي وايي: که تاسوزمادوستان ياست نوزمادښمنان په دوستي سره مه نيسئ (٥)﴿ تُسِرُّونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَأَنَا۠ أَعْلَمُ بِمَآ أَخْفَيْتُمْ وَمَآ أَعْلَنتُمْ ﴾ چي په پټه (خبري) لېږى تاسي هغوى ته (په سبب د ) دوستي سره اوزه ښه عالم يم په هغه څه چي پټوى يې تاسي اوپه هغه څه چي ښکاروى يې (ستاسو يو حال هم له ماڅخه پټ

(١) التسهيل ١١٢/٤
(٢) نفس المرجع.
(٣) دقرطبي تفسير ٥٢/١٨
(٤) البحرالمحيط ٢٥٣/٨
(٥) الوسي تفسير ٦٨/٢٨

اوالونيانه دى ) مقصد له دې وينا څخه توبيخ اوعتاب دى) ﴿ وَمَن يَفۡعَلۡهُ مِنكُمۡ فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ ﴾ (اوهرڅوک چي دغه کاروکړي له تاسوڅخه نوپه تحقيق ورکه کړي يې ده سمه صافه لاره) يعني هرڅوک چي دالله دښمنان په دوستي ونيسي اودرسول الله رازونه هغوى ته وسپړي هغه له سمي لاري کوږ شوى اوحق يې پرې ايښى دى ، ورپسې الله دکفارو سخته دښمني مؤمنانوته ور څرګندوي چي دهغوى په زړونوکي څومره سخت عداوت دى فرمايې ﴿ إِن يَثۡقَفُوكُمۡ يَكُونُواْ لَكُمۡ أَعۡدَآءٗ ﴾ که چېري برى ومومي (کفار) پرتاسوباندي نوشي به دوى تاسي لره دښمنان (دزړه دښمني به رابرسېره کړي) ﴿ وَيَبۡسُطُوٓاْ إِلَيۡكُمۡ أَيۡدِيَهُمۡ وَأَلۡسِنَتَهُم بِٱلسُّوٓءِ ﴾ اواوږده به کړي تاسوته لاسونه خپل (په وهلواووژلو ستاسي) اوژبي خپلي (په ښکنځلواوبدي ويلوستاسي ﴿ وَوَدُّواْ لَوۡ تَكۡفُرُونَ ﴾ اوخوښوي به دوى (دغه) چي کافران شى تاسي (لکه چي دوى دي زمخشري راوړي چي دماضي په صيغه يې دلته تعبير وفرمايوچي (وَوَدُّوا) وروسته له هغه چي دشرط ځواب يې دمضارع په لفظ راووړچي (لوتکفرون) څکه دوى (کفارو) ترهرڅه له مخه ددوى (مؤمنانو) کفرغوښتل لکه چي الله بل ځاى فرمايلي ﴿ وَدُّواْ لَوۡ تَكۡفُرُونَ كَمَا كَفَرُواْ فَتَكُونُونَ سَوَآءٗ ﴾ (النساء ۸۹) ﴿ لَن تَنفَعَكُمۡ أَرۡحَامُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُمۡ ﴾ له سره به ګټه در ونه رسوي تاسي ته خپلوي (دخپلوانو) ستاسي اونه اولادستاسي (هغه چي تاسوددوى په سبب دکفارو سره دوستي پالى په ورځ دقيامت کي به تاسوته ګټه درونه رسوي او ضرربه درڅخه دفع نکړي. صاوي ليکي : چي دغه دحاطب درأيي خطا بربنډوي لکه چي وايې تاسودي ستاسواولاد اواهل اوعيال دې ته اړنه باسي چي کفاروته درسول الله اسراراورازونه لوڅ کړى اوله مؤمنانواورسول الله سره خيانت وکړى اودکفارو سره موالات وښيى څکه تاسوته دغه اهل اوعيال چي ددوى په سبب مودالله عصيان ته مخه کړه دقيامت په ورځ نفع نه در رسوي (۱) ﴿ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ يَفۡصِلُ بَيۡنَكُمۡۚ ﴾ په ورځ دقيامت کي فيصله به وکړي (الله) په مينځ ستاسي (مؤمنانواوکافرانو) کي (مؤمنان به جنت النعيم اوکافران به جحيم ته بوزي) ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ بَصِيرٞ ﴾ اوالله په هغه عملونو چي تاسي يې کوى ښه ليدونکى دى (نوجزاء به درباندي درکړي ) ﴿ قَدۡ كَانَتۡ لَكُمۡ أُسۡوَةٌ حَسَنَةٞ فِيٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ ﴾ په تحقيق شته تاسي ته (اى مؤمنانو ) طريقه ښه (چي اقتداء پسي کولاى شى ) په قول اوفعل) د ابراهيم اوپه (قول اوفعل) دهغه چاکي چي ووله ده سره (له مؤمنانوڅخه) ﴿ إِذۡ قَالُواْ لِقَوۡمِهِمۡ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُاْ مِنكُمۡ وَمِمَّا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ کله چي وويل (دغه ابراهيم او مؤمنانومشرکانود ) قوم ددوى ته چي بېشکه موږ بېزاره يوله تاسي څخه اوله هغه څېزه چي تاسويې بې له الله عبادت کوى ﴿ كَفَرۡنَا بِكُمۡ ﴾ منکران شوي يو موږ(ستاسي په باطل دين باندى) ﴿ وَبَدَا بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكُمُ ٱلۡعَدَٰوَةُ وَٱلۡبَغۡضَآءُ أَبَدًا ﴾ اوښکاره شوي ده په

(۱) دصاوي حاشيه په جلالين باندي ۴/ ۱۹۵

مینځ زموږ او تاسي کي دښمني عداوت تل ترتله (څو چي تاسي په دغه حال د کفر کي یاست) ﴿ حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُ ﴾ ترهغه پوري چي یوازي په الله باندي ایمان راوړی (او شرک او د بتانو عبادت پرېږدی. مفسرین کرام لیکي: الله تعالی مؤمنانو ته امر کړی چي دابراهیم خلیل الله او دهغه د پلویانو مؤمنانو په پله پل کېږدي اوله مشرکانو څخه بېزاره اوله هغوی سره دښمني وپالي څکه دایمان همدا غوښتنه ده چي کفارو سره شلون او مقاطعه وشي ﴿ إِلَّا قَوْلَ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ ﴾ مگر خو (اقتداء مکوئ د) (یوې خبري دابراهیم (چي ویلي یې وو ترامتناع له مخه) خپل پلار ته چي خامخا زه تاته ښښنه غواړم (هغه د خپل پلار دایمان راوړلو هیله من وو) ﴿ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ ﴾: التوبة ۱۱٤ ﴿ وَمَا أَمْلِكُ لَكَ مِنَ اللَّهِ مِن شَيْءٍ ﴾ او مالک نه یم زه تالره له عذابه دالله د هیڅ څېز، دغه دابراهیم علیه السلام د کلام پاتي برخه ده یعني زما له استغفار غوښتلو پرته ستا لپاره هیڅ وس نه رسېږي چي دالله عذاب در څخه دفع کړم ﴿ رَّبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ ﴾ ای زما ربه په تا موږ توکل کړی دی او (خاص) تاته موږ رجوع کړي ده او (خاص) تاته بیرته گرزېدل د ټولودی )په آخرت کي مفسرین کرام راوړي چي حضرت ابراهیم علیه السلام له خپل پلار سره داستغفار غوښتلو ژمنه او وعده کړي وه لکه چي په سورت مریم کي راځي ﴿ سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّي إِنَّهُ كَانَ بِي حَفِيًّا ﴾ (مریم ۴۷) او داستغفار وینایې هم کړي لکه چي د شعراء په سورت کي یې یادونه کېږي چي ﴿ وَاغْفِرْ لِأَبِي إِنَّهُ كَانَ مِنَ الضَّالِّينَ ﴾ او دغه گردي هڅي دهغه داسلام راوړلو په تمه کېدلي اوبیایې له دې څخه مخ واړاوو چي دهغه په کفربې پوخ یقین شو لکه چي دتوبې په سورت کي فرمایې ﴿ وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ ﴾ (التوبه ۱۱٤) ﴿ رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ وویل ابراهیم او اتباعو یې) ای زموږ ربه مه گرزوه موږ فتنه ځای (دازموېلو هغو کسانو لره چي کافران شوي دي یعني دوی ته په موږ بری مه ورکوه ترڅو دوی موږ په داسي عذاب کي واچوي چي موږ بې توان ونلرو([1]) او مجاهد وایې: معنادا چي ته موږ ته ددوی په لاس یا اله خپله لوري عذاب مه راکوه ترڅو چي دوی ووایې که دغه کسان پرحق وای نوولي به یې عذاب لیدل ﴿ وَاغْفِرْ لَنَا ﴾ او ښښنه وکړه موږ ته (دگناهونو) ﴿ رَبَّنَا إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴾ ای زموږ ربه بېشکه هم ته یې ښه غالب قوي (هغه چي څوک پناه ورو وړي نه ذلیل کېږي) ښه حکمت والا (چي هرکار په تدبیر او مصلحت سره کوي دنداء تکرار د تضرع لپاره راغلی دی ﴿ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ﴾ خامخا په تحقیق دی تاسو لره (ای مؤمنانو) په دغو خبرو (دابراهیم او اتباعو دده) کي طریقه نیکه حسنه ده چي اقتداء پسي وکړی (له کفارو بېزاره شی) ابوالسعود لیکي چي تکرار د مبالغي

([1]) لومړی وینا له ابن عباس څخه روایت شوي او دوهمه وینا د مجاهد ده خو لومړی قول برلاسی دی څکه چي هغه دعا ده چي خپلو خانونو ته یې کوي چي کفارو ته وس مه ورکوه چي پر موږ بری ومومي دغه دابن عطیه هم غوره ده.

لپاره راغلى څكه يې په قسم پيل کړى دى چي فرمايلي يې دي( لقد كان لكم )[1] ﴿ لِّمَن كَانَ يَرْجُواْ ٱللَّهَ وَٱلْيَوْمَ ٱلْآخِرَ ﴾ (دغه اقتداء ده) لپاره د هغه چاچي اميدلري د (ثواب د ) الله او(وېرېږي له جزاد ) ورځي د (قيامت )آخري ﴿ وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْغَنِىُّ ٱلْحَمِيدُ ﴾ اوهرهغه څوک چي مخ وګرزوي (له ايمان اوطاعته) نوبېشکه الله غني بې پروابنه ستايلى شوى (ذات) دى ﴿ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ ٱلَّذِينَ عَادَيْتُم مِّنْهُم مَّوَدَّةً ﴾ ښايي چي الله پيدا کړي په مينځ ستاسي اومينځ دهغو(کافرانو) کي چي تاسي ورسره دښمني لرئ دوستي (اومحبت وروسته له کرکي اونفرت څخه. په التسهيل کي ليکي: کله چي الله مؤمنانو ته دکفاروسره دډښمني اوپرېکړون امر وکړاوددوى اوهغوى ترمينځ خپلوي اوقرابتونه موجوددو نوچي الله دمؤمنانو صداقت او رښتنولي وکتله بيايې ددوى دلاساينې لپاره دغه آيت نازل کړچي ددوى ترمينځ به بيرته مينه اومحبت راولي اوهمدغه مينه اومحبت دمکې دفتحي په وخت خپل بشپړاوته ورسېدو کله چي ګرد قريش په اسلام مشرف شول (٢) اوالله تاريه تارتېربيرته سره يوموټى کړامام رازي ليکي چي (عسى ) دالله تعالى له لوري ژمنه اووعده ده اوالله همدغه وعده ترسره کړه چي دمکې کفارې له مسلمانانوسره يوځاى او مکه مکرمه فتح شوه(٣) ﴿ وَٱللَّهُ قَدِيرٌ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ اوالله ښه قادردى (دزړونو په اړولو اودحالاتو په بدلولوباندي) اوالله ښه مغفرت کونکى دېرزحم والادى (په هغه چاچي توبه ګارشي او الله ته رجوع وکړي) ﴿ لَّا يَنْهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ ٱلَّذِينَ لَمْ يُقَٰتِلُوكُمْ فِى ٱلدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُم مِّن دِيَٰرِكُمْ أَن تَبَرُّوهُمْ ﴾ نه منع کوي الله تاسي (اى مؤمنانوله (دوستي د ) هغوکسانوچي جنګ يې نه دى کړى له تاسوسره په (کارد ) دين کي اونه يې ياست ايستلي تاسي له کورونوخپلو څخه (له دي نه ) چي دوستي کوي تاسي له دوي سره ، دغه کسان لکه ماشومان اومېرمني ، دغه کلمه چي ﴿ أَن تَبَرُّوهُمْ ﴾ دى مجرور واقع شوي اود(عن) مدخول دى يعني الله جل جلاله موله دي څخه نه منع کوي چي له دغوکسانوسره نېکي اواحسان وکړى ﴿ وَتُقْسِطُوٓاْ إِلَيْهِمْ ﴾ اوچي عدل اوانصاف کوى تاسي له هغوى سره ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُقْسِطِينَ ﴾ بېشکه چي الله خوښوي دوست لري انصاف کونکي (پخپلو کارونو اوچاروکي) ابن عباس رضى الله عنهما وايې چي دغه دخزاعة په هکله نازل شوى چي دوى له رسول الله سره سوله روغه وکړه چي نه به ورسره جګړه کوي اونه به دده په خلاف له بل چاسره ملاتړ ښيي نوالله ددوى سره داحسان کولو اجازه ورکړه (٤)له اسماء بنت ابي بكررضى الله عنهماڅخه روايت شوى چي زمامشرکه مورهغه وخت چي قريشوله رسول الله صلى الله عليه وسلم سره معاهده وکړه (مقصديې دحديبې صلح وه) راغله نوزه رسول الله ته راغلم ورته ومي ويل اى رسول الله زمامور راغلي دروغي سولي رغبت لري آيازه ورسره

---

(١) ابو السعود ٥ /١٥٧

(٢) التسهيل ٤ /١١٤

(٣) كبيرتفسير ٢٩ /٣٠٣

(٤) كبيرتفسير ٢٩ /٣٠٤

پخلاشم ؟ رسول الله راته وویل هوله مورسره دي خپلوي وپاله(۱) بیا دغه آیت نازل شو ﴿ لَّا يَنْهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ ٱلَّذِينَ لَمْ يُقَٰتِلُوكُمْ فِى ٱلدِّينِ.. ﴾ تر پایه ﴿ إِنَّمَا يَنْهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ ٱلَّذِينَ قَٰتَلُوكُمْ فِى ٱلدِّينِ وَأَخْرَجُوكُم مِّن دِيَٰرِكُمْ وَظَٰهَرُوا۟ عَلَىٰٓ إِخْرَاجِكُمْ أَن تَوَلَّوْهُمْ ﴾ بېشکه همدا خبره ده چي منع کوي تاسي الله له (دوستي د ) هغو کسانو څخه چي جنګ يې کړی دی له تاسي سره په (کار د ) دين کي او چي ايستلي يې ياست تاسي له کورونو ستاسي څخه او کومک مرسته يې کړي ده له دښمنانو ستاسي سره په ايستلو ستاسي کي له دې څخه چي دوستي کوی تاسي له هغو سره (او ملګري خپلوان يې غوره کوی) ﴿ وَمَن يَتَوَلَّهُمْ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴾ او هر هغه چي دوستي کوي له هغوی سره دغه خلګ هم دوی دي ګنهګاران ظالمان (پخپلو ځانونو چي عذاب ته يې جمتو کړي دي) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا جَآءَكُمُ ٱلْمُؤْمِنَٰتُ مُهَٰجِرَٰتٍ فَٱمْتَحِنُوهُنَّ ﴾ ای هغو کسانو چي ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو) کله چي راشي تاسي ته مؤمناني ښځي هجرت کونکي نو ويې ازمويئ (رښتنولي او ايمان ددوی . مفسرين کرام ليکي چي: دحديبي سوله کومه چي درسول الله او دمکې دکفارو ترمينځ لاس ليک شوه په هغې کي راغلي وو که له مسلمانانو څخه يو څوک مکې ته راغی بيرته به مسلمانانو ته نه ورستنول کېږي او که له مشرکانو څخه يو څوک مسلمانانو ته ورغی هغه به بيرته کفارو ته په لاس ورکول کېږي نو دعقبة بن أبي معيط لور(أم کلثوم) رسول الله ته مهاجره راغله له شا ورپسي دهغې دوه ورونه (عمارة) او(وليد ) راغلل رسول الله ته يې وويل چي: دهغه شرط په اساس دغه (أم کلثوم) بيرته مونږ ته راستنه کړه رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل شرط يوازي دنارينه خلګو په هکله وو دمېرمنو په هکله په پرېکړه کي څه نه وو راغلي نو الله جل جلاله دغه آيت نازل کړ. ابن عباس وايي چي: مېرمني ته به لوړه ورکول کېده چي د مېړه له بغض او عداوته خوبه نه وي راتښتېدلي هغې خوبه دفقر او نېستي له مخه هجرت نه وي کړی؟ هغه يوازي دالله او رسول الله سره دمحبت او د اسلام په دين دمشرف کېدلو لپاره خپل وطن پرې ايښی دی(۲) ﴿ ٱللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَٰنِهِنَّ ﴾ الله ته ښه معلوم دی ايمان ددوی ) يعني الله ته ددوی دايمان ددعوی رښتنولي ښه څرګنده ده الله يې په زړونو خبر دی دغه معترضه جمله ده يعني دهغوي دايمان ازموينت دمؤمنانو په نسبت دی که نه هسي خو الله جل جلاله ددوی په اسرارو او پټو رازونو هم خبردار دی له الله څخه هيڅ پټ نه دي ﴿ فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مُؤْمِنَٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ إِلَى ٱلْكُفَّارِ ﴾ نو که وپېژنی تاسي دوی (په قسم سره) مؤمناني نو هغوی بيرته کفارو(مېړونو ) ته مه لېږئ ! ﴿ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ ﴾ نه دي دغه (مؤمناني ښځي) حلالي هغو (کفارو سړيو) ته او نه دي هغه (کافران ) حلال دغو(ښځو مؤمنانو) لره . الوسي ليکي چي تکرار دتاکيد لپاره راغلی دی چي دغه حرمت او قطع علاقه دمؤمنانو ښځو او کفارو ترمينځ مبالغه افاده

(۱) البحر المحيط ۸ /۲۵۲

(۲) اخرجه الشيخان

کړي (١) ﴿ وَءَاتُوهُم مَّآ أَنفَقُواْ ﴾ اوورکړی تاسي هغو (کافرانو) ته (چي مهرونه دهغو ښځودي) هغه څه چي لګولي يې دي له (مهره ولوره) په البحرکي راوړي چي آيت داسي امرکوي چي کفارو مهرونوته دي دهغوی لګولي مهرونه ورکول شي ترڅوچي پردوی دوه تاوانه چي يودمهرمني او بل دمال له لاسه ورکول دي وانه وړي (٢) ﴿ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَن تَنكِحُوهُنَّ إِذَآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ ﴾ اونشته هيڅ ګناه پرتاسي باندي چي نکاح وتړی تاسي له دې ښځو سره پدي شرط کله چي ورکړی تاسي هغوښځوته مهرونه ددوی . خازن ليکي چي الله تعالی دمؤمنانو مهاجرومهرمنونکاح چي له دارحرب څخه داراسلام ته راشي که څه هم چي کفار مهرونه لري رواکړي ده ځکه چي اسلام ددوی اوکفاروتر مينځ بېلتون کوي اودغه تفريق له عدت تېرولوڅخه وروسته واقع کېږي (٣) ﴿ وَلَا تُمْسِكُواْ بِعِصَمِ ٱلْكَوَافِرِ ﴾ اومنګولي مه لګوئ په عصمتونود ښځوکافرانو (اوپخپله نکاح کي يې مه ساتئ) ځکه چي ستاسواوددوی ترمينځ دزوجيت تړون نشته ، مرادله عصمت څخه دلته نکاح دی ، معناداچي ديوچا په مکه کي کافره ښځه وي هغه يې نوره مېرمن نه ده ددوی ترمينځ دنکاح تړون ددارحرب اوداراسلام په سبب وشلېدو (٤) ﴿ وَسْـَٔلُواْ مَآ أَنفَقْتُمْ وَلْيَسْـَٔلُواْ مَآ أَنفَقُواْ ﴾ (اووغواړئ تاسي هغه څه چي خرڅ کړي دي تاسو (پر دغوکافرانوښځو) اوودي غواړي (دغه کفارهم) هغه څه چي خرڅ کړي وي هغوی) يعني ای مؤمنانو وغواړئ هغه څه چي تاسوپردغوښځوله ولورونوڅخه خرڅ کړي وي کله چي دوی کفاروته بيرته ستنې شي اوهم داسي دوی (مشرکان) دې وغواړي هغه څه چي دوی په خپلوښځوله ولورونو څخه لګولي وي. ابن عربي وايې: هغه چي مسلماني اوبيامرتدي شوي اوکفاروته ورغلي وي نوکفارو ته ويل کېږي چي ولورونه يې مسلمانانوته ورکړي اوکله چي کومه مېرمن له کفاروڅخه مسلمانانوته په ايمان راوړلو هجرت وکړي له مسلمانانوڅخه ددغوولورونه غوښتل کېږي اودغه ددواړو حالتونو ترمينځ د نياو ، اوعدالت فيصله ده (٥) ﴿ ذَٰلِكُمْ حُكْمُ ٱللَّهِ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ ﴾ (دا(مذکوره احکام) حکم دالله دي حکم کوي (الله په دغه سره) ستاسي په مينځ کي) يعني دغه دالله شريعت اوعادلانه حکم دی چي ستاسواوستاسوددښمنانوتر مينځ يې کوي ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴾ (اوالله ښه علم والاښه حکمت والا دی) يعني الله دبندګانوپه مصلحتونو ښه عالم اودهغوی لپاره په شريعت رااستولوکي ښه حکمت والادی هغه څه ورته شريعت ټاکي چي دده بالغه حکمت يې غوښتنه کوي ﴿ وَإِن فَاتَكُمْ شَىْءٌ مِّنْ أَزْوَٰجِكُمْ إِلَى ٱلْكُفَّارِ ﴾ اوکه چېري فوت شي له تاسي نه (ای مؤمنانو) يو شی له ښځوستاسي په طرف دکفارو (يعني که دکوم مسلمان ښځه دکفارولوري ته وتښتي ﴿ فَعَاقَبْتُمْ ﴾ پس غزامووکړه (اوغنيمت موتر لاسه کړ) ﴿ فَـَٔاتُواْ ٱلَّذِينَ ذَهَبَتْ أَزْوَٰجُهُم مِّثْلَ مَآ أَنفَقُواْ ﴾ پس

---

(١) دالوسي تفسير ٢٨ / ٧٢
(٢) البحرالمحيط ٨ / ٢٥٧
(٣) دخازن تفسير ٤ / ٧٩
(٤) دقرطبي تفسير ١٨ / ٦٥
(٥) دقرطبي تفسير ١٨ / ٦٨

ورکړئ تاسي هغو کسانو ته چي تللي ښځو دهغوی (کفاروته) په مثل دهغه (مهر) چي ورکړی دی دوی (هغو ښځولره له مهر او ولورڅخه) يعني له دغه غنيمت څخه يې ورکړي. ابن عباس وايي معنادا چي که چېري دمهاجرسړي مېرمن کفاروته وروتښتي نورسول الله به حکم وکړي چي دغنيمت له مال څخه دي دومره څه ورکول شي څومره چي ده دهغې په ولورکي لګولی وي (۱) قرطبي وايي کله چي ړومبنی آيت نازل شوچي ﴿ وَسْـَٔلُوا۟ مَآ أَنفَقْتُمْ وَلْيَسْـَٔلُوا۟ مَآ أَنفَقُوا۟ ﴾ نومسلمانانوويل چي موږدالله په حکم راضي يواو مشرکانوته يې ليک واستاوو دغه فيصله يې ورته وړاندي کړه هغوی ممانعت وکړبيادغه آيت نازل شو(۲) ﴿ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ﴾ اووېرېږئ تاسي له الله څخه (پخپلو اقوالوافعالوکي دالله له عذاب اوانتقام څخه ووېرېږئ (که مودهغه له حکم څخه مخالفت وکړ) ﴿ ٱلَّذِىٓ أَنتُم بِهِۦ مُؤْمِنُونَ ﴾ هغه (الله) چي تاسي پرهغه باندي ايمان راوړونکي يی ځکه چي دايمان له مستلزماتوڅخه يوهم دالله څخه وېرېدل دي ، کله چي رسول الله صلی الله عليه وسلم مکه فتح کړه نودمکي مکرمې مېرمني هم دسړوپه شان له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره بيعت کولوته راغلې نودغه آيت نازل شوچي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُؤْمِنَٰتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَىٰٓ أَن لَّا يُشْرِكْنَ بِٱللَّهِ شَيْـًٔا ﴾ ای نبي ! کله چي راشي تاته مؤمناني ښځي چي بيعت کوي له تاسره پردې شرط چي دوی به نه شريکوي له الله سره هيڅ شی (نوبيعت وکړه له دوی سره پدغوشېږومهموشيانوچي دهغوی په پيل کي شرک نه کول دي اوداچي ﴿ وَلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِينَ ﴾ اودوی به غلانه کوي اونه به زناکوي (هغه چي د فواحشوافحش دی) ﴿ وَلَا يَقْتُلْنَ أَوْلَٰدَهُنَّ ﴾ اونه به وژني دوی اولاد خپل (لکه چي به دجاهليت په زمانه کي خلګودلوږي اوعارله سببه وژل. ابن کثيروايي چي: ددغه آيت حکم دهغه اولادپه هکله دی چي له موجوديت څخه وروسته يې وژني لکه چي به دجاهليت دزماني خلګوخپل اولاد دلوږي اوعارله وجهي واژه نودغه دجنين وژلوته هم ورشامل دی لکه چي ځيني ناپوهه ښځي يې وژني اوقصداً سقط کوي ، ياځان غورځوي چي اميدواره نشي اويادا سي نور(۳) ﴿ وَلَا يَأْتِينَ بِبُهْتَٰنٍ يَفْتَرِينَهُۥ بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ ﴾ اونه به راتله کړي په دروغوسره چي جوړوي يې دوی په مينځ دلاسونواوپښوخپلوکي (يعني له خپله خانه، چي پردی لقيط اولادبه خپل مېړه ته نسبت کوي او ورته وايي به چي دغه مي له تاڅخه پيدا شوی زوی دی. مفسرين کرام وايي: کله چي به کومه ښځه دمېړه له طلاقه وېرېدله اولادبه يې نه کېدو نوبه يې پردی زېږېدلی ماشوم خپل مېړه ته نسبت وکړچي همدغه يې زوی دی په آيت کي مقصد لقيط دی اوزنا ورڅخه مقصد نه ده ځکه هغه ړومبی صراحتاًياده شوه (۴) ابن عباس وايي: معنا داچي پخپل مېړه پسي به دبل چازوی نه تړي ،فراء وايي يوې ښځي به پردی ماشوم وموندهاو هغه به يې

(۱) مختصرابن کثير ۴۸۲/۳
(۲) قرطبي له قتاده څخه روايت کوي چي دغه حکم په سورة براءة منسوخ شوی دی.
(۳) دابن کثيرمختصر ۴۸۲/۳
(۴) وګوره دصاوي حاشيه پرجلالين باندي.

بياخپل مېړه ته نسبت كاووويل به يې چې دغه مي له تاڅخه اولاد دی، اوداچي وېې فرمايل ﴿ يَفْتَرِينَهُۥ بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ ﴾ څكه چې ولد كله وزېږي نودمور دلاسونو اوپښو ترمينځ لوېږي(١) ﴿ وَلَا يَعْصِينَكَ فِى مَعْرُوفٍ ﴾ اونه به كوي نافرماني له تاڅخه په ښو چارو كي (كله چې ورته حكم وكړې او يا يې له منكرڅخه منع كړې بلكه ستاحكم به مني اوخبري ته به دي غوږ اېږدي ﴿ فَبَايِعْهُنَّ وَٱسْتَغْفِرْ لَهُنَّ ٱللَّهَ ﴾ نوته بيعت وكړه له دوی سره (په تېروشرطونو) اوبښنه وغواړه لپاره ددغوښځو (ای پيغمبره د تېروگناهونوددوی) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ بېشكه چې الله ښه مغفرت كونكی دېررحم والادی. ابوحيان ليكي چې: دمېرمنو بيعت دفتحې په دوهمه ورځ دصفادغونډۍ دپاسه كله چې د نارينه وو بيعت پای ته ورسېدو په داسې حالت كي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم دصفاپه سر او حضرت عمرښكته ناست ووترسره شوحضرت عمر رضی الله عنه به درسول الله په امرله دوی سره بيعت كاوو اودوی ته يې درسول الله بلاغ رساوو، درسول الله صلی الله عليه وسلم لاس دبيعت په وخت كي هيڅ پردی ښځي ته ندی غزېدلی (أسمآء بنت السكن) وايې: زه دبيعت كونكوښځوله ډلي څخه وم ورته ويل مي ای پيغمبره لاس رااوږدكړه چې درسره بيعت وكړم زاته ويل يې: (زه ښځوته لاس نه وركوم هغه وعده ترې اخلم كومه چې الله ترې اخيستې ده) هند دعتبه لورهغه چې دسيدناحمزه لړمون يې داحد په ورځ څېرلی وو په ښځوكي پټه راغله اوكله چې دغه آيت يې ورباندي ولوست چې ﴿ عَلَىٰٓ أَن لَّا يُشْرِكْنَ بِٱللَّهِ شَيْـًٔا وَلَا يَسْرِقْنَ ﴾ نوهغې وويل: ای دالله پيغمبره ابوسفيان بخيل سړی دی اوزه دده له مال څخه يوڅه ورڅخه گوښه كوم آيادغه ماته حلال دی اوكه نه؟ ابوسفيان وويل: هغه چې پخوادي اخيستی درته حلال دی (مابښلی دی) رسول الله صلی الله عليه وسلمَ وخندل اوهغه يې وپېژنده ورته ويل يې ته هند دعتبه لوريې؟! هغې وويل هو! ماته دتېرو خطاوو ببښنه وكړه الله دي تاته ببښنه وكړي، نوكله چې يې داورته ولوستل چې ﴿ وَلَا يَزْنِينَ ﴾ نوهغې وويل چې آياأصيله مېرمن (حُرّه) هم زناكوي؟ كله چې يې ورته ولوستل چې ﴿ وَلَا يَقْتُلْنَ أَوْلَٰدَهُنَّ ﴾ هغې وويل موږ كوچني وروزل اوتاپه لويوالي كي ووژل تاسواوهغوی ښه سره پوهېږئ (دهغې زوی حنظله دبدرپه ورځ وژل شوی وو) حضرت عمررضی الله عنه په زوره وخندل اورسول الله صلی الله عليه وسلم وموسكل اوكله چې يې داآيت ولوست چې ﴿ وَلَا يَأْتِينَ بِبُهْتَٰنٍ يَفْتَرِينَهُۥ بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ ﴾ نوهند وويل قسم په الله دی چې بهتان ډېربداوقبيح كاردی الله پرته له ښو كارونواوښكلو اخلاقوحكم نه كوي اوكله چې يې داآيت ورته ولوست چې ﴿ وَلَا يَعْصِينَكَ فِى مَعْرُوفٍ ﴾ نوهغې وويل: قسم په الله دی موږ دلته ددې لپاره نه يو كېناستلي چې په زړونو كي موله تاڅخه دهيڅ

---

(١) روح المعاني ٢٨/٨٠

ځېزنافرماني وي([1]) امام احمد رحمه الله له (اميمة بنت رقيقة څخه روايت کوي هغه ) چي دخدېجې رضی الله عنهاخور وه اود حضرت فاطمې رضی الله عنها خاله (توري) وه هغه وايي : زه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته له نورو ښځوسره دبيعت کولولپاره راغلم هغه څه چي په قرآنکريم کي دي دهغه وعده يې راڅخه واخيستله چي موږ به له الله سره شريک نه نيسو.....دآيت ترپايه او ويې ويل ترڅوموتوان اوطاقت وي نوموږورته وويل : الله او پيغمبر پر موږ باندي زموږله خپلوځانونولاهم زيات مهربانه دی اوموږورته ويل ای دالله استازي له موږسره مصافحه نه کوې ؟ هغه وفرمايل زه له ښځوسره مصافحه نه کوم بلکه خبره داده چي زماوينادېوې مېرمني لپاره دسلومېرمنولپاره وينا ده ([2]) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَوَلَّوْاْ قَوْمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ ﴾ (ای هغوکسانوچي ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو) مه کوئ دوستي له هغه قومه سره چي الله په قهر شوی دی پردوی باندي) يعني ای مؤمنانو دالله له دښمنانوسره دوستي مه پالئ چي دهغوی رايه اخلی دوی هغه څوک دي چي الله ورباندي غضب کړی اولعنت يې ورباندي استولی دی. حسن بصري رحمه الله وايي : چي دغه کسان يهودان دي ځکه چي الله فرمايي ﴿ غَيْرِ ٱلْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ ﴾ (الفاتحه ۷ ) اوابن عباس رضی الله عنهماوايي چي : دغه قريشي کفار ښيي ځکه په هرکافرباندي دالله قهرشوی دی ([3]) څرګنده اوظاهره وينادا ده چي دغه دي عام وي لکه چي ابن کثيرليکلي دي يعني يهوديان ، نصرانيان او ګرد کافران هغه چي پردوی الله غضب کړی اوپه لعنت يې اخته کړي دي ([4]) ﴿ قَدْ يَئِسُواْ مِنَ ٱلْءَاخِرَةِ كَمَا يَئِسَ ٱلْكُفَّارُ مِنْ أَصْحَٰبِ ٱلْقُبُورِ ﴾ په تحقيق دوی (يهودان)ناأميده شوي دي له (ثوابه)دآخرته لکه چي ناأميده شوي دي کافران (له خيره داخرت)له تولګيوملګرودهديروڅخه) يعني لکه چي کفاردبعث اونشورمکذبين له خپلو مړو څخه ناهيلي شوي دي چي دوی دي بيرته راپاځي ، په تحقيق سره ددوی چي به کوم نژدې خپلوان ، يا ملګري وفات شو نودوی به ويل همدغه يې وروستی . پېره اووارو بيابه هيڅکله هم راژوندي نشي([5]) الله تعالى دغه مبارک سورت په هغه ډول پای ته رسولی په کوم چي يې پيل کړی وو اوهغه دالله له دښمنانوکفاروسره دوستي نه کول دي اودغه دکلام دتاکيدپه مثال دي اودپيل اوپای ښه پېيلتوب او تناسق ښيي اودبلاغت يوه برخه ده .

---

([1]) البحرالمحيط ۸/ ۲۵۸ –وګوره کبيرتفسير ۲۹/ ۳۰۷
([2]) أخرجه امام احمدوالترمذي والنسائي.
([3]) البحر المحيط.
([4]) دابن کثيرمختصر.
([5]) دآيت شريف په تفسيرکي همدغه راجح وينا اودغه دابن عباس ، قتاده اوحسن رضی الله عنهم دويناله ډېرنږدې ده. مجاهد وايي معنادا چي دوی دآخرت له ثوابه اونيکي څخه داسي ناهيلي شوي لکه چي هغوی دقبرونو دمړوله هرخيرښېګڼې څخه ناأميده دي لومړی وينا ښه څرګنده ده والله أعلم.

بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې دبديع اوبيان کومې ښکلاوې شته لندون يې دادي.

١- دطباق صنعت کله چې فرمايي ﴿ وَأَنَا۠ أَعۡلَمُ بِمَآ أَخۡفَيۡتُمۡ وَمَآ أَعۡلَنتُمۡۚ ﴾ ځکه چې اخفاء داعلان طباق دی.

٢- پدې آيت کې چې فرمايي ﴿ تُسِرُّونَ إِلَيۡهِم بِٱلۡمَوَدَّةِ وَأَنَا۠ أَعۡلَمُ بِمَآ أَخۡفَيۡتُمۡ ﴾ دلته عتاب اوتوبيخ نغښتی دي.

٣- تقديم د ماحقه التاخيرلکه ﴿ رَّبَّنَا عَلَيۡكَ تَوَكَّلۡنَا وَإِلَيۡكَ أَنَبۡنَا وَإِلَيۡكَ ٱلۡمَصِيرُ ﴾ پدې مبارکو کلماتو کې اصل خوداوو چې ويل شوي واى ( توكلناعليک وأنبناالیک...) خوتقديم يې دحصردافادې لپاره کړی دی.

٤- دمبالغې صيغې لکه ﴿ قَدِيرٌۚ ،غَفُورٌ ،رَّحِيمٌ ﴾اوداپه قرآنکريم کې ډېردي لکه ﴿ عَلِيمٌ ،حَكِيمٌ ﴾ اوداسي نور.

٥- سلبي طباق پدې کلام کې چې ﴿ لَّا يَنۡهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ ٱلَّذِينَ لَمۡ يُقَٰتِلُوكُمۡ ﴾ اوبيافرمايي ﴿ إِنَّمَا يَنۡهَىٰكُمُ ٱللَّهُ عَنِ.. ﴾ دآيت ترپايه

٦- اعتراضيه جمله کله چې فرمايي ﴿ ٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِإِيمَٰنِهِنَّۖ ﴾ ددې لپاره چې دې ته اشاره وکړي چې انسان ظاهري بڼه لري اوالله ته پټ رازونه هم معلوم دي

٧- عکس اواپوته پيوندلکه چې پدې کلام کې شته ﴿ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمۡ وَلَا هُمۡ يَحِلُّونَ لَهُنَّۖ ﴾ اوداهم له بديعي محسناتو څخه دی.

٨- لطيفه کنايه دالله تعالى پدې کلام کې ﴿ وَلَا يَأۡتِينَ بِبُهۡتَٰنٖ يَفۡتَرِينَهُۥ بَيۡنَ أَيۡدِيهِنَّ وَأَرۡجُلِهِنَّ ﴾ چې پدې سره له لقيط څخه کنايه راغلي اوهغه دکناياتو له لطائفو څخه ګڼل کېږي.

٩- مرسله مجمله تشبيه پدې وينا کې چې ﴿ قَدۡ يَئِسُواْ مِنَ ٱلۡأٓخِرَةِ كَمَا يَئِسَ ٱلۡكُفَّارُ مِنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلۡقُبُورِ ﴾ همداسي پدې کې دبديعي محسناتو هغه صنعت هم شته چې (ردالعجزعلي الصدر) يې بولي اودغسي دسورت پيل اوپاى په خورا ښکلي پېيلتوب اوتناسق شوی دی.

د(الممتحنة )سورت دتفسيرژباړه دالله په مرسته بشپړه شوه.

***

## د(الصف) سورت مدني او څوارلس آيتونه لري

### د سورت په وړاندي:

د الصف سورت له مدني سورتونو څخه يو دی هغه سورتونه چي تشريعي احکام راوړي دغه مبارک سورت دجګړې يعني دالله له دښمنانو سره دجهاد خبري کوي او دالله په لارکي دالله ددين داعزاز لپاره او دکلمې دلوړتيا په خاطر قرباني او ځان تېرېدنه ستايي اوله هغه ګټور تجارت څخه کوم چي د مسلمان په دنيا او آخرت کي دنېکمرغي سبب ګرزي يادونه کوي هغه محور چي سورت وربا ندي راڅرخي هغه هم دغه قتال دی ځکه دالصف په سورت ونوموول شو.

د سورت پيل له تسبيح او تحميد نه وروسته پدې کېږي چي مؤمنان له وعده خلافي څخه وېروي او دهغه څه چي دوی يې ژمنه کړي وه بې وفايي دي ونکړي فرمايي ﴿ سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ﴾ ؟.

وروسته دالله له دښمنانو سره په زړه ورتيا له جهاد څخه غږېږي او هغه ستايي ځکه چي مجاهدين ديو ستر هدف او اوچتي موخې لپاره چي دحق او کلمة الله لوړتيا ده جنګېږي ﴿ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِهِۦ صَفًّا كَأَنَّهُم بُنْيَٰنٌ مَّرْصُوصٌ ﴾ .

له دې نه وروسته آيتونه ديهودانو دريز دحضرت موسى اوعيسى عليهما السلام دبلني او دعوت په وړاندي راخلي چي پدې لارکي نوموړو نبيانو عليهما السلام څومره ربړونه ګاللي او پدې کي درسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره تسليت او ډاډينه ده چي هغه هم دمکې له کفارو څخه په ځور او تکليف کي وو آيتونه فرمايي ﴿ وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ يَٰقَوْمِ لِمَ تُؤْذُونَنِي ... ﴾ دآيتونو ترپايه.

هله بيا الله تعالى دخپل دين اوليا وو او انبياوو دنصرت په هکله خپل سنت بيانوي او مشرکانو ته ددوی يو مثال وربښيي چي ددوی مثال داسي دی لکه چي يوڅوک دلمر وړانګي دخولې په پوکي وژني اوله مينځه يې وړي ﴿ يُرِيدُونَ لِيُطْفِـُٔوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَٰهِهِمْ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِۦ وَلَوْ كَرِهَ الْكَٰفِرُونَ ﴾ .

سورت دګټه وري سوداګري لوري ته مؤمنان رابولي او في سبيل الله جهاد ته يې هڅوي چي په ځان او مال قرباني ته چمتو شي ترڅو چي دآخرت تلپاتي نېکمرغي او ژر تر ژره نصرت يې په دنياکي په برخه شي هغوی ته دترغيب په اسلوب بيان فرمايي چي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ تِجَٰرَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَتُجَٰهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَٰلِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ دآيتونو ترپايه

په پای چي سورت مؤمنان دالله ددين نصرت ته رابولي لکه چي حواريونو (دعيسى عليه السلام ملګرو) کله چي عيسى عليه السلام دالله ددين مرستي ته راوبلل نو دهغه بلنه يې ومنله او دحق او پيغمبر مرستي ته يې راودانګل فرمايي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا كُونُوٓا أَنصَارَ اللَّهِ كَمَا قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّـۧنَ مَنْ أَنصَارِيٓ إِلَى اللَّهِ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ ﴾ همداسي د سورت پيل او پای په خوراښکلي بيان او آغلي تينګښت سره پېيل شوی دی.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ۝١ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ
۝٢ كَبُرَ مَقْتًا عِندَ ٱللَّهِ أَن تَقُولُوا۟ مَا لَا تَفْعَلُونَ ۝٣ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلَّذِينَ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِهِۦ صَفًّا
كَأَنَّهُم بُنْيَٰنٌ مَّرْصُوصٌ ۝٤ وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ يَٰقَوْمِ لِمَ تُؤْذُونَنِي وَقَد تَّعْلَمُونَ أَنِّي رَسُولُ ٱللَّهِ
إِلَيْكُمْ فَلَمَّا زَاغُوٓا۟ أَزَاغَ ٱللَّهُ قُلُوبَهُمْ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِي ٱلْقَوْمَ ٱلْفَٰسِقِينَ ۝٥ وَإِذْ قَالَ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ يَٰبَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ إِنِّي رَسُولُ
ٱللَّهِ إِلَيْكُم مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ ٱلتَّوْرَىٰةِ وَمُبَشِّرًۢا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنۢ بَعْدِي ٱسْمُهُۥٓ أَحْمَدُ فَلَمَّا جَآءَهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ قَالُوا۟ هَٰذَا سِحْرٌ مُّبِينٌ ۝٦
وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ ٱلْكَذِبَ وَهُوَ يُدْعَىٰٓ إِلَى ٱلْإِسْلَٰمِ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِي ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝٧ يُرِيدُونَ لِيُطْفِـُٔوا۟ نُورَ ٱللَّهِ بِأَفْوَٰهِهِمْ
وَٱللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِۦ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْكَٰفِرُونَ ۝٨ هُوَ ٱلَّذِيٓ أَرْسَلَ رَسُولَهُۥ بِٱلْهُدَىٰ وَدِينِ ٱلْحَقِّ لِيُظْهِرَهُۥ عَلَى ٱلدِّينِ كُلِّهِۦ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْمُشْرِكُونَ
۝٩﴾ الصف: ١ - ٩

**لغتونه:**

(سبح) دالله تسبيح اوتمجيديې کړی وو دالله پاکي يې بيان کړي وه له ګردوهغونواقصوچي ورسره نه ښايي (العزيز) زبرځواک هغه چي مغلوب کېږي نه (الحکيم) دحکمت خاوند هغه چي هرڅه پخپل ځای کي اېږدي اوهغه کوي چي دحکمت يې غوښتنه اومقتضاوي (مقتا) بغض ، کرکه زمخشري وايې چي (مقت) دبغض خورالوېې پېماني اوسخت نفرت ته وايې (١)(المرصوص) يوله بله پټلېز پيوسته پيوند فراء وايې (رَصَصْتُ البِناءَ) معناداچي دېوال مي داسي يوله بله کوشيراو ، واودل ته به وايې چي يوه تونه دده (٢)(زاغوا) له حق څخه مائل شول(البينات) څرګندي معجزې.

**دنزول سبب:**

روايت کېږي چي مسلمانانوبه ويل که موږته معلومه شوه چي دالله په درباركي ترټولو ښه کارکوم يودی نوځانونه اومالونه به يې په لاره کي ځارکړوخوکله چي جهادفرض شونوځينويې هغه ناخوښه وګڼه نوبيا آيت نازل شوچي ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ۝٢ كَبُرَ مَقْتًا عِندَ ٱللَّهِ أَن تَقُولُوا۟ مَا لَا تَفْعَلُونَ﴾ (٣).

**تفسير:**

﴿سَبَّحَ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ﴾ نسبت دپاکي کوي الله لره هرهغه څېزونه چي په آسمانونوکي دي او(هرهغه څېزونه چي) په ځمکه کي دي (له پرښتو ، انسان ، نبات اوجمادڅخه ) ﴿وَإِن

(١) الکشاف ٤/ ٣١٤
(٢) کبيرتفسير ٢٩/ ٣١١
(٣) دابوالسعودتفسير ٥/ ١٥٩

﴿مِن شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِۦ وَلَٰكِن لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ﴾ امام فخررازي ليکي: معنا داچي ګرد ځمکني اوآسماني مخلوقات دالله په ربوبيت ، وحدانيت اونوروکماليه صفاتوشاهدي وايي (١)﴿وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ﴾ اوالله ښه غالب قوي (په پاچهي کي) ښه حکمت والادی (پخپل صنعت کي هغه چي هرڅه دحکمت له غوښتني سره سم ترسره کوي ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ﴾ ای هغو کسانوچي ايمان يې راوړی (يعني ای مؤمنانو ) ولي وایاست تاسو(هغه خبره)چي نه يې کوی) يعني ولي په ژبويوڅه وایاست خوعمل پرې نکوی؟ اودڅه لپاره وایاست چي موږ به له خيراوښېګڼي څخه کووهغه څه چي نه يې کوی ؟ دغه استفهام انکاري او توبيخ افاده کوي. ابن کثيروايي: دغه انکارپه هغه چادی چي وعده کوي خووفاورباندي نه کوي په صحيحينوکي يوحديث شريف راغلی چي فرمايي: دمنافق درې نښي نښانې دي کله چي وعده وکړي خلاف ورزي کوي چي ويناکوي دروغ وايي اوچي څوک ورته امانت وسپاري پکي خيانت کوي(٢) بياورپسې آيتونه دانکارتاکيدداسي فرمايي ﴿كَبُرَ مَقْتًا عِندَ ٱللَّهِ﴾ لويه ده له جهته دغضبه په نزد دالله (داخبره) ﴿أَن تَقُولُوا۟ مَا لَا تَفْعَلُونَ﴾ چي وایاست تاسي هغه څه چي نه يې کوی (اوداسي وعده کوی چي بياورباندي وفانه کوی. ابن عباس وايي دجهادترفرضيت له مخې ځيني مؤمنانوداسي ويل موږداخوښوچي الله جل جلاله ترګردو اعمالوغوره کوم عمل راوښيي چي موږ يې ترسره کړو نوالله جل جلاله خپل نبي ته داسي وحی وکړه چي ترټولو ښه عمل په الله باندي رښتوني ايمان راوړل ، اوله هغوکسانوسره چي ايمان نه راوړي جهاد کول دی خوکله چي دجهادحکم نازل شونوځينوخلګوته هغه سخت اوناخوښه معلوم شو(٣) نودغه پورتنی آيت نازل شوچابياويلي چي معنا داچي يوڅوک بل چاته دنېکي امراوحکم کوي خوپخپله يې نه ترسره کوي اويااله کوم يوځيزڅخه يې منع کوي خوپخپله نه ورڅخه منع کېږي لکه چي الله تعالی فرمايي ﴿أَتَأْمُرُونَ ٱلنَّاسَ بِٱلْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ﴾ (البقرة:٤٤) بياالله تعالی مؤمنانوته دفي سبيل الله جهادفضيلت هسي بيانوي چي ﴿إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلَّذِينَ يُقَٰتِلُونَ فِى سَبِيلِهِۦ صَفًّا﴾ بېشکه الله خوښوي هغه کسان چي جنګ کوي په لاره د (دين ددغه ) الله کي صف تړونکي (ټينګ درېدونکي) ﴿كَأَنَّهُم بُنْيَٰنٌ مَّرْصُوصٌ﴾ ګواکي دغه بناده پټلېزاوډلي (په قلعي سره ټينګه کړی شوي يعني دوی په جنګ کي داسي صف تړونکي ټينګ محکم درېدونکي وي ته به وايوه بناده چي ځيني په ځيني نوره کي اوډلي شوي اوکوشيرده چي يوځېزترې جوړشوی دی قرطبي ليکي: معنا داچي الله هغه څوک خوښوي چي دجهادپه صف کي داسي ټينګ ودرېږي لکه چي ودانۍ ولاړه وي اودغه دالله له لوري مؤمنانوته تعليم ورکول دي چي څرنګه د

---

(١) کبيرتفسير ٢٩/ ٣١٠

(٢) مختصرابن کثير ٣/ ٤٩١

(٣) المختصر٣/ ٤٩٢ دغه قول دطبري هم غوره دی.

دښمنانو په وړاندي بايد محکم ودرېږي (١)...کله چي الله تعالى د جهاد يادونه وکړه نو ورپسې دا بيان فرمايې چي موسى او عيسى عليهما السلام خلګو ته د توحيد ماړېينه او حکم وکړ دالله په لاره کي يې جهاد وکړ او په دې هکله يې کړاوونه وګالل ﴿ وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ يَٰقَوْمِ لِمَ تُؤْذُونَنِى ﴾ (او ياد کړه اى محمده ! هغه وخت) کله چي وويل: موسى (عليه السلام) خپل قوم ته داسي چي اى زما قومه ولي ماته أذيت رسوې ؟! (په بدو يلو سره) يعني اى محمده خپل قوم ته دې د کليم الله (موسى بن عمران) کيسه وريادة کړه کله چي يې خپل قوم بني اسرائيلو ته وويل چي ولي داسي کارونه کوى چي زه وربانديٰ خورېږم ؟(٢) ﴿ وَقَد تَّعْلَمُونَ أَنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيْكُمْ ﴾ (حال دا چي په تحقيق پوهېږى تاسي په دې چي بېشکه زه تاسې ته دالله رسول يم ) يعني حال دا چي تاسي په قطعي توګه پوهېږى ځکه چي ځرګندې معجزې مووليدې چي زه رښتونى پيغمبر يم پدې کي درسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره تسليت او ډاډينه نغښتې ده ځکه چي دمکې له کفارو څخه به يې ربړونه او کړاوونه ليدل ﴿ فَلَمَّا زَاغُوٓا۟ أَزَاغَ ٱللَّهُ قُلُوبَهُمْ ﴾ نو هر کله چي وګرځېدل دوى (له حق څخه) نو وګرځول الله د دوى زړونه (له هدايت او يقين څخه) ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْفَٰسِقِينَ ﴾ او الله نه ښيي سمه صافه لاره فاسقانو نافرمانو ته يعني الله فاسقان او د الله له طاعته وتلي کسان دخير او هدايت لاري ته نه برياليي کوي امام رازي ليکي چي: پدې کي د پيغمبرانو د کړولو او ځورولو د ګناه لويوالي ته تنبيه ده چي دا هغه څه دي چي کفرته رسېږي او زړونه له هدايت څخه کږوي (٣) له دې نه وروسته آيتونه د حضرت عيسى عليه السلام کيسه رااخلي ﴿ وَإِذْ قَالَ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ يَٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ إِنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيْكُم ﴾ (او ياد کړه اى محمده ! هغه وخت) کله چي وويل: عيسى زوى د مريمي داسي چي اى بني اسرائيلو (اولادې د يعقوب) بېشکه زه رسول لېږلى شوى دالله يم تاسي ته) يعني اى محمده ! خپل قوم ته دې د حضرت عيسى کيسه ولوله کله چي يې بني اسرائيلو ته وويل: اى بني اسرائيلو زه لکه چي په تورات کي مو لوستي په هغه شان تاسي ته دالله پيغمبر رالېږل شوى يم قرطبي ليکي دا چي (ياقوم) يې ورته ونه ويل ځکه چي دده نسب له دوى څخه نه وو چي دوى يې قوم وي ځکه هغه پلارنه درلود ﴿ مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَىَّ مِنَ ٱلتَّوْرَىٰةِ ﴾ (حال دا چي) تصديق کونکى يم د هغه کتاب چي وړاندي له ما دى له تورات څخه) يعني حال دا چي زه په تورات معترف او د هغه تصديق کونکى يم او د هغه رنګه په ګردو کتابونو او انبياوو عليهم السلام اقرار کوم تاسو ته مي د تورات مخالف کوم حکم نه دى راوړى چي تاسي ورڅخه وترهېږى او له ما څخه وتښتى ﴿ وَمُبَشِّرًۢا بِرَسُولٍ يَأْتِى مِنۢ بَعْدِى ٱسْمُهُۥٓ أَحْمَدُ ﴾ او زېرى

---

(١) القرطبي ١٨/ ٨٢

(٢) قرطبي وايې خورول يې پدې چي ويل به يې هغه په داسي ناروغي اخته دى چي (خصيه) يې پړسېدلي ده او بل دا چي يو بنځه يې وهڅوله چي ووايې موسى عليه السلام له دې سره زنا کړې ده بل دا چي دوى ورته ويل (اجعل لنا الها کما لهم آلهة)، بل دا چي ورته ويل يې (اذهب أنت وربک فقاتلا...).

(٣) کبير تفسير ٢٩/ ٣١١

کونکی یم په هغه رسول سره چي رابه شي وروسته له ماځخه چي نوم دده احمد دی. الوسي ليکي چي: دغه متبرک عزتمن اسم درسول الله لپاره علم (نوم) دی لکه چي حسان بن ثابت رضی الله عنه وايي:

صلی الاله ومن يحف بعرشه * والطيبون علی المبارک احمد[1]

الله جل جلاله اوهغوپرښتوچي دعرش په خواوشاراتولي دي او پاکيزه خلګ په مبارک احمدباندي درود لوستلی دی ، په حديث شريف کي راځي چي: زماپنځه نومونه دي زه محمداوزه (احمد) اوزه حاشر) هغه چي خلګ به زماپه پله راټولول کېږي اوزه (ماحي) هغه چي الله زماپه سبب کفر ورک کړاوزه (عاقب) يم ، دعاقب معنی هغه چي وروسته ترې بل پيغمبرنه وي روايت کاوه شي چي اصحابانو(رضوان الله عليهم) وويل: ای دالله پيغمبره موږ ته ستاپېژندنه وکړه نورسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: زه دحضرت ابراهيم دعااودحضرت عيسی عليه السلام زېری يم مورمي کله چي زه يې په تن کي جنين وموندلم داسي خوب وليده چي يونور ورځخه پيداشي اودشام ماڼۍ ورته رڼاکړي

([2]) ﴿ فَلَمَّا جَآءَهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِ ﴾ (الله وايي) بياکله چي راغی هغه (رسول عيسی) دوی ته په ښکاره وومعجزوسره (چي دمړوژوندي کول ، دمورزاده ړندواوپيس ناروغانو درملنه کول وو او داسي نوري معجزې چي دده دنبوت په رښتنولي يې دلالت کاوو([3]) ﴿ قَالُواْ هَٰذَا سِحۡرٞ مُّبِينٞ ﴾ (وويل (بني اسرائيلو) دغه ښکاره کوډي دي) يعني دوی وويل چي: دغه عيسی کوډګر دی دغه ښکاره کوډي يې راوړي او ددوی اشاره کوډوته دهغه معجزاتي وې چي دده په لاس څرګندېدلې، مفسرين کرام وايي هر پيغمبر خپل قوم ته زموږد پيغمبرمحمدرسول الله صلی الله عليه وسلم دراتلو زېری ورکړی دی او دلته چي يوازي دحضرت عيسی عليه السلام دبشارت يادونه شوي ځکه چي هغه وروستنی پيغمبروو چي تررسول الله دمخه تېرشوی وو نومعلومه شوه چي دغه زېری عام اوهرپيغمبر بل ته رسولی ووخوچي دعيسی عليه السلام وار راغی چي دبني اسرائيلوآخري پيغمبروو ﴿ وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ ٱلۡكَذِبَ وَهُوَ يُدۡعَىٰٓ إِلَى ٱلۡإِسۡلَٰمِۚ ﴾ (اوڅوک دی ډېرظالم (بلکه هيڅوک نشته) له هغه چا څخه چي له ځانه په الله پسي دروغ تړي (حال دا) چي دی بللی شوی دی طرف داسلام ته) استفهام دنفی په معنادی يعني تردې بل زيات ظالم هيڅوک نشته څوک چي دپيغمبرپه ژبه اسلام ته بلل شوی خو دوی پرځای ددې چي بلنه يې ومني هغه ته کوډګروايي اودالله آيتونه کوډي نوموي ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ اوالله نه ښيي سمه صافه لاره قوم دظالمانو(فاجرانو)ته ﴿ يُرِيدُونَ لِيُطۡفِـُٔواْ نُورَ ٱللَّهِ بِأَفۡوَٰهِهِمۡ ﴾ اراده لري (غواړي) منکران چي مړه کړي رڼادالله (محمدي شريعت) پخپلو خولوسره . امام فخررازي ليکي چي دالله دنوروژل پر دوی پسي يوتهکم دی چي دوی داسلام بطلان پدې کوي چي وايي قرآن کوډي دی ددوی حال يې له هغه چاسره مشابه کړچي

---

([1]) الوسي تفسير ۲۸/ ۸۴
([2]) دابن اسحاق سيرت-ابن کثيروايي چي اسناديې جيد دی.
([3]) دغه ظاهردی چي ضميردي عيسی ته راجع وي ځکه چي دهغه په هکله بيان دی چابياويلي چي دغه ضميراحمدته راجع دی هغه چي په باب دبشارت يادونه ده خولومړی قول دبيضاوي اوتفسيرالوسي اوالبحرالمحيط دمؤلفينوغوره اوښه

دلمورانګي اوروښنايي په پوکي وژني اوپدې کي استهزاء اوسخريه نغښتي ده ﴿ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِۦ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ ﴾ اوالله پوره کونکی درناخپلي دی اګرکه بدګڼي دغه کافران منکران (يعني الله په ګوټ ګوټ نړۍ کي خپل دين څرګندونکی او لوړونکی دی لکه چي په حديث شريف کي راځي چي: الله ماته ځمکه راونغښته اومايې ختيځ او لويديځ وليدل اوبېشکه زما د امت پاچهي ترهغه قلمروه رسېږي کوم چي ماته رانغاړل شوي وه...د حديث ترپايه(١) که څه هم کفار مجرمان يې نه خوښوي دبيضاوي په حاشيه حاشيه کي راځي: دمکې کفاروله دغه برحق دين څخه کرکه درلوده ځکه دوی په شرک اوضلالت کي غوپه وونوددوی دسپکتيا سره دا مناسب ووچي کوم څېز دوی نه خوښوي الله يې خپورکړي اومرادله خپراوي اواظهارڅخه دانه دی چي په ګرده نړۍ کي به چېري هم کفارنه وي بلکه مقصددادی چي دغه دين به په ګردواديانوباندي په حجت اوبرهان اوتوره او لسان کي لوړوي ترڅوچي آخر الزمان راځي (٢) ﴿ هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُۥ بِالْهُدَىٰ وَدِينِ الْحَقِّ ﴾ (دغه (الله) هغه (ذات) دی چي رالېږلی يې دی رسول خپل په هدايت سمه لاره اوپه حق دين) يعني الله هغه ذات دی چي پخپل قدرت اوحکمت يې محمدصلی الله عليه وسلم په واضح قرآن اوښکاره دين باندي را استولی دی ﴿ لِيُظْهِرَهُۥ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِۦ ﴾ لپاره ددې چي غلبه ورکړي (الله) دغه حق دين ته په ټولو اديانو باندي (چي مخالف دي ورڅخه لکه يهوديت ، نصرانيت اونور) ﴿ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ ﴾ اګرکه بده ګڼي (دغه غلبه) کافران (مشرکان دالله دښمنان ابوالسعودليکي چي الله داسلام ددين اوغلبې دغه وعده پرځای کړه داسي چي هيڅ دين نشته چي ددغه دين په وړاندي مغلوب شوی نه وي (٣).

***

الله تعالی فرمايي:

﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ تِجَارَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ (١٠) تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ (١١) يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ (١٢) وَأُخْرَىٰ تُحِبُّونَهَا نَصْرٌ مِّنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ (١٣) يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا أَنصَارَ اللَّهِ كَمَا قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّينَ مَنْ أَنصَارِي إِلَى اللَّهِ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ فَآمَنَت طَّائِفَةٌ مِّن بَنِي إِسْرَائِيلَ وَكَفَرَت طَّائِفَةٌ فَأَيَّدْنَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَىٰ عَدُوِّهِمْ فَأَصْبَحُوا ظَاهِرِينَ (١٤) ﴾ الصف: ١٠ ـ ١٤

**مناسبت:**

---

(١) دغه داوږدحديث توټه ده چي مسلم روايت کړی اوپه حديث کي (زُوِیَ) معناجمع کول نغښتل دي يعني دامکن شوه چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وليدله.

(٢) دشيخ زاده حاشيه په بيضاوي باندي ٣/ ٤٩٠.

(٣) دابوالسعودتفسير ١٥/ ١٢١

کله چي الله ددې بيان وفرمايو چي مشرکان غواړي دالله دنورشغله مړه کړي نومسلمانانوته يې حکم وکړچي دالله ددين ددښمنانوسره په جهادکولو کي ځان اومال قربان کړي اوداېې ورته وښودله چي دغه ګټوره سوداګري ده که څوک غواړي په دنيااوآخرت کي نېکمرغه شي همدغه تجارت دي پر مخ بوزي.

(لغتونه)

(تنجيکم) چي تاسي وژغوري(الحواريون) خواص دعيسى عليه السلام ملګري هغه کسان چي دده مرسته يې وکړه (أيدنا) موږقوي کړ(ظاهرين) غالبان په حجت اوبرهان باندي

دنزول سبب:

روايت کېږي چي ځيني اصحابانووويل: يارسول الله موږ غواړوپدې وپوهېږو چي الله ته کوم تجارت اوسوداګري غوره ترڅوموږخپل وخت اومال پکي ولګوو نودا آيت نازل شو﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ هَلۡ أَدُلُّكُمۡ عَلَىٰ تِجَٰرَةٖ.. ﴾.

تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ هَلۡ أَدُلُّكُمۡ عَلَىٰ تِجَٰرَةٖ ﴾ (اى هغوکسانوچي ايمان يې راوړى دى (يعني اى مؤمنانو) آيادروښيم تاسي ته هسي تجارت ) يعني اى هغوکسانوچي په الله اوپيغمبرموږښتونى ايمان راوړى آياتاسوته يوخوراستر تجارت دروښيم ؟ استفهام دتشويق لپاره دى ﴿ تُنجِيكُم مِّنۡ عَذَابٍ أَلِيمٖ ﴾ چي نجات درکوي خلاصوي تاسوله دردناک عذاب څخه ، بيايې دتجارت داسي تشريح فرمايلي ﴿ تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ ښه ټينګ اوسئ په ايمان باندي چي لرى يې په الله اورسول الله باندي (داسي ايمان راوړئ چي شک اونفاق پکي نه وي) ﴿ وَتُجَٰهِدُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمۡوَٰلِكُمۡ وَأَنفُسِكُمۡ ﴾ اوجهادکوئ تاسي (اى مؤمنانو له دښمنانودالله سره ) په لاره دالله کي په مالونواونفسونوخپلوسره (لپاره داعلاء کلمة الله) مفسرين کرام وايي چي ايمان اودالله په لاره کي جهاديې تجارت وباله ځکه چي له تجارت سره مشابه دى کوم چي يومال په بل مال باندي بدلېږي ترڅوپکي ګټه وکړي نوڅوک چي ايمان راوړي اوپه ځان اومال جهادوکړي نوده هغه څه چي له ده سره وودهغه څه په مقابل کي ورکړل چي له الله سره دي چي هغه ثواب اونجات له عذابه دى نودغه ثواب اوژغورنه دعذاب يې له تجارت سره مشابه کړه چي الله فرمايې﴿ إِنَّ ٱللَّهَ ٱشۡتَرَىٰ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَنفُسَهُمۡ وَأَمۡوَٰلَهُم بِأَنَّ لَهُمُ ٱلۡجَنَّةَ ﴾ امام فخررازي وايې : جهاددرې دوله دى يوجهادله نفس سره دى چي هغه له لذاتو شهواتوڅخه راوګرزوي بل هغه دى چي د ده اوخلګوترمينځ وي هغه داچي طمع اوحرص پرېږدي اوپرخلګورحم اوشفقت وکړي ، دريم دالله له دښمنانوسره جهاددى چي دالله ددين دلوړتيالپاره په نفس اومال جهادوکړي ([1]) ﴿ ذَٰلِكُمۡ خَيۡرٞ لَّكُمۡ إِن كُنتُمۡ

([1]) کبيرتفسير ۲۹/ ۳۱۲

﴿ تَعْلَمُونَ ﴾ دغه (جهاد) بهتردی تاسي ته ای مؤمنانو (له هرڅه نه) که چېري يې تاسي چي پوهېږی (په حقيقي تجارت باندي) ﴿ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ﴾ وبه ببښي (الله) تاسو ته گناهونه ستاسي دغه دخبريه جملي ځواب دی کوم چي ږومبی تېره شوه هغه چي ﴿ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ﴾ وه څکه چي معنايې دامرمعناوه يعني په الله جل جلاله ايمان راوړئ اودهغه جلت عظمته په لارکي جهادوکړئ اوکله چي مودغسي وکړل نو الله به موگناهونه دروببني يعني پټ به يې کړي اوپه خپل فضل سره به يې محوه کړي ﴿ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ﴾ اوننې باسي به مو(په داسي) جنتونوکي چي بهېږي به له لاندي د(مانيواوونو) دهغو ويالي (دجنت چي شراب ،شيدې ، شات اوخوږې خوندوري اوبه دي) ﴿ وَمَسَٰكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّٰتِ عَدْنٍ ﴾ (اوداخل به موکړي) په ځايونوښايسته وو پاکيزه ووکي (چي لوړي دنگي دنگي مانۍ دي) په جنتونو دهمېشه اوسېدلوکي ﴿ ذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴾ دغه (مغفرت اوداخلېدل جنت ته) ستر بری اوپه مراد رسېدل دي(يعني داسي نېکمرغي اوسعادت دی چي ترې پورته بله نېکمرغي او سعادت نشته ﴿ وَأُخْرَىٰ تُحِبُّونَهَا ﴾ بل (دنيوي نعمت) چي تاسوېې خوښوی ﴿ نَصْرٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ ﴾ مددکومک حفاظت دي له (جانبه د) الله اوبری نژدې دی) معناداچي په دښمنانوبه بری درکړي مکه به درته فتح کړي ابن عباس رضی الله عنه وايي : مرادله دې څخه دفارس اوروم فتح ده ﴿ وَبَشِّرِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اوبشارت زېری ورکړه (ای محمده !) مؤمنانوته (په دغه ښکاره فضل سره . په البحرالمحيط کي ليکي : کله چي الله ددې يادونه وکړه چي دوی ته به په آخرت کي ثوابونه ورکول کېږي نوهله يې ورته ددې جهان دخوښي بيان هم وفرمايوچي دوی ته به هيوادونه فتح کړي دغه دنيوي ښېگڼه ده چي دآخرت ثوابونوته رسېږي نوبه په دنياکي فتح اونصرت په آخرت کي مغفرت اوجنت دواړه سره يوځای شي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُونُوٓا۟ أَنصَارَ ٱللَّهِ ﴾ ای هغوکسانوچي ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو) شئ تاسومرسته کونکي (ددين) د الله (اومنارېې اوچت کړئ لکه چي مرسته کړي ده حوارينو) ﴿ كَمَا قَالَ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّـۧنَ ﴾ لکه چي ويلي ووعيسی زوی دمريمي حوارينو(ملگروخپلو) ته ﴿ مَنْ أَنصَارِيٓ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ څوک دی مدد کونکی زماپه لاره کي دالله؟(يعني څوک له ماسره دالله دتبليغ اودعوت په لاره کي مرسته کوي چي دالله د دين نصرت وشي ﴿ قَالَ ٱلْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ ٱللَّهِ ﴾ نوووېل حوارينوموږ يومرسته کونکي (ددين) دالله. بيضاوي ليکي چي حوارين هغه ځانگړي مخلص مؤمنان وو چي دده بلنې ته يې لبيک وواېودغه له (حور) څخه مشتق دی اوهغه سپين والي ته وايي دوی دوولس تنه وو[1] امام رازي ليکي چي په آيت شريف کي تشبيه په معناباندي محموله ده يعني دالله ددين داسي مرستندويان شئ لکه چي حوارين

---

[1] البيضاوي ۴۹۲/۳

وو(۱) ﴿ فَآمَنَت طَّآئِفَةٌ مِّنۢ بَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ وَكَفَرَت طَّآئِفَةٌ ﴾ نو ايمان راووړيو ډلي له بني اسرائيلو څخه (په عيسى عليه السلام) اوكافره شوه پرې بله ډله ) يعني دوى په دووډلو ووېشل شول ځينو وړباندي ايمان راووړاوځيني وړباندي كافران شول هغه يې نه مانو (اوسره په جګړه شول) ﴿ فَأَيَّدْنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ عَلَىٰ عَدُوِّهِمْ ﴾ نوقوت موورکړهغوته چي ايمان يې راوړی ووپردښمنانو ددوی باندي ﴿ فَأَصْبَحُواْ ظَٰهِرِينَ ﴾ پس وګرزېدل دوی(مؤمنان) بريالي (پرکفاروپه حجت اوبرهان باندي ابن کثيروايې : کله چي حضرت عيسى دالله رسالت بني اسرائيلوته ابلاغ کړيوې ډلي بني اسرائيلودغه رسالت ومانواوبله ډله منکره اوګمراه شوه عيسى عليه السلام ته اودهغه مورته يې ډېري لويې اوستري ښکنځلي اوبدي ردي وويلې دغه يهودان عليهم اللعنة وو دده له اتباعوڅخه ځيني نوروبياده په هکله دومره زياته غلو اواستغراق وکړ چي هغه يې دالوهيت مرتبې ته اوچت کړاودوی بياګرډپه يوه خوله نه ووځينوويل چي دی دالله زوی دی (معاذالله) ځينوګمان کاوو چي هغه ددريوڅخه يودی چي هغوی درې پلار،زوی، اوروح القدس دي ځينوبياويل چي : هغه پخپله الله دی (تعالى الله عن ذلک علواکبيراً) نوالله جل جلاله مؤمنانو نصاراووته په کافرانوباندي برى اونصرت ورکړ.

بلاغت:

پدې سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډېزيې دادی:

۱- توبيخي اسلوب لکه ﴿ لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ﴾ مادا استفهام لپاره ده اوالف يې دتخفيف لپاره حذف شوی اومقصدله استفهام څخه توبيخ دی.

۲- اطناب چي دلفظ په تکرارسره راغلی اوددوی دبدعملي دزيات تقبيح افاده کول پکي نغښتي دي چي فرمايي ﴿ كَبُرَ مَقْتًا عِندَ ٱللَّهِ أَن تَقُولُواْ مَا لَا تَفْعَلُونَ ﴾ همدارازد ﴿ تَقُولُواْ ، تَفْعَلُونَ ﴾ ترمينځ دطباق صنعت هم شته

۳- مرسله مفصله تشبيه چي وايي ﴿ بُنْيَٰنٌ مَّرْصُوصٌ ﴾ يعني په ټينګ والي او اوډلوکي.

۴- دترغيب لپاره استفهام لکه ﴿ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ تِجَٰرَةٍ ﴾ چي راغلی دی.

۵- لطيفه استعاره چي فرمايي ﴿ يُرِيدُونَ لِيُطْفِـُٔواْ نُورَ ٱللَّهِ ﴾ دالله نوريې ددين اوروښانه شريعت لپاره استعاره کړی اوهغه کسان چي ددين باطلول غواړي هغوی يې له هغه چاسره چي دخولې په پوکي دلمررڼاورکول يې مقصدوي مشابه کړل دغه تمثيلي استعاره اوله لطافته ډکه ده.

۶- دطباق صنعت کله چي فرمايي ﴿ فَآمَنَت طَّآئِفَةٌ وَكَفَرَت طَّآئِفَةٌ ﴾.

(۱) کبيرتفسير ۲۹ / ۳۱۹

۷- مرصع سجع ته به واد ملغلرودانې دي چي په يوه تاركي پېيل شوي وي لكه ﴿ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِى ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡفَٰسِقِينَ ﴾ ﴿ هَٰذَا سِحۡرٞ مُّبِينٞ ﴾ ﴿ وَبَشِّرِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴾ اوداغه له بد يعي محسناتوڅخه ګڼل كېږي.

تنبيه:

داچي دموسى اوعيسى عليهما السلام كيسه يې په سورت كي سره يوځاى راوړه ځكه چي دوى دواړه دبني اسرائيلوانبياء دي اودهغوى تر ګردودستري مرتبې خاوندان اواولوالعزم پيغمبران دي چي الله تعالى پخپل كتاب كي په ثناسره ستايلي دي.

دالله په مرسته دالصف سورت تفسيربشپړشو.

***

د(الجمعة) سورت مدني اويوولس آيتونه لري:

دسورت په وړاندي:

دغه سورت مدني سورت دى اوتشريع بيانوي هغه محورچي سورت ورباندي راڅرخي دجمعې لمونځ دى كوم چي الله تعالى په مؤمنانوفرض كړى دى.

سورت د رسول الله خاتم الانبيابعثت راخلي اودابيې چي هغه عليه السلام يوالهي رحمت دى دهغه په وسيله الله تعالى عرب دشرک له ګمراهيوڅخه وژغورل اوګردانسانيت يې ورباندي ونازاوو دهغه بعثت دبشري ټولني درنځونولپاره كوم چي دجهل په تورتم كي اوسېده درمل اوعلاج وو.

ورپسې له يهودانوڅخه رغېږي هغوى چي دالله له شريعت څخه منحرف شوي ووكوم چي الله ورباندي دتورات په حكمونوعمل كول فرض ګرزولي وو خودوى هغه شاته وغورځاوو. آيتونه ددوى لپاره دخره مثال راوړي هغه چي ورباندي ګټور كتابونه باروي خوهغه پرته له درندوالي اوتكليف څخه هيڅ ډول ګټه ورڅخه اخيستلاى نشي اوهمدغه دبدمرغي اوشقاوت وروستى پړاودى.

بيادجمعې دلمانځه حكمونه راوړي اومسلمانانوته بلنه وركوي چي دلمانځه دادا كولو لپاره چټكتياوكړي د آذان په وخت كي پلورل، پېرودل منع كوي اوداسي فرمايي چي دلمانځه په وخت كي دي په تجارت اولهوكي نه بوختېږي لكه منافقين چي لمانځه ته وبلل شي نوسست كشال راپاڅېږي

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ ٱلۡمَلِكِ ٱلۡقُدُّوسِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَكِيمِ ۝١ هُوَ ٱلَّذِي بَعَثَ فِي ٱلۡأُمِّيِّـۧنَ رَسُولٗا مِّنۡهُمۡ
يَتۡلُواْ عَلَيۡهِمۡ ءَايَٰتِهِۦ وَيُزَكِّيهِمۡ وَيُعَلِّمُهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ وَٱلۡحِكۡمَةَ وَإِن كَانُواْ مِن قَبۡلُ لَفِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ ۝٢ وَءَاخَرِينَ مِنۡهُمۡ لَمَّا
يَلۡحَقُواْ بِهِمۡۚ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡحَكِيمُ ۝٣ ذَٰلِكَ فَضۡلُ ٱللَّهِ يُؤۡتِيهِ مَن يَشَآءُۚ وَٱللَّهُ ذُو ٱلۡفَضۡلِ ٱلۡعَظِيمِ ۝٤ مَثَلُ ٱلَّذِينَ حُمِّلُواْ
ٱلتَّوۡرَىٰةَ ثُمَّ لَمۡ يَحۡمِلُوهَا كَمَثَلِ ٱلۡحِمَارِ يَحۡمِلُ أَسۡفَارَۢاۚ بِئۡسَ مَثَلُ ٱلۡقَوۡمِ ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِۚ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي
ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝٥ قُلۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ هَادُوٓاْ إِن زَعَمۡتُمۡ أَنَّكُمۡ أَوۡلِيَآءُ لِلَّهِ مِن دُونِ ٱلنَّاسِ فَتَمَنَّوُاْ ٱلۡمَوۡتَ إِن كُنتُمۡ

Bawar.net



صَٰدِقِينَ ﴿٦﴾ وَلَا يَتَمَنَّوْنَهُۥٓ أَبَدًۢا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ۚ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٧﴾ قُلْ إِنَّ ٱلْمَوْتَ ٱلَّذِى تَفِرُّونَ مِنْهُ فَإِنَّهُۥ مُلَٰقِيكُمْ ۖ ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَٰلِمِ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٨﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا نُودِىَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ ٱلْجُمُعَةِ فَٱسْعَوْا۟ إِلَىٰ ذِكْرِ ٱللَّهِ وَذَرُوا۟ ٱلْبَيْعَ ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٩﴾ فَإِذَا قُضِيَتِ ٱلصَّلَوٰةُ فَٱنتَشِرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَٱبْتَغُوا۟ مِن فَضْلِ ٱللَّهِ وَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿١٠﴾ وَإِذَا رَأَوْا۟ تِجَٰرَةً أَوْ لَهْوًا ٱنفَضُّوٓا۟ إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ قَآئِمًا ۚ قُلْ مَا عِندَ ٱللَّهِ خَيْرٌ مِّنَ ٱللَّهْوِ وَمِنَ ٱلتِّجَٰرَةِ ۚ وَٱللَّهُ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ ﴿١١﴾ ﴾ الجمعة: ١ - ١١

**لغتونه:**

(الأمين) هغه عرب چي د رسول الله معاصر وو دوی ته څکه أميين وويل شول چي ليک او لوست يې نه وو زده (يزكيهم) له تزكيې څخه اخيستل شوی او هغه د شرک او معاصيو څخه پاکوالي ته وايي (أسفارا) د سفر جمع او ستر كتاب ته ويل كيږي (هادوا) د يهوديت دين يې منلی وو (انفضوا) تيت او پرک به شول.

**د نزول سبب:**

حضرت جابر رضی الله عنه روايت كوي يوه ورځ رسول الله صلی الله عليه وسلم د جمعې په ورځ خطبه لوستله ولاړ وو چي ناڅاپه مدينې منورې ته قافله راورسېده او اصحابان د قافلې لوري ته وو تل چي له دوولس تنو څخه پرته نور پاتي نشول په هغو پاتي كسانو كي زه او حضرت ابوبكر او عمر رضی الله عنه) وو نو الله جل جلاله دا آيت نازل كړ: ﴿ وَإِذَا رَأَوْا۟ تِجَٰرَةً أَوْ لَهْوًا ٱنفَضُّوٓا۟ إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ قَآئِمًا.. ﴾ (¹).

**تفسير:**

﴿ يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ (نسبت د پاكي كوي خاص الله لره هر هغه څه چي په آسمانونو كي دي او هر هغه څه چي په ځمكي كي دي ) يعني د الله تنزيه او پاكي بيانوي تمجيدې كوي او تقديس يې ستايي ګرد هغه څه چي په كائناتو كي دي له انسان ، حيوان نبات او جماد څخه د مضارع صيغه چي (يسبح) ده ددې لپاره راوړل شوي چي تجدد او استمرار افاده كړي دغه تل ترتله تسبيح ده ﴿ ٱلْمَلِكِ ﴾ چي باچا تولواک دی (د هر څېز مالک او پخپل مخلوق كي د ايجاد او اعدام (هستي او نيستي) تصرف كونكی دی ﴿ ٱلْقُدُّوسِ ﴾ ډېر پاک دی له هره عيبه (متصف) دی د كمال په صفاتو سره ﴿ ٱلْعَزِيزِ ٱلْحَكِيمِ ﴾ (ښه غالب قوي ښه حكمت والا دی) يعني ښه غالب او زبردست دی پخپله پاچهي كي او ښه حكمت والا دی په خپل صنعت كي ﴿ هُوَ ٱلَّذِى بَعَثَ فِى ٱلْأُمِّيِّـۧنَ رَسُولًا مِّنْهُمْ ﴾ (دغه (الله) هغه ذات دی چي لېږلی يې دی په اميانو كي يو رسول (محمد ) له دوی څخه ) يعني دغه الله پخپل حكمت او رحمت سره په عربو كي يو استاذی د دوی له ډلي را استولی د دوی په شان أمي دی چي نه لولي او نه ليكي. مفسرين كرام ليكي چي عرب يې څكه أميان و نومول څكه دوی ليک لوست نه لري په دوی كي أمي تو ب مشهور شوی

(¹) أخرجه البخاري ومسلم - روح المعاني تفسير ٢٨ / ١٠٤.

لکه چي رسول الله فرمايي: (نحن أمة أمية لانكتب ولانحسب) موږ أمي أمت يو نه ليکل کوو او نه حساب کوو) (١)اوداچي درسول الله بعثت يې داميينولپاره يادکړسره له دې چي هغه دګردبشريت لپاره پيغمبردی پدې کي دعربو دشرافت ښودل دي چي درسول الله نسبت يې هغوی ته وکړ اوددوی همدغه شرافت بس دی ﴿ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ ءَايَٰتِهِۦ ﴾ چي لولي پردوی باندي آيتونه ددې (قرآن) ﴿ وَيُزَكِّيهِمْ ﴾ اوپاکوي دوی (له کفره اوګناهونوڅخه ابن عباس وايې معناداچي ددوی زړونه په ايمان پاکوي(٢) ﴿ وَيُعَلِّمُهُمُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحِكْمَةَ ﴾ اوښيي دوی ته کتاب (قرآن) اوحکمت (نبوي پاکيزه سنت) ﴿ وَإِن كَانُوا۟ مِن قَبْلُ لَفِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾ (اګرکه وودوی پخوا(ترمحمدي بعثته) په ګمراهي ښکاره کي) يعني حال اوشان دادی چي دوی درسول الله له بعثته پخواپه ښکاره ګمراهي کي اوسېدل چي سمه لاره يې ورکه کړې وه. ابن کثيرليکي: الله جل جلاله محمد رسول الله پداسي وخت کي راواستاووچي دفترت زمانه وه دديني لارې ليکي ورکي شوي وې ديولاړښوونکي استازي خوراسخته اړتياوه عرب دابراهيم عليه السلام ددين پلويان ووخوهغه يې بدل کړی ووتوحيد يې په شرک اويقين يې په شک اړولی وو داسي شيان يې له ځانه جوړکړي ووچي الله ورته حکم نه ووکړی همداسي اهل کتابوخپل کتابونه تحريف کړي اوبدل کړي ووچي الله محمد رسول الله راواستاووستراوبشپړشريعت يې ورکړکوم چي هدايت اوبيان پکې وو اوګردهغه څه چي خلګ ورته دمعاش اومعادپه هکله اړتيالري پکي موجودوو الله پاک هغه ته ټول محاسن وربښلي اوهغه څه يې ورکړي چي نه پخوانيواونه وروستنيوته ورکول شوي وو(٣) ﴿ وَءَاخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا۟ بِهِمْ ﴾ اوالله پورته کړی لېږلی دی محمدلره په مينځ دنورو راتلونکيو کي) له مؤمنانوچي نه دي رسېدلي دوی هغو(مؤمنانو) ته يعني رسول الله يې نورو قومونو ته هم رااستولی دی چي ددوی په زمانه کي نه وواوله دوی نه وروسته به راځي اودغه ګردهغه اقوام اوخلګ دي چي ترقيامته پوري مسلمانېږي صاوي ليکي معناداچي پيغمبريې دهغه په زمانه کي د موجودخلګولپاره مبعوث کړی اودهغوکسانولپاره چي تردوی وروسته راځي دده استازيتوب يوازي دهغه ترزمانې پوري محدودنه دی بلکه ددوی عربواونوروکسانولپاره هم دی چي تر قيامته راتلونکي دي (٤)په يو حديث شريف کي چي ابوهريرة رضی الله عنه يې روايت کوي وايې: موږله رسول الله صلی الله عليه وسلم سره ناست ووچي په پيغمبرعليه السلام سورت الجمعة نازل شو ﴿ وَءَاخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا۟ بِهِمْ ﴾ نو اصحابانورضی الله عنهم رسول الله ته وويل: دغه څوک دی؟ (زموږسره سلمان فارسي هم ناست وو) نورسول الله خپل لاس په سلمان رضی الله عنه کېښوداوبيايې وفرمايل: (لوكان الايمان عند الثرياء لناله رجال من هؤلآء)(٥) که

(١) متفق عليه.
(٢) الوسي تفسير ۹۳/۱۸
(٣) دابن کثيرمختصر ۳/ ۴۹۷
(٤) دصاوي حاشيه ۴/ ۲۰۴
(٥) متفق عليه واللفظ لمسلم.

ایمان په ثریا(پروین)کي (اوچت هم ) وی نو ددغو خلګو کسانه به یې ترلاسه کوي، مجاهد ددغه آیت په تفسیر کي لیکلي چي دغه عجمیان او ګرد هغه خلګ دي چي له عربو پرته یې درسول الله تصدیق کړی دی[1] ﴿ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ او دغه الله ښه غالب (پخپله پاچهي) کي ښه حکمت والا (پخپل صنعت کي دی) ﴿ ذَٰلِكَ فَضْلُ ٱللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَآءُ ﴾ (دغه (نبوت) دالله لوی فضل دی چي ورکوي یې هغه چاته چي د ورکولو اراده یې ورته وفرمایي) یعني دغه شرافت چي الله تعالی سیدالبشرورباندي ونازاوه او ګردي بشري ټولني ته یې واستاوو او هغه چي عرب یې ددوی په ژبه په قرآن کریم رالېږلو او خاتم الانبیاء ورته مبعوث کولو ښایسته کړل دغه دالله یو فضل دی هغه چاته یې ورکوي چي ورته دورکولو اراده یې وشي ﴿ وَٱللَّهُ ذُو ٱلْفَضْلِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ او الله خاوند دفضل دېرلوی دی (په دنیا او آخرت کي) له دې په وروسته الله دیهودانو، هغو چي الله جل جلاله تورات ورته را استولی وو بدي بیانوي ځکه چي دوی په هغه سپېڅلي کتاب کومه ګټه ونه موندله او په ژوندانه کي یې دهغه حکمونه پلي نه کړل ځکه نو الله هغوی له خره سره تشبیه کوي چي غټ کتابونه پرې باروي فرمایي ﴿ مَثَلُ ٱلَّذِينَ حُمِّلُوا۟ ٱلتَّوْرَىٰةَ ﴾ مثال دهغو کسانو چي مکلف کړی شوي وو په تورات (چي عمل پرې وکړي) ﴿ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا ﴾ بیا بارنکړ هغوی هغه تورات (عمل یې پرې ونکړ دهغه په هدایت او رڼایي ګټه ونه موندله) ﴿ كَمَثَلِ ٱلْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًۢا ﴾ (مثال دهغو کسانو) په مثل دخره دی چي په شاوړي کتابونه (او ګټه ترې نشي اخیستی) یعني ددوی مثال دهغه خره دمثال په شان دی چي غټ کتابونه ور باندي باروي هغه چي ګټور معلومات لارښووني او مواعظ لري خوخر پرته له دروندوالي او کړاوڅخه هیڅ فائده ورڅخه نه شي اخیستلای هغه یې په بورته کولو ستړی ستومانه وي خوله زېرمو او نصحیتونوڅخه یې هیڅ ګټه نه مومي[2] بیضاوي حاشیه لیکلي چي الله دیهودانو بدي په دې بیانوي چي دوی تورات لوستل په هغه ځه پوهېدل چي په دغه تورات کي دمحمد صلی الله علیه وسلم دنبوت دربښتنولي په هکله راغلي او ایمان راوړل ورباندي واجب ښيي مګردوی په هغه ځه عمل ونکړ کوم چي دوی یې ددارینوله بدمرغي څخه ژغورلي وای نو دوی یې له خره سره یوځول وارزول او تشبیه کړل هغه چي دعلم او حکمت کتابونه یې په شا باروي خو پخپله دی له دغه علم او حکمت څخه هیڅ برخه نلري د شبه وجه ددوی ترمینځ ګټه نه اخیستل دي سره له دې چي تکلیف اوزحمت هم تېروي[3] ﴿ بِئْسَ مَثَلُ ٱلْقَوْمِ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَـٰتِ ٱللَّهِ ﴾ بد دی مثال دهغه قوم چي دروغ رابې دوی په دلائلو (دقدرت) دالله ) یعني دغه مثال چي مونږ دیهودانو لپاره بیان کړی بد مثال دی لپاره دهغه قوم چي دالله په آیتونو دروغ ترې هغه آیتونه چي دمحمد علیه السلام دنبوت دربښتنولي په هکله

---

(1) دابن کثیر مختصر ۴۹۸/۳
(2) قرطبي تفسیر ۹۵/۱۸
(3) حاشیه شیخ زاده ۴۹۴/۳

راغلي دي (۱)﴿ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴾ اوالله نه ښيي سمه صافه لارقوم دظالمانو(کافرانو) ته يعني الله هغوی دايمان او ښېګڼي لاري ته نه رهبري کوي. عطاء وايي : دوی هغه کسان دي چي پخپلوځانونوبې دانبياوو عليهم السلام په دروغجن ګڼلو ظلم کړی دي(۲) وروسته الله تعالی ديهودانودغي دعوی تکذيب بيانوي کوم چي دوی به ويل دالله دوستان هم دوی دي الله فرمايي ﴿ قُلْ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ هَادُوا إِن زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَاءُ لِلَّهِ مِن دُونِ النَّاسِ ﴾ ووايه (ای محمده!) ای هغوکسانوچي يهودان شوي يی (يهودي ملت مو منلی) که ګمان کوی چي بېشکه تاسي دالله دوستان ياست پرته له نوروخلکو ﴿ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴾ نوآرزووکړئ دمرګ که چېري ياست تاسي رښتوني (په دغه ادعاکي ترڅوچي ژرترژره دالله جنت ته چي دخپلو دوستانولپاره يې تيارکړی دی ورشی ابوالسعودليکي چي يهودانوبه ويل : ﴿ نَحْنُ أَبْنَاءُ اللَّهِ وَأَحِبَّاؤُهُ ﴾ اودوی به دغه دعوی هم کوله چي آخرت اوښېګڼي يې يوازي ددوی لپاره دي ويل به يې ﴿ وَقَالُوا لَن يَدْخُلَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَن كَانَ هُودًا ﴾ نوالله جل جلاله رسول الله ته حکم وکړچي د دوی ددروغودسپينولولپاره دي ورته ووايي : که تاسودغسي ګمان کوی نودمرګ آرزو وکړئ ترڅو چي دکړاو اوزحمت له نړۍ دسوکالي اورحمت مقام ته ولېږدی ځکه څوک چي دايقين کوي چي جنتي دی هغه داهيله لري چي له دغه تکليفونوځخه وزګارشي (۳) الله جل جلاله ددوی په رسوايي کي چي د دوی دروغ له ورايه ځرګندوي داسي فرمايي ﴿ وَلَا يَتَمَنَّوْنَهُ أَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ﴾ حال داچي وبه نکړي دوی آرزوددغه (مرګ) هيڅېري هم په سبب دهغو(ګناهونو)چي مخکي لېږلي دي لاسونود دوی (له کفره، معاصيواومحمدي تکذيب څخه. په يوحديث شريف کي راغلي رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي : زمادي په هغه ذات سوګندوي چي زماروح يې په يد(دقدرت) کي دی که چېري يې د مرګ آرزو کړي وای دځمکي په سربه يويهودي هم پاتي شوی نه وو چي مړشوی نه وای ، الوسي ليکي هيڅاددوی هم دمرګ آرزوونکړه ځکه دوی درسول الله په صدق اورښتنولي باور درلوداوپدې پوهېدل که چېري هم دمرګ آرزووکړي سمدستي به ومري اودغه هم دپيغمبرعليه السلام يوه معجزه وه په البقرة سورت کي ددغي آرزواوتمنانفی شوي ده چي ﴿ وَلَن يَتَمَنَّوْهُ ﴾ راغلي اودغه دمشهورقول په بناتفنن بولي (۴)﴿ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴾ (اوالله ښه عالم دی (په احوالودګردوظالمانو) يعني الله د دوی په ډول ډول ظلمونو اوګناهونوښه خبردار دی اوداچي ظاهرېي دضميرپرځای راوړی چي داسي يې نه دي فرمايلي چي (عليم بهم) دغه ددې لپاره چي ددوی بدي وښيي اوداچي ظلم پردوی

(۱) زه وايم پدې کي زموږ مسلمانانولپاره که دقرآن احکام تطبيق نکړو هم تعريض دی لکه چي ويل کېږي تاته وايم اګاوندی دي واوري(صابوني).

(۲) کبيرتفسير ۲۹/۵.

(۳) ابوالسعودتفسير ۵/۱۲۳

(۴) روح المعاني ۲۸/۹۲

باندي تسجيل اوثبت کړي (۱) ﴿ قُلْ إِنَّ ٱلْمَوْتَ ٱلَّذِى تَفِرُّونَ مِنْهُ ﴾ ووايه (اى محمده دغو يهودانو ته) بېشکه هغه مرګ چي تاسي ورڅخه تښتى له هغه نه (اوترې وېرېږى آرزويې نه کوى) ﴿ فَإِنَّهُۥ مُلَٰقِيكُمْ ﴾ پس بېشکه هغه مرګ تاسي ته رسېدونکى دى (خامخا، تېښته درته ګټه نه رسوي لکه چي الله بل ځاى فرمايي: ﴿ أَيْنَمَا تَكُونُوا۟ يُدْرِككُّمُ ٱلْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِى بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ ﴾ (النساء ۷۸) ځکه چي مرګ ليکلى مقدر دى اوله مقدر څخه حذر ګټه نلري ﴿ ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَٰلِمِ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ بيابه بوتلى شى تاسي په لوري د (هغه) ښه پوهېدونکي په پټواوښکاره ووباندي (چي هيڅ شى ورڅخه پټ اوالونيانه دى) ﴿ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ پس خبربه کړي تاسي په هغو (کارونو باندي) چي کول به تاسو (په دنيا کي) نوجزاء به ورباندي درکړي، په دې کي وعيد او تهديدى له دې په وروسته الله تعالى دجمعې حکمونه داسي بيانوي فرمايي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا نُودِىَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ ٱلْجُمُعَةِ ﴾ اى هغو کسانو چي ايمان يې راوړى دى (اى مؤمنانو) کله چي آذان وويلى شي دپاره دلمانځه په ورځي د جمعې ﴿ فَٱسْعَوْا۟ إِلَىٰ ذِكْرِ ٱللَّهِ وَذَرُوا۟ ٱلْبَيْعَ ﴾ نوځغلئ منډي وهئ طرف دذکر الله ته اوپرېږدئ بيع اوشراء (پلورل اوپېرودل) يعني له تاواني تجارت څخه ګټه ورتجارت اوسوداګري ته وځغلئ په التسهيل کي وايې چي په آيت کي سعى دتللوپه معناده نه دځغاستلو (۲) ځکه چي په حديث شريف کي راغلي: کله چي لمونځ ودرېږي نو تاسي ورته منډي مه راوهئ بلکه ورته رادرومئ په داسي حال کي چي سکينه اوآرام درسره وي (۳) حسن رحمه الله وايي قسم دى چي دغه سعى دپښوسعى نه بلکه دزړونو سعى نيت اوخشوع ده ځکه چي په حديث شريف کي لمانځه ته له منډي وهلوڅخه منع راغلي اودسکينې اووقارمارښينه شوي ده (۴) ﴿ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ دا (لمانځه ته تګ) بهتره برغوره دى تاسي ته که چېري يې تاسي چي پوهېږى (په اخروي نفع اونقصان خپل) يعني دغه دالله درضالپاره سعى اوخرڅول رانيول پرېښودل ستاسولپاره ګټور اوتردنيوي) تجارت اخروي بهتراوتلپاتي دى که تاسي دښتوني پوهي اوسليم عقل خاوندان ياست ﴿ فَإِذَا قُضِيَتِ ٱلصَّلَوٰةُ ﴾ نوهرکله چي لمونځ اداکړل شي (اوتاسوفارغ شى) ﴿ فَٱنتَشِرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ پس خواره شئ په ځمکه کي (اوخپل تجارتونه اومصالح پرمخ بوزئ) ﴿ وَٱبْتَغُوا۟ مِن فَضْلِ ٱللَّهِ ﴾ اوولټوئ تاسي له فضله دالله؛ ځکه چي رزق، روزي دالله په لاس کي ده هغه د فضل اواحسان خاوندى دعمل کونکواجرنه زيانوي اونه هم غوښتونکي محروموي ﴿ وَٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ كَثِيرًا ﴾ اوتاسو الله

---

(۱) ابوالسعود ۵/ ۱۶۳
(۲) التسهيل ۴/ ۱۱۹
(۳) په ټولو صحاحو کي راغلي.
(۴) قرطبي تفسير ۱۸/ ۱۰۳

د پرېیادوئ( په زړه اوژبه نه یوازي دلمانځه پروخت) ﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾ (ښايي چي ومومی تاسي ښېګڼي ،خلاصي اومراد ) یعني ترڅوددارینوښېګڼي موپه برخه شي، سعید بن جبیر رضی الله عنه وايي دالله یادونه دالله طاعت دی څوک چي دالله اطاعت کوي لکه چي الله یادوي او څوک چي دالله اطاعت نه کوي که څه هم ډېرذکراوتسبیحات وايي خوبیاهم ذاکرنه دی(¹) وروسته الله جل جلاله ددې بیان فرمايي

اسي چي یوه ډله دخلګو فاني دنیاتر باقي غوره کوي اوښه يې ګڼي نوفرمايي ﴿ وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انفَضُّوا إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ قَائِمًا ﴾ اوکله چي ووینې دوی تجارت سوداګري یاکومه لهوتماشانندار ه نو خورېږي دوی په لوري دهغې اوپرېږدی دوی تا ولاړ(خطبه ویونکی پرمنبر) دغه دځيني اصحابانورضوان الله علیهم لپاره عتاب دی کوم چي له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پداسي حال کي چي هغه دخطبې دایرادولو (لوستلو) لپاره ولاړ وو دوی څيني تیت اوپرک شول اومعنايې داچي که دوې دکوم ګټور تجارت خبرواوري اویاددنیوي تنداري اوزېنت تماشې خبري وي رسول الله پرېږدي اوهلته ورځي دلته ضمیرتجارت ته راجع دی ځکه چي هغه ترګردو زیات داهمیت وړمقصوددی. مفسرین کرام وايي: رسول الله صلی الله علیه وسلم د جمعې په ورځ په منبرولاړاوخطبه يې لوستله چي دشام له لوري د(دحية الکلبي ) په مشرتابه د خوراکي توکوقافله راورسېده اودمدینې منورې خلګ له کاختي اوګراني څخه سخت کړېدل ، ددوی دوداوعادت داسي وو چي کله به مدینې منورې ته قافله راورسېدله نوبه يې دخوښي څخه ډول واهو اوچیغي نارې به پورته کېدلې نوکله چي قافله راورسېده دمسجد خلګ ورته راووتل اورسول الله صلی الله علیه وسلم یې په منبرد پاسه ولاړپرېښنودیوازي دوولس تنه اصحابان ورسره پاتي شول جابربن عبدالله وايي چي یوهم زه وم (²) بیادغه آیت نازل شوابن کثیرلیکي چي :ښايي پدې وپوهېږي چي داپېښنه هغه وخت وه چي رسول الله به دجمعې لمونځ ترخطبې لوستلودمخه اداکاوولکه چي داخترونو لمونځ ترخطبې وړاندي اداکېږي اوددې روایت ابوداؤدهم کړی دی(³) ﴿ قُلْ مَا عِندَ اللَّهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ ﴾ (ووایه (ای محمده دوی ته!) هغه څه (ثواب) چي دالله په نزددی ډېرغوره بهتره دی له لهوي تماشې تنداري اوله تجارت سوداګري څخه) یعني دالله ثواب اونعمتونه ترډغونندارواو سوداګریوغوره دی﴿ وَاللَّهُ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴾ اوالله ډېربهترغوره له ګردو روزي ورکونکیو دی ،روزي له هغه څخه وغواړئ اله هغه څخه دخپلو مقاصدو دترسره کېدلو مرسته طلب کړئ!

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډیزيې په لاندي ډول دی.

(¹) په بیضاوي باندي دشیخ زاده حاشیه ٣/ ٤٩٢

(²) وګوره دنزول سبب.

(³) دابن کثیرمختصر ٣/ ٥٠٣

۱- تمثيلي تشبيه چي فرمايي ﴿ مَثَلُ ٱلَّذِينَ حُمِّلُوا۟ ٱلتَّوْرَىٰةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا كَمَثَلِ ٱلْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًۢا ﴾ دلته د شبه وجه له متعدد څخه اخيستل شوي يعني دوى له تورات څخه په ګټه نه اخيستلو کي داسي دي لکه هغه خرچي سترسترکتابونه وربانددي باروي خو هغه پرته له زحمته اوکړاوه بله ګټه ورڅخه نشي اخيستلاى.

۲- د سلبي طباق صنعت چي پدې آيت کي دى ﴿ فَتَمَنَّوُا۟ ٱلْمَوْتَ وَلَا يَتَمَنَّوْنَهُۥٓ أَبَدًۢا ﴾.

۳- د طباق بله بڼه چي د ﴿ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ ترمينځ شتون لري او دغه له بديعي محسناتو څخه شميرل کيږي.

۴- تفنن چي هغه خورامهم ړومبى راوړل شي لکه دالله تعالى په دې وينا کي چي ﴿ وَإِذَا رَأَوْا۟ تِجَٰرَةً أَوْ لَهْوًا ﴾ څکه چي اساسي مقصود تجارت دى نوبيې ړومبى راووړيبيادالله پدې کلام کي چي ﴿ قُلْ مَا عِندَ ٱللَّهِ خَيْرٌ مِّنَ ٱللَّهْوِ وَمِنَ ٱلتِّجَٰرَةِ ﴾ لهوبې په تجارت دمخه ياده کړه څکه چي دهغې تاوان خورا زيات دى چي پکي له سره ګټه نشته نوپه دواړو ځايونو کي بيې هغه خورامهم ړومبى يادکړى دى.

۵- مرسل مجازچي فرمايي ﴿ وَذَرُوا۟ ٱلْبَيْعَ ﴾ بيع بيې ياده کړه اومقصودورڅخه دبيع، شراء، اجاره اونورګرد معاملات دي ذکرد جزء مراد ترې کل دى.

تنبيه:

دغه ورځ دجمعې ورځ څکه ونومول شوه چي مسلمانان دلمانځه لپاره پکي راټولېږي اوځاى کيږي تو لېږي دغه به دجاهليت په وخت کي (يوم العروبة) بلل کېده چي معنايې رحمت دى اوړومبى څوک چي دغه ورځ يې جمعه ونوموله هغه (کعب بن لؤى) وواوړومبى تن چي مسلمانانوته يې دجمعې د لمانځه امامت وکړ هغه (أسعد بن زرارة) وو دوه رکعته لمونځ يې ورکړ اونصيحت يې ورواوراوو همدغه په اسلام کي لومړنى جمعه وه[۱].

فائده: (عراک بن مالک) چي به کله دجمعې لمونځ اداکړنوبه دمسجدپه دروازه کي ودرېدواوويل به يې: (اى الله ماستابلني ته لبيک وواويستا، فريضه مي اداکړه اوخورېږم لکه چي تاراته حکم کړى نو ماته روزي راکړې له خپله فضله څخه ته خوراغوره روزي ورکونکى يې[۲]).

لطيفه: دالله جل جلاله پدې وينا سره تعبيرفرمايل چي: ﴿ فَٱسْعَوْا۟ إِلَىٰ ذِكْرِ ٱللَّهِ ﴾ پدې کي لطيفه نغښتي ده اوهغه داچي له مسلمان سره ښايي په عزيمت اوقصد، نشاط اوهمت سره راپاځي له دې امله چي د سعى کلمه زيار اوعزم افاده کوي څکه حسن بصري رحمه الله وايي قسم دى که د سعى معنادپښو منډه اوځغستاوي بلکه سعى په نيت اوزړونو سره ده.

دالله په مرسته دالجمعة سورت دتفسيرژباړه بشپړه شوه.

---

(۱) روح المعاني ۲۸/ ۱۰۰

(۲) دقرطبي تفسير

## دالمنافقون سورت مدني دی او يوولس آيتونه لري:

دسورت په وړاندي:

دالمنافقون سورت مدني دی او لکه نورمدني سورتونه تشريعات او احکام څېړي او داسلام عملي زاويې ته کتنه کوي کومه چي تشريعي قضاياوي يې جوړښت دی.

هغه محورچي دغه مبارک سورت ورباندي راڅرخېږي هغه دنفاق او منافقينو بيان دی چي ښه په تفصيل سره يې يادوي څکه نودغه سورت هم پدغه رسواکونکي نامه (المنافقون) ونومول شو څکه چي له نفاق څخه پرده پورته کوي.

دسورت په پيل کي دمنافقينو خويونه او بدافعال او صفتونه بيانېږي چي ترګردوڅرګندېږي درواغ ويل او دظاهر او باطن مخالفت دی دوی په ژبه هغه څه وايې کوم چي په زړونو کي ورباندي باورنلري بل داچي دوی تل درسول الله ﷺ او مسلمانانو لپاره دسيسې جوړوي نو سورت ددوی له دغو ناوړو عملونو او جرمونو څخه پلو پورته کوي، دوی خوپه ظاهري بڼه ځان مسلمانان ښيي او په دغه بڼه داسلام دبلني او دالهي دين دلاري داسي مخنيوی کوي چي بربنډ کافرېې هغسي نشي کولای څکه نوددوی خطر او ضرر خوراستر او ببردی ﴿ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ فِى ٱلدَّرْكِ ٱلْأَسْفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا ﴾.

همداسي سورت ددوی له هغو بدو خبرو او اند ېښنو څخه بيان کوي کومي چي دوی به درسول الله ﷺ په هکله کولې او داسي باورېې درلودچي دغه دعوت به ژرترژره له مينځه ځي او دوی کله چي د(بني المصطلق) له غزا راستانه شي نو به رسول الله ﷺ او مؤمنان له مديني منورې څخه وشړي او دغسي نوري خوشي خبري اوچتي اپلتي ويناوي.

دسورت پای په دې شوی چي مؤمنان له دې څخه وېروي چي ددنيا په ظاهري ښکلا او زرق او برق وغولېږي او دالله له طاعت څخه يې لکه منافقين راوګرزوي او داسي بيان فرمايې چي همدغه دخسران او تاوان زېږنده ده لکه چي مؤمنانو ته دالله په لاره کي دخپل مال دلګولو حکم کوي ترڅو دمرګ له راتلو دمخه دالله درضا او خوښي لپاره في سبيل الله انفاق وکړي څکه دمرګ دراتګ په وخت کي بيا انسان ته ندامت او حسرت ګټه نه رسوي.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُنَٰفِقُونَ قَالُوا۟ نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُۥ وَٱللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ
لَكَٰذِبُونَ ﴿١﴾ ٱتَّخَذُوٓا۟ أَيْمَٰنَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوا۟ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ إِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٢﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ ثُمَّ
كَفَرُوا۟ فَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُونَ ﴿٣﴾ ۞ وَإِذَا رَأَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ أَجْسَامُهُمْ ۖ وَإِن يَقُولُوا۟ تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ ۖ كَأَنَّهُمْ
خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ۖ يَحْسَبُونَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ ۚ هُمُ ٱلْعَدُوُّ فَٱحْذَرْهُمْ ۚ قَٰتَلَهُمُ ٱللَّهُ ۖ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴿٤﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا۟ يَسْتَغْفِرْ
لَكُمْ رَسُولُ ٱللَّهِ لَوَّوْا۟ رُءُوسَهُمْ وَرَأَيْتَهُمْ يَصُدُّونَ وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ ﴿٥﴾ سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ
لَهُمْ لَن يَغْفِرَ ٱللَّهُ لَهُمْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْفَٰسِقِينَ ﴿٦﴾ هُمُ ٱلَّذِينَ يَقُولُونَ لَا تُنفِقُوا۟ عَلَىٰ مَنْ عِندَ رَسُولِ

اللَّهِ حَتَّىٰ يَنفَضُّوا ۗ وَلِلَّهِ خَزَائِنُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَٰكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَفْقَهُونَ ﴿٧﴾ يَقُولُونَ لَئِن رَّجَعْنَا إِلَى
الْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ ۚ وَلِلَّهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَلَٰكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٨﴾
يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ عَن ذِكْرِ اللَّهِ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ
﴿٩﴾ وَأَنفِقُوا مِن مَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلَا أَخَّرْتَنِي إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُن
مِّنَ الصَّالِحِينَ ﴿١٠﴾ وَلَن يُؤَخِّرَ اللَّهُ نَفْسًا إِذَا جَاءَ أَجَلُهَا ۚ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١١﴾ ﴾ المنافقون: ۱ - ۱۱

**لغتونه:**

(جنة) ډال ساتونکی ، ژغورونکی په حديث شريف کي راغي چي روژه ډال دی يعني دالله له عذابه سرې ژغوري (طُبِع) مهرلګول شوی (يؤفکون) ګرزولی شي له حق څخه ګمراهي ته له افک څخه اخيستل شوی اوهغه ګرزولوته وايې (لووا) وېې پېچل (لوی رأسه) يعني سرېې وپېچل تاويي کړ (ينفضوا) خواره شي (تلهكم) مشغوله دي نکړي تاسي (لهو) هغه کاراووېناته وايې چي هيڅ ګټه پکي نه وي

**دنزول سبب:**

روايت کېږي چي رسول الله ﷺ دبني المصطلق غزاته ولاړهلته داوبويوکوهی وودخلګوګنه ګونه وربانديي زياته شوه يوتن (جهجاء بن سعيد ) دعمربن خطاب مزدور اوبل (سنان الجهني) د عبدالله بن سلول ملګری سره لاس اوګرېوان شول جهجاء سنان په چپلاخه وواهواوهغه په قهرشواو غږيې وکړ چي ای انصارو ! همداسي جهجاء غږ وکړچي ای مهاجرينو ! نوعبدالله بن سلول وويل دوی هغه څه چي موږ احساسول ترسره کړل قسم دی چي زموږ اوددې (مهاجرينو )مثال هغه دپخواني متل په شان دی چي ويلي يې دي سپی دي چاغ کړه وبه دي خوري زمادي قسم په الله وي که مدينې ته ستانه شونو عزتمن به هغه خوارکوتی له مدينې څخه وباسي عزتمن يې خپل ځان باله اوخوارکوتی يې رسول الله ﷺ اواصحابان بللو(العياذبالله) اوبيايې خپل تبرته ووېل : دغه مهاجرينوته تاسي مرستي او کومکونه درکول چي درسره مېشت شول که مودغه مرستي اوکومکونه ځني قطع کړل ستاسوله ښاره به وتښتي (زيدبن ارقم) دغه خبري واورېدې اورسول الله ﷺ ته يې ووېل: اودغه خبره عبدالله بن سلول ته ورسېدله نوهغه قسم وخوړچي دغسي يې ويلي نه دي اوزيد دروغ وايې نودغه مبارک سورت نازل شودالله تردې قوله پوري چي: ﴿ يَقُولُونَ لَئِن رَّجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ ﴾ .[1]

**تفسير:**

﴿ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴾ شروع کوم په نامه دالله چي ډېرزيات مهربان پوره رحم کونکی دی ﴿ إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ ﴾ کله چي راشي تاته (ای محمده ! )منافقان (لکه عبدالله بن سلول اوملګري يې) ﴿ قَالُوا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ اللَّهِ ﴾ نووايې دوی (په ژبوخپلوپرته له زړونوددوی په رياکاري

[1] التسهيل ۴/۱۳۲ وګوره بخاري !

اونفاق سره چي) شاهدي ورکوو موږ چي بېشکه ته خامخا دالله رسول یې، ابوالسعود لیکي چي: دوی خپله خبره په (ان او(لام) سره مؤکده (ټینګه) کړه چي ويې ویل (انک لرسول الله) ترڅو داسي وښیي چي دغه ددوی ګواهي دزړه له کومي صادره شوي ده اودوی په دې هکله زیات رغبت، خالص باور او خوراد لچسپي لري(۱) ﴿وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُۥ﴾ اوالله ته معلوم دی چي ته خامخا رسول دد غه الله یې (څکه چي دغه الله را استولی یې)، دغه جمله اعتراضیه ده ددې لپاره راوړل شوي ترڅو ددوی د تکذیب توهم دفع کړي کوم چي د رسول الله د رسالت د دعوې په هکله یې د رلود ترڅو اورېدونکي داسي ونه انګېري چي ددوی دغه خبره چي (انک لرسول الله) پخپل ځای دروغ دی، په التسهیل کي راوړي چي ﴿وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُۥ﴾ د منافقینو د کلام څخه نه دی بلکه دالله جل جلاله کلام دی او که دغه یې ذکر کړي نه وای نو به داسي توهم کېدو چي داوینا چي ﴿وَٱللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ لَكَٰذِبُونَ﴾ د رسالت بطلان دی نو یې د منافقانو د حکایت او ددوی د تکذیب ترمینځ راوړ ترڅو چي رسالت ثابت کړي او بیا الله فرمایي: ﴿وَٱللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ لَكَٰذِبُونَ﴾ اوالله شاهدي ورکوي چي بېشکه منافقان خامخا دروغجنان دي (په هغه شهادت کي چي دوی یې څرګندوي او په ژبو قسم اخلي څکه څوک چي په ژبه یوڅه وایې او په زړه کي یې بل څه وي هغه دروغجن دی او داچي د اضمار پر ځای اظهار راغلی چي ﴿إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ﴾ ترڅو ددوی بدي وښیي او دغه د نفاق ناولی صفت پر دوی تړلی او لیکلی بیان کړي لکه چي دغه کلام په (ان) او (لام) سره مؤکد هم راغلی چي زیات تقریر او بیان افاده کړي ﴿ٱتَّخَذُوٓاْ أَيْمَٰنَهُمْ جُنَّةً﴾ نیولي دي دوی قسمونه خپل ډالونه (چي له قتل څخه وربانديي ځان وژغوري. ضحاک وایې چي: دغه ددوی هغه قسم اولوړه ښیي چي دوی به ویل موږ مسلمانان یو ﴿فَصَدُّواْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ پس اړوي (دوی خلګ په دغو قسمونو سره) له لاري دالله څخه (چي جهاد او ایمان په محمد رسول الله دی، طبري وایې معنادا چي دوی له هغه دین څخه چي رسول الله ﷺ وربانديي رااستول شوی او هغه شریعت چي الله د خپل مخلوق لپاره رالېږلی ځنګ او اعراض وکړ(۲) ابن کثیر وایې چي: منافقینو خلګ په دروغجنو قسمونو باندي تېرایستلي وو او هغه څوک چي ددوی سره یې د برسرو کارنه وو پدې باور ووچي دغه مسلمانان دي خو په حقیقت کي منافقانو اسلام او مسلمانانو ته دزیان په رسولو کي زیار ایستل او پدې سبب مسلمانانو ته د برتاوان ورسېدو(۳) ﴿إِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُواْ يَعْمَلُونَ﴾ بېشکه دوی چي دي بد دی هغه عمل چي دوی یې کوي (څکه دوی اسلام څرګندوي او د نفاق او عصیان خاوندان دي دروغ وایې او قسمونه خوري خلګ دالله له لاري اړوي، صاوي وایې چي (ساء) لکه (بئس) غوندي د بدي اوذم په معنادی

(۱) ابوالسعود ۵ /۱۲۴

(۲) دطبري تفسیر ۲۸ /۶۹

(۳) دابن کثیر مختصر ۳ /۵۰۳

اوپدي کي دتعجب معناهم نغښتي ده چي داوربدونکولپاره ددوی دچاري اهميت څرګندوي (١) ﴿ ذَٰلِكَ
بِأَنَّهُمْ ءَامَنُوا۟ ثُمَّ كَفَرُوا۟ ﴾ دا بدي دعمل دمنافقانو په سبب ددې دی چي) بېشکه دوی ايمان راوړی دی (په
ژبه ) بيا کافران شوي دي (په زړه باندي په کفرټينګ ولاړدي، ابوالسعودليکي: يعني دوی
دمسلمانانو په وړاندي دشهادت کلمه لولي او بيا چي مجرمينو شيطانانو سره ملګري شي نو دکفر کله
لولي، دلته اشاره په (ذلک ) بعيد سره لپاره ددې دی چي د شرپه کارونو کي ددوی منزلت ډېرليري
اوبعيد دی (٢) ﴿ فَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ ﴾ بيا مهروهل شوی دی په زړونو ددوی (چي لاربنونکی اورڼاورته لاره
نه مومي) ﴿ فَهُمْ لَا يَفْقَهُونَ ﴾ پس دوی نه پوهېږي (په ښيګڼه او ايمان باندي او خيراو شرنه پېژني ځکه
چي په زړونو يې الله مهرلګولی دی ﴿ وَإِذَا رَأَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ أَجْسَامُهُمْ ﴾ (او کله چي ووينې ته دوی په
تعجب کي اچوي تا جوثې بڼې (ددوی ) يعني کله چي ته منافقين وينې ددوی هيئت او منظربه تا په تعجب
کوي چي دوی ښايسته قداو قامت او وجودونه لري ﴿ وَإِن يَقُولُوا۟ تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ ﴾ او که دوی خبري کوي ته
يې اوري غوږ ورته ايږدې (ځکه دوی دفصاحت خاوندان او غوړژبي دي. ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي:
دمنافقانو مشر ابن سلول غټ سړی، فصيح اللسانه او غوړژبی ووچي څه به يې وويل: رسول الله صلی الله عليه وسلم او
اصحابانو به اوريدل او منل يې دغه منافقان چي به مجلس ته راغلل خلک به ددوی ښايست او جوړښت
ته حيرانېدل (٣) الله فرمايي: ﴿ كَأَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ﴾ (حال دا چي په واقع کي ګواکي دوی وچ لرګي دي
دېوال ته درول شوي ) يعني دوی داسي بې علمه تش بې روحه کالبوت غونډي دي، اجسام لري خو
احلام يې نشته ابوحيان وايي: دوی يې ځکه له لرګيو سره مشابه کړل چي دوی فهم او فکر نلري او زړونه
يې له ايمانه تش او خالي دي دغه تشبيهي جمله ددوی بې زړه توب او ضعف ناتواني ښيي (٤) ځکه نو الله
فرمايي ﴿ يَحْسَبُونَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ ﴾ (ګڼي دوی هرغږ (چي بلا راغله) پر دوی باندي ) يعني دوی له ډېره
بې زړه توبه هرغږ داسي ګڼي چي مقصد يې دوی دي دوی تل په وېره او ډار کي اوسي چي هسي نه ددوی
پرده الله څيري او دوی وشرموي اسرار يې خلکو ته څرګند کړي ابن کثير وايي: معنا دا چي هر وخت کومه
تکه وېره او عذاب و اوري دوی له خپله بې زړه توبه داسي انګېري چي همدغه پر دوی راپرېوزي (٥)
مقاتل وايي: که يو څوک دخپلي ورکي دپيدا کولو غږ کوي او يا کومه بله چيغه وشي ددوی عقلونه
والوزي او داسي ګمان کوي چي هم دوی يې مقصد دي (٦) ﴿ هُمُ ٱلْعَدُوُّ فَٱحْذَرْهُمْ ﴾ (همدوی دي دښمنان
(دمؤمنانو ) نو ځان وساته له دوی نه ) يعني دوی ستا او دمسلمانانو دښمنان دي ددوی په ظاهري

(١) دصاوي حاشيه ٤ /٢٠٨
(٢) دابوالسعود تفسير ٥ /١٢٥
(٣) دصاوي حاشيه ٤ /٢٠٨
(٤) مختصر ابن کثير ٣ /٥٠٤
(٥) مختصر ابن کثير ٣ /٥٠٥
(٦) الوسي تفسير ٢٨ /١١٧

اسلام څرګند ولومه تېروزه او دوی ته رازونه مه وایه ځکه دوی ستاد دښمنانو لپاره جاسوسان دي ﴿قَٰتَلَهُمُ ٱللَّهُ﴾ الله دي دوی هلاک کاندي دغه دعائيه جمله ده يعني الله دي رسوا کړي لعنت دي ورباندي وکړي اوله رحمته دي وشړي ﴿أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ﴾ څرنګه ګرزول شوي دي (له سمي صافي لارې نه ؟) يعني دوی څرنګه ګمراه کېږي په دې کي ددوی له جهل او ضلالت څخه تعجب دی چي څه ډول سره له دليل اوبرهان راتلو بياهم له ايمان څخه مخ اړوي، امام احمد له ابي هريرة ﷺ څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چي دمنافقينو پېژند ګلوي دا نښې دي چي سلام يې لعنت، او خوراک يې نهبت، غنيمت يې خيانت، مسجدونو ته نه راځي مګر د بد ګوئي لپاره لمنځونو ته نه راځي مګر وروسته راځي، تکبر کونکي دي نه دوی له چاسره الفت کوي اونه نور خلک له دوی سره، د شپې وچ لرګي اودورځي د شورماشور خلک دي(١) ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا۟ يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُولُ ٱللَّهِ﴾ اوکله چي وويل شي دوی ته راشئ (په عذرغوښتلو سره) چي ښښنه وغواړي تاسي ته دالله استازی محمد رسول الله ﴿لَوَّوْا۟ رُءُوسَهُمْ﴾ تاوکړي دوی سرونه خپل (مخ تړې واړوي په استهزاء او تکبر سره) ﴿وَرَأَيْتَهُمْ يَصُدُّونَ وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ﴾ اووينې ته چي ځنګ کوي(له هغه څه چي ورته بلل شوي دي ) حال داچي وي دوی لويې کونکي (له استغفاردرسول الله ﷺ نه ددوی لپاره دلته يې د مضارع په صيغه باندي يادونه کړي ترڅو ددوی داعراض اوعناد په استمرار دلالت وکړي (٢) مفسرين کرام ليکي: کله چي دغه آيتونه نازل شول اومنافقان يې رسوا کړل له ځېرويې پردې پورته شولې اورازونه يې بربنډ شول نو ددوی مؤمنان خپلوان ورته راغونډ شول اوورته ويل يې: افسوس ستاسي په حال تاسو په نفاق خپل ځانونه هلاک کړل راشئ رسول الله ته توبه وباسئ اوترې وغواړئ چي ستاسو لپاره له الله جل جلاله څخه ښښنه وغواړي نو دوی ونه منل او دملنډو او استهزاء په توګه يې سرونه وخوځول بيا دغه آيت نازل شو بيا ابن سلول ته راغلل هغه ته يې وويل: درځه رسول الله ﷺ ته ولاړ شه اپخپله ګناه اعتراف وکړه هغه به درته له الله څخه ښښنه وغواړي هغه دانکار په توګه سرو خوځاوو او دوی ته يې وويل: يوځل موراته ويل چي ايمان راوړه ما ايمان راوړ بيامو ويل چي: زکات ورکړه د خپل مال زکات مي ورکړ تاسو ته بل څه پاتي نه دي مګر داچي راته حکم وکړئ چي محمد ته سجده وکړم!! وروسته الله تعالى داستغفار نه ګټې رسول په هکله بيان فرمايي چي دوی تل ترتله په نفاق کي دي نو وايي ﴿سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ﴾ (برابره خبره ده پردوی باندي چي ښښنه غواړې ته (ای محمده!) دوی ته اوکه ښښنه نه غواړې ته (ای محمده!) دوی ته) يعني دوی ته استغفار اونه استغفار دواړه يو شی دي ځکه دوی فاسقان دالله له طاعته وتلي دي صاوي ليکي په آيت شريف کي ددوی له ايمان نه راوړلو څخه ناهيلي ده يعني ای محمده ستا استغفار اونه استغفار دواړه برابر دي دوی ايمان نه راوړي ازلي بد مرغه او شقيان

(١) أخرجه امام احمد کذافي ابن کثير ٣/ ٥٠٤
(٢) دالبحر المحيط تفسير ٨/ ٢٧٣

دي(١) ﴿ لَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ﴾ له سره به ببښنه نه کوي الله دوی ته (ځکه چي په کفرکي پاخه دي اوتل ترتله په عصيان کي اوسي بيا يې علت داسي بيانوي چي ﴿ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفَٰسِقِينَ ﴾ بېشکه الله نه ښيي سمه صافه لاره قوم فاسقانو نافرمانو ته، وروسته الله ددوی دزياتو قبائحو اوجرائمو بيان داسي فرمايي ﴿ هُمُ الَّذِينَ يَقُولُونَ لَا تُنفِقُوا عَلَىٰ مَنْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ حَتَّىٰ يَنفَضُّوا ﴾ دوی هغه کسان دي چي وايي (خپلو ملګروته) مه ورکوئ نفقه هغه چاته چي په نزد درسول الله دي (له مهاجرينو څخه) ترڅو چي متفرق خواره واره شي دوی (ترې) په البحر المحيط کي راوړي چي پدې کي ابن سلول اوده دتېرپلويانو ته يې اشاره ده چي دوی دومره ناپوهان دي فکرکوي چي دمهاجرينو روزي ددوی په لاس کي ده اوپدې نه پوهېږي چي روزي رسان يوازي الله تعالی دی اوداچي وايي ﴿ عَلَىٰ مَنْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ ﴾ دغه داستهزاء اوملنډو په توګه وايي ځکه که چېري په رښتوني دوی دغه اقرارکولای اورسالت يې منلای نوبيا به يې دغسي خبري نه کولې ظاهره خوداسي برېښي چي دوی به دغسي لفظ نه وي ويلی خوالله ﷻ دخپل پيغمبر د اجلال اواکرام لپاره پدې لفظ باندي تعبيرفرمايلی دی (٢) ﴿ وَلِلَّهِ خَزَآئِنُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ﴾ (او خاص الله لره دي خزانې دآسمانونو اودځمکي) يعني دالله په لاس کي دروزي خزانې دي چاته چي يې اراده شي ورکوي يې اوله چاڅخه يې منع کوي هيڅوک نشي کولای چي دالله له بندګانو څخه دالله فضل منع کړي ﴿ وَلَٰكِنَّ الْمُنَٰفِقِينَ لَا يَفْقَهُونَ ﴾ وليکن منافقان نه پوهېږي (په حکمت اوتدبير دالله اورازقيت د هغه ځکه نودغه دکفر او ضلالت ويناوي کوي وروسته الله ددوی ځيني قبائح اوناولي خبري شمېري نوفرمايي ﴿ يَقُولُونَ لَئِن رَّجَعْنَآ إِلَى الْمَدِينَةِ ﴾ وايي منافقان که چېرته بيرته وګرځو موږ طرف دمديني ته (له دغي غزادبني المصطلق څخه) ﴿ لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ ﴾ (نوخامخا به وباسي هرومرو ډېر عزتمن له دغي مديني ډېرخوار کمزوري خلک) يعني موږ به خامخامحمد او ملګري يې وشړو ددې ويناکونکی ابن سلول وو ډېرعزتمن يې ځان اوملګري بلل او ډېرخوار يې محمد ﷺ اودهغه اصحابان ﷺ بلل (٣) مفسرين کرام ليکي: کله چي ابن سلول دغه ويناوکړه اومديني ته راستون شو نوزوی يې عبدالله رضی الله عنه دمديني منورې په دروازه کي له تېکی ايستلي توره ودرېدو او خلک وربانديٰ تېرېدل کله چي پلار يې راغی زوی يې ورته وويل: ودرېږه ! قسم په الله دی که مديني ته ترهغو داخل شې څو چي ونه وايې چي: رسول الله ډېرعزتمن دی اوزه ډېرخوار کمزوری يم نوهغه همداسي وويل اوبيا نوموړی صحابي رسول الله ﷺ ته راغی اوورته ويل يې ماته داسي خبررسېدلی چي ته غواړې زما پلار ووژنې که هم داسي وي نوماته حکم وکړه چي زه يې ککری درته راوړم !! نورسول الله ﷺ ورته وويل: بلکه موږ ورسره ترڅو چي له موږ سره وي نرمي کووا وله هغه سره

(١) دصاوي حاشيه پرجلالين باندي ٤/٢٩

(٢) البحرالمحيط ٨/٢٧٤

(٣) دنزول سبب وګوره !.

ښه چلند کوو (¹) ﴿ وَلِلَّهِ ٱلْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِۦ وَلِلْمُؤْمِنِينَ ﴾ (او خاص الله لره دي عزت غلبه او رسول د دغه (الله) لره او مؤمنانو لره دي) يعني غلبه او عزت خاص الله لره دي او هغه چا ته چي دغه الله عزت ورکړی له پيغمبره او له مؤمنانو څخه نه بل چا ته دغه صيغه د حصر افاده کوي قرطبي ليکي دوی داسي خيال کاوو چي عزت د مال او اتباعو په ډېروالي کي دی نو الله جل جلاله د دوي بيان و فرمايو چي عزت غلبه يوازي الله، پيغمبر او مؤمنانو لره دی (²) ﴿ وَلَٰكِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ وليکن منافقان نه پوهېږي (پر دې چي عزت او غلبه د الله د دوستانو ده نه د دښمنانو يې) ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَٰلُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُمْ عَن ذِكْرِ ٱللَّهِ ﴾ (ای هغو کسانو چي ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو) غافل مشغول دي نکړي تاسي مالونه ستاسي او نه اولادونه ستاسي له ذکره ياده د الله څخه) يعني تاسي دي د الله له طاعته او عبادته څخه هغه طاعت او عبادت چي الله پاک پر تاسو باندي له لمانځه، زکات او حج څخه فرض کړی دی غافل نکړي لکه چي منافقان ورڅخه غافل شوي داسي مه کېږئ. ابو حيان وايي: معنا دا چي ستاسي مالونه دي په وده ورکولو او راټولولو باندي او يا اولادونه مو په هغوی د خوښي او خوشحالي او د هغو په چارو کي د فکر کولو په موخه د الله له ذکر، ياد څخه غافل نکړي او دغه عام دی لمانځه، تسبيح، تحميد او گردو طاعاتو ته ور شامل دی (³) ﴿ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴾ او هغه څوک چي دا کار وکړي نو همدغه کسان هم دوي دي زيان کاران (چي تر باقي يې فاني دنيا غوره کړه) ﴿ وَأَنفِقُوا۟ مِن مَّا رَزَقْنَٰكُم ﴾ او ولگوئ تاسي له هغو مالونو چي درکړي مو دي تاسو ته (په رضا د الله تعالی کي) ﴿ مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِىَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ ﴾ پخوا له هغه چي راشي يو ستاسي ته مرگ (او اسباب يې يعني ځنکندن يې را ورسېږي) ﴿ فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلَآ أَخَّرْتَنِىٓ إِلَىٰٓ أَجَلٍ قَرِيبٍ ﴾ نو وبه وايي ای زما ربه ولي دي وروسته نکړم اله (يعني څه وبه وشي که مي مرگ تأخير کړې تر اجل نېږدې نژدې پوري)! ﴿ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُن مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ چي زه صدقه وکړم او شم له نيکانو صالحانو څخه (پرهېزگار شم او نيک عملونه ترسره کړم خو افسوس دغه وخت د چاري نه وي (⁴) ﴿ وَلَن يُؤَخِّرَ ٱللَّهُ نَفْسًا إِذَا جَآءَ أَجَلُهَا ۚ ﴾ (او له سره به نه وروستی کوي الله هېڅ نفس لره (مرگ) کله چي نېټه يې راشي) يعني الله هيچا ته مهلت نه ورکوي کله چي يې نېټه را ورسېږي او هيڅکله د چا عمر نه اوږدوي، پدې کي ژر تر ژره د ښو عملونو په ترسره کولو هڅونه شته هسي نه چي مرگ يې راورسېږي او وده د الله د لقاء (پيوستون) لپاره څه زېرمه نه وي برابره کړي او چمتو نه وي ﴿ وَٱللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴾ او الله ښه خبردار دی په هغه څه (د خير او شر) چي کوی يې تاسي، نو جزا به پرې درکړي

(¹) سيرت ابن اسحاق وگوره هلته په تفصيل سره دا کيسه راغلي ده.
(²) مختصر ابن کثير ۳/ ۵۰۲
(³) البحر المحيط ۸/ ۲۷۴
(⁴) مختصر ابن کثير ۳/ ۵۰۲

بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې دبدیع اوبیان کومې ښکلاوې شته لنډیزېې دادی:

۱- تاکید دقسم په (ان) او(لام) سره لکه چې فرمايي: ﴿ وَٱللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ لَكَٰذِبُونَ ﴾ او دادې لپاره چې زيات بيان اوتقرير افاده کړي

۲- اعتراضيه جمله چې فرمايي ﴿ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُۥ ﴾ دغه جمله دشرط اوځواب ترمينځ معترضه راغلې چې ددې څرګندونه وکړي چې ددوی وينا دعقيدې اوباورله مخې نه ده اصل خو دا وو چې ﴿ إِذَا جَآءَكَ ٱلْمُنَٰفِقُونَ قَالُوا۟ نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ ٱللَّهِ ... وَٱللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ لَكَٰذِبُونَ ﴾ خو نوموړې جمله ددوی دواړو ترمينځ اعتراضيه راغلې ده.

۳- استعاره پدې کلام کې چې فرمايي ﴿ ٱتَّخَذُوٓا۟ أَيْمَٰنَهُمْ جُنَّةً ﴾ اصلاخو(جنة) هغه څيزته وايې چې سړی ورباندې ځان ژغوري لکه ډال اوبيا دلته استعاره شوچې دوی د اسلام څرګندول پدې کوي چې خپلې وينې اومالونه ورباندې وژغوري.

۴- دطباق صنعت چې کله فرمايي ﴿ ءَامَنُوا۟ ثُمَّ كَفَرُوا۟ ﴾ اوبيا ﴿ ٱلْأَعَزُّ مِنْهَا ٱلْأَذَلَّ ﴾ اودغه د بديعي محسناتو څخه ګڼل کيږي.

۵- مرسله مجمله تشبيه پدې کلام کې ﴿ وَإِن يَقُولُوا۟ تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ كَأَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ﴾ اودغه له خورا ښايسته تشبيهاتو څخه ده.

۶- سلبي طباق دالله جل جلاله پدې وينا کې ﴿ سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ ﴾.

۷- دعائيه جمله چې کله فرمايي ﴿ قَٰتَلَهُمُ ٱللَّهُ ﴾ اودغه دوی ته دلعنت، هلاکت اورسوائي ښېرا ده.

۸- دفواصلو موافقت دآيتونو دپيل يووالی چې په قرآن کريم کې زيات شته اود کلام رونق زياتوي

تنبيه:

په مکه مکرمه کې نفاق نه بلکه يوازې کفروخوکله چې الله اسلام ته برې ورکړاو پيروان يې زيات شول نوپه مدينه منوره کې نفاق څرګند شواومنافقينو دسراومال دساتلو لپاره د اسلام څرګندونه کوله شاعروايې: وما انتسبوا الى الاسلام الا* لصون دمائهم ان لاتسالا. دوی يوازې ددې لپاره اسلام څرګنداوو چې وينې يې له تويېدو څخه وژغورلې شي.

فائده:

عزت له کبرڅخه بېل دی مسلمان ته په کار نه دی چې خپل ځان ذليل کړي عزت دانسان دخپل ځان پېژندګلوی دی اوکبر دانسان دخپل حقيقت په باب جهل اوناپوهي ده، يوځل حسن بن علي رضي الله عنهما ته وويل چې خلک ګمان کوي ته کبرجن يې هغه ورته وويل دغه کبرنه بلکه دمسلمان عزت دی اوبيايې دغه آيت تلاوت کړچې ﴿ وَلِلَّهِ ٱلْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِۦ وَلِلْمُؤْمِنِينَ ﴾.

لطیفه:

له ابن عباس ﷺ څخه روایت شوی چي ویل یې دچاچي مال وي او حج ته یې رسولای شي مګرحج ونکړي او یایې په مال کي زکات وي خو ادایې نکړي دځنکندن په وخت کي به دنیاته دبیرته تللو خواست کوي یوسړي ورته وویل ای ابن عباسه له الله ووېرېږه داخو کافران غواړي چي بیرته دنیاته ستانه شي اونیک عملونه وکړي!! ابن عباس ورته ویل: زه به آیت شریف درته تلاوت کړم اوبیایې دغه آیت ولوست ﴿ وَأَنفِقُواْ مِن مَّا رَزَقْنَٰكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلَآ أَخَّرْتَنِيٓ إِلَىٰٓ أَجَلٍ قَرِيبٍ ﴾ دآیت ترپایه

دالله په مرسته دالمنافقون سورت دتفسیرژباړه بشپړه شوه.

***

## دالتغابن سورت مدني او اتلس آیتونه لري:

### دسورت په وړاندي:

تغابن مدني سورت دی تشریع څېړي خوبنه یې لکه دمکي سورتونوغوندي ده چي دعقیدې بنسټونه ټینګوي.

سورت دالله دجلال ، عظمت اوقدرت نښي نښاني بیانوي اوبیا دانسان موضوع رااخلي چي څوک یې پخپل رب اعتراف کوي او ځیني ورڅخه منکران کافران دي.

دتېرو امتونو مثالونه راوړي هغوی چي خپل پیغمبران یې دروغجن ګڼل او عذابونه ورباندي راپرېوتل اودغه ددوی دخپل کفراو طغیان پائله اونتیجه وه.

سورت لوړه اخلي قسم کوي چي بیرته راپاڅېدل حق دي که مشرکان یې مني او که تري انکار کوي؟

بیا دالله اورسول الله دطاعت مارېینه کوي او دالله له بلني څخه دغاړي غړولو څخه مسلمانان وېروي

لکه چي دځینو مېرمنو ، اولادونو له دښمني څخه هم وېرونه کوي څکه دېرځله دوی خلګ له جهاد اوهجرت څخه راګرزوي اومنع کوي یې.

دسورت پای دالله په لاره کي داعلاء کلمة الله لپاره دخپل مال لګولو حکم کوي اوله بخل او کنجوسي څخه خلګ منع کوي څکه چي دمؤمن له ستایلي صفتونو څخه یو دادی چي دالله په لاره کي دي خپل مال ولګوي او دالله رضادی ترلاسه کړي دغه هم دفي سبیل الله جهاد یوه څانګه ده.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ لَهُ ٱلْمُلْكُ وَلَهُ ٱلْحَمْدُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١﴾ هُوَ ٱلَّذِي خَلَقَكُمْ فَمِنكُمْ
كَافِرٌ وَمِنكُم مُّؤْمِنٌ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢﴾ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ بِٱلْحَقِّ وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ وَإِلَيْهِ
ٱلْمَصِيرُ ﴿٣﴾ يَعْلَمُ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴿٤﴾ أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا۟ ٱلَّذِينَ
كَفَرُوا۟ مِن قَبْلُ فَذَاقُوا۟ وَبَالَ أَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٥﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُۥ كَانَت تَّأْتِيهِمْ رُسُلُهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ فَقَالُوٓا۟ أَبَشَرٌ يَهْدُونَنَا فَكَفَرُوا۟
وَتَوَلَّوا۟ وَّٱسْتَغْنَى ٱللَّهُ وَٱللَّهُ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿٦﴾ زَعَمَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَن لَّن يُبْعَثُوا۟ قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ وَذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ
يَسِيرٌ ﴿٧﴾ فَـَٔامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَٱلنُّورِ ٱلَّذِيٓ أَنزَلْنَا وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٨﴾ يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ ٱلْجَمْعِ ذَٰلِكَ يَوْمُ ٱلتَّغَابُنِ
وَمَن يُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ وَيَعْمَلْ صَٰلِحًا يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّـَٔاتِهِۦ وَيُدْخِلْهُ جَنَّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا
ذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴿٩﴾ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَآ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ خَٰلِدِينَ فِيهَا وَبِئْسَ
ٱلْمَصِيرُ ﴿١٠﴾ مَآ أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ وَمَن يُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ يَهْدِ قَلْبَهُۥ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١١﴾ وَأَطِيعُوا۟
ٱللَّهَ وَأَطِيعُوا۟ ٱلرَّسُولَ فَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَإِنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا ٱلْبَلَٰغُ ٱلْمُبِينُ ﴿١٢﴾ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ وَعَلَى ٱللَّهِ
فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُؤْمِنُونَ ﴿١٣﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِنَّ مِنْ أَزْوَٰجِكُمْ وَأَوْلَٰدِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَٱحْذَرُوهُمْ
وَإِن تَعْفُوا۟ وَتَصْفَحُوا۟ وَتَغْفِرُوا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٤﴾ إِنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَٰدُكُمْ فِتْنَةٌ وَٱللَّهُ عِندَهُۥٓ أَجْرٌ
عَظِيمٌ ﴿١٥﴾ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ مَا ٱسْتَطَعْتُمْ وَٱسْمَعُوا۟ وَأَطِيعُوا۟ وَأَنفِقُوا۟ خَيْرًا لِّأَنفُسِكُمْ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِۦ فَأُو۟لَٰٓئِكَ
هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿١٦﴾ إِن تُقْرِضُوا۟ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَٰعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ وَٱللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٧﴾ عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ
وَٱلشَّهَٰدَةِ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴿١٨﴾﴾ التغابن: ١ ـ ١٨

## لغتونه:

(صوركم) صورتونه يې ترلي ستاسي, تصوير هغه انځوراو تشكيل ته وايې چي يو صورت او هيئت له بل څخه بېلوي او توپير كوي (نبا) مهمي خبري ته وايي (وبال) عذاب (زعم) گمان او عرب داسي متل كوي چي (زعموا مطية الكذب) گمان يې كړی وو د دروا غو پيلامه ده شريح وايې چي هرشی يو كنيه لري او د درواغو كنيه نوم (گمان مي كړی وو ) (زعموا) دی (التغابن) غبن ته وايې او معنا يې نقص او تاوان دی ويل كېږي چي (غبنه غبنًا ) كله چي بې له خپلي بيي يو شی رانيسي د قيامت ورځ د تغابن ورځ بولي ځكه هغه ورځ د كافر تاوان چي ايمان يې نه وي راوړي څرگند ېږي او همدا رنگه د مؤمن تاوان چي په احسان كي يې تقصير كړی ښكاره كېږي

د نزول سبب:

روایت کېږي چي دمکې څو کسانو ایمان راووړ او غوښتل یې چي مدینې منورې ته د علیه السلام ملګرتیا ته هجرت وکړي مګر مېرمنو اولادونو یې هغوی منع کړل او ورته ویل یې موږ ستاسو اسلام راوړل وزغمل خو ستاسو په فراق (بېلتون) زغم نلرو! نو هغوی هم د دوی خبره ومنله او له هجرت څخه پاتي شول چي الله جل جلاله دا آیت نازل کړ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّ مِنۡ أَزۡوَٰجِكُمۡ وَأَوۡلَٰدِكُمۡ عَدُوّٗا لَّكُمۡ فَٱحۡذَرُوهُمۡۚ ﴾ دا آیت تر پایه (١).

تفسیر:﴿ يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۖ ﴾ (الله ته نسبت د پاکي کوي هرهغه څه چي په آسمانونو کي دي او هرهغه څه چي په ځمکي کي دي) یعني ګرد هغه مخلوقات چي په آسمانونو کي دي او که په ځمکه کي تل ترتله د الله تمجید او تنزیه کوي د مضارع صیغه یې د استمرار او تجدد د افادې لپاره راوړې ﴿ لَهُ ٱلۡمُلۡكُ وَلَهُ ٱلۡحَمۡدُۖ ﴾ (هم دغه (الله) لره دي پاچهي (د ټول جهان) او هم دغه الله لره دي ټوله ثنا ستاینه) یعني الله جل وعلا لره بشپړه پاچهي او پخپل مخلوق کي کامل تصرف دی او هم دغه الله یوازي د ثنا صفت وړدی ځکه چي ګرد نعمتونه همده ورکړي دي جار او مجرور یې د دې لپاره ړومبی راوړي چي حصر افاده کړي ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٌ ﴾ او هم دغه (الله) په هر څېز باندي چي اراده یې و فرمایې ښه قادر دی، څوک بډای او څوک فقیر کړي چا ته عزت ورکړي او څوک ذلیل کړي کله چي دیو کار ترسره کېدل وغواړي نو ورته وایي (کن !، فیکون) یعني :(موجود شه !هغه موجود شی) دغه د پخواني لپاره یو دلیل دی چي پاچهي او ستاینه خاص الله لره دي ﴿ هُوَ ٱلَّذِي خَلَقَكُمۡ فَمِنكُمۡ كَافِرٞ وَمِنكُم مُّؤۡمِنٞۚ ﴾ هم دغه (الله) هغه ذات دی چي پیدا کړي یې ئی تاسي ځیني له تاسي کافر دي ځیني له تاسي مؤمن دی، دغه د الله د قدرت د ځیني آثارو او نښانو تفصیل دی چي ای خلګو الله هغه ذات دی چي تاسو یې په دغه محکم او بدیع شکل پنځولي یاست نو په هر یو ستاسو دا لازم دي چي ورباندي ایمان راوړئ خو ځیني ستاسي ایمان نه راوړي او ځیني یې په خالقیت پېژني او ورباندي ایمان راوړي. طبري لیکي معنا داچي ځیني له تاسو په خپل خالق باندي هغه ذات چي دوی یې پیدا کړي کافران دي او ځیني له تاسي هغه مني او پدي باور لري چي الله د دوی خالق دی نو ایمان ورباندي راوړي (٢) دلته یې کفار تر مؤمنانو د مخه یاد کړي ځکه چي کفار ډېر دي او مؤمنان لږ لکه دا چي فرمایي﴿ وَإِن تُطِعۡ أَكۡثَرَ مَن فِي ٱلۡأَرۡضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِۚ ﴾ ﴿ وَقَلِيلٞ مِّنۡ عِبَادِيَ ٱلشَّكُورُ ﴾ ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ او الله په هغه څه چي تاسي یې کوی ښه لیدونکی دی (نو جزا به ورباندي درکړي) وروسته الله د خپل قدرت نښانې او د وحدانیت دلائل

---

(١) د صاوي حاشیه په جلالین باندي.

(٢) طبري تفسیر ٢٨ /٧٨

په داسي تفصيل بیانوي چي ﴿ خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ بِٱلْحَقِّ ﴾ (پیدا کړي يې دي آسمانونه او ځمکه په حق تدبیرسره) يعني په بالغه حکمت يې پیدا کړي چي ددين اودنیامصلحتونه پکې دي خوشي اوچټي بې ندي پیدا کړي ﴿ وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ ﴾ اوصورتونه يې ترلي ستاسي بیايې ښه ښايسته کړي دي ستاسي صورتونه (په امتداد د قامت اواعتدال دخلقت سره لکه چي الله فرمايي ﴿ لَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ فِيٓ أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ﴾ (التين:۴) ځکه څوک چي دانسان په پیدا ينبت کي نظروکړي نوبه پدې پوه شي چي ترګردو حيواناتويې په ښه اوښکلي هيئت پیداکړی دی اودهغه دښکلاځخه يودادی چي په ولاړو درومي نه داسي چي پرمخي روان وي ﴿ وَإِلَيْهِ ٱلْمَصِيرُ ﴾ اوالله ته بيرته ورتلل دي(چي بيابه هرچاته دخپل عمل سره سمه جزاء ور کړي) ﴿ يَعْلَمُ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ ښه معلوم دی الله ته هغه څه چي په آسمانونواوځمکي کي دي(له اجراموا ومخلوقاتو څخه) ﴿ وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴾ اوالله ته ښه معلوم دي هغه څه چي پټوی يې تاسي اوهغه څه چي ښکاره کوی يې تاسي (له نيتونواوعملونوڅخه) ﴿ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ او الله ته ښه معلوم دي هغه پټي خبري چي په سينوزړونو ستاسي کي دي (له رازونوڅخه نوستاسي ظاهري عملونه به څرنګه ترې پټ شي؟ په البحرکي ليکي چي: الله تعالی پخپل علم چي په ټولو آسماني او ځمکني موجوداتويې لري لومړی تنبيه وفرمايله ورپسې يې د بندګانوپه پټواوښکاره وود علم لرلو ذکروکړ ورپسې په هغه څه چي په سينوکي پټ اسرار اوخفاياخوندي دي يادونه وکړه يعني له الله څخه هيڅ شی هم پټ نه دی هغه که کلي وي اوکه جزئي نويې رومبی شامل علم يادکړ ورپسې د بندګانوپه پټواوښکاره ووبیايې دهغوی په سينوکي د پټورازونو دعلم يادونه وکړه اودغه ګردد وعيدپه معنادی ځکه چي الله تعالی په ثواب اوعقاب جزاء ورکونکی دی له دې په هبسته الله تعالی د هغه عذابونويادفرمايي کوم چي دتېرو وختونوپه کفارو راغلي ووفرمايي ﴿ أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا۟ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِن قَبْلُ ﴾ آياندی راغلی تاسو ته(ای قريشو) خبردهغوکسانوچي منکرشوي دي پخواله دې نه (لکه قوم دعاداوثمودچي څرنګه عذابونه ورباندي راغِلل؟!) ﴿ فَذَاقُوا۟ وَبَالَ أَمْرِهِمْ ﴾ پس ويې څکل وبال سزا دکارخپل (په دنياکي) ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ اوشته دوی ته دردناک عذاب (په آخرت کي) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُۥ كَانَت تَّأْتِيهِمْ رُسُلُهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ ﴾ داعذاب دوی ته ددې لپاره دی چي ووبه دوی چي راتلل به ورته رسولان د دوی په ښکاره وودلائلوسره) يعني دغه عذاب چي دوی په دنياکي وڅکل اوژردی چي په آخرت کي به يې هم وڅکي داپدې سبب دی چي راتلل به دوی ته پيغمبران په ښکاره معجزاتواو د دوی د رښتنولي په څرګندودلائلوسره ﴿ فَقَالُوٓا۟ أَبَشَرٌ يَهْدُونَنَا ﴾ نو ويل به دوی (دتعجب اوملنډو په توګه) چي آيابشر(سړي)موږ ته لاره ښيي؟ !امام رازي ليکي: دوی له دې څخه انکارکاووچي پيغمبر دي بشروي خوله دې څخه يې انکارنه درلودچي ددوی معبوددي ډبره وي ځکه دوی عقلونه نه درلودل اونه پوهېدل

(¹) ﴿ فَكَفَرُواْ وَتَوَلَّواْ ﴾ بيا به كافران شول (په رسولانو) اومخ به يې وګرزول (له ايمانه او هدايت څخه) ﴿ وَّٱسۡتَغۡنَى ٱللَّهُ ﴾ (اوبې پرواغني دى الله له طاعت اوعبادت ددوى نه ,طبري ليكي : معنا داچې اوبې پرواغني دى الله (له ايمان راوړلو ددوى پرالله اورسولانو دهغه (²) ﴿ وَٱللَّهُ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴾ اوالله غني بې پروادى (له خپل مخلوق نه) اوډېرستايلى شوى دى (پخپلو صفاتو اوذات كي نه د مخلوق طاعت كول ورته ګټه رسوي اونه يې معصيت ورته څه زيان رسوي ځكه هغه له عالم څخه بې پروادى له دې نه وروسته الله ددوى هغه انكارچي له بعث څخه يې درلود داسي بيانوى ﴿ زَعَمَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ أَن لَّن يُبۡعَثُواْ ﴾ دعوى كوي هغه كسان چي كافران شوي دي (كفاردمكې) چي له سره به دوى بيا ژوندي راپورته نكړى شي (له قبرونو څخه) ﴿ قُلۡ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتُبۡعَثُنَّ ﴾ ووايه (اى محمده دوى ته!) هو قسم دى په رب زماچي بيابه ژوندي راپورته كړى شئ هرومروتاسي (له قبرونو) ﴿ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلۡتُمۡ ﴾ بيابه خامخا خبركړى شى تاسي هرومروپه هغه څه چي تاسي عمل كړى دى په دنياكي (كه كوچنى عمل دى ، كه غټ ، كه لوړدى اوكه خوړ اوجزابه وربادي ذركړي ﴿ وَذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٞ ﴾ اودغه (بعث او جزاء) په الله باندي ډېرآسان دى (ځكه چي اعاده ترابتداء هروخت آسانه وي امام رازي وايې چي : دوى كله چي خاوري شي بياله ژوندي راپورته كېدلو څخه منكردي نوالله ددوى اخباروكړچي په عقلونوكي هم اعاده ترانشاء اونوي پيدابنت آسانه دى (³) الله تعالى كله چي دبعث بعدالموت په هكله اودتېرواُمتونو دهلاک خبري واوروليې نويې په قرآن دمنګولي لګولواوپه قرآن اوايمان د تمسک كولو مارپينه وكړه چي ﴿ فَـَٔامِنُواْ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَٱلنُّورِ ٱلَّذِيٓ أَنزَلۡنَاۚ ﴾ (نوايمان راوړئ په الله اوپه رسول دده (محمد) باندي اوپه هغه رڼا (قرآن) چي موږ نازل كړى دى) يعني په الله اوپيغمبر او قرآن باندي ايمان راوړئ دغه قرآن لكه ځلانده رڼاغوندي دى چي تياري اوشبهات له مينځه وړي ﴿ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ خَبِيرٞ ﴾ اوالله په هغه څه چي تاسي يې كوى ښه خبردارد‌ى (نوجزاء به دركړي) ﴿ يَوۡمَ يَجۡمَعُكُمۡ لِيَوۡمِ ٱلۡجَمۡعِۖ ﴾ (يادكړئ) هغه ورځ چي راجمع به كړي (الله) تاسو لره په ورځ دجمع كېدلو (چي ورځ دقيامت ده هلته چي ګردخلک به په يوه ميدان دحساب اوجزاء لپاره راټول وي ابن كثيرليكي چي (يوم الجمع) يې ځكه وبلله چي الله تعالى به پدي ورځ اولين اوآخرين په يوه ډګرراغونډ كړي اودبلونكي غږ به ورواوروي لكه الله فرمايې ﴿ ذَٰلِكَ يَوۡمٞ مَّجۡمُوعٞ لَّهُ ٱلنَّاسُ وَذَٰلِكَ يَوۡمٞ مَّشۡهُودٞ ﴾ (هود:۱۰۳) ﴿ ذَٰلِكَ يَوۡمُ ٱلتَّغَابُنِۗ ﴾ (داورځ (چي ده) ورځ دنفعي او نقصان ده) يعني داهسي ورځ ده چي دكافرتاوان به پكي ښكاره شي چي هغه د ايمان په نه راوړلو څومره خساره ليدلې؟ اودابه ښكاره شي چي مؤمن ددنياپه پرهېزلو سره جنت پېرودلى اوګټه يې كړي ده اوكافربياد وزخ

(¹) دالرازي تفسير ۳۰/ ۲۳
(²) الطبري ۲۸/ ۷۸
(³) كبيرتفسير ۳۰/ ۲۳

رانيولي دی نودهغه تاوان ښکاره شو. خاز ن ليکي چي د(تغابن) اصل له (غبن) څخه اخيستل شوی اوهغه ديوشي بې له خپله قيمته اوبيي څخه اخيستل دی نومغبون هغه څوک دی چي خپل اهل اومنزل دجنت بې له لاسه ورکړي وي څکه چي هرکافرته که چېري ايمان راوړي په جنت کي اهل اومنزل شته نوپدغه ورځ به دکافرغبن ښکاره شي اوهمداسي دهرمؤمن غبن پدې ښکاره شي چي په نيکي اواحسان کي بې تقصيرکړی دی (۱) ﴿ وَمَن يُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ وَيَعْمَلْ صَٰلِحًا يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّـَٔاتِهِۦ ﴾ اوهغه چي په الله ايمان راوړي اونيک عمل وکړي ليري به کړي (الله) له ده څخه بدي (د ګناه) دده ﴿ وَيُدْخِلْهُ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ﴾ اوداخل به کړي(الله) دغه (صالح مؤمن) په هغو جنتونو کي چي بهېږي له لاندي (دمانيواوونودهغو ) ويالې (دجنت) ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ﴾ تل به وي دوی په هغه کي همېشه (نه به مړه کېږي اونه به رااېستل کېږي) ﴿ ذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴾ دغه ( مغفرت او جنت)بری خلاصي د هرلوی دی(چي ترې پورته بل سعادت نشته) ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَآ ﴾ (اوهغه کسان چي کافران شوي دي اونسبت ددروغوکوي آيتونو زموږته)يعني هغوی چي د الله له وحدانيته منکراوپه هغودلائلوچي په بعث اونشورکي راغلي تکذيب ترې اودقرآنکريم آيتونه دروغ ګني ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ خَٰلِدِينَ فِيهَا ﴾ دغه کسان دي ياران ملګري داور(ددوزخ) تل به وي دوی په هغه (دوزخ) کي ﴿ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴾ اوبدځای دورتلو دی دادوزخ (کفاروګمراهانوته )بيا وروسته الله تعالی ددې سپيناوی کوي چي که په کائناتوکي هرڅه پېښېږي دغه ټول دالله په قضا اواراده صورت نيسي نوفرمايې ﴿ مَآ أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ ٱللَّهِ ﴾ (نه رسېږي هيڅ مصيبت (غم درد ) هيڅا ته مګرخو(رسېږي)په حکم دالله سره ) يعني هيڅاته دهغه په مال، ځان اواولاد کي کوم غم او دردنه رسېږي مګردالله په قضااوتقديرسره رسېږي ﴿ وَمَن يُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ يَهْدِ قَلْبَهُۥ ﴾ (اوهغه څوک چي ايمان بې راوړی دی په الله باندي لاره ښيي (الله) زړه دده ته ) يعني اوهرڅوک چي الله مني اوپدې پوهېږي چي هره پېښه دالله په قضا اوقدرپېښېږي نوزړه ته بې الله دصبراوزغم لاره ښيي اوپه ايمان بې ثابت ګرزوي . ابن عباس ﷺ وابې چي: زړه ته بې ديقين لاره ورښيي ترڅوچي پدې پوهېږي کوم څه چي ورته رسېدل بې ليکلي له هغه څخه نه خطاکېږي اوڅه چي ورته نه رسېدل بې ليکلي هغه ورته رسېدونکي نه دي(۲)علقمة وايې چي داهغه څوک دی کله چي مصيبت ورته ورسېږي نودی پوهېږي چي دغه دالله له لوري دی نوپه هغه رضاشي اودالله قضاء ته غاړه کېږدي (۳) ﴿ وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌ ﴾ اوالله په هرڅېزباندي ښه پوه دی (هيڅ شی په ځمکه کي اوپه آسمان کي له الله څخه پټ نه دی) ﴿ وَأَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُوا۟ ٱلرَّسُولَ ﴾ اوتاسي حکم

---

(۱) الخازن ۴ /۱۰۴
(۲) طبري تفسير ۲۸ /۸۰
(۳) دابن کثيرمختصر ۳ /۵۱۰

ومنئ دالله او د رسول د د غه (الله) (په ګردو هغو شیانو کې چې تاسو ته یې امر کړی او یا یې ورڅخه منع کړې یاست امریې د تأکید لپاره مکرر راوړی دی او چې دا خبره افاده کړي چې د رسول الله طاعت هم لکه د الله طاعت غوندې واجب دی ﴿ فَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَإِنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا ٱلْبَلَٰغُ ٱلْمُبِينُ ﴾ پس که مخ وګرزاوو تاسې (له اجابت د رسول نه په هغه څه کې چې تاسې هدایت او ایمان ته رابولي نو ستاسو زیان دی رسول الله ته څه نقصان نه رسېږي ځکه چې) نو بېشکه په رسول زموږ باندې ښکاره رسونه ده (او هغه یې ادا کړې ده. نو الله هغه چاته سزا ورکوي چې له حکم څخه یې غاړه غړوي او عصیان کوي ﴿ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ الله (یو دی) نشته هیڅوک ورد عبادت مګر خو هم دی دی (نه له ده پرته بل معبودا و نه بل خالق شته په هغه توکل کول دي او هغه ته بیرته ورتلل دي ﴿ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُؤْمِنُونَ ﴾ او خاص یوازې پر الله باندې پس توکل دې وکړي مؤمنان (چې د ایمان غوښتنه هم داده چې مؤمنان دې ګردې چارې الله ته وسپاري صاوي لیکي چې: پدې کې رسول الله ته په الله باندې د توکل کولو هڅونه ده چې الله ته دې پناه یوسي او همداسې دامت لپاره دا ښوونه ده چې الله ته دې التجاء وکړي او د هغه په نصرت او تأئید دې باور ولري ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّ مِنْ أَزْوَٰجِكُمْ وَأَوْلَٰدِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَٱحْذَرُوهُمْ ﴾ ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) بېشکه ځینې له ښځوستاسې (او ځینې له) زامنو ستاسې تاسې لره دښمنان دي (تاسو د الله له لارې بندوي او د الله له طاعت څخه مو راګرزوي) نو له دوی څخه ووېرېږئ، ځان وساتئ نه دا (چې د دوی خبره ومنی او اطاعت یې وکړی. مفسرین کرام لیکي چې: یوه ټولی. خلګو ایمان راوړ او غوښتل یې چې هجرت وکړي مګر مېرمنو او زامنو یې دوی له هجرت کولو څخه پاتې کړل او هغوی څه موده وروسته بیا هجرت وکړ کله چې رسول الله ﷺ ته راغلل نو ویې لیدل چې خلګ په دیني پوهه او علم کې رسېدلي دي نو یې پښېماني کوله او قصدیې وکړ چې خپلي ښځي او لادونه وټرټي بیا دغه آیت نازل شو[1]) دغه آیت هر هغه چاته شامل دی چې د ښځو اولادونو په سبب د الله له طاعته پاتې شي ﴿ وَإِن تَعْفُواْ وَتَصْفَحُواْ وَتَغْفِرُواْ ﴾ او که عفو وکړی او مخ وګرزوی او مغفرت وکړی تاسو (هغوی ته چې تاسو یې د خیر له کارونو څخه ځنډولي وی) ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ پس بېشکه الله ښه مغفرت کوونکی (د ګناهونو) ډېر رحم والا دی (په انعام د اجراو ثواب سره چې تاسو ته به هم جزاء بالمثل درکړي ﴿ إِنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَٰدُكُمْ فِتْنَةٌ ﴾ بېشکه همدا خبره ده چې مالونه ستاسې او اولاد ستاسې یوه فتنه ازموینښت دی (چې الله پرې خلګ ازمويي چې څوک اطاعت کوي او څوک ترې سرغړوي؟ مال یې تر اولاد د مخه یاد کړ چې په هغه کې تر اولاد سخت ازموینښت شته ﴿ وَٱللَّهُ عِندَهُۥٓ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴾ او الله چې دی په نزد د ده اجر ثواب ډېر لوی دی (نو تاسې دې مالونه او اولادونه ستاسې د الله له طاعته منع نکړي په آیت شریف کې د آخرت ترغیب او د دنیا تزهید شته او دا چې مالونه اولادونه هغه څه دي چې الله ور باندې خلګ ازمويي ﴿ فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ مَا ٱسْتَطَعْتُمْ ﴾ نو ووېرېږئ له الله څومره چې توانېږی تاسې (یعني د الله

---

[1] د نزول سبب وګوره.

Bawar.net



دطاعت په لاره کي خپل زيار وباسئ څومره چي مو وس اوتوان وي خانونه دومره تکليف اوکړاو ته مه ورکوئ چي ستاسو طاقت نه وي مفسرين کرام وايي چي دغه دمأموراتواوفضائل اعمال په هکله دي مګرپه منهياتواومحذوراتو کي بياخامخابالکليه ځان ساتل دي اودغه روايت وربااندي دلالت کوي چي رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: کله چي زه دیوڅېزدکولوحکم درته وکړم چي څومو توان وي هغه ترسره کوئ اوله کوم شي څخه چي مومنع کړم تري منع شئ([1]) ﴿ وَٱسْمَعُواْ وَأَطِيعُواْ ﴾ او واورئ (خبري دنصيحت په سماع دقبول سره)اواطاعت کوئ (داحکامودالله چي امراونهی دي) ﴿ وَأَنفِقُواْ خَيْرًا لِّأَنفُسِكُمْ ﴾ (اونفقه کوئ ښه شيان لپاره (دنفعي) دځانونوخپلو ) يعني دالله په لاره کي خپل مالونه لګوئ څوچي ستاسو دځانونولپاره خيراوښېګڼه شي ﴿ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِۦ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴾ اوهغه څوک چي وساتلی شوله حرص بخيلي دنفس خپل څخه نوداکسان هم دوی دي برياليان ! (په هرمطلوب باندي په دنيااوآخرت کي) ﴿ إِن تُقْرِضُواْ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَٰعِفْهُ لَكُمْ ﴾ (که چېري قرض پور ورکړی تاسي الله لره قرض پورنيک نودوچنده به کړي (الله ثواب د ) هغه تاسي ته) يعني که تاسودالله په لاره کي په محبت اواخلاص سره مال ولګوئ الله به يې درته اجراوثواب دوچندکړي، داچي صدقه يې په پورسره انځور اوتصويرکړي پدې کي په ښوزلانوباندي داحسان کولو زيات تلطف شته ﴿ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ﴾ اومغفرت به وکړي الله تاسي ته (ګناهونه به وموحوکړي) ﴿ وَٱللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ﴾ اوالله ښه قدردان ښه تحمل والادی (چي دمحسن داحسان قدرکوي اوانسان دهغه له ډېروګناهونوسره بياهم ژرترژره نه په عذاب کوي) ﴿ عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ (الله) پوهېدونکی دپټ اوښکاره دی(چي هيڅ تري الونيانشته) ﴿ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ ښه غالب قوي دی (پخپله پاچهي کي) ډېرحکمت والادی (په خپل صنعت کي) **بلاغت**: پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱-په اسم کي دطباق صنعت لکه چي ﴿ فَمِنكُمْ كَافِرٌ وَمِنكُم مُّؤْمِنٌ ﴾ اوهمداسي د ﴿ عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ﴾ ترمينځ چي راغلی دی.

۲-دجار اومجرور ړومبی راوړل چي حصرافاده کړي لکه داچي ﴿ لَهُ ٱلْمُلْكُ وَلَهُ ٱلْحَمْدُ ﴾ چي (له وحده الملک والحمد ) يې معناده.

۳-لطيفه استعاره چي فرمايي ﴿ وَٱلنُّورِ ٱلَّذِىٓ أَنزَلْنَا ﴾ قرآنکريم ته يې نور ، رڼاوويله ځکه چي په هغه سره شکوک اوشبهات ليري کېږي لکه چي په رڼاسره تياري له مينځه ځي.

---

[1] أخرجه الشيخان

۴ – مقابله چي دمؤمنانواوکافرانودجزاء ترمينځ راغلي اوفرمايي ﴿ وَمَن يُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ وَيَعْمَلْ صَٰلِحًا يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّـَٔاتِهِۦ ﴾ او بياداچي ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَآ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ خَٰلِدِينَ فِيهَا ﴾ د آيتونوترپايه

۵ – ناقص جناس لكه ﴿ وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ ﴾ چي يوازي دحركاتواوشكل توپيردى.

۶ – اشتقاقي جناس لكه ﴿ أَصَابَ .... مُّصِيبَةٍ ﴾ او ﴿ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ ٱلْجَمْعِ ﴾ چي راغلى دى.

۷ – اطناب دفعل په تكرارسره چي دطاعت په هكله زيات تأكيداواعتناء افاده كړي لكه داچي ﴿ وَأَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُوا۟ ٱلرَّسُولَ ﴾ .

۸ – دمبالغې صيغه لكه ﴿ وَٱللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ﴾ ځكه چي فعول اوفعيل دمبالغې له صيغوڅخه دي

۹ – تمثيلي استعاره چي فرمايي ﴿ إِن تُقْرِضُوا۟ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَٰعِفْهُ لَكُمْ ﴾ دالله په لاره كي انفاق اوفقيرانوته خيرات وركول يې له هغه چاسره تشبيه كړچي الله ته پوروركوي هغه چي واجب الوفاء وي اودغه يې دتمثيل په توګه راوړل چي لطيفه اوباريكه استعاره ، اوښكلى عبارت دى.

۱۰ – مرصع سجع چي دفواصلوتوافق پكې وي لكه ﴿ وَٱللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ﴾ ﴿ عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ اودغه هم له بديعي محسناتوڅخه ګڼل كيږي.

دالله جل جلاله په مرسته دالتغابن سورت دتفسيرژباړه بشپړه شوه.

***

## د(الطلاق) سورت مدني او دوولس آيتونه لري.

دسورت په وړاندي:

دالطلاق سورت مدني اوځيني تشريعي احکام چي دخاوندا و مېرمني په هکله وي راوړي لکه دسنت طلاق څرنګوالی اوياهغه چي په طلاق باندي مرتب وي لکه عدت، نفقه، دسکونت حق (سکنی) اودتي ورکولو(رضاع) مزدوري اوداسي نورحکمونه.

سورت په پيل کي دطلاق احکام راوړي اودسنت طلاق اوبدعت طلاق بيان کوي مؤمنانو ته ماربينه کوي که چيري يې له مېرمني سره دګډ ژوند تېرولوامکان نه وي نوهغه بهترينه لاره دي غوره کړي اوپه مناسب وخت کي دي ښځي ته طلاق ورکړي هله چي هغه پاکه وي اوپه هغه پاکوالي کي يې ورسره کوروالی (جماع) نه وي کړي اوبيادي دعدت ترتېرېدلو پوري وخت ورکړي.

په دغه الهي لارښوونه کي دنارينه وولپاره بلنه ده چي دزوجيت تړون دي ژرترژره نه شلوي ځکه چي طلاق په حلالوشيانوکي ترټولو کرکجن ښېزدی اوکه چېري اضطراري اودمجبوريت حالات نه وای هيڅکله به طلاق رواشوی نه ووځکه هغه دکورنۍ تادو(بنسټ) نړول دي.

سورت دعدت دورڅوشمارل په ګوته کوي ترڅوچي دانسابوله ګډون اودښځي له متضرر کېدلوڅخه مخ نيوی وشي اوخلک دالله دحدودو پاملرني اوداوامروامتثال اوپرځای کولو ته رابولي.

بياسورت دعدت احکام راوړي دبوډۍ ، ياهغې چي حيض يې دناروغي له امله درېدلی وي او دوړې نجلۍ ، اودهغې ښځي چي اميدواره وي ښکاره بيان کوي اولاري چاري يې شمېري.

ددغوحکمونوپه ترڅ کي دالله تقوی ته باربار بلنه کوي چي کله دترغيب له مخي اوکله بيادترهيب په توګه ترڅودمېړه ارتينې له لوري يوبېې هم ظلم ته زړه ښه نکړي او ورسره دسکونت اونفقې دحق په باب يادوني راوړي.

دسورت پای دالله له حدودوڅخه په تجاوز نه کولويوتحذيردی اودتېروسرکښو امتونومثالونه راوړي هغوی چي دالله حکمونه يې نه منل نوڅرنګه عذابونه اوهلاکتونه ورباندي را غلل بيادالله جل جلاله دقدرت مثال چي پورپه پوړاوه آسمانونه يې پنځولي اوهمداسي يې ځمکي پيداکړي اودغه ګرددالله رب العالمين په وحدانيت دلائل دي بيانوی.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ ۖ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِن بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَن يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۚ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ ۚ وَمَن يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ ۚ لَا تَدْرِي لَعَلَّ اللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَٰلِكَ أَمْرًا ﴿١﴾ فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنكُمْ وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ ۚ ذَٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهِ مَن كَانَ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۚ وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا ﴿٢﴾ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ۚ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ بَالِغُ أَمْرِهِ ۚ قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا ﴿٣﴾ وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِن نِّسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ ۚ وَأُولَاتُ

ٱلْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ يَجْعَل لَّهُۥ مِنْ أَمْرِهِۦ يُسْرًا ﴿٤﴾ ذَٰلِكَ أَمْرُ ٱللَّهِ أَنزَلَهُۥٓ إِلَيْكُمْ ۚ وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ
يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّـَٔاتِهِۦ وَيُعْظِمْ لَهُۥٓ أَجْرًا ﴿٥﴾ أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ وَلَا تُضَآرُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا۟ عَلَيْهِنَّ ۚ وَإِن كُنَّ
أُو۟لَٰتِ حَمْلٍ فَأَنفِقُوا۟ عَلَيْهِنَّ حَتَّىٰ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَـَٔاتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ ۖ وَأْتَمِرُوا۟ بَيْنَكُم بِمَعْرُوفٍ ۖ وَإِن تَعَاسَرْتُمْ
فَسَتُرْضِعُ لَهُۥٓ أُخْرَىٰ ﴿٦﴾ لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِۦ ۖ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُۥ فَلْيُنفِقْ مِمَّآ ءَاتَىٰهُ ٱللَّهُ ۚ لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَآ
ءَاتَىٰهَا ۚ سَيَجْعَلُ ٱللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا ﴿٧﴾ وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ أَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهِۦ فَحَاسَبْنَٰهَا حِسَابًا شَدِيدًا وَعَذَّبْنَٰهَا
عَذَابًا نُّكْرًا ﴿٨﴾ فَذَاقَتْ وَبَالَ أَمْرِهَا وَكَانَ عَٰقِبَةُ أَمْرِهَا خُسْرًا ﴿٩﴾ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ۖ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ يَٰٓأُو۟لِى ٱلْأَلْبَٰبِ ٱلَّذِينَ
ءَامَنُوا۟ ۚ قَدْ أَنزَلَ ٱللَّهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا ﴿١٠﴾ رَّسُولًا يَتْلُوا۟ عَلَيْكُمْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ مُبَيِّنَٰتٍ لِّيُخْرِجَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ مِنَ ٱلظُّلُمَٰتِ
إِلَى ٱلنُّورِ ۚ وَمَن يُؤْمِنۢ بِٱللَّهِ وَيَعْمَلْ صَٰلِحًا يُدْخِلْهُ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ۖ قَدْ أَحْسَنَ ٱللَّهُ لَهُۥ رِزْقًا ﴿١١﴾
ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَ سَبْعَ سَمَٰوَٰتٍ وَمِنَ ٱلْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ يَتَنَزَّلُ ٱلْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ وَأَنَّ ٱللَّهَ قَدْ أَحَاطَ
بِكُلِّ شَىْءٍ عِلْمًۢا ﴿١٢﴾ ﴾ الطلاق: ١ ـ ١٢

## لغتونه:

(العدة) هغه موده چي دمېرمني درحم پاکي اوتش والی ورباندي معلومېږي اوهغې ته بیادبل مېړه کولو اجازه ورکول کېږي (احصوا) وشمېرئ (حسبه) دده کافي دی (وجدکم) طاقت ستاسو (ارتبتم) شکمن شوی تاسي (کاین) ډېر (عتت) چي تکبریې کړی اومخ یې اړولی وي (نکرا) بد، ناولی (خسرا) هلاک او تاوان

## دنزول سبب:

أ- بخاري رحمه الله روایت کوي چي عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ښځه طلاقه کړه پداسي حال کي چي د هغې میاشتنی ناروغي (حیض) وه او حضرت عمر رضي الله عنه دغه خبره رسول الله ته یاده کړه اورسول الله ته قهرورغی بیایې وفرمایل بیرته دي ورته مراجعت وکړي اومېرمن دي کړي څوچي پاکه شي اوبیایې د حیض موده ورته راشي بیاپاکه شي وروسته که یې غوښتل په پاکوالی کي پداسي حال کي چي ورسره کوروالی مجامعت یې نه وي کړی طلاق دي ورکړي داهغه عدت دی چي الله عزوجل ورباندي حکم کړی دی[۱].

ب- له حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت حفصه رضي الله عنها ته طلاق ورکړ اوهغه خپل پلرګنی ته راغله نوالله دغه آیت نازل کړچي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ ٱلنِّسَآءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ ﴾ نوورته وویل شول چي بیرته یې خپله مېرمن کړځکه چي هغه (صوامة قوامة) ده ډېري روژې نیسي او ډېرلمنځونه کوي اوهغه دي دجنتي مېرمنو (ښځو) څخه یوه مېرمن ده[۲].

(۱) متفق علیه

(۲) مختصرابن کثیر ۳/ ۵۱۲

ج: اوروايت كبري كله چي دالله داقول نازل شوچي ﴿ وَٱلْمُطَلَّقَٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَٰثَةَ قُرُوٓءٍ ﴾ نوخيني اصحابانورضوان الله عليهم وويل: يارسول الله دهغې ښځي چي حيضونه نلري له وړوالي اويازوړوالي دهغې عدت به څه وي؟ نودا آيت نازل شوچي ﴿ وَٱلَّٰٓـِٔي يَئِسْنَ مِنَ ٱلْمَحِيضِ مِن نِّسَآئِكُمْ إِنِ ٱرْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَٰثَةُ أَشْهُرٍ ﴾ دآيت ترپايه(۱).

تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ ٱلنِّسَآءَ ﴾ اى نبي كله چي اراده وكړې طلاقولو ښځي خپلي، خطاب پيغمبر عليه السلام ته دى اوحكم يې عام دى درسول الله اوټول امت لپاره دى نداء يې په ځانګړې توګه رسول الله ته دتعظيم لپاره كړې ده لكه چي ديوقوم رئيس اومشرته غږكېږي چي اى فلانيه داسي وكړئ يعني ته اوقوم دي داسي وكړي نودغه نداء دتعظيم اوتكريم په ډول شوي ده چي (طلقتم) يې فرمايلى ځكه چي دتفخيم او تعظيم افاده كوي(۲) يعني اى نبي اواى مؤمنانو كله چي ښځوته دطلاق وركولواراده وكړئ ﴿ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ ﴾ نوطلاقوئ يې په (وخت د)عدت ددوى كي (په طهركي اوپه حيض كي يې مه طلاقوئ. مجاهدوايي: يعني هغه طهرچي جماع پكي نه وي ځكه چي رسول الله فرمايلي: چي طلاق دي وركړي طاهراً ترپخوا له دې چي ورسره صحبت وكړي داهغه عدت دى كوم چي الله تعالى ورباندي حكم كړى دى چي په هغه سره دي ښځو ته طلاق وركول شي(۳) مفسرين كرام ليكي اوچي په حيض كي دطلاق له وركولو څخه منع شوي دا ځكه چي عدت يې ورباندي اوږد نشي نوبه هغه متضرره شي بل داچي دحيض حالت دكركي اونفرت حال د ى اومېړه دې ته هڅوي چي د طلاق په وركولو كي بېړه اوتلوار وكړي په خلاف دپاكي دحالت چي دغسي نه دى اوداچي په هغه طهر كي دي طلاق وركوي چي ورسره كوروالى يې نه وي كړى ترڅوچي له دغه كوروالي څخه حمل ونشي(۴)نوبيابه عدت له حيض څخه داولادوضع اوزېږولوته ولېږدي اوپدې كي ښكاره ضرردى ﴿ وَأَحْصُواْ ٱلْعِدَّةَ ﴾ اوو شمېرئ وساتئ تاسوعدت(دخپلوښځوچي درې حيضونه بشپړكړي ترڅو اختلاط دانسابو ونشي) ﴿ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ رَبَّكُمْ ﴾ اووېرېږئ تاسي له الله چي رب (پالونكى) ستاسي دى (په امتثال داوامرو اواجتناب له نواهيوڅخه يې) ﴿ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنۢ بُيُوتِهِنَّ ﴾ مه وباسئ (اى مېړو) دغه (ښځي خپلي) له كورونو خپلوڅخه (ترڅوچي يې عدت تېرشي) ﴿ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّآ أَن يَأْتِينَ بِفَٰحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ﴾ اونه دي وزي دغه (ښځي پخپله هم له كورونو ترڅوچي ددوى عدت تېرشي مگرهلته چي راشي دوى په فاحشه بې حيايي

(۱) روح المعاني ۲۸/ ۱۳۷
(۲) القرطبي ۱۸/ ۱۴۸
(۳) دصحيحينوحديث، شان نزول وګوره.
(۴) حكمت دتشريع زموږپه كتاب روائع البيان كي وګوره.

ښکاره سره (لکه زنا،نوهلته به ورباندي دحد دجاري کولو لپاره راوزي (۱) په التسهيل کي ليکي چي الله تعالى له دې څخه منع کړي چي سړی خپله طلاقه کړي ښځه له هغه ځايه څخه وباسي په کوم کي چي يې طلاق ورکړی دی اودايې هم منع کړي چي پخپل اختيارووزي نوهغې ته روانه دي چي له خپله کوره بهرشپه وکړي اويادورځي بې له ضرورته بهرپاتي کېږي اودغه حکم د نسب دخوندي ساتلولپاره اوداچي عفت وژغورل شي راغلی دی ، دفاحشې په هکله کومه چي هغې ته دوتلوروا والی ورکوي چاويلي چي دغه عبارت له زناء څخه دی نوبيابه راوزي ترڅوورباندي حد جاري شي چابياويلي چي دغه له خسرګنی سره بدي خبري اوښکنځل ښيي نوبيابه ايستل کېږي او د سکونت حق يې له مينځه ځي اوددغي وينا تائيد دا قرائت هم کوي چي فرمايې ﴿ الاان يفحشن عليكم ﴾ (۲) داچي تاسي ته فحش وايې ﴿ وَتِلْكَ حُدُودُ ٱللَّهِ ﴾ اودا (أحكام) حدود اندازه کړی شوي د الله دي (شرائع او محارم دي) ﴿ وَمَن يَتَعَدَّ حُدُودَ ٱللَّهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُۥ ﴾ اوهرهغه چي تېرېږي له حدودو دالله څخه نوپه تحقيق ظلم يې کړی دی پخپل ځان باندي (چي عذاب ته يې چمتو کړي او ورته تاوان يې رسولی چي د ښځي د رجعت امکان يې په ځان درولی دی، امام رازي وايې چي: دادهغه چالپاره تشديد دی څوک له سنت طلاق څخه تجاوزکوي اويا هم بې عدت ته ښځه طلاقوي ﴿ لَا تَدْرِى لَعَلَّ ٱللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَٰلِكَ أَمْرًا ﴾ (ښايې چي الله پيدا کړي وروسته له دې طلاقه کوم ښه کار اونوی صورت لکه رجوع له طلاقه څخه) يعني ای اورېدونکی ! ته نه پوهېږې چي الله له دغه طلاقه وروسته کوم کار پېښوي ښايي چي الله يې زړه له بغض ددې څخه محبت اوميني ددې ته واړوي چي بيرته يې له نفرت څخه وروسته ورسره الفت پيدا شي. ابن عباس وايې: مقصد له دې څخه په طلاق باندي ندامت اوپه عدت کي بيرته دهغې رجعت ته محبت دی (۳) ﴿ فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ ﴾ (بيا نو کله چي ورسېږي دغه (ښځي) نېټې خپلي ته) يعني کله چي يې عدت په تېرېدواونېټه يې نږدې شي ﴿ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ ﴾ (نوو ساتئ تاسي (ای مېړو) دوی په معروف نېکي ښه شان سره ياجلا شئ تاسي له دوی څخه په ښه شان معروف سره) يعني ياخويي په ښه شان سره بيرته خپلي مېرمني کړئ لکه چي الله درته حکم کړی اويايې پرېږدئ چي عدت يې تېرشي نو به خپلواکه شي مفسرين کرام ليکي چي: امساک بالمعروف ،ښه ګذاره اونفقه ورکول دي بې له قصده

---

(۱) دفاحشې تفسيرپه زناسره دابن عباس، ابن مسعود ،عکرمة اومجاهد وينا ده اوله ابن عباس څخه بل روايت دادی چي دمېړه له خپلوانو سره بده ژبه چلوي اودغه دأبی بن کعب قول دی.

(۲) التسهيل ۴ /۱۷۲

(۳) ابن قيم ليکي: داچي الله ته طلاق أبغض دی ځکه چي د کورنۍ ترون پرې کېږي (غوڅېږي) اودابليس لعين موافقه ترلاسه کېږي چي هغه دمېړه اوماينې په بېلتون خوشحاله کېږي خو سره له دې کله کله مېړه اويا ارتينه ورته اړتيا مومي نو د مصلحت سره سم يې رواکړی چي فسادورباندي دفع شي اوله ضرورته پرته يې حرام وباله داسي يې رواکړچي هغه په طهر کي چي هغه طهر له جماع څخه خالي وي طلاق ورکړي (يو طلاق) اوبيا دي پرېږدي چي عدت يې تېرشي که چېري دخلاف اسباب له مينځه لاړل اوموافقت راغی نودبيرته رجوع لاره به يې موجوده وي اوعدت درې قروء ځکه تاکل شوي چي د مهلت اواختيارموده اوږده شي داهغه څه دي چي په شريعت کي راغلي اواجازه ورکول شوي ده. محاسن التأويل ۱۲/ ۵۸۳۸.

دضررسولوچي په رجعت سره يې عدت اوږد شي اوفراق بالمعروف دمهرورکول او د طلاق په وخت کي متعةورکول ،په شرطونووفاکول اوټول حقوق پرځاى کول دي ﴿ وَأَشْهِدُوا۟ ذَوَىْ عَدْلٍ مِّنكُمْ ﴾ او شاهدان ونيسئ تاسي (په دغه رجوع باندي) دوه خاوندان دعدل له تاسي څخه (هغوى چي تاسويې په عدالت او په دين اوامانت کي په استقامت باورلرى په البحرکي ليکي چي: دغه شاهدان نيول دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد مستحب دي لکه چي الله فرمايې ﴿ وَأَشْهِدُوٓا۟ إِذَا تَبَايَعْتُمْ ﴾(البقرة: ٢٨٢) اوامام شافعي رحمه الله وايي چي :دغه په رجعت کي واجب دي او په فرقت کي مستحب دي(١) ﴿ وَأَقِيمُوا۟ ٱلشَّهَٰدَةَ لِلَّهِ ﴾ او ښه اداءکړئ تاسي شاهدي (اى شاهدانو) لپاره دثواب اورضاء د) الله يعني خاص دالله لپاره شاهدي اداکړئ دچاپلوي مه کوئ يعني خاص دالله درضالپاره بې له تغييراوتبديله شاهدي واياست دمشهودله اويادمشهودعليه مراعات مه کوئ﴿ ذَٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهِۦ مَن كَانَ يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ ﴾ (دا(ساتنه په نيکي سره) نصيحت کاووشي په دې سره هغه چاته چي وي له تاسونه چي په الله اودقيامت په ورځي بې ايمان راوړى وي) يعني دا احکام چي موږشريعت ګڼلى هغه چاته ګټه رسوي چي ورباندي ايمان لري اوله الله څخه وېرېږي د قيامت دورځي دحساب اوکتاب په فکرکي وي) ﴿ وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ يَجْعَل لَّهُۥ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ﴾ (اوهغه څوک چي له الله ووېرېږي (خان وساتي له ګناهونو) و به ګرزوي ده ته يوځاى دوتلو(له غمونو) اوروزي به ورکړي (الله) ده ته له هغه ځايه چي دى به ګمان نه کوي) يعني څوک چي دالله دحدودوساتنه کوي الله به ورته له هره غمه دخلاصون يوه لاره پرانيزي اوله داسي مدرکه به روزي ورکړي چي هډودى به يې ګمان هم نه کوي اونه به پرې خبروي. مجاهدوايې: زه له ابن عباس ﷺ سره وم چي يوسړى ورته راغى چي ښځه يې په درې طلاقه سره طلاق کړي وه نوابن عباس پټه خوله شوچي ماګمان کاووهغه ته يې بېرته وررد کړه بيايې وويل: تاسوپخپل حماقت يو کاروکړى اوبياوايياست اى ابن عباس ! اى ابن عباس ! الله جل جلاله فرمايې ﴿ وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ يَجْعَل لَّهُۥ مَخْرَجًا ﴾ خوته له الله څخه وېرېدلى نه يې زه به کومه دخلاصون لاره درپيداکړم د الله نافرماني دي کړي او ښځه درباندي طلاقه شوي ده (٢) مفسرين کرام ليکي چي: آيت عام دى اود عوف بن مالک اشجعي په هکله نازل شوى هغه چي مشرکانو يې زوى بندي کړاوهغه رسول الله ته راغى دلوږي او نېستي شکايت يې ورته کاوواوويل يې مشرکانو مي زوى بندي کړى اومور يې بدي ورځي کوي ته څه راته فرمايې ! عليه السلام ورته وويل:(لاحول ولاقوة الابالله) ډېرواياست هغوى هم دغسي وکړل که ګوري يوه ورځ چي پخپل کورکي ناست دى چي زوى يې دروازه وټکوله اوسل اوښان ورسره وو چي له دښمنانو څخه يې راوستي وونودا آيت نازل شوچي ﴿ وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ يَجْعَل لَّهُۥ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ﴾ (٣) ﴿ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ

---

(١) البحر ٨/ ٢٨٢

(٢) محاسن التاويل ١٢/ ٥٨٣٨

(٣) وګوره قرطبي ١٨/ ١٦٠ - اوطبري ٢٨/ ٩٠

﴿فَهُوَ حَسْبُهُۥٓ﴾ او هغه څوک چې په الله توکل وکړي نو دغه (الله) ده لره کافي بس دی (په دواړو جهانونو کې) يعني هغه څوک چې په کومه ورته رسېدلي چاره کې يې په الله جل جلاله اعتماد او باور وکړي الله يې کافي دی. صاوي وايي: معنادا چې څوک الله ته خپل كار وسپاري الله به يې كفايت وکړي، خو له اسبابو څخه كار اخيستل د توكل منافي نه دی ځکه چې دغوی په هكله امر شوی دی خو اعتماد او توكل به په اسبابو نه وي (¹) په حديث شريف كې راځي: كه تاسو په الله جل جلاله باندې داسې توكل وكړی لكه چې د توكل حق دی نو داسې روزي به در ته ورسوي لكه چې مرغانو ته يې رسوي سهار وږي روان شي او ماښام ماړه راستنېږي (²) ﴿إِنَّ ٱللَّهَ بَٰلِغُ أَمْرِهِۦٓ﴾ (بېشكه الله رسېدونكی دی امر كار خپل ته) يعني رسېږي هغه ته چې غواړي يې هيڅ څيز يې عاجز كولای نشي په التسهيل كې ليكي چې دغه د توكل په هكله هڅونه او تاكيد دی ځكه كله چې بنده ته دا ثابته شي چې ګردې چارې د الله جل جلاله په لاس كې دي نو يوازې په هغه الله باندې توكل كوي او بل چاته نه كرېږي (³) ﴿قَدْ جَعَلَ ٱللَّهُ لِكُلِّ شَىْءٍ قَدْرًا﴾ په تحقيق ګرزولي ده الله هر څيز لره اندازه (معلومه او محدود وخت لكه چې څرنګه يې د ازلي حكمت غوښتنه وه، قرطبي ليكي: معنادا چې هر څيز ته يې له نرمي او سختي يوه ټاكلي موده ايښې چې دغې په رسېدلو سره پای ته رسېږي (⁴) ورپسې الله تبارک وتعالى دغې طلاق شوي ښځې حكم چې مياشتنی عادت د ړوكوالي او يا زوړوالي په سبب نلري داسې بيانوي ﴿وَٱلَّٰٓـِٔى يَئِسْنَ مِنَ ٱلْمَحِيضِ مِن نِّسَآئِكُمْ إِنِ ٱرْتَبْتُمْ﴾ او هغه ښځې چې نا اميده شوي وي (په سبب د زړوالي يا ناروغي) له حيضه له ښځو ستاسو كه چېرې په شک كې ياست تاسو (او پدې نه پوهېږئ چې عدت به يې څنګه وي نو حكم يې دادی: ﴿فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَٰثَةُ أَشْهُرٍ﴾ نو عدت د دوی درې مياشتې دی (يعني عدت دهري يوې درې مياشتې دی چې هره مياشت يې د حيض پرځای درېږي ﴿وَٱلَّٰٓـِٔى لَمْ يَحِضْنَ﴾ او همداسې ښځې چې حائضې شوي نه وي (د ړوكوالي په سبب نو هغه دي هم درې مياشتې عدت تېروي) ﴿وَأُو۟لَٰتُ ٱلْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ﴾ او ښځې خاوندانې د بار ګېډې (بلاربې) عدت د دوی دادی چې كېږدي دوی بار خپل (يعني مولود وزېږوي هغه كه طلاق شوي وي او كه (كونډه) چې مېړه يې مړ شوی وي ﴿وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ يَجْعَل لَّهُۥ مِنْ أَمْرِهِۦ يُسْرًا﴾ او هغه څوک چې له الله ووېرېږي (په اقوالو افعالو كې او ځان وژغوري له حرامو) نو وبه ګرزوي الله كار دده ته آساني (چې د هر خير ښېګڼې لپاره به يې بريالى كړي) ﴿ذَٰلِكَ أَمْرُ ٱللَّهِ

(¹) صاوي په جلالين باندې ۴ /۲۱۵
(²) أخرجه الترمذي
(³) التسهيل ۴ /۱۲۸
(⁴) قرطبي ۱۸ /۱۲۸

أَنزَلَهُۥٓ إِلَيۡكُمۡ ﴾ دا (چي ویل شوي دي) امر حکم د الله دی چي نازل کړی یې دی تاسي ته (ای مؤمنانو ترڅوچي ورباندي عمل وکړی) ﴿ وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ يُكَفِّرۡ عَنۡهُ سَيِّـَٔاتِهِۦ وَيُعۡظِمۡ لَهُۥٓ أَجۡرًا ﴾ او څوک چي له الله وېرېږي ځان ساتي له معاصیو لیري به کړي الله له ده څخه ګناهونه دده او لوی به کړي الله ده لره اجر ثواب (دده) صاوي وایې دغه یې ځکه مکرر راووړچي ښځي ناقصات العقل والدین دي ددوی په امورو کي له منفیانو پرته بل څوک زغم نشي لرلای ([1]) په البحر المحیط کي راوړي چي څرنګه چي کلام د مطلقاتو په هکله وو او دغه طلاق له نفرت او کرکي څخه پېښېږي او ښایي چي مېړه به هغې ته داسي نسبتونه کوي چي دهغې لپاره به پېغور وي نو ځکه یې باربار په تقوی سره امروکړ او د شرط او جزاء په بڼه یې راووړچي ﴿ وَمَن يَتَّقِ ٱللَّهَ يَجۡعَل ... ﴾ ([2]) ﴿ أَسۡكِنُوهُنَّ مِنۡ حَيۡثُ سَكَنتُم مِّن وُجۡدِكُمۡ ﴾ واوسوئ دا (ښځي طلاقي شوي) په هغه ځای کي چي پکي اوسېږی تاسي (سم) له طاقت د تاسي (لکه چي توانېږی که بډایان یاست ښه ځای او نفقه او که فقیران یاست له خپله وسه سره ورسره ګذاره وکړئ). ﴿ وَلَا تُضَآرُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُواْ عَلَيۡهِنَّۚ ﴾ او مه کوئ اراده د ضرر تاسو ددغو (مطلقاتو) چي تنګوی به (ځایونه او نفقې) پر دوی باندي (ترڅو یې وتلو ته اړ باسی) ﴿ وَإِن كُنَّ أُوْلَٰتِ حَمۡلٖ ﴾ او که چېري وي دغه (ښځي) خاوندانی د بار ګېډي (بلاربي) ﴿ فَأَنفِقُواْ عَلَيۡهِنَّ حَتَّىٰ يَضَعۡنَ حَمۡلَهُنَّۚ ﴾ نو نفقه کوئ تاسي پر دوی باندي تر هغه پوري چي کېږدي دوی بار (حمل د ګېډو) خپلو (په زېږېدلو سره د ماشومانو یعني مېړه مکلف دی ترڅو چي دهغې ماشوم زېږي هغې ته نفقه ورکړي که څه هم د زېږېدو نېټه اوږده شي) ﴿ فَإِنۡ أَرۡضَعۡنَ لَكُمۡ ﴾ (او که تی یې ورکاوه دوی (له طلاقه وروسته) اولاد (ستاسو ته) یعني کله چي یې تولد وشي او بیا پدې راضي شي چي هغه ماشوم ته تی ورکړي نو ﴿ فَـَٔاتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ ﴾ (پس ورکړئ تاسي هغوی لره مزدوري دهغوی) یعني په سړي باندي دي چي هغې ته د تي ورکولو اجرت ورکړي ځکه چي د اولاد نسبت پلار ته کېږي. په التسهیل کي راوړي: معنادا چي که دغو مطلقاتو ستاسو اولادونو ته تی ورکاوو بیانو د رضاع اجوره ورکړئ چي هغه عبارت له نفقې او نورو ګردو اړتیاوو څخه دی([3]) ﴿ وَأۡتَمِرُواْ بَيۡنَكُم بِمَعۡرُوفٖۖ ﴾ او مصلحت مشوره کوئ (ای ښځو مېړو !) پخپلو مینځونو کي په معروف نیکي سره) یعني یو بل ته د خیر، د نرمي، احسان او آسانتیا ماربینه کوئ قرطبي لیکي: معنادا چي دیو بل د خبري کله چي د نېکي او احسان خواته موبولي منئ ځیني له معروف څخه دا دي چي پر ته له اجورې تی ورکول دي او ځیني بیا دا چي اجوره دي ورزیاته کړي([4]) ﴿ وَإِن تَعَاسَرۡتُمۡ ﴾ او که سختي وکړی تاسي (په تي ورکولو او اجرت کي) یعني مېړه له هغه اجرت څخه ډډه کوي کوم چي ښځه یې غواړي او یا ښځه وایې چي تردې په لږ اجوره سره تی نه ورکوي ﴿ فَسَتُرۡضِعُ لَهُۥٓ أُخۡرَىٰ ﴾ نو لپاره

---

[1] د صاوي حاشیه ۴/ ۲۱۷
[2] البحر المحیط ۸/ ۲۴۸
[3] التسهیل ۴/ ۱۲۹
[4] القرطبي ۱۸/ ۱۲۹

دتي ورکولودي طلب کړي هغه (مولود) لره بله ښځه، دغه ظاهراً خبر ده خو دامر په معنا ده. ابوحیان لیکي چي په دې کي د مور لپاره باریک غوندي عتاب نغښتی دی لکه چي یو څوک له چاڅخه دیو کار ترسره کېدل غواړي خو هغه سستي کوي نو ورته وایي نژدې ده بل څوک به یې ترسره کړي مقصد یې داوي چي هغه کار به ترسره شي خو ته به ملامت یې (۱) ضحاک رحمه الله وایي که چېري مور ممانعت کاو وچي تی ورکړي نو بیا دي بله ښځه په اجوره ددې کار لپاره وګماري چي تی ورکړي او که ماشوم نه منله (تی یي نه رودل) بیا دي خپله مور په جبري توګه په اجوره باندي تي ورکولو ته وټاکي (۲) ﴿ لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِۦ ﴾ (نفقه دي ورکوي خاوند د طاقت له طاقت شتو خپلو نه) دغه دانفاق داندازې بیان دی یعني مېره دي په خپل مېرمن او په واړه ماشوم د خپل وس په اندازه له طاقت سره سم انفاق کوي په التسهیل کي راغي چي دغه امر پدې دی چي هر څوک د خپل حال سره سم انفاق کوي مېره پدې ندی مکلف چي له وسه پورته بار ورباندي کېښودل شي او نه دي د ښځي حقوق پایمال شي بلکه عادلانه حال دي غوره شي په آیت شریف کی ددې دلیل شته چي نفقه د خلکو له احوالو سره برابر سمه ټاکل کېږي (۳) ﴿ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُۥ ﴾ او هغه چي په تنګ کړشي په ده باندي رزق د هغه (او له کفایت نه کم ﴿ فَلْيُنفِقْ مِمَّآ ءَاتَىٰهُ ٱللَّهُ ﴾ پس نفقه دي کوي له هغه څني چي الله هغه لره ورکړي وي (په اندازه د طاقت د ده ﴿ لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَآ ءَاتَىٰهَا ﴾ نه ورکوي الله تکلیف هیڅ نفس لره مګر خو په هغه اندازه چي الله ورکړی وي هغه لره (له ماله) نو فقیر دا دول نه مکلف کوي لکه بډای غوندي. ابوالسعود لیکي چي: پدې کي د فقیر د زړه د خوښي لپاره یو څه شته او دا چي هغه دي خپل زیار جاري وساتي دغه زېری په دې وینا نور هم تأکید پیدا کوي چي: ﴿ سَيَجْعَلُ ٱللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا ﴾ ژر به ښکاره کړي الله پس له سختي تنګي څخه آساني پراخي. پدې کي د فقیرانو لپاره زېری دی چي الله به د روزي دروازې ورته راخلاصي کړي له دې وروسته الله جل جلاله هغه کسان وېروي چي د الله د حدودو خیال نه ساتي او له احکامو څخه یې غاړه غړوي او د تېرو امتونو مثالونه بیانوي چي ﴿ وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ ﴾ او ډېر وو له کلیو څخه (د تېرو امتونو) ﴿ عَتَتْ عَنْ أَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهِۦ ﴾ چي سرکښي یې کړي وه له حکم د رب خپل او له حکمه د رسولانو د دغه (الله) څخه ﴿ فَحَاسَبْنَٰهَا حِسَابًا شَدِيدًا ﴾ نو حساب به وکړو موږ له هغوی سره حساب سخت یعني هغوی ته موږ دوی په عصیان او طغیان باندي دردناک عذاب ورولید چي لوړه، کاختي او هلاکت وو ﴿ وَعَذَّبْنَٰهَا عَذَابًا نُّكْرًا ﴾ او په عذاب به کړو موږ هغوی په ناآشنا سخت عذاب سره (چي له تصور نه به پورته عذاب وي) ﴿ فَذَاقَتْ وَبَالَ أَمْرِهَا ﴾ نو وڅکله هغوی سزا د کار خپل (چي کفر، طغیان وو) او د الله په احکامو یې

(۱) البحر المحیط ۸/ ۲۸۵
(۲) القرطبي
(۳) التسهیل ۴/ ۱۲۹

تمردکاوو) ﴿ وَكَانَ عَٰقِبَةُ أَمْرِهَا خُسْرًا ﴾ اودی عاقبت آخرد کار ددوی زیان (داسي زیان اوخسران چي ترې پورته بل نشته. اوکله چي ددغو سرغړونکو امتونو حال شو نومؤمنانو ته یې امروکړچي له الله جل جلاله څخه ووېرېږي ترڅو هغه څه ورته ونه رسېږي کوم چي تېرو اُمتونو ته رسېدلي ووفرمايي ﴿ أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ﴾ تيارکړی دی الله هغوی ته عذاب سخت (په آخرت کي چي د جهنم عذاب دی او تل ترتله به وي) ﴿ فَاتَّقُوا اللَّهَ يَٰأُولِي الْأَلْبَٰبِ ﴾ (نو ووېرېږئ له الله څخه وساتئ ای خاوندانو دعقلونو) يعني دی دسالموعقلونو خاوندانو دالله له عذابه، انتقامه اونيولو څخه ځان وساتئ ﴿ الَّذِينَ ءَامَنُوا ﴾ هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو هغو کسانو چي په الله اورسول مو ايمان راوړی ﴿ قَدْ أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا ﴾ په تحقيق نازل کړی دی الله تاسو ته ذکر نصيحت (وحی چي لوستل کېږي اوقرآنکريم دی) ﴿ رَّسُولًا يَتْلُوا عَلَيْكُمْ ءَايَٰتِ اللَّهِ مُبَيِّنَٰتٍ ﴾ رسول (چي محمد دی) لولي پرتاسي باندي آيتونه د الله چي ښکاره ظاهرکونکي دي (داحکامو چي حلال، حرام اوستاسو مايحتاج پکې دي په البحرالمحيط کي ليکي چي: ظاهردادی چي له ذکرڅخه مقصد قرآن دی او له رسول څخه مقصد محمد صلی الله عليه وسلم دی (۱) ﴿ لِّيُخْرِجَ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ مِنَ الظُّلُمَٰتِ إِلَى النُّورِ ﴾ دپاره ددې چي وباسي الله هغه کسان چي ايمان يې راوړی اوکړي يې دي ښه عملونه (متقيان وي) له تيارو (دجهل اوکفر) څخه رڼا (دعلم اوايمان) ته ﴿ وَمَن يُؤْمِن بِاللَّهِ وَيَعْمَلْ صَٰلِحًا يُدْخِلْهُ جَنَّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَٰرُ ﴾ اوهغه چي ايمان راوړي په الله اوکړي ښه عمل نوداخل به کړي (الله) ده لره په جنتونو کي چي بهېږي له لاندي (دمانيوونو) دهغه وياليې (دجنت) ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ﴾ تل به اوسېدونکي وي دوی په هغو کي ابدي همېشه (چي نه به ترې ايستل کېږي اونه به مړه کېږي) ﴿ قَدْ أَحْسَنَ اللَّهُ لَهُۥ رِزْقًا ﴾ په تحقيق ښه ورکړی دی الله هغه ته رزق روزي (په جنت کي اوپراخه کړي يې ده دوی ته ځکه چي دجنت نعمتونه تل ترتله دي انقطاع اوزوال نلري. طبري ليکي: معنادا چي الله په جنت کي ورته روزي پراخه کړي اوداهغه څه دي چي دخوراک څښاک توکي اونورګرد خوند ورشيان چي اوليا وو خپلو ته يې چمتو کړي پکې راځي اوهغه يې دوی ته ښه اوطيب ګرزولي دي په آيت کي د تعجب اوتعظيم معناهم شته چي مؤمن ته يې څومره ثواب ور روزي کړی دی؟ ورپسې الله دخپل قدرت ښنې اودستر جلال اوسلطان داسي يادونه کوي چي ﴿ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ سَبْعَ سَمَٰوَٰتٍ وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ ﴾ الله هغه (ذات) دی چي پيدا کړي يې دي اووه آسمانونه (اوپيدا کړي يې

(۱) ځينو مفسرينو له ذکرڅخه مقصد رسول الله صلی الله عليه وسلم بللی اودليل يې داچي مبدل منه يې داقول دی چي (رسولا يتلو) اودغه رايې ته طبري اوابوالسعود ترجيح ورکړي خوکوم چي موږ يادونه وکړه هغه ترګردواقوالوراجح دی چي مرادله ذکرڅخه قرآن اوله رسول څخه محمد صلی الله عليه وسلم دی اودغه په حذف شوي فعل سره منصوب دی چي تقديريې داسي دی (وارسل رسولا) دغه دابن عطيه اوالبحرالمحيط دمؤلف غوره شوي رايه ده.

دي) له ځمکې څخه په مثل ددې (اووآسمانونواوه ځمکې) يعني الله هغه عظيم اوستر ذات دی چې پخپل قدرت سره يې اووه آسمانونه پورپه پورپيدا کړي او همداسې يې ځمکې يوه دبلې دپاسه پيدا کړي مګر دځمکې ترمينځ د آسمانونو په خلاف جلا والی نشته ﴿ يَتَنَزَّلُ ٱلْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ ﴾ نازلېږي امرحکم (دالله) په مينځ ددغو (آسمانونواو ځمکو) کې ﴿ لِتَعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ (پوهوي مو) ترڅوچې وپوهېږئ تاسو چې بېشکه الله په هرڅېزباندې ښه قادردی) يعني ترڅوتاسې پدې وپوهېږئ چې ځوک ددې شيانو خالق او پيدا کونکی دی هغه په ټولو شيانو ښه قادردی ﴿ وَأَنَّ ٱللَّهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَىْءٍ عِلْمًۢا ﴾ (او پوه شئ) بېشکه چې الله په تحقيق احاطه فرمايلې رسېدلی دی هرشي ته له جهته دعلمه قدرته) يعني ترڅو تاسې پدې وپوهېږئ چې الله په هرڅه عالم دی له هغه څخه هيڅ هم پټ نه دي.

بلاغت:

پدې مبارک سورت کې دبديع اوبيان دوجوهاتولنديزپه لاندې ډول دی:

۱- دطباق صنعت چې: ﴿ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ فَارِقُوهُنَّ ﴾ همداسې ﴿ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا ﴾.

۲- داضمارپه ځای کې اظهارچې تهويل افاده کړي لکه ﴿ وَتِلْكَ حُدُودُ ٱللَّهِ ۚ وَمَن يَتَعَدَّ حُدُودَ ٱللَّهِ ﴾.

۳- التفات چې دزيات اهتمام ښکاره کندوی شي لکه داچې ﴿ لَا تَدْرِى لَعَلَّ ٱللَّهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَٰلِكَ أَمْرًا ﴾ دلته خطاب راغلی اصل داوو چې دغائب په صيغه يادشوی او(لايدري) راغلی وای.

۴- ايجاز بالحذف لکه ﴿ وَٱلَّٰٓـِٔى لَمْ يَحِضْنَ ۚ ﴾ خبرترې حذف شوي يعني (فعدتهن ثلاثة أشهر ايضا) يې محذوف دی.

۵- دوعيد تکرار دوېروني اوفظاعت لپاره لکه داچې فرمايي ﴿ فَحَاسَبْنَٰهَا حِسَابًا شَدِيدًا وَعَذَّبْنَٰهَا عَذَابًا نُّكْرًا فَذَاقَتْ وَبَالَ أَمْرِهَا ﴾ دآيت ترپايه پورې

۶- مرسل مجاز ﴿ وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ ﴾ ډير له کليو چې مرادترې کليوال دي اودغه تسميه دحال په نوم دمحل دی ځکه چې قريه ياده شوې اومقصد دقريو اوسېدونکې دي.

۷-لطیفه استعاره چي فرمايي ﴿ لِّيُخْرِجَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ مِنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ ﴾ دلته يې ظلمات دکفراوضلالت څخه اونور له هدايت او ايمان څخه استعاره کړاودغه دقرآن کريم دلوړ تعبيراوښکلي بيان يوه نمونه ده.

۸-مرصع سجع چي لکه ملغلري او یاقوت ځلېږي ﴿ قَدْ جَعَلَ ٱللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا ﴾ ﴿ يَجْعَل لَّهُۥ مِنْ أَمْرِهِۦ يُسْرًا ﴾ ﴿ وَيُعْظِمْ لَهُۥٓ أَجْرًا ﴾ ﴿ وَكَانَ عَٰقِبَةُ أَمْرِهَا خُسْرًا ﴾ اودغه له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

يادونه:

دعلماء کرامو ترمينځ پدې کي اختلاف نشته چي آسمانونه اوه دي خو دځمکي په هکله اختلاف شته چاويلي چي هغه هم اوه دي چي دآيت ظاهريې ښکارندوی دی او په صحيح حديث کي راځي: څوک چي يوه لوېښت ځمکه غصب او په ظلم ونيسي نواوه سره ځمکي به يې دغاړي طوق شي اوڅوک بيا وايي: چي ځمکه يوه ده اومماثلت په عدد کي مرادنه دی بلکه په پيدا ينښت او ابداع کي يې مثل بلل شوي خولومړی ويناظهراوښه څرګنده ده والله اعلم.

دالله جل جلاله په مرسته دالطلاق سورت دتفسيرژباړه بشپړه شوه.

***

## دالتحريم سورت مدني اودوولس آيتونه لري.

دسورت په وړاندي:

التحريم مدني سورت اوتشريعي احكام بيانوي اودلته دنبوت دكورنۍ سره اړوند پېښي څېړي دأمهات المؤمنين دپيغمبرﷺ دازواج مطهراتوپه اړوند خبري كوي اودمسلماني كورنۍ اونېكمرغه ټولني درشل جوړوي

سورت په پيل كي درسول الله ﷺ هغه پېښه بيانوي چي خپلي مينځي (ماريه قبطيه) يي پرځان حرامه اودهغې له معاشرت څخه يې دځينونورو زوجاتورضى الله عنهن دخوښي ترلاسه كولولپاره ممانعت وكړ نويونرم اوباريک عتاب نازل شوچي دالله جل جلاله خپل بنده اورسول ته دعنايت او پاملرني څخه ډک دی او ورته وايې ولي هغه پراخي چي الله درباندي پېرزو كړي په ځان تنگوي ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكَۖ تَبۡتَغِي مَرۡضَاتَ أَزۡوَٰجِكَۚ ...﴾ دآيت ترپايه

وروسته يو ډېرمهم اوخطرناک كارراخلي چي هغه دمېرمني اوخاوندترمينځ درازلوڅول دي هغه چي كورنۍ تهديدوي اودلته په رسول الله ﷺ مثال راوړي چي كله يې حضرت حفصې رضى الله عنهاته يوراز وويل او ورته ويل يې چي چاته مه وايه مگرهغې رضى الله عنهابياحضرت عائشي ﷺ ته هغه راز افشاء كړاوبياشهرت ته ورسېدوچي رسول الله يې په قهركړاوآن تردې چي قصديې وكړځيني مېرمني طلا قى كړي ﴿وَإِذۡ أَسَرَّ ٱلنَّبِيُّ إِلَىٰ بَعۡضِ أَزۡوَٰجِهِۦ حَدِيثٗا ...﴾ دآيت ترپايه

سورت درسول الله ﷺ په زوجاتوسخت بريدكوي چي خوراناڅېزه خبري وي دوی ديوې اوبلي دغيرت له مخي سيالى كوى چي بيايې تر مينځ داسې پيښې شول اودوی تهديدوي چي رسول الله ته به الله جل جلاله تردوی-ښې نوري مېرمني وركړي اوپدې كي درسول الله صلى الله عليه وسلم ملاتراعلانوي فرمايي ﴿عَسَىٰ رَبُّهُۥٓ إِن طَلَّقَكُنَّ أَن يُبۡدِلَهُۥٓ أَزۡوَٰجًا خَيۡرٗا مِّنكُنَّ مُسۡلِمَٰتٖ مُّؤۡمِنَٰتٖ قَٰنِتَٰتٖ تَٰٓئِبَٰتٍ ...﴾ دآيت ترپايه

په پای كي سورت دوه مثالونه راوړي چي يودكافري مېرمني مثال دی چي دمؤمن مسلمان اوصالح سړي په عصمت كي وه اوبل مثال دمسلماني مؤمني ښځي چي دكافرفاجرپه نكاح كي وه ترڅوچي بندگان تنبيه كړي چي په آخرت كي هلته چي خپل عمل يې ښه نه وي هيڅوک له بل چاڅخه بارنشي سپكولای اونه هم حسب نسب گټه ورته رسوي ﴿ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلٗا لِّلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱمۡرَأَتَ نُوحٖ وَٱمۡرَأَتَ لُوطٖۖ كَانَتَا تَحۡتَ عَبۡدَيۡنِ مِنۡ عِبَادِنَا صَٰلِحَيۡنِ فَخَانَتَاهُمَا﴾ (يعني ايمان يې رانه ووړ) ﴿فَلَمۡ يُغۡنِيَا عَنۡهُمَا مِنَ ٱللَّهِ شَيۡـٔٗا وَقِيلَ ٱدۡخُلَا ٱلنَّارَ مَعَ ٱلدَّٰخِلِينَ وَضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلٗا لِّلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱمۡرَأَتَ فِرۡعَوۡنَ إِذۡ قَالَتۡ رَبِّ ٱبۡنِ لِي عِندَكَ بَيۡتٗا فِي ٱلۡجَنَّةِ وَنَجِّنِي مِن فِرۡعَوۡنَ وَعَمَلِهِۦ وَنَجِّنِي مِنَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ چي دغه خورابنايسته بشپړتوب اودسورت له ښې سره ښېخي مناسب دی چي مقصديې دفضيلت اوايمان بنسټونه ټينگول دي

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ (١) قَدْ فَرَضَ اللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ وَاللَّهُ
مَوْلَاكُمْ وَهُوَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ (٢) وَإِذْ أَسَرَّ النَّبِيُّ إِلَىٰ بَعْضِ أَزْوَاجِهِ حَدِيثًا فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِ وَأَظْهَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهُ وَأَعْرَضَ
عَنْ بَعْضٍ فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِ قَالَتْ مَنْ أَنْبَأَكَ هَٰذَا قَالَ نَبَّأَنِيَ الْعَلِيمُ الْخَبِيرُ (٣) إِنْ تَتُوبَا إِلَى اللَّهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا وَإِنْ
تَظَاهَرَا عَلَيْهِ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ مَوْلَاهُ وَجِبْرِيلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمَلَائِكَةُ بَعْدَ ذَٰلِكَ ظَهِيرٌ (٤) عَسَىٰ رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ
أَنْ يُبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِنْكُنَّ مُسْلِمَاتٍ مُؤْمِنَاتٍ قَانِتَاتٍ تَائِبَاتٍ عَابِدَاتٍ سَائِحَاتٍ ثَيِّبَاتٍ وَأَبْكَارًا (٥) يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا
أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا
يُؤْمَرُونَ (٦) يَا أَيُّهَا الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ (٧) يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللَّهِ
تَوْبَةً نَصُوحًا عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَنْ يُكَفِّرَ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ يَوْمَ لَا يُخْزِي
اللَّهُ النَّبِيَّ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ نُورُهُمْ يَسْعَىٰ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَتْمِمْ لَنَا نُورَنَا وَاغْفِرْ لَنَا إِنَّكَ عَلَىٰ
كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (٨) يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ
(٩) ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِلَّذِينَ كَفَرُوا امْرَأَتَ نُوحٍ وَامْرَأَتَ لُوطٍ كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ
فَخَانَتَاهُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْهُمَا مِنَ اللَّهِ شَيْئًا وَقِيلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدَّاخِلِينَ (١٠) وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا لِلَّذِينَ
آمَنُوا امْرَأَتَ فِرْعَوْنَ إِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِي عِنْدَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ وَنَجِّنِي مِنْ فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهِ وَنَجِّنِي مِنَ الْقَوْمِ
الظَّالِمِينَ (١١) وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيهِ مِنْ رُوحِنَا وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا
وَكُتُبِهِ وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ (١٢) ﴾ التحريم: ١ ـ ١٢

### لغتونه:

(تحلة) دقسم کفاره اداکول (صغت) له حق څخه مائل شول کله چي وويل شي: (أصغى الإناء) يعني لوښى يې کوږکړ (قانتات) له قنوت څخه اخيستل شوى يعني مطيعات تل ترتله له خشوع سره طاعت کونکي ښځي (نصوحا) خالصه اوربښتوني (نصوحا) توبه هغي ته وايې چي بيا راګرزېدل پکي نه وي څکه يې نصوحا، بولي چي رښتنولي او اخلاص پکي شته ويل کېږي (هذا عسل ناصح) يعني دغه پاک ستره شات دي چي شمع پکي نشته[1] (اغلظ) له غلظت څخه او هغه شدت ته وايې (احصنت) ځان يې له فحاشي څخه وژغوره.

---

(١) القرطبي ١٨/١٩٩

### دنزول سبب:

أ - روايت شوی چي رسول الله ﷺ به دخپلو مېرمنو ترمينځ په وېش اوقسم عمل کاووکله چي د حفصې رضی الله عنهاوارووهغې له رسول الله څخه دخپل موراوپلار دليدلو لپاره اجازه وغوښته رسول الله هم اجازه ورکړه اوماريه قبطيه يې راوغوښتله اودحضرت حفصې په کورکي يې ورسره کور والی وکړ... حضرت حفصه چي راغله حضرت ماريه يې پخپل کورکي وليدله اوسخت غيرت ورته و درېدو اوويې ويل چي تازماپه غياب کي هغه زماکورته راوبلله اوزماپه بسترکي دي ورسره معاشرت وکړداخوماته داسي معلومېږي چي زه درته ګرانه نه يم نورسول الله ﷺ ورته وويل: هغه مي په ځان نوره حرامه ده بل چاته مه وايه کله چي رسول الله ﷺ بهرراووت نوهغې هغه دېوال چي ددې او حضرت عائشې رضي الله عنها ترمينځ وو- وټکاوو اوهغه درسول الله ﷺ رازېې ورته ووايورسول الله ﷺ ته قهر ورغی اوپه غضب شوسوګند يې واخيست چي تريوې مياشتي پوري به خپلو مېرمنوته ورنشي اوله هغوی څخه ګوښه شونو الله جل جلاله داآيت نازل کړچي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكَ ۖ تَبْتَغِى مَرْضَاتَ أَزْوَٰجِكَ ﴾ دآيت ترپايه[1].

ب-اوروايت شوی چي رسول الله ﷺ به دحضرت أم المؤمنين حضرت زينب رضی الله عنهاکره چي کله ورغی هغې به شات (عسل) ورڅښول نوحضرت عائشې اوحضرت حفصې رضی الله عنهمايوبل ته سر ه وويل: کله چي زموږکره راشي موږبه په اتفاق ورته ووايوچي تا(مغافير) څښلي (مغافيرخوارږه مائعات دي چي ښه بوی نلري) نوکله چي رسول الله دحضرت حفصې رضي الله عنها کورته ورغی هغې ورته دغسي وويل اوبياچي دحضرت عائشې رضي الله عنها کره ورغی هغې هم ورته دغسي وويل: اورسول الله ﷺ دانه خوښوله چي بدبوی څني پورته شي نو ويې ويل: نه بلکه مادزينبي کره عسل څښلي اوبيابه يې له سره ونه څښم اوقسم يې يادکړ، بيادا آيت نازل شوچي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكَ ۖ تَبْتَغِى مَرْضَاتَ أَزْوَٰجِكَ ﴾ [2].

---

[1] الطبري ۲۸/ ۱۰۱

[2] لومړی روايت دمفسرينوپه نزددشان نزول په هکله خورامشهوردی هغه داچي رسول الله صلی الله عليه وسلم حضرت ماريه په ځان حرامه کړه دغه روايت دارقطني له ابن عباس رضی الله عنه څخه راوړی دی اودوهم روايت په بخاري اومسلم کي تردې زيات اوږدراغلی اوترلومړني يې اسنادأصح دی خوداچي دنزول سبب وبلل شي دغه ليري خبره ده اوهغه چي لومړني روايت ته ترجيح ورکوي خوشيان دي يوداچي تحريم دخينوښځولپاره دمرضي دنوروښخودی نه څښل دعسلو او يانه څښلودهغودوهم داچي انزال دسورت پداسي اهتمام چي پکي درسول الله دمبارکوزوجاتولپاره په طلاق باندي تهديداووعيدشته چي ددوی په بدل کي به الله ورته نوري تردوی بهتري اوښې ښځي ورکړي اوداچي الله ملائکي اوصالح مؤمنان درسول الله مرستندوی دي داپدې دلالت کوي چي دأمهات المؤمنين ترمينځ تنافس موجودوو يوله بله يې سيالی کېده اوغيرت يې درلودچي رسول الله ته يې تکليف ورساوو آن تردې چي ځيني مينځي يې په ځان حرامي کړې چي دوی خوښي شي اوله هغوی څخه يې رازېټ ساتل غوښتل مګرهغوی ښکاره کړدغه دترجيح سبب دی ابن کثيرهم وايې چي دشاتوڅښل دنزول دسبب لپاره دپوښتني وړدی. والله أعلم

تفسير:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكَۖ تَبۡتَغِي مَرۡضَاتَ أَزۡوَٰجِكَۚ﴾ اى نبي ولې حراموې ته چې حلال کړي دي الله تاته ، غواړې ته (پدې حرامولوسره) خوښي دښځوخپلو؛ خطاب دنبوت په لفظ سره دتعظيم او توقيرڅرګندونکی دی چې رسول الله دلوړاوچت مقام ښودنه کوي هغه يې پخپل نامه يادنکړلکه چې نورانبياء عليهم السلام يې يادکړي چې (ياابراهيم ، يانوح ، ياعيسی بن مريم) بلکه دنبوت او رسالت په لفظ يې ورته خطاب کړی اودغه خوراستردليل اوبرهان دی چې هغه عليه افضل الصلوة والتسليم ترګردوانبياوواومرسلينوغوره اوبهتردی دآيت معناداچې ای هغه ذاته چې له آسمانه ورته حضرت جبريل امين عليه السلام وحی راوړي ولې ځان له هغه څه منع کوې کوم چې الله جل جلاله تاته له مېرمنوڅخه رواکړي دي؟ مفسرين کرام وايې چې : رسول الله دخپلې (أم ولد ) حضرت ماريه سره د حفصې رضی الله عنهاپه کورکي خلوت کړی اوحضرت حفصه ورباندي خبره شوه نورسول الله حضرت حفصې ته وويل چې: دغه خبره چاته مکوه هغه مي نوره په ځان حرامه کړه نوآيت شريف نازل شوچې ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكَۖ تَبۡتَغِي مَرۡضَاتَ أَزۡوَٰجِكَۚ﴾ دخطاب په پيل کي داسي ښکاره حسن تلطف شته چې انکارترې نشي کېدای ځکه چې هغه ته يې په دې عتاب وفرمايوچې په ځان باندي تکليف او ستوماني راولې چې دمېرمنورضايت وګټی لکه چې ورته وايې دمېرمنولپاره دي ځان مه کړوه ستا مېرمني ستادخوښي لپاره زيارباسي نو ته له دغه تکليف څخه ځان هوساکړه! ﴿تَبۡتَغِي مَرۡضَاتَ أَزۡوَٰجِكَۚ﴾غواړې ته (پدې حلالوحراملو سره) خوښي دښځو خپلو؟ په التسهيل کي ليکي يعني په حراملود(ماريه قبطيهِ رضی الله عنها ) سره خوښي دحفصې رضی الله عنهاغواړې اوداهم پدې دلالت کوي چې دمينځي دحراملوپه هکله آيت نازل شوی دی اوهغه چې دشاتوتحريم دی په هغه کي د ښځودخوښي مقصدنه بلکه دناخوښه بوی درلودلوله کبله يې پرې ايښی وو(۱). ﴿وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ﴾ او الله ښښونکی دی (ستاقسم لره دستر رحمت خاونددی چې ته يې د(مارېې قبطيې) څخه په امتناع کولو وبښلې اودرحمت له مخي يې درته عتاب وکړاوپدې کي دااشاره شته چې پدې هکله ورته عتاب دده دکرامت اوعزت لپاره دی چې ده پرځان باندي هغه څه نارواکړي اوترې منع يې کوله کوم چې دده لپاره په هغه کي انس الفت اومينه وه. زمخشري پرځایَ نه دي ويلي چې دغه درسول الله ﷺ څخه ښوئېدل ګڼلي چې دالله حلال يې پرځان حرام ګرزولي وو... ځکه دغه خبره دنبوت له مقام سره بې ادبي ده او همداسي دمعصوم دصفاتوپه هکله ناپوهي بلل کېږي ځکه درسول الله له لوري دحلال څېزتحريم نه وو لکه چې زمخشري ګمان کوي ترڅو چې هغه مخالفت اومعصيت وګڼل شي بلکه له ځينومينځوڅخه يې دځينوازواجودخاطردخوښي لپاره ممانعت وکړ نوالله ورته دنرمي عتاب راواستاوواودده دلوړ مقام اوقدرتنويه يې وفرمايله دده دمنصب اورتبې اجلال اوسترتوب يې څرګندکړچې هغه دخپلو مېرمنودخوښي په خاطرپه ځان سختي مني اودغه دالله جل جلاله له لوري تل ترتله دلطف ورباندي

(۱) وګوره سبب دنزول

پېرزوينه ده ﴿ قَدْ فَرَضَ ٱللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَـٰنِكُمْ ﴾ په تحقيق مقرر کړی دی الله تاسي ته حلال والی د قسمونو ستاسو(په کفارت سره) ﴿ وَٱللَّهُ مَوْلَىٰكُمْ ﴾ اوالله دوست مولامددګارستاسي دی ﴿ وَهُوَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ اوهمدغه (الله)ښه عالم دانا(پرمخلوق دی ښه حکمت والادی (په صنعت خپل کي نونه امر کوي اونه نهی مګرهغه څه چي دده د حکمت اومصلحت غوښتنه وي ، له دې وروسته الله جل جلاله هغه کيسه بيانوي کومه چي رسول الله ته دځينومېرمنوسره ورپېښه شوي وه فرمايي ﴿ وَإِذْ أَسَرَّ ٱلنَّبِيُّ إِلَىٰ بَعْضِ أَزْوَٰجِهِۦ حَدِيثًا ﴾ کله چي پټ رازووايونبي پيغمبرښځوخپلوته يوه خبره (چي تحريم د(مارېي قبطيې وو) يعني په يادکړه هغه وخت چي پيغمبرعليه السلام خپلی مېرمني حضرت حفصې ته يوه خبره وويله اوغوښتنه يې ترې وکړه چي چاته دي ونه وايې، ابن عباس وايي: دغه خبره هغه ده چي حضرت حفصې ته يې وويله چي حضرت ماريه يې په ځان حرامه کړې ده لکه چي ورته يې وويل له ده وروسته خلافت به دابوبکر اوعمررضی الله عنهماوي[1]ورته يې وويل چي داخبره به هيچاته نه کوي ﴿ فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِۦ ﴾ نوکله چي خبرورکړی هغې (حفصې) په دې (خبري) سره (عائشې)ته ﴿ وَأَظْهَرَهُ ٱللَّهُ عَلَيْهِ ﴾ اوښکاره کړه (الله) هغه خبره پردغه (خپل نبي) باندي (په واسطه دجبريل عليه السلام چي حفصې سِرافشاء کړ) ﴿ عَرَّفَ بَعْضَهُۥ وَأَعْرَضَ عَنۢ بَعْضٍ ﴾ نوور وپېژندله (نبي حفصې ته) له ځينوهغو (خبرو) اواعراض يې وکړله ځينوڅخه (چي په ټولويې دحياء اوکرم له مخي ونه پوهوله چي د فضلاوو دود دستور داوي چي دخلګوله ښوئېدلواوزلاتوڅخه اغماض کوي اوپه ملامتيااوعتاب کي تساهل فرمايي، حسن بصري رحمه الله وايي عزتمن خلګ هيڅکله هم ملامت کسان يومخ ايزه نه لوڅوي او سفيان رحمه الله وايي چي تغافل تل دکرام الناس خلګوعادت وي ، خازن ليکي معناداچي رسول الله حفصې ته هغه خبره وکړه کومه چي هغې حضرت عائشې رضی الله عنهاته کړې وه چي د(ماريه قبطيه) تحريم وواوله هغې بلي څخه يې څنګ وکړکوم چي دخلافت په هکله يادونه وه ځکه نه يې خوښوله چي داخبره دخلګوترمينځ خپره شي (٢)﴿ فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِۦ ﴾ نوکله چي خبرورکړ(نبي حفصې ته) په هغه (راز افشاء کولودده) ﴿ قَالَتْ مَنْ أَنۢبَأَكَ هَـٰذَا ﴾ وويل دې(حفصې) چاخبرکړې ته پدې باندې ؟ !ابوحيان وايي حفصې رضی الله عنهاداسي ګمان کاووچي حضرت عائشې رضی الله عنهابه ورته ويلي وي او دې خوهغې ته ويلي ووچي چاته مه وايه خودادی چي دا(حفصه) يې رسوااکړه داچي پوښتنه يې وکړه چاخبردرکړدې لپاره چي ځان ته معلومات ترلاسه کړي اوکله چي رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل: چي الله جل وعلاخبر راکړنوپته خوله اوتسليم شوه ﴿ قَالَ نَبَّأَنِىَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْخَبِيرُ ﴾ وويل (نبي) خبر کړی يم زه ښه عالم داناښه خبردار په

---

(١) امام رازي ليکي چي: حضرت رسول الله د حضرت حفصې په تنده کي دغيرت نښي وليدلې نو ويې غوښتل چي هغه خوښه او راضي کړي بيادوه څېزونه يې پټ رازونه ورته وويل يو داچي مينځه يې په ځان حرامه کړې اوبل يې دازېری ورکړچي له ده وروسته به خلافت دابوبکراوعمررضی الله عنهماوي. کبيرتفسير ٣٠/ ٤٣ اوورته يې وويل چي: دغه به هيچاته نه وايې.

(٢) خازن ٤/ ١١٧

اسرارودکائناتوچې هیڅ شی هم ورڅخه پټ نه دی ﴿ إِن تَتُوبَآ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ که توبه وباسی تاسې دواړه (ای بیبیانو) (حضرت حفصې اوعائشې) الله ته (داستاسو لپاره غوره دی ) خطاب هغوی ته دالتفات په توګه شوی ترڅوپه عتاب کې أبلغ وي اودهغه تکلیف او څور چې سیدالانبیآء ته یې رسولی توبې ایستلوته یې وهڅوې ځواب یې محذوف اوهغه داچې که تاسو نبي علیه السلام ته په تکلیف رسولوکې له یوبل سره دمرستې کولو څخه توبه وباسی داستاسو لپاره بهتراوغوره دی ﴿ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا ﴾ نوپه تحقیق کاږه شوي دي زړونه ستاسې دواړو(له هغه لازم اخلاص درسول الله پرتاسوچې تاسوباید. محبت وکړي دهغه چې رسول الله یې مینه لري اونفرت وکړي دهغه چې رسول الله یې نه خوښوي (۱)﴿ وَإِن تَظَٰهَرَا عَلَيْهِ ﴾ اوکه مرستې وکړی تاسې دواړه یوله بلې سره (په ضرردغه نبي باندې چې دده اونوروزوجاتوترمینځ خنداچوی) ﴿ فَإِنَّ ٱللَّهَ هُوَ مَوْلَىٰهُ ﴾ نوبېشکه الله همغه مددګاردی دهغه (نبي چې ستاسوله یوبلې سره مرسته کول ورته ضررنشي رسولای) ﴿ وَجِبْرِيلُ وَصَٰلِحُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ اوجبریل اوصالح دمؤمنانو(یې هم مددګاران دي. ابن عباس رضی الله عنه وایې چې مقصدیې له صالح دمؤمنانوڅخه ابوبکراوعمردي ځکه چې هغوی درسول الله صلی الله علیه وسلم مرستندویان وو پردوی دواړو(عائشې اوحفصې) باندې په التسهیل کې راوړي: معناداچې که تاسې دواړه یوله بله پیغمبرته په زیات غیرت ځرګندولواودهغه په رازونولوڅولوسره مرسته کوی او هغه ته تکلیف رسوی نوالله دهغه صلی الله علیه وسلم مرسته کوي اوهغه یې مددګاردی. په صحیح حدیث کې راځي: کله چې داپېښه مینځ ته راغله نوحضرت عمررضی الله عنه رسول الله ته راغی او ورته ویل یې ای دالله استازې دښځوچارې دې په تاسختې نه شي که ته یې طلاق کړې الله له تاسره ملګری دی پرښتې اوجبریل دې مرسته کوي اوابوبکراوعمردرسره دي نوآیت شریف دحضرت عمرله وینا سره سم جوخت نازل شو(۲)﴿ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذَٰلِكَ ظَهِيرٌ ﴾ (اوملائکې یې هم وروسته له دې مدد ګاراني دي) یعني دالله ،جبریل اوصالح مؤمنانوله حضورڅخه وروسته پرښتې هم درسول الله کومکیاني دي نوڅوک چې دغه ټول یې مرستندویان وي ددوی په وړاندې ددوومېرمنویوله بلې سره مرسته څه کته لري؟ اوداچې (جبریل) یې یوازې یادکړچې تعظیم یې وشي اوهغه رتبه چې دالله په نزدیې لري ځرګنده شي نوبه هغه دوه ځله یادشوی وي یوځل یوازې اودوهم واردعام لفظ په ترڅ کې او داچې ﴿ وَصَٰلِحُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ یې دجبریل اوپرښتوترمینځ راوړل چې ددوی تشریف وښیي اود صلحیت بهترې په ګوته کړي اوپه پای کې چې یې دملائکویاد راووړچې دنبي علیه السلام مرستندویان دي ځکه چې هغوی ترګردومخلوقاتوسترډي اوکله چې درسول الله مددګاران شي نولکه چې خوراغښتلي لښکري هغه چې ښېدیاوي یې په سراخیستې وي اودرسول الله مرستې ته رادرومي نوبیاڅوک کولای شي چې دغه پیغمبرعلیه السلام

(۱) دابوالسعودتفسیر ۵ /۱۷۴
(۲) التسهیل ۴ /۱۳۱

وخوروي ؟!(١) وريښې الله د پیغمبر بیبیانې پدې ویناوېروي ﴿ عَسَىٰ رَبُّهُۥٓ إِن طَلَّقَكُنَّ أَن يُبْدِلَهُۥٓ أَزْوَٰجًا خَيْرًا مِّنكُنَّ ﴾ نږدې دی (او قادر دی) رب د دغه (نبي) که چېرې طلاق در کړي تاسې ته نو لوته پدې چې بدل ورکړي ده لره نوري ښځې بهترې له تاسې څخه (په سېرت او صورت کې) مفسرین کرام وایي چې (عسی) دالله په کلام کې د حق او واجب په معنا دی یعني دا په الله واجب دي که تاسو ته پیغمبر طلاق درکړي چې هغه ته به ستاسو په بدل کې تر تاسو غوره ښځې او افضلې مېرمنې ورکوي قرطبي لیکي: دغه دالله له لوري له پیغمبر علیه السلام سره وعده او ژمنه ده که چېرې دغه ښځې په دنیاکې طلاقې کړي چې تردوی ښې اوغوره به په نکاح ورکوي، او الله پدې عالم دی چې نه یې طلاقوي خو دخپل قدرت اخبار کوي او هغوی وېروي (٢) وریښې الله د هغو مېرمنو چې د دوی په بدل کې به وي وتلې صفات داسې ستایي ﴿ مُسْلِمَٰتٍ مُّؤْمِنَٰتٍ قَٰنِتَٰتٍ تَٰٓئِبَٰتٍ ﴾ حکم منونکې (دالله او رسول حکمونو ته غاړه ایښودونکې ) مؤمنانې (په الله او پیغمبر باور کونکې) لمونځ کونکې (د اوامرو اطاعت کونکې) توبه ایستونکې (له گناهونو چې اصرار به ورباندې نه کوي) ﴿ عَٰبِدَٰتٍ ﴾ عبادت کونکې (الله لره په زیات عبادت سره چې د زړه له اخلاصه به وي او د دوی به دغه خوی خاصیت وي ﴿ سَٰٓئِحَٰتٍ ﴾ هجرت کونکې (الله او رسول ته (٣) روژه نیونکې ﴿ ثَيِّبَٰتٍ وَأَبْكَارًا ﴾ کونډې او پېغلې. ابن کثیر وایي چې په دوو ډولونو یې وېشلې او دغه نفس ته ښه خوندور کونکی اېسې څکه چې تنوع نفس خوښوي او دا چې دعطف واو یې دلته راوړ ﴿ ثَيِّبَٰتٍ وَأَبْكَارًا ﴾ چې تنویع او تقسیم افاده کړي او که واو نه وای معنا به گډوډه شوي وای څکه کونډتون او پېغلتوب سره نه یوځای کېږي او دغه د قرآنکریم سراوارزدی باید ورته غور او فکر وشي کله چې یې د پیغمبر بیبیانو ته وعظ وکړ ور پسې یې عام نصیحت د عامو مؤمنانو لپاره داسې ابلاغ کړ ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ قُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا ﴾ ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو) وساتئ تاسې ځانونه خپل او کورکهول خپل له اورڅخه په طاعت د الله او ترک د معاصیو او تادیب تعلیم د دوی سره. مجاهد وایي معنا دا چې له الله وو ېرېږئ او کورکهول ته د تقوی مارېښنه او توصیه وکړئ، خازن لیکي: یعني هغوی ته د خیر حکم ورکړئ او له شر څخه یې منع کړئ او هغوی ته علم ادب وروښیئ تر څو چې له اورڅخه یې

---

(١) بې له شکه چې دا کلام د مبالغې د پاره راوړل شوی چې فرمایي ﴿ وَإِن تَظَٰهَرَا عَلَيْهِ فَإِنَّ ٱللَّهَ هُوَ مَوْلَىٰهُ وَجِبْرِيلُ وَصَٰلِحُ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ او که نه یوازې الله مرستندوی او مددگار بس دی.

(٢) د قرطبي تفسیر ١٨/١٩٣

(٣) ابن عباس وایي چې (سائحات) معنا روژه نیونکې او دلیل یې دا ویلی چې په حدیث کې راغلي: ددې امت سیاحت روژه ده او زید بن اسلم وایي (سائحات) معنا هجرت کونکې او د الله دا قول یې تلاوت کړ ﴿ ٱلتَّٰٓئِبُونَ ٱلْعَٰبِدُونَ ٱلْحَٰمِدُونَ ٱلسَّٰٓئِحُونَ ﴾ التوبة: ١١٢ یعني هجرت کونکي ښایي دغه وروستی معنا غوره وي څکه چې د غه د سیاحت له لغوي معنا سره هم اړخ لگوي کوم چې په ځمکه کې د عبرت لپاره سفر کولو ته وایي ابن کثیر لومړۍ معنا اخیستې والله أعلم.

رساتي(¹)اومقصدله (اهل) څخه ښځي او ماشومان اود دوی اړوندکسان دي ﴿ وَقُودُهَا ٱلنَّاسُ وَٱلْحِجَارَةُ ﴾ (داسي اور) چي خس اوخاشاک بې خلگ اوتېږي دي مفسرين كرام وايي چي: مرادله ډبروڅخه گوگردي ځکه هغه تر گردوشيانوژراوسخت اور اخيستونکي دي يعني دغه اورخوراسخت دی ددنيادااورپه شان نه دی چي يوازي په خسو بلېږي ، ابن مسعود رضی الله عنه وايي چي: هغه ازوغه اوحطب چي ورغورځول کېږي هغه به بنيادمان اودگوگړو ډبري وي چي ترمرداروبه يې لابدبوی خي(²)﴿ عَلَيْهَا مَلَٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ ﴾ په دې اورباندي مقرري دي پرښتې کلک زړونه قوتناکي زبردستي) چي پرچازړه سوی نلري اود کفارودتعذيب لپاره ټاکلي شوي دي قرطبي ليکي چي مرادپه پرښتوسره(زبانية) دي چي سخت زړونه لري اوچي مجرمان ورڅخه رحم غواړيورباندي نه رحمېږي ځکه دوی له غضب څخه پيداشوي اود خلگوعذاب بې داسي خوښ دی لکه دانسانانوچي خوراک ښاک خوښ وي(³)﴿ لَّا يَعْصُونَ ٱللَّهَ مَآ أَمَرَهُمْ ﴾ نه کوي نافرماني (دغه پرښتې په هيڅ حال کي) له الله څخه (هغه څه چي امربې کړی دی دوی ته ﴿ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ﴾ اوکوي دوی هغه کارچي پرې ماموري وي (دالله له لوري بې له کوم ځنډ او تاخيره ، له دې وروسته هغه څه فرمايي کوم چي کفاروته به ددوزخ دننوتونلوپه وخت کي ويل کېږي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَا تَعْتَذِرُوا۟ ٱلْيَوْمَ ﴾ ای هغوکسانوچي کافران شوي یاست (يعني ای کافرانو ) عذرمه کوئ تاسي نن ورځ (له گناهونوخپلوځکه چي گټه نه رسوي اونه منل کېږي له دې امله چي تاسي ته مخکي انذاردرکول شوی وو ﴿ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ بېشکه همداخبره ده چي بدلِ جزابه درکړ شي تاسي ته دهغه څه چي وی تاسي چي کول به مو ، په دنياکي له بدواعمالوڅخه پرتاسوبه هيڅ ظلم ونکړی شي لکه چي الله فرمايي ﴿ ٱلْيَوْمَ تُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ لَا ظُلْمَ ٱلْيَوْمَ إِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ ﴾ وروسته الله جل جلاله مؤمنان رښتوني داخلاص توبې ته رابولي فرمايي: ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ تُوبُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا ﴾ ای هغوکسانوچي ايمان بې راوړی دی (ای مؤمنانو) توبه وباسئ تاسي الله ته توبه خالصه رښتيادزړه له کومي . له ابن عمررضی الله عنه څخه دنصوحاتوبې په هکله پوښتنه وشوه په خوابِ کي يې ابن عمروويل چي داهغه توبه ده چي بيرته راگرزبدل پکي نه وي لکه شيدې چي بيرته غولانځي ته نه راگرزي ( )علماء کرام وايي د نصوح توبه هغه توبه ده چي درې شرطونه پکي راشي يوداچي له گناه لاس واخلي، دوهم داچي په تېرباندي پښېمانه شي ، دريم داچي بيابه ورته نه راگرزي اوکه دانسانانوپه حقوقوتېری ځيني شوی وو څلورم شرط به هم ترسره کړي هغه داچي دهغوی حقوق به بيرته ورته وسپاري ﴿ عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُكَفِّرَ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ ﴾

---

(¹) خازن ۴/ ۱۳۱

(²) دابن کثير مختصر ۳ / ۵۲۳

(³) قرطبي ۱۸ / ۱۹۶

اميدى چي رب ستاسي به ورژوي له تاسي څخه ګناهونه ستاسي (او دربانديٍ به ورحمېږي مفسرين كرام وايي (عسى) چي د الله په قول كي راشي وجوب بې معنادى اودغه دالله له لوري دوى ته تمه (طمع) وركوي) چي ددوى توبه به په فضل اوكرم خپل سره ومني څكه عظيم اوستر ذات چي كله وعده وكړي وربانديٍ وفاكوي لكه چي دپاچهانودادستوروي كله چي اراده وكړي نو وايي (عسى) پس هم دغه (عسى) لكه ثابت داسي دى[1]) ﴿ وَيُدۡخِلَكُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ ﴾ اوداخل به كړي تاسي هغوجنتونو ته چي بهېږي له لاندي دونواومانيود )هغو ويالې (د جنت) ﴿ يَوۡمَ لَا يُخۡزِي ٱللَّهُ ٱلنَّبِيَّ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَعَهُۥۖ ﴾ (دانني ايستل ستاسي جنت ته) په هغه ورځ كي چي وبه نه شرموي الله نبي اوهغه كسان چي ايمان يې راوړى له ده سره (دكفاروپه وړاندي بلكه عزت به وركړي اواكرام به يې ترسره كړي، ابوالسعودليكي چي :پدې كي هغوكسانوته چي الله شرمولي لكه كفاراوفساق تعريض دى[2]) ﴿ نُورُهُمۡ يَسۡعَىٰ بَيۡنَ أَيۡدِيهِمۡ وَبِأَيۡمَٰنِهِمۡ ﴾ (رڼاددوى به زغلي وړاندي ددوى څخه اوپه ښى خواددوى) يعني ددغومؤمنانو رڼابه دوى ته پل صراط روښانه كوي اوله ښي لوري ، له مخه ، له شااوله كيڼ لوري به لكه چي سپوږمى په توره شپه كي رڼاكوي داسي ځلېږي ([3]) ﴿ يَقُولُونَ رَبَّنَآ أَتۡمِمۡ لَنَا نُورَنَا ﴾ دوى به وايي اى زموږ ربه پوره كړې باقي ولره موږلره رڼازموږ(اوموږمه پرېږده چي په تاريكيوكي وغورځېږو، ابن عباس رضى الله عنه وايي چي دغه دمؤمنانوله لوري دعاده كله چي دمنافقينونور اورڼامړه شي نودوى به دغه دعاله وېري كوي ترڅوچي يې جنت ته ورسوي ﴿ وَٱغۡفِرۡ لَنَآۖ ﴾ اووبښه موږلره (ګناهونه زموږ) ﴿ إِنَّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٞ ﴾ ببشكه ته په هرشي باندي (چي اراده وفرمايي) ښه قادريې (چي مغفرت اوعقاب اورحمت اوعذاب دى) وروسته الله جل جلاله دالله له دښمنانوسره چي كفاراو منافقين دي دجهادكولوپه هكله داسي فرمايي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ جَٰهِدِ ٱلۡكُفَّارَ وَٱلۡمُنَٰفِقِينَ ﴾ اى نبي جهادكوه له كفارو سره (په توره ) اوله منافقينوسره (په ژبه ،دليل او برهان سره) څكه چي منافقين كفرپټوي اواسلام ښكندوي نودوى خوظاهره مسلمانان برېښني او رسول الله ته له دوى سره دقتال امرنه دى شوى ﴿ وَٱغۡلُظۡ عَلَيۡهِمۡۚ ﴾ اوپردوى باندي سختي كوه (په خطاب كي په نرمي اورأفت سره چلند مه كوه ترڅوچي دوى ووېرېږي اوذليل واوسي (دبدبه يې له مينځه لاړه شي اوشوكت يې مات شي ﴿ وَمَأۡوَىٰهُمۡ جَهَنَّمُۖ ﴾ اوځاى دورتلود دوى جهنم دى (په آخرت كي) ﴿ وَبِئۡسَ ٱلۡمَصِيرُ ﴾ اوبدځاى د ورتلودى (دادوزخ

---

([1]) روح المعاني ٢٨ /١٦٠

([2]) دابوالسعودتفسير ٥ /١٧٥

([3]) له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه وشوه چي دقيامت په ورځ به خپل امت دنوروأمتونو څخه څنګه پېژني؟ ويې فرمايل چي : دوى به دقيامت په ورځ داسي راشي چي داوداسه له كبله به يې اندامونه ځلېږي اوپدې به يې رسول الله پېژني.

دمجرمانولپاره وريسې الله دكفارولپاره يومثال راوړي چي دوى ته به خپلوي نكاح اونور اسباب دقيامت په ورځ ګټه ونه رسوي څكه هلته له صالح اعمالوپرته هيڅ څېزچاته په كار نه ورځي فرمايي

﴿ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ٱمْرَأَتَ نُوحٍ وَٱمْرَأَتَ لُوطٍ﴾ بيان كړى دى الله جل جلاله يومثل لپاره دهغوكسانوچي كافران شوي دي ښځه دنوح اوښځه دلوط(چي دوى ته به د مؤمنانو خپلوي ګټه ورونه رسوي لكه چي دنوح اولوط عليهماالسلام ښځوته يې ورونه رسوله) ﴿كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَٰلِحَيْنِ﴾ چي وې (دادواړه ښځي ترنكاح) لاندي ددوو بندګانو صالحانوزموږ، دا چي دوى يې په عبوديت وستايل ددوى تشريف اوتكريم يې وكړچي نسبت يې خان ته وفرمايو ﴿فَخَانَتَاهُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْهُمَا مِنَ ٱللَّهِ شَيْـًٔا﴾ بياخيانت وكړدوى دواړو ښځو([1]) (له دغودواړومېړونو سره په كفراوبېماني سره) نودفع نكړدغوپيغمبرانوله دغوخپلوښځو څخه له عذاب دالله څخه هيڅ شى. ﴿وَقِيلَ ٱدْخُلَا ٱلنَّارَ مَعَ ٱلدَّٰخِلِينَ﴾ اوويل شونوځئ تاسي دواړه (دوزخ) ته سره له نورو ننوتونكيو(كافرانو).قرطبي ليكي چي: الله دغه مثال ددې لپاره راووړچي پدې تنبيه وفرمايې چي په آخرت كي هيڅوك له قريب اوخپل څخه عذاب نه دفع كوي څكه چي ددوى ترمينځ دين بېلتون راولي لكه چي نوح اولوط له خپلوښځوڅخه پداسي حال كي چي دالله نازولي انبياء ووخوكله چي ښځوېې عصيان وكړدوى ورڅخه هيڅ شى عذاب دفع نكړاى شو([2]) ﴿وَضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱمْرَأَتَ فِرْعَوْنَ﴾ اوبيان كړى دى الله يومثل لپاره دهغوكسانوچي ايمان يې راوړى دى ښځه دفرعون ؛ دغه بل مثال دمؤمن لپاره راغلى چي هغه ته د هغه كافرخپلوان ضررنشي رسولاى ابوالسعودليكي: يعني حال د، هغې،لپاره دحال دمسلمانانومثال دى چي دكفرخپلوي ورته ضررنشي رسولاى لكه چي دفرعون ښځه په دنياكي دالله جل جلاله دسرسخت دښمن ترنكاح لاندي وه چي فرعون ووخوپه خوراسترو مانيودجنت كي به اوسي([3]) مفسرين كرام ليكي چي: دهغې نوم(آسيه بنت مزاحم) ووپه موسى عليه السلام يې ايمان راووړ اوفرعون خبرشونويې دهغې دوژلوامرصادركړالله دغه يې دفرعون له شرڅخه وژغورله چي دفرعون پيوستون هغې ته ضرر ونه رساوو سره له دې چي فرعون دكافرانوستر كافر وو اودنوح اولوط عليهماالسلام ښځوته دنومړو نبيانوپيوستون ګټه ونه رسوله سره له دې چي دوى د رب العالمين پيغمبران وو ﴿إِذْ قَالَتْ رَبِّ ٱبْنِ لِى عِندَكَ بَيْتًا فِى ٱلْجَنَّةِ﴾ كله چي وويل دې اى زما ربه جوړكړه ماته په نزدخپل يوكورپه جنت كي (چي ستاد رحمت په جواركي وي ځينوعلماء كراموويلي چي څومره ښه

---

([1]) دلته خيانت په دين كي مراددى اوپه عرض كي خيانت مقصدنه دى ځيني مفسرين تېروتلي چي دغودواړوښځوته يې دزنا نسبت كړى څكه چي الله جل جلاله انبياء عليهم السلام ته داكرامت وركړى چي ښځي يې فجورنه كوي ابن عباس رضى الله عنهماويلي چي دهيڅ نبي ښځي زنانه ده كړي اوخيانت ددغودواړوداوو چي دخپلومېړونودين يې نه مانواومشركاني وې، دغه په غورسره ولوله چي باريک مطلب دى،

([2]) قرطبي ۱۸/۲۰۷

([3]) ابوالسعود ۵ /۱۷۲

وينايې کړې هغې تردارله مخه جارغوره کړی چې ويلي يې دي ﴿ إِذْ قَالَتْ رَبِّ ٱبْنِ لِى عِندَكَ بَيْتًا فِى ٱلْجَنَّةِ ﴾ څکه هغه دماني. ترطمع له مخه دالله دجوار طمع کوي په دې آيت کي ددې دليل شته چې هغې ايمان راوړی اوپه بعث بعدالموت يې باوردرلود ﴿ وَنَجِّنِى مِن فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهِۦ ﴾ او ومي ژغوره خلاصه مي کړه له عذابه دفرعون اوعمل دده (چي کفراوطغيان دی) ﴿ وَنَجِّنِى مِنَ ٱلْقَوْمِ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴾ او ومي ژغوره خلاصه مي کړه له قومه ظالمانو څخه (چي اقباط دسرکښ فرعون پلويان دي)حسن رحمه الله وايې: کله چي يې دنجات دعاوکړه الله په ښه نجات سره وژغورله چي جنت ته يې اوچته کړه هلته خوري ،څښي اوپه نعمتونوکي اوسي(١) ﴿ وَمَرْيَمَ ٱبْنَتَ عِمْرَٰنَ ﴾ او(مثل بيان کړی دی الله) دمريم لوردعمران ﴿ ٱلَّتِىٓ أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا ﴾ هغه چي ساتلی يې وو ځای دشهوت خپل(له فواحشو څخه يعني عفيفه اوطاهره وه داسي نه وه لکه يهودوعليهم لعنة الله چي پرې گمان کاووچي هغې زناکړي اوعيسی حرامزاده دی (معاذالله)﴿ فَنَفَخْنَا فِيهِ مِن رُّوحِنَا ﴾ (نو وموپو کل (په گريوان د هغې )کي له روح خپل څخه) يعني زموږاستاذي جبريل دهغې په گريوان کي ورپوکل اودغه اثر هغې ته ورسېدواوپرعيسی عليه السلام باندي اميدواره شوه. ابن کثيرليکي چي الله تعالی حضرت جبريل ورته راواستاوواودبني آدم په بڼه شوالله ورته حکم وکړچي دکميس په گريوان کي يې ورپو کړي هغه ووچي دغه پوکل يې وجودته ولوېدل اوپه عيسی عليه السلام باندي اميدواره شوه(٢) ﴿ وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَـٰتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهِۦ ﴾ اوتصديق باورکړی ووهغې په خبرو د رب خپل اوپه کتابونودده باندي (چي دالله شرائع اوآسماني کتابونه دي) ﴿ وَكَانَتْ مِنَ ٱلْقَـٰنِتِينَ ﴾ (اووه داله فرمان منونکو څخه) يعني هغه له هغوڅخه وه چي حکم منونکي فرمان وړونکي عبادت کونکي وي دغه دهغې ستاينه ده چي زيات عبادت طاعت اوخشوع يې کوله په حديث شريف کي راځي چي له نارينه ووڅخه ډېرښځي اوکامل کسان تېرشوي اوله ښځوڅخه دفرعون له ښځي آسيه رضی الله عنهااومريم دعمران لوراوخديجة دخويلد لورپرته کمال ته څوک ندي رسېدلي دعائشې رضی الله عنهافضل اوبهتري په نوروښځولکه دښوروادوډۍ په نورو خوراکونو غوندي دی(٣).

## بلاغت:

پدې مبارک سورت کي دبديع اوبيان ښکلاوي په لاندي ډول لنډيزکېږي.

---

(١) البحرالمحيط ٨/٢٩٥

(٢) دابن کثيرمختصر ٣/٥٢٥

(٣) أخرجه البخاري

۱- دطباق صنعت چي دحرام اوحلال ترمينځ پدې کلام کي شته ﴿ لِمَ تُحَرِّمُ ﴾ اوهمداسي د ﴿عَرَّفَ.....وَأَعْرَضَ﴾ ترمينځ چي ګرديې بديعي محسنات اود کلام جمال زياتوي.

۲- التفات له غيبت څخه خطاب ته لکه ﴿ إِن تَتُوبَآ إِلَى ٱللَّهِ ﴾ ترڅوچي په ملامتيااوعتاب کي زياتوالی افاده کړي

۳- دمبالغې صيغې لکه داچي ﴿ ٱلْعَلِيمُ ٱلْخَبِيرُ ،نَّصُوحًا ،قَدِيرٌ ،ظَهِيرٌ ﴾ ترپايه پوري

۴- دعام يادونه وروسته له خاص نه پدې کلام کي ﴿ وَجِبْرِيلُ وَصَٰلِحُ ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ ﴾ دلته يې جبريل په خانګړي توګه دهغه دتشريف لپاره يادکړاودوهم ځل يې په عموم کي بيايادونه وشوه چي درسول الله په شان کي اهتمام شوی وي همداسي يې مؤمنان دمقربوپرښتوپه مينځ کې راوړي چي دصالحانو مؤمنانورتبه په ډاګه کړي

۵- مرسل مجازچي فرمايې ﴿ قُوٓاْ أَنفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا ﴾ ذکرد مسبب اومراد ځيني سبب دی يعني تل طاعت کوئ ترڅوڅانونه اوکورکهول له الهي عذابه وساتی.

۶- مقابله چي دمؤمنانواوسرغړونکوترمينځ دی لکه چي فرمايې ﴿ ضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ اوداچي ﴿ وَضَرَبَ ٱللَّهُ مَثَلًا لِّلَّذِينَ ءَامَنُواْ ﴾ راغلي دي

۷- دتغليب صنعت چي فرمايې ﴿ وَكَانَتْ مِنَ ٱلْقَٰنِتِينَ ﴾ چي نارينه يې په ښځينه باندي تغليب ګڼلی دی.

۸- مرصع سجع لکه ملغلري اومرجان غوندي چي په ټول قرآنکريم کي د ډېرځايونه ترسترګو کېږي په غور اودقت يې وګورئ

دالله جل جلاله په مرسته دالتحريم سورت دتفسيرژباړه بشپړه شوه.

***

## دالملک سورت مکي اودېرش آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

دالملک سورت مکي دی اولکه نورمکي سورتونه غوندي دعقيدې ستراصول اوبنسټونه څېړي پدې سورت کي بنسټيزدري هدفونه راځي چي هغه يودالله جل جلاله عظمت اوقدرت اثبات دی چي هستي اونېستي راولي بل دالله په وحدانيت باندي دلائل دي اودريم دبعث اودمنکرينواو دروغجن ګڼونکوعاقبت اوانجام بيانېږي

دسورت پيل دلومړي هدف په توضيح کولوشوی اووايې چي دالله جل جلاله په لاس کي پاچهي اوسلطنت دی هغه دګردوکائناتو متصرف اوټول کائنات هغه ته غاړه اېښودونکي دي الله دهغوی په ژوندي کولواومړه کولوبرلاسی دی ﴿ تَبَٰرَكَ ٱلَّذِي بِيَدِهِ ٱلْمُلْكُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ.. ﴾ دآيتونوترپايه

وروسته د آسمانونو له پیدایښت څخه غږېږي او هغه څه چي پدې آسمانونو کې له خلاند
ستورو څخه شته او دغه ټول دالله په قدرت او وحدانیت باندې دلائل دي ﴿ ٱلَّذِى خَلَقَ سَبۡعَ سَمٰوٰتٍ...... ﴾
دآیتونو ترپایه

بیا په تفصیل سره دمجرمینو خبر راوړي چي کله هغوی جهنم ته ګوري او دهغه اورلمبې وهي او له
قهره چوي هغه قهرچي دالله په دښمنانو باندې ورته راوړاندي شوی وي دلته دکافرانو اومؤمنانو برخه
لیک یوله بل سره پرتله کوي لکه څرنګه چي دقرآنکریم اسلوب دی چي ترغیب اوترهیب یو په بل پسې
راوړي ﴿ إِذَآ أُلۡقُواْ فِيهَا سَمِعُواْ لَهَا شَهِيقٗا وَهِىَ تَفُورُ.. ﴾.

کله چي دالله په عظمت او قدرت دلائل وړاندي کړي وروسته دالله له عذابه او قهر څخه خلګ وېروي
هغه عذاب چي په منکرانو کفارو به راپرېوزي ﴿ ءَأَمِنتُم مَّن فِى ٱلسَّمَآءِ أَن يَخۡسِفَ بِكُمُ ٱلۡأَرۡضَ فَإِذَا هِىَ تَمُورُ.. ﴾
دآیتونو ترپایه.

دسورت پای ددروغجن ګڼونکو هغو کسانو چي درسول الله بلنه (دعوت) یې نه مانو په وېرولو او
اخطار باندې کېږي چي پردوی به په هغه وخت کې عذاب راځي چي هغه وخت دوی درسول الله د مړیني
آرزو لرله او یا یې دمسلمانانو هلاکت ته سترګې په لاروې ﴿ قُلۡ أَرَءَيۡتُمۡ إِنۡ أَهۡلَكَنِىَ ٱللَّهُ وَمَن مَّعِىَ أَوۡ رَحِمَنَا فَمَن
يُجِيرُ ٱلۡكٰفِرِينَ مِنۡ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ څومره سخت تهدید او ګوت څنډنه ده چي له وېرې څخه بې اندامونه
رېږدي.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ تَبٰرَكَ ٱلَّذِى بِيَدِهِ ٱلۡمُلۡكُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيرٌ (١) ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلۡمَوۡتَ وَٱلۡحَيَوٰةَ لِيَبۡلُوَكُمۡ أَيُّكُمۡ أَحۡسَنُ عَمَلٗاۚ وَهُوَ ٱلۡعَزِيزُ ٱلۡغَفُورُ
(٢) ٱلَّذِى خَلَقَ سَبۡعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقٗاۖ مَّا تَرَىٰ فِى خَلۡقِ ٱلرَّحۡمٰنِ مِن تَفٰوُتٍۖ فَٱرۡجِعِ ٱلۡبَصَرَ هَلۡ تَرَىٰ مِن فُطُورٍ (٣) ثُمَّ ٱرۡجِعِ
ٱلۡبَصَرَ كَرَّتَيۡنِ يَنقَلِبۡ إِلَيۡكَ ٱلۡبَصَرُ خَاسِئٗا وَهُوَ حَسِيرٌ (٤) وَلَقَدۡ زَيَّنَّا ٱلسَّمَآءَ ٱلدُّنۡيَا بِمَصٰبِيحَ وَجَعَلۡنٰهَا رُجُومٗا لِّلشَّيٰطِينِۖ وَأَعۡتَدۡنَا
لَهُمۡ عَذَابَ ٱلسَّعِيرِ (٥) وَلِلَّذِينَ كَفَرُواْ بِرَبِّهِمۡ عَذَابُ جَهَنَّمَۖ وَبِئۡسَ ٱلۡمَصِيرُ (٦) إِذَآ أُلۡقُواْ فِيهَا سَمِعُواْ لَهَا شَهِيقٗا وَهِىَ تَفُورُ (٧)
تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ ٱلۡغَيۡظِۖ كُلَّمَآ أُلۡقِىَ فِيهَا فَوۡجٞ سَأَلَهُمۡ خَزَنَتُهَآ أَلَمۡ يَأۡتِكُمۡ نَذِيرٞ (٨) قَالُواْ بَلَىٰ قَدۡ جَآءَنَا نَذِيرٞ فَكَذَّبۡنَا وَقُلۡنَا مَا نَزَّلَ ٱللَّهُ
مِن شَىۡءٍ إِنۡ أَنتُمۡ إِلَّا فِى ضَلٰلٖ كَبِيرٖ (٩) وَقَالُواْ لَوۡ كُنَّا نَسۡمَعُ أَوۡ نَعۡقِلُ مَا كُنَّا فِىٓ أَصۡحٰبِ ٱلسَّعِيرِ (١٠) فَٱعۡتَرَفُواْ بِذَنۢبِهِمۡ
فَسُحۡقٗا لِّأَصۡحٰبِ ٱلسَّعِيرِ (١١) إِنَّ ٱلَّذِينَ يَخۡشَوۡنَ رَبَّهُم بِٱلۡغَيۡبِ لَهُم مَّغۡفِرَةٞ وَأَجۡرٞ كَبِيرٞ (١٢) وَأَسِرُّواْ قَوۡلَكُمۡ أَوِ ٱجۡهَرُواْ بِهِۦٓۖ
إِنَّهُۥ عَلِيمُۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ (١٣) أَلَا يَعۡلَمُ مَنۡ خَلَقَ وَهُوَ ٱللَّطِيفُ ٱلۡخَبِيرُ (١٤) هُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلۡأَرۡضَ ذَلُولٗا فَٱمۡشُواْ فِى
مَنَاكِبِهَا وَكُلُواْ مِن رِّزۡقِهِۦۖ وَإِلَيۡهِ ٱلنُّشُورُ (١٥) ءَأَمِنتُم مَّن فِى ٱلسَّمَآءِ أَن يَخۡسِفَ بِكُمُ ٱلۡأَرۡضَ فَإِذَا هِىَ تَمُورُ (١٦) أَمۡ أَمِنتُم مَّن فِى
ٱلسَّمَآءِ أَن يُرۡسِلَ عَلَيۡكُمۡ حَاصِبٗاۖ فَسَتَعۡلَمُونَ كَيۡفَ نَذِيرِ (١٧) وَلَقَدۡ كَذَّبَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ فَكَيۡفَ كَانَ نَكِيرِ (١٨) أَوَلَمۡ

يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صَافَّاتٍ وَيَقْبِضْنَ مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا الرَّحْمَٰنُ إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ بَصِيرٌ (١٩) أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي هُوَ جُندٌ لَّكُمْ
يَنصُرُكُم مِّن دُونِ الرَّحْمَٰنِ إِنِ الْكَافِرُونَ إِلَّا فِي غُرُورٍ (٢٠) أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي يَرْزُقُكُمْ إِنْ أَمْسَكَ رِزْقَهُ بَل لَّجُّوا فِي عُتُوٍّ وَنُفُورٍ (٢١)
أَفَمَن يَمْشِي مُكِبًّا عَلَىٰ وَجْهِهِ أَهْدَىٰ أَمَّن يَمْشِي سَوِيًّا عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ (٢٢) قُلْ هُوَ الَّذِي أَنشَأَكُمْ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ
وَالْأَفْئِدَةَ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ (٢٣) قُلْ هُوَ الَّذِي ذَرَأَكُمْ فِي الْأَرْضِ وَإِلَيْهِ تُحْشَرُونَ (٢٤) وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ
(٢٥) قُلْ إِنَّمَا الْعِلْمُ عِندَ اللَّهِ وَإِنَّمَا أَنَا نَذِيرٌ مُّبِينٌ (٢٦) فَلَمَّا رَأَوْهُ زُلْفَةً سِيئَتْ وُجُوهُ الَّذِينَ كَفَرُوا وَقِيلَ هَٰذَا الَّذِي كُنتُم
بِهِ تَدَّعُونَ (٢٧) قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَهْلَكَنِيَ اللَّهُ وَمَن مَّعِيَ أَوْ رَحِمَنَا فَمَن يُجِيرُ الْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ (٢٨) قُلْ هُوَ
الرَّحْمَٰنُ آمَنَّا بِهِ وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ (٢٩) قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَصْبَحَ مَاؤُكُمْ غَوْرًا فَمَن يَأْتِيكُم بِمَاءٍ مَّعِينٍ
(٣٠) ﴾ الملك: ١ - ٣٠

## دسورت فضیلت:

دغه سورت ته (الواقية) ژغورونکی او (المنجية) هم ویل شوي ځکه چي لوستونکی دقبرله عذاب څخه ژغوري، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: هی المانعة هی المنجية من عذاب القبر [1] يعني دغه سورت دقبرله عذاب نه منع کونکی اوساتونکی دی.

## لغتونه:

(طباقا) ځيني په ځينو وروسربېره اومطابق ديوبل (لکه چي وايي (طابق النعل بالنعل) يعني نعل له نعل سره برابرشوی) کله چي يې موافق ورسره پرې کړي او ورباندي يې ووهي (فطور) چاودېدل له فطرڅخه اخيستل شوی اودچاودلو په معنادی شاعرليکي: بنى لكو بلاعمد سماء * وسواها فما فيها فطور.

تاسوته يې له ستني پرته آسمان جوړکړی اوبرابرکړی يې دی چي هيڅ درزيکي نشته (حسير) ستړی ستومانه له (حسور) څخه اخيستل شوی اوهغه ستوماني ستړياته وايي (شهيقا) بداوناسم غږلکه دخره هنګاره (تميز) چودل کېږي تو ته کېږي په اصل کي دغه کلمه (تتميز) وه يوه تاء يې په بله کي دننه (مدغم) شوه او (تميز) لوستل کېږي (مناكبها) اطراف اوڅنډي دهغې ځمکي منکب په اصل کي جانب ته وايي اودشري منکب (اوږه) هم له دي څخه اخيستل شوی دی (لجوا) اصراريې وکړاوپښي يې خرلي وي (عتو) لرزېږي (زلفة) نژدې له دوی نه (غورا) ښکته دځمکي په تل کي تلونکي.

## تفسير:

﴿ تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ ﴾ (ډېربرکت کوي هغه (الله) چي په لاس (بلاکيف) دده کي ملک سلطنت دی) يعني ستراولوړدی هغه ذات چي په مخلوقاتوډول ډول نعمتونهاوروي هغه (الله) چي په لاس بلاکيف دده کي پاچهي دځمکي اوآسمانونو دي اوپه هغه کي څرنګه چي يې اراده شي داسي تصرف کوي ابن عباس رضى الله عنه وايي: معنادا چي پاچهي يې په لاس کي ده چاته عزت اوچاته ذلت ورکوي

[1] أخرجه الترمذي

، مړه کوي خلګ اوژوندي کوي يې ، بډاى کوي انسانان اوفقيران کوي يې ، چاته څه ورکوي اوله چانه يې منع کوي (١) ﴿ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴾ اوهم دغه (الله) په هرڅېزباندي (چي اراده وفرمايي) ښه قادردى ، يعني هغه په هرڅه باندي دبشپړقدرت اوپوره تصرف خاونددى هيڅوک يې منازع او مدافع نشته ورپسې الله دخپل قدرت آثاراودحکمت نښي داسي بيانوي ﴿ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلْمَوْتَ وَٱلْحَيَوٰةَ ﴾ هغه (الله) چي پيداکړي يې دي مرګ اوژوند (نوژوندي کوي هغه چي ورته اراده يې شي اووژني هغه خلګ چي ورته اراده يې شي هغه واحد قهارذات دى، مرګ يې په ژوندله مخه راوور ځکه چي هغه هيبتناک اوويرونکى دى، علماء کرام وايې چي مرګ له ژوندانه څخه دبېخي فنااوانقطاع نوم نه دى بلکه له يوه جهان څخه بل ته لېږدېدل (انتقال) دى ځکه نوپه صحيحينوکي يوحديث راغلى چي فرمايې مړي په قبرکي اوري اووينې او احساس لري لکه چي رسول الله داسي فرمايلي کله چي يو ستاسوپه قبرکي کېښودل شي اوملګري ترې راستانه شي مړي ددغوخلګودپښو(څپليو ) غږاوري (٢) بل ځاى رسول الله فرمايې زمادي په هغه الله سوګندوي چي زماروح يې په لاس کي دى چي تاسو تر دوى زماوينابنه نه اورى خودوى ځواب نشي ورکولاى ، نومرګ له بدنه دروح وتل بولي ﴿ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا ﴾ (لپاره ددې چي وازمويي تاسي چي کوم يوله تاسي ډېرښه دى دعمل له مخي ) يعني لپاره ددې چي وازمويي تاسي اى خلګوچي کوم يومحسن نيکوکاراوکوم يومسئ بدکرداردى قرطبي وايې : معناداچي داسي معامله لکه چي ازمويونکى يې کوي ورسره وکړم که نه الله ته خو عاصي او مطيع په ازل کي هم معلوم دي (٣) ﴿ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ﴾ اوهم دغه (الله ) ښه غالب قوي دى (په انتقام اخيستلو له ګناهګاروڅخه ) ﴿ ٱلْغَفُورُ ﴾ ډېرمغفرت کونکى دى (دهغه چالپاره چي توبه وباسي او رجوع وکړي) ﴿ ٱلَّذِى خَلَقَ سَبْعَ سَمَٰوَٰتٍ طِبَاقًا ﴾ هغه (الله) چي پيداکړي يې دي اوه آسمانونه طبقې طبقې لاندي باندي (هرآسمان لکه يوه قبه غوندي لپاره دبل آسمان دي) ﴿ مَّا تَرَىٰ فِى خَلْقِ ٱلرَّحْمَٰنِ مِن تَفَٰوُتٍ ﴾ وبه نه وينې اى کتونکي ! په پيدااېښت درحمان کي هيڅ تفاوت خلل،عيب،فرق (اواختلاف بلکه نهايته محکم او ټينګ دى اوداچي ويې فرمايل ﴿ خَلْقِ ٱلرَّحْمَٰنِ ﴾اوهسي يې ونه ويل چي:(فيهن)ترڅوددوى د پيدااېښت تعظيم اوداالله په سترقدرت تنبيه افاده کړي ﴿ فَٱرْجِعِ ٱلْبَصَرَ هَلْ تَرَىٰ مِن فُطُورٍ ﴾ بياواړوه (خپلي) سترګي چي آياوينې ته (پکي) څه چاودښري والى نقصان ؟﴿ ثُمَّ ٱرْجِعِ ٱلْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ ﴾ بياوګرزوه سترګي (خپلي) آسمان ته اى کتونکيه) دوه دوه ځلي (دعبرت په توګه) ﴿ يَنقَلِبْ إِلَيْكَ ٱلْبَصَرُ خَاسِئًا وَهُوَ حَسِيرٌ ﴾ بيرته به راوګرزي سترګي (ستا) بيرته ګرزېدونکي اودغه سترګي به وي ذليلي ستړي ستومانه (له ليدلودهغه خلل نه چي ته يې لټوې)

(١) القرطبي ١٨/ ٢٠٦
(٢) دمتفق عليه حديث يوه برخه
(٣) قرطبي تفسير ١٨/ ٢٠٧

﴿ وَهُوَ خَبِيرٌ ﴾ معناسترې به وي نهايته زياتي امام فخر رازي ليکي: معناداچي که ته کتل مکرر کړې بياهم ستاسترګي به هغه خلل ونه ويني چي ته يې غواړې بلکه سترګي به دي سترې ستومانه درته راستنې شي اوکوم عيب اوخلل به يې پيداکړی نه وي (١) قرطبي وايې: معناداچي څوځله وګوره اوپه آسمان کي سترګي وغړوه (کرتين) يوځل وروسته له بل ځل نه سترګي به دي ذليلي درته راوګرزي چي هيڅ عيب اوخلل به يې نه وي موندلی اوداچي دوه ځله يې دکتلوحکم وزته کړی ځکه کله چي يوځل انسان يوځېزته وګوري نودهغه عيب نشي په ګوته کولای ترڅوېې دوهم ځلي په ځېرنه وي ورته کتلي 19

اومقصدله (کرتين) څخه باربارکتل (تکثير) دی دليل يې داچي ﴿ يَنقَلِبْ إِلَيْكَ ٱلْبَصَرُ خَاسِئًا وَهُوَ حَسِيرٌ ﴾ دغه پخپله په زياتوکتلودلالت کوي وروسته الله جل جلاله هغه څه بيانوي چي آسمان يې په ستوروښايسته کړی دی فرمايي ﴿ وَلَقَدْ زَيَّنَّا ٱلسَّمَآءَ ٱلدُّنْيَا بِمَصَٰبِيحَ ﴾ (اوخامخاپه تحقيق ښايسته کړی دی موږآسمان نژدې (ځمکي ته) په ډېرو ستوروسره) يعني قسم دی چي په تحقيق موږدغه تاسو ته نژدې آسمان چي له ټولوآسمانونوڅخه ځمکي ته ډېر نژدې دی لومړنی آسمان دی په ځلانده ستوروسره ښايسته کړی دی مفسرين کرام ليکي ستوروته يې ډېوې وويلې ځکه چي دوی هم دشپې داسي رڼاکوي لکه ډېوې اوځراغونه ﴿ وَجَعَلْنَٰهَا رُجُومًا لِّلشَّيَٰطِينِ ﴾ او ګرزولي موږ دغه (ډېوې ستوري) ويشتونکي شيطانانولره) يعني بله ګټه يې داچي موږ ستوري د شيطانانوکوم چي دآسمانونوخبري غلاکوي دويشتلولپاره ګمارو.قتاده وايې: دستورودرې ګټي دي يوداچي د آسمان ښايست، بل داچي دشيطانانوويشتونکي، دريم داچي په بحراوبرکي لارښوونکي دي (٢) خازن ليکي: که څوک پوښتنه کوي چي که ستوري دښايست لپاره وي نوهغه دي تلپاتي اوباقي وي څرنګه د ويشتلولپاره په کارېږي؟ ځکه چي په ويشتلوسره له مينځه ځي دغه دوه حالتونه خوسره نه يوځای کېږي؟ ځواب داچي ښايي دويشتلولپاره به يوه شغله وي چي له ستوري جلاکېږي اود شيطان د ويشتلولپاره ترې کاراخيستل کېږي ستوري به هماغسي پخپل حال پاتي وي لکه چي له اور څخه يوه سکروټه واخيستل شي اورپخپل ځای پاتي وي (٣) زه وايم چي ددې خبري تائيد پدې آيت هم کېدای شي ﴿ إِلَّا مَنْ خَطِفَ ٱلْخَطْفَةَ فَأَتْبَعَهُۥ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ﴾ نوله دې معلومېږي چي په ستوري نه بلکه په شغلو باندي ويشتل کېږي ﴿ وَأَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ ٱلسَّعِيرِ ﴾ اوتيارکړی دی موږدوی لره عذاب ډېر سوځونکی (ددوزخ ،په آخرت کي وروسته له ويشتلودشغلود ستوروپه دنياکي) ﴿ وَلِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ ﴾ اوشته لپاره د هغوکسانو چي کافران شوي وي په رب خپل باندي عذاب د دوزخ ﴿ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴾ اوبدځای دورتلودی (هم نه يوازي دا چي د شيطانانولپاره دي بلکه دهرکافرلپاره که انسي وي اوکه جني ددوزخ

(١) قرطبي تفسير ١٨/ ٠٧.
(٢) البحرالمحيط ٨/ ٢٩٩
(٣) خازن ٤/ ١٢٥

عذاب دی وروسته دوزخ او د هغه عذابونه داسي بيانوي ﴿ إِذَآ أُلْقُوا۟ فِيهَا سَمِعُوا۟ لَهَا شَهِيقًا ﴾ کله چي وغورزولی شي (کافران) په دغه (اوردودوزخ )کي (لکه ازوغه چي په ستراورکي لوېږي) وابه وري دوی دغه (دوزخ لره) آوازلوی بد(لکه دخره غوندي چي له سختولمبواوايشېدوبه وي([1]) ابن عباس رضی الله عنه وايې چي: شهيق ددوزخ هغه دکفارودورغورځولوپه وخت کي غږته وايې داسي هنګېږي لکه چي خچر اوربشوته نارې وهي ورپسې دزفيرآوازکوي چي هرڅوک به ورڅخه وېرېږي ﴿ وَهِىَ تَفُورُ ﴾ اوهغه به خوټېږي (له ډېره قهر اوغضبه اوله ډېرو لمبو لکه چي ګډوه (کټو ) خوټېږي مجاهدوايې: په دوی باندي به داسي خوټېږي لکه چي لږ دانې په ډېرواوبوکي خوټېږي ﴿ تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ ٱلْغَيْظِ ﴾ نږدې به وي (دا دوزخ)چي ټوټې شي له جهته دقهره (غضبه پردښمنانودالله کفاروباندي) ﴿ كُلَّمَآ أُلْقِىَ فِيهَا فَوْجٌ سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَآ ﴾هرکله چي وغورځوله شي پکي يوه ډله (دمنکرانوکفارو) پوښتنه به وکړي (توبيخا او تقريعا) له هغوی نه خازناني ددوزخ (داسي چي) ﴿ أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ ﴾آيانه وورراغلی تاسي ته (ای منکرانو) وېرونکی ؟ (پيغمبرپه دنياکي) مفسرين کرام ليکي چي: دغه پوښتنه دزياتي ملامتياليپاره دی ترڅو ددوی آرمان اوافسوس په حسرت باندي زيات شي اوعذاب يې يوپه دوه شي ﴿ قَالُوا۟ بَلَىٰ قَدْ جَآءَنَا نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا ﴾ نوبه وايې : منکران (داسي چي) هوپه تحقيق راغلی موږ ته وېرونکی (پيغمبرپه موږې آيتونه لوستلي وو ) نودروغجن وبالوموږدی (اوله رسالت څخه يې منکرشوو ﴿ وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ ٱللَّهُ مِن شَىْءٍ ﴾ اووويل موږ (هغوی ته) چي نه دی رالېږلی الله هيڅ شی (له وحی په چاباندي) امام رازي ليکي: دغه ددوی له لوري دالله په عدل باندي اعتراف دی([2])چي الله ددوی عذرونه دپيغمبرانوپه لېږلوليري کړي دي خودوی دپيغمبرانوتکذيب کړی اوويلي يې دي چي الله په هيڅ‌ډول وحی نه ده رانازل کړي ﴿ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا فِى ضَلَـٰلٍ كَبِيرٍ ﴾نه يی تاسي مګر په ګمراهي لويه کي ياست (دغه دکفارودويناپاتي برخه ده يعني ای پيغمبرانو تاسوله حق څخه ليري اوپه ژوره ګمراهي کي ياست) ﴿ وَقَالُوا۟ لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ ﴾ او وبه وايې (منکران) که چېري وی موږچي اورېدلی مو(خبري دانبياووپه دنياکي په سماع د قبول سره) (او) ياموعقل درلودی (په خيراوشرخپل) يعني کفاربه ووايي که موږداسي عقل درلودی چي ور باندي موګټه اخيستلای شوای اويامواورېدلای په سماع د طلب دحق اودهدايت غوښتلونو ﴿ مَا كُنَّا فِىٓ أَصْحَـٰبِ ٱلسَّعِيرِ ﴾ نه به ووموږ(نن) په اهل ملګرودوزخ کي ﴿ فَٱعْتَرَفُوا۟ بِذَنۢبِهِمْ ﴾ نو اقرار يې وکړ دوی په ګناه خپلي باندي (چي دپيغمبرانوتکذيب وو) ﴿ فَسُحْقًا لِّأَصْحَـٰبِ ٱلسَّعِيرِ ﴾ نو(ليري کړي دي دوی لره الله له

---

([1]) په التسهيل کي ليکي چي شهيق هغه دخره بدآوازته ويل کېږي مقصدترې هغه دجهنم دسخت هيبت دبلبدواو ايشېدلوغږدی التسهيل ۴/ ۱۳۴

([2]) کبيرتفسير ۳۰/ ۲۴

رحمته) لیري والی دی خاوندانوددوزخ لره) دغه دعائیه جمله ده یعني الله دي دوی له رحمته لیري وهلاک کړي، وروسته دبدمرغه کفارو له حال څخه دنېکمرغه مؤمنانو حال داسي بیانوي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَخۡشَوۡنَ رَبَّهُم بِٱلۡغَيۡبِ ﴾ (بېشکه هغه کسان چي وېرېږي له خپل رب څخه په غیب سره) یعني دوی پداسي حال کي چي پروردګاربې لیدلی نه دی ترې وېرېږي اوګناهونه نکوي ځوچي دالله خوښي او رضاترلاسه کړي ﴿ لَهُم مَّغۡفِرَةٞ وَأَجۡرٞ كَبِيرٞ ﴾ شته دوی ته مغفرت (دګناهونو) اواجرثواب ډېرلوی، چي دغه اندازه له الله پرته چاته معلومه نه ده ﴿ وَأَسِرُّواْ قَوۡلَكُمۡ أَوِ ٱجۡهَرُواْ بِهِۦٓۖ ﴾ اوکه پټوی تاسي خپله خبره او که ښکاره کوی هغه (خبره) دغه خطاب خلګوته دی یعني که تاسوخپله وینا پټوی اوکه یې ښکاره کړی دغه دواړه برابردي الله ته ستاسوپټ اوښکندیوډول دي ورباندي خبردی ﴿ إِنَّهُۥ عَلِيمُۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴾ بېشکه هغه (الله) ښه عالم دانادی په پټوخبرودسینوباندي هم. ابن عباس رضی الله عنه وایي دغه دهغومشرکانوپه هکله نازل شوی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته به یې ښکنځل کول اوبیابه جبریل علیه السلام رسول الله ورباندي خبراوو نوځینودوی ځیني نوروته وویل چي په پټه خوله یې ښکنځئ چي دمحمد (ﷺ) الله ورباندي خبرنشي اونه یې واوري نودوی ته وویل شوچي له الله څخه هیڅ هم پټ نه دي[۱] ﴿ أَلَا يَعۡلَمُ مَنۡ خَلَقَ ﴾ آیانه پوهېږي (په پټورازونو) هغه (الله) چي پیداکړي یې دي ټول شیان اود مخلوق پټ اوښکاره ګردده مخلوق دي؟ ﴿ وَهُوَ ٱللَّطِيفُ ٱلۡخَبِيرُ ﴾ او همغه (الله) دی علیم دانا (په پټواسرارو) ښه خبردار دی (په ظواهرو د موجوداتو هم) چي هیڅ ذره (دوړانګې خاشه) نه خوځېږي اونه هم ساښکته پورته کېږي مګرالله جل جلاله ورباندي خبردی، ورپسې الله دخپل قدرت اووحدانیت دلائل اوهمداراز دفضل اواحسان نښي چي پخپلوبندګانو یې پېرزوکړي داسي بیانوي چي ﴿ هُوَ ٱلَّذِي جَعَلَ لَكُمُ ٱلۡأَرۡضَ ذَلُولٗا ﴾ دغه (الله) هغه ذات دی چي ګرزولي یې ده تاسي ته ځمکه پسته (تابعداره چي تګ کول پکي آسان وي) ﴿ فَٱمۡشُواْ فِي مَنَاكِبِهَا ﴾ نوځئ تاسي په اوږو اطرافولارود هغې (ځمکي) ابن کثیرلیکي: معناداچي ځئ سفروکړئ په هغې کي چېري چي مو خوښه شي دهغې ګوټ ګوټ دتجارت اوکسب کارلپاره ولټوئ[۲] ﴿ وَكُلُواْ مِن رِّزۡقِهِۦۖ ﴾ اوخورئ تاسي له حلال رزق ددغه (الله) نه یعني دالله له هغونعمتونوڅخه چي پرتاسویې د کسب اورزق پېرزوکړي ګټه واخلئ الوسي وایې چي: ډېروخت له ګټي اخیستلوڅخه په خوړلو تعبیر شوی وي ځکه چي هغه شامل اومهم دی اوپه آیت شریف کي دکسب اوسبب استحباب شته اوله توکل سره منافي نه دی یووخت حضرت عمر رضی الله عنه په یوتولی خلګوتېرېدواوورڅخه یې وپوښتل تاسي څوک یاست؟ هغوی وویل: موږ متوکلین یو عمررضی الله عنه ورته وویل: چي تاسومتوکلین نه

---

(۱) خازن ۴/۱۳۲ - الوسي ۲۹/۱۳
(۲) مختصرابن کثیر ۳/۵۲۸

بلکه متواکلين ياست متوکل هغه څوک دی چي دانې تخم په ځمکه کي وشيندي او بيا په الله توکل وکړي (۱) ﴿ وَإِلَيْهِ ٱلنُّشُورُ ﴾ اوخاص دغه (الله) ته بياستاسي راپورته کېدل دي (پس له مرګه) لپاره دحساب اوجزاء، له دې وروسته الله دمکي کفارچي درسول الله تکذيب يې کاوو داسي وېروي فرمايي:

﴿ ءَأَمِنتُم مَّن فِي ٱلسَّمَآءِ أَن يَخۡسِفَ بِكُمُ ٱلۡأَرۡضَ ﴾ آياډاډه شوي يی تاسي له هغه (الله) څخه چي په آسمانونوکي دی (په زعم ستاسي) چي راپورته به کړي پرتاسي باندي ځمکه (اوپکي ډوب به مو کړي وروسته له هغه چي درته پسته کړي يې وه اوتاسي يې په اطرافوکي ګرزېدلاست؟ ﴿ فَإِذَا هِيَ تَمُورُ ﴾ بيابه (ناڅاپه) هلته بياداځمکه ولړزېږي (په سخت لړزېدلو خوځېدلوباندي، امام رازي ليکي: معناداچي الله به ددوی ډوبېدلو په وخت کي ځمکه و لړزوي اوپردوی به راپورته شي دوی به ډوب کړي دوی به پکي درومي اوځمکه بهورباندي لړزېږي تر څوچي اسفل السافلين ته ورسېږي (۲) ﴿ أَمۡ أَمِنتُم مَّن فِي ٱلسَّمَآءِ أَن يُرۡسِلَ عَلَيۡكُمۡ حَاصِبٗا ﴾ (آياأمون ډاډه شوي يی تاسي له هغه (الله) څني چي په آسمانونوکي دی (په زعم ستاسو) چي ونه لېږي په تاسي باندي کاڼي ويشتونکی باد) يعني آياتاسوله هغه العلي القديرذات څخه بېغمه ډاډه ياست چي په تاسي به کاڼي له آسمانه ونه اوروي لکه چي په قوم دلوط عليه السلام اواصحاب الفيل يې واورول؟! ﴿ فَسَتَعۡلَمُونَ كَيۡفَ نَذِيرِ ﴾ (نوژردی چي پوه به شی تاسي چي څرنګه وو وېرول زما؟) يعني تاسوبه د عذاب دليدلو په وخت کي وپوهېږی چي دروغجن ګڼونکوته زماوېرول اوعذاب څنګه دی؟ په دې کي وعيداوتهديدنغښتی دی اصل يې (نذيري) دی اوياء يې لکه (نکير) حذف شوي دآيتونودپيل مراعات شوی دی ﴿ وَلَقَدۡ كَذَّبَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ ﴾ او خامخاپه تحقيق دروغجن کړي وو (کفاروخپل انبيآء) چي پخوا له دغو (کفارودمکې) څخه وو (لکه قوم دنوح، عاد، ثمود، اوامثال يې دغه وينادا رسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره ډاډينه او د مشرک قوم لپاره يې تهديددی ﴿ فَكَيۡفَ كَانَ نَكِيرِ ﴾ نو څرنګه وو انکاردعذاب زما؟ (پردوی باندي آيا هغه خورا سخت او هيبتناک نه وو؟ وروسته له دې چي دوی يې په خسف اوکاڼي ويشتلوو وېرول نودې تنبيه يې ورته وکړه چي دوی دې له مرغانوڅخه عبرت واخلي چي الله جل جلاله يی په څومره اتقان او محکم والي خلقت فرمايلی اودخپلوګماني معبودانو کمزورتياته دې وګوري چي دهيڅ ښمرې نه دي نوفرمايي ﴿ أَوَلَمۡ يَرَوۡاْ إِلَى ٱلطَّيۡرِ فَوۡقَهُمۡ صَٰٓفَّٰتٖ وَيَقۡبِضۡنَۚ ﴾ آيانه ګوري دوی مرغانوته (په هوا کي) له پاسه (دسرونو) ددوی (خپروي) پرانيزي وزرونه اوټولوي (وزرونه خپل کله چي په هواالوزي؟ آياعبرت ترې نه اخلي؟) اوداچي غالبًاوزرونه يې پرانيستي وي اودغه لکه چي ثابت وي نويې داسم په کلمه ور څخه تعبيروکړ (صافات) يې وويل او څرنګه کي ټولول دوزرونونوی نوی (متجدد) وي نويې په (يقبضن) دفعل په کلمه سره

---

(۱) الوسي تفسير ۲۹/ ۱۵

(۲) کبيرتفسير ۳۰/ ۷۰

تعبیروفرمایو. په التسهیل کي لیکي: که څوک دا پوښتنه کوي چي د (صافات) سره سم (قابضات) يې ولي نه راوړ؟ ځواب داچي دوزرونوغوړول په الوتلوکي داسي اصل اوداهمیت وړدی لکه په لامبو وهلوکي چي د اندامونوغزول وي ځکه يې داسم فاعل په لفظ سره وړځخه تعبیروکړچي په دوام او کثرت باندي دلالت وکړي اود وزرونوټولول خو مرغان داستراحت او مرستي ترلاسه کولولپاره کوي ځکه يې د لږوالي له امله دفعل په صیغه راوړل[1] ﴿مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا الرَّحْمَٰنُ﴾ نه نیسي نه ساتي دوی (په هواکي له پرېوتلوځخه) مگر خورحمن (يې ژغوري په رحمت او قدرت خپل سره چي رحمت يې گردوکائناتوته شامل دی، امام رازي لیکي: معناداچي دهغوی دروندوالی اوغټ غټ بدنونه ددې امکان نلري چي پرته دالله له ساتلودي په هواکي له ړالوېدلو وژغورل شي دغه دالله له لوري هغوی ته الهام دی چي څرنگه دي خپل وزرونه غوړوي راټولوي اودغه ددوی دمنفعت لپاره درحمن ذات له لوري رحمت دی[2])﴿إِنَّهُۥ بِكُلِّ شَيْءٍۭ بَصِيرٌ﴾ بېشکه هغه (الله) په هر څېزباندي بینابه لیدونکی دی) یعني پوهېږي چي څرنگه خلق اوابداع دخپل حکمت له غوښتني سره سم ترسره کړي، وروسته مشرکان په هغو عبادتونوچي دوی يې دخپلوداسي معبودانوکوي چي نه گټه رسوي نه هم اوري داسي ترټي او توبيخ ورته کوي فرمايي ﴿أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي هُوَ جُندٌ لَّكُمْ يَنصُرُكُم مِّن دُونِ الرَّحْمَٰنِ﴾ آیاڅوک دی هغه (ذات) چي هغه لښکرستاسي شي کومک مرسته وکړي له تاسي سره يې له رحمانه؟ (هیڅوک مددگار نشته) ابن عباس رضی الله عنهماوایي: معنا دا چي که زه ستاسي دعذاب اراده وفرمایم څوک به موله ماځخه خلاص کړي اوستاسي مرسته به وکړي؟ ﴿إِنِ الْكَافِرُونَ إِلَّا فِي غُرُورٍ﴾ (ندي کافران مگر خوپه غرور غولېدلوکي دي) یعني ندي کافران په دې عقیده اوباورکي چي د دوی معبودان گټه اوتاوان رسوي مگرپه سترجهالت اوروښانه گمراهي کي دي له دې امله چي خیالات (اوهام) يې حقائق گڼلي ځکه نو په بتانوباندي تېروتلي دي ﴿أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي يَرْزُقُكُمْ إِنْ أَمْسَكَ رِزْقَهُۥ﴾ آیاڅوک دی هغه (ذات) چي رزق در کړي تاسي ته؟ که چېري بند کړي (الله) رزق خپل(هیڅوک) موله الله پرته رازق نشته، خطاب په دواړه آیتونوکي کفاروته د توبیخ په توگه دی چي هغوی تهدید کړي اودلیل ورباندي ودروي[3])﴿بَل لَّجُّوا فِي عُتُوٍّ وَنُفُورٍ﴾ بلکه ننوتلي اومحکم شوي دي دوی په سرکشي، عناداوتېښته نفرت کي (له حقه او ایمان ځخه) وروسته الله دمؤمن اوکافر لپاره داسي مثال راوړي فرمایي ﴿أَفَمَن يَمْشِي مُكِبًّا عَلَىٰ وَجْهِهِۦٓ أَهْدَىٰٓ أَمَّن يَمْشِي سَوِيًّا عَلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ﴾ (آیاپس هغه څوک چي نسکورځي په خپل مخ باندي ښه لار موندونکی وي یاهغه څوک چي ځي برابرسم په لاري سمي باندي) یعني آیاهغه څوک چي سرځوړلی په لاره درومي لاره نهویني لکه ړوندهره شیبه لوېږي یاخبږي دغه به سم لاره پیداکونکی وي اوکه هغه چي سم په ولاړه په

---

[1] التسهیل۴ /۱۳۶
[2] کبیرتفسیر۳ /۷۶
[3] خازن تفسیر۴ /۱۳۲

لاره درومي خپله لارهويني او ګام په ګام نه لوېږي څکه چي په روڼه لاره سم روان وي؟ مفسرين کرام وايي چي داهسي مثال دی چي الله د کافر او مؤمن لپاره بيان کړی دی نو کافر لکه ړوند لاروی بې سترګو په ړنده لاره روان وي لاره ورته نه معلومېږي تيندکونه خوري او پرزي پرمخي لوېږي د مؤمن مثال لکه دهغه سم روغ بيناسړي دی چي په روښانه لاره سم سيخ روان وي دغه ددوی په دنياکي مثال دی او دغسي به ددوی دواړو حال په آخرت کي هم وي مؤمن به سم سيده راپاڅي او په صراط المستقيم به روان وي کافر به په مخ روان راپاڅي اودوزخ ته به درومي قتاده وايي: کافر په دنياکي په ګناهونو پرمخي نسکورو نوالله په مخ راپاڅاوو او مسلمان په روښانه دين تګلاره درلوده نو الله د محشر په ورځ په سمه لاره راپاڅاوو(۱) او ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: دغه دهغه چالپاره چي دضلالت او ياهدايت لاره ونيسي يو مثال دی (۲) وروسته الله تعالی دوی ته دخپلو سترو نعمتونو يادونه کوی ترڅودوی دخپل کفر او شرک بدي وپېژني نو فرمايي ﴿ قُلْ هُوَ ٱلَّذِىٓ أَنشَأَكُمْ وَجَعَلَ لَكُمُ ٱلسَّمْعَ وَٱلْأَبْصَٰرَ وَٱلْأَفْـِٔدَةَ ﴾ ووايه (ای محمده!) دغه (الله) هغه ذات دی چي پيدا کړي يې یې تاسي درکړي او ګرزولي يې دي تاسي ته غوږونه (دحق اورېدلو لپاره) او سترګي (دحق ليدلو لپاره) او زړونه (دحق پېژندلو لپاره) يعني ای محمد ﷺ! دوی ته ووايه چي الله جل وعلا هغه ذات دی چي تاسو يې له عدم څخه وجودته را ايستلي ياست اوتاسو ته يې دغو مره نعمتونه درکړي لکه غوږونه سترګي او زړونه او په ځانګړي توګه يې دغه نعمتونه څکه يادکړل چي دغه دعلم او فهم اسباب دي ﴿ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴾ (تاسي ډېرلږ شکر وباسی) (۳) يعني تاسو په دغو ډېرو نعمتونو باندي چي شمېرېې نشي کېدای ډېرلږ شکرکادی. طبري ليکي: معناداچي تاسو خپل په دغو ډېرو نعمتونو باندي لږ شکر کوی ﴿ قُلْ هُوَ ٱلَّذِى ذَرَأَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ ﴾ و وايه (ای محمده دوی ته) چي دغه الله هغه (ذات) دی چي پيدا کړي (خواره کړي) يې یې تاسي په ځمکه کي ﴿ وَإِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴾ او خاص ده ته به راټول کړی شی تاسي (لپاره د حساب او جزاء) ﴿ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا ٱلْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴾ او وايي دغه (کفار مؤمنانو ته په تمسخر سره) کله به وي دا وعده (دحشر) که چېري یې تاسي صادقان رښتيني (په دغه ويناکي نو موږ يې دراتلو په مهال پوه کړئ) ﴿ قُلْ إِنَّمَا ٱلْعِلْمُ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ ووايه (ای محمده! دغو منکرانو ته) بېشکه (ددې خبري) علم (چي قيامت به کله قائمېږي) په نزد دالله دی (له الله پرته بل چاته خبرنشته) ﴿ وَإِنَّمَآ أَنَا۠ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴾ او بېشکه (خبره داده چي) زه وېرېدونکی يم ښکاره (چي خلګ د الله له عذابه وېروم ترڅوچي د الله د حکم امتثال وکړی ويې منی ، بيا الله د مشرکانو حال پدغه بده ورځ کي داسي بيانوي

---

(۱) ابن کثير ليکي دا يو مثال دی چي الله د کافر او مؤمن لپاره بيان کړی دی د کافر مثال د ګمراهي له حاله سره دهغه چا په څېر دی چي کوږ نسکور په مخ باندي روان وي نه پوهېږي چي په کوم لوري درومي او ياڅرنګه څي؟ هغه حيران لالهاند وي، او مسلمان بيالکه هغه څوک چي سم ولاړ په سيخه لاره روان وي آيا کوم يو ددوی به سمه لاره موندونکی وي دغه که هغه؟ ابن کثير مختصر ۳/ ۳۰.

(۲) ابن عطيه ليکي چي ددې څخه مقصد د شکرنفي ده عرب له نفي څخه په قلت تعبير کوي مثلا وايي: هذه الارض قلماتنبت) يعني دغه ځمکه ده چي هيڅ بوټی نه زرغونوي. البحر ۸/ ۳۰۳.

(۳) الطبری.

﴿فَلَمَّا رَأَوْهُ زُلْفَةً﴾ پس کله چي ووینی دوی هغه (عذاب قیامت) د نږدې ﴿سِيٓـَٔتْ وُجُوهُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ (نو بد شکله توربه شي مخونه دهغو (کسانو) چي کافران شوي دي) یعني ددوی په مخونوبه دخفګان ،غم او حسرت نښي نښانې څرګندي شي او ذلت خواري به وربانديي خوره شي. په البحرکي راوړي: معنادا چي دعذاب لیدل به ددوی په مخونو کي دغم اوخفګان نښي رادبره کړي لکه چي یو سړی وژلوته بیول کېږي([1]) ﴿وَقِيلَ هَٰذَا ٱلَّذِي كُنتُم بِهِۦ تَدَّعُونَ﴾ اووبه ویل شي (دوی ته) داهمغه (عذاب) دی چي وی تاسوچي دغه موږرغوښتلو (په دنیا کي) یعني پرښتې به دوی ته دتوبیخ اوتبکیت په توګه ووایې چي داهغه عذاب دی چي تاسوپه دنیا کي دروغ ګڼل اودملنډواواستهزاء په لیکه به مو ږرغوښتل ﴿قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَهْلَكَنِىَ ٱللَّهُ وَمَن مَّعِىَ أَوْ رَحِمَنَا﴾ ووایه (ای محمده دغومنکرانوته) آیاوینی خبرراکړئ تاسي ماته که چېري هلاک مي کړي الله او هغه څوک چي له ماسره دي (لکه چي تاسي ددې قصدکړی دی ) یا رحم وکړي (الله) پرموږباندي( په طول دعمرسره ) ﴿فَمَن يُجِيرُ ٱلْكَٰفِرِينَ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ (پس څوک دی چي وبه ژغوري خلاص به کړي کافران له دردناکه عذابه څخه؟) یعني تاسوبه څوک له دردناکه عذابه وژغوري ؟دلته د (الکافرین) دلفظ ایښودل (یجیرکم) پرځای ددې لپاره راغلی چي ددوی تشنیع وکړي اوکفرور باندي تسجیل کړي مفسرین کرام لیکي: کفاروبه درسول الله صلی الله علیه وسلم او مؤمنانودهلاکت آرزوکوله نوالله جل جلاله رسول الله ته امروکړچي دوی ته ووایې چي زمااو مسلمانانوله هلاکت څخه تاسوته څه ګټه رسېږي؟ اوبیابه تاسي څوک له دردناک عذاب څخه و ژغوري ؟آیادغه بتان به تاسي له دردناک عذاب څخه خلاص کړي؟([2]) ﴿قُلْ هُوَ ٱلرَّحْمَٰنُ ءَامَنَّا بِهِۦ وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا﴾ ووایه (ای محمده دغومنکرانو ته الله) رحمان دی چي ایمان موراوړی دی پرهغه (رحمان) باندي اوپرهغه (رحمان) باندي موږتوکل کړی دی(په ټولوکارونوکي ،توکل په مال اوسړیونه کوو) ﴿فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ﴾ نوژربه پوه شی تاسي په (وخت دلیدلودعذاب کي) چي څوک دی هغه چي لوېدلی دی)په ګمراهي ښکاره کړي؟(موږیواوکه تاسو؟ پدې کي دمشرکانولپاره تهدیدنغښتی دی ) ﴿قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَصْبَحَ مَآؤُكُمْ غَوْرًا﴾ ووایه (ای محمده دغومنکرانوته) آیاوینی خبرراکړئ تاسي ماته که چېري(کښېځ) وګرزي اوبه ستاسي ښکته (په ځمکه کي) ژوري ننوتلي (چي تاسوبې درااېستلوتوان نلری) ﴿فَمَن يَأْتِيكُم بِمَآءٍ مَّعِينٍۭ﴾ نوڅوک دی چي راولي تاسي ته اوبه رواني شفافي رڼې پاکي جاري په ځمکه ؟آیاله الله پرته بل څوک یې درته رااېستلای شي؟ نوبیاولي له خالق رازق الله سره نوربتان شریک نیسی؟!

**بلاغت:**

پدې مبارک سورت کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډیزیې دادی:

---

([1]) البحر ۳۰۸/۸

([2]) کبیرتفسیر ۷۲/۳۰

۱ – دطباق صنعت چي د ﴿ ٱلۡمَوۡتَ.. وَٱلۡحَيَوٰةَ ﴾ اود ﴿ وَأَسِرُّواْ.. أَوِ ٱجۡهَرُواْ ﴾ اود ﴿ صَٰٓفَّٰتٖ.. وَيَقۡبِضۡنَ ﴾ ترمينځ شتون لري

۲ – دموصول راوړل دتعظيم اوتفخيم لپاره لکه ﴿ ٱلَّذِي بِيَدِهِ ٱلۡمُلۡكُ ﴾ يعني الله لره پاچهي، سلطان اوپه کائناتو کي دتصرف واک اوځواک دی.

۳ – داطناب صنعت دجملې په تکرارسره چي تنبيه اوتذکير زيات کړي لکه ﴿ فَٱرۡجِعِ ٱلۡبَصَرَ... ثُمَّ ٱرۡجِعِ ٱلۡبَصَرَ كَرَّتَيۡنِ ﴾ اوداسي ﴿ مَا كُنَّا فِيٓ أَصۡحَٰبِ ٱلسَّعِيرِ ﴾ او ﴿ فَسُحۡقٗا لِّأَصۡحَٰبِ ٱلسَّعِيرِ ﴾.

۴ – انکاري استفهام دتوبيخ اوتقريع لپاره لکه ﴿ أَلَمۡ يَأۡتِكُمۡ نَذِيرٞ ﴾ ؟.

۵ – دمقابلې صنعت چي فرمايې ﴿ وَلِلَّذِينَ كَفَرُواْ بِرَبِّهِمۡ عَذَابُ جَهَنَّمَۖ ﴾ چي مقابله يې کړي په دې کلام سره چي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَخۡشَوۡنَ رَبَّهُم بِٱلۡغَيۡبِ لَهُم مَّغۡفِرَةٞ وَأَجۡرٞ كَبِيرٞ ﴾ اوداهم له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي.

۶ – مکنيه استعاره هلته چي راځي ﴿ تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ ٱلۡغَيۡظِۖ ﴾ جهنم يې له سخته ايشېدلوڅخه له هغه انسان سره مشابه کړچي په دښمن باندي سخت قهرېدونکی وي نژدې وي چي له زياته قهره او غصې وچوي مشبه به يې حذف کړي اودهغه له لوازموڅخه چي سخت قهردی، دمکنيې استعارې په توګه راوړی دی.

۷ – تمثيلي استعاره لکه داچي ﴿ أَفَمَن يَمۡشِي مُكِبًّا عَلَىٰ وَجۡهِهِۦٓ أَهۡدَىٰٓ أَمَّن يَمۡشِي سَوِيًّا عَلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴾ اودغه دتمثيل په توګه چي مؤمن يې له هغه چاسره چي سم ولاړپه سمه لاره درومي اوکافريې بياله هغه پرمخي نسکورسره چي دوزخ ته ځي مثال راووړڅومره له خونده ډکه استعاره ده.؟( ! )

۸ – مرصع سجع چي دآيتونودپيل مراعات کوي لکه ﴿ فَسَتَعۡلَمُونَ كَيۡفَ نَذِيرِ ﴾ ﴿ فَكَيۡفَ كَانَ نَكِيرِ ﴾ ﴿ إِنَّهُۥ بِكُلِّ شَيۡءِۭ بَصِيرٌ ﴾ اويا داچي ﴿ إِنِ ٱلۡكَٰفِرُونَ إِلَّا فِي غُرُورٍ ﴾ ﴿ بَل لَّجُّواْ فِي عُتُوّٖ وَنُفُورٍ ﴾ ترپايه پوري چي دغه مرصع سجع هم په قرآنکريم کي ډېره ترسترګو کېږي اوخورا اغېزمنه ده.

دالله جل جلاله په مرسته دالملک سورت دتفسيرژباړه بشپړه شوه

***

## د(القلم)سورت مکي دی اودوه پنځوس آیتونه لري.

دسورت په وړاندي:

دالقلم سورت مکي دی اودعقیدې اوایمان اصول ښیي په دغه سورت کي درې بنسټیزي چاري راځي چي هغه:

أ - درسالت موضوع اوهغه شکوک اوشبهات دي چي دمکې کفاروبه دمحمدبن عبدالله ﷺ درسالت اودعوت په هکله خپرول

ب - دبډ دخاوندانو کیسه اودهغه چابرخه لیک چي دالله دنعمتونو کفران کوي

ج - آخرت اودهغه کړاوونه اوهلته چي دمؤمنانو اوکفاروددواړو دلوپاره الله تعالی څه تیارکړي

خودسورت محورکوم چي سورت ورباندي راتاوېږي دمحمدصلی الله علیه وسلم دنبوت اثبات دی.

سورت درسول الله صلی الله علیه وسلم په سترمنزلت اومقام باندي قسم اخلي دهغه شرافت اوقدرستاییي اوله هغه څه څخه کوم چي مشرکانوبه ورباندي تورن کاوو درسول الله برائت څرګندوي مغوی به رسول الله ته لېونی وایو همداسي درسول الله علیه السلام دستروا خلاقو اوچتوصفاتو یادونه کوي چي ﴿ نٓ ۚ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُونَ ، مَآ أَنتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُونٍ ، وَإِنَّ لَكَ لَأَجْرًا غَيْرَ مَمْنُونٍ ، وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ ﴾ دآیتونوترپایه

وروسته درسول الله دبلني اودعوت په وړاندي دکفارودریزښکاره کوي اوبیاهغه عذاب اونکال چي ددوی لپاره چمتودی راوړي فرمایي ﴿ فَلَا تُطِعِ ٱلْمُكَذِّبِينَ ، وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ ، وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ ﴾ دآیتونوترپایه.

بیادمکي کفارودهغه کفران په هکله چي دالله دنعمتونوپه مقابل کي یې درلودکوم چي درسول الله ﷺ بعثت ترګردوسترنعمت دی ددوی لپاره هغه دبډ دخاوندانو مثال راوړي کوم چي ښایسته دونو مېوو باغ یې درلودخودوی دنعمت شکرادانکړاودفقیرانواومساکینوپه حق یې خېټه واچوله نوالله د دوی باغ وسوځاوو اوددوی کیسه یې دعبرت اخیستونکولپاره سبق کړه ﴿ إِنَّا بَلَوْنَٰهُمْ كَمَا بَلَوْنَآ أَصْحَٰبَ ٱلْجَنَّةِ إِذْ أَقْسَمُوا لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِينَ ، وَلَا يَسْتَثْنُونَ ، فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ مِّن رَّبِّكَ وَهُمْ نَآئِمُونَ ، فَأَصْبَحَتْ كَٱلصَّرِيمِ ﴾ دآیتونوترپایه.

وروسته سورت دمؤمنانواوکفاروترمینځ دقرآنکریم په اسلوبوپرتله کوي ترڅوترغیب او ترهیب یوپربل پسي راشي ﴿ أَفَنَجْعَلُ ٱلْمُسْلِمِينَ كَٱلْمُجْرِمِينَ ، مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴾ دآیتونوترپایه.

سورت دقیامت حالات اوکړاوونه اودمجرمینوتم ځای (موقف) داسي ښیي چي دوی ته به وویل شي رب العالمین ته سجده ولګوي مګروبه نکړای شي فرمایي: ﴿ يَوْمَ يُكْشَفُ عَن سَاقٍ وَيُدْعَوْنَ إِلَى ٱلسُّجُودِ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ ﴾.

په آخرکي سورت په هغه حکم چي رسول الله ته دمشرکانوله لوري په ځوراوکړولودصبرلپاره صادرشوی پای ته رسېږي اوهغه ته ماربینه کوي چي دهغه تکلیف اوځورونې په وړاندي کوم چي دده

دبلني اودعوت په لاره کي دمشرکانوله خوا ورسره مخامخ کېږي بې صبري ونکړي لکه چي له يونس
عليه السلام څخه پېښه شوه چي قوم يې پرېښوداوهغه په سمندرکي دسفرکولولپاره په بېړۍ کي
سپورشوفرمايي ﴿فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ الْحُوتِ إِذْ نَادَىٰ وَهُوَ مَكْظُومٌ﴾ دآيتونوترپايه

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُونَ ﴿١﴾ مَآ أَنتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُونٍ ﴿٢﴾ وَإِنَّ لَكَ لَأَجْرًا غَيْرَ مَمْنُونٍ ﴿٣﴾ وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ
﴿٤﴾ فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُونَ ﴿٥﴾ بِأَييِّكُمُ الْمَفْتُونُ ﴿٦﴾ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِۦ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴿٧﴾
فَلَا تُطِعِ الْمُكَذِّبِينَ ﴿٨﴾ وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ ﴿٩﴾ وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ ﴿١٠﴾ هَمَّازٍ مَّشَّآءٍ بِنَمِيمٍ ﴿١١﴾ مَّنَّاعٍ
لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ﴿١٢﴾ عُتُلٍّ بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ ﴿١٣﴾ أَن كَانَ ذَا مَالٍ وَبَنِينَ ﴿١٤﴾ إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ءَايَٰتُنَا قَالَ أَسَٰطِيرُ
الْأَوَّلِينَ ﴿١٥﴾ سَنَسِمُهُۥ عَلَى الْخُرْطُومِ ﴿١٦﴾ إِنَّا بَلَوْنَٰهُمْ كَمَا بَلَوْنَآ أَصْحَٰبَ الْجَنَّةِ إِذْ أَقْسَمُوا لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِينَ ﴿١٧﴾ وَلَا يَسْتَثْنُونَ ﴿١٨﴾
فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ مِّن رَّبِّكَ وَهُمْ نَآئِمُونَ ﴿١٩﴾ فَأَصْبَحَتْ كَالصَّرِيمِ ﴿٢٠﴾ فَتَنَادَوْا مُصْبِحِينَ ﴿٢١﴾ أَنِ اغْدُوا عَلَىٰ حَرْثِكُمْ إِن كُنتُمْ صَٰرِمِينَ
﴿٢٢﴾ فَانطَلَقُوا وَهُمْ يَتَخَٰفَتُونَ ﴿٢٣﴾ أَن لَّا يَدْخُلَنَّهَا الْيَوْمَ عَلَيْكُم مِّسْكِينٌ ﴿٢٤﴾ وَغَدَوْا عَلَىٰ حَرْدٍ قَٰدِرِينَ ﴿٢٥﴾ فَلَمَّا رَأَوْهَا قَالُوٓا إِنَّا لَضَآلُّونَ
﴿٢٦﴾ بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ ﴿٢٧﴾ قَالَ أَوْسَطُهُمْ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُونَ ﴿٢٨﴾ قَالُوا سُبْحَٰنَ رَبِّنَآ إِنَّا كُنَّا ظَٰلِمِينَ ﴿٢٩﴾ فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ
بَعْضٍ يَتَلَٰوَمُونَ ﴿٣٠﴾ قَالُوا يَٰوَيْلَنَآ إِنَّا كُنَّا طَٰغِينَ ﴿٣١﴾ عَسَىٰ رَبُّنَآ أَن يُبْدِلَنَا خَيْرًا مِّنْهَآ إِنَّآ إِلَىٰ رَبِّنَا رَٰغِبُونَ ﴿٣٢﴾ كَذَٰلِكَ الْعَذَابُ وَلَعَذَابُ
الْءَاخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴿٣٣﴾ إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّٰتِ النَّعِيمِ ﴿٣٤﴾ أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِينَ كَالْمُجْرِمِينَ ﴿٣٥﴾ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ
﴿٣٦﴾ أَمْ لَكُمْ كِتَٰبٌ فِيهِ تَدْرُسُونَ ﴿٣٧﴾ إِنَّ لَكُمْ فِيهِ لَمَا تَخَيَّرُونَ ﴿٣٨﴾ أَمْ لَكُمْ أَيْمَٰنٌ عَلَيْنَا بَٰلِغَةٌ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَٰمَةِ إِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُونَ
﴿٣٩﴾ سَلْهُمْ أَيُّهُم بِذَٰلِكَ زَعِيمٌ ﴿٤٠﴾ أَمْ لَهُمْ شُرَكَآءُ فَلْيَأْتُوا بِشُرَكَآئِهِمْ إِن كَانُوا صَٰدِقِينَ ﴿٤١﴾ يَوْمَ يُكْشَفُ عَن سَاقٍ وَيُدْعَوْنَ إِلَى
السُّجُودِ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ ﴿٤٢﴾ خَٰشِعَةً أَبْصَٰرُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ وَقَدْ كَانُوا يُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ وَهُمْ سَٰلِمُونَ ﴿٤٣﴾ فَذَرْنِي وَمَن يُكَذِّبُ بِهَٰذَا
الْحَدِيثِ سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٤٤﴾ وَأُمْلِي لَهُمْ إِنَّ كَيْدِي مَتِينٌ ﴿٤٥﴾ أَمْ تَسْـَٔلُهُمْ أَجْرًا فَهُم مِّن مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُونَ ﴿٤٦﴾ أَمْ
عِندَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُونَ ﴿٤٧﴾ فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ الْحُوتِ إِذْ نَادَىٰ وَهُوَ مَكْظُومٌ ﴿٤٨﴾ لَّوْلَآ أَن تَدَٰرَكَهُۥ نِعْمَةٌ
مِّن رَّبِّهِۦ لَنُبِذَ بِالْعَرَآءِ وَهُوَ مَذْمُومٌ ﴿٤٩﴾ فَاجْتَبَٰهُ رَبُّهُۥ فَجَعَلَهُۥ مِنَ الصَّٰلِحِينَ ﴿٥٠﴾ وَإِن يَكَادُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَيُزْلِقُونَكَ بِأَبْصَٰرِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا
الذِّكْرَ وَيَقُولُونَ إِنَّهُۥ لَمَجْنُونٌ ﴿٥١﴾ وَمَا هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَٰلَمِينَ ﴿٥٢﴾﴾ القلم: ١ - ٥٢

لغتونه:

(يسطرون) چي دوی يې ليکي(سطرالعلم) معناعلم يې په قلم وليکل(ممنون) غوڅ (پرېکړی) شوي
(عتل) سخت زړه، شريراوله (عتل) څخه اخيستل شوی چي کشولوته وايي لکه (خذوه فاعتلوه) په

الصحاح كي وايې چي: په زوره كشول دعتل معناده (١)(زنيم) په يوقوم پوري تړل شوى چي دهغوى څخه نه وي، هغه چاته وايې چي پلاريې معلوم نه وي شاعروايي : زنيم ليس يعرف من ابوه * بغي الام ذوحسب لئيم. هغه حرامزاده دى پلاريې نه دى معلوم موريې بې لاري اوخپلوان يې لئيمان بخيلان دي (صارمين) پرې كونكي لانبونكي(حرد) قصداوعزم(زعيم) كفيل اوضامن (مكظوم)ډک له غمه.

تفسير:

﴿ نٓ ۚ وَٱلْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُونَ ﴾ (نون)له مقطعاتوتوروڅخه دى چي په قرآني اعجازباندي دتنبيه لپاره راوړل شوي) (٢) قسم دى په قلم اوپه هغه څه چي دوى يې ليكي (له علوموا ومعارفوڅخه ځكه چي قلم دڅېي ورور دى اوپه بندګانوباندي دالله يوسترنعمت دى يعني قسم دى په قلم اوهغه څه چي كاتبان ليكوالان يې ليكي په ربښتنولي دمحمدصلى الله عليه وسلم چي هغه له هغه څه نه چي مجرمين ورته دناپوهي اولېونتوب نسبت كوې سالم اوروغ دى، داچي په قلم اوليكنه قسم راغلى ددې لپاره تر څو چي دليک اولوست فضيلت په ډاګه كړي چي انسان يې له ګردومخلوقاتوڅخه ددغه قلم په نعمت نازولى ترڅو چي دزړه خبري په ليكنه څرګندي كړي ﴿ عَلَّمَ بِٱلْقَلَمِ عَلَّمَ ٱلْإِنسَٰنَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ﴾ دقلم د شرافت همدابس دى چي الله ورباندي په دغه سورت كي قسم اخيستى ترڅوچي دليكوالانواوپوهانو تمجيد اوستاينه وشي ځكه چي دقلم په واسطه هم دغسي لكه دڅبي بيان كېږي اودقلم په ذريعه علوم اوفنون خوندي كېږي ابن كثيروايې چي دالله له دي ويناڅخه چي فرمايې ﴿ نٓ ۚ وَٱلْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُونَ ﴾ دقلم جنس مراددى هغه قلم چي ورباندي ليكنه كېږي اودغه قسم اولوړه دالله له لوري خلګوته تنبيه وركول دي چي دغه قلم دالله له لوري پردوى يوانعام دى چي دليک زده كړه يې وركړي كوم چي ورباندي علوم ترلاسه كېږي (٣)﴿ مَآ أَنتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُونٍ ﴾ (چي نه يې ته (اى محمده !) په نعمت (نبوت انعام) درب خپل سره لېونى) يعني اى محمده ته دالله په هغه نعمت، فضل چي نبوت يې دركړى لېونى نه يې لكه چي جاهلان وايي ته الحمدلله هوښياريې هسي نه لكه چي دوى وايې چي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِى نُزِّلَ عَلَيْهِ ٱلذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ ﴾ (الحجر:٦) ابن عطيه وايې چي دغه دقسم ځواب دى اوداقول چي ﴿ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ ﴾اعتراض دى لكه چي ته يوچاته وايې چي ته الحمدلله فاضل عالم يې (٤)﴿ وَإِنَّ لَكَ لَأَجْرًا غَيْرَ مَمْنُونٍ ﴾ (اوبېشكه دى خاص تالره خامخا اجربدل ثواب بې انتهاء) يعني اوتالره په هغه تكاليفواو ځورونو چي دالله دتبليغ په لاره كي درته ورسېدل بشپړثواب دى چي انقطاع يې نشته ﴿ وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ ﴾اوبېشكه ته چي يې

---

(١) الصحاح دعتل ماده.
(٢) ددې تحقيق دالبقرة سورت په پيل كي وګوره !.
(٣) مختصرابن كثير ٣ /٥٣٢
(٤) البحرالمحيط ٨ /٣٠٧ ابوحيان ليكي چي په آيت شريف كي دنبوت ددعوې په ربښتنولي باندي غوڅ دليل شته ځكه چي نعمت درسول الله په حق كي ښېخي ښكاره اوڅرګند ووچي ښكلى فصاحت ، بشپړعقل، ښايسته خويونه اواخلاق اوټول سپېڅلي صفات يې لرل

هرومروپه خويونولويويي (په تحقيق سره الله په تاكي سترصفات اوفاضل كمالات جمع كړي څومره سترشرافت دی چي هيڅ انسان دغي مرتبې ته رسېدلای نشي الله رب العزت خپل پيغمبر(محمدصلى الله عليه وسلم پدې صفت سره ستايې چي )﴿ وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ ﴾ اودهغه له خويونوڅخه حلم وو علم وو حياٴ، وه زيات عبادت اوسخاوه صبرووااوصدق وو،شكروو تواضع وه زهدوو رحمت اومهرباني وه شفقت ، امانت ، معاشرت اونيک اخلاق وو اوداسي نورښايسته ښكلي خويونه اواخلاق شاعرڅومره ښه ويلي چي:

**اذ الله أثنى بالذى هوأهله • عليک فمامقدارماتمدح الورى.**

كله چي الله له خپله شانه سره سمه ستاثناويلي نوبيادنوروخلكودثناڅه قدر شته؟﴿ فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُونَ ﴾ (پس ژربه و وينې ته (ای محمده!) اودغه (منكران) به هم ويني) يعني ای محمده ژردي چي ته به اوستاقوم اومخالفين دمكې كفاربه كله چي وربانديعذاب نازل شي ووينې چي ﴿ بِأَييِّكُمُ ٱلْمَفْتُونُ ﴾ په كوم يوه له تاسي څخه لېونتوب دی؟ (آيالكه چي دوی وايي ته لېونی يې اوكه دوی لېوني دي چي له حق اوهدايت څخه يې غاړه غړولي ده ؟ قرطبي وايې چي دمفتون معناهغه دشيطان په واسطه لېونی دی دلته دسورت دېره برخه دوليدبن مغيرة اوابوجهل په باب كي راغلي مشركانوبه ويل چي له محمدسره شيطان دی قصدبه يې اداووچي ګواكي هغه لېونی دی نوالله جل جلاله وفرمايل چي دوی به سباته ووينې چي لېونی څوک دی ؟ يعني هغه څوک دی چي شيطان يې عقل له سره بېل كړی او لېونتوب ته يې رسولی وي([2]) ﴿ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِۦ ﴾ بېشكه رب ستاچي دی همغه ته ډېرښه معلوم دی دی هغه څوک چي ګمراه شويدی له لاري دده څخه ﴿ وَهُوَ أَعْلَمُ بِٱلْمُهْتَدِينَ ﴾ اوهمغه (الله) ته ښه معلوم دی لاره موندونكي(چي مؤمنان دي، دغه دپخواني لپاره تعليل اودوعداو وعيد لپاره تاكيددی لكه چي وايي په حقيقت كي دوی لېونيان دي ته لېونی نه يې ځكه چي دوی عقلونه درلودل خووربانديګته يې نه اخيستله اونه يې په هغه لاره ليكه وچلول چي دوی وژغوري او نېكمرغي ورپه برخه كړي ﴿ فَلَا تُطِعِ ٱلْمُكَذِّبِينَ ﴾ (نوته مه منه خبره ددروغجن كونكو ) يعني ته د هغوكسانوچي ستادرسالت اوقرآن تكذيب كوي يعني دكفر اوضلالت دسردارانو كله چي دوی دي يوې چاري ته بولي خبره مه منه امام رازي ليكي چي : دمكې دخلكومشرانومحمد صلى الله عليه وسلم ته دخپلو پلرونوددين دمنلودعوت وركاوو الله

([1]) حضرات شيخين له انس رضى الله عنه څخه روايت راوړی چي هغه وايي : مالس كاله درسول الله صلى الله عليه وسلم خدمت وكړپه دې ټوله موده كي يې ماته دزجر كلمه نه ده ويلي اونه يې هيڅكله دكوم كارپه هكله چي مابه كړی ووراته ويلي دي چي ولي دي كړی؟ اوياچي نه به مي كړی ووراته ويلي دي چي ولي دي نه دی كړی ؟ هغه تركردوخلكودښواخلاقو خاوندوو مادرسول الله ترلاس پاسته ورېښم نه دي ليدلي اونه مي درسول الله تر خولم (عرق) خوشبوئي مشک اوعطرخوشبويه احساس كړی متفق عليه اوپه بخاري كي له حضرت عائشې رضى الله عنهاڅخه دپيغمبرعليه السلام دخويونوپه هكله وپوښتل شول هغې ورته وويل خويونه يې قرآن وو. يعني دقرآن خويونه اواخلاق يې خپل كړي وو.

([2]) القرطبي ۱۸/ ۲۲۹

جل جلاله له دغه دعوت منلو څخه منع کړ اودغه دالله له لوري ددوی دمخالفت لپاره راپارونه او هڅونه ده(۱) ﴿ وَدُّوا۟ لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ ﴾ خوښوي دوی چي که ته نرمي کوې (له دوی سره) نودوی به هم نرمي کوي (له تاسره) يعني ددوی دا خوښه ده چي ته ورسره نرمي وکړې اوهغه چي دوی یې نه خوښوي پرېږدې نودوی به هم له تاسره نرمي غوره کړي اوبالمثل عمل ته به غاړه کېږدي. په التسهیل کي لیکي چي (مداهنت) هغي غوره مالي نرمي اومدارات ته ویل وايې چي په نه ښائېدونکي خایونو کي ترسره شي، روایت کېږي چي کفارونبي علیه السلام ته ویل که ته زموږ دمعبودانوعبادت وکړې نو موږبه ستادمعبودعبادت وکړو نودا آیت نازل شو(۲) ﴿ وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ ﴾ نوته مه منه (خبره) دهرډېر قسم خوړونکي (په حق او باطل هغه چي دالله دعظمت سپکتیاکوي) ﴿ مَّهِينٍ ﴾ سپک فاجر حقیر ﴿ هَمَّازٍ ﴾ عیب ویونکي (غیبت کونکي) اوپه غیبت دخلګوغوښي خوړونکي پېغورورکونکي اوعیب لټونکي ﴿ مَّشَّآءٍۭ بِنَمِيمٍ ﴾ تلونکي په چغلي سره (دخلګوترمينځ چي دیوه خبره بل ته وړي ترڅوېې په مینځ کي درز واچوي اوهمدغه فتنه ګراوچغلي ګردي په حدیث شریف کي راغي (لایدخل الجنة نمام) (۳) جنت ته چغلي ګرنه داخلېږي ﴿ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ ﴾ منع کونکی دخیر (بخیل اوممسک چي د الله په لاره کي مال نه لګوي) ﴿ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ﴾ (له حده تېرېدونکی (په ظلم کي) ډېرګنهګاربدخوی دغه اوصاف چي ﴿ حَلَّافٍ، هَمَّازٍ، مَّشَّآءٍ، مَّنَّاعٍ ﴾ دي ګرددمبالغې په صیغه راغلي ترڅوچي په کثرت دلالت وکړي ﴿ عُتُلٍّۭ ﴾ بدخوی سخت ویونکی (قاسي القلب اوناپوه) ﴿ بَعْدَ ذَٰلِكَ ﴾ وروسته له دې ټولو عیوبو(چي مخکي تېرشو) ﴿ زَنِيمٍ ﴾ حرامزاده (اودغه ترټولوسخت عیب دی چي هغه په چا پسي تړل شوی اصلي پلاربې نه وي معلوم، مفسرین کرام وایې چي دغه دولیدبن مغیرة په هکله نازل شوی ځکه هغه په قریشوپسي ځان تړلی وواوقریش نه وودهغه پلارمغیرة ولیدله اتلس کلنی. وروسته په زوېوالي نیولی وواوتردې له مخه دولید پلارچانه پېژانده ، ابن عبَّاس رضی الله عنه وایې چي: هیڅوک الله په دغومره عیوبونه دی ویشتلی لکه چي دغه (بدمرغه) یې ویشتلی داسي پېغور یې ورکړی چي هیڅکله ترې بېلېدونکی نه دی اوچي پدې وروستني یې وستایو معناداچي کله نطفه پلیته اوفاسده شي نو بیازوی هیڅکله هم سم نه وي اوروایت کېږي کله چي آیت شریف نازل شونو ولید خپلي مورته راغی ورته ویل یې چي محمدزه په نهوصفتونوباندي ستایلی یم چي ګردماته معلوم دي اوپه ماکي شته خونهم صفت مقصدېې (زنیم) ووکه رښتیاراته ونه وایې په توره به دي ورمېږ غوڅ کړم هغې ورته وویل : ستاپلارنرښځی (عنین) ووله ښځوسره کوروالی یې نشوای کولای زه په مال دولت ووېرېدم نومي له شپانه سره (جماع کوروالی) وکړه نوته دهغه شپانه زوی یې ترهغوچانه پېژانده څودا آیت شریف یې په

---

(۱) کبیرتفسیر ۳۰/۸۳

(۲) التسهیل لعلوم التنزیل ۴/۱۳۸

(۳) أخرجه مسلم

هکله نازل شو(١) ﴿أَن كَانَ ذَا مَالٍ وَبَنِينَ﴾ ددې لپاره چې دی وو خاوند د مال او زامنو (نو يې د قرآنکريم په هکله هغه څه وويل چې ويې ويل هغه داسي انګېرله چې دغه پخواني کيسې دي ، مناسب خو داوه چې د نعمت شکرېې اداکړی وای مګر هغه انکار وکړاو تکذيب يې څرګند کړ ﴿إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ءَايَٰتُنَا قَالَ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ﴾ کله چې ولوستل شي پر ده باندي آيتونه (د قرآن) زموږ نو وايې: دا نکلونه دي د پخوانيو (خلګو ) يعني کله چې په دغه فاجر باندي قرآني آيتونه ولوستل شي نو هغه د ملنډو او استهزآء په توګه وايې چې دغه د پخوانيو خلګو کيسې دي چې محمد له ځانه جوړي کړي او په الله پسي يې تړلي دي الله تعالی هغه ته په عذاب تهديد ورکوي ورته وايې ﴿سَنَسِمُهُۥ عَلَى ٱلْخُرْطُومِ﴾ ژردی چې داغ به کېږدو ده لره په پوزه (خلتم) باندي (تحقيراً ) چې ترمرګه به ورباندي پېژندل کېږي داچې له پوزي څخه يې په خلتم تعبيروکړچې سپکاوی يې وشي ځکه چې خلتم د فيل او خنزيروي نو کله چې د انسان پوزه له هغه سره تشبيه شي دغه دهغه نهايته سپکتيا او ذلت دی لکه چې د انسان اندامونه د حيوان له اندامونو سره تشبيه شي. ابن عباس وايې: معنا داچې پوزه به يې په توره نښاني کړو او ترڅوږوندی وي دغه نښه به ولري او په رښتيا چې د بدر په ورځ يې پوزه په توره نښاني شوه (٢) امام فخر رازي ليکي څرنګه چې مخ په بدن کي ترټولو اندامونو د عزت خاوند او پوزه بيا په مخ کي عزتمنه ده چې لوړتيا لري ځکه نو دوی هغه د عزت او غيرت نښه وبلله چې (أنفة) يې ور څخه مشتق کړه او همداسي ذليل په هکله وايې (رغم أنفه) نو په پوزه داغ ورکول نهايته اذلال او اهانت دی ځکه چې په مخ باندي لا د پېغور داغ عيب دی او چې په پوزه وي داخو ښخي ستر عيب دی ولي به نه وي چې په مخ کي عزتمن ځای هم دا پوزه ده (٣) وروسته الله تعالی د باغ د خاوندانو کيسه رااخلي چې څرنګه الله د دوی د مېوو او کښتو فصلونه وسوځول ؟ او دغه يې د مکې د کفارو لپاره مثال راوړچې ﴿إِنَّا بَلَوْنَٰهُمْ كَمَا بَلَوْنَآ أَصْحَٰبَ ٱلْجَنَّةِ﴾ بېشکه موږ وازمويل دغه (د مکې کفار په کاختي سره) لکه چې ازمويلي وو موږ خاوندان د باغ) يعنې موږ دغه مکيان د رسول الله په دعا سره په کاختي اولوږه وازمويل لکه چې د باغ خاوندان هغه چې قسماقسم مېوې پکې وې موږ ازمويلي وو موږ د مکې خلګ پدې مکلف کړل چې د نعمتونو شکر وکړي لکه چې د باغ خاوندان په شکر کولو ازمويلي وو چې د فقيرانو برخه دي ورکړي. مفسرين کرام ليکي چې: په يمن کي ديو مسلمان سړي له صنعاء سره نژدې يو باغ وو چې پکې ډول ډول خرماوي مېوې او کښتونه وو کله چې به يې مېوې ټولېدې او کښت به يې رېبل کېدو نو به يې فقيران راوغوښتل او په پراخه پېمانه به يې هغوی ته ونډه ورکړه او اکرام عزت به يې وکړ خو کله چې سړی وفات شو نو دغه باغ په ترکه کي دريو زامنو ته پاتي شو هغوی وويل چې :اولادونه موزيات او مال لږ دی د پلار په شان موږ دغه مېوې د اني مسکينانو ته نشو ورکولای لکه چې پلار مو ورکولې نو يې داسي وپتېيله چې چاته به هيڅ نه ورکوي او دغه مېوه به داسي وخت ټولوي چې څوک نه وي او پدې يې لوړه واخيسته نو الله جل جلاله د شپې او د

(١) د جلالين تفسيراو پرهغه د صاوي حاشيه ۴/ ۲۳۳

(٢) وګوره تفسير کبير ۳۰/ ۸۷

(٣) البحر المحيط ۸/ ۳۱۱

وریاندي راواستاوو ونې یې وروسوځولې اومېوې یې له مینځه یووړې کله چې دوی سباون مهال خپل باغ ته ورغلل هلته یې ونه اومېوه ونه لیدله ګمان یې وکړچې لاره یې ورکه کړې خوبیاورته معلومه شوه چې همدغه ددوی باغ دی اوپدې وپوهېدل چې الله تعالی دوی ته عذاب ورکړ اوددوی په بدنیت یې رازمویل اوپداسې وخت کې پښېمانه اوتوبه ګارشول چې هغه وخت تېرشوی اوګټه یې نه لرله (۱) ﴿ إِذْ أَقْسَمُوا لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِينَ ﴾ کله چې قسمونه وخوړل دوی ټولو چې هرومرووېرې به کړو مېوې دهغه باغ په اول وخت دسباکې (پخواله دې چې مسکینان راووزي) ﴿ وَلَا يَسْتَثْنُونَ ﴾ اواستثناء یې ونکړه، انشاء الله یې ونه ویل (لکه چې دوی پخپله چاره باوري وو) ﴿ فَطَافَ عَلَيْهَا طَائِفٌ مِّن رَّبِّكَ وَهُمْ نَائِمُونَ ﴾ پس نازله شوه پردغه باغ یوه طواف کونکې (سوځونکې بلا) په شپه کې (له طرفه د) رب ستاحال داچې دوی ویده وو. کلبي وایي چې: چې دوی ویده ووالله له آسمانه اورورته راواستاوو هغه اوربې ګردکښت اومېوې وروسوځولې ﴿ فَأَصْبَحَتْ كَالصَّرِيمِ ﴾ پس ترګهېځ وختې پورې وګرزېدوهغه باغ لکه له بېخه رېبلی شوی کښت، یاتک تورلکه توره شپه) یعنې دغه باغ او کښت لکه رېبلی اووچ ټوکرټوکرشوی وو. ابن عباس رضی الله عنه وایي لکه چې توري ایرې غوندې ګرزېدلی وودوی دخپلې ګناه له امله دباغ له خیرښېګڼې څخه بې برخې شوي وو ﴿ فَتَنَادَوْا مُصْبِحِينَ ﴾ بیایې یوبل ته دسباپه وخت کې ورغږکړ (چې له وعدې سره سم باغ ته ولاړشي) ﴿ أَنِ اغْدُوا عَلَىٰ حَرْثِكُمْ إِن كُنتُمْ صَارِمِينَ ﴾ چې سباله وخته ورشئ کښتوخپلوته که یې تاسې پرې کونکي (دمېوې اولو کونکي د کښت فصل) ﴿ فَانطَلَقُوا وَهُمْ يَتَخَافَتُونَ ﴾ نو ولاړل دوی اودوی پخپل مینځ کې پټې خبرې سره کولې؛ ترڅوچې مسکینان ورخبرنشي داسې یې ویل: ﴿ أَن لَّا يَدْخُلَنَّهَا الْيَوْمَ عَلَيْكُم مِّسْكِينٌ ﴾ چې داخل نشي هرومرو هغه باغ ته نن ورځ پرتاسې باندې هیڅ مسکین محتاج اړسړی ﴿ وَغَدَوْا عَلَىٰ حَرْدٍ قَادِرِينَ ﴾ اوسهار لاړل په قصداوقدرت سره (باغ ته) حال داچې قادروو په منع دفقیرانو (پخپل زعم سره) ابن عباس رضی الله عنه وایې (علی حرد) معناپه قدرت اوقصدسره اوسدي وایې چې په قهراوغصه سره یې معناده حسن رحمه الله وایې چې معنایې په فقراواړتیاسره دي(۲) خوداابن عباس رضی الله عنه وینا ترګردو څرګنده ده ﴿ فَلَمَّا رَأَوْهَا قَالُوا إِنَّا لَضَالُّونَ ﴾ بیاهرکله چې ویې لید هغه باغ (تک تورسوځېدلی) ویې ویل بېشکه موږ خامخالاره ورکه کړې ده (دغه زموږباغ نه دی، ابوحیان وایې: دغه ددوی هغه وېناوه چې لومړی باغ ته ور ورسېدل نودوی ته نااشناڅرګندشو ویل یې لاره مووروکه کړې ده بیاورته څرګنده شوه چې همدغه ددوی باغ دی خودالله دعذاب په نتېجه کې همداسې شوي نوپدې

(۱) تفسیرکبیر۳۰/۸۲
(۲) طبري وایې معنایې ترټولوغوره داده چې دوی سهاروختې په هغه چاره چې قصدیې کړی وواوچمتووالی یې ښودلی اوپټ تصمیم یې نیولی ووتل اودغه دابن عباس ویناته ورته دی هغه چې موږهم غوره کړې ده.

وخت کي يې وويل : (۱)﴿ بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ ﴾ بلکه موږ پخپله محروم بې برخي شوي يو(له میوې کښتونو دهغه څخه په سبب دمنع کولو دفقيرانو دغه موږ پخپله په ځان ودراوو. ﴿ قَالَ أَوْسَطُهُمْ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُونَ ﴾ وويل منځني بهتر(هوښيار) ددوی آیاماتاسي ته نه وو ویلي ولي تاسي په پاکي الله نه يادوی؟ (چي سبحان الله یاانشاء الله وواياست په البحرالمحيط کي ليکي چي دوی يې وترټل اوتنبيه يې کړل چي دوی هغه دده وينا په ډاګ واچوله اوکه څېري يې دالله يادکولای اويايې احسان منلای نودالله هغه حکم به يې چي له مسکينانوسره ښه کول دي پرځای کړي وای اودپلار په پله به روان شوي وای نوکله چي دوی دالله له یاده غافل شول اوداسي پخه اراده يې وکړه چي مسکينان به منع کوي نوالله جل جلاله دوی وازمویل (۲) امام رازي ليکي: کله چي خلګو دزکات دنه ورکولو عزم وکړ اوپخپل مال غره شول په خپل قوت تېروتل نومنځني دراېي خاوند هوښيار ورورېي ورته وويل چي: ترعذاب راتلودمخه له دې ګناه څخه توبه وباسئ کله چي يې دباغ (بترحالت وليد نوږومبی. وينايي ورپه يادکړه دوی هم توبه ايستل پيل کړل مګرهغه وخت چي بصره تباه شوي وه ګټه يې نه درلوده. (۳)﴿ قَالُوا سُبْحَانَ رَبِّنَا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ ﴾ و ويل دوی پاکي ده رب زموږ لره بېشکه موږ ووپخپله ظالمان (په منع دفقيرانو کي) يعني دوی وويل چي: بېشکه الله جل جلاله له ظلم کولو څخه پاک دی بلکه موږ پخپله پرخپلو ځانونو ظلم کړی چي دمساکينوحق مونه ورکاوو﴿ فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَلَاوَمُونَ ﴾ بيامخ واړاوو ځينوددوی ځينو نوروته چي يوبل يې ملامتاوو(يوه به ويل تاهمدغه رايه راکړه هغه بل به ويل نه دغه ستارايه وه ته وې چي موږ دي له لوږي اوفقرڅخه وېرولواو دمال راټولولولپاره دي رغبت راکاووهمدغه ملامتي وه (۴) ﴿ قَالُوا إِنَّا كُنَّا طَاغِينَ ﴾ ويې ويل دوی ای هلاک افسوس خرابي ده موږ لره بېشکه موږ ووله حده تېرېدونکي (چي فقيرانوته مو ونډه نه ورکوله اوپه الله موتوکل نه کاوو امام رازي وايې چي: ددې معناداده چي دوی خپله ګناه غټه وګڼله (۵)﴿ عَسَىٰ رَبُّنَا أَن يُبْدِلَنَا خَيْرًا مِّنْهَا ﴾ ښايي چي رب زموږ بدل راکړي موږلره خيرغوره له دې نه (زموږدتوبې او دګناه داقرار په سبب باندي) ﴿ إِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا رَاغِبُونَ ﴾ بېشکه موږ رب خپل ته رغبت کونکي يو(يعني موږ دالله دعفوي ، فضل اواحسان هيله منديو ، دغه کيســـه الله جل جلاله ددې لپاره راوړي چي موږ پدې وپوهوي چي دبخل اودزکات دنه ورکولو انجام تلف او ضياع دی کله چي في سبيل الله دلږڅه مال دنه ورکولو په سبب ټول ګردمال له مينځه ځي اودالله غضب هم ورپسې وي څکه نوالله له دې کيسي وروسته پسي فرمايي ﴿ كَذَٰلِكَ الْعَذَابُ ۖ وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ ۚ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴾ (همداسي راځي آفت عذاب

(۱) البحرالمحيط ۸/ ۳۱۳.
(۲) البحرالمحيط ۸/ ۳۱۳
(۳) کبيرتفسير ۳۰/ ۹۰
(۴) ږومبی مرجع .
(۵) القرطبي ۱۸/ ۲۴۲

(په دنیاکي مخالفانو ته له حکم د رب نه) او خامخا عذاب آفت د آخرت ډېر لوی دی که چېري وي دوی چي پوهېدلای (په سختي د عذاب د آخرت نو مخالفت به یې نه ووکړی) یعني لکه دغه عذاب چي د باغ په خاوندانو نازل شوی وو همداسي به په قریشو باندي نازل شي. ابن عباس رضی الله عنه وایي چي: دغه مثال د مکي د خلکو لپاره دی کله چي بد رته راووتل لوړه یې واخیسته چي مکې ته به بیرته نه راستنېږي څو چي یې محمد او اصحابان نه وي وژلي ، هلته به دوی شراب څښي او ډمي به ورته ناخي او سندري به بولي خو الله د دوی گمان باطل کړ او دوی ووژل شول ، بندیان شول او تار په تار د جگړې په ډگر کي مات شول لکه چي د باغ خاوندان پدې نمت (اراده) راووتل چي مېوه به ټولوي مگر گمان یې وران شو او مقصد یې ترسره نشو (¹) ورپسې الله جل جلاله د مؤمنانو حال له دې وروسته داسي بیانوي فرمایې:

﴿ إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ ﴾ بېشکه (له الله) وېرېدونکو پرهېزگارانو ته په نزد د رب د دوی جنتونه ډک له نعمتونو دي (هسي نعمتونه چي د دنیا د نعمتونو په شان به گډوډنه وي) ﴿ أَفَنَجْعَلُ ٱلْمُسْلِمِينَ كَٱلْمُجْرِمِينَ ﴾ آیا پس وبه گرزوو موږ مسلمانان (حکم منونکي) په شان د مجرمانو گنهگارانو ؟ (په خلاصي او ثواب کي بلکه نه یې گرزوو استفهام د توبیخ او انکار لپاره دی ﴿ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴾ څه شوي دي تاسو ته څرنگه حکم کوی تاسي ؟ (چي خبره غوټه کوی په برابري د مؤمن او کافر دغه خبره خو هوښیار سړی نه کوي) ﴿ أَمْ لَكُمْ كِتَٰبٌ فِيهِ تَدْرُسُونَ ﴾ آیا له تاسي سره کوم کتاب شته چي په هغه (له آسمانه نازل شوي کتاب) کي تاسي داسي لولی ﴿ إِنَّ لَكُمْ فِيهِ لَمَا تَخَيَّرُونَ ﴾ چي بېشکه تاسي لره دي په هغه (کتاب) کي خامخا هغه څه چي خوښوی یې تاسي ، دغه جمله د (تدرسون) لپاره مفعول دی او دغه یو بل توبیخ دی مشرکانو ته چي دوی باطل گمانونه کوي وایې که چېري بعث او جزاء هم وي نو موږ ته به هلته هم تر مؤمنانو ښه جزاء او ثواب راکول کېږي لکه چي په دنیا کي مو د سوکالي او راحت اسباب تر دوی زیات دي طبري لیکي چي داد دغه قوم لپاره توبیخ او تقریع ده چي دوی به د باطل خبري کولې او په دروغجنو آرزوگانو به هیله من وو (²) ﴿ أَمْ لَكُمْ أَيْمَٰنٌ عَلَيْنَا بَٰلِغَةٌ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ آیا شته تاسي لره قسمونه پر (وعدود) موږ باندي چي رسېدلي وې تر ورځي د قیامت پوري ؟ ﴿ إِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُونَ ﴾ بېشکه چي شته تاسي ته هغه چي پرې تاسي حکم کوی (دغه یې ځواب دی ، ابن کثیر لیکي : معنا دا چي آیا له تاسو سره داسي ټینگي وعدې او معاهدې شته چي تاسو ته به هغه ستاسي له خوښي او غوښتني سره سم هر څه درکول کېږي ؟ (³) ﴿ سَلْهُمْ أَيُّهُم بِذَٰلِكَ زَعِيمٌ ﴾ پوښتنه وکړه له دوی نه چي کوم یو له دوی نه په دغه (حکم چي کوي یې) ضامن ذمه وار دی (دوی ته پدې کي یو ډول استهزاء او سخریه نغښتې ده چي دوی له عقله وتلي خبري کوي چي عدل او منطق یې نه

---

(¹) القرطبي ۱۸ / ۲۴۲

(²) طبري ۲۹ / ۲۳

(³) مختصر ابن کثیر ۳ / ۵۳۷

منې ﴿ أَمْ لَهُمْ شُرَكَآءُ فَلْيَأْتُوا۟ بِشُرَكَآئِهِمْ إِن كَانُوا۟ صَٰدِقِينَ ﴾ آيا شته دوی لره شريکان (په دغه دعوی کې په زعم (ددوی) نو رادې ولې هغه شريکان خپل که چېرې دوی رښتينې وي (په خپله دعوی کې په التسهيل کې راوړي چې دغه د کفارو لپاره تعجيزدی مقصد داچې که چېرې تاسو سره شريکان وي چې په يوځه خواک اوواک لري نو رابې ولې چې موږ يې حال ووينو(١) اوکله چې ددوی گمانونه يې باطل اوآرزوگانې يې خوشې وبللې د آخرت ذکراوونوبيان يې پيل کړچې ﴿ يَوْمَ يُكْشَفُ عَن سَاقٍ ﴾ (اوياد کړه ) هغه ورځ چې بربنډوالی به وکړی شي له پنډۍ نه (اوسخت وخت به راشي دقيامت) يعنې هغه سخته ورځ چې ديوې سختې چارې چې شدت اوهيبت يې تمام نلرې لوڅوالی به راشي(٢) ابن عباس رضی الله عنه وايي چې: دغه دقيامت ورځ ده چې دغم اوسختې ورځ ده قرطبي ليکي: څرنگه چې په هرسخت کارکې بدې راغړلو ته اړتياوې نودلته يې پنډۍ اوبربنډوالی يې د سختې په ورځ استعاره کړ﴿ وَيُدْعَوْنَ إِلَى ٱلسُّجُودِ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ ﴾ او را وبه بللی شي دا(کافران) طرف دسجدې کولوته (دازمويښت لپاره) پس توان به يې ونشي (سجدې کولوته)(ځکه چې ملابه يې سيخه يوطبق گرزېدلې وي په حديث شريف کې راغي: معنايې داده چې: ټول مؤمنين اومؤمنات به په سجده پرېوزي مگرهغه سړي چې په دنياکې به يې درياء لپاره سجدې کولې دهغه ملابه سمه سيخه وچه پاتې کېږي اودسجدې کولولپاره به نه کړېږي (٣)

﴿ خَٰشِعَةً أَبْصَٰرُهُمْ ﴾ حال داچې ذليلې ښکته به وي (له شرمه) سترگې ددوی (چې پورته به يې نشي غړولای) ﴿ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ﴾ راگيرکړي به وي دوی ذلت خوارې ﴿ وَقَدْ كَانُوا۟ يُدْعَوْنَ إِلَى ٱلسُّجُودِ وَهُمْ سَٰلِمُونَ ﴾ اوبېشکه وو دوی (په دنيا کې) چې بلل کېدودوی طرف دسجدې کولوته اودوی به روغ رمټ وو(نوسجده به يې نه کوله)امام فخر رازي ليکي: دوی به هلته سجدې کولو ته دعبادت اومکلفيت له مخې نه رابلل کېږي بلکه دغه بلنه به ددوی دتوبيخ اوترټلولپاره وي چې ولې يې په دنياکې سجده نه کوله پدې وخت کې به الله ور ځخه توان اوقدرت هم واخلي چې دسجدې کولووس به نلري څوچې حسرت اوندامت يې زيات شي چې ولې يې په دنياکې سجده نه کوله چې هلته روغ رمټ هم وو ؟(٤) ﴿ فَذَرْنِى وَمَن يُكَذِّبُ بِهَٰذَا ٱلْحَدِيثِ ﴾ پرېږده ما(ای محمده !) اوهغه څوک چې دروغ وايي په دې خبرې (قرآن) باندې (چې زه ستاانتقام ور ځخه واخلم دغه دتهديد اووعيد وروستنی پړاودی) ﴿ سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (ژر دی چې و به نيسو موږدوی ورو وروله هغه ځايه چې دوی پرې نه پوهېږي ) يعنې ژر دی چې دوی به په نعمتونو کې داستدراج په توگه دهلاکت لوري ته پداسې ډول چې نه به پوهېږي ورسوو حسن رحمه الله وايي: ډېرکسان په ثناويلوسره په امتحان کې راغلي اوډېرکسان په ستراوپټوالي کې مغروره شوي او

---

(١) التسهيل ۴/۱۴۰
(٢) القرطبي ۱۸/۲۴۹
(٣) داوږد حديث شريف يوه برخه متفق عليه
(۴) کبيرتفسير ۳۰/۹۲

تېروتلي دي([1])امام رازي ليکي چي: استدراج معناداچي زينه په زينه يې عذاب ته ورنږدې کړي کله چي دوی يوه ګناه وکړي نوالله نعمت ورزيات کړي اواستغفارځني هېرشي نواستدراج دوی ته په نعمتونوکي نغښتی وي ځکه دوی خپل ځانونه ترمؤمنانوبهترګڼي اوپه حقيقت کي دغه ددوی دهلاکت سبب وي([2]) ﴿ وَأُمْلِي لَهُمْ ﴾ اوټال ورکوم دوی ته (عمرونه يې اوږدوم چي ډېري ګناوي وکړي) ﴿ إِنَّ كَيْدِي مَتِينٌ ﴾ بېشکه زماکيد(مکر) وارکلک دی (اوتدبيرپوخ دی ) په حديث شريف کي راځي : الله تعالی ظالم ته وخت ورکوي ترڅوچي يې ونيسي بياېې هيڅکله خلاصون نه وي ورپسې رسول الله صلی الله عليه وسلم داآيت ولوست چي : ﴿ وَكَذَٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَآ أَخَذَ ٱلْقُرَىٰ وَهِيَ ظَٰلِمَةٌ إِنَّ أَخْذَهُۥٓ أَلِيمٌ شَدِيدٌ ﴾ ([3])اوداچي الله خپل احسان (کيد ) وباله لکه چي استدراج ونوماووځکه چي دکيداومکرپه بڼه کي دی هغه چي دوی ته پراخه روزي ، اوږدعمر، روغ بدن په ظاهرکي احسان خوپه باطن کي هلاکت اوعذاب دی ځکه چي مقصدورڅخه ددوی عذاب اوعقاب دی ﴿ أَمْ تَسْـَٔلُهُمْ أَجْرًا فَهُم مِّن مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُونَ ﴾ آياته غواړې له دوی څخه (په تبليغ درسالت)څه اجرمزدوري نودوی (هغه له زيان تاوان څخه درونډبارکړی شوي دي ؟ (نوځکه مخ درڅخه اړوي بلکه نه يې غواړې)؟ غرض له دې څخه ددوی دايمان نه راوړلوپه هکله توبيخ دی ځکه پيغمبرعليه السلام له دوی څخه هيڅ مزدوري نه غواړي ) خازن ليکي: معناداچي آيا ته له دوی څخه مزدوري تنخواغواړې چي پردوی باندي دغه بار دروندشي اوايمان نه راوړي؟ ([4]) ﴿ أَمْ عِندَهُمُ ٱلْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُونَ ﴾ آياشته په نزد ددوی علم الغيب پس دوی يې ليکي(له هغه څخه دغه حکم چي دوی ترمؤمنانوبهتردي؟) يعني آياددوی په مخ کي لوح محفوظ دی هغه چي علم الغيب پکې دی نودوی له هغه څخه راتقلوي چي دوی ترمؤمنانوغوره دي؟ نوځکه په کفراوطغيان باندي اصرار کوي دغه استفهام دانکاراو توبيخ لپاره دی ﴿ فَٱصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ ﴾ نوصبرکوه حکم درب خپل ته (ای محمده ! په آزاراوخورددوی اودخپل رسالت چاري په مخ بوزه ) ﴿ وَلَا تَكُن كَصَاحِبِ ٱلْحُوتِ ﴾ نومه کېږه ته (په تنګدلي اوتلوار کي) لکه خاوندد(کب) ماهي (يونس بن متی عليه السلام) کله چي پخپل قوم باندي غصه شوځکه هغوی ايمان نه راووړنودوی يې پرېښودل اوپخپله يونس عليه السلام په بېړۍ کي سپورشواوبياماهي وخوړ اوهغه څه ورپېښ شول چي کيسه يې تېره شوي ده ﴿ إِذْ نَادَىٰ وَهُوَ مَكْظُومٌ ﴾ کله چي غږيې وکړ (دماهي په ګېډه کي) له غصې ډک (غمجن ) وو(داسي يې ويل: ﴿ سُبْحَٰنَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (الانبياء: ۸۷) ﴿ لَّوْلَآ أَن تَدَٰرَكَهُۥ نِعْمَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ ﴾ که چېري نه وي داچي مونده لی وي ده نعمت

([1]) قرطبي تفسير ۲۵۱/۱۸
([2]) کبيرتفسير ۹۲/۳۰
([3]) متفق عليه .
([4]) دخازن تفسير ۱۴۰/۴

احسان له لوري درب دده ﴿ لَنُبِذَ بِٱلْعَرَآءِ وَهُوَ مَذْمُومٌ ﴾ نو خامخا به پرې وتی وو (له ګېډي د ماهي نه) په سپېره ډاګ ډګر کي اودی به ملامت کړی شوی وو په هغه څه چي ترسره کړي يې وو ، خو الله جل جلاله د توبې ایستلو توفیق ورته عنایت کړاو ملامت نشو ﴿ فَٱجْتَبَٰهُ رَبُّهُۥ فَجَعَلَهُۥ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴾ پس غوره کړ د غه (یونس) لره رب دده (په نبوت سره) نو ګرزولی يې وو دی (له کاملانو صالحانو انبیاوو څخه) ابن عباس رضی الله عنه وایې چي: الله بیرته ورته وحی راواستوله اود خپل قوم لپاره یې سپارښت کونکی (شفیع) وټاکل(۱) ﴿ وَإِن يَكَادُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَيُزْلِقُونَكَ بِأَبْصَٰرِهِمْ ﴾ (او بېشکه نژدې وو هغه کسان چي کافران شوي دي خامخا وبه ښويوي تا (په ځمکه به دي وغورځوي) په خپلو سترګو سره) یعني نژدې دی چي کافران له سخته دښمني اوعداوته څخه تا پخپلو سترګو نظر کړي ابن کثیر لیکي چي له آیته شریفه دا ځرګندېږي چي د سترګو اغېزاو تاثیر حق دی او دغه د الله جل جلاله په حکم وي په حدیث شریف کي راځي چي: که ترالهي قدراو حکم یو څېز ړومبی کېدلای شوای نو د سترګو نظر به شوی وای (۲) ﴿ لَمَّا سَمِعُوا۟ ٱلذِّكْرَ وَيَقُولُونَ إِنَّهُۥ لَمَجْنُونٌ ﴾ هرکله چي واورېدو دوی قرآن (ستاله ژبي چي تالوستل) او وایې دوی (له سخته بغض او کینې څخه) بېشکه دغه (محمد) لېونی دی (الله جل جلاله) د دوی په رد کي فرمایې ﴿ وَمَا هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَٰلَمِينَ ﴾ او حال دادی چي نه دی دغه قرآن مګرخو ذکر پند دی ټولو عالمیانو لره (له انسانانو او پېریانانو څخه نو څرنګه دوی هغه چاته چي وربانديې را نازل شوی لېونی وای؟ الله جل جلاله د سورت پای د قرآنکریم په عظمت سره لکه چي پیل یې د رسول په عظمت سره کړی وو راوور ترڅو چي پیل او پای په ښکلي پېیلتوب سره ښشپړ شي

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي فصاحت او بیان کومي ښکلاوي شته لندیزیې دادی:

۱ - ناقص جناس چي ﴿ بِمَجْنُونٍ ﴾ او ﴿ مَمْنُونٍ ﴾ ترمینځ شته چي دوهم توری یې یوله بله مخالف دی.

۲ - وعید او تهدید لکه چي فرمایي ﴿ فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُونَ . . بِأَييِّكُمُ ٱلْمَفْتُونُ ﴾ او د مفعول حذف د هیبت او هَول د افادې لپاره راغلی دی.

۳ - د مبالغې صیغې لکه پدې کلماتو کي چي ﴿ حَلَّافٍ ، هَمَّازٍ ، مَّشَّآءٍ ، مَّنَّاعٍ ﴾ او همدارنګه په ﴿ أَثِيمٍ او زَنِيمٍ ﴾ کي راغلی.

---

(۱) کبیر تفسیر ۳۰/۹۹

(۲) رواه احمد وقال الترمذي حسن صحیح

۴- اوچته اولوړه استعاره چي د الله جل جلاله پدې کلام کي راغلي چي ﴿ سَنَسِمُهُۥ عَلَى ٱلْخُرْطُومِ ﴾ خلتم يې دپوزې لپاره استعاره کړي اصلاً خو خلتم دفيل لپاره وي او چي دانسان پوزه خلتم وبلل شي دغه نو خورا عجيبه ده او مقصد له دې څخه دده استخفاف او سپکتيا ده

۵- دطباق صنعت چي د ﴿ ٱلْمُسْلِمِينَ..... كَٱلْمُجْرِمِينَ ﴾ او د ﴿ ضَلَّ.....بِٱلْمُهْتَدِينَ ﴾ ترمينځ شتون لري او له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي

۶- اشتقاقي جناس لکه پدې آيت کي ﴿ فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ مِّن رَّبِّكَ وَهُمْ نَآئِمُونَ ﴾.

۷- تقريع او توبيخ چي فرمايي: ﴿ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ أَمْ لَكُمْ كِتَٰبٌ فِيهِ تَدْرُسُونَ ﴾ او همدارازنوري جملې چي له دې وروسته راغلي دغه ترټنه او توبيخ افاده کوي

۸- مقلوبه (اپوټه) تشبيه کله چي مشبه به 'مشبه وګڼل شي او برعکس بيا مشبه ته مشبه به وويل شي لکه چي پدې کلام کي شته: ﴿ أَفَنَجْعَلُ ٱلْمُسْلِمِينَ كَٱلْمُجْرِمِينَ ﴾ اصل خو داو وچي آيا موږ به کافران په مثل دمؤمنانو په اجر او ثواب کي وګرزوو؟ مګر هغه يې سرچپه رااخيستي ترڅو خوند وره او اغېزناکه وي

۹- ښکلي او لوړه کنايه چي فرمايي ﴿ يَوْمَ يُكْشَفُ عَن سَاقٍ ﴾ دغه له سخت هول او هيبت څخه کنايه راغلي چي دقيامت په ورځ به سخت زيات کړاوونه وي

۱۰- مرصع ښايسته او په زړه پوري سجع چي لکه پېيلي ملغلري غوندې اېسي دغه آيتونه ولوله ﴿ نٓ وَٱلْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُونَ مَآ أَنتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُونٍ وَإِنَّ لَكَ لَأَجْرًا غَيْرَ مَمْنُونٍ ﴾ ترپايه پوري او د قرآنکريم ښکلا او سپېڅلتيا ته په غور او سوچ سره ګوره.

د الله جل جلاله په مرسته د القلم سورت د تفسيرژباړه بشپړه شوه.

***

## د(الحاقة) سورت مکي دی او دوه پنځوس آیتونه لري

دسورت په وړاندي:

الحاقة مکي سورت دی او دنورو مکي سورتونو په شان دعقیدې او ایمان ټینګولو ته پام کوي او دهرموضوعات پکي راغلي لکه دقیامت ورځ او دهغې کړاوونه ددروغجن ګڼونکوحالات او دهغوی سرنوشت او برخه لیک ،د عادیانو ، ثمودیانو کیسې دلوط علیه السلام دقوم او دنوح علیه السلام دقوم اوفرعون او داسي نورو سرغړوونکو او مفسدینو کړه وړه را اخلي لکه چي پدې سورت کي دنېکانو سعداوو اوبدانو اشقیاوو یادونه هم شوي ده خو دسورت محورچي دغه موضوعات ورباندي راځرخي هماغه دقرآن دربښتنولي اثبات دی چي دغه دحکیم او علیم ذات کلام دی رسول الله صلی الله علیه وسلم له هغه تورونو او تهمتونو څخه چي کفارېې ورباندي تپي مُبَرّا او پاک دی.

دسورت پیل دقیامت په کړاوونو کېږي او داچي الله کفاروته څرنګه عذابونه ورکړي نو فرمایي ﴿ ٱلۡحَآقَّةُ مَا ٱلۡحَآقَّةُ وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا ٱلۡحَآقَّةُ كَذَّبَتۡ ثَمُودُ وَعَادُۢ بِٱلۡقَارِعَةِ فَأَمَّا ثَمُودُ فَأُهۡلِكُواْ بِٱلطَّاغِيَةِ وَأَمَّا عَادٌ فَأُهۡلِكُواْ بِرِيحٖ صَرۡصَرٍ عَاتِيَةٖ... ﴾ دآیتونو ترپایه.

وروسته هغه مشکلات اوکړاوونه رااخلي کله چي دصورشپېلۍ دپوکلو په وخت کي هغه وخت چي عالم فناکېږي غرونه نړېږي او آسمانونه چوي پېښېږي فرمایي ﴿ فَإِذَا نُفِخَ فِي ٱلصُّورِ نَفۡخَةٞ وَٰحِدَةٞ وَحُمِلَتِ ٱلۡأَرۡضُ وَٱلۡجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةٗ وَٰحِدَةٗ... ﴾ دآیتونو ترپایه.

بیا پدغه ورځ کي دنېکمرغه او بدمرغه خلګو دحال بیان کوي چي نېکمرغانوته به په ښي لاس اعمالنامه ورکول کېږي او انعام اکرام به ترلاسه کوي مګر کافرته به په کیڼ لاس اعمالنامه ورکول کېږي اوله سپکتیا اوخواري سره به مخامخ وي ﴿ فَأَمَّا مَنۡ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ فَيَقُولُ هَآؤُمُ ٱقۡرَءُواْ كِتَٰبِيَهۡ... وَأَمَّا مَنۡ أُوتِيَ كِتَٰبَهُۥ بِشِمَالِهِۦ فَيَقُولُ يَٰلَيۡتَنِي لَمۡ أُوتَ كِتَٰبِيَهۡ... ﴾ دآیتونو ترپایه.

له دې وروسته چي دابرارو او فجارو حال یې بیان کړنو دالهي استازي په رښتنولي باندي سخت قسم اخلي چي هغه کلام چي ده راوړي هغه حق دی او دمشرکانو افتراء ګاني چي کهانت او سحرېې ګڼي دروغ دی نو فرمایي ﴿ فَلَآ أُقۡسِمُ بِمَا تُبۡصِرُونَ وَمَا لَا تُبۡصِرُونَ إِنَّهُۥ لَقَوۡلُ رَسُولٖ كَرِيمٖ... ﴾.

وروسته دقرآنکریم په رښتنولي باندي غوڅ او کوټلی دلیل راوړي چي قرآن رښتونی دی او استازی رسول امانت کار دی چي څرنګه ورته وحی شوي هغسي یې تبلیغ کړي په داسي انځوررونه چي

زړه لړزوي او وېره پيدا کوي دغه چا حال بيانوي چې په الله دروغ وتړي نو فرمايي ﴿ وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ لَأَخَذْنَا مِنْهُ بِالْيَمِينِ ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِينَ... ﴾ د آيتونو تر پايه

په پای کي سورت د قرآنکريم ثنا او تمجيد راوړي چې دغه د مؤمنانو لپاره رحمت او د کافرانو لپاره حسرت دی ﴿ وَإِنَّهُ لَتَذْكِرَةٌ لِلْمُتَّقِينَ وَإِنَّا لَنَعْلَمُ أَنَّ مِنْكُمْ مُكَذِّبِينَ وَإِنَّهُ لَحَسْرَةٌ عَلَى الْكَافِرِينَ وَإِنَّهُ لَحَقُّ الْيَقِينِ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ... ﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ الْحَاقَّةُ (١) مَا الْحَاقَّةُ (٢) وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْحَاقَّةُ (٣) كَذَّبَتْ ثَمُودُ وَعَادٌ بِالْقَارِعَةِ (٤) فَأَمَّا ثَمُودُ فَأُهْلِكُوا بِالطَّاغِيَةِ
(٥) وَأَمَّا عَادٌ فَأُهْلِكُوا بِرِيحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ (٦) سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ سَبْعَ لَيَالٍ وَثَمَانِيَةَ أَيَّامٍ حُسُومًا فَتَرَى الْقَوْمَ
فِيهَا صَرْعَىٰ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ (٧) فَهَلْ تَرَىٰ لَهُمْ مِنْ بَاقِيَةٍ (٨) وَجَاءَ فِرْعَوْنُ وَمَنْ قَبْلَهُ وَالْمُؤْتَفِكَاتُ بِالْخَاطِئَةِ
(٩) فَعَصَوْا رَسُولَ رَبِّهِمْ فَأَخَذَهُمْ أَخْذَةً رَابِيَةً (١٠) إِنَّا لَمَّا طَغَى الْمَاءُ حَمَلْنَاكُمْ فِي الْجَارِيَةِ (١١) لِنَجْعَلَهَا لَكُمْ تَذْكِرَةً وَتَعِيَهَا أُذُنٌ
وَاعِيَةٌ (١٢) فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ نَفْخَةٌ وَاحِدَةٌ (١٣) وَحُمِلَتِ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَاحِدَةً (١٤) فَيَوْمَئِذٍ وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ (١٥)
وَانْشَقَّتِ السَّمَاءُ فَهِيَ يَوْمَئِذٍ وَاهِيَةٌ (١٦) وَالْمَلَكُ عَلَىٰ أَرْجَائِهَا وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمَانِيَةٌ (١٧) يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُونَ لَا
تَخْفَىٰ مِنْكُمْ خَافِيَةٌ (١٨) فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ فَيَقُولُ هَاؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ (١٩) إِنِّي ظَنَنْتُ أَنِّي مُلَاقٍ حِسَابِيَهْ (٢٠) فَهُوَ
فِي عِيشَةٍ رَاضِيَةٍ (٢١) فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ (٢٢) قُطُوفُهَا دَانِيَةٌ (٢٣) كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا أَسْلَفْتُمْ فِي الْأَيَّامِ الْخَالِيَةِ (٢٤)
وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِشِمَالِهِ فَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي لَمْ أُوتَ كِتَابِيَهْ (٢٥) وَلَمْ أَدْرِ مَا حِسَابِيَهْ (٢٦) يَا لَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ (٢٧) مَا أَغْنَىٰ عَنِّي
مَالِيَهْ (٢٨) هَلَكَ عَنِّي سُلْطَانِيَهْ (٢٩) خُذُوهُ فَغُلُّوهُ (٣٠) ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ (٣١) ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ (٣٢)
إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ (٣٣) وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ (٣٤) فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا حَمِيمٌ (٣٥) وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ
(٣٦) لَا يَأْكُلُهُ إِلَّا الْخَاطِئُونَ (٣٧) فَلَا أُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُونَ (٣٨) وَمَا لَا تُبْصِرُونَ (٣٩) إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ (٤٠) وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ
قَلِيلًا مَا تُؤْمِنُونَ (٤١) وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ قَلِيلًا مَا تَذَكَّرُونَ (٤٢) تَنْزِيلٌ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ (٤٣) وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ (٤٤) لَأَخَذْنَا
مِنْهُ بِالْيَمِينِ (٤٥) ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِينَ (٤٦) فَمَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ عَنْهُ حَاجِزِينَ (٤٧) وَإِنَّهُ لَتَذْكِرَةٌ لِلْمُتَّقِينَ (٤٨) وَإِنَّا لَنَعْلَمُ أَنَّ مِنْكُمْ
مُكَذِّبِينَ (٤٩) وَإِنَّهُ لَحَسْرَةٌ عَلَى الْكَافِرِينَ (٥٠) وَإِنَّهُ لَحَقُّ الْيَقِينِ (٥١) فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ (٥٢) ﴾ الحاقة: ١ ـ ٥٢

لغتونه:

(الحاقة) د قيامت نوم دی ځکه يې الحاقة بولي چې راتلل يې حق دی شک پکي نشته (صرصر) سخت آوازکونکی او سخت يخني درلودونکی (حسومًا) پرله پسې چې پرېکړون يې نه وي (رابية) زيات په شدت او عذاب کي (واهية) کمزوري او کاواکه لکه چې دوی دغې بنا په باب چې لوېد لو ته نژدې وي

وايي (بناء واهية) (هاؤم) اسم دفعل أمردی چي په معناد(ونيسئ) راځي (قطوفها) دمېوو تولولوته وايي (صديد) دزخمونوويني زوو(الوتين) دزړه رګ کله چي پرې شي سړی مړکېږي او(ابهر) يې هم بولي په حديث شريف کي راځي (مازالت تعاودني أكلة خيبرفهذاأوان انقطاع أبهري) يعني تل مي دخيبردمسمومو خوړوګوله ځوروی نودغه دزړه درګ دپرېکېدووخت دی[1] (حسرة) غټه پښېماني.

## تفسير:

﴿ اَلْحَاقَّةُ مَا الْحَاقَّةُ ﴾ هغه (قيامت) حق واقع کېدونکی دی څه شي دی حق واقع کېدونکی ؟الحاقة دقيامت نوم دی ځکه يې الحاقة بولي چي واقع کېدل يې حق اوراتلل يې يقيني دي هيڅ شک اوشبه پکي نشته ﴿ مَا الْحَاقَّةُ ﴾ تکراريې دهغې ورځي دشان دتفخيم لپاره راوړی اصل خوداووچي ويل شوي وای چي (ماهی) ليکن ظاهريې دضميرپرځای راووړچي دهيبت اوتعظيم ښکارندوی شي ﴿ وَمَآ أَدْرٰىكَ مَا الْحَاقَّةُ ﴾ اوڅه شي پوه کړی يې ته (ای محمده !) چي څه شی دی هغه (قيامت) حق واقع کېدونکی ؟تاته ترليدلوله مخه نه معلومېږي چي قيامت څه شی دی ؟ اوکړاوونه اهوال يې څه دي؟ ځکه هغه له ډېره سختي اوشدته دومره ستراوچت دی چي خيال اوفکرورته رسېدلای نشي (۲) دغه دعربوپه دود اودستورباندي بيان دي چي کله به دوی غوښتل مخاطب اورېدلوته تشويق کړي نوبه يې داستفهام په صيغه وپوښتل لکه آياته پوهېږې چي څه پېښ شول ؟ نودغه آيت هم له دغه بابه دی چي دفظاعت ترهونکي چاري دي وروسته له دې چي سترتوب اوهيبت يې وښودنوهغه څوک چي ددغه قيامت تکذيب کوي بيانوي اودهغوی هلاکتونه چي دتکذيب په نتيجه کي ورته رسېدلي يادوي ترڅودمکې کفاروته نصيحت شي اوهغوی ووېروي نوفرمايې ﴿ كَذَّبَتْ ثَمُودُ وَعَادٌ بِالْقَارِعَةِ ﴾ دروغ ويلي وو ثموديانواو عاديانو(په هغه قيامت)ټکوونکي دزړونوپه کړاوونو سختيوسره) ﴿ فَأَمَّا ثَمُودُ فَأُهْلِكُوا بِالطَّاغِيَةِ ﴾ پس هرڅه چي ثموديان (قوم دصالح عليه السلام وونوهلاک کړل شول هغوی په سخت آواز (هلاکونکي هغه چي له حده وتلی سخت ووقتاده (رحمه الله) وايي چي: دغه داسي آوازووچي له حده وتلی سخت وو(۳) ) ﴿ وَأَمَّا عَادٌ فَأُهْلِكُوا بِرِيحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ ﴾ اوهرڅه چي عاديان وو نوهلاک کړی شوو (دوی) په بادسخت آوازکونکي (ياپه ډېرسخت له حده تېرېدونکي يخ باد ) يعني کوم چي عاديان د هودعليه السلام قوم ووهغوی په تندبادچي (دَبور) يې بولي هلاک شول ، په حديث شريف کي راځي (نصرت بالصباء وأهلكت عادبالدبور) يعني ماته په صبابادمرسته راکول شوي اوعاديان په دَبور باد

---

(۱) کبيرتفسير ۳۰/ ۱۱۲

(۲) کبيرتفسير ۳۰/ ۱۱۲

(۳) اوله مجاهدڅخه روايت کېږي چي معناداچي هلاک شول په سبب دسرکښي خپلي خولومړی يې أرجح دی ځکه چي دعاديانو دعذاب په مقابله کي راغلی دی ابوالسعود ۵ /۱۸۸.

هلاک شول)[۱] ﴿ عَاتِيَةٍ ﴾ يعني له حده وتلى په يخني اوالوتلوکي لکه چي دهغومقررو پرښتوله واکه هم ددغه بادراتينګول وتلي وو اوهغوى نشواى کولاى پخپل واک کي يې راولي. ابن عباس رضى الله عنه وايي: الله جل جلاله چي هروخت بادرااستوي په يوه مقرره پېمانه وي اوهروخت چي اوربښت باران کوي هم په يوه تاکلي اندازه وى پرته دنوح عليه السلام له طوفانه اودعاديانودبادڅخه ځکه دحضرت نوح عليه السلام دقوم دهلاکت په وخت داوبواوربښت دپرښتوله واکه هم ووت هغه يې په واک کي راوستلاى نه شوبيايې داآيت ولوست ﴿ إِنَّا لَمَّا طَغَا ٱلْمَآءُ حَمَلْنَٰكُمْ فِى ٱلْجَارِيَةِ ﴾ اوبادهم دعاديانودهلاکت په وخت دپرښتوله واکه ووت بيايې داآيت ولوست ﴿ بِرِيحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ ﴾ (۲) ﴿ سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ سَبْعَ لَيَالٍ وَثَمَٰنِيَةَ أَيَّامٍ حُسُومًا ﴾ مقرر کړى وو(الله) دغه (باد) پردوى باندي اوه شپې اواته ورځي پرله پسې برابر (چي پرېکړون يې نه درلود) ﴿ فَتَرَى ٱلْقَوْمَ فِيهَا صَرْعَىٰ ﴾ نوليده به تا(اى مخاطبه) هغه قوم(دعاد) په هغه وخت کي لوېدلي (مړه پراته په ځمکه باندي چي خوځېدلاى به نشواى) ﴿ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ﴾ ګواکي دوى (بېخونه) ددونه دخرماوو (ونودي) مفسرين کرام ليکي چي: بادبه سرونه ورڅخه غوڅ کړل لکه چي دونوسرونه پرې شي دغه بادبه ددوى له خولې وردننه اودګېډي څخه به يې له ببخه ووت ځوبه يې دوى راوپرزول نولکه دخرماوهلي شوي ونې غوندي به راپرېوتل ﴿ فَهَلْ تَرَىٰ لَهُم مِّنۢ بَاقِيَةٍ ﴾ نوآياوينې ته کوم يو(نفس) له دوى څني باقي پاتي شوى (بلکه هيڅ يې نه وينې) ټول تباه اوفنا شول لکه چي الله فرمايي ﴿ فَأَصْبَحُوا۟ لَا يُرَىٰٓ إِلَّا مَسَٰكِنُهُمْ ﴾ (الاحقاف: ۲۵) ﴿ وَجَآءَ فِرْعَوْنُ وَمَن قَبْلَهُۥ ﴾ اوراغى فرعون اوهغه چي پخواله هغه څني وو(کوم چي سرغړونکي اُمتونه وو اوپخپلورسولانوکافران شوي وو ﴿ وَٱلْمُؤْتَفِكَٰتُ ﴾ اواهل دکليوچپه کړى شويو(لکه دلوط عليه السلام قوم چي پورته يې الله ښکته کړل صاوي ليکي (مؤتفکات)اړول شوي چي هغه دلوط قوم ووچي جبريل عليه السلام يې کلى په کوڅرباندي دځمکي څخه رااوايستل آسمان ته نژدې يې پورته کړل اوبيايې بيرته سرپه ځېږى راوغورځول داپنځه کلي وو (۳) ﴿ بِٱلْخَاطِئَةِ ﴾ (په ګناه سره (چي کفراوعصيان وو) ﴿ فَعَصَوْا۟ رَسُولَ رَبِّهِمْ ﴾ (نوحکم ونه مانودوى درسول درب ددوى) يعني داالله درسول موسى عليه السلام اودلوط قوم دلوط عليه السلام خبره ونه منله ﴿ فَأَخَذَهُمْ أَخْذَةً رَّابِيَةً ﴾ (نو(الله) ونيول هغوى په سختونيولوسره) يعني الله پاک دوى ترنوروپخوانيو اُمتونوپه سخت عذاب اخته کړل ځکه چي ددوى جرائم اوګناهونه تر نورو کفاروپه شناعت اوبدي کي زيات وو ﴿ إِنَّا لَمَّا طَغَا ٱلْمَآءُ حَمَلْنَٰكُمْ فِى ٱلْجَارِيَةِ ﴾ بېشکه موږهرکله چي طغيان وکړاوبوراپورته شوې په هرشي باندي پورته کړي وومورتاسي په تلونکي بېړى (دنوح) کي ﴿ لِنَجْعَلَهَا

---

(۱) متفق عليه
(۲) طبري تفسير اوقرطبي دغه دابن عباس روايت مرفوع ګڼلي خوصحيح دادى چي په ابن عباس موقوف دي
(۳) دصاوي حاشيه ۴ / ۲۴۰

﴿لَكُمْ تَذْكِرَةً﴾ لپاره ددې چي وګرزوو موږ دا پېښه تاسي ته پند (او خلګو ته دعبرت سبق چي الله څرنګه دپیغمبرانو له تکذیب کونکو څخه انتقام اخلي؟ ﴿وَتَعِيَهَآ أُذُنٌ وَٰعِيَةٌ﴾ او په یادولرئ دا (نصیحت) غوږونه یادونکي (پندونو او ګټه اخیستونکي په نصیحتونو باندې قرطبي لیکي چي: مقصدله دغو کیسو د پخوانیو اُمتونو او هلاکتونو ددوی څخه د دغه اُمت زجراو وېرونه ده چي دخپل پیغمبر سر غړونه دې نکوي(۱) او د پخوانیو هلاک شویو اُمتونو په پله دي پل نه اېږدي څکه آیت شریف پدې تورو پای ته رسوي چي ﴿وَتَعِيَهَآ أُذُنٌ وَٰعِيَةٌ﴾ قتاده لیکي چي: (واعية) معنا دا چي هغه غوږونه چي پوهه لري او هغه څه چي دالله له کتابه واوري وربانديي ګټه اخلي(۲) څرنګه چي الله دمکذبینو کیسې بیان کړې نو ورپسې يې دقیامت کړاوونه ذاسي راوړل چي ﴿فَإِذَا نُفِخَ فِى الصُّورِ نَفْخَةٌ وَٰحِدَةٌ﴾ (بیا کله چي پوکی وشي په صورشپېلۍ کي یو پوکی) یعني کله چي حضرت اسرافیل په صورشپېلۍ کي یو پوکی وکړي چي نړۍ ونړېږي. ابن عباس وايي دغه لومړۍ نفخه ده هغه چي دنیا خرابېږي ﴿وَحُمِلَتِ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَٰحِدَةً﴾ او پورته کړی شي ځمکه او غرونه (له خپلو ځایونو) نو مات به کړل شي دا دواړه (توټې توټې) په یوه ماتولو سره چي ﴿كَثِيبًا مَّهِيلًا﴾ وګرزي) ﴿فَيَوْمَئِذٍ وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ﴾ نو په دغه ورځ کي به واقع شي (هغه) واقع کېدونکی (قیامت چي ستره پېښه او هیبتناکه واقعه ده) ﴿وَانشَقَّتِ السَّمَآءُ فَهِىَ يَوْمَئِذٍ وَاهِيَةٌ﴾ او وبه چوي (څېري به شي) آسمان بیا هغه (آسمان) په دغه ورځ کي سست ضعیف وي (چي ټینګوالی او پتلیزېه نه لري) ﴿وَالْمَلَكُ عَلَىٰٓ أَرْجَآئِهَا﴾ او ملائکي پرښتې به وي په څنډو (غاړو) دهغه آسمان. مفسرین کرام لیکي: دا پدې چي آسمان د پرښتو هستوګنځی دی نو کله چي آسمان وچوي دوی به هلته ددې ورځي او د الله جل جلاله له عظمت، جلال او کبریا څخه په وېره کي وي ﴿وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمَٰنِيَةٌ﴾ او پورته به کړی عرش د رب ستا د پاسه ددوی په هغه ورځ کي اته (پرښتې) یعني د الله عرش به په دغه ورځ اته ستري پرښتې په سر د پاسه واخلي ابن عباس وايي چي: اته صفونه د پرښتو به وي چي شمېرېې له الله پرته بل چا ته معلوم نه دی(۳) ﴿يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُونَ لَا تَخْفَىٰ مِنكُمْ خَافِيَةٌ﴾ په دغه ورځ کي به تاسي حاضرو راندي کړی شی (الله ته د حساب لپاره) پټه به نه پاتي کېږي (له اعمالو ستاسي) هیڅ پټه خبره (څکه چي الله په هر څه باندي عالم دی که ښکاره وي او که پټه ورپسې الله د نېکمرغه او بدمرغه کسانو حال په دغه ورځ کي بیانوي نو فرمايي ﴿فَأَمَّا مَنْ أُوتِىَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ﴾ نو هر هغه څوک چي ورکړ

(۱) القرطبي ۱۸/۲۶۳
(۲) البحر المحیط ۸/۳۲۲.
(۳) لومړی قول د ابن زید دی او هغه څرګند دی او تائیدېې پدې حدیث شریف سره هم کېږي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي اوس د عرش او چتونکي پرښتې څلور دي او د قیامت په ورځ به يې څلور نوري مرستي ته الله راواستوي نو به اته شي طبري وګوره ۲۹/۳۹.

شي کتاب اعمالنامه دده په ښي لاس دده (ځکه چي له نېکمرغه خلکوڅخه دی) ﴿ يَقُولُ هَآؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ ﴾ نوو به وايي (له خوشحالي څخه) راشئ (واخلئ) اوولولئ تاسي داکتاب اعمالنامه زما (ها) په (کتابیه) اوهمداسي په (حسابیه) او (مالیه) او (سلطانیه) کلماتوکي دسکتې لپاره ده امام رازي ليکي چي: دده دغه وينا چي وايي ﴿ هَآؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ ﴾ ددې لپاره ده چي دی زښته زيات خوشحاله دی چي برياليتوب يې په برخه شونو غواړي چي دغه بری نوروته ښکاره کړي څوچي هغوی هم دده په نېکمرغي خوښ شي (١) ﴿ إِنِّي ظَنَنتُ أَنِّي مُلَاقٍ حِسَابِيَهْ ﴾ بېشکه مايقين کاوو (په دنيا کي) چي بېشکه زه له خپل حساب سره پيوسته کېدونکی يم (په قيامت کي نومي دهغه لپاره تياری ونيوايمان مي راووړ اوصالح عمل مي غوره کړ. حسن رحمه الله وايي: مؤمن په الله باندي نيک يقين کوي نو نيک عملونه کوي اومنافق په الله باندي بدګمان کوي نو عمل هم بدترسره کوي، ضحاک وايي: هر (ظن) چي په قرآنکريم کي دمؤمن له لوري راشي معنايې يقين دی اوچي دکافرله خوا وي شک يې معناده (٢) له دې نه وروسته الله دهغه جزاداسي ښيي ﴿ فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ ﴾ نوهغه (سړی) دی په ښه عيش کي چي دی به پرې راضي وي، په حديث شريف کي راغلي دوی به تل ژوندي وي مړه کېږي به نه او تل به روغ رمټ وي ناروغه کېږي به نه تل ترتله به په نعمتونو کي وي چي هيڅکله فقيران کېږي به نه ﴿ فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴾ په جنت عالي لوی اوچت کي به وي ﴿ قُطُوفُهَا دَانِيَةٌ ﴾ چي مېوې به يې نږدې وي، ناست، ملاست اوولاړ سړي به يې خوړلای اوترلاسه کولای شي. په التسهيل کي راغلي (قطوف) د قطف جمع ده اوهغه دمېوې ټولول دي لکه اوښکي پرېکول روايت کېږي چي جنتيان به دغه مېوې په خوله باندي په ولاړي، ناستي اوملاستي باندي خوړلای شي (٣) ﴿ كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا ﴾ (ورته وبه ويل شي) خورئ اوڅښئ په اشتهاء هضم سره) يعني دوی ته به تفضلاً اوانعاماً وويل شي چي خورئ او څښئ داسي خوراک اوڅښاک چي له هره تکليفه څخه پاک اوله هره کړاوه څخه ليري اوسوچه وي ﴿ بِمَا أَسْلَفْتُمْ فِي الْأَيَّامِ الْخَالِيَةِ ﴾ په بدل دهغوخپلو (صالح) عملونو کي چي مخکي لېږلي ووتاسي په ورځوتېري شويودنياکي، کله چي الله ددغونېکمرغانو حال وستايوورپسې يې دبدمرغه خلکو د حال بيان هسي وفرمايو چي ﴿ وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِشِمَالِهِ ﴾ اوهرڅوک چي ورکړشي کتاب عملنامه دده په کيڼ لاس دده (چي دغه دخسران اوشقاوت نښاني ده) ﴿ فَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي لَمْ أُوتَ كِتَابِيَهْ ﴾ نوو به وايي (کله چي خپل بد عملونه ووينې) ای کاشکي نه وای راکړی شوی ماته داکتاب اعمالنامه زما. مفسرين کرام ليکي: داددې لپاره چي هغه ته به رسوائي اوشرمندګي ورسېږي نودی به پدې وخت کي آرزوکوي چي کاشکي خودغه

(١) کبيرتفسير ٣٠/ ١١٧

(٢) قرطبي ١٨/ ٢٧٠

(٣) التسهيل ٤/ ١٤٣

عملنامه ورکړې شوي نه وای او سخت به پښېمانه شي ﴿ وَلَمْ أَدْرِ مَا حِسَابِيَهْ ﴾ او نه وم پوه شوی زه چې زما حساب څه دی ، استفهام دتعظیم او تهویل لپاره دی ﴿ يَٰلَيْتَهَا كَانَتِ ٱلْقَاضِيَةَ ﴾ ای کاشکي وی (رومبني مرګ زما په دنیاکي) خلاصونکی (زما له دوهم ژوندنه څخه چې بیرته نه راپاڅول کېدای او عذاب مې نه لیدلای ، قتاده رحمه الله وایې : دی دمرګ آرزو کوي او ترمرګ زیاته کرکه او نفرت یې له بل هیڅ شي څخه نه درلود(۱) دغه تمنا ددې لپاره کوي چې دغه عذاب ترمرګ ډېر تریخ او بدتردی ﴿ مَآ أَغْنَىٰ عَنِّي مَالِيَهْ ﴾ هیڅ دفع ونکړه له ما څخه مال زما (کوم چې ما راټول کړی وو او دالهي عذاب مخنیوی یې ونکړ) ﴿ هَلَكَ عَنِّي سُلْطَٰنِيَهْ ﴾ برباد شوله ما څخه حکومت سلطنت زما (جاه او رتبه ، نسب او خپلوان هیڅوک زما مرستندوی نشته) ﴿ خُذُوهُ فَغُلُّوهُ ﴾ (ونیسئ دی پس په ځنځیر سره یې وتړئ دی) یعني الله تعالی به دجهنم مؤکلینو پرښتو ته ووایې چې دغه مجرم ونیسئ او په ځنځیرانو یې وتړئ قرطبي وایې نو په تلوار به یې یولک پرښتې راونیسي او لاسونه به یې له غاړې سره وروتړي همدغه دالله جل جلاله داوېناده چې (فغلوه)(۲) ﴿ ثُمَّ ٱلْجَحِيمَ صَلُّوهُ ﴾ بیا (اورد ) دوزخ ته دی وغورځوئ (هغه ستراورته چې په غرغندو دی ترځویې وسوځوئ ) ﴿ ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَٱسْلُكُوهُ ﴾ بیا په یوه ځنځیرکي یې چې ګزونه دهغه اویا ګزه دی پس ننه باسئ دی (په دوزخ کي. ابن عباس رضی الله عنه وایې چې دغه د پرښتې په ګز باندې چې دغه ځنځیر به یې له مقعده ننوتلی او ترخولې راوتلی وي بیا به یې تنده او پښې سره تړي ځنځیر هغه پېیلې کړې ده چې یوه تربله به راوتلي وي دی به پکي راونغښتل شي چې ونه خوځېږي ، هرکله چې الله جل جلاله یې عذاب بیان کړو رپسې یې سبب داسي بیانوي ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ (بېشکه دی وو (په دنیاکي) چې ایمان یې په لوی الله نه راوړ ) یعني د الله په وحدانیت او عظمت یې باور نه درلود. په البحر المحیط کي راوړي چې ترټولو غټ سبب یې رومبی بیان کړ چې هغه دده کفر دی دغه لکه تعلیل غوندي دی چې یو څوک به پوښتنه کوي چې ولي ورته عذاب ورکول کېږي ځواب یې داچې هغه په لوی الله جل جلاله ایمان نه راوړ(۳) ﴿ وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ ٱلْمِسْكِينِ ﴾ او تاکید تېزوالی به یې نه کاوو په طعام ډوډۍ ورکولو اړو محتاجانو مسکینانو ته . مفسرین کرام لیکي چې : تاکید او هڅونه یې راوړه فعل یې یادنه کړترڅو په دې تنبیه شي چې دهڅوني تارک په دې منزلت کي دی نو پخپله داحسان او صدقې تارک به څرنګه وي؟ ﴿ فَلَيْسَ لَهُ ٱلْيَوْمَ هَٰهُنَا حَمِيمٌ ﴾ نو نشته ده ته نن ورځ په دې ځای کي کوم دوست (دفع کونکی دعذاب (څکه دوستان ورڅخه تېښتي او منډې وهي ) ﴿ وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ ﴾ او نشته هیڅ

(۱) الطبري ۲۹/ ۳۹
(۲) القرطبي ۱۸/ ۲۷۲
(۳) البحر ۸/ ۳۲۶

طعام (چي وئي خوري) مگرخو(ددوزخيانود زخمونو) له وينو اوزووڅخه (١)﴿ لَّا يَأْكُلُهُۥٓ إِلَّا ٱلْخَٰطِـُٔونَ ﴾ چي نه خوري دغه (غسلين ) مگرگناهكاران يې خوري . مفسرين كرام ليكي چي (الخاطئون) دخاطئ جمع اوهغه چاته وايې چي په قصد سره گناه كوي مگر ( مخطئ) بياهغه څوک دي چي په خطاورڅخه گناه صادره شي اوقصديې نه وي ځكه (خاطئون) راوړل شوي (مخطئون) ونه ويل شول ، څرنگه چي نېكانوخلكواحوال بيان شو ورپسې دبدانودحال يادونه وشوه اوس دقرآنكريم په تعظيم باندي كلام پاى ته رسوي فرمايې: ﴿ فَلَآ أُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُونَ وَمَا لَا تُبْصِرُونَ ﴾ (نوقسم خورم زه په هغوشيانوچي ويني يې تاسي اوپه هغوشيانوچي نه يې وينى تاسي) يعني قسم دى په مشاهداتواومغيباتود(لا)تورى په دې كلام كي چي (لاأقسم) دى دقسم دتاكيد لپاره راغلى اودنفي لپاره نه دى ، امام فخر رازي ليكي چي: آيت شريف په عموم اوشمول باندي دلالت كوي ځكه گردشيان له دووډولونوڅخه خالي نه وي ، يا ليدونكى اوياهم نه ليدونكى وي نوخالق اومخلوق ، ددنياٲو آخرت ، اجساموٲوارواحو، انسانانو او پېريانانوٲوظاهري ، باطني نعمتونوټولوته شامل دي قتاده وايې چي دغه دالله ټولومخلوقاتوته عام دى، عطاء رحمه الله وايې معناداچي دقدرت په هغوآثارواو نښانوچي تاسويې وينى اوپه هغوچي نه يې وينى (٢)﴿ إِنَّهُۥ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴾ ببشكه دا(قرآن) خامخا خبره درسول مكرم (عزتمن) ده يعني دغه درحمان (الله)كلام اوعزتمن رسول يې لولي (چي محمدعليه افضل الصلوة والتسليم دى قرطبي وايې چي: مرادله رسول څخه دلته محمدصلى الله عليه وسلم دى اوچي ده ته يې دوينانسبت شوى ځكه چي دى لوستونكى اودالله له لوري مبلغ دى (٣)﴿ وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ ﴾ اونه ده داخبره دكوم شاعر(لكه چي تاسي گمان كوى ځكه دشعرله اوزانوسره بېخي مخالف دى نونه شعراونه نثردى) ﴿ قَلِيلًا مَّا تُؤْمِنُونَ ﴾ بېخي لږايمان راوړى تاسي (بلكه نه مؤمنان كېږى . مقاتل وايې چي مقصدله (قليل) څخه داچي تاسوددې باورنه لرى چي دغه قرآن دي دالله كلام وي نوبېخي ايمان نه راوړى اوعرب كله چي ووايې (قلماياتينا ) معنايې داوي چي هيڅكله موږ ته نه راځي (٤)﴿ وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ ﴾ اونه ده داخبره دكاهن(لكه چي تاسي گمان كوى كوم چي هغه دغيبودپوهېدلودعوىٰ لري ځكه چي قرآن دكاهنانوله مسجع اسلوبوڅخه گوښې طريقه لري (چي اعجازدى) ﴿ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴾ لږپنداخلى تاسي (بلكه نه يې اخلى ) ﴿ تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ دغه (قرآن) نازل شوى دى له جانبه د پالونكي) رب دعالميانو(لكه چي الله فرمايې﴿ وَإِنَّهُۥ لَتَنزِيلُ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ نَزَلَ بِهِ ٱلرُّوحُ ٱلْأَمِينُ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ ٱلْمُنذِرِينَ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ ﴾ (الشعرآء ٩٢ - ٩٥)له آيت شريف څخه مقصد درسول الله تبرئه او پاكي ده له هغه څه نه كوم چي مشركانويې ورته

---

(١) دغه طبري له ابن عباس څخه رانقل كړي اوقتاده وايې ترټولوبدناولي اوپليت خواړه دي چي غسلين بلل كېږي

(٢) الوسي تفسير ٢٩ /٥٢

(٣) القرطبي ١٨/ ٢٧٤

(٤) كبير تفسير ٣٠ / ١١٧

دسحراوکهانت نسبت کاوو ) بیادغه تاکید په خورا اوچت اوستردلیل سره کوي چي قرآن الهي کتاب دی فرمايي ﴿ وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ ٱلْأَقَاوِيلِ ﴾ او که له ځانه جوړولی (محمد ) پرموږباندي ځیني خبري (چي موږورته نه وي ويلي ) ﴿ لَأَخَذْنَا مِنْهُ بِٱلْيَمِينِ ﴾ (نو هرومرو موږبه بدل اخیستی وو له ده نه په یمین قوت، عذاب سخت سره ) یعني موږبه پخپل قوت او قدرت له ده نه انتقام اخیستی وو[1] ﴿ ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ ٱلْوَتِينَ ﴾

بیابه خامخاپرې کړی وو موږله ده رګ دزړه (اووژلی به موږوو ) قرطبي لیکي چي: (وتین )هغه دزړه سره متصل رګ دی چي کله غوڅ شي انسان مړ کیږي[2] مقصدداچي الله به ژرترژره عذاب ورکړی وای اومهلت ډیل به یې نه ورکولای اوداچي له اقوالوڅخه (اقاویل) تعبیرراغلی چي په تصغیراوتحقیردلالت وکړي یعني که لږ وړوکی خبرهم وي چي الله ته یې نسبت وکړي اوله ځانه یې جوړکړی وای موږ به دغه عذاب ورکړی وو ﴿ فَمَا مِنكُم مِّنْ أَحَدٍ عَنْهُ حَٰجِزِينَ ﴾ پس نه به وو هیڅوک له تاسي څخه (یعني نه یې تاسي له قتل د ) هغه (محمد ) څخه منع کونکي (ماله) خازن لیکي معنا داچي محمد ﷺ ستاسي لپاره په موږ دروغ نه تړي هغه پدې پوه دی که چیري په موږپسې خبره وتړي موږعذاب ورکووا وهیڅوک به زموږعذاب له هغه څخه دفع نکړي[3] ﴿ وَإِنَّهُۥ لَتَذْكِرَةٌ لِّلْمُتَّقِينَ ﴾ اوبېشکه دغه (قرآن) خامخاتذکره پند دی وېرېدونکیولره (چي نفع ترې واخلي ) یعني دغه قرآن متقیانومؤمنانولره پند دی هغه کسان چي له الله وېرېږي دوی یې ښکه ځانګړي یادکړل چي دوی ورڅخه ګټه اخلي ﴿ وَإِنَّا لَنَعْلَمُ أَنَّ مِنكُم مُّكَذِّبِينَ ﴾ (اوخامخابېشکه موږته خامخامعلوم دي دا چي بېشکه ځیني له تاسي څخه دروغجن ګڼونکي دي (قرآن لره ) یعني موږپوهېږوچي ځیني له تاسو څخه دغه قرآن دروغ بولي اونه یې مني پخوانی کیسې یې ګڼي سره له دې چي آیتونه یې روښانه دي په آیت شریف کي دمکذبینولپاره وعیددی ﴿ وَإِنَّهُۥ لَحَسْرَةٌ عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ ﴾ اوبېشکه دغه (انکارله قرآنه) خامخاسبب دحسرت دی پرمنکرانو کافرانوباندي[4] (په آخرت کي کله چي دمصدقینوثواب و ویني نوبه پښېماني کوي) ﴿ وَإِنَّهُۥ لَحَقُّ ٱلْيَقِينِ ﴾ اوبېشکه دغه (قرآن) خامخا حق یقین دی (چي شک او شبه پکي نشته هوښیاران پکي شک نلري چي دغه دي درب العالمین کلام وي ﴿ فَسَبِّحْ بِٱسْمِ رَبِّكَ ٱلْعَظِيمِ ﴾ پس پاکي تسبیح ووایه په نامه درب خپل چي له ټولوڅني عظیم ډېرلوی دی(اوشکروباسه په هغوسترونعمتونوچي تاته یې درکړي اوترټولوسترهم دغه قرآن عظیم الشان دي).

---

[1] دغه دمجاهد اوابن عباس رضی الله عنهم وینا ده.
[2] قرطبي ۱۸/ ۲۷۶
[3] خازن ۴/ ۱۴۸
[4] ظاهرداچي ضمیرقرآن ته راجع دی اوطبري لیکي چي دغه تکذیب په کافرانوباندي حسرت اوندامت دی دغه وینا مقاتل هم غوره کړي ده.

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته په لاندي ډول لنډيز کېږي:

١-اطناب چي تکرارلپاره دتعظيم اوتهويل راغلی لکه ﴿ اَلْحَاۤقَّةُ مَا الْحَاۤقَّةُ ﴾ ترپايه پوري

٢-له اجمال څخه وروسته تفصيل چي دبيان زياتوالی وښيي لکه ﴿ كَذَّبَتْ ثَمُودُ وَعَادٌۢ بِالْقَارِعَةِ ﴾ اوورپسې تفصيل يې هسي فرمايې ﴿ فَاَمَّا ثَمُودُ فَاُهْلِكُوْا بِالطَّاغِيَةِ وَاَمَّا عَادٌ فَاُهْلِكُوْا ﴾ دآيت ترپايه اوپدې کي مرتب لف اونشر راغلی دی.

٣-مرسله مجمله تشبيه لکه ﴿ كَاَنَّهُمْ اَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ﴾ چي ادات يې ذکرکړی اودشبه وجه يې حذف کړي ده.

٤-ښه په زړه پوري باريکه استعاره چي پدې کلام کي ده ﴿ اِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَاۤءُ حَمَلْنٰكُمْ فِي الْجَارِيَةِ ﴾ طغيان دانسان له صفتونو څخه دی خوداوبولوړوالی اوزياتوب يې دانسان له سرغړوني اوطغيان سره داستعارې په توګه مشابه کړی دی.

٥-اشتقاقي جناس لکه ﴿ وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴾ او ﴿ لَا تَخْفٰى مِنْكُمْ خَافِيَةٌ ﴾ چي راغلی دی.

٦-بديعه مقابله چي پدې کلام کي ده ﴿ فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ فَيَقُوْلُ هَاۤؤُمُ اقْرَءُوْا كِتٰبِيَهْ ﴾ چي په مقابل کي يې ﴿ وَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِشِمَالِهٖ.. ﴾ راغلی اودغه له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي

٧-سلبي طباق لکه ﴿ فَلَاۤ اُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُوْنَ وَمَا لَا تُبْصِرُوْنَ ﴾ چي راغلی دی.

٨-دکنايه صنعت چي پدې کلام کي دی ﴿ لَاَخَذْنَا مِنْهُ بِالْيَمِيْنِ ﴾ چي يمين له قدرت اوقوت څخه کنايه راغلی دی

٩-دفواصلوتوافق چي دآيتونودپيل مراعات پکي شوی دی لکه ﴿ فَهُوَ فِيْ عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ ، فِيْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ،قُطُوْفُهَا دَانِيَةٌ ﴾ اولکه داچي ﴿ خُذُوْهُ فَغُلُّوْهُ ثُمَّ الْجَحِيْمَ صَلُّوْهُ ثُمَّ فِيْ سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُوْنَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوْهُ ﴾ او دې ته دبديع په علم کي مرصع سجع وايې والله اعلم.

تنبيه:

حافظ ابن کثيرله عمربن الخطاب رضی الله عنه څخه روايت راوړی چي هغه وايې تراسلام راوړلودمخه مي درسول الله څارنه کوله چي ترمادمخه مسجدته ولاړاوزه يې له شاودرېدم چي هغه دالحاقة سورت لوستل پيل کړل زه دقرآنکريم له جوړښت څخه په تعجب کي ولوېدم اوپه زړه کي مي ويل چي قسم په الله دغه لکه چي قريش وايې شاعردی نوهغه داسي ولوستل ﴿ اِنَّهٗ لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ ﴾ نوماوويل چي کاهن دی رسول الله داکلام تلاوت کړچي ﴿ وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴾ دسورت ترپايه

پوري هغه وايې چې زما په سينه کې د اسلام لپاره هر کوټ کوټ پرانستل شو تر څو چې الله تعالی ما ته هدايت او لارښوونه وکړه.

د الله تعالی په مرسته د الحاقة سورت د تفسير ژباړه بشپړه شوه.

***

## د(المعارج )سورت مكي دى او څلور څلوېښت آيتونه لري.

دسورت په وړاندي:

دالمعارج سورت مكي دى او د اسلامي عقيدې اصول څېړي پدې سورت كي دقيامت دورځي او په هغې كي ذكر او ونوبيان دى او داچي تل ترتله سعادت او شقاوت زحمت اوراحت دمؤمنانو او كافرانو به هلته وي هغه آخرت او دجزاء سراى دى ، هغه محورچي دغه سورت ورباندي راڅرخي دمكې كفاراو دهغوى له بعث اونشورڅخه انكاردى او داچي درسول الله صلى الله عليه وسلم په بلنه او دعوت يې څرنگه استهزآء كوله او ملنډي يې ورباندي وهلې.

دسورت پيل دمكې دكفاروپه طغيان شوى دى چي په څه ډول يې درسول الله له اطاعت څخه غاړه غړوله او په انذاراوعذاب يې څه رنگه استهزآء كوله؟ ددوى دطغيان لپاره يې يومثال راوړى كوم چي ځيني مشرانوچي هغه (نضربن حارث) وو له الله يې ژرترژره په ځان اوخپل تبرباندي دعذاب راتللو دعاكوله ترڅوچي ترآخرت له مخه په دنياكي ورباندي خوندواخلي(۱) دغه ددوى دانكاراوعناد په هكله مكابره وه ﴿ سَأَلَ سَآئِلٌ بِعَذَابٍ وَاقِعٍ لِّلْكَٰفِرِينَ لَيْسَ لَهُۥ دَافِعٌ مِّنَ ٱللَّهِ ذِى ٱلْمَعَارِجِ ﴾ دآيتونوترپايه

وروسته ددغې ورځي دمجرمينوخبر راوړي چي پدغه ورځ كي چي آسمانونه چوي او غرونه يو بل لوري ته لكه رنگه نداف وهلې وړۍ الوزي را الوزي نو دوى به دعذاب دڅورني هيله كوي فرمايي ﴿ يَوْمَ تَكُونُ ٱلسَّمَآءُ كَٱلْمُهْلِ ، وَتَكُونُ ٱلْجِبَالُ كَٱلْعِهْنِ ، وَلَا يَسْـَٔلُ حَمِيمٌ حَمِيمًا ، يُبَصَّرُونَهُمْ ۚ يَوَدُّ ٱلْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِى مِنْ عَذَابِ يَوْمِئِذٍۭ بِبَنِيهِ ، وَصَٰحِبَتِهِۦ وَأَخِيهِ ، وَفَصِيلَتِهِ ٱلَّتِى تُـْٔوِيهِ ، وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ يُنجِيهِ ﴾.

بيادانسان طبيعت ښيي چي كله سختي ورته ورسېږي نوجزع اوفرياد كوي خوكله چي نعمت ورته ورسېږي نوبياتكبرغوره كوي او دفقيرانو مسكينانو حق نه وركوي ﴿ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ خُلِقَ هَلُوعًا ، إِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ جَزُوعًا ، وَإِذَا مَسَّهُ ٱلْخَيْرُ مَنُوعًا ﴾.

له دې په هيسته دمؤمنانو غوره او وتلي لوړصفات رااخلي دهغوى بهترين اوفاضل اخلاق راوړي او هغه دالله نعمتونه ښيي چي ستر اجرونه اوثوابونه يې په تل ترتله جنات الخلدكي ورته چمتو كړي دي ﴿ إِلَّا ٱلْمُصَلِّينَ ، ٱلَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ دَآئِمُونَ ، وَٱلَّذِينَ فِىٓ أَمْوَٰلِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُومٌ ، لِّلسَّآئِلِ وَٱلْمَحْرُومِ ﴾ د آيتونو ترپايه پوري

نووروسته دملنډي وهونكو كفاروحال بيانوي چي تمه لري دوى دي هم جنات النعيم ته ننوزي ﴿ فَمَالِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ قِبَلَكَ مُهْطِعِينَ ، عَنِ ٱلْيَمِينِ وَعَنِ ٱلشِّمَالِ عِزِينَ ، أَيَطْمَعُ كُلُّ ٱمْرِئٍ مِّنْهُمْ أَن يُدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيمٍ ، كَلَّآ ۖ إِنَّا خَلَقْنَٰهُم مِّمَّا يَعْلَمُونَ ﴾.

دسورت پاى په سترقسم اولوړه شوى چي درب العالمين په ذات اخيستى شوى چي بعث اوجزاء حق دي هيڅ شک اوشبه پكي نشته بل داچي الله جل جلاله پدې قادردى چي تردوى غوره وپنځوي

(پیدا کړي) فرمایي ﴿فَلَآ أُقۡسِمُ بِرَبِّ ٱلۡمَشَٰرِقِ وَٱلۡمَغَٰرِبِ إِنَّا لَقَٰدِرُونَ ، عَلَىٰٓ أَن نُّبَدِّلَ خَيۡرٗا مِّنۡهُمۡ وَمَا نَحۡنُ بِمَسۡبُوقِينَ﴾ آن تردې
پورې چې ﴿خَٰشِعَةً أَبۡصَٰرُهُمۡ تَرۡهَقُهُمۡ ذِلَّةٞۚ ذَٰلِكَ ٱلۡيَوۡمُ ٱلَّذِي كَانُواْ يُوعَدُونَ﴾.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿سَأَلَ سَآئِلُۢ بِعَذَابٖ وَاقِعٖ (١) لِّلۡكَٰفِرِينَ لَيۡسَ لَهُۥ دَافِعٞ (٢) مِّنَ ٱللَّهِ ذِي ٱلۡمَعَارِجِ (٣) تَعۡرُجُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ
وَٱلرُّوحُ إِلَيۡهِ فِي يَوۡمٖ كَانَ مِقۡدَارُهُۥ خَمۡسِينَ أَلۡفَ سَنَةٖ (٤) فَٱصۡبِرۡ صَبۡرٗا جَمِيلًا (٥) إِنَّهُمۡ يَرَوۡنَهُۥ بَعِيدٗا (٦) وَنَرَىٰهُ قَرِيبٗا (٧) يَوۡمَ
تَكُونُ ٱلسَّمَآءُ كَٱلۡمُهۡلِ (٨) وَتَكُونُ ٱلۡجِبَالُ كَٱلۡعِهۡنِ (٩) وَلَا يَسۡـَٔلُ حَمِيمٌ حَمِيمٗا (١٠) يُبَصَّرُونَهُمۡۚ يَوَدُّ ٱلۡمُجۡرِمُ لَوۡ يَفۡتَدِي مِنۡ
عَذَابِ يَوۡمِئِذِۭ بِبَنِيهِ (١١) وَصَٰحِبَتِهِۦ وَأَخِيهِ (١٢) وَفَصِيلَتِهِ ٱلَّتِي تُـٔۡوِيهِ (١٣) وَمَن فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا ثُمَّ يُنجِيهِ (١٤) كَلَّآۖ إِنَّهَا لَظَىٰ
(١٥) نَزَّاعَةٗ لِّلشَّوَىٰ (١٦) تَدۡعُواْ مَنۡ أَدۡبَرَ وَتَوَلَّىٰ (١٧) وَجَمَعَ فَأَوۡعَىٰٓ (١٨) ۞ إِنَّ ٱلۡإِنسَٰنَ خُلِقَ هَلُوعًا (١٩) إِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ جَزُوعٗا
(٢٠) وَإِذَا مَسَّهُ ٱلۡخَيۡرُ مَنُوعًا (٢١) إِلَّا ٱلۡمُصَلِّينَ (٢٢) ٱلَّذِينَ هُمۡ عَلَىٰ صَلَاتِهِمۡ دَآئِمُونَ (٢٣) وَٱلَّذِينَ فِيٓ أَمۡوَٰلِهِمۡ حَقّٞ مَّعۡلُومٞ
(٢٤) لِّلسَّآئِلِ وَٱلۡمَحۡرُومِ (٢٥) وَٱلَّذِينَ يُصَدِّقُونَ بِيَوۡمِ ٱلدِّينِ (٢٦) وَٱلَّذِينَ هُم مِّنۡ عَذَابِ رَبِّهِم مُّشۡفِقُونَ (٢٧) إِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمۡ غَيۡرُ
مَأۡمُونٖ (٢٨) وَٱلَّذِينَ هُمۡ لِفُرُوجِهِمۡ حَٰفِظُونَ (٢٩) إِلَّا عَلَىٰٓ أَزۡوَٰجِهِمۡ أَوۡ مَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُهُمۡ فَإِنَّهُمۡ غَيۡرُ مَلُومِينَ (٣٠) فَمَنِ ٱبۡتَغَىٰ وَرَآءَ ذَٰلِكَ
فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡعَادُونَ (٣١) وَٱلَّذِينَ هُمۡ لِأَمَٰنَٰتِهِمۡ وَعَهۡدِهِمۡ رَٰعُونَ (٣٢) وَٱلَّذِينَ هُم بِشَهَٰدَٰتِهِمۡ قَآئِمُونَ (٣٣) وَٱلَّذِينَ هُمۡ عَلَىٰ صَلَاتِهِمۡ يُحَافِظُونَ
(٣٤) أُوْلَٰٓئِكَ فِي جَنَّٰتٖ مُّكۡرَمُونَ (٣٥) فَمَالِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ قِبَلَكَ مُهۡطِعِينَ (٣٦) عَنِ ٱلۡيَمِينِ وَعَنِ ٱلشِّمَالِ عِزِينَ (٣٧) أَيَطۡمَعُ كُلُّ ٱمۡرِيٕٖ
مِّنۡهُمۡ أَن يُدۡخَلَ جَنَّةَ نَعِيمٖ (٣٨) كَلَّآۖ إِنَّا خَلَقۡنَٰهُم مِّمَّا يَعۡلَمُونَ (٣٩) فَلَآ أُقۡسِمُ بِرَبِّ ٱلۡمَشَٰرِقِ وَٱلۡمَغَٰرِبِ إِنَّا لَقَٰدِرُونَ (٤٠) عَلَىٰٓ أَن
نُّبَدِّلَ خَيۡرٗا مِّنۡهُمۡ وَمَا نَحۡنُ بِمَسۡبُوقِينَ (٤١) فَذَرۡهُمۡ يَخُوضُواْ وَيَلۡعَبُواْ حَتَّىٰ يُلَٰقُواْ يَوۡمَهُمُ ٱلَّذِي يُوعَدُونَ (٤٢) يَوۡمَ يَخۡرُجُونَ مِنَ ٱلۡأَجۡدَاثِ سِرَاعٗا كَأَنَّهُمۡ
إِلَىٰ نُصُبٖ يُوفِضُونَ (٤٣) خَٰشِعَةً أَبۡصَٰرُهُمۡ تَرۡهَقُهُمۡ ذِلَّةٞۚ ذَٰلِكَ ٱلۡيَوۡمُ ٱلَّذِي كَانُواْ يُوعَدُونَ (٤٤)﴾ المعارج: ١ - ٤٤

## لغتونه:

(معارج) زینې هغه چې انسان وربانديلو ړخېژي (عروج) دآسمان لوري لوړتیاته وایي (معراج) هم له دغه توري څخه اخیستل شوی دی (المهل) ویلې شوي ژېړ، قلعي (العهن) نداف وهلي وړۍ (فصیلة) خپلوان هغه کسان چې دوی ورڅخه تولد شوی اوزېږېدلی دی (لظی) دجهنم نوم دی ځکه یې پدې نامه بولي چې اوریې لمبې وهي بلېږي (الشوی) د(شواة) جمع او دسرپوستوکي ته وایي (هلوعا) ډېرژړا او فریادکونکی ابوعبیدة لیکي چې هلوع هغه دی چې نعمت ورته ورسېږي شکرنه اداکوي اوچي زحمت ورته ورسېږي صبرنه لري (عزین) تیت اوپرک ټولې (یوفضون) تلواره کونکي وایي (أوفض البعیر) یعني اوښ ګړندی شو[1]

(1) روح المعاني ٢٩/ ٦٤

Bawar.net



**دنزول سبب:**

ابن عباس رضی الله عنه وايي: کله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم نضربن حارث ووېراوو چي دالله عذاب راتلونکی دی نوهغه وويل: ﴿ وَإِذْ قَالُوا اللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَاءِ ﴾ نو الله دا آيت نازل کړي چي ﴿ سَأَلَ سَائِلٌ بِعَذَابٍ وَاقِعٍ ۝ لِّلْكَافِرِينَ لَيْسَ لَهُ دَافِعٌ ﴾.

**تفسير:**

﴿ سَأَلَ سَائِلٌ بِعَذَابٍ وَاقِعٍ ﴾ (وغوښت غوښتونکو يو عذاب واقع کېدونکی لوېدونکی) يعني د مکي له کافرانو څخه يوه دځان او قوم لپاره خامخا واقع کېدونکی عذاب پرېوتل لوېدل وغوښتل مفسرين کرام وايي چي دغه (نضربن حارث) چي دمکي له سرکښو سردارانو او ياغی مشرانو څخه يووکله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه دالله له عذابه څخه ووېراوونويي داستهزاء په توګه وويل ﴿ وَإِذْ قَالُوا اللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ نوهغه وچي الله تعالى دبدر په ورځ هلاک کړاوهلته په رسوايي سره ووژل شو او آيت شريف د ده په بدي باندي نازل شوی ﴿ لِّلْكَافِرِينَ ﴾ کافرانو لره) يعني دغه عذاب يې دکافرانو لپاره وغوښت ﴿ لَيْسَ لَهُ دَافِعٌ ﴾ (چي نشته هغه ته دفع کونکی) يعني چي کله الله وغواړي عذاب ورباندي راولي څوک يې بياترې دفع کولای نشي خامخابه ورباندي راځي که دوی يې وغواړي او که يې ونه غواړي ﴿ مِّنَ اللَّهِ ذِي الْمَعَارِجِ ﴾ له طرفه دالله چي څښتن دلويولوړو زينودی (هغه چي پرښتې لپاره داوامرواووحی دالله ورباندي ورخېژي او راښکته کېږي تفصيل يې داسي فرمايي چي ﴿ تَعْرُجُ الْمَلَائِكَةُ وَالرُّوحُ إِلَيْهِ ﴾ چي خېژي پرښتې اوروح (جبريل) په طرف دهغه (مأموربه ځای) يعني خېژي ابرارپرښتې او جبرائيل امين هغه چي الله جل جلاله دوحی رسولولپاره ځانګړي کړي هغه عزوجل ته [١] ﴿ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ ﴾ په هغه ورځ چي وه اندازه دهغې پنځوس زره کاله (په نسبت سره کافرانو ته) يعني قيامت پنځوس تم ځايونه او مواقف دي چي هر موقف زرکاله دی خودغه به مؤمنانو ته دومره لنډه وي لکه چي يو فرضي لمونځ ګذاري [٢] ﴿ فَاصْبِرْ صَبْرًا جَمِيلًا ﴾ نو صبر کوه (ای محمده!) صبر جميل نيک (په استهزاء او کړاوونو دقوم خپل اودلتنګه کېږه مه ځکه چي ارومرو الله جل جلاله تاته پردوی باندي بری درکوي؛ دغه دپيغمبر عليه السلام لپاره ډاډينه او تسلی ده ځکه چي په تلوار عذاب غوښتل ددوی ملنډي او استهزاء وه چي په رسول الله صلى الله عليه وسلم يې کوله نو الله ورته دزغم او صبر کولو حکم وفرمايو، قرطبي

---

[١] جبرائيل عليه السلام يې ځکه يوازي ياد کړچي دمنزلت شرافت او فضيلت لري او الله په روح سره نومولی دی چي ﴿ نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ ﴾.

[٢] أخرجه امام احمدعن أبي سعيد الخدري قال: قيل يارسول الله ماأطول هذا اليوم فقال صلى الله عليه وسلم والذي نفسي بيده انه ليخفف على المؤمن حتى يكون أخف عليه من صلوة مكتوبة يصليهافي الدنيا).

وايي چي صبرجميل هغه ته وايي چي له الله پرته بل چاته جزع اوشكوى پكي نه وي(١) ﴿إِنَّهُمْ يَرَوْنَهُ بَعِيدًا﴾ (بېشكه دوى (منكران) وېني هغه (قيامت (ياعذاب) ليري) يعني دغه استهزاء كونكي دالله عذاب ليري گڼونكي دى اوپدې باوردي چي عذاب نه نازلېږي اودوى له بعث اوحساب څخه منكردي ﴿وَنَرَىٰهُ قَرِيبًا﴾ اوموږيې وينوهغه (عذاب ياقيامت) نږدې ځكه هرراتلونكى نږدې دى ، وروسې الله دعذاب هيبت اودقيامت دورځي كړاوونه داسي بنيي فرمايي ﴿يَوْمَ تَكُونُ السَّمَاءُ كَالْمُهْلِ﴾ هغه ورځ (به عذاب پرمنكرانوواقع شي) چي وگرزي آسمان په شان دقلعي ژېرويلي شوي (توري ختمي دتېلو) ابن عباس رضى الله عنه وايي چي (مهل) دتېلو هغه وروسته پاتي ختوتلچتوته وايي(٢) ﴿وَتَكُونُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ﴾ اوو به گرزي غرونه په شان دوړى نداف وهلي رنګارنګ الوزونكي په هرلور. قرطبي وايي (عهن) سرو وړيو اويارنګ په رنګ وړيوته وايي غرونه يې ځكه ورسره مشابه كړل چي هغه هم ډول ډول رنګونه لري دغرونوړومبى تغيربه داوي چي شګي غوندي به شي اوبيابه نداف وهلي رنګارنګ وړى غوندي شي وروسته به بيادوړي اوگردونه شي(٢) دغه دځمكي اوآسمان حال دى اود مخلوقاتو حال به هسي وي لكه چي الله فرمايي ﴿وَلَا يَسْأَلُ حَمِيمٌ حَمِيمًا﴾ اونه به پوښتنه كوي يودوست له بل دوسته (ځكه چي پخپل ځان به مشغول وي هيبت اووېرې به راپرزولي وي ﴿يُبَصَّرُونَهُمْ﴾ اګركه په نظرورځي دوى ته هغوى اوښه به يې پېژني ، آن تردې چي سړى به خپل پلار ، ورور ، خپلوان اوقوم قبيله وېني مګر ورسره به خبره نه كوي بلكه تري تښتي به لكه چي الله فرمايي ﴿يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ لِكُلِّ امْرِئٍ مِنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ﴾ (عبس٣٤ -٣٧ ) ابن عباس وايي چي ﴿يُبَصَّرُونَهُمْ﴾ معناداچي ځيني ددوى به ځيني نورپېژني اوسره پېژندګلوى به كوي مګربيرته به يوله بله تښتي (٣) ﴿يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِي مِنْ عَذَابِ يَوْمِئِذٍ بِبَنِيهِ وَصَاحِبَتِهِ وَأَخِيهِ﴾ (خوښوي به مجرم ګنهګار(كافر) چي فديه وركړي له عذابه ددغي ورځي په زامنوخپلو سره اوملګري ښځي خپلي سره او وروروخپل سره ) يعني كافربه ددغي ورځي له عذابه ددې تمناكوي چي په دنياكي ترګردوپه ګرانوخپلوانوځان وژغوري اوهغوى يې په بدله كي قربان كړي ﴿وَفَصِيلَتِهِ الَّتِي تُؤْوِيهِ﴾ اوخپلوانو قبيلو خپلوهغوسره چي ځايونه يې وركول دوى ته (په دنياكي) اوپه مشكلاتوكي به يې مرستندويې كوله نه يوازي دغه بلكه ددې تمناكوي چي دځمكي دسرپه ټولو خلګوفديه كولوځان وژغوري ﴿وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ يُنْجِيهِ﴾ اوهغه څوك چي په ځمكه كي دي ټول بياوژغوري ځان خپل ، ليكن افسوس چي مجرم دژغورلونه دى چي څوك يې دالله له عذابه اوسخته زحمته اوكړاوه وساتي. امام فخررازي ليكي چي(ثم) دنجات د استبعادلپاره راغلى يعني ددې تمناكوي

---

(١) قرطبي ١٨/ ٢٨٤

(٢) همدغه دمجاهد ويناده لكه چي په طبري كي راځي ٢٩/ ٤٢

(٣) قرطبي تفسير١٨/ ٢٨٥

که دغه ګرد مذکور خلک دده په واک کې وي او بیا يې د خپل ځان د خلاصولو په غرض فدیه کړي او ځان وژغوري مګر افسوس دی چې نه ژغورل کیږي (۱) ﴿ كَلَّآ إِنَّهَا لَظَىٰ ﴾ بېشکه دا (اور د دوزخ) لمبې وهونکی دی (کلا) د زجر او ترټلو توری دی چې دغه کافر به له دغو آرزوګانو او تمنیاتو څخه راوګرځي دالله له عذاب څخه یې فدیه خلاصولای نشي بلکه دده په مخ کې داسې لمبې وهونکی دوزخ دی چې ﴿ نَزَّاعَةً لِّلشَّوَىٰ ﴾ ایستونکی دی (له کفارو څخه) د سر پوستوکی (۲) هر کله چې وباسي بیرته به راوټوکېږي او دغه به د زیات عذاب څکلو لپاره وي داچې په ځانګړي توګه یې راوړ څکه چې داور په وړاندي تر ټول بدن هم دغه سخت حساسیت لرونکی او اغېزمنونکی دی ﴿ تَدْعُوا مَنْ أَدْبَرَ وَتَوَلَّىٰ ﴾ رابولي (دا دوزخ) هغه څوک چې شا یې کړي وی او مخ یې ګرزولی وي (له ایمانه څخه) یعني دغه دوزخ هغه چاته چیغې او ناري وروهي چې کافران دي او له ایمانه یې څنګ کړی وي. ابن عباس وايي چې کفارو او منافقانو ته به د دوی په نومونو په فصیح ژبه وېناکوي چې ماته راشه ای کافره ماته راشه ! ای منافقه ماته راشه ! او بیا به یې داسې ترکومې تېروي لکه چې مرغان دانې تېروي (۳) ﴿ وَجَمَعَ فَأَوْعَىٰ ﴾ او ټول کړی یې وي (مال) او ساتلی یې وي (دالله حق یې ترې نه وي ورکړی د مسکینانو خیال یې نه وي ساتلی. مفسرین کرام لیکي چې په آیت شریف کې د هغه چا لپاره چې په مال کې بخل کوي او په راټولولو کې یې حریص وي د خیر ښېګنې په لاروکې یې نه لګوي او دالله او مسکینانو حقوق نه ورکوي وعید دی. حسن رحمه الله وايي ای بنیآدمه ! دالله وعید دي واورېدو او بیا هم د نیاله حلال او حرامو سره راټولوې ! او ورپسې الله د انسان طبیعت او هغه څه چې دده په فطرت کې د مال په راټولولو کې شته داسې بیانوي ﴿ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ خُلِقَ هَلُوعًا ﴾ بېشکه انسان حریص بې صبره پیدا شوی دی چې په تکلیف صبر نلري او په نعمت شکر نه کاږي مفسرین کرام لیکي چې (هلع) د حرص شدت او د صبر لږوالي ته وايي (۴) مراد له انسان څخه د استثناء راتلو په دلیل سره عام بني آدم دی څکه چې استثنآء د عموم معیار دی ورپسې الله د (هلوعا) تفسیر داسې فرمایي ﴿ إِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ جَزُوعًا ﴾ (کله چې ورسېږي ده ته شر، خرابي صبر نکوي ډېر فریاد کوي) یعني کله چې ورته فقر، ناروغي او وېره ورسېږي نو زښته زیات فریاد کوي او دغه کړاوونه زیات ګڼي نا هیلي او قنوط ورباندي غالب شي ﴿ وَإِذَا مَسَّهُ ٱلْخَيْرُ مَنُوعًا ﴾ (او کله چې ور سېږي ده ته ښېګنې فائدې نو منع کونکی شي) یعني کله چې بډائي، روغتیا او د رزق روزي پراخي ورته ورسېږي نو بیا بخل کوي معنا داچې د فقر په وخت کې صبر نلري او کله چې یې الله غني او بډای کړي بیا دالله په لارکې مال نه لګوي. ابن کیسان وايي الله تعالی انسان داسې پیدا کړی چې هغه شی چې دده محبوب وي ورباندي خوشحالېږي او چې ترې کرکه او نفرت کوي بیا ځني تښتي نو هغه چې خوښ یې وي دالله په لارکې یې نه لګوي او هغه چې ناخوښ یې وي

---

(۱) کبیر تفسیر ۳۰ / ۱۲۷

(۲) دغه دابن عباس وېناده او مقاتل وايي چې ککرۍ او خوا و شا سوځوي نه به غوښې او نه پوستوکی بې له سوځولو پاتي شي.

(۳) قرطبي تفسیر ۱۸ / ۲۸۹

(۴) تفسیر الرازی ۳۰ - ۱۲۸

وربانديِ صبرنلري (¹) ﴿ إِلَّا ٱلْمُصَلِّينَ ﴾ مگر نه (دی پیدا کړی شوی هلوع) هغه ) لمونځ کونکی، دغه استثناء دبني آدم څخه دی چي په هلع باندي وستايل شول اودوی لمونځ دوی ته ددنيا په هکله دزړه ترلو اجازه نه ورکوي چي دشر په وخت کي زيات فرياد وکړي اودخير په وخت کي بخل وکړي ﴿ ٱلَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ دَآئِمُونَ ﴾ هغه چي دوی په لمانځه خپل دائم قائم دي چي بل څيزيې له لمانځه څخه نه مشغلوي ځکه دوی دژوندانه له کدورتونو پاک سپېڅلی اوپه الهي نفحاتو ښکلی دی ﴿ وَٱلَّذِينَ فِىٓ أَمْوَٰلِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُومٌ ﴾ اوهغه کسان (هم هلوع نه دي) چي په مالونو دهغوی کي معلومه ونډه شته (چي فرضي زکات دی) ﴿ لِّلسَّآئِلِ وَٱلْمَحْرُومِ ﴾ لپاره دغو ښتونکو (فقيرانو ) او محروموفقيرانو (چي سوال نکوي خلک ورباندي دبډای خيال کوي نومحروم پاتي شي لکه الله جل جلاله فرمايي ﴿ يَحْسَبُهُمُ ٱلْجَاهِلُ أَغْنِيَآءَ مِنَ ٱلتَّعَفُّفِ ﴾ (البقرة ۲۷۳) ﴿ وَٱلَّذِينَ يُصَدِّقُونَ بِيَوْمِ ٱلدِّينِ ﴾ اوهغه کسان (هم هلوع نه دي) چي باورکونکي وي په ورځ دجزاء باندي (په بېشکه باوراوتصديق سره نودهغې ورځي لپاره چمتوالی نيسي) ﴿ وَٱلَّذِينَ هُم مِّنْ عَذَابِ رَبِّهِم مُّشْفِقُونَ ﴾ او هغه کسان (هم هلوع نه دي) چي دوی له عذابه درب خپل نه وېرېدونکي وي(په ځانونو خپلو باندي اود ثواب هيله من وي ﴿ إِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمْ غَيْرُ مَأْمُونٍ ﴾ بېشکه له عذاب درب څخه دوی ندي په امن کړی شوي (بلکه تل ترې وېرېږي ) ځکه چي نه ښايي د الله له عذابه دي انسان بېغمه شي ددې لپاره چي اعتبار وروستی خاتمې لره دی دغه باورکونکی وېرېدونکی ددنيا په زرق اوبرق نه تېروزي اونه يې ددنيا نعمتونه له لاري باسي نه ددنيا له بايللو ېرېږي ځکه ددوی سوچ اوفکر د الله په جلال اودراتلونکي معاد په هکله وي نودشر په وررسېدلو کي زيات فرياد نه کوي اودنعمتونو ترلاسه کولو په وخت کي د الله په لاره کي له لګولو څخه ممانعت نه کوي ، ورپسې الله د پنځم ټولګي بيان کوي هغه کسان چي د خيرښېګڼو او طاعاتو عباداتو په لاره کي يې توفيق موندلی اوبريالي کسان دي فرمايي ﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَٰفِظُونَ ﴾ (اوهغه کسان (هم هلوع نه دي ) چي دوی دخپل شهوت دځايونو ساتونکي دي ) يعني دوی په محرماتو کی ندي ککړ ، ځانونه يې له زنا اوفواحشو ساتلي دي ﴿ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزْوَٰجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُمْ ﴾ (مگر پرخپلو ښځو باندي او په هغي وينځو باندي چي يې مالکان شوي دی ښي لاسونه ددوی ) يعني دوی يوازي له خپلو منکوحاتو اووينځومملوکاتو سره کوروالی کوي ﴿ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ ﴾ نوبېشکه دوی ندي ملامت کړی شوي ،(ځکه چي دشهوت اشباع له هغو ځايونو چي الله جل جلاله روا کړي لکه خپلي مېرمني اووينځي حلال بلکه داجر اوثواب موجب دی ځکه چي پرې دنسل اوذوذات تکثير کېږي ﴿ فَمَنِ ٱبْتَغَىٰ وَرَآءَ ذَٰلِكَ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْعَادُونَ ﴾ (نوهغه چي غواړي پرته له دغو (حلالو ښځو او

(¹) تفسير البغوي ۴ / ۱۵۱

وینځو خپلو ) ځکه پس هم دوی دي له حده تیریدونکي ) یعني او هغه څوک چې پرته له خپلو حلالو ښځو او مینځو بل ځای د شهوت قضاء ترسره کړي هغوی د الله له حدودو تجاوز کړی او د الله عذاب ته یې ځان ورواندي کړی دی. طبری لیکي معنا دا چې څوک دخپل ځان د شهوت لپاره پرته له خپلي ښځي او وینځي بل څوک وغواړي او ویې کړي نو د الله له حلالو حدودو څخه یې محرماتو ته تجاوز کړی نو دوی ملامت کړی شوي دي([1]) ﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ لِأَمَٰنَٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَٰعُونَ ﴾ او هغه کسان (هم هلوع نه دي) چې دوی امانتونه خپلو او وعدو خپلو له ساتونکي وي (او سرته یې رسوي) کله چې امانت ورته کېښودل شي خیانت پکې نکوي او چې وعده وکړي خلاف تري نه کوي) ﴿ وَٱلَّذِينَ هُم بِشَهَٰدَٰتِهِمْ قَآئِمُونَ ﴾ او هغه کسان (هم هلوع ندي) چې هم دوی پخپله شاهدي باندي سم ولاړ وي (نه یې پټوي او نه تزئید او تنقیص پکې کوي بلکه په بشپړه توګه یې سرته رسوي دخپل او پردي تو پیر پکې نه کوي ترڅو چې دخلګو حقوق او مصالح خوندي پاتي شي دغه شاهدي که څه هم په اماناتو کي شامل وه خو په ځانګړي ډول یې دد ې لپاره یاده کړه چې په فضیلت یې تنبیه راشي ځکه دد ې په سبب حقوق ژوندي کېږي او په پرېښودلو کي یې حقوق له مینځه ځي ﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ ﴾ او هغه کسان هم (هلوع نه دي) چې هم دوی پر لمانځه خپل باندي ساتنه کوي (پخپلو وختونو کي یې اداکوي او په ښه توګه او دس تازه کوي دوختونو مراعات یې کوي ټول حقوق یې له سنتو او واجباتو او آدابو سره په نظر کي نیسي) نو تل ترتله کول په لمنځونو پسي او محافظت ساتنه یې په احوالو پسي تعلق نیسي([2]) وروسته له هغه چې الله تعالی د متقیانو مؤمنانو اوصاف وستایل ددوی عاقبت او انجام داسي بیانوي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ فِي جَنَّٰتٍ مُّكْرَمُونَ ﴾ همدغه کسان (چې په دغو لوړو صفاتو موصوف دي) په جنتونو کي به وي عزتمن کړی شوي) یعني دغه دستروصفاتو او لوړو اخلاقو خاوندان به په جنات النعیم کي اوسي هلته چې الله جل جلاله به په ډول ډول کراماتو انعاماتو نازولي وي او خوند ورښایسته ملذات او مشتهیات به یې ورباندي پېرزو کړي وي ځکه چې دوی په مکارم الاخلاق باندي موصوف دي ﴿ فَمَالِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ قِبَلَكَ مُهْطِعِينَ ﴾ (نو څه شوي دي هغو کسانو له چې کافران شوي دي چې طرف ستا ته راځغاستونکي دي ؟) یعني دغو کفارو مجرمانو ته څه ورپېښه ده (ای محمده !) چې ستالوري ته غاړه غزونکي او سترګي اړونکي په منډه را درومي ؟مفسرین کرام لیکي: مشرکان به کړی کړی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوا وشا تولېدل او دهغه خبري به یې اورېدلې بیا به یې په ده صلی الله علیه وسلم او اصحابانو رضی الله عنهم ملنډي او استهزاګاني کولې ویل به یې که دغه کسان جنت ته لکه چې د محمد صلی الله علیه وسلم ګمان دی ولاړ شي نو موږ به تر دوی پخوا لا جنت ته تللي یو بیا دغه آیت نازل شو([3]) ﴿ عَنِ ٱلْيَمِينِ وَعَنِ ٱلشِّمَالِ عِزِينَ ﴾ له ښي لوري او له کیڼ لوري ځخه ناست ډلي ډلي چې تعجب کونکي او خبري کونکي دي؟ ابو عبیده وایې (عزین)

---

([1]) الطبري ٢٩/ ٥٣

([2]) قرطبي تفسیر ١٨/ ٢٩٢

([3]) دابو السعود تفسیر ٥/ ١٩٥

معناجلا جلا تولی تولی او په حدیث شریف کې هم راغلي چې: (مالي أراكم عزين؟ الاتصفون كماتصف الملائكة عند ربها)[1] يعني زه ولي تاسو جلا جلا تولی ګورم؟ ولي داسي صفونه نه تړی لکه چې پرښتې يې د الله په وړاندي تړي؟! ﴿ أَيَطۡمَعُ كُلُّ ٱمۡرِيٕٖ مِّنۡهُمۡ أَن يُدۡخَلَ جَنَّةَ نَعِيمٖ ﴾ آيا تمه کوي هر سړی له دوی څخه چې داخل به کړی شي په جنت د نعمتونو کې؟) استفهام انکاري دی چې توبیخ او تقريع هم ور سره شته يعني د دغو کفارو هريو داسي تمه لري چې الله به يې د نعمتونو جنت ته بوزي حال دا چې دوی د خاتم المرسلين تکذيب کړی دی؟ ﴿ كَلَّآۖ ﴾ نه ده داسي (چې دوی طمع کوي) بلکه دوی به هيڅکله هم جنت ته نه بېول کېږي بيا فرمايي ﴿ كَلَّآۖ إِنَّا خَلَقۡنَٰهُم مِّمَّا يَعۡلَمُونَ ﴾ بېشکه موږ پيدا کړي دي دوی له هغي (نطفې) څخه چې دوی پرې پوهېږي (چې خواره او ضعيفه ده يعني موږ دوی له داسي څېز نه چې هغه ناخوښه او مستقذره ده پيدا کړي چې هغه لومړی نطفه وروسته علقه او بيا مضغة ده نوله کومه به دوی جنات النعيم ته ترمؤمنانو دمخه ولاړشي دوی خو د جنت د دخول لپاره داسي کومه بهتري نلري بلکه د جنت د دخول مستوجب خو د الله جل جلاله اطاعت دی. قرطبي ليکي: دوی به د مسلمانانو په فقيرانو او بېوزلانو باندي تکبر کاوو او ورباندي ملنډي به يې وهلې نو الله پاک (د ټولو کائناتو خالق) جل جلاله و فرمايل ﴿ كَلَّآۖ إِنَّا خَلَقۡنَٰهُم مِّمَّا يَعۡلَمُونَ ﴾ يعني له پليتي څخه نوله دوی سره دغه تکبر نه ښايي[2] ﴿ فَلَآ أُقۡسِمُ بِرَبِّ ٱلۡمَشَٰرِقِ وَٱلۡمَغَٰرِبِ ﴾ (نو قسم مي دی په رب (مالک) د مشرقونو او مغربونو) يعني زه قسم خورم د لمر، سپوږمۍ او نورو ستورو په ختيزونو او لوېديزونو چې ﴿ إِنَّا لَقَٰدِرُونَ عَلَىٰٓ أَن نُّبَدِّلَ خَيۡرٗا مِّنۡهُمۡ ﴾ (بېشکه موږ خامخا قادريو په دې باندي چې بدل راوړو خير ډېر غوره له دوی څخه) يعني دوی هلاک کړو او په بدل کې يې تر دوی د فضيلت خاوندان او د الله د حکم منونکي نور کسان راولو ﴿ وَمَا نَحۡنُ بِمَسۡبُوقِينَ ﴾ او نه يو موږ عاجز کړی شوي (له دې څخه) ﴿ فَذَرۡهُمۡ يَخُوضُواْ وَيَلۡعَبُواْ ﴾ نو پرېږده دوی (ای محمده!) چې ننوزي او مشغولېږي په باطلو کې (او ته په هغه څه کې مشغول او سه چې درته امر شوی، دغه داسي امر دی چې مشرکانو ته پکې وعيد او تهديد نغښتی دی) ﴿ حَتَّىٰ يُلَٰقُواْ يَوۡمَهُمُ ٱلَّذِي يُوعَدُونَ ﴾ تر هغه پوري چې پيوست شي دوی له هغي ورځي خپلې سره چې له دوی سره يې وعده کړی شوي ده (هلته چې توبه او ندامت به ورته ګټه نه رسوي) ﴿ يَوۡمَ يَخۡرُجُونَ مِنَ ٱلۡأَجۡدَاثِ سِرَاعٗا ﴾ هغه ورځ چې بهر راوايستل شي دوی له قبرونو څخه چې ځغلېدونکي به وي (ځمکي د محشر ته) ﴿ كَأَنَّهُمۡ إِلَىٰ نُصُبٖ يُوفِضُونَ ﴾ (لکه چې دوی په طرف د نښو چابک ځغلي) يعني لکه چې دوی به خپلو هغو بتانو ته چې دوی د عبادت لپاره د رولي چابک منډي وهي د دوی حال يې کله چې د حساب تم ځای ته په چټکتيا د رومي له هغه حاله سره مشابه کړ چې دوی به خپلو بتانو او طاغوتانو ته په دنيا کې منډي ور

[1] أخرجه مسلم - تفسير قرطبي
[2] د قرطبي تفسير ۱۸/۲۹۴

وهلې او په دغه تشبیه کې استهزاء او ددوی د عقلونو په بې کاره توب باندې تعریض دی چې دوی د هغه ځاعبادت کاوو چې هغه د عبادت ورنه وو او د واحد احد ذات عبادت یې پرې ایښې وو ﴿ خَٰشِعَةً أَبۡصَٰرُهُمۡ ﴾ حال دا چې ذلیلې خوارې به وې سترګې د دوی (له شرمه به ښکته ځمکې ته ګورې ﴿ تَرۡهَقُهُمۡ ذِلَّةٞ ﴾ (چې پټ کړې به وې دوی لره ذلت خوارې) یعنې له هره لورې به ور باندې سپکتیا او ذلت راتاو وې په مخونو به یې د خوارې نښې نښانې ښکاریږې ﴿ ذَٰلِكَ ٱلۡيَوۡمُ ٱلَّذِي كَانُواْ يُوعَدُونَ ﴾ دا ورځ ده (هغه د قیامت) چې ودوی چې وعده ورسره کړې شوې وه) په دنیاکې ) او دوی به ور باندې ملنډې وهلې دروغ یې ګڼله نو نن به یې عذاب او جزا ووینې.

بلاغت:

پدې سورت کې چې د بدیع او بیان کومې ښکلاوې شته دا سې یې لنډیز کوو.

۱- د طباق صنعت چې د ﴿ بَعِيدٗا... قَرِيبٗا ﴾ او د ﴿ ٱلۡيَمِينِ... ٱلشِّمَالِ ﴾ او د ﴿ ٱلۡمَشَٰرِقِ ...وَٱلۡمَغَٰرِبِ ﴾ ترمینځ راغلی دی.

۲- اشتقاقي جناس لکه د ﴿ سَأَلَ سَآئِلُۢ ﴾ او داسې ﴿ تَعۡرُجُ ٱلۡمَعَارِجِ ﴾ په کلماتو کې چې شتون لري.

۳- د خاص ذکر وروسته له عام څخه ترخوېې فضل او شرافت وښیي لکه دا چې ﴿ تَعۡرُجُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ وَٱلرُّوحُ ﴾ چې مراله روح څخه جبریل علیه السلام دی.

۴- مرسله مجمله تشبیه چې فرمایې ﴿ يَوۡمَ تَكُونُ ٱلسَّمَآءُ كَٱلۡمُهۡلِ وَتَكُونُ ٱلۡجِبَالُ كَٱلۡعِهۡنِ ﴾ چې د مشابهت وجه ترې حذف شوې ده.

۵- د عام یادونه وروسته له خاص څخه چې د الله جل جلاله پدې کلام کې شته ﴿ لَوۡ يَفۡتَدِي مِنۡ عَذَابِ يَوۡمِئِذِۭ بِبَنِيهِ وَصَٰحِبَتِهِۦ وَأَخِيهِ ...وَمَن فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا ثُمَّ يُنجِيهِ ... ﴾ دلته عموم وروسته له خصوص څخه راوړل شوی ترڅو چې د محشر د ورځې هول او هیبت وښیي.

۶- لطیفه مقابله لکه د ﴿ إِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ جَزُوعٗا ﴾ چې په مقابل چې یې راځي ﴿ وَإِذَا مَسَّهُ ٱلۡخَيۡرُ مَنُوعًا ﴾.

۷- انکاري استفهام چې د تقریع او توبیخ د افادې لپاره راځي لکه ﴿ أَيَطۡمَعُ كُلُّ ٱمۡرِيٕٖ مِّنۡهُمۡ أَن يُدۡخَلَ جَنَّةَ نَعِيمٖ ﴾.

۸- او څنه اولوړه کنایه لکه چې فرمایې ﴿ كَلَّآۖ إِنَّا خَلَقۡنَٰهُم مِّمَّا يَعۡلَمُونَ ﴾ چې له ناولي (مني) څخه یې کنایه راوړې خوپه تعبیر کې بالکل په ښایسته اسلوب راغلی او د پند اخیستلو او وینو لو لپاره په خورا باریک او بلیغ اشارت وړاندې شوې دی.

۹ – مرسله مجمله تشبیه چې فرمایي ﴿ كَأَنَّهُمْ إِلَىٰ نُصُبٍ يُوفِضُونَ ﴾ پدې تشبیه کې پردوی باندې ټهکړ اوددوی په بې عقلۍ باندې تعریض دی اوداچې پردوی دناکاره ناپوهي تسجیل وکړي چې هغه څاته چې دعبادت له سره ورته دی بیا هم دوی به منډې وروهلې.

۱۰ - مرصع سجع چې لکه ملغلرې اویاقوت څرګند ېږي اوهغه داسې ﴿ كَلَّآ ۖ إِنَّهَا لَظَىٰ ، نَزَّاعَةً لِّلشَّوَىٰ ، تَدْعُواْ مَنْ أَدْبَرَ وَتَوَلَّىٰ ، وَجَمَعَ فَأَوْعَىٰٓ ﴾ اونور دېر ځایونه.

تنبیه:

• الله تعالی پدې قول کې چې فرمایي ﴿ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ خُلِقَ هَلُوعًا ﴾ ترپایه پورې په بشري طبیعتونو تنبیه فرمایلې اودایې څرګنده کړې چې انسان دخپلې هوااوخواهش په لور ډېر ګړندی دروممې هغه ډېر حرصناک دی کله چې ورته بهترې ښېګڼه اوخیرورسېږي نوبخل کوي اوچې کله بیاورته رنځ کړاو او فقرورسېږي بیانوخورا فریاداوجزع کوي له دوی څخه یې بیاځانګړې ټولګې وایستل هغوی چې ایمان یې راوړی اونیک صالح عملونه ترسره کوي.

دالله تعالی په مرسته دالمعارج سورت دتفسیرژباړه بشپړه شوه

***

## دنوح سورت مکي دی اواته ویشت آیتونه لري.

• دسورت په وړاندې:

دنوح سورت لکه نور مکي سورتونه دعقیدې اصول اوتاداوونه بیانوي اودایمان بنسټونه ټینګوي پدې کې دانبیاوودشیخ حضرت نوح علیه السلام کیسه په تفصیل سره یاده شوې اوله کومې ورځې چې یې دعوت پیل کړی بیادطوفان ترپېښې پورې هغه ستره پېښه چې الله تعالی دده دټبر دروغجن ګڼونکي (مکذبین) ټول په کې هلاک اوډوب کړل نوځکه یې سورت نوح بولې په سورت کې د الله جل جلاله دهغه تېرې لارې (سنت) بیان دی کوم چې دالله له دعوت څخه منحرف ملتونه هلاکوي اوهمداسې دمرسلینواودمجرمینوروستنی برخه لیک چې دزمانې اوتاریخ په اوږدو کې یې لړلې په ډاګه کېږي

دسورت پیل دالله له لوري دنوح علیه السلام په رااستولوشوي چې الله هغه خپل قوم ته د دعوت دتبلیغ اوورېوني لپاره ګمارلی فرمایي ﴿ إِنَّآ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦٓ أَنْ أَنذِرْ قَوْمَكَ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ ترپایه.

وروسته دنوح علیه السلام دجهاداوصبر زغم یادونه کوي چې څرنګه دخپل تبلیغ دبلنې او دعوت په لاره کې قرباني ته چمتو ووشپه اوورځ په پټه اوښکاره به یې هغوی رابلل مګرله دغه سره سره دده دعوت هغوی لانورزیات په ګمراهي اوسرغړونه کې غوپه کول ﴿ قَالَ رَبِّ إِنِّي دَعَوْتُ قَوْمِي لَيْلًا وَنَهَارًا ، فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَآءِيٓ إِلَّا فِرَارًا ﴾.

بيادالله جل جلاله انعامونه اوپېرزويني ورپه يادوي ترڅودالله په طاعت کي زياروګالي او د الله دقدرت اورحمت نښي په دغه کائناتوکي وګوري فرمايي: ﴿ أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللَّهُ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا ، وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا وَجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا ، وَاللَّهُ أَنبَتَكُم مِّنَ الْأَرْضِ نَبَاتًا ، ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا ﴾.

سره له دې ګردوپندونو ،نصيحتونواووعظونودهغه قوم اوتېرپه کفراوطغيان کي لاهو وود خپل پيغمبرپه بلنه يې ملنډي وهلې ترڅوچي الله جل جلاله په طوفان باندي هلاک کړل ﴿ قَالَ نُوحٌ رَّبِّ إِنَّهُمْ عَصَوْنِي وَاتَّبَعُوا مَن لَّمْ يَزِدْهُ مَالُهُ وَوَلَدُهُ إِلَّا خَسَارًا ، وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا ، وَقَالُوا لَا تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا ... ﴾ ترپايه پوري

په پای کي سورت دنوح عليه السلام دښېرا يادونه کوي چي هغه خپل قوم ته وروسته له هغه چي نه نيم سوه (٩٥٠) کاله يې دالله لوري ته بلنه ورکړه خوددوی زړونه پاسته نشول اونه يې هم په وعظ اونصيحت ګټه واخيستله اونه هم ووېرېدل نويې ورته دغسي بددعاوکړه چي ﴿ وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا ، إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ، رَّبِّ اغْفِرْ لِي وَلِوَالِدَيَّ وَلِمَن دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا تَبَارًا ﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ إِنَّا أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ أَنْ أَنذِرْ قَوْمَكَ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (١) قَالَ يَا قَوْمِ إِنِّي لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ
(٢) أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاتَّقُوهُ وَأَطِيعُونِ (٣) يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ وَيُؤَخِّرْكُمْ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ إِنَّ أَجَلَ اللَّهِ إِذَا جَاءَ لَا يُؤَخَّرُ
لَوْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ (٤) قَالَ رَبِّ إِنِّي دَعَوْتُ قَوْمِي لَيْلًا وَنَهَارًا (٥) فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَائِي إِلَّا فِرَارًا (٦) وَإِنِّي كُلَّمَا دَعَوْتُهُمْ
لِتَغْفِرَ لَهُمْ جَعَلُوا أَصَابِعَهُمْ فِي آذَانِهِمْ وَاسْتَغْشَوْا ثِيَابَهُمْ وَأَصَرُّوا وَاسْتَكْبَرُوا اسْتِكْبَارًا (٧) ثُمَّ إِنِّي دَعَوْتُهُمْ جِهَارًا (٨)
ثُمَّ إِنِّي أَعْلَنتُ لَهُمْ وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ إِسْرَارًا (٩) فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا (١٠) يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا
(١١) وَيُمْدِدْكُم بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَل لَّكُمْ أَنْهَارًا (١٢) مَّا لَكُمْ لَا تَرْجُونَ لِلَّهِ وَقَارًا (١٣) وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا (١٤)
أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللَّهُ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا (١٥) وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا وَجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا (١٦) وَاللَّهُ أَنبَتَكُم مِّنَ
الْأَرْضِ نَبَاتًا (١٧) ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا (١٨) وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ بِسَاطًا (١٩) لِّتَسْلُكُوا مِنْهَا سُبُلًا فِجَاجًا
(٢٠) قَالَ نُوحٌ رَّبِّ إِنَّهُمْ عَصَوْنِي وَاتَّبَعُوا مَن لَّمْ يَزِدْهُ مَالُهُ وَوَلَدُهُ إِلَّا خَسَارًا (٢١) وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا (٢٢) وَقَالُوا لَا تَذَرُنَّ
آلِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا (٢٣) وَقَدْ أَضَلُّوا كَثِيرًا ۖ وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا ضَلَالًا (٢٤) مِّمَّا
خَطِيئَاتِهِمْ أُغْرِقُوا فَأُدْخِلُوا نَارًا فَلَمْ يَجِدُوا لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ أَنصَارًا (٢٥) وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ

دَيَّارًا ﴿۲۶﴾ إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا۟ عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوٓا۟ إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ﴿۲۷﴾ رَّبِّ ٱغْفِرْ لِى وَلِوَٰلِدَىَّ وَلِمَن دَخَلَ بَيْتِىَ مُؤْمِنًا وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ وَلَا تَزِدِ ٱلظَّٰلِمِينَ إِلَّا تَبَارًۢا ﴿۲۸﴾ ﴾ نوح: ۱ – ۲۸

## لغتونه:

(استغشوا) ځانونه یې ونغښتل پټ کړل (مدرارًا) پرله پسې په شپږو شپږو (اطوارا) مختلف یو دول وروسته له بله شاعروايي (والمرء يخلق طورا بعد أطوار)([1]) سړی یو دول وروسته له نورو دولونو پنځول کېږي (فجاجا) پراخې لارې (كُبارا) په کبرکې وروستي پړاوته رسېدلی (دیار) دځمکي په سر ګرځېدونکي خوځېدونکی (تبارًا) هلاکت اوفناکېدل

## تفسیر:

﴿ إِنَّآ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦٓ ﴾ (بېشکه مورږ استولي وو نوح قوم دده ته ) یعني مورږ دانبياووشيخ حضرت نوح دعربي جزيرې خلګوته ورلېږلی وو. الوسي ليکي: مشهوره داده چي هغه عليه السلام په کوفه کي اوسېدو او هلته رااستول شوی دی([2]) ﴿ أَنْ أَنذِرْ قَوْمَكَ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴾ پدې سره چي وو بېروه ته قوم خپل پخواله هغه ځني چي راشي دوی ته عذاب دردناک (که يې ايمان نه راوړ په دنياکي اوعذاب داورپه آخرت کي) ﴿ قَالَ يَٰقَوْمِ إِنِّى لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴾ (وويل (نوح) ای زماقومه زه بېشکه تاسي ته ښکاره وېرونکی يم) يعني هغوی ته يې بلنه ورکړه او ورته يې وويل چي: زه ستاسولپاره وېرونکی يم دحقيقت څرګندونکی يم تاسو دالله له عذابه وېروم زمابلنه څرګنده اوکار چاره مي واضح دي مفسرين کرام ليکي: نوح عليه السلام لومړنی نبي دی چي قوم ته مبعوث شوی اوپدې يې شيخ الانبياء بولي ځکه چي داوږده عمرخاوندوو اوډېروخت يې پخپل قوم کي تېرکړی لکه چي قرآنکريم يې کيسه کوي ﴿ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا ﴾ هغوی يې دالله لوري ته رابلل خوسره له دومره اوږدې مودې په هغه باندي ډېرلږکسانو ايمان راووړنو قرآنکريم دده ګرده کيسه کله چي يې قوم په طوفان هلاک شو يوازي په دغه سورت کي له پيل څخه بيا ترپايه بيان کړي ؛ حضرت نوح عليه السلام دپنځو أولوالعزم نبيانو څخه يو دی چي حضرت ابراهيم ، موسی ، عيسی اومحمد عليهم السلام دي دده په زمانه کي کفر شهرت موندلی اودده قوم دبتانو په عبادت اوزياته سرغړونه ، طغيان، ظلم اوعصيان باندي مشهورشو نوالله جل جلاله ورته نوح عليه السلام رااستاوو چي کيسه همدغه ده چي قرآن يې بيانوي ﴿ أَنِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ وَٱتَّقُوهُ وَأَطِيعُونِ ﴾ چي بندګي کوئ تاسي الله ته او ووېرېږئ له الله څخه او زماخبري (دالله داطاعت اوبتانو دعبادت دپرېښودلو په هکله) ومنئ ﴿ يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ ﴾ (چي وبښي الله تاسي ته ګناهونه ستاسي) يعني که موهغه څه چي زه درته وايم ترسره کړل نوالله به ستا سي کړي ګناوي درمعاف کړي اوداچي (من ذنوبكم) يې وفرمايل مقصدداچي ځيني ګناوي ستاسي ،کومي چي تراسلام راوړلودمخه

---

([1]) البحر المحيط ۸ / ۳۳۷
([2]) الوسي تفسير ۲۹ / ۶۹

دي څکه چي ايمان راوړل تېري ګناوي معافوي وروستني نه معافوي (۱) ﴿وَيُؤَخِّرْكُمْ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ (او وروستی به کړي الله تاسي (بې له عذابه) ترنښتې په نامه کړی شوي پوري (چي اجل دی) يعني الله به ستاسو عمرونه اوږده کړي ترهغه پوري چي دالله په علم کي مقدر او مقرردی چي په ښايسته ژوند او پرېمانه عيش او روزي کي به اوسی. مفسرين کرام وايي چي مراد له تاخير څخه هغه تاخير دی چي بې له عذابه وي يعني په دنياکي به مو د اجل تر تاکلي مودې پوري بې له عذابه پرېږدي او هرچي اجل دی هغه نه وړاندي کېږي او نه هم وروسته کېږي ﴿فَإِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَـْٔخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ﴾ څکه يې وروسته پسي وفرمايل ﴿إِنَّ أَجَلَ ٱللَّهِ إِذَا جَآءَ لَا يُؤَخَّرُ﴾ (بېشکه چي اجل نېټه دالله کله چي راشي نه وروسته کېږي) يعني دانسان عمر محدود دی نه زياتېږي اونه کمېږي اودا چي داجل نسبت يې الله ته وکړ څکه چي الله جل جلاله يې ټاکي اوليکي(۲) ﴿لَوْ كُنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ (که چېري یی تاسي چي پوهېږی) يعني که تاسوپدې پوهېدای نوبه مو دايمان په راوړلو کي تلوار کړی وو څنډبه مو نه کاوو. ﴿قَالَ رَبِّ إِنِّى دَعَوْتُ قَوْمِى لَيْلًا وَنَهَارًا﴾ وويل(نوح) ای زمار به بېشکه ما وبالو قوم خپل (توحيد ته) شپه اوورځ تل (بې له سستي اوستوماني) يعني کله چي يې ګردي چاري په کارکړې اوتر وروستي پړاوه يې خپل زيارونه سپماوو نوبيايې دغسي وويل ﴿فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَآءِىٓ إِلَّا فِرَارًا﴾ نو زيات نه کړدوی ته دعوت زما مګر تېښتنه (له ايمانه او طاعته څخه) يعني دوی ته زمابلني پرته له دې چي له حق څخه وتنښتېدل اوڅنګ يې وکړ بل څه ورزيات نکړل او ورپسې يې ددغه تېښتي اوڅنګ کولو انځور په داسي تصويرسره چي ترې پورته بل نشته راوړچي ﴿وَإِنِّى كُلَّمَا دَعَوْتُهُمْ لِتَغْفِرَ لَهُمْ﴾ اوبېشکه زه چي هرکله دوی وبولم (وحدت اوطاعت ته) ددې لپاره چي ته دوی وبښې. په التسهيل کي ليکي چي مغفرت يې پدې يادکړ چي هغه دايمان په سبب وي نوددې لپاره چي ددوی دإعراض بدي ښکاره شي څکه چي دوی له خپلي نېکمرغي څخه اعراض اوڅنګ کړی دی ﴿جَعَلُوٓا۟ أَصَٰبِعَهُمْ فِىٓ ءَاذَانِهِمْ﴾ نوننني باسي دوی ګوتي خپلي په غوږونو خپلوکي (تر څوزمادعوت وانه وري) ﴿وَٱسْتَغْشَوْا۟ ثِيَابَهُمْ﴾ او چاپېر کړي نغښتلي يې وي څانونه خپل په جامو خپلو (چي ما ونه ويني او خبري مي وانه وري په البحر المحيط کي راوړي چي ظاهره دادی چي دغه به حقيقت ووچي غوږونه به يې بندول ترڅو دنوح عليه السلام بلنه وانه وري او په جاموکي به يې څانونه نغښتل ترڅو هغه ته ونه ګوري څکه چي دنصيحت له اورېدلو اودناصح له ليدلو يې کرکه کوله او ورسره بغض اوکينه يې درلوده اوداهم کېدای شي چي دغه دي ددوی له اعراض څخه دمبالغې يوه کنايه وي چي دوی دهغه چا په ډول دي چي غوږونه بندوي اوسرونه څانونه نغاړي (۳) ﴿وَأَصَرُّوا۟ وَٱسْتَكْبَرُوا۟

(۳) داهغه څه دي چي ابوحيان په البحر المحيط کي ليکلي اوطبري بياوايي چي (من) دتبعيض لپاره نه دی بلکه د(عن) په معنادی چي دلته يې معناګردي ګناوي ستاسي کېږي خولومړی أرجح دی.

(۱) دصاوي حاشيه په جلالين باندي ۴ /۲۴۹

(۲) البحر المحيط ۸ /۳۳۸

ﭐسْتِكْبَارًا ﴾ اوهمېشه والی کوي (پخپل کفر) اوسرکښي کوي (زماله متابعته) په سرکښي کولو(لوی عظیم) سره (پدې کي ددوی له زیات عناداو دښمني څخه کنایه راغلي چي دوی تردې اندازې په ګمراهي کي غوپه دي ﴿ ثُمَّ إِنِّي دَعَوْتُهُمْ جِهَارًا ﴾ بیابېشکه ما ښکاره وېناوکړه دوی ته (دخلګوپه وړاندي بې له وېري) ﴿ ثُمَّ إِنِّي أَعْلَنتُ لَهُمْ وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ إِسْرَارًا ﴾ بیا بېشکه مابښکاره وېناوکړه دوی ته اوپه پټه مې وېناوکړه دوی ته (په هره لاره ددعوت ورسره ولاړم. مفسرین کرام لیکي چي: دغه راوړل (ثم) په توري سره ددې څرګندوی دی چي دغه وروستی ښکاره او پټه وېنادریمه لاره وه چي نوح علیه السلام ددعوت اوبلنې په هکله خپله کړې وه چي نه یوازې پټه ښکاره اونه یوازې پټه بلکه هغه وخت چي دوی ته به په اعلان کولوکي مصلحت ووپه ښکاره به یې ورته دعوت کاووا وکه به چېري دپټې خبري داغېزې ګټه ورته معلومېده په پټه به یې ورته دعوت کاوو او بیایې دهغه پټ اوښکاره دعوت دتوضیح په هکله داسي وفرمایل ﴿ فَقُلْتُ ٱسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّكُمْ إِنَّهُۥ كَانَ غَفَّارًا ﴾ نوومې ویل دوی ته ښننه وغواړئ له ربه خپله (له شرکه) بېشکه هغه (الله) ډېرښښونکی دی (توبه کونکولره له کفره اوګناهونوڅخه) ﴿ يُرْسِلِ ٱلسَّمَآءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا ﴾ راوبه لېږي آسمان پر تاسوباندي ډېراوړېدونکی دباران پرله پسې په شېبوشېبو) ﴿ وَيُمْدِدْكُم بِأَمْوَٰلٍ وَبَنِينَ ﴾ اودرډېروي کومک کوي له تاسي سره په مالونواوزامنو(ستاسي کي) ﴿ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّٰتٍ وَيَجْعَل لَّكُمْ أَنْهَٰرًا ﴾ (اووبه ګرزوي تاسي ته باغونه اووبه ګرزوي تاسي ته ویالې) یعني تاسي ته به پراخ دمېوې اوسایې لرونکو ونوپراخ باغونه درکړي چي په مینځ کي به یې ویالې رواني وي نوح علیه السلام دوی ته دآسمان او ځمکي دبرکتونواوښېګړوتمه ورکړه که چېري دوی په الله تعالی ایمان راوړي هغه الله چي دهغه په یدد قدرت کي دآسمان اوځمکي دخزانوکلیاني دي دلته یې ددوی دزړه عواطف وخوځول اودابې بیان کړل چي دا وچکالي اودغه دروزي اوذوذات څخه محرومېدل دغه ګردپه سبب دکفرددوی دي چي په هغه الله ایمان نه راوړي چي په لاس کي یې اوروول دبارانونو، پراخي دروزي او ورزیاتول د اولادونودی، نو دوی ته نه ښایي چي په داسي څواکمن اومقتدرالله کافران شی او دداسي معبودانوعبادت وکړي چي دوی له خپله لاسه جوړکړي نه ګټه رسوي اونه تاوان دفع کوي، بیاراګرزي اوددوی نفسونه خوځوي په بل ډول اسلوبوېې دایمان خواته رابولي ورته وایې ﴿ مَّا لَكُمْ لَا تَرْجُونَ لِلَّهِ وَقَارًا ﴾ (څه شوي دي په تاسي باندي چي هیله نه لرئ له الله څخه دوقار، لویي، عزت) یعني پرتاسوڅه شوي دي چي دستر عظیم دسلطان خاوند الله څخه نه وېرېږئ؟ ابن عباس وایې: معناداچي تاسي ولي دالله عظمت داسي لکه چي ښایي نه کوئ (۱) ﴿ وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا ﴾ او(حال دادی چي)پیداکړي یې یاست راز راز (په مختلفو اطواراوادوارکي چي یوځل نطفه اوبیاعلقه اوبیامضغة وي فتبارک الله أحسن الخالقین) وروسته یې دوی ته دالله دقدرت اووحدانیت په هغونښانوتنبیه ورکړه کوم چي په کائناتوکي شتون لري

---

(۱) الطبري ۲۹/ ۵۹

نوبې وفرمايل ﴿ أَلَمْ تَرَوْا۟ كَيْفَ خَلَقَ ٱللَّهُ سَبْعَ سَمَٰوَٰتٍ طِبَاقًا ﴾ آيا نه گورى تاسي څرنګه پيدا کړي دي الله اوه آسمانونه لاندي باندي (يو دبل دپاسه) يعني اى قومه تاسو دالله عظمت او قدرت نه وينى او دعبرت په ستر ګو ورته نه ګورى سوچ او فکرېکي نه کوى ؟ چي څرنګه دغه عظيم لو جليل الشان الله اوه آسمانونه يو دبل دپاسه پوړپه پوړ په خورا مضبوطي او کلکتوب پيدا کړي دي ! ! ﴿ وَجَعَلَ ٱلْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا ﴾ او ګرزولي يې ده سپوږمۍ په دې آسمانونو کي رڼا روښانه لپاره دمخ دځمکي په شپه کي امام فخررازي ليکي چي سپوږمۍ ددنيا په آسمان کي ده او په ګردو آسمانونو کي نه ده او دا يو داسي مثال دي لکه چي ووايې باچا په عراق کي دى دا معنا نلري چي باچا د عراق په ګوټ ګوټ کي دى بلکه معنا يې دا چي هغه دعراق په يو ځاى کي دى همداسي د سپوږمۍ مثال درواخله (۱) په البحر کي ليکي چي سپوږمۍ (قمر) ددنيا په آسمان کي ده او دآسمانونو ظرفيت د سپوږمۍ لپاره صحيح دى ځکه چي دا لازم نه دي چي ظرف په ټول مظروف ډکوي ته وايې زيد په ښار کي دى معنا دا چي زيد دښار په يوه ځاى کي دی(۲) ﴿ وَجَعَلَ ٱلشَّمْسَ سِرَاجًا ﴾ او ګرزولى يې دى لمر ډېوه بله روښانه (چي ددنيا خلګ ورڅخه رڼا مومي لکه چي خلګ په ډېوو خپل کورونه روښانه کوي او څرنګه چي دلمر رڼا بشپړه او ترسپوږمۍ په ګټه اخيستلو کي زياته وه نو يې له هغه څخه په ډېوه تعبير وکړ چي پخپله بلېږي او سپوږمۍ يې رڼا وګڼله هغه چي له بل شي څخه اخيستل شوي وي او ددې مدعا تائيد دفلکي علوموڅخه هم کېږي چي دوى ثابته کړي دلمر رڼا خپله او ذاتي ده او دسپوږمۍ رڼا له لمر څخه اخيستل شوي او عارضي ده پاکي ده هغه الله لره چي علم يې په هرڅه احاطه کړي ده ﴿ وَٱللَّهُ أَنۢبَتَكُم مِّنَ ٱلْأَرْضِ نَبَاتًا ﴾ (او الله رازرغونه کړي يى تاسي (يعني ستاسو پلارېې پيدا کړى) له ځمکي څخه زرغونېده پيدا کېده ) کله چي يې دآفاقو ذکروکړنودلته ورپسې دانفسو يادونه کوي ددې لپاره چي پدې څېزونو کي دالله په عظمت ، قدرت او عجيبه مصنوعاتو کي ښکاره دلائل او نښانې شته، معنا دا چي تاسي يې له ځمکي داسي پيدا کړى لکه چي نباتات پيدا کوي داسي يې له خاورو راوايستلى لکه چي نبات ترې راوباسي . مفسرين کرام وايې: څرنګه چي راوتل او لوئېدل ددوى دځمکي په حيواني او نباتي غذاګانو ترسره کېږي نوله دې پلوه له نباتاتو سره مشابهت لري هغه چي خپله غذا له ځمکي څخه ترلاسه کوي ځکه يې نو دانسانانو پيدا ېښت زرغونېدل وبلل او يادا چي پدې کي

---

(۱) کبير تفسير ۳۰ / ۱۴۰
(۲) البحر المحيط ۸ / ۳۴۰ زه وايم چي پدې هکله چي سپوږمۍ په آسمانونو کي دننه ده له دې آيته پرته بل دليل نشته او دغه تأويل تاوېژاند او که چېري سپوږمۍ ترګردو کواکبو ځمکي ته نژدې وي او په قاطع نص سره دا هم ثابته شوي وي چي الله ستوري دآسمان دښايست لپاره پيدا کړي او ددنيا په آسمان کي يې ګرزولي ﴿ وَلَقَدْ زَيَّنَّا ٱلسَّمَآءَ ٱلدُّنْيَا بِمَصَٰبِيحَ ﴾ نو بيا دا لېږي نه ده چي خلګ دې سپوږمۍ ته وخېژي ځکه چي هغه ترټولو لومړي آسمان را دلاندي ده لکه چي اوس فضايي بېړۍ زموږ په وخت کي ورختلي او نوى علم هم ددې امکان ويني او ثابتوي يې نوله ديني پلوه دستوروا و فضاء تسخيرول ممنوع نه دى او دا چي آسمان ته څوک وخېژي دغه محال او غير ممکن دى ځکه چي الله جل جلاله فرمايې ﴿ وَجَعَلْنَا ٱلسَّمَآءَ سَقْفًا مَّحْفُوظًا ۖ وَهُمْ عَنْ ءَايَٰتِهَا مُعْرِضُونَ ﴾ . صابوني رحمه الله.

دي ددوی پلار آدم علیه السلام ته اشاره وي هغه چي له خاوري څخه يې پيدا کړ او بيايې اولادونه
ورپسي راغلل نو زرغونېدل له ځمکي پدې معنا دي ﴿ ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا ﴾ بيابه تني باسي
تاسي (پس له مرګه) په هغې (ځمکي) کي بيابه راو باسي تاسي (له قبرونو څخه) را ايستل يعني له مرګه
وروسته مو ځمکي ته بيايي او هورې به خښېږی وروسته به مو بيا دبعث او حساب په وخت کي ترې
راباسي ددې تاکيديې په مصدر (اخراجًا) سره وکړ ترڅو دا افاده کړي چي دغه چاره ارومرو کېدونکې ده
دغه آيت لکه دالله هغه وينا غسي ده چي ﴿ مِنْهَا خَلَقْنَٰكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ ﴾ (طه:٥٥)

﴿ وَٱللَّهُ جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ بِسَاطًا ﴾ (او الله ګرزولي ده تاسي ته ځمکه غوړولی فرش) يعني الله ځمکه تاسي ته
داسي لکه فرش وېره کړي چي ورباندي اوړی راوړی لکه چي يو څوک د غولي فرش استعمالوي په
التسهيل کي ليکي چي: ځمکه يې له فرش سره په اوړدوالي او غوړېدلو کي تشبيه کړي او ځينو له دې
څخه دا هم اخيستي چي ځمکه کروي نه ده خو پدې کي پوښتنه پيدا کېږي (١) الوسي ليکي چي په آيت
کي دا دلالت نشته چي مځکه هواره سطح غير ګروی ده ځکه دلويې ګړې په مخ هر څوک هغه خپل ځان ته
نژدې مسطح ويني بيا د ځمکي دګرويت او يا نه ګرويت عقيده په شريعت پسي اړه نلري خو ګرويت يې لکه
يقيني داسي برېښي او دا چي فرش يې ګڼلي يعني تاسو لکه د فرش غوندي ورباندي کېني ، ګرزی ، ويده

کېږی لاندي باندي يې استعمالوی ﴿ لِّتَسْلُكُوا۟ مِنْهَا سُبُلًا فِجَاجًا ﴾ ترڅو چي لاړشي تاسي له دغه (ځمکي) نه
پر لارو ارتو باندي (په سفرونو) نو کله چي دوی په عصيان اصرار وکړ او بد اقوال افعال ترې صادر شول

قرآن عظيم الشان يې داسي حکايت کوي ﴿ قَالَ نُوحٌ رَّبِّ إِنَّهُمْ عَصَوْنِى ﴾ وويل نوح ای ربه زما بېشکه دوی

نافرماني وکړه له ما څخه (چي زما په تکذيب کي وروستي پړاو ته ورسېدل) ﴿ وَٱتَّبَعُوا۟ مَن لَّمْ يَزِدْهُ مَالُهُۥ

وَوَلَدُهُۥٓ إِلَّا خَسَارًا ﴾ او متابعت يې وکړ د هغه چا چي نه يې دي زيات کړی ده ته مال دده او اولاد دده پرته له
ګمراهي) يعني دوی دخپلو هغو مشرانو او بدایانو متابعت وکړ کوم چي په مالونو اولادونو غره شوي وو
او هغوی هلاک شول او دد واړه دارينو سعادت يې وبايلود نو ددوی لپاره په خسران کي مقتدايان شول

﴿ وَمَكَرُوا۟ مَكْرًا كُبَّارًا ﴾ او مکر وکړ د غو رئيسانو ددوی مکر ډېر لوی آلوسي ليکي چي (کبارًا) په تکبر کي
مبالغې ته وايي هغه دا چي د دين په هکله يې چم او چل جوړ کړ خلک يې له دين څخه را وګرزول د نوح عليه

السلام په ځورولو يې وهڅول (٢) ﴿ وَقَالُوا۟ لَا تَذَرُنَّ ءَالِهَتَكُمْ ﴾ او وويل (مشرانو کشرانو ته) چي مه پرېږدئ

تاسي عبادت دمعبودانو خپلو (د نوح خبره ونه منئ) ﴿ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا ﴾
(او مه پرېږدئ (عبادت د هغه بت چي) وَدّ (نومېږي) او هغه چي سُوَاع (نومېږي) او هغوی چي يغُوث
او يعُوق او نسْر (نومېږي) يعني په ځانګړي ډول د غو پنځو بتانو عبادت مه پرېږدئ . صاوي ليکي چي
دا هغه بتان وو چي دوی به يې عبادت کاوو او تر ګردو بتانو غټ او ددوی په نزد سترو ځکه يې په خاص

(١) التسهيل ٤/ ١٥١
(٢) روح المعاني ٢٩/ ٧٦

دول يادونه وكړه اودغه د دوى دكفرپه ټينګ والي اوسخت عداوت دلالت كوي چي دوى به له دين څخه دراګرزولولپاره دول دول مكرونه په كارول دمخلص واعظ اونصيحت كونكي بڼه به يې غوره كړه اوكشران به يې دېلرونو اونيكونوپه دين باندي ټينګول ﴿ وَقَدْ أَضَلُّوا كَثِيرًا ﴾ اوپه تحقيق ګمراه كړي دي (دغومشرانوپه سبب د عبادت دبتانو ) (كشران اونورخلګ چي دګمراهي اوطغيان لاري يې ورته ښايسته كړي دي اوبيا نوح عليه السلام ورته دنوري ګمراهي ښېراوكړه ﴿ وَلَا تَزِدِ ٱلظَّٰلِمِينَ إِلَّا ضَلَٰلًا ﴾ اومه زياتوه (اى پروردګاره زما ) ظالمانو ته مګرګمراهي هلاک عذاب )يعني اى الله دوى ته ددوى په دښمني اوطغيان مه ورزياتوه مګر ګمراهي په ګمراهي برسېره. مفسرين كرام وايي : دغه ښېرايې هله وكړه كله چي ددوى له ايمان راوړلو څخه ښېخي ناهيلى اومأيوس شوچي الله ورته وفرمايل ﴿ لَن يُؤْمِنَ مِن قَوْمِكَ إِلَّا مَن قَدْ ءَامَنَ ﴾ نوالله يې ښېراومنله اودوى يې غرق كړل څكه الله فرمايي ﴿ مِّمَّا خَطِيٓـَٰٔتِهِمْ أُغْرِقُوا۟ فَأُدْخِلُوا۟ نَارًا ﴾ په سبب د ګناهونوخپلوسره دوب كړل شول (په دنياكي په دېروابوكي) نوداخل به كړل شي (أخروي) اورته، په التسهيل كي راوړي چي دغه دالله جل جلاله كلام دى چي ددوى له حاله اخبارفرمايي او(ما ) په (مما ) كلمه كي زائدچي دتأكيدلپاره راوړل شوي ده اوهمداسي دمجرور راتلل ترجارمخه هم دتأكيدلپاره شوى ترڅوددې بيان وكړي چي ددوى غرقېدل اواورته لوېدل ددوى دكفراوعصيان په پايله اونتيجه كي راغلي دي(¹)﴿ فَلَمْ يَجِدُوا۟ لَهُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ أَنصَارًا ﴾ بيانه موندل دوى دخپلوخانونولپاره مددګاران پرته له الله (چي له عذابه يې وژغوري . ابوالسعودوايي پدې كي ددوى حالت ته تعريض دى چي دوى پرته له الله نورمعبودان نيولى اوهغوى ددوى دمرستي كولوتوان نلري اودغه يودول پردوى باندي تهكم هم ګڼل كېږي(²)﴿ وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى ٱلْأَرْضِ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ دَيَّارًا ﴾ او وويل نوح اى زمارب مه پرېږده پرځمكه باندي له كافرانو څخه هيڅ اوسېدونكى (ګرزېدونكى اوټول هلاک كړه. په التسهيل كي ليكي چي(ديار ) دنفي عام له آسماوو څخه دى لكه چي ويل كېږي (مافي الداردیار ) يعني په سراى كي هيڅوک نشته (³)اوبيايې علت هسي بيانوي چي ﴿ إِنَّكَ إِن تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا۟ عِبَادَكَ ﴾ ببشكه كه چېري ته پرېږدې دوى نوګمراهان به كړي (مؤمنان )بندګان ستا(له حقي لاري څخه) ﴿ وَلَا يَلِدُوٓا۟ إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ﴾ اونه به زېږي دوى مګرخوفاجر ناشكره بدكاره له حق څخه منكره.امام فخررازي ليكي كه څوک و پوښتي چي حضرت نوح ته څرنګه دغه خبره معلومه شوه؟ ځواب داچي هغه ته په استقرائي دول دغه معلومات شوي ووڅكه چي نه نيم سوه كاله يې پكي تېركړي وو ددوى طبيعتونه يې تجربه كړي وو چي يوسړي به خپل زوى ترلاس نيولى ده ته راووست اوبيابه يې خپل زوى ته وويل اى زويكيه اله دغه دروغجن څخه ووېرېږه ! ماته خپل پلار همدغسي وصيت كړى وو اوبياچي

(¹)التسهيل ۱۵۱/۴

(²)دابوالسعودتفسير۱۹۹/۵

(³)التسهيل نفس المرجع

به کله دغه بوډا مړ شوا او ماشوم به زیږی شو دغه خبره به یې په غوږ کې وه څکه یې نووویل چې ﴿ وَلَا يَلِدُوٓا۟ إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ﴾ او کله چې یې کفاروته ښېرا وکړه وروسته یې مؤمنانوته داسې دعا وکړه چې ﴿ رَّبِّ ٱغْفِرْ لِى وَلِوَٰلِدَىَّ وَلِمَن دَخَلَ بَيْتِىَ مُؤْمِنًا وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ ﴾ ای زما ربه وبښه ما او مورا و پلار زما او هغه څوک چې ننوزي کور، بېړۍ او مسجد زماته حال دا چې ایمان لرونکي وي او له پاره د نارینه مسلمانانو او ښځینه مسلماتو ببښنه وکړه او وروسته یې ګرد مؤمنان یاد کړل ترڅو دغه ښه ابلغ او اجمع وي ﴿ وَلَا تَزِدِ ٱلظَّٰلِمِينَ إِلَّا تَبَارًۢا ﴾ او مه زیاتوه ای زما پروردګاره ظالمانو (کافرانو) لره مګر خوبربادي هلاکت (په دنیا او آخرت کې).

بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې د بدیع او بیان کومې ښکلاوې شته لنډیزیې دادی:

۱ – د طباق صنعت چې د ﴿ أَعْلَنتُ وَأَسْرَرْتُ ﴾ ترمینځ او د ﴿ إِسْرَارًا ....جِهَارًا ﴾ ترمینځ او د ﴿ لَيْلًا وَنَهَارًا يُعِيدُكُمْ.... وَيُخْرِجُكُمْ ﴾ ترمینځ راغلی دی.

۲ – مرسل مجاز چې پدې کلام کې راغې ﴿ جَعَلُوٓا۟ أَصَٰبِعَهُمْ فِىٓ ءَاذَانِهِمْ ﴾ مقصد د ګوتو سرونه دي چې په غوږونو کې یې ننباسي د لته اطلاق د کل راغلی او مراد ورڅخه جز دی.

۳ – تبعیه استعاره چې فرمایې ﴿ وَٱللَّهُ أَنۢبَتَكُم مِّنَ ٱلْأَرْضِ نَبَاتًا ﴾ د دوی پیدا ایښت یې د نباتاتو له راتوکېدلو سره تشبیه کړ کوم چې له ځمکې راز غونېږي نو له نبات څخه یې (انبات) د تبعیې استعارې په توګه مشتق کړیدی.

۴ – د مصدر راوړل د تاکید لپاره لکه ﴿ وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا ﴾ او ﴿ وَٱسْتَكْبَرُوا۟ ٱسْتِكْبَارًا ﴾ او ﴿ وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ إِسْرَارًا ﴾ او دغه ته په علم بدیع کې د اطناب صنعت وایې.

۵ – ذکر د خاص وروسته له عامه لکه دا چې ﴿ وَقَالُوا۟ لَا تَذَرُنَّ ءَالِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا ... ﴾ د آیت تر پایه او همداسې ددې برعکس چې عام وروسته له خاصه راوړې لکه دا چې ﴿ رَّبِّ ٱغْفِرْ لِى وَلِوَٰلِدَىَّ وَلِمَن دَخَلَ بَيْتِىَ مُؤْمِنًا وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ ﴾ چې دغه دواړه د اطناب څخه ګڼل کېږي او بدیعي محسنات دي

۶ – مرصع سجع چې د آیتونو د پیل مراعات پکې شوی لکه ﴿ مِّدْرَارًا ، أَنْهَٰرًا ، وَقَارًا ، أَطْوَارًا ﴾ ترپایه پورې

**فائده اوګټه:**

علماء کرامود قبر د عذاب د ثابتولو لپاره په دغه آیت شریف دلیل نیولی چي الله تعالی فرمایي
﴿مِمَّا خَطِيٓـَٔـٰتِهِمۡ أُغۡرِقُواْ فَأُدۡخِلُواْ نَارًا﴾ دوی وایي چي مقصد له اورڅخه هغه دقبراوردی ځکه چي الله د (فا) په توري سره عطف فرمایلی اودغه توری لپاره دهغه ترتیب دی کوم چي تعقیب ورسره وي او د آخرت اور خوبې تراوسه لاندی ځکلی نودا پدې دلالت کوي چي مراد ورڅخه دقبر عذاب دی اودغه یو نرم اوباریک استدلال دی.

دالله جل جلاله په مرسته دنوح دسورت دتفسیرژباره بشپړه شوه.

***

## د(الجن )سورت مکي اواته ویشت آیتونه لري

دسورت په وړاندي

د(الجن )سورت لکه نورمکي سورتونه دعقیدې بنسټونه لکه وحدانیت ، رسالت اوبعث جزا بیانوي دسورت محور دپېریانوپه هکله دی اودهغوی ځانګړي چاري اوامورښیي چي دقرآنکریم له اورېدلوڅخه یې پیلوي ترڅوچي په ایمان راوړلو مشرف کېږي ، په سورت کي ځیني ددوی عجائبات هم راوړل کېږي لکه استراق السمع (دملائکو خبروته غوږنیول) اوپه ستورو ویشتل کېدل همداسي په ځینواسرارو اورازونوددوی خبرتیااونور هینبوونکي اوحیرانونکي خبري

دسورت پیل دیوې ډلي پېریانوله خوا دقرآنکریم په اورېدلو کېږي اوداچي دوی دقرآنکریم له ښکلي بیان څخه اغېزمن کېږي آن تردې چي سمدستي ورباندي ایمان راوړي اونور قوم هم دایمان لوري ته رابولي ﴿قُلۡ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ ٱسۡتَمَعَ نَفَرٞ مِّنَ ٱلۡجِنِّ فَقَالُوٓاْ إِنَّا سَمِعۡنَا قُرۡءَانًا عَجَبٗا ۝ يَهۡدِيٓ إِلَى ٱلرُّشۡدِ﴾ دآیتونوترپایه وروسته دوی دالله جل جلاله تمجیداوتنزیه ستایې اوبیوازي دالله جل جلاله عبادت خوښوي د هغوکسانوپه عقلونوخاندي څوک چي الله لره یې (معاذالله) زوی ثابت کړی وي ﴿وَأَنَّهُۥ تَعَٰلَىٰ جَدُّ رَبِّنَا مَا ٱتَّخَذَ صَٰحِبَةٗ وَلَا وَلَدٗا ، وَأَنَّهُۥ كَانَ يَقُولُ سَفِيهُنَا عَلَى ٱللَّهِ شَطَطٗا﴾ دآیتونوترپایه

بیاآیتونه دپېریانوهغه استراق السمع دپرېښتوپټوخبروته ددوی غوږنیول اودآسمانونو څوکېداري دملائکوپه واسطه اوپه دوی پسي اورغورځونکي ستوري راویشتل چي دغه درسول الله صلی الله علیه وسلم له بعثته وروسته نوي چاري دي نودوی له دغونویوپېښوڅخه تعجب کوي داسي بیانوي ﴿وَأَنَّا لَمَسۡنَا ٱلسَّمَآءَ فَوَجَدۡنَٰهَا مُلِئَتۡ حَرَسٗا شَدِيدٗا وَشُهُبٗا ، وَأَنَّا كُنَّا نَقۡعُدُ مِنۡهَا مَقَٰعِدَ لِلسَّمۡعِۖ فَمَن يَسۡتَمِعِ ٱلۡأٓنَ يَجِدۡ لَهُۥ شِهَابٗا رَّصَدٗا﴾ دآیتونو ترپایه

له دې نه وروسته سورت پېریانان په دوتولکیوویشي چي یوه یې مؤمنان اوبله کافران او بیا د دوارو ورستی انجام بیانوي چي ﴿وَأَنَّا مِنَّا ٱلۡمُسۡلِمُونَ وَمِنَّا ٱلۡقَٰسِطُونَۖ فَمَنۡ أَسۡلَمَ فَأُوْلَٰٓئِكَ تَحَرَّوۡاْ رَشَدٗا ، وَأَمَّا ٱلۡقَٰسِطُونَ فَكَانُواْ لِجَهَنَّمَ حَطَبٗا﴾.

دغسي سورت درسول الله صلى الله عليه وسلم ددعوت لورته لېږدي اوهغه دپېريانانوخواوشا راتولېدل بيانوي چي درسول الله چاپېريې هلته چي قرآن عظيم الشان يې لوستل احاطه کړي وو فرمايي ﴿وَأَنَّهُۥ لَمَّا قَامَ عَبْدُ ٱللَّهِ يَدْعُوهُ كَادُوا۟ يَكُونُونَ عَلَيْهِ لِبَدًا ، قُلْ إِنَّمَآ أَدْعُوا۟ رَبِّى وَلَآ أُشْرِكُ بِهِۦٓ أَحَدًا﴾.

وروسته پيغمبرعليه افضل التحية والسلام ته حکم کوي ترڅوالله جل جلاله ته غاړه ايښودل او خضوع اعلان کړي اويوازي دالله جل جلاله عبادت په اخلاص ترسره کړي اوداسي ونبيي چي (لاحول ولاقوة الابالله) نوفرمايي ﴿قُلْ إِنَّمَآ أَدْعُوا۟ رَبِّى وَلَآ أُشْرِكُ بِهِۦٓ أَحَدًا ، قُلْ إِنِّى لَآ أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا رَشَدًا ، قُلْ إِنِّى لَن يُجِيرَنِى مِنَ ٱللَّهِ أَحَدٌ وَلَنْ أَجِدَ مِن دُونِهِۦ مُلْتَحَدًا﴾.

په پای کي سورت داڅرګندوي چي يوازي الله تعالى په غيبو خبردارده هغه ته دګردو کائناتو اسرارڅرګندي نووايي ﴿عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِۦٓ أَحَدًا ، إِلَّا مَنِ ٱرْتَضَىٰ مِن رَّسُولٍ فَإِنَّهُۥ يَسْلُكُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦ رَصَدًا...﴾ دسورت ترپايه پوري آيتونه.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿قُلْ أُوحِىَ إِلَىَّ أَنَّهُ ٱسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ ٱلْجِنِّ فَقَالُوٓا۟ إِنَّا سَمِعْنَا قُرْءَانًا عَجَبًا (١) يَهْدِىٓ إِلَى ٱلرُّشْدِ فَـَٔامَنَّا بِهِۦ وَلَن نُّشْرِكَ
بِرَبِّنَآ أَحَدًا (٢) وَأَنَّهُۥ تَعَٰلَىٰ جَدُّ رَبِّنَا مَا ٱتَّخَذَ صَٰحِبَةً وَلَا وَلَدًا (٣) وَأَنَّهُۥ كَانَ يَقُولُ سَفِيهُنَا عَلَى ٱللَّهِ شَطَطًا (٤) وَأَنَّا ظَنَنَّآ
أَن لَّن تَقُولَ ٱلْإِنسُ وَٱلْجِنُّ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا (٥) وَأَنَّهُۥ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ ٱلْإِنسِ يَعُوذُونَ بِرِجَالٍ مِّنَ ٱلْجِنِّ فَزَادُوهُمْ رَهَقًا (٦) وَأَنَّهُمْ ظَنُّوا۟
كَمَا ظَنَنتُمْ أَن لَّن يَبْعَثَ ٱللَّهُ أَحَدًا (٧) وَأَنَّا لَمَسْنَا ٱلسَّمَآءَ فَوَجَدْنَٰهَا مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيدًا وَشُهُبًا (٨) وَأَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ
مِنْهَا مَقَٰعِدَ لِلسَّمْعِ فَمَن يَسْتَمِعِ ٱلْـَٔانَ يَجِدْ لَهُۥ شِهَابًا رَّصَدًا (٩) وَأَنَّا لَا نَدْرِىٓ أَشَرٌّ أُرِيدَ بِمَن فِى ٱلْأَرْضِ أَمْ أَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ
رَشَدًا (١٠) وَأَنَّا مِنَّا ٱلصَّٰلِحُونَ وَمِنَّا دُونَ ذَٰلِكَ كُنَّا طَرَآئِقَ قِدَدًا (١١) وَأَنَّا ظَنَنَّآ أَن لَّن نُّعْجِزَ ٱللَّهَ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَن نُّعْجِزَهُۥ
هَرَبًا (١٢) وَأَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا ٱلْهُدَىٰٓ ءَامَنَّا بِهِۦ فَمَن يُؤْمِنۢ بِرَبِّهِۦ فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَلَا رَهَقًا (١٣) وَأَنَّا مِنَّا ٱلْمُسْلِمُونَ وَمِنَّا
ٱلْقَٰسِطُونَ فَمَنْ أَسْلَمَ فَأُو۟لَٰٓئِكَ تَحَرَّوْا۟ رَشَدًا (١٤) وَأَمَّا ٱلْقَٰسِطُونَ فَكَانُوا۟ لِجَهَنَّمَ حَطَبًا (١٥) وَأَلَّوِ ٱسْتَقَٰمُوا۟ عَلَى
ٱلطَّرِيقَةِ لَأَسْقَيْنَٰهُم مَّآءً غَدَقًا (١٦) لِّنَفْتِنَهُمْ فِيهِ وَمَن يُعْرِضْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِۦ يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا (١٧) وَأَنَّ ٱلْمَسَٰجِدَ لِلَّهِ فَلَا
تَدْعُوا۟ مَعَ ٱللَّهِ أَحَدًا (١٨) وَأَنَّهُۥ لَمَّا قَامَ عَبْدُ ٱللَّهِ يَدْعُوهُ كَادُوا۟ يَكُونُونَ عَلَيْهِ لِبَدًا (١٩) قُلْ إِنَّمَآ أَدْعُوا۟ رَبِّى وَلَآ أُشْرِكُ بِهِۦٓ أَحَدًا
(٢٠) قُلْ إِنِّى لَآ أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا رَشَدًا (٢١) قُلْ إِنِّى لَن يُجِيرَنِى مِنَ ٱللَّهِ أَحَدٌ وَلَنْ أَجِدَ مِن دُونِهِۦ مُلْتَحَدًا (٢٢) إِلَّا بَلَٰغًا مِّنَ
ٱللَّهِ وَرِسَٰلَٰتِهِۦ وَمَن يَعْصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَإِنَّ لَهُۥ نَارَ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا (٢٣) حَتَّىٰٓ إِذَا رَأَوْا۟ مَا يُوعَدُونَ فَسَيَعْلَمُونَ
مَنْ أَضْعَفُ نَاصِرًا وَأَقَلُّ عَدَدًا (٢٤) قُلْ إِنْ أَدْرِىٓ أَقَرِيبٌ مَّا تُوعَدُونَ أَمْ يَجْعَلُ لَهُۥ رَبِّىٓ أَمَدًا (٢٥) عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ فَلَا

يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِۦٓ أَحَدًا ﴿٢٦﴾ إِلَّا مَنِ ٱرْتَضَىٰ مِن رَّسُولٍ فَإِنَّهُۥ يَسْلُكُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦ رَصَدًا ﴿٢٧﴾ لِّيَعْلَمَ أَن قَدْ
أَبْلَغُوا۟ رِسَٰلَٰتِ رَبِّهِمْ وَأَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ وَأَحْصَىٰ كُلَّ شَىْءٍ عَدَدًۢا ﴿٢٨﴾ ﴾ الجن: ١ ـ ٢٨

لغتونه:

(الرشد) حق او صواب ته وايي (جد) په لغت کي عظمت ته او جلال ته وايي او همداسي (جد) زيار او کوښښ او د پلار پلار نيکه ته هم وايي (حرسا) جمع او هغه څوکيدار ته وايي يا خو اسم جمع دی لکه (خدم) ويل کيږي (حرس، حرّاس، حارس) هغه چي څارونکی او ساتندوی وي (قددا) متفرق، ډلي ډلي (غدقًا) ډېر پراخ (القاسطون) ظالمان له سمي لاري څخه کاږه شوي (صعدًا) سخت مشکل هغه چي د انسان له توانه وتلي وی (يسلکه) د ننني کوي يې (لبدا) او ډلي يو د بل د پاسه وايي (تلبد الشئ) کله چي يو د بل د پاسه او ډل شي (ملتحدًا) د پناه ځای ژغورنتون.

تفسير:

﴿قُلْ أُوحِىَ إِلَىَّ أَنَّهُ ٱسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ ٱلْجِنِّ﴾ و وايه (ای محمده دوی ته) چي وحی راغلي ما ته چي ببشکه شان داچي واورېدو (قرائت زما) يوه ټولی له پېريانو څخه (نو وربانډي ايمان يې راوړ او تصديق يې وکړ) ﴿فَقَالُوٓا۟ إِنَّا سَمِعْنَا قُرْءَانًا عَجَبًا﴾ نو وويل دوی (نور قوم خپل ته کله چي بيرته ور ستانه شول چي) بېشکه موږ يو عجيب قرآن واورېدو (چي په ښکلي نظم او بليغ اسلوب کي زړه راښکونکي پندونه او ښايسته حکمتونه يې درلود (عجبًا) مصدر دی او د قرآن عظيم الشان لپاره د ده وصف کېدل د مبالغې لپاره راغلي. مفسرين کرام ليکي چي دوی هغه وخت د رسول الله صلی الله عليه وسلم تلاوت واورېدو کله چي هغه عليه السلام د سهار په لمانځه کي قرآنکريم لوستل او د دوی په شتون او اورېدلو خبرنه وو(١) او ده ته د دغه خبر په وحی سره ورکول شوه څکه چي الله فرمايي ﴿أُوحِىَ إِلَىَّ﴾ او د دي تائيد په هغه کيسه سره هم راځي کومه چي الله جل جلاله په سورت احقاف کي بيان کړي چي ﴿وَإِذْ صَرَفْنَآ إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ ٱلْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ ٱلْقُرْءَانَ فَلَمَّا حَضَرُوهُ قَالُوٓا۟ أَنصِتُوا۟ ۖ فَلَمَّا قُضِىَ وَلَّوْا۟ إِلَىٰ قَوْمِهِم مُّنذِرِينَ﴾ مقصد له دي اخبار څخه د قريشو او نورو عربو توبيخ او تکول دي څکه چي دوی له ايمان راوړلو څخه ځنډ کړی وو او ترد دوی پېريان لا بهتر او غوره وو له دي امله چي کله يې قرآن واورېدو سمدستي يې د هغه عظمت وستايو ايمان يې وربانډي راووړ او خپل قوم او تبرته يې انذار او وېرونه ور کړه او عرب د پېريانانو څخه بر خلاف چي قرآن مجيد د دوی په ژبه هم را نازل شوی مګر دوی يې تکذيب کاوي، وربانډي ملنډي يې وهلي او ښه پوهېدل چي دغه معجز کلام دی، محمد صلی الله عليه وسلم خوامي او نالوستی دی چي ليک او لوست يې نه دي زده نو څرنګه به يې قرآن حکيم له خانه جوړ کړی وي؟ او د انسانانو او پېريانانو موقف ډېر سره ليري دی ﴿يَهْدِىٓ إِلَى ٱلرُّشْدِ فَـَٔامَنَّا بِهِۦ﴾ چي هدايت کوي لاري

(١) دغه د ابن عباس وينا ده او د بخاري او مسلم هغه حديث يې تاکيد کوي کوم چي وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم پېريانو ته تلاوت ندی کړی او نه يې ليدلي دي او ابن مسعود يې برخلاف بل روايت کړی دی.

ښې (رشد) ایمان او حق ته نو موږ په دغه (قرآن) ایمان راوړ ﴿ وَلَن نُّشۡرِكَ بِرَبِّنَآ أَحَدٗا ﴾ او له سره به شریک نکړو (وروسته له نننه) له خپل رب سره بل هیڅوک (له مخلوق دده څخه خازن لیکي چې: په آیت شریف کې د دې دلیل شته چې دغه کسان پخوا مشرکان وو (۱) ﴿ وَأَنَّهُۥ تَعَٰلَىٰ جَدُّ رَبِّنَا ﴾ او بېشکه شان دادی چې لوی دی شان لوئي درب زموږ ﴿ مَا ٱتَّخَذَ صَٰحِبَةٗ وَلَا وَلَدٗا ﴾ نه ده نیولي (الله) ښځه او نه اولاد (ځکه چې ښځه خو دا ړتیا او ضرورت لپاره او اولاد د استئناس او الفت لپاره او الله جل جلاله خو له نقصونو او عیبونو څخه پاک دی ﴿ وَأَنَّهُۥ كَانَ يَقُولُ سَفِيهُنَا عَلَى ٱللَّهِ شَطَطٗا ﴾ او ویل (پېریانو خپل قوم ته داسي) بېشکه شان دادی چې ویل به ناپوه زموږ پر الله باندي خبري لوېي له حق او صواب څخه لیري. مجاهد لیکي چې ناپوه احمق ابلیس ښیي هغه چې دوی یې دغیر الله عبادت ته بلل ﴿ وَأَنَّا ظَنَنَّآ أَن لَّن تَقُولَ ٱلۡإِنسُ وَٱلۡجِنُّ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبٗا ﴾ او بېشکه موږ گمان کاوو چې هیڅکله به نه وایې انسانان او پېریانان په الله باندي دروغ (چې الله ته نسبت د ښځي او اولاد کوي او کله چې مو دغه قرآن واورېدو او ورباندي مو ایمان راوړ نو پدې وپوهېدو چې دوی په الله باندي پدې کي دروغ تړلي (۲) او طبري لیکي معنا دا چې دوی هله وپوهېدل کله چې قرآنکریم یې واورېدل او تردې دمخه چې قرآن واوري او یا پدې وپوهېږي چې هغه کسان چې الله تعالی لره یې د ښځي او زوی نسبت کاوو دروغجن وو ترڈې پخوا دوی داسي انگېرله چې ابلیس به رښتیا وایې: خو کله چې یې قرآن واورېدو پدې یې یقین شو چې هغه دروغجن دی او ځکه یې ابلیس لعین احمق او ناپوه ونوماوو ﴿ وَأَنَّهُۥ كَانَ رِجَالٞ مِّنَ ٱلۡإِنسِ يَعُوذُونَ بِرِجَالٖ مِّنَ ٱلۡجِنِّ ﴾ او بېشکه شان دادی چې وو به د ډېر سړي له انسانانو څخه چې پناه به یې غوښتله په سړیو له پېریانو څخه ﴿ فَزَادُوهُمۡ رَهَقٗا ﴾ نو زیاته کړه دغو انسانانو دغو پېریانو ته سرکشي (په سبب د پناه غوښتلو ددوی له جنیاتو څخه چې پېریانان لا زیات گمراه او سرکشه شول ابو السعود لیکي پخوا چې به کله څوک په وچ خوړ، یا بېدیا کي د شپې پاتي شول نو به پرځان وېرېدل ویل به یې موږ د دغي کندي (خوړ) د پېریانو له مشر څخه پناه غواړو تر څو مو د نورو پېریانو له شر څخه وژغوري نو کله چې به پېریانو اورېدل لا به پسي یاغي مغروره شول او ویل به یې موږ د انسانانو او پېریانانو واکمن او بادا ران شوو نو سد به یې له سره ووت دغه د قرآنکریم وینا ده چې فرمایې ﴿ فَزَادُوهُمۡ رَهَقٗا ﴾ (۳) ﴿ وَأَنَّهُمۡ ظَنُّواْ كَمَا ظَنَنتُمۡ أَن لَّن يَبۡعَثَ ٱللَّهُ أَحَدٗا ﴾ او بېشکه دوی (کفارو) داسي گمان کړی دی لکه چې گمان کړی دی تاسي (ای جني کفارو) چې هرگز به پورته نکړي الله هیڅوک (پس له مرگه له قبرونو) دوی هم داسي له بعث څخه منکر دي لکه چې تاسو یاست (۴) ﴿ وَأَنَّا لَمَسۡنَا ٱلسَّمَآءَ

---

(۱) خازن ۴/ ۱۸۵

(۲) دغه دابن کثیر درایي لنډیز دی چې موږ ولیکو.

(۳) ابو السعود ۵/ ۲۰۰

(۴) د آیت له سیاق څخه همداسي ظاهرېږي چې دغه دي د پېریانو وینا وي چې خپل قوم ته وایې او طبري هم غوره کړي او ځیني مفسرینو دا معنا اخیستي چې دغه الهي وحی ده چې پیغمبر ته شوي او معنا دا چې پېریان هم لکه تاسي قریش له بعث څخه منکر دي او چې قرآن یې واورېدو هدایت یې وموند آیا تاسو هدایت منئ؟!-

﴿فَوَجَدْنَاهَا مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيدًا وَشُهُبًا﴾ (پېريان وايي) او بېشکه موږ ورسېدو آسمان ته (لپاره دغوږنيولو خبرو دپرښتو ته) نو وموموندو هغه (آسمان) ډک کړی شوی له څوکيدارانو (ډېرو هغه چي د آسمان څارنه يې کوله) او له ستورو سوځونکو څخه (هغه چي ولي هغه کسان کله چي ورنږدې کېږي) ﴿وَأَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ﴾ او بېشکه وو موږ کېناستو پخوا له لېږلو ددې پيغمبر له دې آسمانه په ځايونو دکېناستلو کي (چي خبري واورو او کاهنانو ته يې راوړو) ﴿فَمَن يَسْتَمِعِ الْآنَ يَجِدْ لَهُ شِهَابًا رَّصَدًا﴾ نو هغه څوک چي اوس اورېدل غواړي نو مومي لپاره دځان لمبه منتظره (چي سوځوي او هلاکوي يې) ﴿وَأَنَّا لَا نَدْرِي أَشَرٌّ أُرِيدَ بِمَن فِي الْأَرْضِ أَمْ أَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا﴾ او بېشکه موږ نه پوهېږو (چي دغه منع کېدل زموږ له آسمانه) آيا شر دی چي اراده کړی شوی دی په هغه چا باندي چي په ځمکه کي دي يا اراده کړي ده رب ددوی پر دوی باندي لاربښوونه (او رشد) يعني موږ پېريانان نه پوهېږو چي دغه آسمانونه چي په څوکيدارانو ډک شوي او دغه اور غورځونکي ستوري دعذاب لپاره دي چي الله يې په ځمکني اوسېدونکيو راولي ﴿أَمْ أَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا﴾ يا يې ورته دخير اراده دی چي لاربښوونکی پيغمبر يې ورته رالستولی تر څو يې حق لاري ته رهنمايي کړي؟ او دغه دپېريانانو ادب دی چي دخير نسبت يې الله تعالی ته وکړ خو د شر نسبت يې ورته ونکړ چي ويې ويل ﴿أَشَرٌّ أُرِيدَ بِمَن فِي الْأَرْضِ أَمْ أَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا﴾ ابن کثير ليکي چي دغه دستورو ويشتل دمخه وو او بيا دوی دهغو دسبب په لټه کي شول لويديز او ختيز يې خانونه ورسول هلته چي بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم يې په سترګو شو کله چي د اصحابانو امامت يې کاوو او قرآنکريم يې لوست نو دوی وپوهېدل چي همدا خبره ده چي آسمانونه يې له کبله ساتل کېږي او بيا يې دنبي اورېدني لپاره هڅه وکړه ورنږدې شول او ايمان يې راووړ(¹) ﴿وَأَنَّا مِنَّا الصَّالِحُونَ وَمِنَّا دُونَ ذَٰلِكَ﴾ او بېشکه موږ چي يو ځيني له موږ څخه نيکان دي او ځيني له موږ غير له دوی دي په التسهيل کي راوړي چي دوی په دې وينا چي (دون ذلک) يې وويل مقصد دادی چي بشپړه صلاح نلري او يا يې بېخي صلاح او نيکي نشته (²) ﴿كُنَّا طَرَائِقَ قِدَدًا﴾ وو موږ فرقې مختلفي (ځيني نيکمرغه او ځيني بدمرغه) ﴿وَأَنَّا ظَنَنَّا أَن لَّن نُّعْجِزَ اللَّهَ فِي الْأَرْضِ وَلَن نُّعْجِزَهُ هَرَبًا﴾ او بېشکه موږ يقين کاوو چي له سره به موږ عاجز نکړو الله په ځمکه کي (چي تري پټ شو) او له سره به نه عاجزکوو موږ دغه (الله) په تېښتي سره (که تري وتښتو) قرطبي ليکي: معنادا چي موږ په استدلالي توګه پدې وپوهېدو کله چي موږ دالله په آياتونو کي فکر وکړ چي موږ له الله څخه خلاصېدونکي نه يو او نه تري تښتېدای شو(³). وروسته بيا په الله باندي د ايمان راوړلو شکر ايستلو ته راوګرزېدل چي کله يې دعظيم الشان قرآن تلاوت

(¹) مختصر ابن کثير ۳/۵۵۷
(²) التسهيل ۴/۱۵۳
(³) القرطبي ۱۹/۱۵

او بېشکه موږ چې کله واورېدو دوی ته د هدایت سبب شونو وایي ﴿ وَأَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا الْهُدَىٰ آمَنَّا بِهِ ﴾ او بېشکه موږ چې کله واورېدو هدایت (د قرآن) نو موږ په هغه باندې ایمان راوړ (او په هغه چاچې دغه قرآن یې نازل کړی او په هغه چاچې دغه قرآن وربانديې نازل شوی مؤمنان شو ) ﴿ فَمَن يُؤْمِن بِرَبِّهِ فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَلَا رَهَقًا ﴾ نو هغه چې ایمان راوړي په رب خپل باندې نو نه وېرېږي له نقصانه (د خپلې نېکي ) او نه له زیادت څخه (په تزئید د بدي ) ابن عباس وایي: یعني نه د نېکیو په نقصان وېرېږي او نه د بدي په زیاتوالي باندی ﴿ وَأَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُونَ وَمِنَّا الْقَاسِطُونَ ﴾ (او بېشکه موږ چې یو ځیني له موږ څخه مسلمانان دي او ځیني له موږ څخه ظالمان ) یعني او بېشکه موږ چې کله قرآن واورېدو ځیني مو مسلمانان شو د رسول الله رسالت یې ومانو او ځیني نور بیا له حق څخه راوګرځېدل او کافران شول، مفسرین کرام لیکي چې (قسط الرجل) معنا داچې منحرف شو سرې او (أقسط الرجل) معنا داچې عدل یې وکړله لو مړي صیغې څخه اسم فاعل قاسط راځي او له دوهمې څخه مقسط همداسې د الله جل جلاله په دې کلام کې راغلي چې ﴿ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ﴾ ﴿ فَمَنْ أَسْلَمَ فَأُولَٰئِكَ تَحَرَّوْا رَشَدًا ﴾ نو هر هغه چې الله ته غاړه کېږدي (او ایمان راوړي) نو دوی قصد کړی دی د سمې صافې لارې (او د سعادت او فلاح لاره یې موندلې ) ﴿ وَأَمَّا الْقَاسِطُونَ فَكَانُوا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا ﴾ او هر هغه چې کږېدونکی له سمې لارې وي نو وي به دوی دوزخ لره لرګي (د سوځولو چې لکه د انسانانو کفار او به وربانديې بلېږي) تر دې ځایه پورې د پېریانو کلام بشپړ شو کوم چې د دوی په زورور ایمان او رښتنولي او اخلاص یې دلالت کاوو ورپسې الله د مکې له خلکو داسې اخبار فرمایي:

﴿ وَأَلَّوِ اسْتَقَامُوا عَلَى الطَّرِيقَةِ ﴾ (او بله وحی راغلي ده ماته ) داچې که دا (خلګ د مکې ) برابر شي پر لارې (سمې د اسلام او شریعت و منې ) ﴿ لَأَسْقَيْنَاهُم مَّاءً غَدَقًا ﴾ (نو هرو مرو به وڅښوو دوی ته او به ډېرې (پس له کاختي ) یعني هغوی ته به پرېمانه ارزاق په دنیا کې هم ورکړو او دغه به د آخرت په تل ترتله نعمتونو سربېره وي نو دوی به د دنیا او آخرت نېکمرغي او بریالیتوب نه ترلاسه کړي په التسهیل کې راوړي ﴿ مَّاءً غَدَقًا ﴾ یعني ډېرې او به او دغه له پراخي روزي څخه کنایه ده او له (علی الطریقة) څخه مراد طریقه د اسلام او د الله طاعت دی معنا داکه چېرې دوی په دغه لاره د اسلام سم برابر شي نو الله به یې روزي وریراخه کړي لکه چې الله فرمایي ﴿ وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَىٰ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِم بَرَكَاتٍ مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ ﴾ (الاعراف: ۹۶)[1] ﴿ لِّنَفْتِنَهُمْ فِيهِ ﴾ تر څو وازمویو موږ دوی په دغه نعمت کې (چې آیا شکر کاږي او که کفران کوي؟ ) ﴿ وَمَن يُعْرِضْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِ يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا ﴾ او هغه څوک چې مخ واړوي له ذکره (قرآنه ) د رب خپل نو داخل به یې کړي الله عذاب سخت ته ) یعني څوک چې د الله له طاعت او عبادته مخ واړوي الله جل جلاله به یې سخت شاقه عذاب ته ورد ننه کړي هغه عذاب چې راحت پکې نه وي قتاده

(۱) التسهیل ۴/ ۱۵۴

وايي (صعداً) معنا هغه عذاب چي راحت پکي نه وي او عکرمه وايي چي (صعداً) يوه ښوي ډبره په دوزخ کي ده چي الله به دوزخيانو ته د ورختلو حکم کوي او چي کله ورو خيژي نو له هغه ځايه به بيرته دوزخ ته په تيزي را ښوييږي(۱) ﴿ وَأَنَّ ٱلْمَسَٰجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا۟ مَعَ ٱللَّهِ أَحَدًا ﴾ (او بله وحی راغلي ده ماته) داچي بيشکه مسجدونه دپاره (دياد) دالله دي نو مه بولئ تاسي (په دغو مساجدو کي) سره له الله بل هيڅوک. مجاهد وايي: يهود او نصارا چي کله به خپلو عبادتخانو ته د ننه شول نو له الله سره به يې شريکان نيول نو الله جل جلاله نبي او مؤمنانو ته حکم وکړ چي کله مساجدو ګردو ته داخليږي له الله سره دي بل څوک په عبادت کي شريک نه ګني او يوازي دالله عبادت دي کوي ﴿ وَأَنَّهُۥ لَمَّا قَامَ عَبْدُ ٱللَّهِ يَدْعُوهُ ﴾ (او بله وحی کړی شوي ده ماته) داچي بيشکه کله چي ودريدو (لمانځه ته) بنده دالله (محمد صلی الله عليه وسلم) چي بالوبي دغه (الله) ﴿ كَادُوا۟ يَكُونُونَ عَلَيْهِ لِبَدًا ﴾ نژدې وو دغه (پيريان) چي کېدل به پرده باندي سرپه سرپرېوتونکي (له جهته دازدحامه او له جهته دحرص داوريدلو دقرآنه ابن عباس وايي: دوی دقرآن داوريدلو لپاره ورباندي رامات وو(۲) دلته چي الله تعالی محمد صلی الله عليه وسلم په عبوديت وستايو او په نامه يې يادنکړ تر څو چي تشريف او تکريم يې وشي ﴿ قُلْ إِنَّمَآ أَدْعُوا۟ رَبِّى وَلَآ أُشْرِكُ بِهِۦٓ أَحَدًا ﴾ (ووايه (ای محمده دوی ته) په تحقيق زه بولم (عبادت کوم د) رب خپل او شريک نه نيسم له دغه (الله) سره هيڅوک) يعني ای محمده دغو کفارو ته کوم چي له تا څخه د دين داوښتلو غوښتنه کوي ووايه چي زه يوازي دالله عبادت کوم له هغه سره بل بت او بشر نه شريکوم صاوي ليکي چي: د راتلو نکي آيت شريف دنزول سبب داچي قريشي کفارو رسول الله ته وويل: تاسو ډېره ستره پېښه را مينځ ته کړه او د ګرو خلکو دښمني ته دي ملاوتړله له دې څخه راو ګرځه نو موږ به دي مرسته وکړو او پناه به درکړو چي بيا دا آيت نازل شو ﴿ قُلْ إِنِّى لَآ أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا رَشَدًا ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته) بيشکه زه مالک نه يم نه توانېږم تاسي لره دڅه ضرر (ګمراهي) او نه دڅه رشد خيرخواهي (بلکه هغه ذات چي دغه يې په قدرت کي دي هغه الله رب العالمين دی) ﴿ قُلْ إِنِّى لَن يُجِيرَنِى مِنَ ٱللَّهِ أَحَدٌ وَلَنْ أَجِدَ مِن دُونِهِۦ مُلْتَحَدًا ﴾ ووايه (ای محمده دوی ته) بيشکه زه چي يم هرګز به مي هيڅوک خلاص نکړي له (عذابه) دالله (که چېري مي په عذاب کړي) او له سره به بيا نه مومم له دغه (الله) څخه ځای دپناه (نو څرنګه ستاسي غوښتنه ومنم؟ اقتاده وايي (ملتحداً) پناګاه او مرستندوی دی(۳) ﴿ إِلَّا بَلَٰغًا مِّنَ ٱللَّهِ وَرِسَٰلَٰتِهِۦ ﴾ مګر خو (مالک يم د) د تبليغ (د شريعت تاسو ته) له (طرفه د) الله او (تبليغ درسالت د دغه) (الله) يعني زه پناهګاه نه شم موندلای مګر هغه وخت چي درسالت تبليغ وکړم او تاسي ته هسي لارښوونه وکړم لکه چي الله راته حکم کړی دی نو دلته به دالله پناهګاه پيدا کړم چي له عذابه مي وژغوري لکه دالله جل جلاله دا وينا چي فرمايي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ بَلِّغْ مَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ ﴾

(۱) البحر المحيط ۸/۳۵۲
(۲) البحر ۸/۳۵۳
(۳) طبري تفسير ۲۹/۷۲

وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُۥ ﴾ (المائدة:۶۷)ابن کثیر لیکي معناداچي له الله څخه مي نه ژغوري مګردهغه درسالت ابلاغ چي پرماباندي یې اداء واجب کړي ده(۱) ﴿ وَمَن يَعْصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَإِنَّ لَهُۥ نَارَ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ﴾ اوهرهغه څوک چي نافرماني کوي د الله اودرسول (صلی الله علیه وسلم) ددغه (الله) نو بېشکه هغه لره دی اوردوزخ حال داچي تل به وي په هغه کي همېشه اوداچي (خالدین) یې جمع راوړ څکه چي د(مـن) معنـاجمع اولفـظ یـې مفـردی ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا رَأَوْا۟ مَا يُوعَدُونَ ﴾ ترهغـه پـوري چـي و وینـي دوی (مشرکان)هغه(عذاب)چي وعده یې ورسره شوي ده ﴿ فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ أَضْعَفُ نَاصِرًا وَأَقَلُّ عَدَدًا ﴾ نوژر به پوه شي دوی (په وخت دتعذیب کي) چي څوک دی ډېرضعیف له جهتـه دمددګاره او ډېرلږ لـه پلوه دشمېره (آیامؤمنـان دي کـه کـافران؟ بلکـه کـافران دي او بېشکه چي الله دخپلو مؤمنانو مرستندوی دی اودوی زورور دي له جهته دمرستندوی چي الله یې ناصردی اوزیات دي له جهته دشمېره څکه چي پرښتې ورسره دي ﴿ قُلْ إِنْ أَدْرِىٓ أَقَرِيبٌ مَّا تُوعَدُونَ ﴾ ووایـه (ای محمده دوی تـه) نـه پـوهېږم چي آیانژدې دی هغه (عذاب) چي وعده یې درسره کړی شوي ده ﴿ أَمْ يَجْعَلُ لَهُۥ رَبِّىٓ أَمَدًا ﴾ اوکـه یې مقرره کړي ده ده لره رب زمایوه زمانه لیري. مفسرین کرام لیکي: کله چي به رسول الله صلی الله علیـه وسلم دوی لـه عذابـه وېرول اوقیامت کړاوونه به یې ورپه یادول نو دوی به ملنډي پرې وهلې اوهغه به یې چټیات ګڼل ویل به یې دغه عذاب به کله وي؟ قیامت به کله راځي؟ نو الله جل جلالـه ورتـه حکم وکړچي دوی تـه ووایې: ماتـه ددغه عذاب دراتلو وخت معلوم نـه دی چي آیانژدې دی اوکـه لیري؟ ﴿ عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِۦٓ أَحَدًا ﴾ (الله) عالم دی پرغائبو(شیانو) باندي نونه خبروي په غیبو خپلو باندي هیڅوک(لـه خپـل مخلوق څخـه) ﴿ إِلَّا مَنِ ٱرْتَضَىٰ مِن رَّسُولٍ ﴾ مګرهغـه څوک چي راضـي وي تـرې(اوغـوره کـړی یې وي پـه اطلاع دمغیباتو)له رسول خپل څخه مفسرین کرام وایي الله په غیبو هیڅوک هم نـه خبـروي مګرهغـه څوک چي الله یـې دنبوت اورسالت لپاره غـوره کـړي نوبیاورتـه لـه غیبو هغـه څـه څرګند کړي چي اراده یې شي ترڅوچي دهغوی لپاره معجزه وي او دغه ددوی دنبوت درښتنولي لپاره راځي لکه چي الله له حضرت عیسی علیه السلام څخه داسي وینا راوړي چي ﴿ وَأُنَبِّئُكُم بِمَا تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِى بُيُوتِكُمْ ﴾ .

(آل عمران: ۴۹) ﴿ فَإِنَّهُۥ يَسْلُكُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦ رَصَدًا ﴾ نوبېشکه هغه (الله) روانوي په مخه دهغه (رسول) کـي اووروسته لـه هغـه څني سـاتونکي څوکیـداران لـه هرطرفـه (لـه پرښتو چي ژغـوري یې لـه پېریانانو اوساتي یې پرپوهېدلود غیبو کي. طبري وایي: معنادا چي الله جل جلالـه یې لـه مخه اولـه شا څوکیداران اوساتونکي رالېږي ترڅوچي له پېریـانو یـې وسـاتي(۲) ﴿ لِّيَعْلَمَ أَن قَدْ أَبْلَغُوا۟ رِسَٰلَٰتِ رَبِّهِمْ ﴾

(۱) مختصرابن کثیر ۳ /۵۶۰
(۲) طبری ۲۹ /۷۷

ترخوچي پوه شي (الله په علم ظهورسره) په دې چي ببشكه پوره رسولي دي (رسولانو) پيغامونه درب خپل (بې له نقصانه اوتزئيده) ابن كثير ليكي معنا داچي الله خپل استازي دپرښتوپه واسطه ساتي اوژغوري ترڅو وكولای شي دالله رسالت اداكړي او هغه وحي چي ورته راځي وساتي ترڅوچي الله ويوهېږي په علم ظهورسره چي دوی دخپل رب رسالت سرته رسولی دی سره له دي چي الله تعالی خوپه تولوشيانوپخوا ترپيدا ايښت يې لاقطعي علم لري(۱) ﴿وَأَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ﴾ اوچاپېردی(علم دالله تعالی) په هغه(علم) باندي چي په نزد ددغو(استازو رسولانو) دی (هيڅ شی له الله څخه پټ نه دی)

﴿وَأَحْصَىٰ كُلَّ شَيْءٍ عَدَدًا﴾ اوشمېرلی ساتلی دی (الله) هر شی دشمېراوعددله مخي) يعني الله تعالی په گردوشيانوچي په ځمكواوآسمانونوكي دي علم لري داسي علم چي دهغوی ضبط اواستقصاء پكې وي تول شيان هغه كه دباران څاڅكي وي: كه شگي، كه دونوپاڼي اوكه ددريابونوځگونه دغه هيڅ شی له الله څخه پټ اوالونيانه دي نوځرنگه به درسولانو په رسالاتواووحی علم ونلري چي آيادوی رسولی اوكه نه؟ اوځرنگه به رسولانوته ممكن وي چي د رسالاتوپه رسولوكي تقصير وكړي او يا پكې تزئيد اونقصان يا دتحريف اوتغيير لاس وهنه وكړي په داسي حال كي چي دالله علم پردوی چاپېردی اوټول شيان كه غټ دي اوكه واړه الله ته معلوم دي ﴿وَعِندَهُۥ مَفَاتِحُ ٱلْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ إِلَّا هُوَ ۚ وَيَعْلَمُ مَا فِى ٱلْبَرِّ وَٱلْبَحْرِ ۚ وَمَا تَسْقُطُ مِن وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِى ظُلُمَٰتِ ٱلْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِى كِتَٰبٍ مُّبِينٍ﴾ (الانعام:۵۹).

### بلاغت:

پدې مبارک سورت كي چي دبديع اوبيان كومي ښكلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱- په مصدرسره ستاينه دمبالغې لپاره لكه ﴿قُرْءَانًا عَجَبًا﴾ يعني عجيب په ايجازاواعجازكي.

۲- سلبي طباق لكه ﴿فَـَٔامَنَّا بِهِۦ ۖ وَلَن نُّشْرِكَ بِرَبِّنَآ أَحَدًا﴾ چي ايمان دشرک نفی ده.

۳- اشتقاقي جناس لكه داچي ﴿نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَٰعِدَ لِلسَّمْعِ﴾ چي ددواړوترمينځ ښايسته جناس دی.

۴- خوندورپه زړه پوري اسلوب چي دخيرنسبت الله ته شوی اودشرنسبت ورته نه دی شوی ترڅوچي له خالق سره دادب مراعات شوی وي لكه ﴿وَأَنَّا لَا نَدْرِىٓ أَشَرٌّ أُرِيدَ بِمَن فِى ٱلْأَرْضِ أَمْ أَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا﴾ او همداسي دشراورشد ترمينځ معنوي طباق هم شته

۵- دطباق صنعت چي د ﴿ٱلْإِنسُ وَٱلْجِنُّ﴾ اود ﴿ضَرًّا رَشَدًا﴾ اود ﴿ٱلْمُسْلِمُونَ ٱلْقَٰسِطُونَ﴾ ترمينځ راغلی دی.

---

(۱) مفسرين كرام كله چي په قرآن كي دالله د علم تعليل راغلی وي لكه: ﴿إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يَتَّبِعُ ٱلرَّسُولَ﴾ اويا داچي: ﴿وَلِيَعْلَمَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَيَتَّخِذَ مِنكُمْ شُهَدَآءَ﴾ داسي ليكي چي دغه علم ظهوردی اوعلم بدانه دی ځكه چي دالله تعالی علم په گردوشيانوازلي دی، بلكه ددې لپاره بې راوړي چي بندگانوته دغه علم ورښكاره كړي

٦- لطيفه استعاره چي فرمايي ﴿ كُنَّا طَرَآئِقَ قِدَدًا ﴾ طرائق يې دمختلفومذاهبولپاره استعاره كړې چي لطيفه استعاره يې بللاى شو.

٧- دفواصلوتوافق چي دآيتونودپيل مراعات پكې شوى وي لكه ﴿ أَحَدًا ، وَلَدًا ، رَصَدًا ، رَشَدًا ، صَعَدًا ، عَدَدًا ﴾ اوداسې نورچي په علم بديع كې يې مرصع سجع بولي والله اعلم.

دالله په مرسته دسورت الجن دتفسيرژباړه بشپړه شوه.

***

## د(المزمل) سورت مكي اوشل آيتونه لري.

### دسورت په وړاندې:

دالمزمل سورت مكي اودرسول الله صلى الله عليه وسلم دژوندانه يو اړخ بيانوي چې هغه څرنګه خلوت، طاعت، قيام الليل اودكتاب الله عزوجل تلاوت كاوودسورت محوركوم چي سورت وړاندې راځرخي رسول الله صلى الله عليه وسلم دى څكه يې نومزمل ونوماوو.

دسورت پيل رسول الله ته په نداكولو كېږي باريكه شفافه اوله الهي لطفه اومرحمته ډكه نداء چي په خپل بنده باندې يې درحمت اومهرباني ښكارندوى دى هغه بنده چي دالله درضالپاره دهغه په عبادت كې زيار كاږي نو ورته داسي فرمايي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمُزَّمِّلُ ① قُمِ ٱلَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا ② نِّصْفَهُۥٓ أَوِ ٱنقُصْ مِنْهُ قَلِيلًا ③ أَوْ زِدْ عَلَيْهِ وَرَتِّلِ ٱلْقُرْءَانَ تَرْتِيلًا ﴾.

ورپسې دوحى ددروندوالي موضوع په ګوته كوي هغه چي الله خپل پيغمبرورباندې مكلف كړي ترڅوچي خلګوته يې ابلاغ كړي اوپدې لاره كې شپې په عبادت كولورڼې كړي چي دغه روحي استعداد ورسره مرستندوى شي نوفرمايي ﴿ إِنَّا سَنُلْقِى عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا ، إِنَّ نَاشِئَةَ ٱلَّيْلِ هِىَ أَشَدُّ وَطْـًٔا وَأَقْوَمُ قِيلًا ، إِنَّ لَكَ فِى ٱلنَّهَارِ سَبْحًا طَوِيلًا ﴾.

همداسې سورت رسول الله ته حكم كوي چي دمشركانوپه تكاليفوباندې زغم اوصبروكړي هغوى په ښه پرهېښودلوسره دالله انتقام ته پرېږدي اوورته وايي ﴿ وَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَٱهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا ، وَذَرْنِى وَٱلْمُكَذِّبِينَ أُو۟لِى ٱلنَّعْمَةِ وَمَهِّلْهُمْ قَلِيلًا ﴾.

بيا الله تعالى مشركانوته دقيامت دورځي دعذاب تهديدوركوي هلته چي هيبت اودهشت به داسې پراوته رسېدلى وي چي ماشومان به بوډاګان كېږي وايي ﴿ إِنَّ لَدَيْنَآ أَنكَالًا وَجَحِيمًا ، وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَعَذَابًا أَلِيمًا ، يَوْمَ تَرْجُفُ ٱلْأَرْضُ وَٱلْجِبَالُ وَكَانَتِ ٱلْجِبَالُ كَثِيبًا مَّهِيلًا ﴾ دآيتونوترپايه.

په پاى كې الله تعالى له پيغمبرعليه السلام اومؤمنانوڅخه دقيام الليل تخفيف فرمايي ترڅو چي پيغمبراواصحابان دژوندانه ځيني چاروته وزګارشي نوداسې ارشادفرمايي ﴿ إِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ أَدْنَىٰ مِن

ثُلُثَيِ ٱلَّيْلِ وَنِصْفَهُۥ وَثُلُثَهُۥ وَطَآئِفَةٌ مِّنَ ٱلَّذِينَ مَعَكَ ﴾ آن ترديږ پوري چي ﴿ وَمَا تُقَدِّمُوا۟ لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ ٱللَّهِ هُوَ خَيْرًا وَأَعْظَمَ أَجْرًا وَٱسْتَغْفِرُوا۟ ٱللَّهَ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌۢ ﴾.

***

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمُزَّمِّلُ ﴿١﴾ قُمِ ٱلَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٢﴾ نِّصْفَهُۥٓ أَوِ ٱنقُصْ مِنْهُ قَلِيلًا ﴿٣﴾ أَوْ زِدْ عَلَيْهِ وَرَتِّلِ ٱلْقُرْءَانَ تَرْتِيلًا ﴿٤﴾ إِنَّا
سَنُلْقِى عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا ﴿٥﴾ إِنَّ نَاشِئَةَ ٱلَّيْلِ هِىَ أَشَدُّ وَطْـًٔا وَأَقْوَمُ قِيلًا ﴿٦﴾ إِنَّ لَكَ فِى ٱلنَّهَارِ سَبْحًا طَوِيلًا ﴿٧﴾ وَٱذْكُرِ ٱسْمَ رَبِّكَ
وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ تَبْتِيلًا ﴿٨﴾ رَّبُّ ٱلْمَشْرِقِ وَٱلْمَغْرِبِ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَٱتَّخِذْهُ وَكِيلًا ﴿٩﴾ وَٱصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَٱهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا
﴿١٠﴾ وَذَرْنِى وَٱلْمُكَذِّبِينَ أُو۟لِى ٱلنَّعْمَةِ وَمَهِّلْهُمْ قَلِيلًا ﴿١١﴾ إِنَّ لَدَيْنَآ أَنكَالًا وَجَحِيمًا ﴿١٢﴾ وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَعَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٣﴾ يَوْمَ
تَرْجُفُ ٱلْأَرْضُ وَٱلْجِبَالُ وَكَانَتِ ٱلْجِبَالُ كَثِيبًا مَّهِيلًا ﴿١٤﴾ إِنَّآ أَرْسَلْنَآ إِلَيْكُمْ رَسُولًا شَٰهِدًا عَلَيْكُمْ كَمَآ أَرْسَلْنَآ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا
﴿١٥﴾ فَعَصَىٰ فِرْعَوْنُ ٱلرَّسُولَ فَأَخَذْنَٰهُ أَخْذًا وَبِيلًا ﴿١٦﴾ فَكَيْفَ تَتَّقُونَ إِن كَفَرْتُمْ يَوْمًا يَجْعَلُ ٱلْوِلْدَٰنَ شِيبًا ﴿١٧﴾ ٱلسَّمَآءُ
مُنفَطِرٌۢ بِهِۦ كَانَ وَعْدُهُۥ مَفْعُولًا ﴿١٨﴾ إِنَّ هَٰذِهِۦ تَذْكِرَةٌ فَمَن شَآءَ ٱتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا ﴿١٩﴾ ۞ إِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ أَنَّكَ
تَقُومُ أَدْنَىٰ مِن ثُلُثَىِ ٱلَّيْلِ وَنِصْفَهُۥ وَثُلُثَهُۥ وَطَآئِفَةٌ مِّنَ ٱلَّذِينَ مَعَكَ وَٱللَّهُ يُقَدِّرُ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ عَلِمَ أَن لَّن تُحْصُوهُ فَتَابَ عَلَيْكُمْ فَٱقْرَءُوا۟
مَا تَيَسَّرَ مِنَ ٱلْقُرْءَانِ عَلِمَ أَن سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ وَءَاخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِى ٱلْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ ٱللَّهِ وَءَاخَرُونَ يُقَٰتِلُونَ فِى
سَبِيلِ ٱللَّهِ فَٱقْرَءُوا۟ مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَقْرِضُوا۟ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا وَمَا تُقَدِّمُوا۟ لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ
ٱللَّهِ هُوَ خَيْرًا وَأَعْظَمَ أَجْرًا وَٱسْتَغْفِرُوا۟ ٱللَّهَ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌۢ ﴿٢٠﴾ ﴾ المزمل: ١ – ٢٠

**لغتونه:**

(المزمل) په جامو کي ځان نغښتونکی (سبحًا) مشغولا او اصل يې له سبح څخه اخيستل شوی چي لامبو وهلو ته وايي او بيا د تصرف او د ژوندانه مشغولتيا لپاره استعاره شوی دی (انكالا) د (نكل) جمع او هغه درانه قيد او ځنځيرته وايي چي مجرم وربانديي ترل کيږي (كثيبًا) د شګو غونډۍ (مهيلا) بهيدونکي تيت او پرک دلغت پوهان ليکي (مهيل) هغه ته وايي چي په پښه يې ووهي نو سره تيت شي او و بښوئيږي او اصل يې (مهيول) دی لکه چي مکيل په اصل کي (مکيول) دی (وبيلا) ستر سخت او د خطرناک عاقبت خاوند.

**تفسير:**

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمُزَّمِّلُ ﴾ ای نغښتونکي ځان په جامه کي (له هيبته د وحی خطاب رسول الله صلی الله عليه وسلم ته دی او هغه ته په دغه وصف چي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمُزَّمِّلُ ﴾ د تأنيس او ملاطفت له مخي دی سهيلي ليکي چي عرب به کله چي يو چا ته د لطف او مهرباني خطاب کاوونو د هغه له حالت څخه به يې ورته نوم

جوړاو مشتق کړلکه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم يو وخت حضرت علي کرم الله وجهه ته کله چي يې حضرت فاطمه رضى الله عنها خوابدي کړي وه او په خاورو کي ويده وو داسي وويل (قم يا اباتراب) چي هغه ته يې داسي خبرتياور کوله چي ورسره لطف کوي عتاب يې مقصد نه دى او دوهمه فائده دا چي هرهغه چاته چي ځان يې په جامه کي نغښتى وي د شپې ويده وي تنبيه شي ترڅو د الله د ذکر لپاره قيام الليل ته راپورته شي ځکه دغه داسي اسم دى چي له فعل څخه مشتق دى نو مخاطب او هرهغه څوک چي په دغه صفت موصوف وي پکي مشترک دى او د دغه تزمل سبب لکه چي په صحيح البخاري کي روايت شوى چي: رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه وخت چي په غار حراء کي معتکف وو او جبريل عليه السلام د وحى په پيل کي ورته راغى نو رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت خديجې رضى الله عنها ته راستون شو زړه يې دربېدو هغې ته يې وويل (زملوني، زملوني لقد خشيت على نفسي) يعني ما په جامه کي پټ کړئ ما په جامه کي پټ کړئ او هغه کيسه يې ورته وکړه چي وريښبه شوي وه نو دغه آيت نازل شو[1] ﴿ يٰٓاَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ ﴾ اى په څادر کي نغښتل شوي او دانګرپه يو ګوټ کي ځملاستلي! رسول الله صلى الله عليه وسلم يې له هغه چاسره مشابه کړ چي راحت او سکون ته ترجيح ورکوي او له هغو مهمو چارو څخه کوم چي ورباندي مکلف شوى ځان خلاصوي ﴿ قُمِ الَّيْلَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴾ و دربېږه (لمانځه ته) په شپه کي مګرخو په لږ (له ټولي شپې نه) څو چي د يو ستر امر لپاره چمتو شې هغه چي د خپل رب له لوري خلګو ته بلنه ورکړي او په نوي دين يې وپوهوي وروسته يې هغه اندازه وښودله کوم چي ښايي د الله په عبادت کي يې تېره کړي ويې فرمايل ﴿ نِّصْفَهٗٓ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيْلًا اَوْ زِدْ عَلَيْهِ ﴾ چي هغه نيمه برخه د شپې ده يا لږ کړه له هغې لږ څه (چي ثلث دى) يا زياته کړه په هغې نيمي شپې) باندي چي ثلثان دي ابن عباس رضى الله عنهما وايي چي: قيام الليل په رسول الله باندي فرض وو ځکه چي الله حکم کړى (قم الليل) او بيا پدي قول سره منسوخ شو چي ﴿ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ﴾ او دلومړني وجوب او نسخ ترمينځ يو کال وو[2] او دا هغه سورت دى چي وروستى برخي يې لومړنى منسوخ کړي دي کله چي الله په مؤمنانو رحم او مهرباني وفرمايله او دغه حکم يې ځيني پورته کړچي ويې فرمايل ﴿ اِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ اَنَّكَ تَقُوْمُ اَدْنٰى مِنْ ثُلُثَيِ الَّيْلِ وَنِصْفَهٗ وَثُلُثَهٗ وَطَآئِفَةٌ مِّنَ الَّذِيْنَ مَعَكَ ﴾ د آيت ترپايه ﴿ وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا ﴾ او ښکاره واضح لوله قرآن په ښکاره لوستلو سره (چي د قرآنکريم په فهم کولو او تدبر کي درسره مرسته وکړي. خازن ليکي: کله چي الله تعالى په قيام الليل باندي ورته حکم وکړ وروسته يې د قرآنکريم ترتيل لوستل وفرمايل ترڅو لمونځ ګذاره د زړه له حضوره او د آيتونو د معانيو په هکله له تفکر او تدبر څخه برخمن شي نو کله چي د الله جل جلاله

---

(١) البخاري باب نزول الوحى.

(٢) کبيرتفسير ۳۰ /۱۷۱ کله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم او اصحابان په قيام الليل مکلف شول ترڅو چي د دعوت دښمنانو ته بشپړ استعداد وکړي او د وى جسمي او روحي روزنه ترلاسه کړي وي ذکراوونو او تکاليفو زغم او صبرولري غټ کارونه او مهمي چاري ترسره کړاى شي او له دغي مبارکي روزني څخه د هرمشکل او سخت کار په وړاندي بريالي توب ترلاسه کړي او د همدې ښکلي روزني اغېزه وه چي مسلمانانو ختيز او لويديز لاندي کړل ځکه دوى په جهاد کي صبر درلود او د الله په لار کي يې دول دول مشکلات په ورين تندي زغمل.

يادېكي راشي دده په زړه كې به د الله عظمت او جلال وځلېږي او كله چې بيا وعد او وعيد راشي هله به بيا خوف او رجاء ورته ښكاره شي او چې قصص او امثال پكي راشي نو به عبرت او پند تري واخلي او زړه به يې د الله په معرفت روښانه او نوراني شي او چې په تلوار سره د قرآنكريم تلاوت كيږي نو په معنا يې سړی نه پوهيږي نو له دی څخه څرګنديږی چې د ترتيل د تلاوت په وخت كې قلبي حضوروی (۱) او رسول الله صلی الله عليه وسلم به قرائت توری توری پرې كاوو يعني قرآن به يې په كرار آرام سره تلاوت كاوو تر څو هر توری ښكاره او واضح اداء شي كله چې به يې د رحمت آيت ولوست نو به يې له الله څخه غوښتنه كوله او چې كله يې د عذاب آيت تلاوت كاوو نو به ودرېده او له عذابه څخه به يې پناه غوښتله (۲) له دې نه وروسته كله چې الله ورته د خوب پرېښودلو ،قيام الليل او په تدبر او تفكر سره د قرآنكريم د تلاوت كولو حكم وكړ نو د دغو دري ګونو حكمونو چې د هرله تكليفه ډک او سخت دي سبب بيانوي

چې ﴿ إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا ﴾ بېشكه موږ غورځونكي يو په تا باندي (ای محمده !) قول دروند د قرآن چې په اوامرو او نواهيو مشتمل دی او پر مكلفينو باندي سخت دی ، هيبت او جلال لري ځكه چې د الملک العلام كلام دی. امام فخر رازي ليكي چې مقصد له دروند والي څخه ستر قدرت او لوړ جلال دی هر څېز چې نفيس وي او مقام يې اوچت وي هغه دروندوي او دغه د ابن عباس معناهم ده چې وايې

﴿ قَوْلًا ثَقِيلًا ﴾ يعني ستر كلام، چا بيا ويلي چې مراد ور څخه هغه قرآني اوامر او نواهي دي كوم چې په مكلفينو باندي ثقيل او شاق دی، او زما په نزد د قرآني نظم او ترتيب وجه داده چې كله يې د شپې په لمانځه كولو مأمور كړ لكه چې وايې چې ما د دې لپاره په قيام الليل در ته امر وكړ ځكه چې پر تا درونډ قول نازلوم او ارومرو بايد ته د دغه ستر كلام لپاره ځان چمتو كړې او دغه د شپې په لمانځه كولو سره ، ځكه كله چې انسان په تكه توره شپه كې د الله په عبادت كي مشغول شي او د الله په ذكر كي غرق شي د الله په وړاندي تضرع او عاجزي غوره كړي نو بيا په انساني نفس كي د الله د جلال د ځلېدلو استعداد پيداشي (۳) زه وايم چې دا هغه باريک تړون دی چې د قيام الليل او قرآني تلاوت ترمينځ راغلی ځكه الله خپل استازی په دې مكلف كوي چې خلګ نوي دين ته راوبولي هغه چې په نفس باندي د هغه اوامر او نواهي شاقه تكاليف دي او بې له شكه د دغه تكليف نفسي مجاهدې او صبر زغم ته اړدي تر څو چې دوی دې ته ژمن (متعهد ) كړي چې هغه پخواني عقائد پرېږدي د اسلافو ميراثي دودونه او عادات ترشا كړي نو ته ای محمده صلی الله عليه وسلم د دغه دعوت په لاره كي له ډېرو ستونزو او خطرونو سره مخامخ يې څو خلګ په دغو چارو باندي راضي كړې او پر دوی يې ومنې نو ته به پداسي حال كي چې ځان دې په جامه كي نغښتلی او راحت سكون دي غوره كړی څرنګه وكولای شې دا كار ترسره كړې ؟ ! پاڅه له خپله ځايه پورته شه ! زياتره شپه د خپل پروردګار په مناجات كي رڼه كړه تر څو د دعوت د ستونزو لپاره چمتو او آماده شې او د دغه نوي دين زبری خلګو ته ورسوې عجيبه د مهرباني ډكه پام راړونه ده چې د رسول الله صلی الله

(۱) خازن ۴/ ۱۲۵

(۲) وګوره هغه ليكنه چې علامه ابن كثير د رسول الله صلی الله عليه وسلم د تلاوت او د قرآنكريم د لوستلو په فضيلت كي كړې ده ۳۵/ ۵۲۳

(۳) كبير تفسير

عليه وسلم مبارک زړه يې رابيدار کړاو دزيار او کار لپاره يې بدي راوغوړلې د الله په عبادت کې ترهغو پورې لګيا شو چې پښې يې وپړسېدې ... او ورپسې الله د شپې دلمانځه فضيلت داسې ښيي ﴿إِنَّ نَاشِئَةَ ٱلَّيۡلِ﴾ (بېشکه پورته کېدل د شپې (له خوبه) يعني دغه د شپې شېبې او وختونه او په هغو کې د عبادت لپاره دريدل او دا چې يو څوک يې د عبادت او طاعت لپاره په کاروي له خپله ځايه پاڅېږي وروسته له هغه چې آرام بيده شوی وي ﴿هِيَ أَشَدُّ وَطۡـٔٗا﴾ دغه پاڅېدل ډېر سخت دي له پلوه د پائمال کېدو د نفس (د لمونځ ګذاره او درون دي پرهغه دورځې تر لمانځه ځکه چې شپه د خوب او راحت لپاره وي نو په هغې کې راپورته کېدل په نفس خوراسخته وي او ددغه قيام الليل له برکته نفوس قوي کېږي ارادې غښتلې کېږي بدنونه زورمومي او پدې کې شک او شبه نشته چې د الله له دښمنانو سره جګړه غښتلې اوزورورو بدنونو ته اړتيالري ﴿وَأَقۡوَمُ قِيلًا﴾ او ډېر ښه ثابت محکم دي لپاره دويلو د قرآن، ځکه په شپه کې غږونه کرارېږي خوځښتونه او حرکات آرام مومي ،نفسونه سپېڅلي وي ذهن جمع وي چو په چوپتيا د شپې او د بشر سکون هغه څه دي چې نفس ته په سوچ او تدبر کولو کې مرسته ورکوي تر څو د قرآن په اسرارو او مقاصدو کې تأمل وکړي ﴿إِنَّ لَكَ فِي ٱلنَّهَارِ سَبۡحٗا طَوِيلٗا﴾ بېشکه تا لره (اى محمده !) په ورځې کې شغل دی په کارونو اوږدو کې (له چار و خپلو څخه) نو د شپې پاڅېدل د تهجد او عبادت لپاره غوره کړه په التسهيل کې ليکي چې له (سبح) څخه عبارت دلته په اعمالو کې تصرفات او مشغولا ده معنا دا چې ستا لپاره ورځ د کارونو او مشغولتيا لپاره کافي ده شپه د عبادت لپاره وټاکه [1]..او وروسته له دغه الهي خطابه چې د دعوت او بلنې لپاره لکه تمهيد او سريزه غوندې ده رسول الله ته د دعوت او بلنې حکم کوي او دا ورزده کوي چې په دغه لاره څرنګه کړنه او عمل وکړي فرمايي ﴿وَٱذۡكُرِ ٱسۡمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلۡ إِلَيۡهِ تَبۡتِيلٗا﴾ (او يادوه نوم درب خپل او جلا شه له هرشي څخه په لورې د دغه (رب خپل) بشپړ جلا کېدل) يعني د دعوت په لاره کې د الله په ذکر شپه او ورځ استعانت کوه او الله ته پخپل توکل او عبادت کې ببخي جلا شه په هيڅ چاره له چا و څخه په بل چا اعتماد او باور مکوه. ابن کثير ليکي: معنا دا چې د الله ذکر ډېر کوه او هغه جل وعلا ته ځان يوازې کړه کله چې له کارونو وزګارشې نو په اخلاص عبادت تر سره کړه [2] ﴿رَّبُّ ٱلۡمَشۡرِقِ وَٱلۡمَغۡرِبِ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَٱتَّخِذۡهُ وَكِيلٗا﴾ (همد غـه الله) رب دلمر ختـو او (رب) دلمر پر بو تـو دی (بلکه پروردګار د ګرو کائناتو دی )نشته بل هيڅوک حقانی معبود مګر خو هم دی دی (لا اله غيره ولا رب سواه) نو ونيسه دغه الله وکيل ،پرهغه اعتماد وکړه او هغه ته خپلې چارې وسپاره ﴿وَٱصۡبِرۡ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ﴾ او صبر کوه (اى محمده !) په هغه څه باندې چې دوی وايي (چې شاعر، مجنون او ساحر دی بېشکه الله پردوی باندې تا ته مرسته درکوي) ﴿وَٱهۡجُرۡهُمۡ هَجۡرٗا جَمِيلٗا﴾ او پرېږده دوی پرېښودل نېک (دوی ته ښکنځل مه کوه مخې ته يې مه درېږه ! مفسرين کرام وايي چې (هجر جميل) هغه پرېښودل ته وايي چې

---

[1] التسهيل لعلوم التنزيل

[2] مختصر ابن کثير ٣ /٥٧٤

عذاب پکي نه وي(۱) ښکنځل او برول پکي نه وي او دغه حکم د قتال تر حکم دمخه وو لکه چي الله فرمايلي دي ﴿ وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ ﴾ او وروسته يې له دوی سره په قتال کولو ورته امر کړی او پدې کي حکمت دا وو چي په مکه مکرمه کي مسلمانان لږ کي (اقليت) وو بېوزله (مستضعفين) وو نو الله ورته د صبر او زغم خپلولو حکم وکړ او د شپې د لمنځونو او مجاهدې تر سره کولو مارينه يې ورته وکړه تر څو په دغه سپېڅلي روحي روزنه ځانونه د دښمنانو د مقابلې لپاره چمتو کړي او شمېر يې زيات شي چي د طغيان په وړاندي مقاومت وکړای شي او تر دغي مرحلې له مخه ښايي چي بوازي په لساني بلنه او دعوت بسنه (کفايت) وکړي او صبر خپل کړي بيا الله تعالى د مشرکانو مشرانو ته داسي تهديد فرمايې ﴿ وَذَرْنِي وَالْمُكَذِّبِينَ أُولِي النَّعْمَةِ ﴾ (او پرېږده ما او دروغ کونکي چي خاوندان دنعمت دي) يعني ای محمده ما پرېږده او دغه دروغجن گڼونکي د آيتونو زما هغه چي دنعمت خاوندان دي په دنيا کي سوکاله او آرام ژوند لري زه به تاد دوی له شر څخه و ژغورم صاوي ليکي: معنا دا چي ما پرېږده له دوی څخه انتقام واخلم د دوی سپارښتنه (شفاعت) ما ته مکوه او دغه يو ډول د رسول الله صلى الله عليه وسلم زيات درناوی او تعظيم دی او ده د قدر اجلال ښيي ﴿ وَمَهِّلْهُمْ قَلِيلًا ﴾ او مهلت ورکړه دوی ته مهلت لږ تر څو چي سخت عذاب ته ورسېږي. مفسرين کرام ليکي چي الله تعالى لږ مهلت ورکړ تر څو چي رسول الله صلى الله عليه وسلم له مکې څخه هجرت کاوه او کله چي هغه مديني منورې ته مهاجر شو نو الله د کاختي کالونه ورباندي راوستل او دغه عام عذاب وو او وروسته يې بيا مشران په بدر کي ووژل شول چي دغه خاص عذاب وو(۲) او بيا الله هغه عذاب بيانوي گوم چي دوی به په آخرت کي ورسره مخامخ شي نو فرمايې ﴿ إِنَّ لَدَيْنَا أَنكَالًا وَجَحِيمًا ﴾ بېشکه په نزد زموږ دی (لپاره د کافرانو په آخرت کي) ځنځيرونه دراند (او سخت بلېدونکی اور چي ورباندي سوځول کېږي په التسهيل کي راوړي چي (انکال) جمع د (نکل) ده او هغه دا وسپني قيد ته وايې او روايت شوی چي دغه داور تور ځنځيران دي(۳) ﴿ وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ ﴾ او خواړه نښتونکي په مرۍ کي (چي د زقوم او ضريع څخه عبارت دی. ابن عباس وايې چي دغه داورازغي (څوځان) دي چي په حلق کي به يې ونښلي نه به راوزي او نه به هم ننوزي(۴) ﴿ وَعَذَابًا أَلِيمًا ﴾ او عذاب دردناک (زيات په دغه مذکور ځنځيرانو او قيودو باندي وروسته الله د هغه عذاب وخت داسي ښيي ﴿ يَوْمَ تَرْجُفُ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ ﴾ (دا عذاب په هغې) ورځي کي دی چي وخوځېږي ولړزېږي ځمکه او غرونه (په لړزېدلو سختو سره د قيامت په ورځ) ﴿ وَكَانَتِ الْجِبَالُ كَثِيبًا مَّهِيلًا ﴾ او شي به دا غرونه لکه شگو ډېرۍ رواني شوي (تيت پيت خواره واره له ډېره هيبته (وروسته له هغه چي ټينگ مضبوط وو. ابن

---

(۱) هم داسی ابن کثير ويلی دی.
(۲) دصاوي حاشيه ۴ /۲۶۰
(۳) التسهيل لعلوم التنزيل ۴ /۱۵۸
(۴) البحر المحيط ۸ /۳۶۴

کثیرلیکي: معنا داچي غرونه به لکه دشګو غونډۍ ډېرې غونډي شي وروسته له هغه چي کلک او جامدوو اوبیابه وشیندل شي (١) ګرداوغباربه ترې جوړ شي لکه چي الله فرمايي ﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّى نَسْفًا ، فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا ،لَّا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَلَآ أَمْتًا ﴾ (طه ١٠٥-١٠٧) یعني نه به څه پکې پورته وي اونه ښکته...الله دهغه دردناک عذاب کوم چي دمشرکانو لپاره یې تیار کړی یادونه وکړه چي ځای یې جحیم اوآسباب یې ځنځیران او خواړه یې زقوم دي وخت یې دځمکي دخوځېدلو وخت دی په دې باندي مقصد دمکذبینو تخویف دی چي دوی تهدید وي چي الله به دوی ته که چېري همداسي ترپایه درسول الله صلی الله علیه وسلم تکذیب کوي اوایمان نه راوړي عذاب ورکوي اوبیا ورته دتېروأمتونو هلاکتونه ورپه یادوي کله چي هغوی دالله له حکمونو سرغړونه کړې وه نو الله پخپل حکم ورباندي هغه عذابونه راپرې ایستل کوم چي پرې یې ایستل اودفرعون سرکښ مثال یې راوړ چي ﴿ إِنَّآ أَرْسَلْنَآ إِلَيْكُمْ رَسُولًا شَٰهِدًا عَلَيْكُمْ كَمَآ أَرْسَلْنَآ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا ﴾ (بېشکه موږ لېږلی دی تاسي ته (ای محمدي امته!) رسول (محمد) شاهد پر (اعمالو) ستاسو باندي (په ورځ د قیامت کي) یعني ای دمځکې خلګو موږ تاسو ته محمد صلی الله علیه وسلم دراستولی چي ستاسو په اعمالو له کفر او عصیان څخه په ورځ دمحشري شاهد دی ﴿ كَمَآ أَرْسَلْنَآ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا ﴾ لکه لېږلی وو موږ فرعون ته رسول (موسی علیه السلام) چي یوله اولو العزمه پیغمبرانو څخه وو. خازن لیکي اوداچي فرعون اوموسی علیه السلام یې دګردو أمتونو اونبیانو څخه خاص کړل ځکه چي رسول الله محمد صلی الله علیه وسلم ته دمکې خلګوډېر تکلیفونه وررولیدل اودهغه استخفاف یې وکړېدې چي رسول الله صلی الله علیه وسلم په دوی کي زېږېدلی ووهمداسي فرعون په موسی علیه السلام باندي ملنډي وهلې اوکړاوونه یې ورلیدل ځکه چي هغه روزلی وو(٢) ﴿ فَعَصَىٰ فِرْعَوْنُ ٱلرَّسُولَ ﴾ نونافرماني وکړه فرعون له هغه رسوله (موسی علیه السلام څخه اوایمان یې ورباندي نه راووړلکه چي تاسو ای قریشو له محمد علیه السلام څخه سرغړونه وکړاودهغه رسالت موتکذیب کړ) ﴿ فَأَخَذْنَٰهُ أَخْذًا وَبِيلًا ﴾ پس ونیو موږ دغه (فرعون) په نیولو سختو سره (چي دتصورله حدودوو تلی وي هغه داسي چي له خپله قومه سره مو په بحر کي غرق کړ. ابو السعود لیکي چي: په آیت شریف کي ددې تنبیه شته چي خامخا به په دغو کسانو باندي ژر دی چي همدغسي عذاب راتیت شي (وبیل) درانه ته وایي (٣) وروسته له هغه چي الله جل جلاله دفرعون دنیولو ویل اوداچي دهغه پاچهي اوجبروت له ده څخه عذاب دفع نکړای شو نوبېرته راوګرزېدو اودمکې کفاروته یې دقیامت یادونه وکړه دهغه ستونزي یې بیان کړې ترڅو دوی وپوهوي چي له سره به له عذابه خلاص نشي لکه چي فرعون هم نشو خلاص نو فرمايي ﴿ فَكَيْفَ تَتَّقُونَ إِن كَفَرْتُمْ يَوْمًا

---

(١) مختصر ابن کثیر ٣ /٥٩٥

(٢) خازن ٤ / ١٢٩

(٣) دابو السعود تفسیر ٥ /٣٠٥

يَجۡعَلُ ٱلۡوِلۡدَٰنَ شِيبًا ﴾ پس څرنګه به وساتئ (ځانونه خپل) که چېرې کافران منکران شئ (تاسې په دنیاکې ای د مکې کفارو !) له (عذاب د) هغې ورځې څخه چې له هیبته به وګرزې هلکان (واړه) سپین ږېرې طبري ليکي او دا چې هلکان بوډا ګان کېږي له سختۍ او هيبته دا هغه وخت دی کله چې الله تعالى آدم عليه السلام ته حکم وکړي چې راوباسه له اولادې څخه دې داور، وړاو مستحق کسان له هر زرو تنو څخه نه سوه نه نوي تنه داور ته ولې. ده نو دلته به ماشومان زاړه بوډاګان شي(¹) ورپسې د دغې ورځې نور هيبت او صفت داسې بيانې چې ﴿ ٱلسَّمَآءُ مُنفَطِرُۢ بِهِۦۚ ﴾ آسمان به وچوي په سبب د هيبت شدت د دغې ورځې) ﴿كَانَ وَعۡدُهُۥ مَفۡعُولًا ﴾ وه وعده د هغه (الله په راتلونکي د دغې ورځې سره) خامخا کېدونکې (او الله له وعدې څخه خلاف نکوي) ﴿ إِنَّ هَٰذِهِۦ تَذۡكِرَةٞۖ ﴾ بېشکه دا (آيتونه وېرونکي پند دی (خلګو لره) ﴿ فَمَن شَآءَ ٱتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا ﴾ نو هر هغه څوک چې اراده کوي (چې) نيسي خپل رب ته لاره (دايمان په دغه نصيحت سره ودي نيسي او د رحمان طاعت دې پيل کړي اسباب يې تيار او لاره يې هواره ده. مفسرين کرام ليکي چې: مقصد په ايمان راوړلو او طاعت کولو باندې د ښو اعمالو د هڅونې په هکله ترغيب دی تر څو آخرت ته توښه تر ې برابره کړي، اوس بيرته خبرې هغه د سورت پيل ته راګرزي کوم چې د سورت شروع ورباندې شوي وه او هغه قيام الليل وو فرمايي ﴿ إِنَّ رَبَّكَ يَعۡلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ أَدۡنَىٰ مِن ثُلُثَيِ ٱلَّيۡلِ وَنِصۡفَهُۥ وَثُلُثَهُۥ وَطَآئِفَةٞ مِّنَ ٱلَّذِينَ مَعَكَۚ ﴾ (بېشکه رب د تاعالم دی په دې بېشکه ته چې يې پاڅېږې لمانځه ته په شپه کې لږ له دوو برخو د شپې څخه او نيمه برخه او دريمه برخه د شپې (او همدارنګه پورته کېږي لمانځه ته) يوه طائفه له هغو کسانو څخه چې له تاسره دي (له اصحابانو رضوان الله عليهم څخه) يعني ای محمده بېشکه ستا رب عالم دی چې ته او اصحابان پورته کېږې تهجد او د شپې عبادت ته لږ له دوو دريو برخو د شپې او کله پورته کېږې نيمه د شپې او کله دريمه د شپې لکه چې الله فرمايي ﴿ كَانُواْ قَلِيلٗا مِّنَ ٱلَّيۡلِ مَا يَهۡجَعُونَ ، وَبِٱلۡأَسۡحَارِ هُمۡ يَسۡتَغۡفِرُونَ ﴾ (الذاريات ١٧ ١٨) ﴿ وَٱللَّهُ يُقَدِّرُ ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَۚ ﴾ (او الله اندازه کوي ساتي شپه او ورځ) يعني الله جل جلاله د شپې او ورځې په اندازه او اجزاوو، ساعاتو، ښه خبردار دی تاسو چې پکې هر څه کوئ الله ته معلوم دي که تاسو په توره شپه کې دالله د رضا او خوښې لپاره قيام الليل ته پورته کېږئ الله ته چې د شپې او ورځې د امورو تدبير فرمايي معلوم دي ﴿ عَلِمَ أَن لَّن تُحۡصُوهُ فَتَابَ عَلَيۡكُمۡۖ ﴾ پوه دی (الله) په دې شان چې هرګز به طاقت ونلرئ تاسې د هغې (شپې چې پورته کېږئ پکې په هغه ټاکلي وخت) نو معافي يې ولېږله پر تاسو يعني الله ته معلومه ده چې له سره به د ګردې شپې او يا زياتره د شپې د قيام الليل توان ونلرئ نو يې پر تاسو رحم وکړ او دغه لمونځ يې در څخه تخفيف کړ. طبري وايې: معنا دا چې الله ته علم دی چې تاسو به د قيام الليل توان له سره ونلرئ نو يې تاسو ته معافي وفرمايله

---

(¹) طبري ٢٩/ ٨٢

اودرته تخفيف يې وكړاو دقيام فرضيت يې ساقط كړ(١) ﴿فَٱقْرَءُواْ مَا تَيَسَّرَ مِنَ ٱلْقُرْءَانِ﴾ (پس ولولئ (په لمانځه كي) هومره چي آسان وي له قرآنه) يعني څومره چي موتوان وي صلوة الليل اداكړئ اوداچي له لمانځه څخه يې په لوستلو او قرائت باندي تعبيروكړ ځكه چي قرائت دلمانځه جزء دی. ابن عباس وايي: درسول الله صلى الله عليه وسلم له اصحابانورضوان الله عليهم څخه دقيام الليل فرضيت ساقط شواونفلي وګرزېدواوپه رسول الله صلى الله عليه وسلم باندي فرض وو(٢) وروسته الله ددغه تخفيف حكمت داسي بيان كړچي ﴿عَلِمَ أَن سَيَكُونُ مِنكُم مَّرْضَىٰ﴾ پوه دی (الله) شان دادی چي ژربه شي ځيني له تاسي څخه ناروغان (چي دقيام الليل توان به ونلري ،نويې درباندي رحمت وكړاودرته يې معاف كړ.

﴿وَءَاخَرُونَ يَضْرِبُونَ فِى ٱلْأَرْضِ يَبْتَغُونَ مِن فَضْلِ ٱللَّهِ﴾ اووي به نورله تاسي څخه چي سفرمزل به كوي په ځمكه كي لټوي به دوى له فضله رزقه څخه دالله تعالى (تجارت به كوي اوحلاله روزي به ترلاسه كوي)

﴿وَءَاخَرُونَ يُقَٰتِلُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ اووي به نورله تاسي څخه چي جنګونه به كوي دوى دالله په لاركي (لپاره داعلاء كلمة الله اوخپراوي ددين چي دغه درې سره دلي قيام الليل ورباندي سختېږي نوځكه الله درته معاف كړ، الله پدې آيت كي هغه عذرونه بيان كړل كوم چي بندګان له قيام الليل څخه منع كوي يويې ناروغي بل دتجارت لپاره سفر او بل في سبيل الله جهادوروسته يې بيا هومره چي آسانه وي ددومره قرآئت لوستل حكم تكراركړترڅوچي دتخفيف لپاره تاكيد شي. امام فخر رازي ليكي چي: ناروغان دخپلي ناروغي له امله نشي كولای تهجد اداءكړي اومجاهدين اومسافرين خودورځي په سختوچارولګياوي كه ويده نشي نوبه يې سختي يوپه بل دپاسه شي ځكه الله ورته تخفيف وفرمايو اوتهجدوجوب ددوى په حق كي منسوخ شو(٣) ﴿فَٱقْرَءُواْ مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ﴾ نولولئ تاسي (په لمانځه كي) هومره چي آسانه وي له دغه (قرآنه) يعني څومره چي درته آسانه وي هومره صلاة الليل اداكړئ اوپه هغه كي ولولئ څومره چي درته آسانه وي له دغه قرآنه ﴿وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ﴾ او قائموئ سم ودروئ لمونځ(سره له ټولوحقوقواوواجباتويې) وركوئ زكات (فرضي مستحقينو ته يې. مفسرين كرام وايي په قرآنكريم كي ېېخي لږبه داسي ځايونه وي چي هلته دي لمونځ ذكرشوی اوورسره زكات دي نه وي يادشوی ځكه چي لمونځ ددين ستني ده او دبنده اوپروردګارترمينځ مناجات دی زكات هم دارنګه دبنده اودهغه دوروڼوترمينځ پيوستون دی لمونځ په بدني عباداتوكي ترګردوسترعبادت دی همداسي زكات په مالي عباداتوكي ترګردواوچت اوغوره عبادت دی ﴿وَأَقْرِضُواْ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ او قرض كوئ تاسي له الله سره قرض ښه ، مال وركوئ په لاره دالله كي (په خوښي له حلالو څخه) ابن عباس رضى الله عنه وايي چي په دې سره ګردې صدقې او خيراتونه مقصددي كوم چي ماسوی له زكات څخه وي لكه له

---

(١) طبري تفسير ٢٩ / ٨٨

(٢) كبيرتفسير ٣٠ / ١٨٧

(٣) كبيرتفسير ٣٠ / ١٨٧

خپلو نوسره زره سوی ،مېلمه پالنه او نور (۱) ﴿ وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ اللَّهِ ﴾ او هر هغه چي وړاندي لېږی تاسي د پاره د ځانونو خپلو له څه خير نېکي څخه نو بيا به مومی تاسي هغه خير په نزد د الله (چي اجراو ثواب به يې درکول کېږي) ﴿ هُوَ خَيْرًا وَأَعْظَمَ أَجْرًا ﴾ دا (پخوا لېږل د حسناتو) خير ډېر غوره دی او ډېر لوی دی له پلوه د اجراو ثواب ) يعني تاسو به دغه اجراو ثواب تر هغو نېکو اعمالو چي په دنيا کي مو کړي غوره و مومی ځکه چي د نيا فاني او آخرت تلپاتي دی او هغه چي په نزد د پر وردګار دي هغه د نېکانو لپاره خير دی ﴿ وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ ﴾ او ښښنه وغواړئ له الله (په هر حال کي ) ځکه چي انسان ډېر لږ له تقصير او ګناه څخه پاک وي) ﴿ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴾ ببشکه الله دی ښه مغفرت کونکی (پراخ دی رحمت دده ، د سورت پای د الله جل جلاله پدې لار ښو ونه چي محسنينو متقيانو ته يې فرمايـلي تر څو له الله جل جلاله څخه عفو او ښښنه وغواړي ځکه کېدای شي کله يې هم په مال لګولو کي د نيت اخلاص نه وي او يا هم په صدقه ورکولو کي سم چلند و نکړي چي مستحقينو ته يې ورنکړي او يا يې د نامه او شهرت په خاى کي ولګوي او دغه داسي خاتمه ده چي د انفاق سره پېيلي ده (سبحان الله منزل القرآن بأوضح البيان) !!.

**بلاغت:**

پدې مبارک سورت کي چي د بديع او بيان کومي ښکلاوي شته لنډ يزيې داسي کوو:

۱ - د طبـاق صـنعت چـي د ﴿ أَنقُصْ.... أَوْ زِدْ عَلَيْهِ ﴾ او د ﴿ الْمَشْرِقِ .... وَالْمَغْرِبِ ﴾ او د ﴿ اللَّيْلَ .... وَالنَّهَارَ ﴾ ترمينځ راغلی دی .

۲ - اشتقاقي جناس لکه ﴿ أَرْسَلْنَا إِلَيْكُمْ رَسُولًا ﴾ چي راغلی دی.

۳ - د فعل تاکيد په مصدر سره لکه چي فرمايي ﴿ وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا ﴾ ﴿ وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ تَبْتِيلًا ﴾ ﴿ فَأَخَذْنَاهُ أَخْذًا وَبِيلًا ﴾ تر څو بيان زيات وضاحت او ځرګند توب افاده کړي.

۴ - التفات له غيبت نه خطاب ته لکه چي پدې آيت کي راځي ﴿ إِنَّا أَرْسَلْنَا إِلَيْكُمْ رَسُولًا ﴾ که په اصلي بڼه وای نو به داسي ووچي (ارسلنا اليهم) او مقصد له التفات څخه د ايمان په نه راوړلو تقريع او توبيخ دی.

۵ - مرسل مجاز چي فرمايي ﴿ فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ ﴾ مقصد له قرآئت څخه لمونځ کول دي دلته يې د جزء اطلاق په کل کړی ځکه چي قرائت د لمانځه يو جزء دی.

۶ - ذکر د عام وروسته له خاص څخه لکه داچي ﴿ وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ ﴾ چي وروسته له لمانځه ، زکات او صدقې څخه يې راوړي تر څو ګرد صالحات پکي شامل شي.

---

(۱) خازن تفسير ۴ /۱۷۱

۷- تبعیه استعاره چي پدې کلام کي شته چي ﴿ وَأَقْرِضُوا۟ ٱللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا ﴾ له فقیرانو، مساکینو او بېوزلانو سره لاس نیوی او مرسته ورکول یې رب العالمین ته پور ورکول وګڼل او دغه باریکه استعاره ده.

۸- مرصع سجع لکه ﴿ إِنَّ لَدَيْنَآ أَنكَالًا وَجَحِيمًا ، وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَعَذَابًا أَلِيمًا ﴾ او دغسي نورچي له بدیعي محسناتو څخه شمېرل کېږي.

دالله جل جلاله په مرسته د المزمل سورت د تفسیر ژباړه بشپړه شوه.

***

## د المدثر سورت مکي دی او شپږ پنځوس آیتونه لري.

دالمدثرسورت مکي دی اودپخواني المزمل سورت په شان درسول الله صلی الله علیه وسلم دزندګي ځیني اړخونه څېړي څکه یې المدثرهم بولي.

د سورت پیل رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ددعوت مکلفیت ورپه غاړه کېدل ښیي چي په بیداري سره پاځي اوکفاروته انذارورسوي دفاجرانوله لوري په تکلیفونوباندي صبروکړي ترڅوچي الله دده اودده ددښمنانوترمینځ فیصله صادره کړي فرمایي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمُدَّثِّرُ ، قُمْ فَأَنذِرْ ، وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ، وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ ، وَٱلرُّجْزَ فَٱهْجُرْ ، وَلَا تَمْنُن تَسْتَكْثِرُ ، وَلِرَبِّكَ فَٱصْبِرْ ﴾.

وروسته سورت دغه مجرمین دسختي ورځي له کړاوونوڅخه وېروي هلته چي هیڅ راحت نشته اوډېرهیبت اوترهه به وي فرمایي ﴿ فَإِذَا نُقِرَ فِى ٱلنَّاقُورِ ، فَذَٰلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ ، عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ ﴾.

وروسته له دغه بیانه چي دانسان اندامونه له اوریدلو ربړدي بیادهغه بدبخته فاجر(ولیدبن مغیره)داخطاریادونه کوی هغه چي قرآن یې واورېدواوپدې وپوهېدوچي دغه الهي کلام دی مګردریاست اومشرتوب سره دمیني اومحبت له مخي یې هغه سحراوکوډي وباله نوالله فرمایي ﴿ ذَرْنِى وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيدًا ، وَجَعَلْتُ لَهُۥ مَالًا مَّمْدُودًا ، وَبَنِينَ شُهُودًا ، وَمَهَّدتُّ لَهُۥ تَمْهِيدًا ، ثُمَّ يَطْمَعُ أَنْ أَزِيدَ ، كَلَّآ إِنَّهُۥ كَانَ لِءَايَٰتِنَا عَنِيدًا ، سَأُرْهِقُهُۥ صَعُودًا ، إِنَّهُۥ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ، فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴾ آن تردې چي فرمایي ﴿ سَأُصْلِيهِ سَقَرَ ﴾.

وروسته بیا سورت له هغه اورڅخه غږېږي کوم چي الله کفاروته ورباندي انذارورکړی دهغه اورڅارونکي پرښتې چي خوراسختي زوروري اودکفارودتعذیب لپاره ګمارل شوي دهغوی شمېراو په شمېرکي یې حکمت بیانوي فرمایي: ﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا سَقَرُ ، لَا تُبْقِى وَلَا تَذَرُ ، لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ ، عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ ، وَمَا جَعَلْنَآ أَصْحَٰبَ ٱلنَّارِ إِلَّا مَلَٰٓئِكَةً ۙ وَمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ إِلَّا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ دآیتونوترپایه

بیاسورت لوړه اخلي په سپوږمۍ اوددغې په رڼا سهار اوددغه په ښکلا قسم کوي چي جهنم یوله سختوازمويښتونو څخه دی فرمايي ﴿ كَلَّا وَالْقَمَرِ ، وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ ، وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ ، إِنَّهَا لَإِحْدَى الْكُبَرِ ، نَذِيرًا لِلْبَشَرِ ، لِمَن شَاءَ مِنكُمْ أَن يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ ﴾.

وروسته بیاهغه خبري اتري راوړي کوم چي دمؤمنانواومجرمينوترمينځ ترسره کېږي مؤمنان ورڅخه پوښتي چي ولي دوزخ ته لوېدلي یاست ؟فرمايي ﴿ إِلَّا أَصْحَابَ الْيَمِينِ ، فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءَلُونَ ، عَنِ الْمُجْرِمِينَ ، مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ ، قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ ، وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِينَ ، وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ الْخَائِضِينَ ﴾.

اودسورت پای بیادمشرکانوپه ایمان نه راوړلوشوی چي فرمايي ﴿ كَلَّا بَل لَّا يَخَافُونَ الْآخِرَةَ ، كَلَّا إِنَّهُ تَذْكِرَةٌ ، فَمَن شَاءَ ذَكَرَهُ ، وَمَا يَذْكُرُونَ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ هُوَ أَهْلُ التَّقْوَىٰ وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ ﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ (١) قُمْ فَأَنذِرْ (٢) وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ (٣) وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ (٤) وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ (٥) وَلَا تَمْنُن تَسْتَكْثِرُ (٦)
وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ (٧) فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ (٨) فَذَٰلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ (٩) عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ (١٠) ذَرْنِي وَمَنْ خَلَقْتُ
وَحِيدًا (١١) وَجَعَلْتُ لَهُ مَالًا مَّمْدُودًا (١٢) وَبَنِينَ شُهُودًا (١٣) وَمَهَّدتُّ لَهُ تَمْهِيدًا (١٤) ثُمَّ يَطْمَعُ أَنْ أَزِيدَ (١٥) كَلَّا إِنَّهُ كَانَ
لِآيَاتِنَا عَنِيدًا (١٦) سَأُرْهِقُهُ صَعُودًا (١٧) إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ (١٨) فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ (١٩) ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ (٢٠) ثُمَّ نَظَرَ (٢١) ثُمَّ عَبَسَ
وَبَسَرَ (٢٢) ثُمَّ أَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ (٢٣) فَقَالَ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ (٢٤) إِنْ هَٰذَا إِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ (٢٥) سَأُصْلِيهِ سَقَرَ (٢٦) وَمَا أَدْرَاكَ مَا
سَقَرُ (٢٧) لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ (٢٨) لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ (٢٩) عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ (٣٠) وَمَا جَعَلْنَا أَصْحَابَ النَّارِ إِلَّا مَلَائِكَةً وَمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ إِلَّا
فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَيَزْدَادَ الَّذِينَ آمَنُوا إِيمَانًا وَلَا يَرْتَابَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْمُؤْمِنُونَ وَلِيَقُولَ الَّذِينَ فِي
قُلُوبِهِم مَّرَضٌ وَالْكَافِرُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ وَمَا هِيَ إِلَّا
ذِكْرَىٰ لِلْبَشَرِ (٣١) كَلَّا وَالْقَمَرِ (٣٢) وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ (٣٣) وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ (٣٤) إِنَّهَا لَإِحْدَى الْكُبَرِ (٣٥) نَذِيرًا لِّلْبَشَرِ (٣٦) لِمَن
شَاءَ مِنكُمْ أَن يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ (٣٧) كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ (٣٨) إِلَّا أَصْحَابَ الْيَمِينِ (٣٩) فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءَلُونَ (٤٠) عَنِ الْمُجْرِمِينَ
(٤١) مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ (٤٢) قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ (٤٣) وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِينَ (٤٤) وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ الْخَائِضِينَ
(٤٥) وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ (٤٦) حَتَّىٰ أَتَانَا الْيَقِينُ (٤٧) فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِينَ (٤٨) فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ (٤٩)
كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنفِرَةٌ (٥٠) فَرَّتْ مِن قَسْوَرَةٍ (٥١) بَلْ يُرِيدُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ أَن يُؤْتَىٰ صُحُفًا مُّنَشَّرَةً (٥٢) كَلَّا بَل لَّا يَخَافُونَ
الْآخِرَةَ (٥٣) كَلَّا إِنَّهُ تَذْكِرَةٌ (٥٤) فَمَن شَاءَ ذَكَرَهُ (٥٥) وَمَا يَذْكُرُونَ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ هُوَ أَهْلُ التَّقْوَىٰ وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ
(٥٦) ﴾ المدثر: ١ ـ ٥٦

## لغتونه:

(المدثر) په جامه کي نغښتل شوی (دثار) هغه پرسېرن څادرته وايي اوشعارهغه جامه چي په تن پوري وي په حديث شريف کي راغي (الأنصارشعاروالناس دثار) (الناقور) هغې شپېلۍ ته وايي چي پکې پوکل کيږي (نقر) په عربي کي صوت ته وايي اوڅکه شپېلۍ ته ناقوروايي چي له شپېلۍ څخه ستراوهيبت ناک غږ راوزي چي خلگ بېهوښه کوي اومړه کېږي (عبس) تندی تريوول (بسر) دمخ کوتان اودرنگ بدلول ، ليث وايي (عبس) کله چي دسترگوترمينځ تريووالی راوړي اوکه چېري يې غاښونه هم ورسره سپين کړل نو(کلح) يې بولي او که يې بيافکراوسوچ هم ورسره ملگری کړچاويلي چي دغه (بسر) دی اوکه غصه هم ورسره مل وه بيادوی وايي چي (بسل) دی (١)(اسفر) رون شي(الکبر) لويې بلاگانې اومصيبتونه عذابونه (قسورة) زمری له (قسر) څخه اخيستل شوی کوم چي قهردی اوڅکه ورته (قسورة) وايي چي دځنگل په ځناورو واکمن دی چاپياويلي چي دغه ويشتونکي ښکاريان ښيي الازهري ليکي چي دغه دويشتونکولپاره اسم جمع دی چي له خپله جنسه واحد نلري.

## دنزول سبب:

کله چي دالله تعالی داقول نازل شوچي ﴿ عَلَيۡهَا تِسۡعَةَ عَشَرَ ﴾ نوابوجهل قريشوته وويل موردي در باندي بوره شي دابوکبشه زوی (مقصديې محمدرسول الله وو) مورپه دوزخ وېروي اووايي چي نولس تنه څوکيداران لري اوتاسوستره ټولی خلگ ياست آياتاسوهرلس تنه نشی کولای چي يويې ونيسی !! (ابوالاسد الجمحي) وويل زه به اوولس ونيسم اوتاسي يوازي دوه ونيسئ نوالله جل جلاله داآيت نازل کړچي ﴿ وَمَا جَعَلۡنَآ أَصۡحَٰبَ ٱلنَّارِ إِلَّا مَلَٰٓئِكَةٗۙ وَمَا جَعَلۡنَا عِدَّتَهُمۡ إِلَّا فِتۡنَةٗ لِّلَّذِينَ كَفَرُواْ ﴾ دآيت ترپايه پوري (٢)

## تفسير:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمُدَّثِّرُ، قُمۡ فَأَنذِرۡ ﴾ ای په څادرکي نغښتونکيه (چي خوب اوراحت کوې) پورته شه !(له خايه دخوبه خپله (په عزم اوتصميم سره ) نو ووېروه (خلگ دالله له عذابه که ايمان رانه وړې ، رسول الله ته په دغه تعبيرسره خطاب کول لکه څرنگه چي يې په (المزمل) ورته خطاب فرمايلی وو دمؤانست اوتلطف له مخي دی.مفسرين کرام ليکي چي رسول الله صلی الله عليه وسلم به دحراء په غارکي عبادت کاووچي جبريل امين ورته ددغوآيتونووحی راوړه چي ﴿ ٱقۡرَأۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلَّذِي خَلَقَ ﴾ (العلق:١) دآيتونو ترپايه اوهمدغه دقرآنکريم لومړنی وحی وه چي ورباندي نازله شوه نودرسول الله صلی الله عليه وسلم زړه درېږدو اوراستون شوحضرت خديجي رضی الله عنهاته يې وويل: (زملوني، زملوني) بيادا آيت نازل شوچي:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمُزَّمِّلُ قُمِ ٱلَّيۡلَ إِلَّا قَلِيلٗا ﴾ (المزمل ١ - ٢) دآيتونو ترپايه اوبياوحی يوڅه وځنډېدله اورسول الله خواشيني شوچي يوه ورځ رسول الله صلی الله عليه وسلم په لاره روان ووچي له آسمانه يې غږواورېدو اوچي سريې راپورته کړهمغه پرښته وه چي دحراء په غارکي ورته راغلي وه اوداوس په يوه کرسۍ

---

(١) کبيرتفسير ۲۰۱/۳۰

(٢) کبيرتفسيردامام رازي ۲۰۳/۳۰

باندي تشريف درلودچي دآسمان اوځمکي ترمينځ وه له دغه حالته رسول الله ته وېره اوترهه ورپېښه شوه نوکورته راغی او ويل بې (دثروني، دثروني) (١) نوالله جل جلاله داآيت نازل کړچي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمُدَّثِّرُ، قُمۡ فَأَنذِرۡ ﴾ قرطبي ليکي چي په دې نداکي تلطف نغښتی دی چي دکريم له لوري حبيب ته خطاب دی اوپه وصف سره بې وستايواوداسي بې ورته ونه ويل چي (يامحمدقم...) ترڅوچي رسول الله له خپله پرورد ګاره دنرمي اوملاطفت پېرزوينه احساس کړي اوددې مثال درسول الله صلی الله عليه وسلم هغه وينا ده چي (حذيفة بن اليمان) ته بې دخندق په ورځ وکړه ورته ويل بې: (قم يانومان) يعني ای خوبولي پاڅه!(٢) ﴿ وَرَبَّكَ فَكَبِّرۡ ﴾ اورب خپل پس په لويې سره يادوه (تقديس اوتمجيد بې کوه، عظمت او کبرياء بې ستايه ترالله لوړاوسترهيڅوک نشته. الوسي ليکي: معناداچي الله په تکبير لويې سره ځانګړی کړه اودغه دالله جل جلاله دکبريآء اوعظمت وصف دی قولا اواعتقاداً(٣) اوداچي وروسته له انذار څخه بې دغه جمله ياده کړه ترڅورسول الله دکفاروله ډېروالي څخه بې پرواکړي ځکه دخلګوچولي، تندی (نواصي) دجبارذات په يد دقدرت کي دي اورسول الله ته ښايي چي پرته له الله هيڅاڅخه هم ونه وېرېږي اونه هم دڅاپرواوکړي ځکه هرستراولوی دالله جل جلاله تر لويي لاندي اومقهوردی ﴿ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرۡ ﴾ اوکالي جامې خپلي پس پاک وساته (له نجاساتواوپليتيوڅخه، ځکه چي مؤمن پاک سپېځلی وي اوورسره مناسب نه دي چي چټل ناپاک وي، ابن زيدوايې چي مشرکانوبه دنظافت خيال نه ساتلو نورسول الله صلی الله عليه وسلم ته حکم وشوچي ځان اوجامې پاکي وساتي (٤) اوابن عباس رضی الله عنهماوايې چي جامې کنايه له زړه څخه دي اومعناداچي زړه دي له ګناهونوڅخه پاک وساته (٥) عرب وايې: دفلاني جامې پاکي ډي مطلب بې داوي چي هغه له عيبونو اوبدوصفاتوڅخه پاک دی اووايې: دفلاني سرې جامې لړلي دي کله چي دهغه اخلاق اوخويونه ناولي وي. امام رازي ليکي چي: ددغي کنايي ښکلاپه دې کي ده چي جامه لکه يوشی چي تل له سړي سره ملازم وي داسي دی ځکه نوجامه له انسان څخه کنايه راوړي(المجدفي ثوبه والعفة في ازاره)(٦) ﴿ وَٱلرُّجۡزَ فَٱهۡجُرۡ ﴾ (اوبتان پس ترک کړه) يعني دبتانوعبادت پرېږده امه ورنژدې کېږه (الرجز) هغوبتانوته وايه شي کوم چي دمکې خلګواونورو مشرکانوبه بې عبادت کاوو نوالله ورته امروکړچي هغوی ته رانشي اونه ورنژدې شي. امام فخررازي ليکي (الرجز) د ناولي شي نوم دی لکه (الرجس) چي الله تعالى فرمايې ﴿ فَٱجۡتَنِبُواْ ٱلرِّجۡسَ مِنَ ٱلۡأَوۡثَٰنِ ﴾ اودا کلام چي الله جل جلاله فرمايې ﴿ وَٱلرُّجۡزَ فَٱهۡجُرۡ ﴾ دغه يوجامع کلام دی چي

---

(١) دغه روايت طبري له جابربن عبد الله څخه رانقل کری دی الطبري ٢٩ / ٩٠.

(٢) قرطبي تفسير ١٩ / ٦٠

(٣) روح المعاني ٢٩ / ١١٢

(٤) ابن کثير تفسير ٣ / ٥٢٨

(٥) طبري تفسير.

(٦) تفسير کبيرامام رازي رحمه الله ٤ / ١٩٢ (ياداچي په پښتوکي وايې فلانی پاک لمنی دی يعني هغه عفيف دی.)ژباړن.

گردو اخلاقو ته شامل وي لکه چي ورته ويلي يې وي چي جفا، سفاهت او هر بېکاره چتي خوی پرېږده دغو مشرکانو خويونه مکوه او مراد له هجرانه څخه په دغه هجران باندي مداومت او همېشه توب دی لکه چي مسلمان وايي ﴿ ٱهۡدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلۡمُسۡتَقِيمَ ﴾ (الفاتحة ۲) معنايې دانه ده چي هغه په سمه لاره روان نه دی بلکه معنادا چي: موږ پردغه سمه لاره ثابت او دائم ولرې(۱) ﴿ وَلَا تَمۡنُن تَسۡتَكۡثِرُ ﴾ اومه کوه داسي (لږ) احسان چي بدل يې ډېر غواړې) څکه چي د کريم داخوی وي چي ډېره ورکړه هم لږ ګڼي. (۲) داسي عطاء او نور ورکړه مکوه چي غوره ترې هيله لرې (۳) پدې معناچي داسي څه مه ورکوه چي بيازيات درکول شي او ددغي نهی رازپه دې کي دی چي ورکړه بايدد عوض اوبدلې له انتظاره خالي وي او دغه د تعفف او کمال نوم دی څکه چي رسول الله صلى الله عليه وسلم ترټولو په غوره اوشريفو آدابو اخلاقو باندي مامور شوی دی ﴿ وَلِرَبِّكَ فَٱصۡبِرۡ ﴾ او دپاره درب خپل صبر کوه په تکاليفو د قوم خپل چي ددعوت په لاره کي يې دررسوي او ورپسې د قيامت ستونزي داسي بيانوي چي ﴿ فَإِذَا نُقِرَ فِي ٱلنَّاقُورِ ﴾ کله چي پو کړی شي په صور شپېلۍ کي (نفخة) د بعث اونشورله شپېلۍ څخه يې په ناقور تعبير وفرمايو څکه چي دعربو په کلام کي د(نقر) معنا صوت آوازدی او کله چي سخت آواز ولګېږي ورسره هيبت وي نولکه چي ورته وايي ته ددوی له خوا په اذيتونو دررسېدلو زغم او صبر کوه ددوی په وړاندي د قيامت سخته ورځ ده چي دوی به ددغو خپلو اعمالو نتيجه هلته ويني او ته به د خپل صبر پايله هم وګورې نو څکه وروسته پسي فرمايي ﴿ فَذَٰلِكَ يَوۡمَئِذٖ يَوۡمٌ عَسِيرٌ ﴾ (نو دغه (وخت) په دغه ورځ کي ورځ سخته ده) يعني دغه خوراسخته ورځ ده چي پر دوی به چاره ډېره سخته وي او په بعيد سره اشاره چي (ذلک) دی ددې لپاره راغلي چي دهغې منزلت په هيبت او سختي کي لېري دی ﴿ عَلَى ٱلۡكَٰفِرِينَ غَيۡرُ يَسِيرٖ ﴾ په کافرانو باندي به آسانه نه وي؛ څکه چي ور سره حساب کتاب به کېږي مخونه به يې تور او سترګي به يې شنې شي د خلګو په وړاندي به رسوا او وشرمېږي. صاوي ليکي چي: په آيت شريف کي ددې دليل شته چي دغه ورځ به په مؤمنانو آسانه وي څکه چي سختي يې په کافرانو پسي وتړله او پدې کي د کافرانو لپاره زيات وعيد او قهر دی اود مؤمنانو لپاره ډاډ او زېری شته (۴) ورپسې دهغه بدبخته کافر(وليدبن مغيرة) کيسه راغلي چي هغه بد مرغه د قرآن کريم په هکله څرنګه چتي بېځايه وينا کوله الله فرمايي ﴿ ذَرۡنِي وَمَنۡ خَلَقۡتُ وَحِيدٗا ﴾ پرېږده ما او هغه څوک چي پيدا کړی مي دی يوازي (د مور په ګېډه کي چي نه يې مال اونه يې اولادوو، نه يې توان او خواک درلود اونه يې مددګاران وو بيا پرما باندي کافرشو او زما آيتونه يې دروغ وګڼل. مفسرين کرام وايي: دغه د وليدبن مغيرة په هکله نازل شوی هغه چي د قريشو سردار وو او هغه ته د قريشو ريحانة او وحيد ويل کېدو، الله تعالى په هغه باندي د دنيا نعمتونه او مال اولاد لورولي وو پرېمانه روزي يې

---

(۱) کبير تفسير ۳۰/ ۱۹۳
(۲) التسهيل لعلوم التنزيل ۴/ ۱۷۰
(۳) مختصر ابن کثير ۳/ ۵۶۸
(۴) حاشية الصاوي على الجلالين ۴/ ۲۲۵

درکړي وه چي لکه رودبهېدله، وليدپه طآئف کي باغ درلودچي ژمی، اوړی به يې مېوې نه خلاصېدلې نودالله نعمتونوکفران يې وکړدالله جل جلاله له آيتونو څخه منکرشواوپه الله جل جلاله يې دروغ وتړل نودغه آيت يې په هکله نازل شوچي ﴿ ذَرْنِي وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيدًا ﴾ دغه دتهديدپه هکله بليغ اسلوب دی اودده په هکله د(نون) په سورت کي هم آيتونه پخواولوستل شول (۱) چي ﴿ وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ ، هَمَّازٍ مَّشَّاءٍ بِنَمِيمٍ ، مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ، عُتُلٍّ بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ ، أَن كَانَ ذَا مَالٍ وَبَنِينَ ، إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ، سَنَسِمُهُ عَلَى الْخُرْطُومِ ﴾ (القلم ۱۲-۱۰) داهغه کافروچي رسول الله صلی الله عليه وسلم يې خوراوو اوهغه ته يې پلمې بهانې جوړولې او ورسره مکرفرېب يې چلاوو ځکه کله چي به قريشي مشرانوته کومه پلمه بهانه پاتي نشوه چي درسول الله ددعوت په وړاندي يې خنډکړي اودبلني شغله يې وروژني نوبه يې وليدبن مغيرة ته پناه وروړه هغه به ورته داسي مشوره ورکړه چي کوډګرېي بولئ اوخپلو مريدانواوماشومانوته ووايا ست چي په دغه نامه باندي دمکې په کوڅوکي چيغي ناري ووهي نوبه هغوی دغه جاروا هوچي محمدصلی الله عليه وسلم کوډګردی اورسول الله صلی الله عليه وسلم پدې غمجن شونودغه آيتونو دنوموړي کافردتهديدپه هکله نازل شول چي دکبر او غرور شان يې مات کړي

وربسي الله جل جلاله وفرمايل ﴿ وَجَعَلْتُ لَهُ مَالًا مَّمْدُودًا ﴾ اوبيامي وګرزاوو ده ته مال ډېرزيات (له اوښانو، آسانو، مېږو ، وزو اوزرغونو باغونو. بيضاوي ليکي (ممدودا) يعني وېرپراخ ځکه چي کښتونه، فصلونه ، حيوانات اوتجارت يې درلودل (۲) ابن عباس وايې چي : دده مال دمکې اوطآئف ترمينځ غوړېدلی ووا ومقاتل وايي : هغه يوباغ درلودچي ګټه يې سراوکال يعني ژمی، دوبی ورته رسېدله (۳) ﴿ وَبَنِينَ شُهُودًا ﴾ اوزامن حاضر(کېناستونکي) له ده سره په مجلس کي )حاضرپه ښارکي چي هغه به يې په ليدلوډاډمن وواودبېلتون په سبب يې غمجن نه وو. مفسرين کرام ليکي چي ده لس زامن درلودل چي هيڅ وخت په سفرنه تلل اونه به له ده بېلېدلودی به يې په ليدلوخوښ راضي ووا ودعزت اوسرلوړي سبب يې بلل کېدودرې زامن يې مسلمانان شول چي هغوی خالد، هشام، او وليدوو(۴) وروسته له دې چي دمال اولاديادونه يې وشوه په عامه توګه ګردي دنيوي ښېګڼي يې داسي يادوي چي ﴿ وَمَهَّدتُّ لَهُ تَمْهِيدًا ﴾ (اوتيارى مي وکړه فراخي مي وکړه ده لره تياري) يعني دنيامي دده په وړاندي تياره اووغوړوله دژوندانه له مشقتونو څخه مي وژغوره هغه ته مي دمشرتوب ، خاني، اولوبي ګدۍ ورکړه چي هغه بياپه قريشوکي سرلوړي سرداروخبره يې هرچانمله ﴿ ثُمَّ يَطْمَعُ أَنْ أَزِيدَ ﴾ بياطمع کوي اميدلري دی لابه ښه زيات کړم(ده لره دغه ټول شيان په داسي حال کي چي پرما کافردی؟ فخررازي

(۱) د(نون) په سورت کي ددغه تفسير کيسه ولوله
(۲) البيضاوي ۴۹۲/۲
(۳) کبيرتفسير ۱۹۸/۳۰
(۴) ځيني مفسرينودزمخشري پيروي کړي اوليکلي يې دي چي دهغه مسلمان زامن (خالد ، عمارة او هشام) دي خوسمه خبره داده چي دعمارة پرځای وليددی او(عمارة) په کفرکي مړشوی دی په دې هکله دشهاب حاشيه وګوره. ۸/ ۲۸۴

ليكي چي (ثم) پدې خای کي دانکاراوتعجب لپاره دی لکه چي ته خپل ملگري ته وايې ماخپل انګرته راوستې ومي نازولې، مېلمستیامي درکړه عزت مي دي وکړبیاهم ته راته ښکنځل کوې ؟ !(١) يعني سره له دغه ګرداکرام اوعزته هغه کافراومنکرشوپرځای ددې چي شکر وکاږي دنعمت قدردان شي هغه انکاروکړاوپرځای ددې چي داحسان په وړاندي ایمان خپل کړي هغه برعکس انکاراوکفران ته مخه کړه

﴿ كَلَّآ ﴾ نه کوم داسي (چي مال اولادېي ډېرکړم) دغه حرف (ردع)دی ترڅودغه فاجرګنهکارله دغي فاسدې طمعي اوهيلي څخه وګرزوي اوبيادې علت داسي څرګندوي چي ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ لِءَايَٰتِنَا عَنِيدًا ﴾ بېشکه هغه وزآيتونوزموږلره عناد کونکی (دپيغمبرعليه السلام تکذيب يې کاوونوڅرنګه دغه بدمرغه دزیاتوالي هيله من دی اودغه خيال پلاو پخوي ؟ ﴿ سَأُرْهِقُهُۥ صَعُودًا ﴾ ژردی چي مکلف به يې کړم په سخت عذاب سره (چي توان به يې اوبه کړي لکه چي دهغه چاتوآن اوبه کېږي کوم چي لوړغره ته خېژي. قرطبي ليکي (صعودًا) نبوی ډېره ده چي په ختلوبه يې ورته حکم کېږي اوکله چی ور وخېژي نوبه دجهنم مينځ ته راورغړي اويوزرکاله وروسته به دجهنم په ګېډه کي تم شي (٢)اوپه حديث شريف کي راځي چي (الصعود جبل من نار يصعد فيه سبعين خريفا ثم يهوي فيه کذلک أبدا )يعني (صعود ) په اورکي کي ديوه غره نوم دی چي په هغه باندي اوياکاله کافرخېژول کېږي اوبيرته رارغړول کېږي اودغه عذاب به يې تل ترتله وي (٣) ﴿ إِنَّهُۥ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ﴾ بېشکه هغه فکروکړ(چي په قرآن کي څرنګه طعن ولګوم ) او(پخپل زړه کي يې ) اندازه ولګوله(چي ويې ويل : دغه قرآن کوډي دي اومحمد صلى الله عليه وسلم ساحردی، په آيت شريف کي پرده باندي تهکم اواستهزاء دی چي ده هغه څه اندازه ولګوله چي هيڅ سمون نلري اونه دغسي هوښيارسړی وايې په البحرکي راوړي عرب کله چي يوڅيزډېرلوړوګڼي اوتعجب يې وبولي نووايې (قاتله الله) مقصديې داوي چي دغه هغه ځای ته رسېدلی چي ورسره حسد کېږي اوحاسدان ورته ښېراکوي اواستفهام پدې کلمه کي چي ﴿ كَيْفَ قَدَّرَ ﴾ دتعجب په معناکي دی چي څومره عجيب اوغريب تقديراواندازه يې لګولي ده ؟ لکه چي دوی وايې (أی رجل هذا ) يعني څومره عجيب سړی دی دغه؟ !

﴿ فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴾ ووژل شو(ملعون کړی شو ) څرنګه يې اندازه کړه؟ بيا دی ووژلی شی (ملعون دی کړی شی ) څرنګه يې اندازه کړه؟ تاکيديې دحال دتقبيح لپاره راوړی او چي زيات تهکم افاده کړي لکه چي ووايې: الله دي ووژني (هلاک کړي) څرنګه عجيبه فکريې وکړ؟ او خپله سپکه رايه يې څرګنده کړه (٤) چي قرآنکريم يې سحروباله چي اغېزناک دی. مفسرين کرام ليکي چي وليديوه ورځ په رسول الله صلى الله عليه وسلم تېرېدوچي رسول الله په لمانځه ولاړ اوقرآنکريم يې تلاوت کاوونودرسول الله تلاوت يې واورېدوتأثيريې پکي وکړولیددخپل قوم بني مخزوم مجلس ته راغی

---

(١) کبيرتفسير ١٩٩/٣٠

(٢) قرطبي تفسير ٧٢/١٩

(٣) أخرجه الترمذي والحاکم وصححه

(٤) دغه لکه څنګه چي زمخشري ليکي دوليدبن مغيرة ثناتهکم په اسلوبودی اوتهکم پدې معنادی چي څه ده ويلي نهايته سپک اوبې ارزښته دي.

اوورته ويل يې زمادي په الله سوګندوي همدا اوس مي له محمد څخه يو کلام واورېدوچي نه دانسان کلام وواونه هم دپېري زمادي په الله قسم وي چي دهٔ ېرخونديې درلودا وښايسته ووسرترپايه له ښېګڼواولذتونوډک ووداسي کلام ووچي پرګړدو ويناوودپاسه ووبل کلام ورباندي لوړېداى نشواى اوبيا خپل کورته ستون شوقريشو ووېل : داسړى که چېري له دينه واوړي نوټول قريش به خپل دين پرېږدي اوابوجهل ووېل : زه به دده چاره وکړم هغه ته ورغى اوله څنګه يې کېناست غمګيني اوخواشيني يې خپله کړه نوولیدورته ووېل: اى وراره ولي داسي خوابدى يې هغه ورته ووېل: چي ولي به خوابدى نه يم دغه قريش دي چي تاته مال راټولوي ترڅوچي ستا په بوډاتوب کي مرسته وکړي دوى داسي انګېري چي تاته دمحمدکلام خوند درکړى اوله که چي له دينه اوښتى يې ترڅوچي دمحمد دخوروپاتي شوني درته ورسېږي اويايې له ماله څخه څه استفاده وکړې !! وليدته قهرورغى او ويې ويل : آياقريش په دې نه پوهېږي چي زه تردوى ټولومالدار ه اوسرپيووالايم !؟ آيامحمداواصحابان يې په ډوډۍ ماړه شول چي پاتي شوني لري؟ ! بيا له ابوجهل سره پاڅېدوترڅوچي دخپل قوم مجلس ته راغى اودوى ته يې ووېل: تاسوګمان کوئ چي محمدلېونى دى آياتاسوليدلى چي خلګ ترمرى نيسي؟دوى ويل نه هېڅکله نه بيايې ووېل: آياتاسوګمان کوئ چي هغه کاهن دى؟ آياکله هم دهغه کهانت موليدلى؟ دوى ويل نه مودى ليدلى ويل يې چي آياګمان کوئ هغه شاعردى آياکله موهم ليدلي چي هغه شعرويلي دى دوى ويل له سره مونه دي ليدلي نو يې ووېل : تاسوګمان کوئ چي دروغجن دى؟دوى ويل هېڅکله موهم دهغه له خولې څخه دروغ نه دي اورېدلي نوقريشوليدته ووېل نوته آخرڅه فکرکوې چي دابه څوک وي؟ ده چورت وواهو اوبيايې ووېل : دغه کوډګردى بل هېڅ شى نه دى آياتاسونه ګورى چي دسړي اومايني ترمينځ يې اودارنګه دزوى اوپلارترمينځ بېلتون راولي اوداچي لولي يې له اغېزمن سحرڅخه پرته بل شى نه دى ، همدغه دالله وينادە چي فرمايي ﴿ إِنَّهُۥ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ﴾ دآيتونوترپايه وليد پرېږده چي چورت ووهي اواندازه ولګوي راځوګوروچي بيايې څه وکړل؟ الله تعالى فرمايي ﴿ ثُمَّ نَظَرَ ﴾ بيايې وکتل (بل ځل په فکرسره دقرآن په هکله ) ﴿ ثُمَّ عَبَسَ ﴾ بيايې مخ تريوکړ(خوله يې ورانه کړه) ﴿ وَبَسَرَ ﴾ اووچولې يې غوټه تريوکړ(لکه چي يوڅوک ديوکارپه هکله سوچ اوچورت وهي په التسهيل کي راوړي چي(بسور) دمخ غوټه کولوته وايې اوتر(عبوس) زيات دى ﴿ ثُمَّ أَدْبَرَ وَٱسْتَكْبَرَ ﴾ بيايې شااوړوله (له ايمان اومحمده ) اوتکبريې وکړ(دحق له اتباع اوهدايته) ﴿ فَقَالَ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ ﴾ نو ويې ويل نه دى دا(قرآن) مګرخوسحردى چي نقل کاووشي (له نورو ساحرانو څخه) ﴿ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا قَوْلُ ٱلْبَشَرِ ﴾ (نه دى دا(قرآن) مګرخو خبره دبني آدم بشردى) يعني دغه قرآن دالله کلام نه دى بلکه دبنيادم وينادە چي محمدصلى الله عليه وسلم دخلګوزړونه ورباندى غولوي او ورباندي لکه دکوډو اغېزه پرې باسي. الوسي ليکي : دغه لکه د لومړۍ جملې لپاره چي تاکيدوي څکه مقصدله دواړوڅخه نفى دقرآن اوکلام الله دى څکه يې نو ورباندي په واوتوري عطف نه دى راوړى اوپه راوړلودغه ببخايه وينا له ده څخه پرده استهزآء ده اودې ته اشاره ده چي دى له حق څخه ګوښه پاتي شوى اوداحوال له څېړني داسي

معلومېږي چي ولید دغه خبري دعناداو جاهلي تنګ څخه کولې دحال په حقیقت باندي دغسي ناپوه نه
وو آیانه ګوري چي په قرآن یې څرنګه ثناویلي ده ټول هغه شیان یې چي قریشوورته نسبت کاوو څنې نفي
کړي دي لکه شعر، کهانت اوجنون !!؟ ﴿ سَأُصْلِيهِ سَقَرَ ﴾ (الله فرمایي) ژربه داخل کړم دی سقر (اوردوزخ
ته) (چي عذاب یې وڅکي) ﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا سَقَرُ ﴾ او څه شي پوه کړې ته چي څه دی اورد سقر؟ استفهام
دتهویل اوفظاعت لپاره دی ﴿ لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ ﴾ (چي نه پاتي کېږي ترې هیڅ شی (له غوښوبې سوځولو)
اونه پرېږدي (هډوکي بې سوځولو) یعني هرڅېزته چي ورسېږي له مینځه یې وړي اوله فجاروڅخه
هیڅوک نه پرېږدي مګرسوځوي یې.ابن عباس رضی الله عنهماوایي: معناداچي له غوښو،
وینواوهډوکوڅخه هیڅ څېز(توکی) هم نه پرېږدي مګرسوځوي یې اوکله چي یې بیرته نوی تخلیق وشي
نوتررومبني حالت یې سخت وسوځوي اوهمداسي تل ترتله وربانديي بلېږي ﴿ لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ ﴾ ظاهرېدونکی
خلګولره (له لیري مسافې څخه چي غټ اوهیبت درلودونکی به وي لکه چي الله فرمایي ﴿ وَبُرِّزَتِ ٱلْجَحِيمُ
لِمَن يَرَىٰ ﴾ (النازعات:۳۶) حسن رحمه الله وایي: دوی ته به دپنځه سوه کاله مودې له مسافې څخه برېښي
ترڅوچي یې عیان ووینې (۱) نوهغه ددوی سترګوته عیان دی بې له دې چي غاړي ورته اوږدې کړي دوی
به یې ویني ﴿ عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ ﴾ په هغه (اورد سقرباندي مؤکلي نولس پرښتې لکه چي الله تعالی بل ځای
فرمایي ﴿ عَلَيْهَا مَلَٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ لَّا يَعْصُونَ ٱللَّهَ مَآ أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ﴾ (التحریم:۶) ابن عباس رضی
الله عنهماوایي دهري پرښتې داوږوترمینځ به دیوکال مسافه وي اودیوې توان اوځواک به دومره وي
چي په یووار دګرز، څټک به اویازره انسانان ددوزخ په تل کي ننې باسي. الوسي له ابن عباس رضی الله
عنه څخه روایت راوړی وایي: کله چي دغه آیت نازل شونوابوجهل قریشوته و ویل: میندي دي درباندي
بوري شي ابن ابي کبشه (محمدصلی الله علیه وسلم) وایي چي ددوزخ مؤکلي پرښتې نولس دي
اوتاسوغښتلي ټولي یاست آیاپه لسوتنویوه پرښته نه شی نیولای ؟ نو ابو الاسد الجمحي وویل(چي
سخت غیرایستونکی وو ) اوولس پرښتې یوازي ماته راپرېږدئ اوتاسو ددووپرښتومخه ونیسئ(۲)
نوکله الله جل جلاله داآیت نازل کړچي ﴿ وَمَا جَعَلْنَآ أَصْحَٰبَ ٱلنَّارِ إِلَّا مَلَٰٓئِكَةً ﴾ اونه دي ګرزولي موږ خازناني
مؤکلي ددوزخ مګرپرښتې (دېري قوتناکي له بشرڅخه مونه دي ګرزولې چي دوی ورسره زور
آزمایي وکړي ﴿ وَمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ إِلَّا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ﴾ اوندی ګرزولی موږ (دالږ)شمېرددوی مګرفتنه

---

(۱) خینومفسرینوداغوره کړي چي سوځوونکی تورونکی دااورچي پوستوکی یې توروي داسي تورچي ترتکه توره شپه
لاتوراوپه (لواحة للبشر) کي د(البشر) دبشرة جمع اوهغه دانسان ظاهري پوستوکي ته وایي خوظاهره اوڅرګنده هغه ده چي
موړلیکلي څکه الله جل جلاله یې وصف داسي راوړي (لاتبقي ولاتذر) نوله دې وروسته بیاد پوستوکي دتورېدلوڅه فائده
کېدای شي ؟ کوم مطلب چي موږتري اخیستی هغه ته قرطبي ترجیح ورکړي اوابن عباس ته یې نسبت کړی همداسي امام
رازي هم دغه ژباړه خوښه کړي ده والله اعلم
(۲) الوسي تفسیر ۲۹/ ۱۳۲

ازموينه دپاره دهغو كسانوچي كافران شوي دي (چي تو كي پرې كوي لږ بې بولي آن تردې چي ابو جهل وايي: آياتاسو نوسل تنه نشواى كولاى چي يوه پرښته ونيسى اوله اورڅخه را بهروزي(١)؟ طبري ليكي: اوداچي الله ددوزخ دخازنانوشمېردكفارولپاره فتنه، ازموينه گرزولي چي دوى ددې تكذيب كوي اوځيني كسان ځينونورو ملگروته وايي اوملنډې وهي چي دغه پرښتې ماته راپرېږدى زه بې مخنيوى كوم(٢)﴿ لِيَسْتَيْقِنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ ﴾ ترڅوچي يقين وكړي هغه كسان چي كتاب وركړى شوى دى (په رښتولي دمحمدصلى الله عليه وسلم اوداچي قرآنكريم دالله له لوري څخه نازل شوى دى ځكه چي ددوى په كتابونوكي داوردخازنانودغه عددموجوددى ﴿ وَيَزْدَادَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِيمَٰنًا ﴾ او(بل لپاره ددې) چي زيات كړى ايمان دهغو كسانوچي ايمان يې راوړى دى) يعني دمؤمنانوباورپه الله اورسول الله باندي زيات كړي چي دوى گوري ددوى دپيغمبرويناا هل كتابوتسليم كړي ځكه چي په قرآنكريم كي دهغوى له كتابونوتورات اوانجيل سره سم اخبارراغلي دي ﴿ وَلَا يَرْتَابَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْمُؤْمِنُونَ ﴾(اولپاره ددې) چي شك ونكړي هغه كسان چي دوى ته كتاب وركول شوى اومؤمنان ؛(دغه دپخواني لپاره تاكيددى ځكه كله چي يې يقين ذكركړنوشك يې ځيني نفى كړنودغه قول چي (ولا يرتاب) دى دمبالغې اوتاكيدلپاره راوړل شوى(٣) اودغه ته دبلاغت علماء اطناب وايي ﴿ وَلِيَقُولَ ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ وَٱلْكَٰفِرُونَ مَاذَآ أَرَادَ ٱللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا ﴾ اوچي ووايې هغه كسان چي په زړونوددوى كي ناروغي (د شك اونفاق) ده او(ووايي) كافران (اهل مكه) څه شى اراده كړى دى الله پردغه شمېر(دملائكو) سره له جهته دمثاله؟) يعني داسي عجيب اوغريب قول يې راوړى چي په عجيبه توب سره متل گرزېدلى اوولي موپه هغه باندي دسقرله مالكانوخازنانوڅخه وپروي چي نولس دي؟ ! امام رازي ليكي چي: په ځينواحوالوكي ديقين اثبات دشك له حصول سره منافي نه وي نومقصدله دې وينا اعاده كولو را گرزولوڅخه دادى چي دوى ته داسي جازم يقين ثابت شوچي له وروسته شك ورپسې نه راځي او رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دامعلومه وه چي كله قريشوته دغه دپرښتوشمېر ووايې نودوى به ور باندي ملنډې وهي اوخاندي به ځكه الله تعالى له دې څخه په ښكاره بيان سره توضيح وفرمايله چي دغه شمېرددې لپاره دى(٤) چي: ﴿ لِيَسْتَيْقِنَ ٱلَّذِينَ ﴾ ترپايه ﴿ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ ٱللَّهُ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِى مَن يَشَآءُ ﴾ همداسي (په شان دگمراه كولود منكرانو) گمراه كوي الله هرهغه څوك چي اراده وفرمايي دضلالت يې اوسمه لاره ښيي هرهغه چاته چي اراده وفرمايې (دهدايت يې) يعني لكه چي الله ابوجهل اوملگري يې له هدايت اوايمان راوړلوڅخه گمراه كړي همداسي هغه څوك، چي دگمراه كولويې ورته اراده شي گمراه كوي اوهدايت كوي هغه چاته چي ورته دلارښووني اراده وفرمايي دالله په دغه گمراه كولواوپه هدايت وركولوكي حكمت نغښتى

(١) قرطبي ١٩/ ٧٩
(٢) الطبري ٢٩/ ١٠٧
(٣) التسهيل عن الزمخشري
(٤) كبيرتفسير ٣٠/ ٢٠٢

اوحجت پټ دی ﴿ وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ ﴾ اونه پوهېږي په لښکرو درب ستامګرهمدغه (الله پرې پوهېږي) يعني د پرښتوشمېر ،قوت ، سترخلقت اوکثرت تړول الله ته معلوم دي هغه چي رب العالمين دی په آيت کي په ابوجهل باندي ردراغلی دی چي هغه به ويل چي د محمد پروردګارمرستندويان يوازي نولس دي ؟ ﴿ وَمَا هِيَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْبَشَرِ ﴾ اونه دی دا(سقرکوم چي الله وستايو ) مګرخوذکرپند دی خلګو ته (چي ووېرېږي اودالله اطاعت وکړي) ﴿ كَلَّا وَالْقَمَرِ ﴾ ندی داسي (چي څوک به له سقره انکاري شي) اوقسم دی په سپوږمۍ باندي(کلا ) دزجرکلمه ده اووروستې الله په سپوږمۍ لوړه اخلي چي سقرحق دی معنادا چي دغه استهزاء کونکي په وحی اوقرآن باندي دي له خپلو کړو وړو څخه ووېرېږي ﴿ وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ ﴾ اوپه شپې باندي کله چي شا واړوي (دروميږي ) ﴿ وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ ﴾ اوپه ګهيځ (سحر )باندي کله چي روڼ شي(اوروښنايي يې خپره شي) ﴿ إِنَّهَا لَإِحْدَى الْكُبَرِ ﴾ بېشکه دا(اوردسقر) خامخايوله (بلاګانو ) لويو څخه دی (نوځړنګه وړباندي ملنډي وهي اودروغ يې ګڼي؟ ! ابوحيان ليکي الله په دغوڅېزونوڅخه قسم اخيستی چي دهغوی شرافت وښيي اوپدې تنبيه وفرمايې چي په دغوکي دالله دقدرت عجائبات دي اودوجودقوام هم پردوی راځي نوپردوی يې لوړه واخيسته چي جهنم يوله ستروبلاګانو څخه دی چي مثل يې نشته ([1])اوپه آيت کي دې لوري ته اشاره ده چي لمر سپوږمۍ دالله مخلوق دي اودوی په تګ راتګ اوشپې ورځي پيداکولوکي دالله جل جلاله دفرمان تابع دي دالله جل جلاله دقدرت اوقهرپه وړاندي سرپه سجده اېږدي نوځړنګه بنيادم ته وړ اومناسب دي چي ددوی عبادت وکړي؟! اوددوی دخالق الله جل جلاله څخه منکرشي ؟! بيا الله له جهنم څخه داسي بيان فرمايې ﴿ نَذِيرًا لِلْبَشَرِ ﴾ وېرونکی دی (دغه سقر ) بنيادمانو ته (چي له الله څخه دي ووېرېږي) ﴿ لِمَنْ شَاءَ مِنْكُمْ أَنْ يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ ﴾ هغه چالره چي غواړي له تاسي څني چي وړاندي شي (نېکي جنت ته په ايمان سره ) ياوروستی شي (شرته په کفرسره په البحرالمحيط کي راوړي چي: مرادله وړاندي توب او وروستي والي څخه خيرته وړاندي کېدل اوله هغه څخه وروسته کېدل دي لکه چي الله فرمايې ﴿ فَمَنْ شَاءَ فَلْيُؤْمِنْ وَمَنْ شَاءَ فَلْيَكْفُرْ ﴾([2])ابن عباس رضی الله عنهما وايي: معنادا چي څوک غواړي دالله طاعت وکړي اوچي څوک غواړي له طاعت څخه دي په شا شي معصيت دي وکړي ([3]) ﴿ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ ﴾ هرنفس په سبب دهغه چي کړي يې وي ګرو(بندي) به وي (په سقرکي) يعني هرنفس په خپل عمل باندېګير اودالله په وړاندي ګرو دی ترهغو به خلاص نشي ترڅو چي ګردحقوق اوعقوبات يې اداکړي نه وي ﴿ إِلَّا أَصْحَابَ الْيَمِينِ ﴾ مګرخوخاوندان دښي لاس (مؤمنان چي دوی ځانونه له بنده او عذابه دايمان اوالله دطاعت په وسيله ژغورلي دي ﴿ فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءَلُونَ عَنِ الْمُجْرِمِينَ ﴾

---

([1]) البحرالمحيط ٣٧٨/٨
([2]) البحرالمحيط ٣٧٩/٨
([3]) طبري تفسير ١٠٣/٢٩

وي به په جنتونوكي چي پوښتني به سره كوي يوله بله له حاله دمجرمانو(هغوى چي په اوركي دي اودغه پوښتني به دهغوى د زيات تبكيت اوتوبيخ لپاره كوي ترڅوورباندي نورحسرت اوآرمان هم ورباركړي هغوى ته به داسي وايي: ﴿ مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ ﴾ څه شي داخل كړي ياست تاسي (اى منكرانو ) په دوزخ كي؟ په البحر المحيط كي ليكي: دغه غوښتنه ددوى دتحقيراوتوبيخ لپاره ده كه نه دوى خوښه خبردي چي په څه دغه كسان اورته لوېدلي دي([1]) ﴿ قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ ٱلْمُصَلِّينَ ﴾ وبه وايي مجرمان (په ځواب كي چي) نه وومونږ (په دنياكي) له لمونځ كونكيو(رب العالمين ته)﴿ وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ ٱلْمِسْكِينَ ﴾ اونه وومونږ چي خواړه مو ور كړي واى مسكينانوته ابن كثيرليكي: په دواړوآيتونوكي ددوى مقصددادى چي نه خومودالله عبادت كړى اونه مودهغه له بندګانوسره څه احسان اونېكي كړې ده([2]) ﴿ وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ ٱلْخَآئِضِينَ ﴾ او ووبه مونږ چي ننوتلوشغل به موكاووپه (باطلو )خبروكي سره له ډېروخبروكونكيو ! په التسهيل كي راوړي چي (خوض) په چټياتواونامناسبو زياتوخبروكي ګډېدلوته وايي ([3]) ﴿ وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ ٱلدِّينِ ﴾ او ووبه مونږ(په دنياكي) چي دروغ به موويل په ورځ دجزاء (قيامت) باندي اوداچي دغه تكذيب يې تر ګردوګناهونووروسته راووړترڅوچي دهغه عظمت وښيي چي دغه ترټولوستره اوبده ګناه ده ﴿ حَتَّىٰٓ أَتَىٰنَا ٱلْيَقِينُ ﴾ (ترڅوچي راغى مونږته هغه يقيني خبره (مرګ ) يعني مونږتر هغوپه دې ګمراهي كي وو ترڅومرګ راغى الله جل جلاله ددوى ددغه اعتراف څخه وروسته فرمايي ﴿ فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَٰعَةُ ٱلشَّٰفِعِينَ ﴾

پس ګټه به ونه رسوي دوى ته شفاعت دشفاعت كونكيو؟ (چي دالله له عذابه يې خلاص وژغوري كه د ګردي ځمكي دسرخلګ يې سپارښتنه وكړي هم وبه نه منل شي ځكه شفاعت اوسپارښتنه هغه وخت د بري پړاوته رسېږي چي (مشفوع له ) دسپارښت وړاوقابل وي اوڅوك چي كافرتردنياتېرشي هغه به تل ترتله په دوزخ كي وي([4]) كله چي الله ددوى ناوړه خويونه اوبدافعال ذكركړل نوبيايې دهغوى توبيخ او ټكونه داسي وفرمايله : ﴿ فَمَا لَهُمْ عَنِ ٱلتَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ ﴾ (پس څه شوي دي پردوى باندي چي له پنده (قرآنه) مخ ګرزونكي دي؟) يعني دغومشركانوته څه ورپېښه ده چي دقرآنكريم له آيتونوچي پكي بليغ نصيحتونه، وعظونه او ارشادات موجوددي مخ اړونكي دي ؟ ﴿ كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنفِرَةٌ ﴾ ګواكي دوى (صحرائي خره ) ګوره خره دي تښتېدونكي ﴿ فَرَّتْ مِن قَسْوَرَةٍ ﴾ چي تښتي له زمري څخه (له ډېري وېري. په البحركي راوړي چي ددوى تشبيه يې له دغوخروسره ددوى دسپكاوي لپاره كړي ده([5]) اوابن عباس

---

([1]) البحر ۸/ ۳۸۰

([2]) مختصرابن كثير ۳ / ۵۷۳

([3]) التسهيل ۴/ ۱۲۲

([4]) مختصرابن كثير ۳ / ۵۷۳

([5]) البحرالمحيط ۸ / ۳۸۰

رضی الله عنهماوایي چي: ګوراخره کله چي زمري ووینی ځغلی همداسي دغه مشرکان کله چي رسول الله صلی الله علیه وسلم ووینی ډاسي ځني تښتي لکه هغه خرونه له زمري تښتي او(قسورة) زمري ته وايي (١)﴿ بَلْ يُرِيدُ كُلُّ ٱمْرِئٍ مِّنْهُمْ أَن يُؤْتَىٰ صُحُفًا مُّنَشَّرَةً ﴾(بلکه غواړي هریو سړی له دوی نه داچي ورکړی شي ده ته پاڼي خپرې شوي)یعني دوی مجرمین هریوغواړي چي دغسي کتاب وحی لکه چي په پیغمبرانونازل شوي ورکول شي اوداسي غوښتنه کوي چي دغسي وحی لکه چي په پیغمبرانو نازلېدله پردوی هم نازله شي، مقصدله آیت څخه داچي دوی په ګمراهي کي دومره ژورتللي اولکه چي وایي پرېږده داچي دوی څومره نااهله دي چي لکه حیوانات غوندي له پنده تښتي بلکه هغه څه ته غوږ کېږده کوم چي ډېرعجیب اوغریب دی هغه داچي دوی هریو غواړي چي پیغمبروي او وحی دي ورته را نازلېږي لکن چېرته هم بدمرغه کسان دانبیاووځای ته رسېدلای نشي ؟ بیاالله تعالی فرمايي ﴿ كَلَّا ۖ بَل لَّا يَخَافُونَ ٱلْءَاخِرَةَ ﴾ داسي نه ده (دوی دي دغه طمع نکوي له دي غوښتني دي لاس واخلي) بلکه نه وېرېږي دوی له(عذابه د )آخرته(په بعث اوحساب باورنلري اونه هم په عذاب اونعمتونوايمان لري همدالامل دی چي دقرآنکریم له پندونوڅخه مخ اړوي ﴿ كَلَّآ إِنَّهُۥ تَذْكِرَةٌ ﴾نه دی داسي چي دوی وايي (قرآن ته چي سحراوکهانت دی) ببشکه دا(قرآن) پند دی (چي که دوی نېکمرغي غواړي همدغه قرآن يې کافي دی) ﴿ فَمَن شَآءَ ذَكَرَهُۥ ﴾ پس هرهغه څوک چي غواړي پنددي واخلي له دغه (قرآنه ) نفع دي ترې یوسي) ﴿ وَمَا يَذْكُرُونَ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ ﴾ اونه اخلي پند(له قرآنه) دوی مګرکه اراده وفرمايي الله (دوی ته دهدایت نوبه پندواخلي پدې درسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره ډاډینه اودزړه خوښي ده چي هغه به ددوی په تکذیب اوایمان نه ر اوړلوخواشینی کېدو ﴿ هُوَ أَهْلُ ٱلتَّقْوَىٰ ﴾ همغه الله دی وړ لائق دوېري (چي ترې ووېرېږوعذاب يې )سخت دی اوأهل دبښني (چي ببښنه ترې وغواړوچي رحمت او کرم يې پراخ دی) آلوسي لیکي : معناداچي الله ددې اهل دی چي له عذابه يې ووېرېږی اواطاعت يې و کړی شي اوددې أهل دی چي هغه چاته چي وربانديي ایمان راوړي اواطاعت يې وکړي ببښنه وکړي (٢). په حدیث شریف کي له حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت راغلی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه آیت تلاوت کړچي ﴿ وَأَهْلُ ٱلْمَغْفِرَةِ ﴾اوبیايي وفرمایل (قال ربكم أنا أهل أن أتقى ، فمن اتقاني فلم يجعل معى الهاًفانا أهل أن أغفرله) (٣) ستاسو پروردګارفرمایلي زه ددې وړ لائق یم چي رانه و وېرېږی څوک چي له ماسره بل معبودونه نیسي نوزه ددې وړ لائق یم چي ويې ببښم.

بلاغت:

پدغه مبارک سورت کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډ يزيې دادی:

---

(١) کبیرتفسیر٣٠ /٣١٢

(٢) روح المعاني ٢٩ /١٣٥

(٣) رواه احمدوالترمذي وحسنه

Bawar.net



١-دطباق صنعت چي د ﴿ عَسِيرٌ...يَسِيرٍ ﴾ ترمينځ راغلی اوهمداسي ددوی دواړوترمينځ اشتقاقي جناس هم شته.

٢-دمقابلې صنعت چي د ﴿ وَالَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ ﴾ او ﴿ وَالصُّبْحِ إِذَآ أَسْفَرَ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

٣-داطناب صنعت چي دجملې په تکرارسره ترسره شوی دی چي فرمايي ﴿ فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴾ ترڅوچي دده زيات توبيخ وکړي اوناولتيايې وستايي.

٤-اشتقاقي جناس چي پدې کلام کي شته ﴿ فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ ﴾.

٥ دمفعول رومبی راوړل چي اختصاص افاده کړي لکه چي پدې آيت شريف کي راغلی ﴿ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ، وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ، وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ ﴾.

٦-دطباق صنعت چي فرمايي ﴿ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِي مَن يَشَآءُ ﴾ اوهمداسي د ﴿ يَتَقَدَّمَ ﴾ او د ﴿ يَتَأَخَّرَ ﴾ ترمينځ هم طباق شته

٧-داستفهام په بڼه دتوبيخ اوتکولو اسلوب لکه چي پدې کلام کي راغلی: ﴿ فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ ﴾ ؟

٨-تمثيلي تشبيه دالله تعالی په دې کلام کي ﴿ كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنفِرَةٌ، فَرَّتْ مِن قَسْوَرَةٍ ﴾ څکه چي دشبه وجه له متعدد څخه اخيستل شوي اوپداسي وخت دغي تشبيه ته تمثيلي تشبيه وايي.

٩-ايجازبالحذف چي پدې آيت شريف کي راغلی فرمايي ﴿ يَتَسَآءَلُونَ، عَنِ الْمُجْرِمِينَ، مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ ﴾ ؟! يعني ورته وايي څه شي داخل کړي ياست په دوزخ کي اودغه کلماتي حذف شوي څکه چي د مخاطبينو په فهم اعتماد شوی دی

١٠-استفهام چي تهويل اوتوبيخ پکي نغښتی وي لکه داچي ﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا سَقَرُ ﴾ ؟!

١١-ذکرخاص وروسته له عام څخه هلته چي فرمايي ﴿ وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ ﴾ دغه بې په خانګړي توګه بيايادکړي که څه هم چي په ﴿ وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ الْخَآئِضِينَ ﴾ کي داخل وودې لپاره چي ددغي ګناه لويوالی وښيي.

١٢-مرصع سجع لکه ﴿ كَلَّا وَالْقَمَرِ، وَالَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ، وَالصُّبْحِ إِذَآ أَسْفَرَ، إِنَّهَا لَإِحْدَى الْكُبَرِ ﴾ اوهمداسي ﴿ وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ الْخَآئِضِينَ، وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ، حَتَّىٰٓ أَتَىٰنَا الْيَقِينُ ﴾ ترپايه پوري.

دالله جل جلاله په مرسته دالمدثرسورت دتفسيرژباړه بشپړه شوه.

# سورة القيامة مكية وآياتها أربعون

## دقيامت سورت مكي دي او څلويښت آيتونه لري

### دسورت په وړاندي:

دالقيامة سورت مكي دى اودبعث اونشورموضوع هغه چي دايمان له رکنونوڅخه يورکن دى رااخلي اوپه ځانګړي توګه دقيامت په هکله اودهغوکړاوونوپه باب چي انسان ته دځنکندن په وخت کي رسېږي اويا کافرته په آخرت کي پېښېږي غږېږي.

دسورت پيل په قيامت اوملامت کونکي نفس باندي په قسم خوړلوسره شوی دی چي بعث اوجزاء حق دي هيڅ شک اوشبهه پکي نشته فرمايي ﴿لَآ أُقۡسِمُ بِيَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ ۞ وَلَآ أُقۡسِمُ بِٱلنَّفۡسِ ٱللَّوَّامَةِ ۞ أَيَحۡسَبُ ٱلۡإِنسَٰنُ أَلَّن نَّجۡمَعَ عِظَامَهُۥ ۞ بَلَىٰ قَٰدِرِينَ عَلَىٰٓ أَن نُّسَوِّيَ بَنَانَهُۥ﴾.

وروسته دغي هيبتناکي ورځي ځيني نښي نښانې راوړي چي دسپوږمۍ رڼابه ولاړه شي سترګي به حيراني لالهاندي شي لمراوسپوږمۍ به يوځای کړی شي انسان به هلته وايي چي دتښتي ځای چېرته دی ؟﴿فَإِذَا بَرِقَ ٱلۡبَصَرُ ۞ وَخَسَفَ ٱلۡقَمَرُ ۞ وَجُمِعَ ٱلشَّمۡسُ وَٱلۡقَمَرُ ۞ يَقُولُ ٱلۡإِنسَٰنُ يَوۡمَئِذٍ أَيۡنَ ٱلۡمَفَرُّ ۞ كَلَّا لَا وَزَرَ ۞ إِلَىٰ رَبِّكَ يَوۡمَئِذٍ ٱلۡمُسۡتَقَرُّ﴾.

بيا سورت درسول الله صلی الله عليه وسلم هغه دقرآن دتلاوت په وخت کي اهتمام بيانوي چي کله به حضرت جبريل عليه السلام ورته لوستل اوعليه السلام به دهغه دپيروي لپاره تلواره کوله ترڅو چي حفظ يې کړي نو الله ورته حکم کوي چي دقرآن تلاوت ته دي غوږ ونيسي اوژبه دي وړباندي نه خوځوي ﴿لَا تُحَرِّكۡ بِهِۦ لِسَانَكَ لِتَعۡجَلَ بِهِۦٓ ۞ إِنَّ عَلَيۡنَا جَمۡعَهُۥ وَقُرۡءَانَهُۥ ۞ فَإِذَا قَرَأۡنَٰهُ فَٱتَّبِعۡ قُرۡءَانَهُۥ ۞ ثُمَّ إِنَّ عَلَيۡنَا بَيَانَهُۥ﴾.

سورت په آخرت کي دخلګو دوه ډلي بښيي چي يوه يې دنېکانوډله اوبله دبدانو ، دنېکانوبه مخونه له ځلابرېښني خپل پروردګارجل وعلاته به ګوري اودبدمرغانواشقياووبه مخونه تک تور اسکېرلي وي خواري سپکتيا به وړباندي خپره وي ﴿وُجُوهٞ يَوۡمَئِذٖ نَّاضِرَةٌ ۞ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٞ ۞ وَوُجُوهٞ يَوۡمَئِذِۭ بَاسِرَةٞ ۞ تَظُنُّ أَن يُفۡعَلَ بِهَا فَاقِرَةٞ﴾.

له دې وروسته دسړي دځنکندن شېبې انځوروي کله چي داسي سختي اوتکاليف وړباندي را تاو وي چي ده به يې ګمان هم نه کاوو ﴿كَلَّآ إِذَا بَلَغَتِ ٱلتَّرَاقِيَ ۞ وَقِيلَ مَنۡۜ رَاقٖ ۞ وَظَنَّ أَنَّهُ ٱلۡفِرَاقُ ۞ وَٱلۡتَفَّتِ ٱلسَّاقُ بِٱلسَّاقِ ۞ إِلَىٰ رَبِّكَ يَوۡمَئِذٍ ٱلۡمَسَاقُ ۞ فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ ۞ وَلَٰكِن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ۞ ثُمَّ ذَهَبَ إِلَىٰٓ أَهۡلِهِۦ يَتَمَطَّىٰٓ﴾ د آيتونو ترپايه

دسورت پای دحشراومعاد په عقلي دلائلو کوي فرمايي: ﴿ أَيَحْسَبُ ٱلْإِنسَٰنُ أَن يُتْرَكَ سُدًى ﴿٣٦﴾ أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً
مِّن مَّنِيٍّ يُمْنَىٰ ﴿٣٧﴾ ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوَّىٰ ﴿٣٨﴾ فَجَعَلَ مِنْهُ ٱلزَّوْجَيْنِ ٱلذَّكَرَ وَٱلْأُنثَىٰ ﴿٣٩﴾ أَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِقَٰدِرٍ عَلَىٰٓ أَن يُحْـِۧىَ ٱلْمَوْتَىٰ ﴾

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ لَآ أُقْسِمُ بِيَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴿١﴾ وَلَآ أُقْسِمُ بِٱلنَّفْسِ ٱللَّوَّامَةِ ﴿٢﴾ أَيَحْسَبُ ٱلْإِنسَٰنُ أَلَّن نَّجْمَعَ عِظَامَهُۥ ﴿٣﴾ بَلَىٰ قَٰدِرِينَ عَلَىٰٓ أَن
نُّسَوِّىَ بَنَانَهُۥ ﴿٤﴾ بَلْ يُرِيدُ ٱلْإِنسَٰنُ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُۥ ﴿٥﴾ يَسْـَٔلُ أَيَّانَ يَوْمُ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴿٦﴾ فَإِذَا بَرِقَ ٱلْبَصَرُ ﴿٧﴾ وَخَسَفَ ٱلْقَمَرُ ﴿٨﴾ وَجُمِعَ ٱلشَّمْسُ
وَٱلْقَمَرُ ﴿٩﴾ يَقُولُ ٱلْإِنسَٰنُ يَوْمَئِذٍ أَيْنَ ٱلْمَفَرُّ ﴿١٠﴾ كَلَّا لَا وَزَرَ ﴿١١﴾ إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ ٱلْمُسْتَقَرُّ ﴿١٢﴾ يُنَبَّؤُا۟ ٱلْإِنسَٰنُ يَوْمَئِذٍۭ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ ﴿١٣﴾
بَلِ ٱلْإِنسَٰنُ عَلَىٰ نَفْسِهِۦ بَصِيرَةٌ ﴿١٤﴾ وَلَوْ أَلْقَىٰ مَعَاذِيرَهُۥ ﴿١٥﴾ لَا تُحَرِّكْ بِهِۦ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِۦٓ ﴿١٦﴾ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُۥ وَقُرْءَانَهُۥ ﴿١٧﴾ فَإِذَا
قَرَأْنَٰهُ فَٱتَّبِعْ قُرْءَانَهُۥ ﴿١٨﴾ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُۥ ﴿١٩﴾ كَلَّا بَلْ تُحِبُّونَ ٱلْعَاجِلَةَ ﴿٢٠﴾ وَتَذَرُونَ ٱلْءَاخِرَةَ ﴿٢١﴾ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ﴿٢٢﴾ إِلَىٰ رَبِّهَا
نَاظِرَةٌ ﴿٢٣﴾ وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍۭ بَاسِرَةٌ ﴿٢٤﴾ تَظُنُّ أَن يُفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ ﴿٢٥﴾ كَلَّآ إِذَا بَلَغَتِ ٱلتَّرَاقِىَ ﴿٢٦﴾ وَقِيلَ مَنْ ۜ رَاقٍ ﴿٢٧﴾ وَظَنَّ أَنَّهُ ٱلْفِرَاقُ ﴿٢٨﴾
وَٱلْتَفَّتِ ٱلسَّاقُ بِٱلسَّاقِ ﴿٢٩﴾ إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ ٱلْمَسَاقُ ﴿٣٠﴾ فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ ﴿٣١﴾ وَلَٰكِن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴿٣٢﴾ ثُمَّ ذَهَبَ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ
يَتَمَطَّىٰٓ ﴿٣٣﴾ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ﴿٣٤﴾ ثُمَّ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰٓ ﴿٣٥﴾ أَيَحْسَبُ ٱلْإِنسَٰنُ أَن يُتْرَكَ سُدًى ﴿٣٦﴾ أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّن مَّنِىٍّ يُمْنَىٰ ﴿٣٧﴾ ثُمَّ كَانَ
عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوَّىٰ ﴿٣٨﴾ فَجَعَلَ مِنْهُ ٱلزَّوْجَيْنِ ٱلذَّكَرَ وَٱلْأُنثَىٰٓ ﴿٣٩﴾ أَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِقَٰدِرٍ عَلَىٰٓ أَن يُحْـِۧىَ ٱلْمَوْتَىٰ ﴿٤٠﴾ ﴾ القيامة: ١ - ٤٠

لغتونه:

(بنانه) دګوتو سرونه یا ګوتي (برق) حیران، وېرېدلی او اصل یې د برېښنا کتلو ته وایي هغه چي سترګي حیرانوي. (وزر) پناهګاه (ناضرة) ښایسته تازه ځلېدونکي (باسرة) تریو بد څېره (فاقرة) لویه بلاچي د شاد ملاهډوکي به یې ماتوي (یتمطی) په نازاو نخرو د رومي.

تفسیر:

﴿ لَآ أُقْسِمُ بِيَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ قسم خورم زه په ورځي د قیامت باندي (چي ورځ د حساب او جزاء ده) ﴿ وَلَآ أُقْسِمُ بِٱلنَّفْسِ ٱللَّوَّامَةِ ﴾ او قسم خورم زه په نفس ملامت کونکي (هغه چي خپل خاوند ملامت کوي او دغه د مؤمن متقي نفس دی چي خپل څښتن د طاعاتو په ترک او یا د ګناهونو په ارتکاب ملامت کوي مفسرین کرام لیکي چي (لا) د قسم د تاکید لپاره راغلي او د عربو په کلام کي دغه ډېره لیدله کېږي چي تر قسم له مخه یې راوړي چي د کلام تاکید شي لکه چي له وضاحت څخه قسم ته ښېخي ارتیا نلري او د قسم ځواب محذوف چي تقدیر یې داسي دی تاسو به خامخا را پاڅول شي او پردې باندي راټلونکی کلام دلالت کوي

چي ﴿ أَيَحْسَبُ ٱلْإِنسَٰنُ أَلَّن نَّجْمَعَ عِظَامَهُۥ ﴾(١) آيا گمان کوي(کافر)انسان چي موږبه نه ټولووهډوکي (خواره واره) دده، الله جل جلاله دقيامت په ورځي له جهته دسترتوب اوهيبته قسم اخيستی اوپه هغه نفس يې لوړه کړي کوم چي خپل خاوند دالله په وړاندي په تقصيرکولوباندي ملامت کوي اواستغفار وايې سره له طاعت اونېکيوبياهم الله ته رجوع کوي حسن بصري رحمه الله وايې چي دغه دمؤمن نفس دی ځکه چي مؤمن هروخت خپل ځان ملامت ګڼي وايې زما په دې دنياکي څه مقصد وو؟ له دې کاره مي څه اراده وه؟

هغه کافردی چي يووخت هم ځان ملامت نه ګڼي اونه يې ترټي (٢)﴿ أَيَحْسَبُ ٱلْإِنسَٰنُ ﴾ پدې کلام کي استفهام دتوبيخ اوټکولو(تقريع ) لپاره دي مفسرين کرام ليکي چي دغه آيت شريف د(عدي بن ربيعة) په شان کي راغلی هغه چي رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغی اوورته ويل يې ای محمده ماته دقيامت حال راکړه څه وخت به قيامت وي ؟ اوڅه به پکي پېښېږي ؟ نورسول الله صلی الله عليه وسلم ورته بيان وفرمايو اوهغه وويل: که دغه ورځ ووينم هم به ستاتصديق ونکړم اونه به درباندي ايمان راوړم

څرنګه به الله هډوکي راټولوي؟ نوبيادغه آيت نازل شو(٣)اوالله دنوموړي په ترديد کي وفرمايل: ﴿ بَلَىٰ قَٰدِرِينَ عَلَىٰٓ أَن نُّسَوِّيَ بَنَانَهُۥ ﴾ هو!(بلکه جمع به يې کړو) حال داچي قادريو موږپدې باندي چي برابرکړوهډوکي اوبندونه دګوتودده (هغه چي ترټولوواړه اونرم باريک دي نوغټ هډوکي به څرنګه ونکړای شوچي راټول کړو؟ اوداچي الله تعالی (بنان) دګوتوسرونه يادکړل ځکه چي دهغوی جوړښت يوعجيب اوغريب داستان دی هغه نرئ کرښي اولوړي ژوري چي دي وانسان دګوتوپه سرونوکي دي له نوروکرښواوليکوسره ښخي ورته والی نلري چي دبل انسان په ګوتوکي وي ځکه نوپه اوسنۍ زمانه کي

ديوچاد پېژندګلوي لپاره دهغه دګوتوله نښانونوڅخه استفاده کېږي (٤)﴿ بَلْ يُرِيدُ ٱلْإِنسَٰنُ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُۥ ﴾ (بلکه اراده لري(کافر) انسان چي دروغ ووايې (په هغه څېزباندي چي) په مخ دده کي دي) يعني کافرانسان په دغه انکارباندي غواړي چي خپل فسق اوفجورهمداسي جاري وساتي پخپلو شهواتواوګناهونوکي ډوب وي چي اخلاق اودين يې مخنيوی ونکړي اولکه څاروی ځلوربول پرته له حيواني خواهشاتوورسره بل غم اوفکرنه وي ځکه نوله قيامته انکارکوي چي عيش يې منغص اوتريخ نکړي اوپه لذت کي يې څه خلل پېښ نه شي ﴿ يَسْـَٔلُ أَيَّانَ يَوْمُ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾(پوښتنه کوي کله به وي قيامت؟)

---

(١) التسهيل٤ /١٧٣-الوسي ٢٩ /١٣٥ دصاوي حاشيه ٤ /٢٧٠ په دې هکله کتلای شی.
(٢)خازن٤/١٨٢
(٢)کبير تفسير ٣٠-٢١٧
(٣) په علمي توګه داثابته شوي چي دګوتوپه پټوکي په خوراباريکواونريو کرښوسره انځورشوي چي څيني يې لکه ليندۍ اوځيني يې حلزوني اوکړې وړې ليکي وي دغه ديوانسان له بل انسان سره هيڅکله هم يوډول نه وي ځکه نودانسانانوپه پېژندلوکي په رسمي توګه دامنل شوي چي دېتوګوتوپه نښانونودي انسانان يوله بل څخه توپيراوو پېژندل شي فتبارک الله احسن الخالقين هغه څه وګوره کوم چي موږپخپل کتاب ( التبيان في علوم القرآن) کي ليکلي دي چي دغه علمي معجزه څومره حيرانونکي ده مخ ١٣٢

يعني دغه كافرفاجرانسان داسي پوښتنه داستهزآء ملنډواوتكذيب په توګه كوي چي هغه ستاسوقيامت به كله وي؟ امام رازي وايې دغه پوښتنه به دتكبراوبې حيايي له مخي كوي اودوى دقيامت راتلل مستبعد ګڼي مثال يې لكه داچي ﴿ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ ﴾ ځكه نوله معادڅخه انكار كوي اوبعث اونشورنه مني مقصدله آيت شريف څخه پدې آيت كي چي ﴿ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ ﴾ دى دادى چي دانسان په خټه كي داشته چي تل ترتله يې شهوات اوملذات په برخه وي ځكه نوپه حشراونشرباندي اقرارنه كوي چي دغه جسماني خوندونه وربانډي تريخ نشي نوتل له دغه قيامته انكاركوي اودملنډو په توګه وايي ﴿ أَيَّانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ ﴾(۱) الله تعالى ددوى په ردكي داسي فرمايي ﴿ فَإِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ وَخَسَفَ الْقَمَرُ وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ﴾ كله چي خړي متحيري شي سترګي( له هيبته ) اوتوره شي سپوږمی (رڼايې لاړه شي) او جمع شي لمراوسپوږمی (په قيامت كي اوپه اوركي وغورځول شي ترڅوپه كفاروباندي يوعذاب شي)عطاء ليكي چي لمراوسپوږمی به دقيامت په ورځ سره جمع شي اوپه بحركي به وغورځول شي او د الله ستراوربه ترې جوړشي (۱) ﴿ يَقُولُ الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ أَيْنَ الْمَفَرُّ ﴾ وبه وايي (كافر) انسان په دغي ورځي كي چېرته ځاى دتېښتي شته ؟ (له دغي وراني پېښي څخه چېرته لاړشودغه دناهيلي اوناأميدي په توګه وايې ځكه وبه پوهېږي چي دخلاصون ځاى هډو نشته ﴿ كَلَّا لَا وَزَرَ ﴾ نه دي مناسب طلب دتېښتي نشته ځاى دپناه (له عذابه دالله څخه) ﴿ إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمُسْتَقَرُّ ﴾ خاص(مېشت د )رب ستاته په دغي ورځي كي ځاى دقراردخلكو دى . الوسي ليكي يوازي الله ته دبندګانو دپناه وروړلوځاى دى له هغه پرته بل چېرته دخلاصون اوپناه ځاى نشته (۲) له آيت شريف څخه مقصد دآخرت اوقيامت دورځي كړاوونه اوربړونه دي چي سترګي به خړي شي حيراني لالهاندي اوذليلي به وګرزي اوله داسي سختيولويوهېبنونكو، حيرانونكوپېښوڅخه چي انسان يې دقيامت په ورځ ويني عقل اوحواس به يې له سره ووزي اود تېښتي دځاى په لټه كي به شي ليكن افسوس چي ژوندنورپاى ته رسېدلى اوقيامت رارسېدلى دى ﴿ يُنَبَّأُ الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ ﴾ (خبربه كړى شي انسان په دغي ورځي (دقيامت ) كي په هغو(اعمالو ) چي مخ كي يې لېږلي دي اوپه هغوچي وروسته يې پرې ايښي دي ) يعني انسان به په دغه ورځ په ګردوخپلو عملونو كه غټ وي اوكه واړه عظيم وي اوكه حقير نيک وي اوكه بدكه په ژوندانه كي يې تر سره كړي اويا له مرګه وروسته يې پرې ايښي چي ښه نوم اوسمعت دى اوكه بدنوم اوسمعت پدې ګردو به خبركړى شي. په حديث شريف كي راځي ( من سن سنة حسنة فله أجرها وأجر من عمل بها الى يوم القيامة من غير أن ينقص من أجورهم شئ ومن سن سنة سيئة فله وزرها ووزر من عمل بها الى يوم القيامة من غير أن ينقص من أوزارهم شئ )يعني څوک چي كوم ه نيكه لاره اوطريقه جوړه كړي نو هغه ته او هغه چاته چي ورباندي عمل

---

(۱) دطبري تفسير ۲۹ /۱۱۳ اوله مجاهد څخه روايت شوى چي مراديې تكويردى لكه دالله جل جلاله داوينا چي (اذاالشمس كورت) چاپياويلي چي مقصد هغه اجتماع ده چي له مغربه راوخېژي اودغه مناسب نه دي ځكه چي كلام دقيامت په هكله دى.
(۲) روح المعاني ۲۹ /۱۴۰

کوي ترقیامته پوري ثواب رسېږي بې له دې چي دعمل کونکوله ثواب څخه څه کم شي اوڅوک چي ناکاره اوبده لاره طریقه جوړه کړي هغه ته اوهغه چاته چي وروباندي عمل کوي ترقیامته پوري بې سزاوبال ورکول کېږي پرته له دې چي دعمل کونکوله سزاڅخه یوڅه کم کړی شي(۱) ﴿ بَلِ ٱلْإِنسَٰنُ عَلَىٰ نَفْسِهِۦ بَصِيرَةٌ ﴾ بلکه انسان په ځان ځپل باندي حجت لیدونکی شاهد دی (چي بل ګواه اوشاهد ته اړتیا نلري لکه چي الله فرمايي ﴿ كَفَىٰ بِنَفْسِكَ ٱلْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيبًا ﴾ (الاسراء: ۱۴) او(ها) په بصیرة کلمه کي دمبالغې لپاره راغلی لکه چي په (راویة) او(علامة) کلماتوکي راځي ابن عباس ﷺ وايې چي: انسان پخپل ځان یوازنی شاهددی چي خپل غوړونه، سترګي، پښې اونورغړي بې وروباندي ګواهي اداکوي(۲) ﴿ وَلَوْ أَلْقَىٰ مَعَاذِيرَهُۥ ﴾ که څه هم وړاندي کړي عذرونه خپل (وبه نه منل شي) یعني که ټول عذرونه راټول کړي ترڅوخپل ګناهونه وروباندي معاف کړي ورته به ګټه ونه رسوي ځکه چي پرده باندي خپل ځان شاهد اووروباندي ښکاره حجت دی امام فخر رازي لیکي: معنادا چي که انسان څه هم معذرت وړاندي کړي اوله خپلي ګناه اوتجاوزڅخه دفاع وکړي اوټول عذرونه راجمع هم کړي خودابه ورته ګټه ونه رسوي ځکه چي دی پخپله پخپل ځان شاهددی چي دومره اودادول ګناهونه بې کړي دي (۳) اوله دې وروسته بیادقرآن په لوربیان راګرزي دجبریل علیه السلام په وسیله رسول الله ﷺته دوحی دراتلوبیان اوځرنګوالي ښیي رسول الله ته داسي خطاب فرمايي ﴿ لَا تُحَرِّكْ بِهِۦ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِۦٓ ﴾ مه خوځوه په دې (قرآن) سره(ای محمده پخواله لوستلودجبریل علیه السلام پرتا باندي (وحی) ژبه خپله چي تعجیل به کوي په دې (قرائت سره له دې وېري چي درڅه هېربه شي) ﴿ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُۥ وَقُرْءَانَهُۥ ﴾ بېشکه پرموږباندي دي جمع کول بې (په سینه ستاکي) اولوستل بې (په ژبه ستا ای محمده ځوچي حفظ بې کړې) ﴿ فَإِذَا قَرَأْنَٰهُ فَٱتَّبِعْ قُرْءَانَهُۥ ﴾ (بیاموکله چي ولوست داقرآن (په ژبه د پرښتې) نو متابعت کوه ته دلوستلودده) یعني کله چي بې جبریل علیه السلام درته لولي ورته غوږ نیسه ترڅوچي هغه بې بشپړکړي اودهغه دلوستلوپه وخت کي ورباندي ژبه مه خوځوه ﴿ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُۥ ﴾ بیا بېشکه په موږباندي دی ښکاره بیانول دهغه (په اعتباردفهم سره چي معاني او احکام بې زده کړي ، ابن عباس رضی الله عنه وايې چي رسول الله به دقرآنکریم دنزول په وخت پرځان کړاو تېراوو ژبه اوشونډان به بې وروباندي ښورول چي ژرترژره بې یادکړي اوترې هېرنشي نوالله جل جلاله داآیت نازل کړ ﴿ لَا تُحَرِّكْ بِهِۦ لِسَانَكَ... ﴾ دآیت ترپایه نوبیاوروسته کله چي به حضرت جبریل علیه السلام ورته راغی اووحی به بې ور اوروله نوبه رسول الله صلی الله علیه وسلم لکه ځنګه چي الله ورته حکم کړی په غوږ اورېدواوچي حضرت جبریل به ستون شونوبه بې هغسي

(۱) الصحاح الستة.

(۲) الطبري ۲۹-۱۱۵ (۳) کبیرتفسیر ۳ /۲۲۲

لوستل لكه چي الله ورسره وعده فرمايلي وه . ابن عباس ﷺ وايي چي ﴿ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُۥ وَقُرْءَانَهُۥ ﴾ معناداچي وايې وره اوغوږورته كېږده ﴿ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُۥ ﴾ معناداچي ستاپرژبه به يې بيان كړو(۱) اوابن كثيرليكي چي: رسول الله به دقرآن زده كولو يادولوته تلواره كوله اوترپرېښتې به په قرآئت لوستلو كي رومبي وو الله ورته حكم وكړچي غوږورته كېږدي اوددې تكفل يې الله وكړچي په سينه كي به يې جمع اوده ته به يې واضح اوبيان كړي نولوړمړي حالت په سينه كي جمع كېدل اودوهم يې تلاوت اودريم يې تفسيراودمعناوضاحت دى بيادقيامت د ورځي دمكذبينوبيان ته راګرزي اودمكې كفارو ته خطاب كوي فرمايي ﴿ كَلَّا بَلْ تُحِبُّونَ ٱلْعَاجِلَةَ وَتَذَرُونَ ٱلْءَاخِرَةَ ﴾ ندى داسي لكه چي انكاركوى(له بعث اوحساب څخه) تاسي (اى مشركانو ) بلكه خوښوى تاسي ژر (فاني كېدونكي دنيا ) اوپرېږدئ تاسي آخرت (چي باقي اوتل ترتله دي نوځكه دآخرت لپاره صالح عمل نه كوي كوم چي غوره اوتلپاتي وي ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ﴾ مخونه (دمؤمنانوبه ) په دغي ورځي (د قيامت) كي ښايسته تازه روښانه وي كله چي الله ددې بيان وكړچي خلګ دفاني دنيا لذائذ او ژوند ترتلپاتي آخرت اولذائذويې غوره ګڼي نوددې وېش يې وښودچي ځيني خلګ به ابرار او ځيني به فجاروي دابرارومخونه به دنعمت اوسوكالي له امله ښايسته تراوتازه وي څكه چي خوښي او نعمتونو به پكي اغېزكړې وي لكه چي الله تعالى فرمايي ﴿ تَعْرِفُ فِى وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ ٱلنَّعِيمِ ﴾ (المطففين:۲۴) ﴿ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴾ (كتونكي به وي خاص ذات درب خپل ته ) يعني الله جل جلاله ته به ګوري اوپه جمال كي به يې يو مخ سترګي ښي كړي وي چي دغه ديدار دجنتيانولپاره ترګردونعمتونوافضل اوغوره وي حسن بصري وايي: اوور سره ښايي چي مخونه دي تراوتازه وي څكه چي خپل مولى ﷻ ته ګوري چي هيڅ حجاب ترمينځ نشته دى(۲)اوپدې هكله صحيح احاديث هم واردشوي دي(۳) ﴿ وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍۭ بَاسِرَةٌ ﴾ اومخونه (دكفارو ) به په دغي ورځي (دقيامت) كي تريوبدڅېره وي(چي دوى اهل ددوزخ دي) ﴿ تَظُنُّ أَن يُفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ ﴾ يقين به كاووشي چي واقع كېږي په دغو(مخونو ) باندي دوى ته بلالويه چي ماتوونكي وي هډوكودشالره. ابن كثيرليكي چي: دغه دكفاروفجارومخونه دي چي تريوبدشكله به وي چي يقين به پرې كېږي چي دغه هلاكېدونكي دي(۴) اوددې هيله به كېږي چي داسي بلابه وربادي راپرېوزي چي دملاهډوكي يې ورمات كړي ﴿ كَلَّآ إِذَا بَلَغَتِ ٱلتَّرَاقِىَ ﴾ (نه ده داسي(چي

(۱) دغه روايت له ابن عباس څخه په صحيحينو كي منقول دى
(۲) الطبري ۲۹/ ۱۲۰
(۳) دغه داهل سنت والجماعت مذهب دى اوهغه څه چي صحيحينو كي راغلي ددې تائيد كوي چي فرمايي ژردى چي تاسو به خپل پر وردګار داسي ښكاره ووينى لكه چي دغه سپوږمى وينى ... دحديث ترپايه په مسلم شريف كي راغلي چي حجاب به پورته شي او دوى ته به تردغه ديدارغوره هيڅ كوم بل نعمت نه وي وركول شوى اومعتزله دالله له ديداره څخه په قيامت كي منكردي اود(ناظرة) معنايي په منتظرة سره كړي ده چي دالله له لوري ثواب ته به سترګي په لاروي اودغه باطل دى څكه چي نظرچي دانتظارپه معناوي په حرف جرسره نه متعدي كېږي. دغه تفصيل په خازن كي وګوره چي كافي دلائل يې راوړي دي
(۴) دابن كثيرمختصر ۳/ ۵۷۸

دنيا په آخرت خوښوی) کله چې ورسېږي (سا) هډوکي ستوني ته) يعني ای مشرکانو داچې فاني په باقي باندي غوره گڼئ له دي څخه تېرشئ او دهغه څه په هکله چې ستاسو په وړاندي راتلونکي دي سوچ وکړئ خامخا به تاسو دځنکندن سختي وگالی کله چې سا دسينې پورتنۍ برخي ته راورسېږي او انسان دمرگ په کومي کي وي(۱) ﴿ وَقِيلَ مَنْ رَاقٍ ﴾ او وبه ويلی شي (له لوري دخپلوانو او اهل دده چې) څوک دی دم کونکی ؟په البحر کي ليکي چې الله جل جلاله دوی ته د مرگ په کړاوونو يادونه وکړه او دغه دآخرت له مراحلو او پړاوونو څخه لومړی پړاو دی چې سا مری ته را ورسېږي (تراقي) دسيني پورتنی هډوکی دی (۲) ﴿ وَظَنَّ أَنَّهُ ٱلْفِرَاقُ ﴾ او يقين وکړي (هغه ناروغ) چې بېشکه په ده باندي راغلی) دی وخت دفراق جدائي (له دنيا او خپلوانو څخه څکه چې دمرگ پرښتېويني) ﴿ وَٱلْتَفَّتِ ٱلسَّاقُ بِٱلسَّاقِ ﴾ او تاوېږي يوه پنډۍ (دده) له بلي پنډۍ (دده) سره له هيبته دمرگه: حسن بصري رحمه الله وايي چې دغه دواړه دده پنډۍ دي چې په کفن کي سره تاوېږي (۳) او له ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت شوی: معنا دا چې مقصد د دنيا څخه د جدائي شدت دمرگ له کړاوونو سره يوځای شوی دی نو دغه ديو سخت هيبت ناک حال دتمثيل په توگه راوړل شوی يعني کله چې د دنيا د سختيو او د آخرت دسختيو بهېر سره يوځای شي لکه چې وايي (شمرت الحرب عن ساقها) يعني جنگ پايڅې راوغړلي چې دسختوالي څخه يې استعاره راوړل شوي ده ﴿ إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ ٱلْمَسَاقُ ﴾ په لوري درب ستا په دغي ورځي چې ورتله دي (دټولو مخلوقاتو لپاره دجزا موندلو) يعني ابرار او فجار به گرد دده په وړاندي راجمع کړی شي او بيا به جنت او دوزخ ته بېول کېږي. خازن ليکي چې: دخلکو مرجع الله ته دی الله ته به راوستل کېږي ترڅو چې ددوی په مينځ کي فيصله وکړي، ورپسې الله دمنکر مکذب حال داسي بيانوي ﴿ فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ ﴾ بيا يې يقين ونکړ (په مؤمن به باندي) او نه يې لمونځ وگذارو. ابوحيان ليکي چې جمهور علماء داسي وايي چې دغه د ابوجهل په هکله نازل شوی دی او نژدې به پردې باندي په راتلونکي کلام کي تصريح هم وشي چې ﴿ يَتَمَطَّىٰٓ ﴾ څکه دده تگ او دده دقوم بني مخزوم هم دغه تگ وو(۴) ﴿ وَلَٰكِن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴾ مگر دروغجن يې کړ (قرآن) لره او مخ يې وگرزاوو (له ايمانه) ﴿ ثُمَّ ذَهَبَ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ يَتَمَطَّىٰٓ ﴾ بيا لاړ اهل خپل ته (له مجلس څخه) په تکبر سره او دغه عبارت له تکبر، لوبي او نازنخرو څخه دی ﴿ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ﴾ (وړلائقه ده تا لره (ای کافر انسانه هغه شی چې بد يې بولي سختي دمرگ) بيا وړلائقه ده تاته (هغه شی چې بد يې بولي چې سختي دقبر ده) ﴿ ثُمَّ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰٓ ﴾ پس

---

(۱) دطبري تفسير ۲۹/ ۱۲۳

(۲) البحر المحيط ۸/ ۳۹۰

(۳) امام رازي وايي چې دغه دسارارسېدل دستوني هډوکي ته دمرگ له نژدېوالي څخه کنايه ده او ابن الصمة پدې هکله وايي: ورب عظيمة دافعت عنهم* وقد بلغت نفوسهم التراقي. يعني ډېرځله مي ستري بلاوي خيني دفع کړي چې ددوی ساوې ترستوني پوري رارسېدلي وي

(۴) البحر المحيط ۸/ ۳۹۱

ورلانقه ده تالره (هغه شی چي بديې بولي سختي د ورځي دقيامت ) پس ورلانقه ده تالره (هغه شی چي بديې بولي هميشه عذاب ستا په قيامت کي) يعني افسوس اوهلاک دی تالره ای بدمرغه بياتالره هلاک دی! مفسرين کرام وايې چي دغه تعبيردعربوپه اصطلاح کي دتهديداوتخويف لپاره لکه چي متل گرزېدلی وي اواصل يې اسم تفضيل له (ولية الشئ) څخه راغلی چي کله ورنژدې اوپيوسته شي معنا داچي نژدې دی شربه درته ورسېږي نوپدې پوه شه اوځان اوچاره دي سمه کړه روايت کېږي چي يو وخت رسول الله صلی الله عليه وسلم ابوجهل ترلاس ونيو(اوبيايې ورته وويل ﴿ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ﴾ نوابوجهل په خواب کي ورته وويل: ای محمده ته ماوېروې اوتهديدوې ؟ قسم په الله چي ته اوستارب په ماهيڅ هم نشي کولای قسم په الله چي زه ددغي وادي ترټولومعزز شخصيت يم اوبياهغه ووچي په بدرکي په بېدردي سره ووژل شو ﴿ ثُمَّ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ﴾ ددې لپاره مکرر راغلی چي په تهديدکي مبالغه افاده کړي لکه چي ورته وايې: زه تاته تخويف اوتهديدتکراروم ووېرېږه اودځان چاره دي وکړه پخواتردې چي عذاب درته راورسېږي ... څرنگه چي دسورت په پيل کي يې دبعث په هکله امکان يادکړدسورت په پای کي پردې باندي دلائل راوړي فرمايې ﴿ أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَن يُتْرَكَ سُدًى ﴾ آياگمان کوي (کافر) انسان چي دی به چني بېکاره پرېښودی شي ؟ (چي بعث اوحساب جزابه ونلري او لکه چارپای غونډي به بې سوال اوځوابه پاتي شي دغه گمان کول له ده سره نه ښايي اونه يې وړدی) ﴿ أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّن مَّنِيٍّ يُمْنَىٰ ﴾ آيا نه وو دغه (انسان اول) يوڅاڅکی له مني څخه چي تويوه شي (په ارحامو د ښځوکي غرض دلته دده حقارت دی لکه چي وايې: دغه انسان له مني څخه پيدا شوی هغه چي دبولوله مجراء څخه راوزي ﴿ ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوَّىٰ ﴾ بياوو دی يوه ټوټه دويني نوپيدا کړل الله (اندامونه يې) پس برابريې کړ (صورت ښکلی اوروح يې په کي وپوکله) ﴿ فَجَعَلَ مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنثَىٰ ﴾ نوپيدا يې کړله هغه (اوبود مني) څخه جوړه نارينه اوښځه (پخپل قدرت سره) دغه دانسان اصل اوجوړښت دی نوڅرنگه له داسي کمزوري مخلوق سره ښايي چي دالله له طاعته غاړه وغړوي اوتکبروکړي؟ ﴿ أَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَن يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ ﴾ آيانه دی دغه ذات قدرت لرونکی ددغوافعالو قادرپه دې باندي چي ژوندي کړي مړي (بلکه ښه قادراوتوانادی) يعني دغه دحکمت خاوندپروردگارچي داسي عجيبهٔ شيان يې پيداکړي اوانسان يې له خواروبوڅخه پيداکړی آياپدې به ونه توانېږي چي وروسته له فنايې بيا راپاڅوي؟ بلکه الله په هرڅه قادردی روايت کېږي چي رسول الله به کله داآيت ولوست نوبه يې ويل (سبحانک اللهم بلیٰ).

بلاغت: پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنديزيې دادی:

۱-دطباق صنعت چي د ﴿ قَدَّمَ ...وَأَخَّرَ ﴾ اوهمداسي د ﴿ صَدَّقَ ...كَذَّبَ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۲-انکاري استفهام چي دتوبيخ په مقصدراغلی لکه ﴿ أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَلَّن نَّجْمَعَ عِظَامَهُ ﴾ او همداسي بل مثال يې ﴿ أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَن يُتْرَكَ سُدًى ﴾ څکه دغه دتقريع اوتوبيخ وروستنی پړاودی.

۳ - دیوې چاري استبعاداوليري ګڼل لکه پدې کلام کې ﴿ يَسْـَٔلُ أَيَّانَ يَوْمُ ٱلْقِيَٰمَةِ ﴾ چي غرض له دې استفهام څخه ابِ تبعاداوانکاردی.

۴ - غیرتام جناس لکه ﴿ بَنَانَهُۥ......بَيَانَهُۥ ﴾ چي ځيني توري يې مختلف دي

۵ - لطيفه مقابله چي دمؤمنانو په تراوتازه مخونواودمجرمانو په تروو بدشکله څېروکي ليده شي چي فرمايي ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴾ اوداچي ﴿ وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ بَاسِرَةٌ ... ﴾ دآيت ترپايه

۶ - ناقص جناس چي د ﴿ ٱلسَّاقُ ﴾ او ﴿ ٱلْمَسَاقُ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۷ - مرسل مجازچي فرمايي ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ ﴾ چي په مخ سره له ټول تن څخه تعبيرکړی اودغه دجزء راوړل اودکل اراده کول دي

۸ - التفات چي فرمايي ﴿ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ﴾ دلته له غياب څخه خطاب ته التفات راغلی ترڅوچي تقبيح اوتشنيع افاده کړي

۹ - دفواصلوموافقت چي په بديع علم کي يې مرصع سجع بولي لکه ﴿ وَخَسَفَ ٱلْقَمَرُ...... وَجُمِعَ ٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ يَقُولُ ٱلْإِنسَٰنُ يَوْمَئِذٍ أَيْنَ ٱلْمَفَرُّ ﴾ اودغه دقرآنکريم له ځانګړتياوڅخه دی کوم چي دمحمد عليه الصلوة والسلام ستره معجزه ده.

دالله په مرسته دالقيامة سورت تفسيرژباړه بشپړه شوه.

## دالانسان سورت مدني اويو دېرش آيتونه لري

### دسورت په وړاندي:

دالدهر سورت له مدني سورتونو څخه دی اوهغه چاري چي په آخرت پوري اړوندي دي خبري اوپه خانګړي توګه دمتقيانو ابرارو له حاله چي په تل ترتله جنتي نعمتونو کي به اوسي غږېږي اوددې سورت به نژدې مکي سورتونو ته ورته ده چي ښوونی اسلوب او ېيلابېل اړخونه يې سره يورنګه دي.

دسورت پيل دانسان په پيدا ينښتي پراوونو کی دالله جل جلاله قدرت ښيي چي بيا وروسته يې په ډول ډول عبادتونو مکلف کوي څکه چي الله تعالی انسان ته غوږونه، سترګي او نور ګرد حواس ور کړي دي نو فرمايې ﴿ هَلْ أَتَىٰ عَلَى ٱلْإِنسَٰنِ حِينٌ مِّنَ ٱلدَّهْرِ لَمْ يَكُن شَيْـًٔا مَّذْكُورًا إِنَّا خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ مِن نُّطْفَةٍ أَمْشَاجٍ نَّبْتَلِيهِ فَجَعَلْنَٰهُ سَمِيعًۢا بَصِيرًا ﴾.

وروسته ددغو ابرارو نعمتونه کوم چي په جنت کي يې ورته تيار کړي شمېري ﴿ إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِن كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُورًا عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ ٱللَّهِ يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيرًا ﴾.

وريسې ددغو نېکانو اوصاف په يو څه تفصيل سره بيانوي نو ددوی صفت راوړي چي دوی په نذرباندي وفا کوي مسکينانو ته دالله تعالی دخوښي لپاره خواړه ورکوي دالله له عذابه وېرېږي اوبيا راوړي چي الله تعالی دوی ددغي سختي ورځي له کړاوونو څخه ببغمه کوي ﴿ يُوفُونَ بِٱلنَّذْرِ وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُۥ مُسْتَطِيرًا وَيُطْعِمُونَ ٱلطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِۦ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ ٱللَّهِ لَا نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَآءً وَلَا شُكُورًا ﴾ د آيتونو ترپايه

بيا ددوی دخويونو له ستايلو وروسته هغه اجر او ثواب چي الله تعالی دوی ته چمتو کړی او په جنات النعيم کي يې اجراو کرامت ورباندي پېرزو کړی داسي بيانوي ﴿ وَجَزَىٰهُم بِمَا صَبَرُوا۟ جَنَّةً وَحَرِيرًا مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ لَا يَرَوْنَ فِيهَا شَمْسًا وَلَا زَمْهَرِيرًا وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلَٰلُهَا وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا تَذْلِيلًا ﴾.

همداسي پرله پسې دجنتيانو نعمتونه چي ددوی دخوړو، څښنو، لباسونو او چوپړيانو خدمتګارانو چي سبا ببګا ددوی په خدمت کي لګياوي راوړي فرمايې ﴿ وَيُطَافُ عَلَيْهِم بِـَٔانِيَةٍ مِّن فِضَّةٍ وَأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيرَا۠ قَوَارِيرَا۟ مِن فِضَّةٍ قَدَّرُوهَا تَقْدِيرًا وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلًا عَيْنًا فِيهَا تُسَمَّىٰ سَلْسَبِيلًا وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَٰنٌ مُّخَلَّدُونَ إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَّنثُورًا ﴾.

دسورت پای په دې ارشاد سره کوي چي دغه قرآن دهغه چالپاره چي ويښ زړه او روښانه فکرولري پندي چي دهغه په رڼالاره مومي نو فرمايې ﴿ إِنَّ هَٰذِهِۦ تَذْكِرَةٌ فَمَن شَآءَ ٱتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا وَمَا تَشَآءُونَ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا يُدْخِلُ مَن يَشَآءُ فِى رَحْمَتِهِۦ وَٱلظَّٰلِمِينَ أَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًۢا ﴾.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿هَلْ أَتَىٰ عَلَى ٱلْإِنسَـٰنِ حِينٌ مِّنَ ٱلدَّهْرِ لَمْ يَكُن شَيْـًٔا مَّذْكُورًا ﴿١﴾ إِنَّا خَلَقْنَا ٱلْإِنسَـٰنَ مِن نُّطْفَةٍ أَمْشَاجٍ نَّبْتَلِيهِ
فَجَعَلْنَـٰهُ سَمِيعًۢا بَصِيرًا ﴿٢﴾ إِنَّا هَدَيْنَـٰهُ ٱلسَّبِيلَ إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا ﴿٣﴾ إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلْكَـٰفِرِينَ سَلَـٰسِلَا۟
وَأَغْلَـٰلًا وَسَعِيرًا ﴿٤﴾ إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِن كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُورًا ﴿٥﴾ عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ ٱللَّهِ يُفَجِّرُونَهَا
تَفْجِيرًا ﴿٦﴾ يُوفُونَ بِٱلنَّذْرِ وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُۥ مُسْتَطِيرًا ﴿٧﴾ وَيُطْعِمُونَ ٱلطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِۦ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا ﴿٨﴾ إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ
لِوَجْهِ ٱللَّهِ لَا نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَآءً وَلَا شُكُورًا ﴿٩﴾ إِنَّا نَخَافُ مِن رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوسًا قَمْطَرِيرًا ﴿١٠﴾ فَوَقَىٰهُمُ ٱللَّهُ شَرَّ ذَٰلِكَ ٱلْيَوْمِ وَلَقَّىٰهُمْ نَضْرَةً
وَسُرُورًا ﴿١١﴾ وَجَزَىٰهُم بِمَا صَبَرُوا۟ جَنَّةً وَحَرِيرًا ﴿١٢﴾ مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ ۖ لَا يَرَوْنَ فِيهَا شَمْسًا وَلَا زَمْهَرِيرًا ﴿١٣﴾ وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ
ظِلَـٰلُهَا وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا تَذْلِيلًا ﴿١٤﴾ وَيُطَافُ عَلَيْهِم بِـَٔانِيَةٍ مِّن فِضَّةٍ وَأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيرَا۠ ﴿١٥﴾ قَوَارِيرَا۟ مِن فِضَّةٍ قَدَّرُوهَا تَقْدِيرًا ﴿١٦﴾
وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلًا ﴿١٧﴾ عَيْنًا فِيهَا تُسَمَّىٰ سَلْسَبِيلًا ﴿١٨﴾ ۞ وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَٰنٌ مُّخَلَّدُونَ إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا
مَّنثُورًا ﴿١٩﴾ وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيمًا وَمُلْكًا كَبِيرًا ﴿٢٠﴾ عَـٰلِيَهُمْ ثِيَابُ سُندُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ ۖ وَحُلُّوٓا۟ أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ وَسَقَىٰهُمْ
رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا ﴿٢١﴾ إِنَّ هَـٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَآءً وَكَانَ سَعْيُكُم مَّشْكُورًا ﴿٢٢﴾ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ ٱلْقُرْءَانَ تَنزِيلًا ﴿٢٣﴾ فَٱصْبِرْ
لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ ءَاثِمًا أَوْ كَفُورًا ﴿٢٤﴾ وَٱذْكُرِ ٱسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴿٢٥﴾ وَمِنَ ٱلَّيْلِ فَٱسْجُدْ لَهُۥ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا
طَوِيلًا ﴿٢٦﴾ إِنَّ هَـٰٓؤُلَآءِ يُحِبُّونَ ٱلْعَاجِلَةَ وَيَذَرُونَ وَرَآءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيلًا ﴿٢٧﴾ نَّحْنُ خَلَقْنَـٰهُمْ وَشَدَدْنَآ أَسْرَهُمْ ۖ وَإِذَا شِئْنَا
بَدَّلْنَآ أَمْثَـٰلَهُمْ تَبْدِيلًا ﴿٢٨﴾ إِنَّ هَـٰذِهِۦ تَذْكِرَةٌ ۖ فَمَن شَآءَ ٱتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا ﴿٢٩﴾ وَمَا تَشَآءُونَ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ ۚ إِنَّ
ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿٣٠﴾ يُدْخِلُ مَن يَشَآءُ فِى رَحْمَتِهِۦ ۚ وَٱلظَّـٰلِمِينَ أَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًۢا﴾ الإنسان: ١ – ٣١

## لغتونه:

(امشاج) د مشيج جمع او هغه خليط او ګډ ته وايي (مستطيرا) وير عذاب (قمطريرا) ډېر سخت تريو مخی غمجن، أخفش وايي چي (قمطرير) هغه خورا سخت او درون د مصيبت دی چي خورا اوږدوي [1] (دانية) نژدي (ذللت) مسخري تيتي کړی شوي (سلسبيلا) لذيذ خوندور او له ډېره لذته او صفايي آسانه په مری کي تېرېدونکو د څښاک توکو ته وايي (سندس) نرم نري وريښم (استبرق) پنډ وريښم چي دېباج يې بولي (أسرهم) په اصل کي تړلو او ټينګولو ته وايي وروسته بيا يې په پيدايښت باندي اطلاق وشو چي ويل کېږي (شد د أسره) يعني مضبوط يې کړ پيدايښت د هغه

## تفسير:

﴿هَلْ أَتَىٰ عَلَى ٱلْإِنسَـٰنِ حِينٌ مِّنَ ٱلدَّهْرِ لَمْ يَكُن شَيْـًٔا مَّذْكُورًا﴾ آيا راغلی دی (په تحقيق سره راغلی دی) په انسان څه وخت له زماني څخه چي نه وو دی يو شی ياد کړی شوی (په نامه سره)؟ ابن كثير وايي: الله جل

---

(١) قرطبي تفسير ١٩/١٣٣

جلاله له انسان څخه ددې اخبارفرمايي چي الله هغه له عدم څخه موجودکړی دی هغه يووخت دده له حقارته اوضعفه ښځي ديادېدلونه وو(١) مفسرين کرام ليکي چي (هل أتى) د(قدأتى )په معنادى لکه چي ته وايې آيادفلاني کاردي وليداوپه داسي حال کي چي ته ښه خبريې چي هغه يې ليدلى اوياووايې چي آيامادرته وعظ وکړ؟ اوعزت مي درکړ؟ مقصددى داچي ددغه کارونوتقريروکړي چي بېشکه ماپندرکړماعزت درکړ، اومرادله انسان څخه جنس دى اومرادله (حين) څخه هغه موده ده چي دمورپه ګېډه کي وو(٢) اومقصدله آيت څخه انسان ته پندورکول دي چي اصل نشأت يې يوداسي څېزووچي هېرکړی شوی اوديادولونه ووپه هغه وخت کي چي عدم وودپلارپه شاکي دخوارو اوبوڅاڅکی ووچي پرته له هغه ذاته چي دده دپيدا ايښت اراده يې لرله هيچانه پېژانده اوڅه وخت دزمانې داسي تېرشوچي دخمکي کره له ده څخه تشه وه بياالله جل جلاله پيدا اکړاوپيدا ايښت يې ټينګ اوپه زړه پورې کړ ورروسته بياله هغه چي دده دپيدايښت او دوجودي نعمت پير زوکول اوبياورباندې دشرعي مکلفيتونوازموينښت کول هلته چي دعقل اوحواسو نعمتونه يې ږومبی ورباندي لوروليي قرآنکريم داسي تشريح کوي فرمايي ﴿إِنَّا خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ مِن نُّطْفَةٍ أَمْشَاجٍ﴾ (بېشکه موږپيدا اکړی دی انسان له نطفې څخه چي ګډوډه شوي ده (دنراودښځي) يعني موږ پخپل قدرت سره دغه انسان له خواروا وبوچي (مني) دي هغه چي دنارينه له ملا (شا ) څخه راوړي اود ښځينه اوبو ( مني )سره ګډه شي اوبيادغه عجيب مخلوق ترې پيداکوو. ابن عباس وايي چي د(امشاج) معنا اخلاط دی اودغه دسړي اوښځي اوبوته وايي کله چي سره ګډې شي اوبياله يوه حاله بل ته درومي (٣) ﴿نَّبْتَلِيهِ﴾ موږيې ازمايو(په شرعي تکاليفواوالهي اوامروترڅو وګوروآياهغه شکر کاږي اوايمان راوړي اوکه کافرکېږي انکارکوي آياهغه سم تګ کوي اوکه انحراف غوره کوي؟ ﴿فَجَعَلْنَٰهُ سَمِيعًۢا بَصِيرًا﴾ نوموګرزاوودغه انسان اورېدونکی،ليدونکی )يعني هغه ته موستر ګي ورکړي چي د کائناتودلائل ووينې هغه روښانه دلائل چي دحکيم خالق ذات په وجوددلالت کوي اوغوږونه مو ورکړي چي تنزېلي آيتونه واوري امام فخر رازي ليکي چي: الله جل جلاله هغه څه ورکړي چي ازموينښت ورسره ښائېدونکی وي چي اورېدل اوليدل دي اودغه دواړه له فهم اوتميزڅخه کنايه راغلي ده لکه چي الله تعالى له حضرت ابراهيم عليه السلام څخه حکايت کوي فرمايي ﴿لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ﴾ اوکله کله ورباندي دغه دوه پېژندل شوي حواس چي غوږونه اوستر ګي دي اراده کېږي اوداچي يوازي يې دوی ځانګړي راوړل ځکه چي دغه دحواسوافضل اواشرف دي (٤) ﴿إِنَّا هَدَيْنَٰهُ ٱلسَّبِيلَ﴾ بېشکه موږ ورښودلي ده دغه (انسان) ته (سمه لاره (اوکږه لاره خيراوشرمو ور ښودلي چي انبياء عليهم السلام مو ورته رالاستولي اوکتابونه مو ورته رانازل کړي دي الله جل جلاله دلته دهغه څه بيان فرمايي چي کله يې دهغه پيدا ايښت وکړاوظاهري

---

(١) مختصرابن کثير٣ /٥٨٠
(٢) کبيرتفسير٣٠ /٢٣٥
(٣) مختصرابن کثير٣ /٥٨٠
(٤) کبيرتفسير٣٠ /٢٣٧

باطني حواس يې ورکړل نو يې سمه اوکړه لاره وروښودله عقل يې ورکړاو اختياريې ده ته پرېښود بيا به وروسته له دې ياشکر کونکی جوړشي اويابه کفرغوره کړي څکه وروسته فرمايي ﴿ إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا ﴾ (يابه وي شکر کونکی(مؤمن) يابه وي دی ناشکره (کافر) يعني ياخوبه دالله دنعمتونوشکرپرځای کړي دخير ښېگڼي لاره به ونيسي اويابه دشراوفجورلاره خپله کړي مفسرين کرام ليکي چي: مقصدله دې کلام څخه چي ﴿ هَدَيْنَٰهُ ٱلسَّبِيلَ ﴾ دادی چي الله انسان ته دشکراوکفرلاري ښودلي دي نوردانسان دنده ده چي دغه غوره کوي اوکه هغه اودغه آيت له هغوړېروآيتونوڅخه دی چي انسان ته داختيار اوارادې واک ورکول ښيي هغه اختيار چي وربانديې دتکليف داراومداردی لکه دالله جل جلاله داويناچي ﴿ مَّن كَانَ يُرِيدُ ٱلْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهُۥ فِيهَا مَا نَشَآءُ ﴾(الاسرآء:۱۸) ﴿ وَمَنْ أَرَادَ ٱلْءَاخِرَةَ وَسَعَىٰ لَهَا سَعْيَهَا ﴾(الاسرا:۱۹) اودالله جل جلاله داويناچي ﴿ وَقُلِ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ فَمَن شَآءَ فَلْيُؤْمِن وَمَن شَآءَ فَلْيَكْفُرْ ﴾(الکهف:۲۹)نوپه هيچابانديې اکراه اواجبارنشته بلکه دهغه لپاره اراده اواختياردی...وروسته له دې څرگنده بيانه هغه څه الله بيانوي چي دابرارواوفجارولپاره يې په تل ترتله هستوگنځي کي ورته تيارکړي دي فرمايي ﴿ إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلْكَٰفِرِينَ سَلَٰسِلَا۟ وَأَغْلَٰلًا وَسَعِيرًا ﴾ (بېشکه موږتيارکړي مودي کافرانوته ځنځېرونه او طوقونه اوتوداور) يعني موږکفارومجرمانوته ځولنې تياري کړي چي په پښوکي ور اچوواوطوقونه اتکړی مو ورته چمتوکړي چي لاسونه يې له غاړو سره وربانديي وتړواولمبې وهونکی اور ورته تيارډی چي وربانديي وسوځي لکه چي الله فرمايي ﴿ إِذِ ٱلْأَغْلَٰلُ فِىٓ أَعْنَٰقِهِمْ وَٱلسَّلَٰسِلُ يُسْحَبُونَ فِى ٱلْحَمِيمِ ثُمَّ فِى ٱلنَّارِ يُسْجَرُونَ ﴾ ﴿ إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِن كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُورًا ﴾ (بېشکه نېکان ابرار څښي(په جنت کي) له جامونودشرابو څخه چي وي گډله هغوسره (جنتي) کافور) يعني هغه کسان چي په دنيا کي نېکان ابرارو و نودوی به دشرابو داسي جامونه په سراروي چي خوراښه ډول خوشبويي د کافور به ورسره گډوي مفسرين کرام وايي چي: کافورهغه معروف خوشبويه طيب دي چي دهنداو چين له ونوڅخه لاس ته راځي اودعربولپاره ترگردوعطوراتوغوره دي مقصداچي څوک دغه شراب وڅښي نوداسي خوشبويي به وربانديي ولگېږي ته به واکافوردي[1] ابن عباس وايي: کافوردجنت داوبونوم دی هغه چي دکافورچينه يې بولي نوجام به ددغي چينې په اوبوگډاوپه مشکوبه يې ختم کړي نوتر گردوبه خوندورشراب وي څکه الله فرمايي ﴿ عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ ٱللَّهِ ﴾ چينه چي ځني څښي به له هغې څخه (نېک) بندگان دالله) (ددوی صفت يې دالله په بندگي ددي لپاره راووړچي تکريم او تشريف يې وشي اومرادورڅخه مؤمن متقيان دي ﴿ يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيرًا ﴾(چي بيايي به (مؤمنان) دغي (چينې) لره (هرچېري چي يې خوښه شي) په ببولو سره )يعني هري مانۍ اوسرای ته چي يې دوروستلو خوښه شي هلته به يې ور روانوي. صاوي ليکي: معنا داچي هغه ورڅخه ممانعت نه کوي هر چېرته چي

---

(۱) قرطبي تفسير ۱۹/۱۲۳

بې بيابې بېولاى بې شي داسي راغلي چي مؤمن به خپل كورانګړاوخپلي مانۍ ته هغه خېژوي په لاس كي به يې يوه لښته وي چي اوبوته به يې ښوروي او هغه به هم هغه لوري ته ورسره درومي كوم لوري ته چي مؤمن ځي آن تردې چي لوړي مانۍ ته به ورسره خېژي (١) كله چي يې دابرارو ثوابونه راوړل ورپسې يې ددوى وتلي صفات اوخويونه چي دوى يې دداسي نعمتونو اوستر اجروړاو مستحق ګرزولي بيانوي

فرمايي: ﴿ يُوفُونَ بِالنَّذْرِ ﴾ وفاكوي (ابرار) په (هغه) نذر سره (چي ټول هغه څه دي چي انسان يې پخپل ځان واجب كړي اوچي نذريې كړي نو ورباندي وفاكوى هغه چي دالله له طاعاتو څخه وي لكه لمونځ ، زكات ، حج اوصدقه. مفسرين كرام ليكي چي: دغه ددوى دهغه صفت په هكله چي دواجباتو اداكوي مبالغه ده څكه يوڅوك چي په هغه څه وفاكوي چي پخپله يې پرځان واجب كړي نو په هغه باندي خوخامخاوفاكوي

كوم چي الله ورباندي واجب كړي وي(٢) ﴿ وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيرًا ﴾ (اوو بريږي ابرار له هغې ورځي چي شربې ښكاره اوتيت دى) يعني اودوى وېرېږي له سختيودهغي ورځي چي كړاوونه ربړونه يې ستردي كله چي آسمانونه چوي، ستوري شيندل كېږي ، غرونه الوزي اونوري ستري پېښې پكي رادبره كېږي وېري ستونزي اوتيت غمونه پكي پېښېږي. قتاده وايې: قسم په الله چي ددغي ورځي شردومره تيت

اوخپوردى چي ځمكي اوآسمان ته رسېدلى دى (٣) ﴿ وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا ﴾ (او وركوي (ابرار) طعام خواړه په محبت ميني ددغه (طعام اوحاجت د هغه) مسكين اړ اويتيم پلارمړي ته اواسيربندي ته) يعني سره له دې چي دوى پخپله هم طعام ته وږي اواړوي خوبيايې هم محتاج اوفقيرته چي څه نلري اوماشوم پلارمړي يتيم ته چي مرستندوى نلري او اسير بندي ته چي (له مشركينو څخه په جنګ كي نيول شوى وي وركوي. حسن بصري رحمه الله وايې چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به خيني بنديان راوستل اوخينومسلمانانوته به يې ور وسپارل ورته ويل به يې له دې سره ښه كوئ دوې شپې ، يادرې به له هغه سره وونوهغه به ترځان هم ورسره ښه كول او په ځان يې غوره ګڼله (٤) نوالله پردوى تنبيه وفرمايله چي دغه ابرارسره له دې چي دوى اوددوى عيالونه خوړوته وږي وي ليكن دوى

دنوموړيو دريو ټولګيوغوراوى كوي اوترځانونويې له مخي كوي لكه چي الله تعالى فرمايې

﴿ وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ ﴾ (الحشر:٩) ﴿ إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللَّهِ ﴾ (ابراروايې) بېشكه چي

موږخواړه دركوو تاسي ته خاص دالله (دثواب دپاره) ﴿ لَا نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَاءً وَلَا شُكُورًا ﴾ نه غواړوموږله تاسي څخه جزابدل اونه شكر ايستل(حمداوثناويل پر موږ باندي. مجاهد وايې: په الله لوړه چي دغه خبري دوى په خوله نه دي ويلي مګرالله تعالى ددوى په زړونوخبروو نويې په دوى ثناوويله ترڅوچي رغبت

(١) دصاوي حاشيه ٤ /٢٧٤
(٢) كبيرتفسير ٣٠ /٢٤١
(٣) طبري ٢٩ /١٢٩
(٤) روح المعاني ٢٩ /١٥٥

کونکي ددوی په لاره ولاړشي (۱) ﴿ إِنَّا نَخَافُ مِن رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوسًا قَمْطَرِيرًا ﴾ موږ وېرېږو له ربه خپله له عذابه دورځې تريومخي (غمجني) دېرې تريومخي (ترڅوچې الله موددغې ورځې له کړاوونو څخه وژغورې)

﴿ فَوَقَىٰهُمُ اللَّهُ شَرَّ ذَٰلِكَ الْيَوْمِ ﴾ نو وبه ساتي الله دوی لره (په سبب دنېکيو ددوی) له شره سختې ددغې ورځې

﴿ وَلَقَّىٰهُمْ نَضْرَةً وَسُرُورًا ﴾ او وربه کړي دوی ته تازه ګي اوحسن د مخونواوخوشحالي دزړونو ؛(داچې(سرور) يې نکره راوړی مقصد پکې تعظيم اوتفخيم دی) ﴿ وَجَزَىٰهُم بِمَا صَبَرُوا جَنَّةً وَحَرِيرًا ﴾ اوجزاء به ورکړي دوی ته (الله) په سبب دصبرددوی (په طاعاتو او ايثار بالمال باندې) جنت (پراخ) او(ور وابه غوندي جامې) ورېښميني لکه چې الله تعالی فرمايې ﴿ وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ﴾ (الحج۲۳) په آيت شريف کې دايجازصنعت راغلی دی هغه داچې لوموړی يې جنت يادکړی هغه ځای چې دغه ابرار به پکې په ډول ډول مېوو بېلابېلو خوراکونواو خوندوروشرابو اونورو توکو نازول شوي وي ځکه جنت ترهغو ورته نه ويل کېږي څوچې دسوکالۍ او راحت ګرد اسباب پکې نه وي لکه چې الله تعالی فرمايې ﴿ وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنفُسُ وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ ﴾ بيا(حريرا) راغلي اوپدې قول سره چې (وحريرا) دې ته اشاره ده چې ددوی پوښاک ترګردوله غوره پوښاکونوڅخه دی کوم چې ورېښمين دی اوهغه عربوته ترټولولباسونوښه اوغوره دی نودخوراک څښاک اولباس ډولونه يې هغه چې د انسانانو دزړه له کومې غوښتنه ده راټول کړي دي اوله دې په وروسته فرمايې ﴿ مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا عَلَى الْأَرَائِكِ ﴾ حال داچې تکيه کونکي به وي په هغه (جنت) کې پرتختونو باندې (دپاچهانو چې په غوره پردو اوجاموبه پوښلي وي مفسرين کرام ليکي چې (ارائک) دأريکة جمع اوهغه تخت ته ويل کېږي چې پوښونه ورباندې هوار وي اودغه دسوکاله ژوند دبشپړتوب مرحله ده ﴿ لَا يَرَوْنَ فِيهَا شَمْسًا وَلَا زَمْهَرِيرًا ﴾ نه به ويني دوی هلته لمر(ګرمي) اونه زمهريرساړه (ځکه چې دجنت هوامعتدله ده نه ګرمي اونه يخني احساس کېږي بلکه دعرش معلی څخه به راالوزي اوپه جنتيانوبه لګېږي ﴿ وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلَـٰلُهَا ﴾ حال داچې نژدې به وي پردوی سيوري (دونو) دهغه ﴿ وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا تَذْلِيلًا ﴾ اومُسخري ټيټې کړی شوي به وي مېوې دهغوپه مُسخريدلو ټيټېدلو سره (چې شوکول به يې آسان وي چې ويې خوري ابن عباس رضی الله عنه وايې: کله چې وغواړي کومه مېوه وخوري هغه به ورته راټيټه شي ترڅوچې څومره يې خوښه وي تري وخوري او کله چې يې دجنت خوراک، پوښاک اومسکن بيان کړورپسې د هغه څښاک داسې بيانوي ﴿ وَيُطَافُ عَلَيْهِم بِـَٔانِيَةٍ مِّن فِضَّةٍ ﴾ اوګرزولی به شي پردغو(ابرارو) باندې (په جنت کې) جامونه له سپينوزرو (چې خوراک څښاک به پکې وي لکه چې په دنياکې دسوکاله خلکوهم دارواج وي نوبه هريوپخپله خوښه څومره چې يې اړتياوي ځيني خوري اوڅښي اودغه لوښی عبارت له کاسوڅخه دي چې ځيني به دسپينوزرو اوځيني دسروزرو وي لکه چې

---

(۱) مختصرابن کثير ۳ /۵۸۲

الله فرمايي ﴿ يُطَافُ عَلَيْهِم بِصِحَافٍ مِّن ذَهَبٍ ﴾ (الزخرف: ۷۱) امام رازي ليکي چي ددوا ړو آيتونو ترمينځ کوم منافات نشته کله کله به په دې کي اوکله به په هغوکي ورڅښول کېږي ﴿ وَأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيرَا ﴾ اوګيلاسونه صراحۍ چي وي به (دغه لوښي) په شان دښيښو (په صفائي اوښکلاکي) په البحرکي ليکي چي (کانت) معنادا چي الله پخپل قدرت پيداکړي ترڅوددغوظروفوتفخيم اوتعظيم وشي چي دغه عجيبه پيدايښت دی چي دسپينوزرو سپين والی د ښيښې له روڼ والي اوشفافيت سره يوځای شوی دی[1] ﴿ قَوَارِيرَا مِن فِضَّةٍ ﴾ هسي ښيښې چي له سپينوزرو به وي (يعني دښيښې روڼوالی اودسپينوزرو سپينوالی به پکي اينبودل شوی وي)

ابن عباس رضی الله عنه وايي: په دنياکي هيڅ هغه شی نشته کوم چي به په جنت کي وي مګريوازي نوم يې شته يعني هغه چي په جنت کي دي خوراغوره، اعلی او ښايسته دي که ددنياسپين زر دومره باريک هم شي لکه دمچ وزر بيابه هم اوبه ترې له ورايه ښکاره نشي ليکن دجنتي ښيښوسپين والی د سپينوزرو اوروڼوالی دښيښې دی (چي ظاهريې له باطن او باطن يې له ظاهره ښکاري) ﴿ قَدَّرُوهَا تَقْدِيرًا ﴾ چي اندازه کړي به وي (ساقيانو دجنت جنتيانوته چي څومره يې ورته حاجت وي) اندازه کول (چي دغه به خوراخوندور اوپه زړه پوري وي ابن عباس وايي: داسي به يې په کچه راوړي وي چي نه به څه ترې زياتېږي اونه به يې نوره اشتهاء اوغوښتنه پاتي وي (۲) ﴿ وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلًا ﴾ او ورڅښول کېږي به جنتيانوته په جنت کي جامونه دشرابو چي وي به ګډ له (پاکو شرابو د) هغه سره (لپاره د خوشبوئي جنتي) زنجبيل (ځکه چي عرب هغه شراب ډېرخوندور ګڼي چي زنجبيل ورسره ګډوي ځکه چي خوشبويي يې لګېږي۔ قرطبي ليکي: دوی ته يې دآخرت دنعمتونوترغيب ورکړی کوم چي دوی ته له نعمتونواوخوشبويي څخه خوښ اومرغوب وي (۳) قتاده وايي چي زنجبيل په جنت کي ديوې چينې نوم دی چي له هغې څخه به مقربين څښاک کوي اودنورو جنتيانوپه شرابوکي به هم ددوې ګډون کاووشي ﴿ عَيْنًا فِيهَا تُسَمَّىٰ سَلْسَبِيلًا ﴾ چينه په دغه (جنت کي چي) نوم يې اينبودل شوی دی په سلسبيل سره (ځکه چي له حلقه څخه آسانه تېرېږي مفسرين کرام ليکي چي: سلسبيل خوږې سپکي اوبه دي چي له حلقه لذيذه اوآسانه تېرېږي او خوندوري دي اوداچي ددې اوبو په خوندکي يې دزنجبيل وصف راوړ دا به يوازي په خوندکي وي خوپه تريخوالي اوسوځېدلوبه يې څښونکي نه پوهېږي يوازي خوندبه يې څکي چي دزنجبيل (سونډ) په شان به وي نوبه شراب خوندورآسانه په حلق کي تېرېږي۔ وروسته دجنتي خدمتګارانو حال داسي بيانوي ﴿ وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ ﴾ اوګرزي به پردغو جنتيانو هلکان تلپاتي شوي (په حال دځواني کي تر اوتازه. قرطبي وايي: معناداچي دوی به تل هغسي په ځواني ښکلاتازه ګي

---

(۱) البحرالمحيط ۸/۳۹۷

(۲) الوسي تفسير ۲۹/۱۲۰

(۳) قرطبي ۱۹/۱۴۰

جمال اوحسن کي وي کله به هم نه زړېږي اونه به تغیرمومي په یوه غانبن به ګرد عمراوسي (۱) ﴿ إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَّنثُورًا ﴾ کله چي ووینې ته دوی ګنې به هغوی (له ډېري صفایي او ځلادمخونو) لکه ملغلري خورې شوي امام رازي لیکي چي دغه یوه عجیبه تشبیه ده ځکه ملغلري کله چي خورې ورې وي خورانبکلی منظرلري اوکله دځینورڼاپه ځینونورولوېږي نوزړه رانبکونکی منظرپیداکوي (۲) ﴿ وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيمًا وَمُلْكًا كَبِيرًا ﴾ (اوهرکله چي وګورې ته دغه (جنت) ته نو وبه وینې ته نعمتونه (ډېرچي صفت یې نشي کېدای) اوپاچهي لویه (لازواله) یعني کله چي ته هلته په جنت کي هغه د خوښي اوخوشحالي مناظر اونعمتونه وګورې نو دومره به وي چي صفت یې ممکن نه وي هلته به پراخه پاچهي وي چي نهایت به نلري لکه چي په قدسي حدیث شریف کي راځي: (ماد خپلو صالحانو بندګانو لپاره هغه څه چمتو کړي چي نه سترګو لیدلي ، نه غوږونو اورېدلي اونه دبشر په زړه تېرشوي دي ابن کثیرلیکي چي په صحیح حدیث شریف کي راغلي چي دأدنی مرتبې جنتي به لکه دادنیا اولس ځله نوره ددې دنیاوي نوچي دأدنی مرتبې جنتي لپاره دالله جل جلاله دغه ورکړه وي ستابیاداعلی مرتبې جنتي په هکله څه خیال دی؟(۳) ورپسې الله تعالی دجنت دنعمتونو یادونه داسي کوي ﴿ عَالِيَهُمْ ثِيَابُ سُندُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ ﴾ دپاسه پر دوی باندي به کالي (جامې) دنري ورېښمو زرغونو . اودپرېړوورېښمو نولباس دجنتیانوبه ورېښمین وي لکه چي الله فرمایې ﴿ وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ﴾ (الحج ۲۳) مفسرین کرام لیکي چي (سندس) نري ورېښم او(استبرق) پنډورېښم دي اودغه دابرارو په جنت کي جامې وي اوداچي ویې فرمایل چي (عالیهم)-ترڅوپه دې تنبیه وفرمایې چي ددوی جامې ځوځودي خوهغه چي سربېره وي نوهغه دادي اوغوره دي ﴿ وَحُلُّوا أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ ﴾ اووابه غوسته شي (دوی ته) باهوګان له سپینوزرو (لپاره دښکلااوزینت، تعبیرېې په ماضي سره فرمایلی چي وقوع یې دتحقق اوثبوت افاده وکړي .

صاوي لیکي که څوک پوښتنه کوي چي څرنګه یې دلته وفرمایل چي ﴿ أَسَاوِرَ مِن فِضَّةٍ ﴾ اوپه سورة کهف کي یې داسي چي ﴿ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ ﴾ اوپه سورة فاطرکي ﴿ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا ﴾ فرمایلي دي ځواب داچي کله به یوازي سره رز اوکله به سپین زر اوکله کله به ملغلري هرډول چي ددوی خواهش وي اغوندي اوداهم امکان لري چي دیوپه لاس کي دي درې سره هم جمع وي (۴) ﴿ وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا ﴾ او ور وبه څښي دغو(جنتیانوته) رب ددوی شراب طهور، ښه پاکیزه څښاک یعني پردغونعمتونو سربېره الله داسي ښه پاکیزه څښاک وروڅښوي چي په لاسونوبه ککړشوي نه وي اونه به هم ددنیادشرابوپه ډول ناولي وي طبري لیکي الله به دغو ابرارو ته داسي ښه پاکیزه شراب وروڅښوي

---

(۱) قرطبي تفسیر ۱۹/ ۱۴۱

(۲) کبیرتفسیر ۳۰/ ۲۵۱

(۳) مختصرابن کثیر ۳/ ۵۸۳

(۴) دصاوي حاشیه ۴/ ۲۷۸

چي دهغه له پاکيزه توب څخه يو دادی چي بول (ادرار) به نه ورڅخه توليد ېږي بلکه لکه دمشکو غوندي عرق (خولم) به ورباندي راځي ) روايت کېږي چي دجنتيانو يوه سرې به به ددنياد خلګو دسلو تنو شهوت ورکول شي اوکله چي خوراک څښاک وکړي نو هغه به خولې شي او له بدن څخه به يې دښه بايسته مشکو د بوی په توګه راوزي (۱) ﴿إِنَّ هَٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَاءً﴾ (اووبه فرمايي (الله دوی ته چي) بېشکه دغه (نعمتونه) ستاسي لره جزاء بدل (داعمالو ستاسي) يعني کله چي دوی جنت ته داخل شي اودهغه نعمتونه ووينې نو به ورته وويل شي چي داموددنيا دنيکو اعمالو بدل دی ﴿وَكَانَ سَعْيُكُم مَّشْكُورًا﴾ اودی عمل زيارستاسي مشکورمقبول (چي تاسوته ورباندي ښه جزاء له ثناء سره درکول شوه ، په تېروآيتونوکي تېرشول چي الله دوزخيانوته طوقونه اوځنځيران تيارکړي لکه چي ابراروته تختونه اونري اوپرېړورېښم ورکوي اوپه لاسونوکي يې دسپينوزرو وښي اوباهوګان اچوي اوپه وراندي به يې پې مخي هلکان وي تل ترتله په يوه عمرچي لکه خورې ملغلري داسي به اېسي اوپردوی باندي به ګرزي په لاسونوکي به يې جامونه دسپينوزرو وي اوپاکيزه شفاف ګيلاسونه به وي چي په شرابوبه ډک وي هغه چي د زنجبيل اوکافورپه خوندبه ګډشوي وي اودغه ټول دترغيب اوترهيب لپاره لکه چي دقرآن اسلوب دی چي دابرارواوفجارو ترمينځ پرتله کوي خوله دې ښکاره بيانه وروسته به هم مشرکانودغه ټول په مخ اړولواواعراض باندي استقبالول اوپه قرآنکريم اورسول الله به يې استهزاء اوملنډي وهلې اورسول الله ﷺ به ددوی له دغه ښنګ کولو اوبړولو څخه سخت ځورېدو نوداوروستني آيتونه درسول الله صلی الله عليه وسلم دډاډيني لپاره راغلی ترڅو چي دده غم خواشيني اوخفګان سپک کړي فرمايي ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْآنَ تَنزِيلًا﴾ بېشکه موږهم داموږ نازل کړی مودی په تا باندي (ای محمده !) قرآن نازل کول (ترڅوته دوی ته يې په وعداو وعيدپند ورکړې او ترغيب ترهيب يې ورته بيان کړې نوته غم مه کوه قرآن حق دی اووعده يې رښتوني ده ﴿فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ﴾ نوصبرکوه حکم امر درب خپل ته (خامخابه الله له دوی څخه کسات واخلي اوددوی په هلاکت به ستاسترګي که ژر وو اوکه وروسته يخي کړي ﴿وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ آثِمًا﴾ اومه منه خبره له دوی څخه دهيڅ يو ګنهګار(چي په ګناهونو اوشهواتوکي غوپه وي) ﴿أَوْ كَفُورًا﴾ اوناشکره (هغه چي په کفراوضلالت کي وروستي پړاوته رسېدلی وي اوله سره پندنه مني (کفور) دمبالغې صيغه ده اوپه کفراوانکارکي وروستي پړاوته رسېدلي ته وايې . مفسرين کرام ليکي چي دغه آيتونه د(عتبه بن ربيعة) او(وليد بن مغيرة) په هکله راغلي دي چي دوی دواړورسول الله ﷺ ته وويل: که چېري ته مال، دولت او ښځي غواړې نوله دې خپلي لاري واوړه موږ دي دغه آرزوګاني پوره کوو عتبه ورته وويل چي: زه خپله لور درکوم اوپرته له مهراو ولوره يې درواده کوم او وليدورته وويل: زه دومره مال دولت درکوم چي خومره دي خوښه وي نوبياداآيت نازل شو(۲) خوښه خبره داده چي دغه دي

---

(۱) طبري ۲۴/ ۱۳۷
(۲) کبيرتفسير ۳۰/ ۲۵۸ ،قرطبي ۱۹/ ۱۴۷ ،صاوي حاشيه ۴/ ۲۷۸ .

پخپل عموم پاتي وي څکه چي لفظ يې عام دی او هر فاسق فاجر ته شامليږي ﴿ وَٱذْكُرِ ٱسْمَ رَبِّكَ ﴾(او يادوه نوم درب خپل) يعني دخپل پروردګار لپاره لمونځ کوه طاعت او عبادت يې کوه ﴿ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴾ګهيځ او مابنام ﴿ وَمِنَ ٱلَّيْلِ فَٱسْجُدْ لَهُۥ ﴾ او په څه برخه دشپې کي نوسجده کوه هغه (الله)ته (مناجات تهجدکوه) ﴿ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيلًا ﴾ او نسبت دپاکي کوه دغه الله ته په شپه اوږده کي (کله چي خلک ويده وي لکه چي الله بل ځای فرمايي: ﴿ وَمِنَ ٱلَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهِۦ نَافِلَةً لَّكَ عَسَىٰٓ أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا ﴾ مقصد دا چي په ګردو اوقاتو کي الله لره عبادت کونکی او ذکر کونکی وي په شپه په ورځ، په سبابېګاه په زړه او په ژبه ترڅو چي ددښمنانو مقابله وکړای شي او وروسته د رسول الله ﷺ له دادیني بيرته دکفارو مجرمينو حالات داسي بيانوي فرمايي ﴿ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ يُحِبُّونَ ٱلْعَاجِلَةَ ﴾ بېشکه دا(کفار) خوښوي ژر تېرېدونکي (دنيا په آخرت باندي اوفاني لذائذورته غوره دي) ﴿ وَيَذَرُونَ وَرَآءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيلًا ﴾ اوپرېږدي وروسته له ځانه ورځ سخته (دعقبی چي قيامت دی) ﴿ نَّحْنُ خَلَقْنَٰهُمْ وَشَدَدْنَآ أَسْرَهُمْ ﴾ موږپيدا کړي دي دوی او بيا مو مضبوط کړل پيدا ايښت اندامونه ددوی ترڅو چي ښه قوي ، زورور شول ﴿ وَإِذَا شِئْنَا بَدَّلْنَآ أَمْثَٰلَهُمْ تَبْدِيلًا ﴾(اوکله چي اراده وفرمايو بدل به راوړو موږ(مثال ددوی (په پيدا ايښت کي) بدل) يعني که موږ وغواړو دوی به هلاک کړو او تر دوی غوره بندګان به چي دالله ښه فرمان منونکي او عبادت کونکي وي پيدا کړو په آيت شريف کي تهديد او وعيد نغښتی دی ﴿ إِنَّ هَٰذِهِۦ تَذْكِرَةٌ ﴾ (بېشکه دغه (آيتونه) پند دی) يعني دا آيتونه چي ښکلی لفظ او خوندور مضمون لري دهوښيارانو لپاره پند دی او جاهلان ور څخه منزجر کېږي ﴿ فَمَن شَآءَ ٱتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا ﴾ نو هر هغه څوک چي اراده کوي نيسي طرف درب خپل ته لاره (په خير او طاعت سره پس ودي نيسي ،چي لاره ورته جوړه شوي اود نيکمرغي اسباب ورته چمتو دي ﴿ وَمَا تَشَآءُونَ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ ﴾ او اراده نشی کولای تاسي(دهيڅ لاري دطاعت) مګر هغه چي اراده وفرمايي الله (تاسوته) ابن کثيرليکي : معنادا چي هيڅوک نشي کولای چي ځان ته هدايت وکړي او يا په ايمان کي داخل شي او ځان ته ګټه ورسوي مګر د الله جل جلاله په اراده پوري اړه لري(١) ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴾ (بېشکه الله دی (په هرڅه پوهاندي) ښه عالم دانا ښه حکمت والادی په تدبير او صنعت خپل کي هغه څوک ورته معلوم دی چي دهدايت وړوي نو ورته لاره ښيي او هغه هم ورته معلوم دي چي دضلالت مستحق دي نو اسباب يې ورته مهيا کوي او هغه الله پدې کي بالغ حکمت لري ﴿ يُدْخِلُ مَن يَشَآءُ فِى رَحْمَتِهِۦ ﴾ داخلوي(الله) هغه څوک چي (اراده دد خول يې) و فرمايي په رحمت خپل کي) يعني داخلوي هغه بندګان چي ورته اراده دد خول يې شي جنت او رضوان خپل ته چي مؤمنان دي سم له

---

(١) مختصرابن کثير ۴ /۴۵۸

حکمت او مشیت سره ﴿ وَالظّٰلِمِينَ أَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴾ او ظالمان (کافران چي دي) تيار کړی دی (الله) دوی ته عذاب ډېر دردناک (په دوزخ کي د سورت پای يې دمتقيانو او مجرمانو په وروستي برخه ليک سره ختم کړ.

بلاغت:

پدې سورت کي چي د بيان او بديع کومي ښکلاوي شته لنديزيې دادی:

۱- د طباق صنعت چي د ﴿ شَاكِرًا ... كَفُورًا ﴾ ترمينځ او د ﴿ بُكْرَةً ... وَأَصِيلًا ﴾ ترمينځ او د ﴿ شَمْسًا ... زَمْهَرِيرًا ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۲- غير مرتب لف او نشر لکه داچي ﴿ إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَلَاسِلَا وَأَغْلَالًا وَسَعِيرًا ﴾ ځکه لومړی يې شاکر ياد کړی او بيايې کافر راوړی وو چي ﴿ شَاكِرًا ... كَفُورًا ﴾ راغلی وو وروسته يې د دوهم يادونه رومبی وکړه پرته له لومړي څخه چي دغه ته غير مرتب يا مشوش لف او نشر وايي.

۳- عقلي مجاز لکه ﴿ يَوْمًا عَبُوسًا ﴾ د تريو مخي نسبت يې ورځي ته وکړ چي دغه نسبت د شي زمانې ته دی لکه چي وايي (نهاره صائم) ورځ يې روژه نيونکي وي

۴- غير تام جناس چي پدې کلام کي دی ﴿ فَوَقَاهُمُ ... وَلَقَّاهُمْ ﴾.

۵- اشتقاقي جناس چي پدې کلام کي دی ﴿ وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ ﴾.

۶- د طباق صنعت لکه ﴿ يُحِبُّونَ ... وَيَذَرُونَ ﴾ چي راغلی دی

۷- ايجاز بالحذف چي فرمايي ﴿ إِنَّ هَٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَاءً ﴾ يعني دوی ته به وويل شي چي (ان هذا کان...).

۸- ښکلي په زړه پوري تشبيه چي پدې کلام کي شته ﴿ إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَنْثُورًا ﴾ يعني لکه شيندلي ملغلري غوندي به ښکلي ايسي.

۹- لطيفه مقابله چي پدې کلام کي شته ﴿ يُحِبُّونَ الْعَاجِلَةَ وَيَذَرُونَ وَرَاءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيلًا ﴾ چي د محبت او پرېښودلو او د عاجل او باقي ترمينځ مقابله راغلي ده.

۱۰- مرصع سجع لکه ﴿ لُؤْلُؤًا مَنْثُورًا ... شَرَابًا طَهُورًا ... سَعْيُكُمْ مَشْكُورًا ... آثِمًا أَوْ كَفُورًا ﴾ ترپايه پوري چي دغه هم له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

دالله جل جلاله په مرسته د الدهر سورت د تفسير ژباړه بشپړه شوه.

***

## دالمرسلات سورت مكي او پنځوس آيتونه لري

دالمرسلات سورت له مكي سورتونوڅخه دى اودعقيدې اوآخرت له اُمورو، دقدرت اووحدت له دلائلو اونوروغيبي چاروڅخه غږېږي.

دسورت په پيل كي دهغوپرښتوپه نوم باندي كومي چي دكائناتودچاروپه تدبيرمكلفي دي قسم اخيستل كېږي چي قيامت حق دى اوهلاكت به اورمروپه كافرانوراپرېوزي فرمايي: ﴿ وَٱلْمُرْسَلَٰتِ عُرْفًا ﴿١﴾ فَٱلْعَٰصِفَٰتِ عَصْفًا ﴿٢﴾ وَٱلنَّٰشِرَٰتِ نَشْرًا ﴿٣﴾ فَٱلْفَٰرِقَٰتِ فَرْقًا ﴿٤﴾ فَٱلْمُلْقِيَٰتِ ذِكْرًا ﴿٥﴾ عُذْرًا أَوْ نُذْرًا ﴿٦﴾ إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَوَٰقِعٌ ﴾.

بيادعذاب وخت ښيي كوم چي مجرمينوته يې وعده وركول شوي ده فرمايي: ﴿ فَإِذَا ٱلنُّجُومُ طُمِسَتْ ﴿٨﴾ وَإِذَا ٱلسَّمَآءُ فُرِجَتْ ﴿٩﴾ وَإِذَا ٱلْجِبَالُ نُسِفَتْ ﴿١٠﴾ وَإِذَا ٱلرُّسُلُ أُقِّتَتْ ﴿١١﴾ لِأَيِّ يَوْمٍ أُجِّلَتْ ﴿١٢﴾ لِيَوْمِ ٱلْفَصْلِ ﴿١٣﴾ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا يَوْمُ ٱلْفَصْلِ ﴾.

له دې په وروسته دالله جل جلاله دسترقدرت دلائل سپړي چي انسان به وروسته له مرګه راستنوي اوله فناوروسته به بياژوندوركوي نوفرمايي: ﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿١٥﴾ أَلَمْ نُهْلِكِ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿١٦﴾ ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ ٱلْءَاخِرِينَ ﴿١٧﴾ كَذَٰلِكَ نَفْعَلُ بِٱلْمُجْرِمِينَ ﴿١٨﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿١٩﴾ أَلَمْ نَخْلُقكُّم مِّن مَّآءٍ مَّهِينٍ ﴾.

اونورومجرمينوبرخه ليک اوهغه عذاب رااخلي چي دوى به په آخرت كي ورسره لاس اوګرېوان وي ﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٢٨﴾ ٱنطَلِقُوٓاْ إِلَىٰ مَا كُنتُم بِهِۦ تُكَذِّبُونَ ﴿٢٩﴾ ٱنطَلِقُوٓاْ إِلَىٰ ظِلٍّ ذِى ثَلَٰثِ شُعَبٍ ﴿٣٠﴾ لَّا ظَلِيلٍ وَلَا يُغْنِى مِنَ ٱللَّهَبِ ﴿٣١﴾ إِنَّهَا تَرْمِى بِشَرَرٍ كَٱلْقَصْرِ ﴿٣٢﴾ كَأَنَّهُۥ جِمَٰلَتٌ صُفْرٌ ﴾.

وروسته له دې چي دمجرمينوحال بيان كړي ورپسې دمتقيانوڅخه غږېږي اوهغه انعامات اوجائزې يادوي كومي چي الله ﷻ ددوى لپاره چمتوكړي وي فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ فِى ظِلَٰلٍ وَعُيُونٍ ﴿٤١﴾ وَفَوَٰكِهَ مِمَّا يَشْتَهُونَ ﴿٤٢﴾ كُلُواْ وَٱشْرَبُواْ هَنِيٓـًٔا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٤٣﴾ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾.

اودسورت پاى دالله له عبادت څخه دكفارودامتناع په سبب بيانولوكېږي چي هغه دواحدقهار ذات څخه طغيان اوسرغړونه ده فرمايي: ﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٥﴾ كُلُواْ وَتَمَتَّعُواْ قَلِيلًا إِنَّكُم مُّجْرِمُونَ ﴿٤٦﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٧﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱرْكَعُواْ لَا يَرْكَعُونَ ﴿٤٨﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٩﴾ فَبِأَيِّ حَدِيثٍۭ بَعْدَهُۥ يُؤْمِنُونَ ﴾.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ وَٱلْمُرْسَلَٰتِ عُرْفًا ﴿١﴾ فَٱلْعَٰصِفَٰتِ عَصْفًا ﴿٢﴾ وَٱلنَّٰشِرَٰتِ نَشْرًا ﴿٣﴾ فَٱلْفَٰرِقَٰتِ فَرْقًا ﴿٤﴾ فَٱلْمُلْقِيَٰتِ ذِكْرًا ﴿٥﴾ عُذْرًا أَوْ
نُذْرًا ﴿٦﴾ إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَوَٰقِعٌ ﴿٧﴾ فَإِذَا ٱلنُّجُومُ طُمِسَتْ ﴿٨﴾ وَإِذَا ٱلسَّمَآءُ فُرِجَتْ ﴿٩﴾ وَإِذَا ٱلْجِبَالُ نُسِفَتْ ﴿١٠﴾ وَإِذَا ٱلرُّسُلُ أُقِّتَتْ
﴿١١﴾ لِأَيِّ يَوْمٍ أُجِّلَتْ ﴿١٢﴾ لِيَوْمِ ٱلْفَصْلِ ﴿١٣﴾ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا يَوْمُ ٱلْفَصْلِ ﴿١٤﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿١٥﴾ أَلَمْ نُهْلِكِ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿١٦﴾

ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ الْآخِرِينَ ﴿۱۷﴾ كَذَٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِينَ ﴿۱۸﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۱۹﴾ أَلَمْ نَخْلُقكُّم مِّن مَّاءٍ مَّهِينٍ ﴿۲۰﴾ فَجَعَلْنَاهُ
فِي قَرَارٍ مَّكِينٍ ﴿۲۱﴾ إِلَىٰ قَدَرٍ مَّعْلُومٍ ﴿۲۲﴾ فَقَدَرْنَا فَنِعْمَ الْقَادِرُونَ ﴿۲۳﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۲۴﴾ أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ كِفَاتًا ﴿۲۵﴾ أَحْيَاءً
وَأَمْوَاتًا ﴿۲۶﴾ وَجَعَلْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ شَامِخَاتٍ وَأَسْقَيْنَاكُم مَّاءً فُرَاتًا ﴿۲۷﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۲۸﴾ انطَلِقُوا إِلَىٰ مَا كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ
﴿۲۹﴾ انطَلِقُوا إِلَىٰ ظِلٍّ ذِي ثَلَاثِ شُعَبٍ ﴿۳۰﴾ لَّا ظَلِيلٍ وَلَا يُغْنِي مِنَ اللَّهَبِ ﴿۳۱﴾ إِنَّهَا تَرْمِي بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ ﴿۳۲﴾ كَأَنَّهُ جِمَالَتٌ
صُفْرٌ ﴿۳۳﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۳۴﴾ هَٰذَا يَوْمُ لَا يَنطِقُونَ ﴿۳۵﴾ وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ فَيَعْتَذِرُونَ ﴿۳۶﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۳۷﴾ هَٰذَا
يَوْمُ الْفَصْلِ جَمَعْنَاكُمْ وَالْأَوَّلِينَ ﴿۳۸﴾ فَإِن كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ فَكِيدُونِ ﴿۳۹﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۴۰﴾ إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي ظِلَالٍ وَعُيُونٍ
﴿۴۱﴾ وَفَوَاكِهَ مِمَّا يَشْتَهُونَ ﴿۴۲﴾ كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿۴۳﴾ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿۴۴﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ
لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۴۵﴾ كُلُوا وَتَمَتَّعُوا قَلِيلًا إِنَّكُم مُّجْرِمُونَ ﴿۴۶﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۴۷﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ارْكَعُوا لَا يَرْكَعُونَ ﴿۴۸﴾
وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۴۹﴾ فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ ﴿۵۰﴾ ﴾ المرسلات: ۱ - ۵۰

تفسير:

﴿ وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا ﴾ قسم دی په هغو بادونو چي لیږلي شوي دي (دالله له لوري) پی درپی پرله پسې (۱) مفسرین کرام لیکي چي دغه دعذاب بادونه دي چي الله جل جلاله وربandي ظالمان هلاکوي ﴿ فَالْعَاصِفَاتِ عَصْفًا ﴾ بیاقسم دی په هغو سختو خوځونکیو بادونو باندي چي الوزي په زور سره (چي وني له بېخه کاږي اوهیوادونه ویجاړوي تبني (خلي) ورانوي ﴿ وَالنَّاشِرَاتِ نَشْرًا ﴾ (پس قسم دی په هغوملائکو خورونکودوریځو (باران لره) (پورته کول خورول) یعني قسم دی په هغوپرښتوچي دوریځوپه شړلو باندي گمارل شوي ترڅوېي هغه ځای ته بوزي چېرته چي دالله اراده وي چي بیاهلته باران واوري او خلګ اوښارونه وربandي ژوندي کړي ﴿ فَالْفَارِقَاتِ فَرْقًا ﴾ بیا (قسم دی) په هغوملائکوچي جدائي کوي (په مینځ دحق اوباطل اوحلال حرام کي) (۲) جدائي کول ﴿ فَالْمُلْقِيَاتِ ذِكْرًا ﴾ پس (قسم دی په هغوپرښتو چي) راښکته کونکي دذکروحی پند دی (چي دالله کتابونه انبیاوو علیهم السلام ته راوړي) ﴿ عُذْرًا أَوْ نُذْرًا ﴾ لپاره دلیري کولودعذر (ترڅوچي دالله په وړاندي دوی ته دلیل پاتي نشي) اولپاره دوېرولو (له

---

(۱) مفسرینوددې پنځوآیتونوپه تفسیرکي زیات اختلاف کړی خینوله ټولوڅخه بادونه مرادکړي اوخینوټول عبارت له پرښتوڅخه ګڼلي اوخینوبیاجلاکړي دي. امام ابن جریر رحمه الله هکله توقف کړی دی اوموږ دابن کثیررایه اوهغه چي د التسهيل مؤلف غوره کړي راوړي ده کله چي وايي: خوراغرګندپه (المرسلات والعاصفات) کي دا چي داعبارت له بادونو دی اوخوراغرګندپه (الناشرات. والفارقات) کي داچي هغه پرښتې دي څکه چي (فالملقيات ذكرا) وروسته راغلي چي هیڅاهم دغه بادونه نه دي بللي څکه نو د متجانسینوعطف په فاسره راغلی اووايي (والمرسلات فالعاصفات) اوبیايي غیرجنس په واوعطف کړی چي (والناشرات) وروسته په فاعطف راوړی چي دغه ښه وینا ده.
(۲) البحرالمحيط ۸/ ۴۰۴

جانبه دالله په غضب اوعذاب سره) ﴿ إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَوَٰقِعٌ ﴾ بېشکه څه وعده چي له تاسي سره کړی شوي ده (دقيامت) خامخاواقع کېدونکي ده (دغه دقسم خواب دی چي قيامت اودحساب اوجزاچاري برحق دي هيڅ خلاصون ترې نشته مفسرين کرام ليکي چي الله تعالی په پنځوشيانولوړه کړي ترڅوچي دمقسم به دشان لوړوالی څرګند کړي نوقسم اخلي په بادونوچي رحمت اوعذاب لېږدوي اوبندګانوته خيراوشر راوړي اوپه ابرارو ملائکوقسم دی هغوی چي دعذردليري کولو او وېرولولپاره وحی راوړي چي دقيامت راتلل ارومروکېدونکي اوحق دي هيڅ شک اوشبه پکي نشته لکه چي الله دروغجن ګڼونکوته وعده ورکړي چي قيامت راتلونکي اوثواب عقاب شته دی نوپکي شبه کول نه ښايي (١)... ورپسې دهغه دراتلووخت داسي بيانوي فرمايي: ﴿ فَإِذَا ٱلنُّجُومُ طُمِسَتْ وَإِذَا ٱلسَّمَآءُ فُرِجَتْ ﴾ نوکله چي ستوري تورشي رڼايي ورکه شي اوکله چي آسمان څېري کړی شي ﴿ وَإِذَا ٱلْجِبَالُ نُسِفَتْ ﴾ اوکله چي غرونه والوزول شي (لکه دوړي ګردونه چي بادونه يې والوزوي لکه چي الله فرمايي ﴿ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّى نَسْفًا ﴾ (طه ١٠٥:) ﴿ وَإِذَا ٱلرُّسُلُ أُقِّتَتْ ﴾ او کله چي دپيغمبرانووخت وټاکلی شي (اوجمع کړی شي لپاره دشهادت اوترڅوددوی اوامتونو تر مينځ فيصله وکړای شي چي دغه دقيامت ورځ ده لکه چي الله تعالی فرمايي ﴿ يَوْمَ يَجْمَعُ ٱللَّهُ ٱلرُّسُلَ فَيَقُولُ مَاذَآ أُجِبْتُمْ ﴾ (المائدة:١٠٩) د(اُقِّتَتْ) اصل (وُقِّتت) ووچي له وقت څخه اخيستل شوی معناداچي ورته وخت وټاکل شي. طبري وايي: معناداچي داجتماع لپاره يې وخت مقرر شي چي د قيامت ورځ ده (٢) او مجاهدوايي چي داهغه وخت دی چي دوی پرخپلو امتونودګواهي (شاهدي) لپاره حاضرېږي (٣) ﴿ لِأَىِّ يَوْمٍ أُجِّلَتْ ﴾ دپاره دکومي ورځي وروستی کړی شوي دي (داځيزونه؟) استفهام دتعظيم اوتعجيب لپاره دی چي پدې ورځ کي څومره هيبت اوشدت دی؟ چي پيغمبران ورته وروستی کړی شوي دي؟ ﴿ لِيَوْمِ ٱلْفَصْلِ ﴾ لپاره (دشهادت) دورځي دفيصلې (په مينځ دخلګوکي هغه ورځ چي الله دپيغمبرانواوددوی دامتونوترمينځ کوم چي تکذيب کونکي امتونه وي عادلانه فيصلې کوي ﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا يَوْمُ ٱلْفَصْلِ ﴾ اوڅه شي پوه کړی يې ته چي څه دی ورځ دفيصلې؟ استفهام لپاره دتعظيم اوتهويل دی يعني ای انسانه ته څه شي پوه کړې چي دفيصلې دورځي هيبت اوسختي به څومره وي دغه ورځ تردې غټه ده چي دهغې چاري دانسان په عقل کي راشي، دلته دضميرپرځای ظاهرراغلی چي فرمايلي يې دي ﴿ مَا يَوْمُ ٱلْفَصْلِ ﴾ اوداسي يې ندي ويلي چي (ماهو) ترڅودنوموړي ورځي په هيبت اوسختي باندي تنبيه وفرمايي. امام فخر رازي ليکي چي بندګانوته ددې تعجب ورکول دي چي دغه څومرهستره ورځ ده؟ نويې وفرمايل ﴿ لِأَىِّ يَوْمٍ أُجِّلَتْ ﴾ چي دکومي ورځي لپاره له پيغمبرانو سره دغه

---

(١) کبيرتفسير ٣٠/ ٢٢٥
(٢) طبري ٢٩/ ١٤٣
(٣) کبيرتفسير ٣٠/ ٢٢٥

اړوندي چارې وښندېږي كوم چي دمكذبينو تعذيب اودمؤمنانو تعظيم دى او ترڅوهغه څه ځرګندشي كوم چي دوى به خلګ ورباندي ايمان راوړلو ته رابلل چي كړاوونه، حساب اوكتاب دي وروسته الله تعالى فرمايي ﴿ لِيَوْمِ ٱلْفَصْلِ ﴾ چي هغه دفيصلې ورځ ده كوم چي رحمان ذات دخلګو ترمينځ فيصلې فرمايي اوبيايې دهغې تعظيم دوهم ځلي داسي وفرمايو چي ﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا يَوْمُ ٱلْفَصْلِ ﴾ چي په څه پوهېږې چي دفيصلې دورځي سختي اوهيبت به څومره وي؟ ځواب دشرط چي فرمايي ﴿ فَإِذَا ٱلنُّجُومُ ﴾ محذوف دى ځكه چي كلام ورباندي دلالت كوي اوتقديريې داچي: (هغه تاسوته وعده دركړى شوي واقع شواوكوم چي پيغمبرانوبه تاسوته دقيامت دراتلوويل هغه راغى) اوپه داډول حذف دبياني ايجازله طريقوڅخه دى چي قرآنكريم يې امتيازلري ﴿ وَيۡلٌ يَوۡمَئِذٍ لِّلۡمُكَذِّبِينَ ﴾ افسوس هلاک.خرابي ده په دغي ورځي كي دروغ ويونكولره (په ورځ دقيامت باندي) مفسرين كرام وايي چي دغه جمله يې پدې سورت كي لس ځله مكرره راوړي ده ترڅوچي زيات ترغيب اوترهيب افاده كړي په هره جمله كي دآخرت له چاروڅخه يادونه اوددنياله حالاتوڅخه بيان شوى دى نومناسب داچي له هري جملې وروسته دي دهلاكت اوافسوس وعيدد كفاروفجارو لپاره راوړل شي اوځرنګه چي دالدهرپه سورت كي چي تردې له مخه وودكفارو ځيني حالات په آخرت كي يادشول خو د مؤمنانوپه تفصيل سره هلته حالات بيان شوي وو نوپدې سورت كي دكفاروحالات په تفصيل سره بيان اود مؤمنانوپه لنډه توګه راغلي دى.. وروسته له دې چي دقيامت دخبرتينګاريې وفرمايو چي هغه خامخا حق دى راځي اوپس له دې څخه چي دروغجن ګڼونكي يې ددغه ورځي له سختيواو كړاوونو څخه و ېرول بيرته دې ته راستون شوچي دوى دالله له نيولواو انتقام څخه په نورو طريقوسره وېروي نوفرمايي: ﴿ أَلَمۡ نُهۡلِكِ ٱلۡأَوَّلِينَ ﴾ آياندي هلاک كړي موږ مجرم خلګ ړومبني؟(لكه دنوح ﷺقوم، عاديان اوثموديان بلكه هلاک كړي مودي) ﴿ ثُمَّ نُتۡبِعُهُمُ ٱلۡأٓخِرِينَ ﴾ بياورلېږوپه هغوپسي وروستني (مكذبان لكه قوم دلوط(ﷺ) ،شعيب(ﷺ) اوقوم دموسى(ﷺ) (فرعون اوپلويان يې) اونورچي ددوى په پله روان وي ﴿ كَذَٰلِكَ نَفۡعَلُ بِٱلۡمُجۡرِمِينَ ﴾ همداسي كاركوو موږ له ټولو مجرمانو، ګنهګارانوسره (چي دغه دمكې كفارهم دسيدالمرسلين تكذيب كړي نوله دوى سره به هغسي چلندوشي)﴿ وَيۡلٌ يَوۡمَئِذٍ لِّلۡمُكَذِّبِينَ أَلَمۡ نَخۡلُقكُّم مِّن مَّآءٍ مَّهِينٍ ﴾ افسوس هلاک خرابي ده په دغي ورځي كي دروغ ويونكولره آيانه يې پيداكړي موږ تاسي له اوبو سپكو(دمني څخه،دغه دمكذبينو لپاره يادونه اوددوى له غفلت څخه تعجب دى چي دوى ځرنګه له يومعلوم څيزڅخه ستركي پټوي هغه داچي دوى يې له خواري نطفې څخه پيداكړي نوبياهغه ذات چي داسي پيدايښت كولاى شي پردې قادر دى چي دوى دبعث اوحساب لپاره راپاڅوي معناداچي اى كفارو آياتاسويې دنارينه له خوارو اوبو (مني) څخه پيداكړي نه ياست؟ اوپه قدسي حديث شريف كي راځي

(ای بنیادمه چېري به مي ته مغلوب کړې حال داچي له داسي څېزڅخه مي پيدا کړی يې)(١) ﴿ فَجَعَلْنَٰهُ فِى قَرَارٍ مَّكِينٍ ﴾ نوومو ساتلې هغه (اوبه) په ځای دقراري ټينګ کي (چي دښځي رحم دی) ﴿ إِلَىٰ قَدَرٍ مَّعْلُومٍ ﴾ ترنېټې معلومي (په نزددالله اوهغه وخت (ولادت) پوري ﴿ فَقَدَرْنَا فَنِعْمَ ٱلْقَٰدِرُونَ ﴾ (پس قادريوموږ په دغو(کارونو) باندي پس ښه قادران يوموږ) يعني موږ له نطفې څخه په پيدا کولوتوان لرو اوښه قادران يوچي په ښکلي صورت اوښايسته قداوقامت موپيدا کړي دي ﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴾ افسوس هلاک خرابي ده په دغي ورځي کي دروغ ويونکيولره (په قدرت زموږ باندي صاوي ليکي چي پدې آيت شريف کي کفاروته ددې يادونه ده چي الله څومره سترنعمت ورباندي کړی او الله څومره دلوړقدرت خاونددی چي دوی يې لوږی څل پيدا کړي اوڅوک چي په لوړني پيداينښت قادر وي هغه په بيرته راپاڅولواوبعث باندي هم قادر دی اوپدې کي دبعث په منکرانو باندي رد راغلی دی..(٢) له دې وروسته ديوبل نعمت يادونه ده چي دوی په ژوند کي په ځمکه برسېره بسيا کړي او په مرګ به يې په ګېډه دځمکي کي خښوي نوفرمايي ﴿ أَلَمْ نَجْعَلِ ٱلْأَرْضَ كِفَاتًا ۝ أَحْيَآءً وَأَمْوَٰتًا ﴾ آيا موږ نده ګرزولې ځمکه جمع کونکي (په شاخپلي) ژوندیولره اومړيولره (په ګېډه خپله کي) يعني ځمکه لکه چي ددوی موروي ژوندي په شاګرزوي او مړي په نس کي. مفسرين ليکي(کفت) جمع اورانژدې کولوته وايي ځمکه هم ټول بشرسره راټولوي او ددوی لپاره ځمکه لکه مور غوندي ده ژوندي انسانان دهغې په شاباندي په کورونواوځايونوکي اوسي اومړي يې په ګېډه کي په قبرونوکي دي ﴿ مِنْهَا خَلَقْنَٰكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ ﴾ شَعبي وايي: معناداچي ګېډه دځمکي لپاره د مړيوستاسي اوشاېي لپاره دژونديو ستاسي (٣) ﴿ وَجَعَلْنَا فِيهَا رَوَٰسِىَ شَٰمِخَٰتٍ ﴾ اوپيدا کړي مودي پدې (ځمکه) کي غرونه لوی لوړ (ترڅو

---

(١) دغه حديث شريف امام احمد په خپل مسند کي راوړی او ابن ماجه په سنن کي او دڅيني حديث معناداچي: رسول الله صلی الله عليه وسلم يوه ورځ په خپل ارغوي کي ناره وتوکله اوپه هغې يې ګوته کېښودله بيايې وويل: الله عزوجل وايي: ای بنيادمه چېري به مي ته مغلوب کړې چي له داسي څېزڅخه مي پيدا کړی يې بيامي سم جوړښت درکړ... د حديث ترپايه

(٢) صاوي حاشيه په جلالين باندي ۴ /۲۸۰

(٣) مختصرابن کثير ۳ /۵۸۸ قرآنکريم دغرونودشتون حکمت ترپخواله دې چي علم يې کشف کړي څرګند کړی دی، غرونه لکه د ځمکي مېخونه داسي حيثيت لري چي هغه له خوځښت اوښوريدلوڅخه ژغوري لکه چي دخېمې مېخونه خېمه له خوځېدلوڅخه ژغوري داسي خوځېدلورا ګرزوي اووحی دغه معناداسي افاده کړي چي په سورة النحل کي فرمايي ﴿ وَأَلْقَىٰ فِى ٱلْأَرْضِ رَوَٰسِىَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ ﴾ اوکه دغه اوچت غرونه نه وای نوځمکه به په هغوګازونو او بخاراتوچي په ګېډه (تل )کي يې شته تل په خوځښت او زلزال کي وه‌هسي لکه ښه چي په هواکي الوتلي وي نوالله لره ثناو صفت دی چي آسمان څک غرونه يې ورباندي پيدا کړل اوپه هغوکي يوبل نعمت داچي ورېځي ورباندي راځي او بارانونه واوري ورباندي اوري چي بياچيني او رودونه ترې را بهيږي بياوني اوکښتونه ورباندي اوبيږي اووده مومي غرونه دواوروااوبارانونوذخيري دي څکه الله داوبو نعمت ورسره بل يوځای کوي چي ﴿ وَأَسْقَيْنَٰكُم مَّآءً فُرَاتًا ﴾ دغه دقرآن کريم په زړه پوري رازونه دي

نغنوخبري پر تاسو باندي)(١) ﴿وَأَسْقَيْنَٰكُم مَّآءً فُرَاتًا﴾ اودروموخښلې تاسي ته خوږې اوبه تنده ماتونکي (له وريځو اوله چينواونهرونوڅخه مودرته راوايستې ترڅوتاسواوستاسوڅاروي يې وڅښي وني اوکښتونه ور باندي اوبه کړی ﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾ افسوس هلاک خرابي ده په دغه ورځ کي لپاره ددروغ ويونکيو (په دغو مخلوقاتواونعمتونوباندي) ﴿ٱنطَلِقُوٓا۟ إِلَىٰ مَا كُنتُم بِهِۦ تُكَذِّبُونَ﴾ ځئ لاړشئ هغه څېزته چي وی تاسي چي په هغه(عذاب داور) به مودروغ ويل(په دنياکي داهغه وينا ده چي داور پربښتې به دوی ته دتقريع اوتوبيخ په توګه وايې بيادد غه عذاب تفصيل داسي بيانوي چي ﴿ٱنطَلِقُوٓا۟ إِلَىٰ ظِلٍّ ذِى ثَلَٰثِ شُعَبٍ﴾ ځئ لاړشئ تاسي! هغه سيوري ته چي خاوند دد ريو څانګو (ښاخونو) دي يعني ولاړشئ هغه سيوري ته چي ددوزخ له دود،لوګي څخه جوړدی اودرې څانګي ورڅخه جلاشوي دي ﴿لَّا ظَلِيلٍ وَلَا يُغْنِى مِنَ ٱللَّهَبِ﴾ چي نه به وي داسيوري يخ اونه به دفع کوي(له دوی نه هيڅ شی) له لمبې داور څخه) يعني نه خوبه په لاندني تن باندي سيوری کوي چي دلمرله وړانګويې وساتي لکه چي به دسيوري حال وو اونه به اورلمبې ورڅخه دفع کړي کومي چي له هره لوري پورته کېږي طبري ليکي: معناداچي نه خوبه له ګرمي ورباندي سيوری کوي اونه به يې له لمبوڅخه ژغوري څکه چي دغه ددوزخ داور دود(لوګی) دی کله چي لوړپورته شي نوبه درې ښاخونه ځني پيداشي. مفسرين کرام ليکي چي د معذبينوعذاب ته يې سيوری دتهکم اواستهزاء په توګه وويل نومؤمنان به په سيورو اوچينوکي وي مجرمان به په ګرمي اودغه دلوګي په سيوري کي وي دغه خوسيوری نه ګڼل کېږي بلکه پردوی باندي تهکم اواستهزاء ده ورپسې الله تعالی دجهنم کړاوونه داسي بيانوي چي ﴿إِنَّهَا تَرْمِى بِشَرَرٍ كَٱلْقَصْرِ﴾ بېشکه هغه(اور) ويشتل کوي په هسي بڅرکو سکروټو سره (چي هره يوه سره سکروټه به يې وي لکه (لوړه) غټه مانۍ. ابن کثيروايي: له لمبوڅخه به يې داسي سرې سکروټې الوزي لکه برجونه (٢)﴿كَأَنَّهُۥ جِمَٰلَتٌ صُفْرٌ﴾ ګواکي هغه (بڅرکي سکروټي قطارد ) اوښانوژېړودي (په رنګ اوګړندي تګ کي. امام رازي ليکي: الله تعالی بڅرکی په لويوالي کي له غټو ماڼيو سره اوپه رنګ اوډېروالي کي له ژېړواوښانوسره مشابه کړل (٣)او دغه خوراپه زړه پوري تشبيه ده څکه کله چي داوربڅرکي لکه غټه مانۍ غوندي وي نودلمبو به يې څه حال وي ؟ الله جل جلاله مودي دجهنم له اوره پخپل فضل اومرحمت سره وژغوري ﴿وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ﴾ افسوس هلاک خرابي ده په دغي ورځي کي دروغ ويونکيولره (په آيتونود الله) ﴿هَٰذَا يَوْمُ لَا يَنطِقُونَ﴾ دا هغه ورځ ده چي(کتوري) خبري به نکوي (کفار) يعني دغه داسي هيبتناکه ورځ ده چي دغه دروغ ويونکي کفاربه پکي داسي خبري چي ورته ګټه ورسوي نه کوي دوی به لکه ګونګيان اوکاڼه غوندي وي ﴿وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ

---

(١) مختصرابن کثير ٣ /٥٨٨
(٢) کبيرتفسير ٣٠ /٢٧٧

﴿ فَيَعْتَذِرُونَ ﴾ اوحکم به ونکړشي دوی ته چي عذروغواړي (اونه به معذرت ورته ګټه ورسوي چي ترې ومنل شي لکه چي الله تعالی فرمايي﴿ يَوْمَ لَا يَنفَعُ الظَّالِمِينَ مَعْذِرَتُهُمْ ﴾(غافر:۵۷) ﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴾ افسوس هلاک خرابي ده دروغ ويونکيولره (په دغي ورځ دقيامت باندي) ﴿ هَٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ جَمَعْنَاكُمْ وَالْأَوَّلِينَ ﴾ دغه ورځ دفيصلې ده (چي الله دنيکمرغه اوبدمرغه خلګو ترمينځ فيصلې کوي) تولوو موږتاسي (ای مکذبانو ) اوپخواني خلګ هم ﴿ فَإِن كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ فَكِيدُونِ ﴾ پس که وي تاسي لره څه کيدمکرچل (په دفع کولو دعذاب کي) نووکړئ دغه مکرچل مو (ترڅو چي ځانونه دالله له انتقام او بطش څخه وژغوري دغه ددوی لپاره توبيخ اوتعجيزدی ) ﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴾ افسوس هلاک خرابي ده په دغه ورځي کي دروغ ويونکيولره(په ورځي دجزاء باندي) وروسته له دې چي دمجرمينواحوال يې ذکرکړل نو ورپسې دنېکمرغه متقيانوحال داسي راوړی چي ﴿ إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي ظِلَالٍ وَعُيُونٍ ﴾ خامخا پرهېزګاران وپرېدونکي به (دجنت دونودلاندي) په مېوو کي وي اوپه (غاړه ) دچينوکي به وي (چي په دارخلدکي به په نعمتونواوکرامتونونازول شوي وي) برعکس دمجرمينواومکذبينوهغه چي داور د لوګي په سيوري کي به اوسي کوم چي نه به ګرمي دفع کوي اونه به تنده ماتوي اونه به يې اوسېدونکي پرته داورله بخرکوڅخه بل څه راحت مومي ﴿ وَفَوَاكِهَ مِمَّا يَشْتَهُونَ ﴾ اوپه مينځ دمېووکي به وي له هغه دوله چي دوی يې غواړي (اوخوښوي يې) ﴿ كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ اوپرښتې به مؤمنانوته وايې چي )خورئ تاسي اوڅښئ تاسي پداسي حال کي چي لذت اخيستونکي ياست په بدل دهغو اعمالوکي چي کول به مو(په دنيا کي) يعني دوی ته به دپېرزويني په توګه چي تعظيم اودرناوی پکې وي وويل شي چي دغه خوندور اولذيذخوراک څښاک کوئ په سبب دهغونيکواعمالوچي په دنياکي موترسره کړي وو ﴿ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴾ (لکه چي جزاء مومتقيانوته ورکړه ستره ) بېشکه موږ همداسي ښه بدل ورکوو نيکانوته (کوم چي دخالص نيت خاوندان اوله الله څخه وېرېږي) ﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴾ افسوس هلاک خرابي ده په دغي ورځي کي دروغ ويونکيولره (په يوم الدين باندي) ﴿ كُلُوا وَتَمَتَّعُوا قَلِيلًا إِنَّكُم مُّجْرِمُونَ ﴾ خورئ تاسي اونفع اخلئ (ای مکذبانوله نعمتونودفاني دنيا ) لږي ورځي بېشکه يې تاسي مجرمان (په عقبی کي يعني کفاروته به دتهديداووعيدپه توګه وويل شي چي د ځارويوپه شان ددې دنيايوڅوورځي لذت واخلئ ګېډي مړې کړئ شهوتونه ترسره کړئ ترڅو مواجل را رسېږي تاسي دانعام اوتکريم وړنه ياست تاسي مجرمان ياست﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴾ افسوس هلاک خرابي ده په دغي ورځي کي دروغ ويونکيولره (په نعمتونودالله) ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ارْكَعُوا لَا يَرْكَعُونَ ﴾ اوکله چي وويل شي (په دنياکي) دغو(مکذبينو ) ته چي رکوع وکړئ لمونځ وکړئ تاسي (الله ته) نه کوي دوی رکوع لمونځ (الله ته) بلکه استکبارکوي. مقاتل وايي: دغه آيت شريف دثقيف قوم په هکله نازل شوی دی کوم چي له لمانځه څخه

يې ممانعت وکړ اورسول الله صلی الله علیه وسلم ته یې وویل چې له موږ څخه لمونځ ساقط کړه موږ
کړېدلای نشو داپرموږ ډېره گرانه ده خورسول الله صلی الله علیه وسلم ونه منله او ورته یې وویل: (په هغه
دین کې ښېگڼه نشته په کوم کې چې لمونځ نه وي(١) ﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴾ هلاک افسوس خرابي ده په
دغې ورځې کې دروغ ویونکیو لره(په اوا مرو او نواهیو دالله) ﴿ فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُۥ يُؤْمِنُونَ ﴾ پس په
کومې خبرې باندې وروسته له دې قرآنه به ایمان یقین راوړي( دغه منکران؟) یعنې پرته له دغه قرآنه په
بل کوم کلام اوکتاب باندې ایمان راوړي چې پدې یې رانه وړی؟ کله چې دوی په قرآن کافران شي سره له
دې چې په اعجازکې وروستي پړاوته رسېدلی دلیل یې خوراځرگندا وبیان یې ښېخې په زړه پوري دی
نوله دې وروسته به دوی په څه شي ایمان راوړي؟ قرطبي لیکي چې دغه قول ﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴾ لس
څله مکرر دتخویف اووعید لپاره راغلی، چابیاویلي چې دغه تکرارنه دی بلکه هریوېې له بل څخه بیله
معنا افاده کوي لکه چې یوځېزېې یاد کړی وي او ویلي وي چې هلاکت دی هغه چالره چې دروغ یې گڼي
همداسي ترپایه پوري

بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې دبدیع اوبیان کومې ښکلاوې شته لندیزیې دادی:

١- تاکید په مصدرسره چې دبیان زیاتوالی اودکلام ټینگښت افاده کړي لکه ﴿ فَٱلْعَٰصِفَٰتِ عَصْفًا
وَٱلنَّٰشِرَٰتِ نَشْرًا فَٱلْفَٰرِقَٰتِ فَرْقًا ﴾ او دغه له لفظي محسناتو څخه هم شمېرل کېږي.....

٢- دطباق صنعت چې د ﴿ عُذْرًا أَوْ .....نُذْرًا ﴾ اود ﴿ أَحْيَآءً .....وَأَمْوَٰتًا ﴾ او د ﴿ ٱلْأَوَّلِينَ..... ٱلْءَاخِرِينَ ﴾
ترمینځ راغلی اوله بدیعي محسناتو څخه دی.

٣- دضمیرپرځای دظاهر راتلل اوهمداسي داستفهام په صیغه راوړل چې ﴿ لِأَيِّ يَوْمٍ أُجِّلَتْ لِيَوْمِ
ٱلْفَصْلِ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا يَوْمُ ٱلْفَصْلِ ﴾ ترڅو چې ددغې ورځې فظاعت اوهیبت وښیي.

٤- تقریري استفهام چې فرمایي ﴿ أَلَمْ نُهْلِكِ ٱلْأَوَّلِينَ ﴾ او همداسي ﴿ أَلَمْ نَخْلُقكُّم مِّن مَّآءٍ مَّهِينٍ ﴾.

٥- غیرتام جناس چې د ﴿ مَّهِينٍ ﴾ او ﴿ مَّكِينٍ ﴾ ترمینځ شتون لري

٦- مرسله مجمله تشبیه لکه ﴿ إِنَّهَا تَرْمِى بِشَرَرٍ كَٱلْقَصْرِ ﴾ اومرسله مفصله تشبیه لکه ﴿ كَأَنَّهُۥ
جِمَٰلَتٌ صُفْرٌ ﴾ چې راغلي ده.

٧- مقابله چې دابرارو دنعمتونو اودفجارو دعذابونو ترمینځ راغلي لکه دالله تعالی پدې کلام کې
﴿ إِنَّ ٱلْمُتَّقِينَ فِى ظِلَٰلٍ وَعُيُونٍ وَفَوَٰكِهَ مِمَّا يَشْتَهُونَ كُلُوا۟ وَٱشْرَبُوا۟ هَنِيٓـًٔۢا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴾ چې په مقابل کې یې راځي
﴿ كُلُوا۟ وَتَمَتَّعُوا۟ قَلِيلًا إِنَّكُم مُّجْرِمُونَ ﴾.

(١) البحر المحیط ٨/ ٤٠٨

۸ – د تهکم اسلوب چي فرمايي ﴿ ٱنطَلِقُوٓاْ إِلَىٰ ظِلّٖ ذِي ثَلَٰثِ شُعَبٖ لَّا ظَلِيلٖ وَلَا يُغۡنِي مِنَ ٱللَّهَبِ ﴾ عذاب ته يې سيوري پردوی باندي د سخريې او استهزاء کولو په توګه وواييو.

۹ – مرسل مجاز لکه دا چي ﴿ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱرۡكَعُواْ لَا يَرۡكَعُونَ ﴾ رکوع يې راوړه اولمونځ يې مقصد دی نو دغه اطلاق د جزء او اراده د کل ده يعني کله چي ورته وويل شي لمونځ وکړئ لمونځ نه کوي

۱۰ – د فواصلو توافق چي په وروستني توري کي راغلی دی لکه ﴿ هَٰذَا يَوۡمُ لَا يَنطِقُونَ وَلَا يُؤۡذَنُ لَهُمۡ فَيَعۡتَذِرُونَ إِنَّ ٱلۡمُتَّقِينَ فِي ظِلَٰلٖ وَعُيُونٖ وَفَوَٰكِهَ مِمَّا يَشۡتَهُونَ ﴾ ترپايه پوري او دغه ته مرصع سجع وايي چي له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي

دالله په مرسته د المرسلات سورت د تفسير ژباړه بشپړه شوه.

***

## دنبأ سورت مکي دی او څلويښت آيتونه لري.

د سورت په وړاندي:

د(عم)سورت چي دنبأ سورت يې هم بولي څکه چي پدي کي دقيامت دورځي مهم خبرچي دبعث او نشور په هکله دی راغلی ، د سورت محور دبعث دعقيدې اثبات دی هغه چي دېرڅله به مشرکانو ور څخه انکار کاوو.

سورت دقيامت په موضوع پيلېږي او دپاڅېدلو او جزآء خبري هغه چي دمکې دزياتره کافرانو ذهنونه يې مشغول کړي وو آن تردې چي چا به منل او چا به دروغ ګڼل راوړي فرمايي ﴿ عَمَّ يَتَسَآءَلُونَ عَنِ ٱلنَّبَإِ ٱلۡعَظِيمِ ﴾ او نور آيتونه.

ورپسې درب العالمين په قدرت باندي دليلونه راوړي څکه هغه ذات چي عجيب او غريب مخلوق يې پيدا کړی نو دانسان له پيدا کېدلو وروسته بيرته ژوندي کول ورته ډېر آسانه دي ﴿ أَلَمۡ نَجۡعَلِ ٱلۡأَرۡضَ مِهَٰدٗا وَٱلۡجِبَالَ أَوۡتَادٗا وَخَلَقۡنَٰكُمۡ أَزۡوَٰجٗا وَجَعَلۡنَا نَوۡمَكُمۡ سُبَاتٗا ﴾ او نور آيتونه

بيا دبعث او پاڅېدلو يادونه کوي وخت او ټاکلي موده يې ښيي چي په دغه ورځ دخلګو ترمينځ فيصلې کېږي او ړومبني وروستني به ګرد دحساب لپاره راغونډ کړی شي ﴿ إِنَّ يَوۡمَ ٱلۡفَصۡلِ كَانَ مِيقَٰتٗا يَوۡمَ يُنفَخُ فِي ٱلصُّورِ فَتَأۡتُونَ أَفۡوَاجٗا ﴾ د آيتونه ترپايه.

وروسته بيا د هغه دوزخ خبري کوي کوم چي الله جل جلاله دکفارو لپاره تيار کړي دي او ډول ډول عذابونه پکې دي فرمايي ﴿ إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتۡ مِرۡصَادٗا لِّلطَّٰغِينَ مَـَٔابٗا لَّٰبِثِينَ فِيهَآ أَحۡقَابٗا ﴾ د آيتونو ترپايه

کله چي دکافرانو خبر واوروي بيا نو دمتقيانو پرهېزګارانو خبر راوړي او هغه قسما قسم نعمتونه چي الله جل جلاله تيار کړي بيانوي او دغه شان دقرآنکريم ځانګړی اسلوب دی چي ترغيب او ترهيب سره يوځای راوړي فرمايي ﴿ إِنَّ لِلۡمُتَّقِينَ مَفَازًا حَدَآئِقَ وَأَعۡنَٰبٗا وَكَوَاعِبَ أَتۡرَابٗا وَكَأۡسٗا دِهَاقٗا ﴾ د آيتونو ترپايه.

په پای کي دقیامت دورخي هیبت راخي هلته چي کافربه ددې آرزو او تمنا کوي چي کاشکي ورسره حساب او کتاب نه کېدلای او خاوري ایرې وای ﴿ إِنَّآ أَنذَرْنَٰكُمْ عَذَابًا قَرِيبًا يَوْمَ يَنظُرُ ٱلْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ وَيَقُولُ ٱلْكَافِرُ يَٰلَيْتَنِى كُنتُ تُرَٰبًۢا ﴾

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ عَمَّ يَتَسَآءَلُونَ ﴿١﴾ عَنِ ٱلنَّبَإِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٢﴾ ٱلَّذِى هُمْ فِيهِ مُخْتَلِفُونَ ﴿٣﴾ كَلَّا سَيَعْلَمُونَ ﴿٤﴾ ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُونَ ﴿٥﴾ أَلَمْ نَجْعَلِ
ٱلْأَرْضَ مِهَٰدًا ﴿٦﴾ وَٱلْجِبَالَ أَوْتَادًا ﴿٧﴾ وَخَلَقْنَٰكُمْ أَزْوَٰجًا ﴿٨﴾ وَجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا ﴿٩﴾ وَجَعَلْنَا ٱلَّيْلَ لِبَاسًا ﴿١٠﴾ وَجَعَلْنَا
ٱلنَّهَارَ مَعَاشًا ﴿١١﴾ وَبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعًا شِدَادًا ﴿١٢﴾ وَجَعَلْنَا سِرَاجًا وَهَّاجًا ﴿١٣﴾ وَأَنزَلْنَا مِنَ ٱلْمُعْصِرَٰتِ مَآءً ثَجَّاجًا ﴿١٤﴾
لِّنُخْرِجَ بِهِۦ حَبًّا وَنَبَاتًا ﴿١٥﴾ وَجَنَّٰتٍ أَلْفَافًا ﴿١٦﴾ إِنَّ يَوْمَ ٱلْفَصْلِ كَانَ مِيقَٰتًا ﴿١٧﴾ يَوْمَ يُنفَخُ فِى ٱلصُّورِ فَتَأْتُونَ أَفْوَاجًا ﴿١٨﴾
وَفُتِحَتِ ٱلسَّمَآءُ فَكَانَتْ أَبْوَٰبًا ﴿١٩﴾ وَسُيِّرَتِ ٱلْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا ﴿٢٠﴾ إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا ﴿٢١﴾ لِّلطَّٰغِينَ مَـَٔابًا ﴿٢٢﴾
لَّٰبِثِينَ فِيهَآ أَحْقَابًا ﴿٢٣﴾ لَّا يَذُوقُونَ فِيهَا بَرْدًا وَلَا شَرَابًا ﴿٢٤﴾ إِلَّا حَمِيمًا وَغَسَّاقًا ﴿٢٥﴾ جَزَآءً وِفَاقًا ﴿٢٦﴾ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ لَا
يَرْجُونَ حِسَابًا ﴿٢٧﴾ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا كِذَّابًا ﴿٢٨﴾ وَكُلَّ شَىْءٍ أَحْصَيْنَٰهُ كِتَٰبًا ﴿٢٩﴾ فَذُوقُوا۟ فَلَن نَّزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا ﴿٣٠﴾
إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا ﴿٣١﴾ حَدَآئِقَ وَأَعْنَٰبًا ﴿٣٢﴾ وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا ﴿٣٣﴾ وَكَأْسًا دِهَاقًا ﴿٣٤﴾ لَّا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا كِذَّٰبًا ﴿٣٥﴾ جَزَآءً مِّن رَّبِّكَ
عَطَآءً حِسَابًا ﴿٣٦﴾ رَّبِّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ٱلرَّحْمَٰنِ لَا يَمْلِكُونَ مِنْهُ خِطَابًا ﴿٣٧﴾ يَوْمَ يَقُومُ ٱلرُّوحُ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ صَفًّا لَّا
يَتَكَلَّمُونَ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ ٱلرَّحْمَٰنُ وَقَالَ صَوَابًا ﴿٣٨﴾ ذَٰلِكَ ٱلْيَوْمُ ٱلْحَقُّ فَمَن شَآءَ ٱتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ مَـَٔابًا ﴿٣٩﴾ إِنَّآ أَنذَرْنَٰكُمْ
عَذَابًا قَرِيبًا يَوْمَ يَنظُرُ ٱلْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ وَيَقُولُ ٱلْكَافِرُ يَٰلَيْتَنِى كُنتُ تُرَٰبًۢا ﴿٤٠﴾ ﴾ النبأ: ۱ - ۴۰

**لغتونه:**

(سباتا) (سبت) په لغت کي قطع او غوڅېدلو ته وایې شپې ته څکه (سبات) ویلی شوي چي هغه هم کار او روزګار قطع کوي (وهاجا) ځلېدونکي پرکېدونکي ته وایې لکه چي عرب وایې (وهجت النار) اور وځلېدو کله چي رڼاشي (ثجاجا) سخت توئېدونکي ته وایې په حدیث شریف کي راځي (أفضل الحج العج والثج) ترټولو غوره حج هغه دی چي زیاته تلبیه پکي وویله شي او زیاته وینه پکي وبهول شي (عج) په تلبیه کي غږ پورته کولو ته وایې او (ثج) دوینو تویولو هدایا او حلالولو ته وایې (کواعب) دکاعب جمع او هغې ته ویل کېږي چي تی یې راپورته شوی وي (دهاقا) ډک پېمانه لکه چي وایې (أدهقت الكاس) جام مي ډک کړ.

**تفسیر:**

﴿ عَمَّ يَتَسَآءَلُونَ ﴾ له څه شي څخه پوښتنه کوي (کفار) یو له بله یاله مؤمنانو څخه؟) اصل د(عم) عن ما، وو میم په نون کي مدغم شوی او الف حذف شوی دی (عما) لیکل کېږي (ما) داستفهام توری دی او دلته یوازي استفهام نه بلکه دچاري لوی والی او عظمت مراد شوی دی، مشرکانو به خپل مینځ کي د

بعث اوپاڅېدلو په هکله یوله بله پوښتل اوبیا به یې استهزآء اوانکارکاوو ځکه نوداستفهام په بڼه د امر لوی والی وښودل شوچي اورېدونکوته دمشرکانو دحال څخه تعجب ورکړي او ورپسې الله تعالی دغه سترامر داسي توضیح کوي چي﴿ عَنِ ٱلنَّبَإِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ (پوښتنه کوي (کفار) دلویې خبري) یعني له یو ستر اومهم امرڅخه چي بعث اوپاڅېدلو امردي(۱)پوښتنه کوي ﴿ ٱلَّذِى هُمْ فِيهِ مُخْتَلِفُونَ ﴾(هغه چي دوی پکي مختلف دي)(۲)یعني هغه چي دوی دهغه په هکله سره یوله بله اختلاف لري څوک یې نه مني ترې انکارکوي دروغ یې ګڼي اوڅوک پکي شکمن دي﴿كَلَّا سَيَعْلَمُونَ ﴾(ندي کوي دااختلاف)ژربه وپوهېږي) (کلا )دزجرکلمه ده یعني دوی دي له دې و وېرېږي چي دبعث په هکله پوښتني کوي دوی به ژردحال په حقیقت وپوهېږي کله چي قیامت ویني هلته به دوی دخپلو ملندواواستهزاء ګانوپه سزا ورسېږي ﴿ ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُونَ ﴾ بیاهیڅکله دي نه کوي پوښتني او اختلاف ژربه وپوهېږي ، دغه دپخواني وعید تاکیددی معناداچي دوی به ژروپوهېږي چي کوم عذاب  وربانديې نازلېږي ؟ بیاالله پخپل قدرت باندي ددلائلولوري ته اشاره فرمایي ترڅوپه کفارو باندي د دوی دانکارپه هکله حجت شي اولکه چي وایې هغه الله چي ددې سترومخلوقاتوپه پیدا کولوقادر دی هغه یې په بیرته راپاڅولو اوژوندي کولو هم قادر اوتوانادی فرمایي ﴿ أَلَمْ نَجْعَلِ ٱلْأَرْضَ مِهَٰدًا ﴾(آیانده ګرزولي موږځمکه فرش) یعني هغه ځمکه چي تاسو وربانديې اوسی آیاموږهغه ستاسي لپاره لکه فرش غوړولي نه ده چي له پراخودښتو څخه یې د ډول ډول کښتونولپاره کار واخلی؟ ﴿ وَٱلْجِبَالَ أَوْتَادًا ﴾ اوآیاندي ګرزولي موږ غرونه مېخونه ؟ (ترڅو چي ځمکه پرتاسوباندي ونه لړزېږي (۳)بلکه ګرزولي مودي ﴿ وَخَلَقْنَٰكُمْ أَزْوَٰجًا ﴾ اوپیداکړي موږ تاسي جوړه(نراوښځي)یعني تاسو مونږ او ښځي پیداکړي یاست ترڅودتناسل نظام وپایي اوددغه ځمکني سیارې له مخي دژوندانه تغرتیول نشي ﴿ وَجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا ﴾ اوګرزولی مودی خوب ستاسوقطع دکارونو (راحت) یعني موږستاسوخوب ستاسولپاره دراحت اوهوسایي سبب ګرزولی ترڅودورځي له کارونو آرام اوله کړاوونو څخه وزګارشی !﴿ وَجَعَلْنَا ٱلَّيْلَ لِبَاسًا ﴾اوګرزولي مو ده شپه لباس یعني هغه مولکه جامه پخپله تاریکي کي نغاړي په التسهیل کي لیکي چي شپه یې ځکه له جامو سره تشبیه کړي چي داهم لکه جامه له سترګو څخه پټول کوي (۴)﴿ وَجَعَلْنَا ٱلنَّهَارَ مَعَاشًا ﴾ اوګرزولي موده ورځ (طلب دمعاش) یعني ورځ مودمعاش موندلولپاره درته ګرزولي ترڅوتاسو دخپلواړتیاووپوره کولولپاره

---

(۱) البحرالمحیط ۸/ ۴۰۹-القرطبي ۱۹/ ۱۸۱

(۲) راجح دادی چي مرادله نبأ عظیم څخه بعث اونشوردی ځکه چي له دې وروسته دالله دقدرت دلائل راغلي چي دبعث اونشور امکان ښیي اوفرمایي (ألم نجعل الارض مهادا ) اونه (۹)څېزونه یادوي چابیاویلي چي مرادترې قرآن اونبوت دی خوهغه چي موږ ولیکل راجح دي اوابوالسعودغوره کړي ده.

(۳) التسهیل ۴/ ۱۷۳

(۴) نفس المرجع السابق.

پکي ووزي. ابن کثیرلیکي: معناداچي روښانه مو ګرزولي ترڅوچي وکولای شی په تګ راتګ سوداګري اوتجارت کي لګیاشی(۱) ﴿ وَبَنَيۡنَا فَوۡقَكُمۡ سَبۡعًا شِدَادًا ﴾ اوجوړ کړي مودي په تاسي دپاسه اوه محکم (آسمانونه) (چي داسي ټینګ جوړښت لري چي دوخت په تېرېدلو نه زړېږي دغه مولکه د ځمکي بام غوندي پیداکړي لکه چي الله فرمايي ﴿ وَجَعَلۡنَا ٱلسَّمَآءَ سَقۡفًا مَّحۡفُوظًاۖ وَهُمۡ عَنۡ ءَايَٰتِهَا مُعۡرِضُونَ ﴾ او یاداچي ﴿ وَٱلسَّمَآءَ بَنَيۡنَٰهَا بِأَيۡيْدٖ وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ ﴾ ﴿ وَجَعَلۡنَا سِرَاجًا وَهَّاجًا ﴾ اوګرزولي پیداکړي ده موږ (په آسمان کي) ډېوه روښانه یعني موږ لمرستاسولپاره په آسمان کي بله ډېوه پیدا کړي چي خلا او رڼا کوي اوتل ترتله حرارت اوتودوخه تولیدوي مفسرین کرام لیکي چي: (وهاجا) هغه سخت ځلېدونکي ته ویل کېږي چي تودوخه يې اوربلونکي وي اوابن عباس وايي چي (وهاج) ځلاند ته وايي ﴿ وَأَنزَلۡنَا مِنَ ٱلۡمُعۡصِرَٰتِ مَآءٗ ثَجَّاجٗا ﴾ (اونازلي کړي مودي له نښتېڅونکیواوورونکواوریځو) څخه اوبه ډېري تونېدونکي پاکي صافي) یعني موږله هغي وریځي څخه چي د اورښت وخت يې نژدې شوی وي په شېبوشېبواوبه رااورولي دي په التسهیل کي لیکي چي (معصرات) وریځوته وايي ځکه وریځي نچوړکېږي اوبه ځيني راوزي(۲) باراني وریځ يې له هغي ښځي سره تشبیه کړي چي دحیض وخت يې نژدې شوی وي ﴿ لِّنُخۡرِجَ بِهِۦ حَبّٗا وَنَبَاتٗا ﴾ لپاره ددې چي راوباسو موږ په هغو (اوبو) سره داني او وابښه) یعني ډول ډول غلي داني مېوې اوبېل بېل وابښه ورباندي زرغونه کړوچي دانسانانو او حیوانانو دمړښت اوتغذيې لپاره په کارشي ﴿ وَجَنَّٰتٍ أَلۡفَافًا ﴾ اوباغونه یوله بل سره ګڼ نژدې .(چي ګڼي اوتتي ونې ولري اوښاخونه يې یوپه بل تاو راتاوشوي وي، دلته الله جل جلاله نه(۹) دلائل دخپل قدرت ذکر کړل اودالکه په بعث اوپاڅېدلو یو ځرګند دلیل غوندي دی ځکه هغه ذات چي داسي کولای شي هغه بیاپه بعث اونشورهم قادردی نوځکه ورپسي فرمايي ﴿ إِنَّ يَوۡمَ ٱلۡفَصۡلِ كَانَ مِيقَٰتٗا ﴾ بېشکه ورځ د فیصلې (په مابین دخلګو کي قیامت) دی وخت (مقررلپاره دحساب په حکم درب ستاچي نه به وروسته اونه به ړومبی شي) ﴿ ذَٰلِكَ يَوۡمٞ مَّجۡمُوعٞ لَّهُ ٱلنَّاسُ وَذَٰلِكَ يَوۡمٞ مَّشۡهُودٞ وَمَا نُؤَخِّرُهُۥٓ إِلَّا لِأَجَلٖ مَّعۡدُودٖ ﴾ قرطبي لیکي دې ته دجلاوالي اوبېل والي ورځ وویل شوه ځکه الله جل جلاله پکي خلګ سره بېلوي اودايې د ړومبنیواو وروستنیولپاره میعاد ټاکلی(۳) دی ﴿ يَوۡمَ يُنفَخُ فِي ٱلصُّورِ فَتَأۡتُونَ أَفۡوَاجٗا ﴾ هغه ورځ چي وپو کل شي (دوهم ځل) په شپېلۍ کي نوراځی به تاسي ډلي ډلي (دحساب لپاره ورپسي الله جل جلاله ددغي ورځي دوېرونکواوصافوپه هکله فرمايي ﴿ وَفُتِحَتِ ٱلسَّمَآءُ فَكَانَتۡ أَبۡوَٰبٗا ﴾ (او پرانستل څېري به شي آسمان نوشي به دروازې دروازې) یعني آسمانونه به له هرلوري څېري شي آن تردې چي داسي سوړي اوسوري به پکي پرانستل شي لکه چي دروازې په ډېوالونوکي وي دابه ټول دهمدې ورځي له هیبت څخه وي لکه

(۱) مختصرابن کثیر ۳ /۵۹۰
(۲) التسهیل ۱۹ /۱۷۳
(۳) قرطبي تفسیر ۱۹ /۱۷۳

چي الله فرمايي ﴿ إِذَا ٱلسَّمَآءُ ٱنشَقَّتْ ﴾ او داچي په (فتحت) ماضي صيغه سره يې تعبير کړی ځکه چي دغه پېښه يقيني کاردی ﴿ وَسُيِّرَتِ ٱلْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا ﴾ (او وران به کړل شي غرونه نوشي به لکه سراب) يعني غرونه به له بېخه وايستل شي چي کتونکي به گمان کوي دلته څه شته خو هيڅ به هم نه وي لکه د سراب په شان چي ليدونکی گمان کوي تکي شنې او به دي خو هيڅ هم نه وي. طبري ليکي چي غرونه به له بېخه ايستلو وروسته د کتونکو په سترگو لګه گرد او غبار غوندي ايسي، د سراب (شګي ګل) په شان به وي چي ليدونکی يې او به ګني خو په حقيقت کي هيڅ هم نه وي([1]) ﴿ إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَادًا ﴾ بېشکه دوزخ چي ځای د انتظار (دی) سرکښانو لره ) يعني جهنم به د خپلو مېلمنو داسي انتظار باسي لکه چي انسان خپل دښمن ته په کمين کي سترګي په لاروي ترڅو ور باندي حمله وکړي مفسرين کرام ليکي چي (مرصاد) هغه ځای ته وايې چي هلته د دښمن انتظار کاووشي او جهنم هم دالله د دښمنانو په انتظاروي څو يې په عذاب خپل اورته کش کړي ﴿ لِّلطَّٰغِينَ مَـَٔابًا ﴾ سرکښانو لره دورتلو ځای دی) يعني هغه د مجرمينو او سرغړونکو ځای دی ﴿ لَّٰبِثِينَ فِيهَآ أَحْقَابًا ﴾ څند کونکي به وي دغه (سرکښان) په هغه (دوزخ) کي د ډېري زمانې (بلکه همېشه به پکي پاتي کېږي ځکه چي د آخرت د پېړيو نهايت او آخر نشته ([2]) ربيع او قتاده وايې چي دغه (احقاب) هغي مودې ته وايې چي انقطاع، تېرېدا او بشپړېدا نلري([2]) ﴿ لَّا يَذُوقُونَ فِيهَا بَرْدًا وَلَا شَرَابًا ﴾ نه به څکي دغه (سرکښان) په هغه (دوزخ) کي سړه (هوا، او به) او نه د څښلو (يخ څيز) يعني نه خو به دوی په دوزخ کي يخ والی مومي چي داتودوخه او ګرمي له مينځه يوسي او نه به د څښاک څه مومي چي تنده يې ماته کړي ﴿ إِلَّا حَمِيمًا وَغَسَّاقًا ﴾ مګر پرته له ډېرو تودو او بو او بهېدونکو زوولو وينو سره (هغه چي د دوزخيانو له ټپونو څخه بهېږي) ﴿ جَزَآءً وِفَاقًا ﴾ جزاء (ورکوله شي دغو سرکښانو ته) موافقه (له اعمالو د دوی سره) ﴿ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ لَا يَرْجُونَ حِسَابًا ﴾ بېشکه وو دوی (په دنياکي) چي نه وېرېدل هيله يې نلرله د حساب) يعني دوی د حساب او جزاء تمه نلرله او د الله په ملاقات کولو يې ايمان او باور نه وو ځکه الله پدې عادلانه جزاء مجازات کړل ﴿ وَكَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا كِذَّابًا ﴾ او دروغ يې ګڼل آيتونه زموږ (چي په بعث او نشور يې دلالت کاوو او نور قرآني آيتونه چي دوی يې سخت تکذيب کاوو ﴿ وَكُلَّ شَىْءٍ أَحْصَيْنَٰهُ كِتَٰبًا ﴾ او هر څيز (له طاعته او معصيته) موږ شمېرلي دي هغه په ليکلو سره (ترڅو ور باندي جزاء ورکړو ﴿ فَذُوقُوا۟ فَلَن نَّزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا ﴾ (پس وڅکئ (سزا خپله) چي له

---

([1]) الطبري ٣٠/٧

([2]) په آيت شريف کي داسي څه نشته چي د دغي زمانې په ورستي نهايت دلالت وکړي ځکه د عربو په کلام کي حقب په داسي زمانه دلالت کوي چي نهايت نلري او دغه ګواکي له تل ترتله او سېدلو څخه کنايه ده څوک بياوايې چي دغه د ګنهګارو مؤمنانو د پاره ده خو دغه خطاخبره ده ځکه چي د کفارو په هکله راغلي پدې دليل چي په ورستني آيتونو کي داسي راغي چي (وکذبوا بآياتنا کذابا) قرطبي ١٩/١٧٥

سره نه زياتو مودو پرتاسي پرته له عذابه (دپاسه پربل عذاب) يعني وڅکئ ای کافرانو مودو به ستاسو په
ززارزاريو له سره بل څه درزيات نکړو پرته له عذابه. مفسرين کرام ليکي په قرآنکريم کي بل تردې سخت
آيت دکفارو په هکله نشته څکه کله چي هغوی ديو عذاب ددفع کېدلو لپاره خواست او غوښتنه کوي
نوهغه سخت عذاب به ورباندي نازل شي، کله چي الله تعالى ددوزخيانو حال ووايو وروپسې
دجنتيانو نيکانو حال داسي بيانوي فرمايي: ﴿ إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا ﴾ (بېشکه خاص متقيانو لره ځای دخلاصي
بري کاميابي دی) يعني په تحقيق سره نيکانو مؤمنانو ته هغوی چي په دنياکي يې دخپل
پروردګار اطاعت کړی وي په جنت کي دبرياليتوب ځای دی او پخپله جنت موندل او له دوزخ څخه
ژغورل کېدل لويه کاميابي ده او بيا دغه بری داسي تفسير کوي ﴿ حَدَآئِقَ وَأَعْنَٰبًا ﴾ باغونه (دمېوې)
اودانګورو وني دي يعني داسي باغونه (چي هرډول وني او ګلان به پکې وي هرډول خوندور دانګورو
تاکونه به وي کوم چي انساني طبيعت يې غوره ګڼي ﴿ وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا ﴾ (او پېغلي به وي چي تي يې رابرسېره
شوي او سره همزولي به وي په التسهيل کي ليکي چي کواعب دکاعب جمع او هغي پېغلي ته وايي چي
تي يې راپورته شوي وي (۱) ﴿ وَكَأْسًا دِهَاقًا ﴾ (او وي به دوی ته هلته) پيالې ډکي ترخندو (له سپېڅلي پاکو
شرابو چي صفاشوي او چڼل شوي ډک شوي وي ﴿ لَّا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا كِذَّٰبًا ﴾ نه اوري په دغه (جنت کي
متقيان) لغوچتي (بېکاره خبري) او نه دروغ (څکه چي هغه دارالسلام دی او هرڅه چي پکي وي هغه له
هرتاوان او بطلان څخه سالم دي ﴿ جَزَآءً مِّن رَّبِّكَ عَطَآءً حِسَابًا ﴾ (جزاء به ورکول شي متقيانو ته) جزاورکول له
ربه ستانه عطاډېره په حساب داعمالو سره ﴿ رَّبِّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ٱلرَّحْمَٰنِ ﴾ چي رب
دآسمانونو او (رب) دځمکي او (رب) دهغوشيانو دی چي په مينځ ددغي ځمکي او آسمان کي دي
ډېرمهربان دی) يعني دغه جزاء دهغه رحمان ذات له لوري ورکول کېږي چي دهغه رحمت هرڅېزته شامل
دی ﴿ لَا يَمْلِكُونَ مِنْهُ خِطَابًا ﴾ نه به مالکان کېږي (دشفاعت نه به توانېږي خلګ) له دغه الله سره دخبرو کولو)
يعني هيڅوک به ونه شي کړای هغه ته دعذاب دليري کولو په هکله څه ووايي (له جهته دهيبت او جلاله)
﴿ يَوْمَ يَقُومُ ٱلرُّوحُ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةُ صَفًّا ﴾ (په هغه ورځي (دقيامت) کي چي ودرېږي روح او دملائکو صفونه) يعني
پدغي ورځي کي چي حضرت جبريل عليه السلام او پرښتې په عاجزي سره ودرېږي ﴿ لَّا يَتَكَلَّمُونَ إِلَّا
مَنْ أَذِنَ لَهُ ٱلرَّحْمَٰنُ وَقَالَ صَوَابًا ﴾ نه به کوي خبري (هيڅوک له وېري په باب دشفاعت کي مګر) پرته له هغه
چي اذن ورکړی ده ته رحمان (په کلام او شفاعت کولو) او ويلي يې وي ښه خبره (په دنياکي چي طيبه کلمه
لااله الاالله ده) صاوي ليکي معنادا چي ملائکي هغه چي د مخلوقاتو غوره هم دي دشفاعت کولو پرته له
حکم او اجازې واک نلري نونور څوک به يې څرنګه ولري؟ (۲) ﴿ ذَٰلِكَ ٱلْيَوْمُ ٱلْحَقُّ ﴾ (داهغه ورځ ده حقه) يعني

---

(۱) التسهيل ۴ /۱۷۴
(۲) په جلالين باندي دصاوي حاشيه ۴ /۲۸۲

دغه ورځ يقيني راتلونكي ده ﴿ فَمَن شَآءَ ٱتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ مَـَٔابًا ﴾ پس هرهغه چي اراده وکړي نيسي طرف درب خپل ته مرجع (ځای دورتلوپه دې کي دنيک عمل کولو لپاره هڅونه ده يعني نوودي نيسي ترڅوچي له عذابه وژغورل شي) ﴿ إِنَّآ أَنذَرْنَـٰكُمْ عَذَابًا قَرِيبًا ﴾ بېشکه موږچي يوويروو موږ تاسي (ای کفارو) له يوعذاب راتلونكي نژدې څخه (چي د آخرت عذاب دی) دغه دقريشوکفارولپاره خطاب دی هغوی چي دبعث اونشورڅخه منکر وواو عذاب چي يې نژدې وبالوځکه هر راتلونکی نژدې دی ﴿ يَوْمَ يَنظُرُ ٱلْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ ﴾ (هغه ورځ چي وبه ويني هرسړی هرهغه څه چي په مخکي يې لېږلي دي دواړولاسونوده) يعني هغه ورځ چي هر انسان به دخپل خيراوشردکارونوپخپلواعمالناموکي ليکلي اوثبت شوي وګوري لکه چي الله تعالی فرمايي ﴿ وَوَجَدُوا۟ مَا عَمِلُوا۟ حَاضِرًا ﴾ (الکهف ۴۹) ﴿ وَيَقُولُ ٱلْكَافِرُ يَـٰلَيْتَنِى كُنتُ تُرَٰبًۢا ﴾ اوواييې به کافر (په ورځ دقيامت کي) کاشکي چي زه خاوري وای يعني کافربه آرزولري چي کاشکي زه هډومکلف نه وای پيدا شوی ترڅوراسره حساب نه کېدای اوراته عذاب نه وای مفسرين کرام ليکي: داهغه وخت کله چي الله تعالی، حيوانات راپاڅوي اوښکرلرونكي له بې ښکروڅخه کسات واخلي اوبياخاوري شي نوکافرهيله کوي کاشکي دی هم دهغوڅاروېوپه څېروای ترڅوعذاب نه ورکول کېدای

**بلاغت:**

پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کوم صنائع اوښکلاوي شته لنډيزيې په لاندي ډول دی:

۱ - داطناب صنعت چي دجملې په تکرارسره راغلی اوتهديدوعيدترې ځرګندېږي لکه ﴿ كَلَّا سَيَعْلَمُونَ ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُونَ ﴾.

۲ - ايجازچي دفعل په حذف کولوترسره شوی ځکه لومړنۍ کلمه وربانديې دلالت کوي لکه: ﴿ عَنِ ٱلنَّبَإِ ٱلْعَظِيمِ ﴾ يعني (يتسآءلون عن النباء العظيم).

۳ - بليغه تشبيه لکه ﴿ أَلَمْ نَجْعَلِ ٱلْأَرْضَ مِهَـٰدًا وَٱلْجِبَالَ أَوْتَادًا ﴾ چي بشپړکلام داچي: (وجعلناالارض کالمهادالذي يفترشه النائم) يعني ځمکه مي لکه فرش غوندي درته غوړولي چي خوب کونکي يې وربانديې پرېوزي (ځملي) اوغرونه مي لکه مېخونه غوندي وربانديې وهلي چي ځمکه آرام وموميې دلته دتشبيه ادات اوتوری حذف شوی دی همدارنګه دتشبيه وجه نه ده ذکرشوي ځکه يې بليغه تشبيه ګڼو همدارنګه په ﴿ وَجَعَلْنَا ٱلَّيْلَ لِبَاسًا ﴾ کي هم دتشبيه ادات حذف شوی معناداچي شپه يې دلباس په ډول ګرزولي لکه چي په لباس (جامه) کي سړی پټېږي همداسي په شپه کي پټېږي

۴ - لطيفه مقابله کله چي فرمايي ﴿ وَجَعَلْنَا ٱلَّيْلَ لِبَاسًا وَجَعَلْنَا ٱلنَّهَارَ مَعَاشًا ﴾ دلته دشپې اوورځي تقابل اوهمدارنګه داستراحت اوکارمقابله ده چي له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي

۵- بليغه تشبيه پدې كلام كي ﴿ فَكَانَتْ أَبْوَابًا ﴾ يعني لكه دروازې غوندي دلته بيا د تشبيه توری او د شباهت وجه حذف شوي ده چي بليغه تشبيه يې بولي.

۶- د اهانت او تحقير اسلوب لكه چي فرمايي ﴿ فَذُوقُوا فَلَن نَّزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا ﴾ همدارنگه پدې ويناكي له غياب څخه خطاب ته التفات هم راغلی دی.

۷- د طباق صنعت چي ﴿ بَرْدًا ... حَمِيمًا ﴾ ترمينځ راغلی دی

۸- له خاص نه وروسته د عام يادونه لكه چي پدې آيت شريف كي فرمايي ﴿ يَوْمَ يَقُومُ الرُّوحُ وَالْمَلَائِكَةُ.. ﴾ مراد له روح څخه حضرت جبريل عليه السلام دی چي په ملكو كي داخل دی او گواكي دوه خلي ذكر شوی يو ه پلا د ملائكو په ضمن كي او بل ځل يوازي او د ا يادونه د حضرت جبريل عليه السلام د قدر د لوړوالي او تعظيم په هكله تنبيه ده.

۹- مرصع سجع لكه ﴿ أَلْفَافًا ، أَفْوَاجًا ، أَبْوَابًا ، مَآبًا ، أَحْقَابًا ﴾ او دا هم د بديع د علم له محسناتو څخه گڼل كېږي

د الله جل جلاله په مرسته د سورة النبأ د تفسير ژباړه بشپړه شوه.

***

## د النازعات سورت مكي دی او شپږ څلوېښت آيتونه لري

د سورت په وړاندي:

د النازعات سورت مكي دی او د نورو مكي سورتونو په شان د عقيدې په اصولو لكه وحدانيت ، رسالت او بعث او جزاء غږېږي د سورت محور د قيامت ورځ او د هغې كړاوونه دي او په ترڅ كي يې د متقينو او مجرمينو د روستنی هستو گنځی بيانېږي.

د سورت لومړنی پيل د الله په هغه لوړه كېږي چي د پرښتو په نوم يې كوي هغه پرښتې چي د مسلمانانو ارواح په لطف او نرمي سره قبض كوي او اخلي او د كفارو گنهگارو په سختي او غلظت سره او هغوی چي د خلگو د كارونو تدبير د الله جل جلاله په حكم ترسره كوي فرمايي: ﴿ وَالنَّازِعَاتِ غَرْقًا ۝١ وَالنَّاشِطَاتِ نَشْطًا ۝٢ وَالسَّابِحَاتِ سَبْحًا ۝٣ فَالسَّابِقَاتِ سَبْقًا ۝٤ فَالْمُدَبِّرَاتِ أَمْرًا ﴾ د آيتونو تر پايه پوري

بيا د مشركينو او هغو كسانو چي له قيامت او پاخېدلو منكروي حال بيانوي چي ﴿ قُلُوبٌ يَوْمَئِذٍ وَاجِفَةٌ ۝٨ أَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ ۝٩ يَقُولُونَ أَإِنَّا لَمَرْدُودُونَ فِي الْحَافِرَةِ ۝١٠ أَإِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً ﴾ د آيتونو تر پايه

وروسته د مكې د خلگو هغه سرغړونه او طغيان بيانوي كوم چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم په وړاندي يې درلوده او دوی ته وريه يادوي چي تاسو د الله د ېرناتوانه مخلوق ياست فرمايي ﴿ أَأَنتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ بَنَاهَا ۝٢٧ رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوَّاهَا ۝٢٨ وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا وَأَخْرَجَ ضُحَاهَا ﴾ د آيتونو تر پايه

بالآخره دامبارک سورت دقیامت دوخت بیان کوي هغه قیامت چي مشرکانو دروغ ګڼو او ځيني
منکروو یايې ببخي لیري بالو فرمايي ﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَاهَا (٤٢) فِيمَ أَنتَ مِن ذِكْرَاهَا (٤٣) إِلَىٰ رَبِّكَ
مُنتَهَاهَا (٤٤) إِنَّمَا أَنتَ مُنذِرُ مَن يَخْشَاهَا (٤٥) كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا عَشِيَّةً أَوْ ضُحَاهَا﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿وَالنَّازِعَاتِ غَرْقًا (١) وَالنَّاشِطَاتِ نَشْطًا (٢) وَالسَّابِحَاتِ سَبْحًا (٣) فَالسَّابِقَاتِ سَبْقًا (٤) فَالْمُدَبِّرَاتِ أَمْرًا (٥) يَوْمَ
تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ (٦) تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ (٧) قُلُوبٌ يَوْمَئِذٍ وَاجِفَةٌ (٨) أَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ (٩) يَقُولُونَ أَإِنَّا لَمَرْدُودُونَ فِي
الْحَافِرَةِ (١٠) أَإِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً (١١) قَالُوا تِلْكَ إِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ (١٢) فَإِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَاحِدَةٌ (١٣) فَإِذَا هُم بِالسَّاهِرَةِ
(١٤) هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَىٰ (١٥) إِذْ نَادَاهُ رَبُّهُ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى (١٦) اذْهَبْ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغَىٰ (١٧) فَقُلْ هَل لَّكَ إِلَىٰ أَن تَزَكَّىٰ
(١٨) وَأَهْدِيَكَ إِلَىٰ رَبِّكَ فَتَخْشَىٰ (١٩) فَأَرَاهُ الْآيَةَ الْكُبْرَىٰ (٢٠) فَكَذَّبَ وَعَصَىٰ (٢١) ثُمَّ أَدْبَرَ يَسْعَىٰ (٢٢) فَحَشَرَ فَنَادَىٰ (٢٣) فَقَالَ
أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلَىٰ (٢٤) فَأَخَذَهُ اللَّهُ نَكَالَ الْآخِرَةِ وَالْأُولَىٰ (٢٥) إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّمَن يَخْشَىٰ (٢٦) أَأَنتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ بَنَاهَا (٢٧) رَفَعَ
سَمْكَهَا فَسَوَّاهَا (٢٨) وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا وَأَخْرَجَ ضُحَاهَا (٢٩) وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا (٣٠) أَخْرَجَ مِنْهَا مَاءَهَا وَمَرْعَاهَا (٣١)
وَالْجِبَالَ أَرْسَاهَا (٣٢) مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَامِكُمْ (٣٣) فَإِذَا جَاءَتِ الطَّامَّةُ الْكُبْرَىٰ (٣٤) يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ مَا سَعَىٰ (٣٥) وَبُرِّزَتِ
الْجَحِيمُ لِمَن يَرَىٰ (٣٦) فَأَمَّا مَن طَغَىٰ (٣٧) وَآثَرَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا (٣٨) فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوَىٰ (٣٩) وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ وَنَهَى
النَّفْسَ عَنِ الْهَوَىٰ (٤٠) فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوَىٰ (٤١) يَسْأَلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَاهَا (٤٢) فِيمَ أَنتَ مِن ذِكْرَاهَا (٤٣) إِلَىٰ رَبِّكَ
مُنتَهَاهَا (٤٤) إِنَّمَا أَنتَ مُنذِرُ مَن يَخْشَاهَا (٤٥) كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا عَشِيَّةً أَوْ ضُحَاهَا (٤٦)﴾ النازعات: ١ – ٤٦

## لغتونه:

(واجفة) وېرېدونکي اولړزېدونکي(وجف القلب وجيفا ) زړه ولړزېدو په لړزېدلو کله چي ووېرېږي له سختي څخه په لړزېدو شي (الحافرة) پخواني حال ته رجوع اوګرزېدلو ته وايي(رجع فلان الى حافرته)يعني بيرته هغه ځای ته ستون شو چي ترې راغلی وو (الساهرة) مخ دځمکي عرب دځمکي مخ اوبېديا ته ساهره وايي ځکه خلګ ورباندي بيداري تېروي (سمكها) سمک لوړتيا اوچتوالي ته وايي اوکله چي وويل شي (بناء مسموک ) معنايې لوړه ماڼۍ ده (أغطش) يعني تاريکه کړه (دحاها) هغه يې وغوړوله ، هواره يې کړه (الطامة) هغه لوی آفت چي څوک يې دزغملو توان نلري لکه چي شاعر وايي:

(ان بعض الحب يعمي ويصم* وكذاک البغض أدهى وأطم يعني ځيني ميني سړی ړونداوکوڼ کړي همدارنګه کرکه اوبغض لويه بلاده.

تفسير:

﴿ وَالنَّزِعَتِ غَرْقًا ﴾ قسم دی په (ملائکو) سختووښکونکيو(ارواحود کفارولره) سخت وښکل ﴿ وَالنَّشِطَتِ نَشْطًا ﴾ اوقسم دی (په ملائکو ) آسان وښکونکيو(ارواحودمؤمنانولره ) آسان وښکل ابن مسعودرضی الله عنه وايي چي ملک الموت اوده هغه مرستندويان دکافرروح داسي کاږي لکه چي اغزن سيخ له لمدووړيوڅخه راباسي نودکافرروح داسي راوزي لکه چي په اوبوکي وړيسي څخه اوله ډوبين بيلاسانه کاږي([1])ابن کثيروايي: الله جل جلاله په ملائکولوره کوي کله چي دبني آدم روح کاږي څيني داسي بنيادمان دي چي روح يي په ډېرتکليف رااېستل کېږي اوپه راښکلوپسي يي غوپه کېږي اوځيني بياداسي دي چي روح يي آسانه قبض کوي اولکه چي بنديې پرانيزي([2]) ﴿ وَالسَّبِحَتِ سَبْحًا ﴾ اوقسم دی په تېزوغوټه وهونکودملائکو په تعميل داحکامودالله) تېزغوټه وهل هغه چي دالله په امر اووحی له آسمانه راکوزېږي اولکه چي په اوبوکي غوټه کېږي ﴿ فَالسَّبِقَتِ سَبْقًا ﴾ اوقسم دی په وړاندي کېدونکي ملائکوباندي وړاندي کېدل (په ارواحونود مؤمنانوجنت ته ) ﴿ فَالْمُدَبِّرَتِ أَمْرًا ﴾ پس (قسم دی) په تدبيرجوړونکو(ملائکو ) دحکم دالله (يعني دلوی الله په امر (بادونو، بارانونو، روزي (ارزاقو) اوعمرونوسرپرستي کوي الله په پنځوپورتنيوډولونولوره کوي چي قيامت حق دی خواب دقسم محذوف شوی چي هغه داچي (لتبعثن ولتحاسبن) يعني خامخابه را پاڅول شي اوهرومروبه درسره حساب وشي په دغه څواب باندي دالله جل جلاله داوينادليل کېدای شي چي فرمايي ﴿ يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ ﴾ هغه ورځ چي ولړزېږي لړزېدونکي (کله چي لومړی شپېلۍ پوکړی شي) پس راځي وروسته له دې نه هغه وروسته راتلونکي (چي دوهمه شپېلۍ ده ابن عباس رضی الله عنهما وايي (راجفة)او(رادفة) دواړه نفخوته وايي لومړی به ګردشيان دالله جل جلاله په حکم ووژني او دوهمه به ټول دالله په حکم راژوندي کاندي([3])وروسته الله ددروغجن ګنونکوحال بيانوي چي دوی به هلته په څومره تکليفونواخته وي؟ فرمايي: ﴿ قُلُوبٌ يَوْمَئِذٍ وَاجِفَةٌ ﴾ زړونه (دمنکرانو دبعث) په هغې ورځي کي به بېقراره رپېدونکي وي ﴿ أَبْصَرُهَا خَشِعَةٌ ﴾ سترګي دهغوی به سپکي ذليلي وي (له وېري څخه څکه دوی به دقيامت کړاوونه ويني ﴿ يَقُولُونَ أَءِنَّا لَمَرْدُودُونَ فِي الْحَافِرَةِ ﴾ (وايي به دغه (منکران په ملنډو) آياموږبه بياوګرزولی شوپه ړومبني حالت (بيابه ژوندي کېږو؟ قرطبي ليکي کله چي به دوی ته وويل شول چي تاسوبه بيارا ژوندي کېږی هغوی به له تعجب سره جوخت داسي انکارکاوو ويل به يې آيا بيابه دلومړي خل په شان راژوندي کېږو؟ او عرب وايي ( رجع فلان في حافرته ) يعني فلانی سړی له کومه چي

---

([1])الخازن ۴/ ۲۰۴

([2])مختصرابن کثير ۳/ ۵۹۵

([3])قرطبي ۱۹/ ۱۹۳

راغلی وو په همغه لار(١) ﴿ أَءِذَا كُنَّا عِظَٰمًا نَّخِرَةً ﴾ آیا کله چې مونږ و ګرزو هډوکي رژېدونکي زاړه (نو بیا به
هم ژوندي کېږو ؟ ) ﴿ قَالُوا۟ تِلْكَ إِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ ﴾ (وویل (منکرانو ) تمسخرًا ) دغه (ګرزېدل زمونږ ژوندته ) په
هغه وخت کې ګرزېدل زیانمن دي ) یعني که چېرې راپاڅېدل حق وي او مونږ راپاڅېږو نو دغه ګرزېدل
تاواني دی ځکه مونږ به هله دوزخیان یو ﴿ فَإِنَّمَا هِىَ زَجْرَةٌ وَٰحِدَةٌ ﴾ پس بېشکه دا نفخه ثانیه خو یو کل یو دی
(د بر آسمان چې ګرد خلک پرې ژوندي کېږي ﴿ فَإِذَا هُم بِٱلسَّاهِرَةِ ﴾ پس ناڅاپه وي به دغه (خلک ټول) په مخ
د ځمکې (وروسته له هغه چې په ګېډه د ځمکې کې وو ورپسې الله جل جلاله د موسی علیه السلام کیسه
چې فرعون ته یې وراستولی وو یادوي ترڅو د رسول الله صلی الله علیه وسلم لپاره تسلا او ډاډینه وي
او د قوم لپاره یې تخویف او وېرونه وی معنا پر دوی به هم هغه څه راځي کوم چې د فرعون سرکښ او دروغ
ګڼونکي قوم په سر راغلل ﴿ هَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ مُوسَىٰٓ ﴾ آیا راغلي ده (تاته (ای محمده ! بلکه بېشکه رسېدلي
ده تاته ای محمده ) خبره د موسی (دغه د ترغیب او تشویق اسلوب دی یعني آیا تاته د موسی کلیم الله خبره
رسېدلي ده؟ ﴿ إِذْ نَادَىٰهُ رَبُّهُۥ بِٱلْوَادِ ٱلْمُقَدَّسِ طُوًى ﴾ کله چې ورغږ کړ دغه (موسی ) ته رب دده په پاکه کنده میدان
د طوی کې (طوی د طور سینا په وروستی برخه کې ده) ﴿ ٱذْهَبْ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُۥ طَغَىٰ ﴾ لاړ شه (په رسالت زما )
طرف د فرعون ته چې بېشکه ده سرغړولی (تجاوزېې کړی او ظلم طغیان یې له حده وتلی دی ) ﴿ فَقُلْ هَل
لَّكَ إِلَىٰٓ أَن تَزَكَّىٰ ﴾ نو ورته ووایه آیا تاته مینه لرې په طرف ددې چې پاک شې (له شرک او معاصي نه؟
﴿ وَأَهْدِيَكَ إِلَىٰ رَبِّكَ فَتَخْشَىٰ ﴾ (او رغبت لرې دې ته چې ) لاره درو ښیم تاته طرف د رب ستاته پس و وېرېږې ته
(له عذابه ؟ زمخشري وایې وېره یې ځکه یاده کړه ځکه دهرشي دارومدار په هغې ده او څوک چې له الله
څخه و وېرېږي هغه ګرد د خیر کارونه کوي، او په کلام کې نرمښت ددې لپاره راغلی چې ورته ورانديز
کوي لکه چې څوک مېلمانه ته وایې آیا تاته غواړې چې له مونږ سره پاتې شې؟ هله یې پسته او نرمه ژبه
استعمال کړه ترڅو چې له سرغړوني او طغیان څخه یې راوګرزوي لکه چې الله ورته فرمایې ﴿ فَقُولَا لَهُۥ قَوْلًا
لَّيِّنًا ﴾ (٢) ﴿ فَأَرَىٰهُ ٱلْءَايَةَ ٱلْكُبْرَىٰ ﴾ پس وښودله (موسی فرعون ته ) معجزه لویه ) دلته په کلام کې حذف
راغلی یعني موسی علیه السلام هغه ته ورغی او ورسره یې خبرې اترې وشوې بلنه یې ورکړه او کله چې
یې له ایمان راوړلو څخه سروغړاوونو یې ستره معجزه وربنکاره کړه چې هغه دده لکړه وه کومه چې
(د موسی علیه السلام په غوښتنه ) به ښامارځيني جوړشو. ابن عباس رضی الله عنه وایې چې لویه معجزه
له لکړې څخه عبارت دی ﴿ فَكَذَّبَ وَعَصَىٰ ﴾ پس تکذیب وکړ (فرعون د موسی )او ویې نه مانه (که څه هم
چې معجزه یې ولیده له مګر بیایې هم د الله جل جلاله له امر څخه سروغړاوو ) ﴿ ثُمَّ أَدْبَرَ يَسْعَىٰ ﴾ بیایې شاکړه

(١) قرطبي ١٩/١٩٣
(٢) الکشاف ٤/٢٩٥

لاړ په ډېره بیړه سره (له ښامار څخه وو ډېرېدو) ﴿ فَحَشَرَ فَنَادَىٰ ﴾ پس (فرعون ګرد ساحران) راټول کړل پس غږیې وکړ ﴿ فَقَالَ أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلَىٰ ﴾ بیایې وویل زه ستاسي ډېرلوی اولوړپالونکی یم (دغه یې په لوړآواز وویل) ﴿ فَأَخَذَهُ اللَّهُ نَكَالَ الْآخِرَةِ وَالْأُولَىٰ ﴾ (پس ونیو دغه (فرعون لره) الله په عذاب (دحرق) دآخرت او(په عذاب دغرق) ددنیا) یاالله جل جلاله ونیوفرعون په عذاب دوروستی کلمې چي داده ﴿ أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلَىٰ ﴾ اولومړی کلمې لومړی کلمه یې داده چي ویل یې ﴿ مَا عَلِمْتُ لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرِي ﴾ (۱) ﴿ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّمَن يَخْشَىٰ ﴾ ببشکه پدې (کیسه دفرعون) کي خامخاعبرت دی هغه چالره چي (له الله) وېرېږي (کله چي دفرعون دکیسې بیانول پای ته ورسېدل نو بیرته دهغوکسانوچي د محشر اوقیامت څخه منکرقریش دي خطاب ته راګرزي اودخپل قدرت لوري ته یې متوجه کوي د خپل عظمت اوجلال مظاهروربنیي فرمایي ﴿ ءَأَنتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ ﴾ آیاتاسي ډېرسخت یاست د پیدا ینبت له امله که آسمان؟ جوړکړی دی (الله) دغه (آسمان) دااستفهام د توبیخ اوترټني لپاره دی یعني هغه ذات چي آسمان یې سره له دومره لوی والي پورته کړی نوستاسو بیرته راژوندي کول هغه ته آسانه دي بیاولي له قیامت څخه منکریاست؟ امام رازي لیکي دوی یې د مشاهدې له مخي متوجه کړل څکه دانسان پیدا ینبت سره له دې چي کوچنی اوضعیف دی نسبتا هغه آسمان ته چي ډېرلوی لوړاوچت اوټول احوال یې خوراسترډي ډېرآسانه دي نوبیاولي دوی انکار کوي؟ (۲) لکه چي الله تعالی فرمایي: ﴿ لَخَلْقُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ ﴾ یعني خامخاد آسمانونوپیدا ینبت دخلګوتر پیدا ینبت زیات سترډی ﴿ بَنَاهَا ﴾ جوړکړی دی(الله) دغه (آسمان) یعني داسي یې اوچت کړی دی چي ستني نلري اوخورامحکم دی بیایې دزیاتي توضیح لپاره وفرمایل ﴿ رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوَّاهَا ﴾ پورته کړی دی (الله) چت لوړوالی دهغه (آسمان) نوسم صاف بې عیبه یې کړ(چي هیڅ تفاوت پکي نه ښکاري اونه پکي درزونه اوسوري شته ابن کثیرلیکي: معنادا چي آسمان یې لوړاولیري جوړکړټول یې داسي تیاراوبرابرکړچي په شپه کي په ستوروځلېدونکی وي (۳) ﴿ وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا وَأَخْرَجَ ضُحَاهَا ﴾ توره تیاره یې کړه شپه ددغه (آسمان) اوراویې ایسته ورځ رڼاددغه (آسمان) (۴) ﴿ وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا ﴾ اوځمکه وروسته له دغه (پیدا ینبت د آسمان) صافه وغوړوله (الله) دا (ځمکه اوداوسېدونکولپاره یې چمتو کړه ﴿ أَخْرَجَ مِنْهَا مَاءَهَا وَمَرْعَاهَا ﴾ راایستلي دي (الله) له دغي (ځمکي) اوبه ددې اوورشوددې) یعني له ځمکي څخه یې بهېدونکي اوبه

(۱) دادابن عباس مجاهداوعکرمة وینااده ابن عباس رضی الله عنه وایې چي دده ددغه دوونارواکلموترمینځ څلوېښت کاله موده وه چي الله ورته مهلت ورکړی وواوبیایې هلاک کړ.
(۲) کبیرتفسیر ۳۱/ ۴۳
(۳) مختصرابن کثیر ۳/ ۵۹۲
(۴) کبیرتفسیرپخوانی مخ.

راایستلي ، رودونه یې ترې روان کړي اوبیایې خوراکي توکي اودڅارویولپاره ورشو ، وابنه ترې رازرغون کړي دي ﴿ وَٱلْجِبَالَ أَرْسَىٰهَا ﴾ اوغرونه (په مخ دځمکي) ودرول ثابت محکم کړل(الله)هغه(غرونه چي ځمکه له لړزېدلوڅخه ژغوري) ﴿ مَتَٰعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَٰمِكُمْ ﴾ لپاره دنفعي ستاسي اولپاره دنفعي دڅارپایانو ستاسي) یعني دغه هرڅه یې کړي چینې یې بهولي اورودونه یې جاري کړي، کښتونه اووني یې شنې کړي دغه ګرد د انسانانودمنفعت اومصلحت لپاره اوداچي ددوی دڅارویوشومه ورڅخه ترلاسه کېږي امام رازي لیکي چي مرادله (مرعاها )څخه ګردهغه څه دي چي انسانان اوحیوانات یې خوري اودادې دلیل چي الله فرمایې ﴿ مَتَٰعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَٰمِكُمْ ﴾ وګوره چي څرنګه یې پدې کلام چي ﴿ أَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَمَرْعَىٰهَا ﴾ په ټولو ځمکنیو استخراجاتو دلیل راوړی چي هغه دانسانانو او څارویولپاره غذاء دي چي هغه وابنه، ونې ، مېوې ، دانې، وچ ، لامده ، جامې اودواء آن تردې چي اوراومالګه هم له دغي ځمکي څخه لاس ته راځي مالګه له اوبوڅخه اورله ونولرګیوڅخه ترلاسه کېږي(۱)... کله چي الله تعالی دآسمانونو او ځمکي دپیدا ایښت یادونه وکړه اوپه هغې کي دخلق اوتکوین عجائبات یې بیان کړل ترڅوپه عقلي توګه دحشرپه راتلودلیل نیولو امکان وښیي نووروسته له هغه نه یې دهغې واقعې پېښېدل داسي بیان کړل ﴿ فَإِذَا جَآءَتِ ٱلطَّآمَّةُ ٱلْكُبْرَىٰ ﴾ پس کله چي راشي آفت بلالویه دقیامت چي ټول څېزونه یې په هول هیبت کي اخته کېږي اوپه ګردووېرونکوپېښو اوحوادثوسترااولوړدي ابن عباس رضی الله عنه وایې چي (طامة) قیامت ته ویلی شي ځکه هغه په ټولو آفتونو سترااولوړدی ﴿ يَوْمَ يَتَذَكَّرُ ٱلْإِنسَٰنُ مَا سَعَىٰ ﴾ په هغه ورځ به یادکړي انسانان هغه څه چي کړي یې دي (له خیراوشر څخه په خپله اعمالنامه کي به یې لیکلي ومومي) ﴿ وَبُرِّزَتِ ٱلْجَحِيمُ لِمَن يَرَىٰ ﴾ او څرګندبه کړی شي دوزخ هرهغه چاته چي ویني یې (یعني ټول بینااولیدونکي به یې په څرګنده ووینې ، وروسته له دې چي دقیامت اودهغه دوېرې او ترهې حال یې بیان کړورپسې دخلګوبش بد مرغه اونیکمرغه ته کوي فرمایې ﴿ فَأَمَّا مَن طَغَىٰ وَءَاثَرَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا ﴾ پس هرهغه چي سرکشي یې کړې وي (په کفرسره) اوغوره کړی یې وي ژونددنیا(په آخرت باندي) هغه چي پخپلو خواهشاتواو شهواتوکي غوپه شوی وي دآخرت لپاره یې دښو اعمالوهیڅ توښه هم نه وي تیاره کړي ﴿ فَإِنَّ ٱلْجَحِيمَ هِىَ ٱلْمَأْوَىٰ ﴾ پس بېشکه دوزخ همدا(دوزخ دده) دهستوګني ځای دی (بل ځای به ونلري) ﴿ وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِۦ ﴾ اوهرهغه څوک چي وېرېږي له دربېدلو(په مخ د )رب خپل کي (چي په مبدأاومعاد ایمان لري اوله دې څخه وېرېږي چي ورسره حساب به کاوه شي ﴿ وَنَهَى ٱلنَّفْسَ عَنِ ٱلْهَوَىٰ ﴾ اومنع کړی یې وي ځان له خواهشاتوبدوغوښتنوڅخه ﴿ فَإِنَّ ٱلْجَنَّةَ هِىَ ٱلْمَأْوَىٰ ﴾

(۱) کبیر تفسیر ۳۱/ ۴۹

نوبېشکه جنت همدا (جنت دده) دهستوګني ځای دی (بل ځای نلري)(۱) له دې وروسته الله جل جلاله
ددروغ ګڼونکو دريز بيانوي هغوی چې دقيامت راتلل به يې ملنډې ګڼلې نو الله فرمايي: ﴿ يَسْئَلُونَكَ عَنِ
السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَاهَا ﴾ پوښتنه کوي له تاڅخه (ای محمده!) دقيامت په هکله چې کله به وي وقوع دهغه
(قيامت)؟ مفسرين کرام ليکي چې مشرکينو به دقيامت خبري اورېدې چې په درنو هيبت ناکونومونو به
ستايل کېدو مثلا (طآمة) (صاخة) او (قارعة) نو به دوی داستهزآء اوملنډو په توګه ويل: الله به دغه
قيامت کله راولي؟ او کله به قيامت واقع کېږي؟ نو دغه آيت شريف نازل شو ﴿ فِيمَ أَنتَ مِن ذِكْرَاهَا ﴾ په څه
کې يې ته (ستاڅه کار دی) له ذکره پوهېدلو دهغه څخه؟ (يعني تالره علم نشته چې دوی ته يې وروښيې
څکه دا هسي غيب دی چې الله دځان لپاره غوره کړی بل هيڅوک ورباندې خبردارنه دی نو دوی ولې په
اصرار سره له تاڅخه پدې هکله پوښتنې کوي؟ ﴿ إِلَىٰ رَبِّكَ مُنتَهَاهَا ﴾ خاص رب ستا ته ده انتهاء ددغه علم
(چې بل هيڅوک ورباندې علم نلري) ﴿ إِنَّمَا أَنتَ مُنذِرُ مَن يَخْشَاهَا ﴾ (بېشکه ته (ای محمده!) وېرونکی يې
دهغه چاچې وېرېږي له (عذاب د) هغه (قيامت) نه) يعني ستاواجب يوازې دهغه چا وېرول دي څوک چې
له قيامت څخه وېرېږي او دوی يې څکه ځانګړي يادکړل چې دوی ته وېرونه ګټه رسوي، نو ستا دا کارنه
دی چې تاکلی وخت يې وروښيې چې کله به وي؟ ﴿ كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا عَشِيَّةً أَوْ ضُحَاهَا ﴾ ګواکې دغه
(منکران) په هغې ورځې کې چې ويني دغه (قيامت نو داسي به ګڼي) لکه چې نه يې وي کړی ځنډ (په
دنيايا قبرونو کې) مګر (په قدرد) ماښام آخر دورځې يا په قدردڅاښت) ابن کثير ليکي چې دوی به
ددنياژوند دومره لنډ او کوتاه ګڼي لکه دورځې ماښام يا څاښت غونډې
الله جل جلاله دغه مبارک سورت هم په هغه څه بشپړ کړی په کوم چې په پيل کې يې ورباندې قسم
اخيستی وو چې هغه دقيامت راتلل وو او دغه دکلام ښه تنسيق او اوبدل دی.

بلاغت:

پدې سورت کې چې دبديع او بيان کومې ښکلاوې شته لنډيزيې په لاندې ډول دی:

۱- دطباق صنعت چې د ﴿ الْآخِرَةِ ﴾ او ﴿ وَالْأُولَىٰ ﴾ په کلماتو کې راغلی هلته چې الله تعالی فرمايي
﴿ فَأَخَذَهُ اللَّهُ نَكَالَ الْآخِرَةِ وَالْأُولَىٰ ﴾ څکه مراد ورڅخه دفرعون هغه دوې نيمه خواکلمې دي چې لومړۍ او
وروستۍ ويلي شوي او همدارنګه د ﴿ عَشِيَّةً أَوْ ضُحَاهَا ﴾ په کلام کې دغه صنعت ليدل کېږي

(۱) دغه آيتونه دانسان دځان پېژندلو لپاره يې ساری معيار او ميزان دی ترڅو انسان خپل ځان وپېژني چې آيا جنتي دی او که دوزخي؟ نېکمرغه دی او که بدمرغه؟ هغه څوک چې سرکشي کوي دنيوي ملذات او شهوتونه دالله په طاعت او ثواب لوړ او غوره بولي هغه به دوزخ ته درومي او څوک چې دالله عبادت او پرهېزګاري کوي او نفس له خواهشاتو راګرزوي هغه دجنت مستحق دی تل ترتله به په جنت کې وي انسان ته ښايي په دغه تله ځان وتلي

٢ - جناس چي دالله تعالى پدې کلام کي راځي ﴿ تَرْجُفُ ٱلرَّاجِفَةُ ﴾ او دې ته اشتقاقي جناس وايې.

٣ - دمقابلې صنعت هلته چي الله تعالى فرمايې ﴿ ٱلسَّمَآءُ بَنَىٰهَا ﴾ او دا چي ﴿ وَٱلْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَىٰهَآ أَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَمَرْعَىٰهَا ﴾ او همدا رنګه د دې کلام چي ﴿ فَأَمَّا مَن طَغَىٰ وَءَاثَرَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا ﴾ او د دې ترمينځ چي ﴿ وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِۦ وَنَهَى ٱلنَّفْسَ عَنِ ٱلْهَوَىٰ ﴾ چي راغلى دى.

۴ - دتشويق اسلوب چي فرمايې ﴿ هَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ مُوسَىٰٓ ﴾ خکه پدې اسلوب سره د کيسې د پوهېدلو لپاره تشويق افاده کېږي.

۵ - دطباق صنعت چي د جنت او دوزخ ترمينځ او يا هم د ځمکي او آسمان ترمينځ په آيتونو کي شتون لري.

٦ - مرسله او مجمله تشبيه کله چي فرمايې ﴿ كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوٓا۟ إِلَّا عَشِيَّةً أَوْ ضُحَىٰهَا ﴾.

٧ - تصريحي استعاره پدې کلام کي ﴿ أَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَمَرْعَىٰهَا ﴾ دلته يې د انسانانو خوراک ته هم ورشوويلي ځکه انسانان او حيوانات له وښو او نباتاتو څخه خوراک کوي او دغه باريکه استعاره ده.

٨ - دفواصلو توافق چي مرصع سجع ګڼل کېږي لکه ﴿ ضُحَىٰهَا، دَحَىٰهَآ، وَمَرْعَىٰهَا ﴾ او نور چي دا هم له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

دالله جل جلاله په مرسته د (النازعات) سورت د تفسير ژباړه بشپړه شوه.

***

## د عبس سورت مکي او دوه څلوېښت آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

دعبس سورت له مکي سورتونو څخه يو دی او پکي دعقيدې او رسالت په هکله رڼا اچول کېږي، همداسي دالله جل جلاله دقدرت په اړه چي څرنګه يې انسان، نبات او خوراکي توکي پيدا کړي دي، همدا راز دقيامت دورځي او دهغي دهېښوونکو او هيبت لرونکو شېبو څخه غږېږي.

پدې سورت کي ديوه مبارک ړانده صحابي حضرت عبد الله ابن أم مکتوم رضی الله عنه کيسه بيان شوې ده هغه چي رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغی او ورته ويل يې ما ته هغه څه رازده کړه کوم چي الله تا ته ښودلي دي خو رسول الله صلی الله عليه وسلم دقريشو له مشرانو او اعيانو سره په خبرو اترو لګيا و او هغوی ته يې داسلام راوړلو بلنه ورکوله او دنو موړو اصحابي په بار بار غوښتنه يې تندی تريو کړ او مخ يې ترې واړا او وداو وچي قرآنکريم دعتاب په توګه نازل شو ويې فرمايل ﴿ عَبَسَ وَتَوَلَّىٰ أَن جَاءَهُ الْأَعْمَىٰ وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّهُ يَزَّكَّىٰ أَوْ يَذَّكَّرُ فَتَنفَعَهُ الذِّكْرَىٰ أَمَّا مَنِ اسْتَغْنَىٰ فَأَنتَ لَهُ تَصَدَّىٰ ﴾ دآيتونو تر پايه.

بيا وروسته دالله په ډېرو نعمتونو باندي دانسان کفر او انکار بيانوي فرمايي ﴿ قُتِلَ الْإِنسَانُ مَا أَكْفَرَهُ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُ مِن نُّطْفَةٍ خَلَقَهُ فَقَدَّرَهُ ثُمَّ السَّبِيلَ يَسَّرَهُ ﴾ دآيتونو تر پايه پوري.

وروسته دالله جل جلاله دقدرت دلائل بيانېږي چي څرنګه يې انسان ته هغه لاري چاري آسانه کړي چي پدې ځمکه کي واوسي نو ارشاد کوي چي ﴿ فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ إِلَىٰ طَعَامِهِ أَنَّا صَبَبْنَا الْمَاءَ صَبًّا ثُمَّ شَقَقْنَا الْأَرْضَ شَقًّا فَأَنبَتْنَا فِيهَا حَبًّا وَعِنَبًا وَقَضْبًا وَزَيْتُونًا وَنَخْلًا ﴾ دآيتونو تر پايه پوري.

په پای کي دغه مبارک سورت دقيامت دورځي کړاوونه چي هلته به خپلوان له خپلوانو څخه تښتي او همدا راز دمؤمنانو او کفارو حال بيانوي فرمايي ﴿ فَإِذَا جَاءَتِ الصَّاخَّةُ يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ ﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ عَبَسَ وَتَوَلَّىٰ ﴿١﴾ أَن جَاءَهُ الْأَعْمَىٰ ﴿٢﴾ وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّهُ يَزَّكَّىٰ ﴿٣﴾ أَوْ يَذَّكَّرُ فَتَنفَعَهُ الذِّكْرَىٰ ﴿٤﴾ أَمَّا مَنِ اسْتَغْنَىٰ ﴿٥﴾
فَأَنتَ لَهُ تَصَدَّىٰ ﴿٦﴾ وَمَا عَلَيْكَ أَلَّا يَزَّكَّىٰ ﴿٧﴾ وَأَمَّا مَن جَاءَكَ يَسْعَىٰ ﴿٨﴾ وَهُوَ يَخْشَىٰ ﴿٩﴾ فَأَنتَ عَنْهُ تَلَهَّىٰ ﴿١٠﴾ كَلَّا إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ ﴿١١﴾
فَمَن شَاءَ ذَكَرَهُ ﴿١٢﴾ فِي صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ ﴿١٣﴾ مَّرْفُوعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ ﴿١٤﴾ بِأَيْدِي سَفَرَةٍ ﴿١٥﴾ كِرَامٍ بَرَرَةٍ ﴿١٦﴾ قُتِلَ الْإِنسَانُ مَا أَكْفَرَهُ ﴿١٧﴾ مِنْ أَيِّ
شَيْءٍ خَلَقَهُ ﴿١٨﴾ مِن نُّطْفَةٍ خَلَقَهُ فَقَدَّرَهُ ﴿١٩﴾ ثُمَّ السَّبِيلَ يَسَّرَهُ ﴿٢٠﴾ ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ ﴿٢١﴾ ثُمَّ إِذَا شَاءَ أَنشَرَهُ ﴿٢٢﴾ كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَا
أَمَرَهُ ﴿٢٣﴾ فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ إِلَىٰ طَعَامِهِ ﴿٢٤﴾ أَنَّا صَبَبْنَا الْمَاءَ صَبًّا ﴿٢٥﴾ ثُمَّ شَقَقْنَا الْأَرْضَ شَقًّا ﴿٢٦﴾ فَأَنبَتْنَا فِيهَا حَبًّا ﴿٢٧﴾ وَعِنَبًا وَقَضْبًا

وَزَيْتُونًا وَنَخْلًا ﴿۲۹﴾ وَحَدَآئِقَ غُلْبًا ﴿۳۰﴾ وَفَٰكِهَةً وَأَبًّا ﴿۳۱﴾ مَّتَٰعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَٰمِكُمْ ﴿۳۲﴾ فَإِذَا جَآءَتِ ٱلصَّآخَّةُ ﴿۳۳﴾ يَوْمَ يَفِرُّ ٱلْمَرْءُ ﴿۲۸﴾
مِنْ أَخِيهِ ﴿۳۴﴾ وَأُمِّهِۦ وَأَبِيهِ ﴿۳۵﴾ وَصَٰحِبَتِهِۦ وَبَنِيهِ ﴿۳۶﴾ لِكُلِّ ٱمْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ ﴿۳۷﴾ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ﴿۳۸﴾ ضَاحِكَةٌ
مُّسْتَبْشِرَةٌ ﴿۳۹﴾ وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ ﴿۴۰﴾ تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ ﴿۴۱﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَفَرَةُ ٱلْفَجَرَةُ ﴿۴۲﴾ ﴾ عبس: ۱ - ۴۲

## لغتونه:

(عبس) وچويلي يې تريو كړ (تصدى) هغه ته قصد كوې اوخبره يې اورې (سفرة) كرام الكاتبين كومې پرښتې چې دخلګو اعمال ليكي د(سافر) جمع دى لكه چې (كتبة) دكاتب جمع راځي (أقبره) په قبركي يې كېښود،ده لره (قضبا) تركاري هرهغه څه چې له نباتاتوپرې كول كېږي اوتنه يې بيرته را زرغونېږي لكه شفتله ، ګندنا اونور (غلبا) هغه ګڼې ډېري وني چې ښاخونه يې يوتربل تېر اوبيروي (أبا) ورشوهغه واښه چې حيوانات يې وچ اولامده خوري (صاخة) هغه درنه سخته چيغه چې غوږونه يې په اورېدلو كاڼه شي (مسفرة) ځلېدونكي پركېدونكي (غبرة) په دوړوككړلوغړن ګرد جن (قترة) تک تور.

## دنزول سبب:

روايت كېږي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دقريشوله مشرانو سره ددعوت اوبلني په هكله مشغول ووهيله يې درلوده څوهغوى مسلمانان شي بيا ورپسې ددوى اتباع هم ايمان راوړي چې پدې ترڅ كي عبدالله بن أم مكتوم رضى الله عنه چې په سترګوړوندووراغى اورسول الله صلى الله عليه وسلم ته يې ويل: هغه څه رازده كړه چې تاته الله درزده كړي دي اوداخبره يې څوځله تكرار كړه هغه ﷺ پدې نه ووخبرچې رسول الله صلى الله عليه وسلم دقريشوپه دعوت بوخت دى نورسول الله صلى الله عليه وسلم داخبره ښه نه ګڼله چې خبري يې غوڅي شي تندى يې تريو اومخ يې ځيني واړاوو اوپه زړه كي يې وروګرزېدل چې دغه كسان به وايې چې: پلويان يې مريان ، ړانده اودټيټ پوړخلګ دي نوبې بياله قريشي مشرانو سره په خبروپيل وكړ چې داآيت نازل شو ﴿ عَبَسَ وَتَوَلَّىٰٓ أَن جَآءَهُ ٱلْأَعْمَىٰ ﴾ دآيتونوترپايه

## تفسير:

﴿ عَبَسَ وَتَوَلَّىٰٓ أَن جَآءَهُ ٱلْأَعْمَىٰ ﴾ وچولى (تندى) يې تريو كړ (محمد) اومخ يې وګرزاووله دې امله چې ده ته ړوندراغى (چې ددېنې چاروپوښتني يې كولې) صاوي وايې چې دغياب په ضمائرو يې ياد كړچې:

﴿ عَبَسَ وَتَوَلَّىٰٓ ﴾ داپه رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې تلطف اومهرباني ده اودهغه داجلال او عظمت څرګندويه ده ځكه په خطاب كي شدت اوصعوبت وي اود (أعمى) نوم عبدالله بن أم مكتوم دى) كله چې دغه آيتونه نازل شول نوبيا چې به رسول الله صلى الله عليه وسلم نوموړى صحابي ﷺ وليد ورته ويل به يې هركله دې راشي هغه څوک چې الله تعالى زه دده په هكله ترعتاب لاندې كړم اوهله به يې خادر ورته وير كړ[1] ﴿ وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّهُۥ يَزَّكَّىٰٓ ﴾ اوڅه شي پوه كړى يې ته (اى محمده له حاله دده) ښايي چې هغه (ړوند)

---

[1] حاشية الصاوي على الجلالين ۲۹۱/۴

به پاک شي (په تعلیم ستاله ګناهونو څخه) ﴿ أَوْ يَذَّكَّرُ فَتَنفَعَهُ ٱلذِّكْرَىٰٓ ﴾ یا به پند واخلي پس نفع به ورسوي ده ته ذکر پند ﴿ أَمَّا مَنِ ٱسْتَغْنَىٰ ﴾ او هغه څوک چي (مستغني دی) استغنایي کړي وي (د هدایت پروانه کوي ځکه چي بډای او مالدار دی ﴿ فَأَنتَ لَهُۥ تَصَدَّىٰ ﴾ نو ته هغه ته قصد کوې (او د هغه خبري اورې او د بلني یې زیات اهتمام کوې) ﴿ وَمَا عَلَيْكَ أَلَّا يَزَّكَّىٰ ﴾ او نشته پر تا باندي هیڅ الزام چي هغه پاک نشي، په اسلام سره له کفر او عصیانه ،ځکه له تا د هغه د هدایت غوښتنه نه ده شوي پر تا باندي یوازي تبلیغ او رسول دی.
الوسي لیکي چي پدې کي زیاته کرکه او تنفیردی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم ددوی له ملګرتیا څخه وژغوري ځکه که یو څوک نه غواړي او هغه بل لا نور هم پسي درومي او ټینګار کوی دغه د مروت او مېړاني څخه لیري خبره ده. ﴿ وَأَمَّا مَن جَآءَكَ يَسْعَىٰ ﴾ او هر هغه څوک چي راشي تا ته په تلوار سره (لپاره د طلب د علم چي ډېر یې حریص وی) ﴿ وَهُوَ يَخْشَىٰ ﴾ حال دا چي دی وېرېږي (له الله څخه او له محرماتو څخه ځان ژغوري) ﴿ فَأَنتَ عَنْهُ تَلَهَّىٰ ﴾ پس ته (ای محمده) له هغه څخه مخ ګرزوې (مشغولېږې، تغافل کوې او له ګمراه سردارانو سره خبري کوې) ﴿ كَلَّآ إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ ﴾ مه کوه بیا داسي (ځکه چي) بېشکه دا (آیتونه) پند دي (له جانبه د الله ټولو خلګو ته او لازم دی چي ور باندي پند واخلي) ﴿ فَمَن شَآءَ ذَكَرَهُۥ ﴾ نو هغه څوک چي غواړي و دي مني دغه پند د قرآن او له لارښوونو او ارشاداتو څخه دي ګټه پوره کړي. مفسرین کرام لیکي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم له دې وروسته د هیڅ بېوزله په وړاندي تندی تریو کړی نه دی او نه یې هم د بډای څه زیات پام ساتلی دی او فقراء بېوزلان به د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مجلس امیران وو او چي ابن أم مکتوم به کله مجلس ته راغی نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به ځادر ورته وېړاوه ورته ویل به یې (مرحبًا بمن عاتبني فیه ربي...) وروسته له دې څرګندونو الله تعالی د قرآن عظیم الشان د ستر منزلت او مقام داسي خبرورکوي فرمایي ﴿ فِى صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ ﴾ (دغه قرآني آیات لیکلي شوي دي) په پاڼو عزتناکو (عندالله په لوح محفوظ کي) ﴿ مَّرْفُوعَةٍ مُّطَهَّرَةٍۭ ﴾ چي پوره ته دي په قدر او عظمت کي پاک کړی شوي دي (له رسېدلو د لاسونو د شیطانانو او نورو ګردو عیوبو څخه ﴿ بِأَيْدِى سَفَرَةٍ ﴾
(په لاسونو د (پرښتو) لیکونکیو) یا په لاسونو د هغو ملائکو چي الله د خپل ځان او انبیاوو علیهم السلام ترمینځ سفیران ګرزولي دي ﴿ كِرَامٍۭ بَرَرَةٍ ﴾ لیکونکیو عزتمنو نیکو ﴿ قُتِلَ ٱلْإِنسَـٰنُ مَآ أَكْفَرَهُۥ ﴾ لعنت کړی شوی دی په (کافر) انسان چي څه شي کافر کړی دی د کفر باعث یې څه دی؟) یعني ملعون دی کافر انسان سره له دې چي الله د ډېر نعمتونه ور کړي احسانات یې ور سره کړي څه شی د هغه د کفر باعث ګرزېدو؟
الوسي رحمه الله لیکي چي ګواکي هغه ډېره بده ښېراده او همدا راز د هغه د کفر په هکله تعجیب دی چي هغه څرنګه په کفر او عصیان کي افراط کړی دی؟ دا کلام په خوراپه زړه پوري ایجاز او بیان باندي

مشتمل دی([1]) ﴿ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُ ﴾ له څه شي څخه پیدا کړی دی (الله) هغه (انسان؟ چي دومره تکبر کوي اوبیا یې توضیح هسې فرمایې ﴿ مِن نُّطْفَةٍ ﴾ له نطفې (څاڅکي دمني) څخه (یې پیدا کړی) ﴿ خَلَقَهُ فَقَدَّرَهُ ﴾ پیدا کړی دی الله دغه (انسان) پس اندازه یې کړه لره دهیئت او اندامونه دمور په نس کي چي یوځل نطفه بیا علقه ترڅو یې خلقت تکمیل شو. ابن کثیر لیکي چي (قدره) معنادا چي اندازه یې کړ رزق روزي دهغه اجل او عمل دده او دا چي نیکمرغه او که بدمرغه دی ([2]) ﴿ ثُمَّ السَّبِيلَ يَسَّرَهُ ﴾ بیا یې لاره ورآسانه کړه (لاره دتلو دمور له ګېډي نه . حسن بصري رحمه الله وایې چي انسان څرنګه تکبر کوي په داسي حال کي چي دوه ځلي دمتیازوله لاري څخه راوتلی دی (یعني دنارینه له ذکرا و دښځي له فرج څخه) ([3]) ﴿ ثُمَّ أَمَاتَهُ فَأَقْبَرَهُ ﴾ بیا الله مړ کړ هغه (انسان) لره نو په قبرکي یې کېښود ده لره (چي د رناوی تعظیم یې وشي او څېرونکو حیواناتو وحوشو او مرغانو ته یې په ډګر، ونه غورځاوو دغه دبني آدم په نورو حیواناتو باندي حرمت او فضیلت دی ﴿ ثُمَّ إِذَا شَاءَ أَنشَرَهُ ﴾ بیا هر کله چي اراده وفرمایې (الله د انسان دبیا ژوندون نو یې) ژوندی کوي ده لره (لپاره دحساب او جزاء ([4]) او دا چي وېې فرمایل (اذا شآء) ددې لپاره چي دبعث او پوړته کېدلو وخت چاته ندی معلوم او دغه دالله مشیت ته سپارل شوی دی کله چي وغواړي بیا یې ژوندی کوي ﴿ كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَا أَمَرَهُ ﴾ (ښځي ندي کړی (کافر) هغه شی چي امر حکم کړی دی ده ته (دغه الله دهغه څېز) (کلا) حرف ردع او زجر دی ترڅو دغه کافر له تکبر او تجبر څخه راوګرزي بېشکه ده هغه څه ندي پرځای کړي چي ورباندي فرض شوي وو او نه یې هم هغه څه ادا کړي دي چي الله ورباندي مکلف کړی وو چي هغه عبارت له ایمان او طاعت څخه دی.. کله چي الله تبارک وتعالی دانسان خلقت وښود نو بیا ورپسې یې د رزق یادونه کوي ترڅو چي دالله له بېلا بېل نعمتونو څخه پند واخلي شکرو باسي او دالله اطاعت وکړي نو فرمایې ﴿ فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ إِلَىٰ طَعَامِهِ ﴾ نو ودي ګوري (منکر) انسان طرف دطعام خپل ته (په کتلو دفکر او عبرت باندي لکه چي هغه ته لازم دی چي دخپل پیدا ایښت او خلقت په هکله فکروکړي چي څه ډول الله پاک پخپل بشپړ قدرت باندي پیدا کړ او درا تلو لاره یې ورته آسانه کړه څه رنګه یې دمعاش اسباب ورته برابر کړل خوراک یې ورته مهیا کړ ترڅو دژوند قوام یې ممکن کړي او بیا یې ددې تفصیل هسې وفرمایو چي ﴿ أَنَّا صَبَبْنَا الْمَاءَ صَبًّا ﴾ ببشکه موږ توی کړې اوبه (له وریځو څخه عجیبه) تویول ﴿ ثُمَّ شَقَقْنَا الْأَرْضَ شَقًّا ﴾ بیا څیري کړي ده موږ ځمکه څیرول (ترڅو نباتات تري راوزرغونه او وتوکېږي ﴿ فَأَنبَتْنَا فِيهَا حَبًّا وَعِنَبًا وَقَضْبًا ﴾ بیا موږ زرغونې کړي دي په هغې (ځمکي) کي دانې دانګور او منې،

---

([1]) روح المعاني ۳۰/ ۴۳
([2]) دابن کثیر مختصر ۳/ ۶۰۰
([3]) القرطبي ۱۹/ ۲۱۲
([4]) خازن ۴/ ۳۱۰

ترکاري (هغه چي خلک يې خوري اوزيرمه کوي يې ياهغه چي تازه خوړل کيږي ﴿ وَزَيْتُونًا وَنَخْلًا ﴾ (اوزيتون اوخرما) يعني همداسي مو دزيتون اوخرماوني پيداکړې چي له هغو څخه تېل، لمده مېوه او خرمالاس ته راځي ﴿ وَحَدَآئِقَ غُلْبًا ﴾ اوباغونه ګڼ (له جهته ده يروالي دونونه) هسي چي ښاخونه يې يوله بله جاروتي وي ﴿ وَفَٰكِهَةً وَأَبًّا ﴾ او (تازه) مېوې او (وچي مېوې يا) واښه قرطبي ليکي چي (أب) هغو وښوته وايې چي بوده ګان حيوانات يې خوري (۱) ﴿ مَّتَٰعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَٰمِكُمْ ﴾ (پيدامو کړل دغه څېزونه) لپاره دنفعي ستاسي اوحيواناتوستاسي) ابن کثيرليکي چي پدې آيتونو کي په بندګانوباندې دالله جل جلاله داحسان څرګندول دي اوداچي دنباتاتورازرغونېدل له وچي ځمکي څخه پدې دلالت وکړي چي له مړيني وروسته ژوندون حق دی که څه هم هډوکي رژېدلي او وراسته شوي وي (۲) وروسته الله تعالى دقيامت دورځي هيبت داسي بيانوي ﴿ فَإِذَا جَآءَتِ ٱلصَّآخَّةُ ﴾ نوکله چي راشي سخت آوازغوږ کنونکي ﴿ يَوْمَ يَفِرُّ ٱلْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ وَأُمِّهِۦ وَأَبِيهِ وَصَٰحِبَتِهِۦ وَبَنِيهِ ﴾ هغه ورځ چي تښتي به سړی له خپله وروره، له خپلي موره اوپلاره، خپلي ملګري ښځي اوله خپلوزامنو څخه (چي هرسړی به دخپل ځان په غم ککړ وي، الله تعالى دانسان تېښته په داسي ترتيب ذکرکړه چي په مهرباني شفقت کي له ښکتني پور څخه پيل شوي اوپه پورتني پوړ چي ترټولواوچت اولوړدی پای ته رسېدلي ده ځکه چي انسان ترهرڅازيات په خپل اولاداوزامنو شفقت کوي ﴿ لِكُلِّ ٱمْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ ﴾ هرسړي لره له هغوی څخه به په دغي ورځي کي يوحال وي چي بې پرواکوي بې (له نورو څخه اوله خپله ځانه پرته دهيچاپه خيال کي هم نه وي آن تردې چي انبياء عليهم السلام به پدې ورځ کي د (نفسي، نفسي) چيغي وهي (۳) کله چي الله ﷻ دقيامت دورځي اودهغې دمشکلاتو حال بيان کړوريسې دنيکمرغه اوبدمرغه کسانو وېش داسي ښيي ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ﴾ ځيني مخونه به پدغي ورځي کي روښانه وي ﴿ ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ ﴾ خندېدونکي خوشحاله به وي (چي دالله جل جلاله کرامت يې ومونده چي مؤمنان دي اوپدې تل ترتله نعمت باندي به راضي اوخوښ وي)

﴿ وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ ﴾ اوپه ځيني مخونوباندي به پدې ورځ ګرد اوغباروي ﴿ تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ ﴾ پټ کړي به وي هغه مخونه (ګرد) ظلمت اوتوروالي ﴿ أُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَفَرَةُ ٱلْفَجَرَةُ ﴾ دغه ټول (تورمخي) هم دوی دي کافران فاجران (صاوي ليکي الله ددوی له تورو مخونو سره ګرد اوغباريوځای وفرمايولکه چي له کفرسره يې فجورجوخت راوړ (۴).

---

(۱) قرطبي تفسير ۱۹/ ۲۲۰
(۲) مختصرابن کثير ۳/ ۲۰۷
(۳) التسهيل لعلوم التنزيل
(۴) حاشية الصاوي على الجلالين ۴/ ۲۹۴

## بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې دبديع اوبيان کومې ښکلاوې شته لنډيزيې دادی:

١- دالتفات صنعت چې له غياب څخه خطاب ته راغلی اوددې لپاره چې زيات عتاب افاده کړي نو فرمايې ﴿ عَبَسَ وَتَوَلَّىٰٓ أَن جَآءَهُ ٱلۡأَعۡمَىٰ ﴾ اوبيا فرمايې ﴿ وَمَا يُدۡرِيكَ لَعَلَّهُۥ يَزَّكَّىٰٓ ﴾ دغه التفات ددې لپاره دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم دړانده سره په مهرباني کولو اوعنايت باندې تنبيه کړي

٢- اشتقاقي جناس لکه پدې کلام کې چې ﴿ يَذَّكَّرُ ﴾ او ﴿ ٱلذِّكۡرَىٰٓ ﴾.

٣- په زړه پورې کنايه چې فرمايې ﴿ ثُمَّ ٱلسَّبِيلَ يَسَّرَهُۥ ﴾ دلته دهغه دتولد حالت بيان شوی اود راوتلو په لارسره دهغه دمورله فرج څخه کنايه راوړل شوې ده.

٤- دتعجب اسلوب چې پدې کلام راغې ﴿ قُتِلَ ٱلۡإِنسَٰنُ مَآ أَكۡفَرَهُۥ ﴾ دلته چې دکافرد کفرپه هکله تعجب دی هغه داچې الله جل جلاله پرېمانه نعمتونه ورباندې لوروليې دي خودی بيا هم کافرشوی دی.

٥- دطباق صنعت چې پدې کلماتو کې شتون لري چې ﴿ تَصَدَّىٰ ﴾ او ﴿ تَلَهَّىٰ ﴾ دي چې د(تصدي) معنا قصد کول او د(تلهی) معنا تغافل غوره کول او مشغولېدل دي

٦- له اجمال څخه وروسته تفصيل چې کله فرمايې ﴿ مِنۡ أَيِّ شَيۡءٍ خَلَقَهُۥ ﴾ اوبيايې داسې تفصيل بيانوي چې ﴿ مِن نُّطۡفَةٍ خَلَقَهُۥ فَقَدَّرَهُۥ ثُمَّ ٱلسَّبِيلَ يَسَّرَهُۥ ثُمَّ أَمَاتَهُۥ فَأَقۡبَرَهُۥ ﴾.

٧- باريکه اوخوندوره مقابله لکه داچې دبدمرغه اونيکمرغه کسانوترمينځ ده چې فرمايې ﴿ وُجُوهٞ يَوۡمَئِذٖ مُّسۡفِرَةٞ ضَاحِكَةٞ مُّسۡتَبۡشِرَةٞ ﴾ اوددې په مقابل کې راغې ﴿ وَوُجُوهٞ يَوۡمَئِذٍ عَلَيۡهَا غَبَرَةٞ تَرۡهَقُهَا قَتَرَةٌ ﴾.

٨- مرصع سجع چې داهم دبديعي محسناتو څخه دی لکه چې پدې آيتونو کې يې لوستلی شو ﴿ عَبَسَ وَتَوَلَّىٰٓ أَن جَآءَهُ ٱلۡأَعۡمَىٰ وَمَا يُدۡرِيكَ لَعَلَّهُۥ يَزَّكَّىٰٓ ﴾ يالکه پدې آيتونو کې ﴿ فِي صُحُفٖ مُّكَرَّمَةٖ مَّرۡفُوعَةٖ مُّطَهَّرَةِۭ بِأَيۡدِي سَفَرَةٖ كِرَامِۭ بَرَرَةٖ ﴾ دآيتونوترپايه پورې

## لطيفه:

ځينې دادب پوهانو دالله له دې وينا څخه اقتباس کړی چې وايې: ﴿ قُتِلَ ٱلۡإِنسَٰنُ مَآ أَكۡفَرَهُۥ ﴾. نو ويلي يې دي

يتمنى المرء في الصيف الشتاء • فاذا جاء الشتاء أنكره • فهو لا يرضى بحال واحد • قتل الانسان ما أكفره

معنا داچې سړی په اوړي کې دژمي هيله کوي خوکله چې ژمی راشي هغه نه خوښوي انسان په يوه حال هم خوښ نه وي هلاک دې شي انسان څه شي کافرکړ؟

دالله جل جلاله په مرسته دعبس سورت تفسيرژباړه بشپړه شوه.

***

## دتکویر سورت مکي اونه ویشت آیتونه لري:

### دسورت په وړاندي:

دتکویر سورت له مکي سورتونو څخه یو سورت دی اودوه مهم حقیقتونه څېړي چي یو یې دقیامت اوبل یې دوحی اورسالت حقیقت دی.

پدې مبارک سورت کي لومړی دقیامت دورځي اودکائناتودیومخ ایزاوښتون بیان دی چي لمر، ستوري، سیندونه، ځمکي، آسمانونه، حیوانات، ژوي اوانسانان ټول پکي شامل دي، هغه قیامت چي ټول کائنات خوځوي اوګردموجودات تیت اوپرک کېږي هیڅ ځیزبه پخپل حال پاتي نشي اوټول به بدلون ومومي الله فرمایي ﴿إِذَا ٱلشَّمۡسُ كُوِّرَتۡ ۝١ وَإِذَا ٱلنُّجُومُ ٱنكَدَرَتۡ ۝٢ وَإِذَا ٱلۡجِبَالُ سُيِّرَتۡ ۝٣ وَإِذَا ٱلۡعِشَارُ عُطِّلَتۡ ۝٤ وَإِذَا ٱلۡوُحُوشُ حُشِرَتۡ ۝٥ وَإِذَا ٱلۡبِحَارُ سُجِّرَتۡ﴾ دآیتونو ترپایه.

وروسته دوحی حقیقت بیانوي اوهغه ملائک ستایي چي وحی رالېږدوي اوبیاهغه استازی اوپیغمبرښیي چاته چي وحی راځي اوبیادهغه دقوم اوتېریادونه کوي اوهمدارازهغه څوک چي ددغي وحی مخاطبین دي دهغوی بیان کوي څوهغوی دکفراوشرک له تیاروڅخه دعلم اوایمان نوراوځلاته راوباسي فرمایي ﴿فَلَآ أُقۡسِمُ بِٱلۡخُنَّسِ ۝١٥ ٱلۡجَوَارِ ٱلۡكُنَّسِ ۝١٦ وَٱلَّيۡلِ إِذَا عَسۡعَسَ ۝١٧ وَٱلصُّبۡحِ إِذَا تَنَفَّسَ ۝١٨ إِنَّهُۥ لَقَوۡلُ رَسُولٖ كَرِيمٖ﴾ دآیتونو ترپایه پوري.

په پای کي سورت دمشرکانو په هغوغلطوګمانونوکوم چي دقرآنکریم په هکله یې درلودل د بطلان کرښه راکاږي اوداسي څرګندوي چي دغه قرآن دالله جل جلاله له لوري خپلوبندګانوته پنددی فرمایي ﴿فَأَيۡنَ تَذۡهَبُونَ ۝٢٦ إِنۡ هُوَ إِلَّا ذِكۡرٞ لِّلۡعَٰلَمِينَ ۝٢٧ لِمَن شَآءَ مِنكُمۡ أَن يَسۡتَقِيمَ ۝٢٨ وَمَا تَشَآءُونَ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ رَبُّ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿إِذَا ٱلشَّمۡسُ كُوِّرَتۡ ۝١ وَإِذَا ٱلنُّجُومُ ٱنكَدَرَتۡ ۝٢ وَإِذَا ٱلۡجِبَالُ سُيِّرَتۡ ۝٣ وَإِذَا ٱلۡعِشَارُ عُطِّلَتۡ ۝٤ وَإِذَا ٱلۡوُحُوشُ
حُشِرَتۡ ۝٥ وَإِذَا ٱلۡبِحَارُ سُجِّرَتۡ ۝٦ وَإِذَا ٱلنُّفُوسُ زُوِّجَتۡ ۝٧ وَإِذَا ٱلۡمَوۡءُۥدَةُ سُئِلَتۡ ۝٨ بِأَيِّ ذَنۢبٖ قُتِلَتۡ ۝٩ وَإِذَا
ٱلصُّحُفُ نُشِرَتۡ ۝١٠ وَإِذَا ٱلسَّمَآءُ كُشِطَتۡ ۝١١ وَإِذَا ٱلۡجَحِيمُ سُعِّرَتۡ ۝١٢ وَإِذَا ٱلۡجَنَّةُ أُزۡلِفَتۡ ۝١٣ عَلِمَتۡ نَفۡسٞ مَّآ أَحۡضَرَتۡ ۝١٤
فَلَآ أُقۡسِمُ بِٱلۡخُنَّسِ ۝١٥ ٱلۡجَوَارِ ٱلۡكُنَّسِ ۝١٦ وَٱلَّيۡلِ إِذَا عَسۡعَسَ ۝١٧ وَٱلصُّبۡحِ إِذَا تَنَفَّسَ ۝١٨ إِنَّهُۥ لَقَوۡلُ رَسُولٖ كَرِيمٖ ۝١٩ ذِي قُوَّةٍ
عِندَ ذِي ٱلۡعَرۡشِ مَكِينٖ ۝٢٠ مُّطَاعٖ ثَمَّ أَمِينٖ ۝٢١ وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجۡنُونٖ ۝٢٢ وَلَقَدۡ رَءَاهُ بِٱلۡأُفُقِ ٱلۡمُبِينِ ۝٢٣ وَمَا هُوَ عَلَى ٱلۡغَيۡبِ
بِضَنِينٖ ۝٢٤ وَمَا هُوَ بِقَوۡلِ شَيۡطَٰنٖ رَّجِيمٖ ۝٢٥ فَأَيۡنَ تَذۡهَبُونَ ۝٢٦ إِنۡ هُوَ إِلَّا ذِكۡرٞ لِّلۡعَٰلَمِينَ ۝٢٧ لِمَن شَآءَ مِنكُمۡ أَن يَسۡتَقِيمَ ۝٢٨
وَمَا تَشَآءُونَ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ رَبُّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝٢٩﴾ التکویر: ۱ - ۲۹

لغتونه : (انکدرت) راولوېږي وپاشل شي(العشار) دعشراء جمع اودلسومیاشتوبلاربې اوښې ته ویل کېږي (کشطت) له بېخه ایستل داسي ویل کېږي (کشطتُ جلدالشاة) یعني دپسه پوستکی مي وایستل (الخنس) روښانه ستوري کوم چي دورځي له مخه له سترګو څخه پټېږي (الکنس) پټېدونکي ستوري کناس هغه ځای ته ویل کېږي چېري چي هوسۍ پټېږي (عسعس) کله چي راوخېژي رادبره شي خلیل وایي(عسعس اللیل) معناداچي شپه راوختله اویاشپه تېره شوه دغه کلمه له اضدادو څخه ګڼل کېږي څکه چي دشپې راتګ اوتګ دواړوته (عسعس) ویل کېږي لکه چي شاعرلیکي:
حتی الصبح لهاتنفسا* وانجاب عنهالیلهاوعسعسا. یعني کله چي سپېدې وچوي اوشپه ترې مخ واړوي اوتېره شي.

تفسیر: ﴿إِذَا ٱلشَّمْسُ كُوِّرَتْ﴾ کله چي دلمر(رڼا) ونغښتله شي (نورېې ولاړشي)پدې آیتونوکي دقیامت د سختیواو کړاوونوبیان دی کوم چي ټول کائنات اوموجودات به دوراني اوبدلون په لوري درومي ﴿وَإِذَا ٱلنُّجُومُ ٱنكَدَرَتْ﴾ اوکله چي ستوري خرشي (یاپه څمکه راولوېږي (تیت شي) ﴿وَإِذَا ٱلْجِبَالُ سُيِّرَتْ﴾ اوکله چي غرونه روان کړل شي (له خپله ځایه څخه وخوځېږي اوپه هواکي دوړي دوړي شي لکه چي بل ځای الله جل جلاله فرمایي ﴿وَيَوْمَ نُسَيِّرُ ٱلْجِبَالَ وَتَرَى ٱلْأَرْضَ بَارِزَةً﴾ (الکهف۴۷) ﴿وَإِذَا ٱلْعِشَارُ عُطِّلَتْ﴾ اوکله چي دلسومیاشتوبلاربې اوښې خوشي کړی شي چي هیڅوک یې نه غواړي اونه یې څروي، دغه بلاربې اوښې یې پدې ځانګړي یادي کړې څکه چي دعربولپاره دغه ډېري غوره اوخوښې وې ﴿وَإِذَا ٱلْوُحُوشُ حُشِرَتْ﴾ اوکله چي وحشي څناوران راټول کړی شي (پداسي حال کي چي سخت دقیامت له وېري څخه ترهېدلي وي) ﴿وَإِذَا ٱلْبِحَارُ سُجِّرَتْ﴾ اوکله چي بحرونه اور واخلي سره لمبه شي ﴿وَإِذَا ٱلنُّفُوسُ زُوِّجَتْ﴾ اوکله چي نفسونه جوړه کړل شي (یعني کله چي انساني نفسونه له خپلوسیالانوسره نژدې شي فاجرله فاجرسره اوصالح له نیکوکاره سره طبري وایي:معناداچي صالح سړی به له بل صالح سړي سره په جنت کي یو ځای شي اوبد کرداره سړی به له بل بد سړي سره په دوزخ کي ملګری شي ﴿وَإِذَا ٱلْمَوْءُۥدَةُ سُئِلَتْ﴾ ؟اوکله چي له ژوندۍ خښي شوي نجلۍ څخه وپوښتل شي چي په کومي ګناه وژلي شوي ده(دانجلۍ)داهغي دقاتل لپاره توبیخ دی په التسهیل کي لیکي چي(موؤدة)هغي ماشومي نجلۍ ته وایې چي عربانوبه دشرم اوغیرت له مخي کله چي به وزېږېدله ژوندۍ ښخوله دا پوښتنه به دقیامت په ورځ له هغې څخه کېږي چي ﴿بِأَيِّ ذَنۢبٍ قُتِلَتْ﴾ چي په کومي ګناه وژلي شوي ده؟ دابه دهغې دقاتل لپاره دتوبیخ په توګه پوښتله کېږي ﴿وَإِذَا ٱلصُّحُفُ نُشِرَتْ﴾ اوکله چي اعمالنامې وغوړولي خپرې کړی شي (دحساب په وخت کي) ﴿وَإِذَا ٱلسَّمَآءُ كُشِطَتْ﴾ اوکله چي آسمان (دپوستکي په شان) وایستلی شي(لکه چي له پسه څخه پوست ایستل کېږي) ﴿وَإِذَا ٱلْجَحِيمُ سُعِّرَتْ﴾

اوکله چي دوزخ بلي لمبې کړی شي (کافرانوته) ﴿ وَإِذَا ٱلْجَنَّةُ أُزْلِفَتْ ﴾ اوکله چي جنت نژدې کړی شي (مؤمنانوته)﴿ عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّآ أَحْضَرَتْ ﴾ پوه به شي هرنفس په هغه شي چي حاضرکړی يې وي (له خیراوشرڅخني) داجمله چي (علمت نفس) ده دتېرشوي آيتونو ځواب دی کوم چي د(اذالشمس کورت) له پيله تردې ځايه دي معنا داچې:کله داعجيب اوغريب واقعات پېښ شي نوبه هرڅوک پخپلواعمالوپوهېږي چي ښه يې راوړي دي اوکه ناکاره ، له دې وروسته الله تعالی دقرآن اورسالت درښتنولي اوصحت په اړه قسم اخلي فرمايي ﴿ فَلَآ أُقْسِمُ بِٱلْخُنَّسِ ﴾ نوقسم خورم زه په ستوريو(چي دورځي پټېږي اودشپې ښکاره کېږي[1])﴿ ٱلْجَوَارِ ٱلْكُنَّسِ ﴾ په ستوريوپټېدونکوباندي هغه چي له لمراوسپوږمۍ سره درومي اوبيانو د ډوبېدلو په وخت کي پټېږي لکه چي هوسۍ پخپل غارکي پټېږي[2])چي هغه ته کناس وايي ﴿ وَٱلَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ ﴾ (اوقسم خورم زه)په شپې کله چي راوخېژي مخ راوګرزوي (کائنات پخپله تياره کي ونغاړي (۳)﴿ وَٱلصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ ﴾ اوقسم خورم زه په سباکله چي ساووهي راوخېژي (اوبيايې روښنايي ويره او پراخه شي چي سپينه ورځ شي) ﴿ إِنَّهُۥ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴾ (بېشکه دا(قرآنکريم) خامخاوينادرسول عزتمن (جبريل) ده ) يعني دغه قرآن مجيد دالله جل جلاله کلام چي دهغه ګران اوعزتمن استازي په واسطه نازل شوی دی لکه چي الله پاک بل ځای فرمايي : ﴿ نَزَلَ بِهِ ٱلرُّوحُ ٱلْأَمِينُ عَلَىٰ قَلْبِكَ ﴾ مفسرين کرام ليکي چي مرادله رسول څخه حضرت جبريل ﷺ دی اودقرآن نسبت يې هغه ته کړی خوپه حقيقت کي دادالله جل جلاله قول دی او وروستنی ويناهم پدې دلالت کوي چي مرادله رسول څخه حضرت جبريل دی څکه چي الله تعالی فرمايي ﴿ ذِى قُوَّةٍ عِندَ ذِى ٱلْعَرْشِ مَكِينٍ ﴾ چي خاونددزورقوت په نزدد خاوندد عرش مرتبه والادی ﴿ مُّطَاعٍ ثَمَّ أَمِينٍ ﴾ منلی شوی دی هلته امين دی (يعني په ابرارو پرښتوکي منلی شوی اودوحی په راوړلوکي امين دی) ﴿ وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ ﴾ اونه دی ملګری ستاسي (محمد ) لېونی(لکه چي تاسو پرې ګمان کوی بلکه ښه پوه هوښياردی ای قريشوتاسي خودده ملګرتياازمويلي ، دده رښتنولي موليدلي ، دده پاکي تاسوته ښکاره ده اودهغه دعقل تول هم درته معلوم دی دامحمد صلی الله عليه وسلم لکه چي تاسي پرې ګمان کوی لېونی نه دی. خازن ليکي: الله جل جلاله قسم کړی چي دغه قرآن حضرت جبريل راوړی اوداچي محمدلېونی نه دی لکه چي دمکې خلک ګمان کوي دلته الله جل جلاله هغه دواړه دروغجن قولونه يوداچي قرآنکريم محمدصلی الله عليه وسلم له خانه جوړکړی او بل داچي هغه لېونی دی نفي کړل(۴)﴿ وَلَقَدْ رَءَاهُ بِٱلْأُفُقِ ٱلْمُبِينِ ﴾ اوخامخاپه

(۱)داقول دحضرت علي، ابن عباس رضی الله عنهم، مجاهد اوحسن رحمهم الله دی اوطبري غوره کړی دی.
(۲)قرطبي تفسير۱۹ /۲۳۵
(۳)دغه وينا أرجح ده څکه چي دسهارپه مقابله کي راغلي اوابن کثيرهم دغه ويناغوره کړې ده.
(۴)تفسيرخازن۴ /۲۱۵

تحقیق لیدلی وو(محمد ) هغه (جبریل دآسمان) په څنډه (غاړه) روښانه کي ) الله جل جلاله قسم کوي چي محمد رسول الله حضرت جبریل (پخپل ملکي صورت سره )دآسمان په لوړه روښانه څنډه چي دمشرق لوری وو لیدلی وو په البحرالمحیط کي لیکي چي دغه لیدل دغارحراء له لیدلو وروسته وو اوجبریل دآسمان اومځکي ترمینځ په کرسۍ دپاسه په داسي حال کي چي شپږسوه کوځري درلودل اوختیزلویدیزیې سره نښلولي وو محمدرسول الله ولید(۱) ﴿ وَمَا هُوَ عَلَى ٱلْغَيْبِ بِضَنِينٍ ﴾ اونه وو دغه (محمددوحی) په پټوخبرو باندي بخیل (چي له تاسوڅخه یې تعلیم اوتبلیغ وسپموي بلکه ښځي په بشپړ امانت اوربښتنولي سره یې تاسوته دررسوي ﴿ وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطَٰنٍ رَّجِيمٍ ﴾ اونه دی دا(قرآن) خبره دشیطان رټلي شوي (اوملعون لکه چي مشرکان وایې) ﴿ فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ ﴾ نوچېرته تاموځی (ای کافرانو پداسي حال کي چي دقرآن آیتونه واضح اودلائل یې څرګنددي نوولي تاسوهغه ته کوډي اوکهانت وایی اووایې شعرګنی ! ددې مثال داسي دی لکه چي ته هغه ته چي سمه لاره یې پرې ایښي وي وایې داسمه سیخه لاره ده ته چېرته ځې؟ ﴿ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَٰلَمِينَ ﴾ نه دی دا(قرآن) مګرذکرپنددی (له جانبه دالله) لپاره د(ګردو )خلګو ﴿ لِمَن شَآءَ مِنكُمْ أَن يَسْتَقِيمَ ﴾ (هغه چاته چي غواړي قصدکوي له تاسي دسمېدلو خپلو ) یعني هغه چاته چي غواړي دحق متابعت وکړي په شریعت برابرشي اودنیکانولاره غوره کړي ﴿ وَمَا تَشَآءُونَ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُ رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ (اونه شی قصدکولای تاسي (دسمي لاري) مګر هغه چي اراده وفرمایې الله (دقصدد تاسي دسمي لاري) چي رب پالونکی (دټولو ) عالمیانودی) نوله الله جل جلاله څخه دسمې لاري د موندلو توفیق وغواړئ !

بلاغت: پدې سورت کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډیزیې دادی:۱-ناقص جناس لکه د ﴿ بِٱلْخُنَّسِ ﴾ او ﴿ ٱلْكُنَّسِ ﴾ ترمینځ چي راغلی دی.۲-تصریحي استعاره چي فرمایې ﴿ وَٱلصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ ﴾ دورځي راتګ یې لـه خوندورشمال را الوتلو سره مشابه کړي هغه چي زړونه ژوندي کوي اودساکښلو لفظ یې دشپې دتیارې دټولېدلو اوړنا اخستلو لپاره استعاره کړی چي داخورا باریکه اوښکلي په زړه پوري استعاره ده چي دسهارپه سا اخیستلویې انځورکړي ده.۳-باریکه کنایه چي ﴿ وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ ﴾ په کلام کي راغلي هلته چي محمد رسول الله یې ددوی دملګري په نوم یادکړی دی ۴-دطباق صنعت چي د ﴿ ٱلْجَحِيمُ.... ٱلْجَنَّةُ ﴾ پـه کلماتو کي راغلی ۵-غیرتام جناس لکـه د ﴿ مَكِينٍ .....أَمِينٍ ﴾ په کلماتو کي چي شته دي ۶-مرصع سجع لکه چي پـه ﴿ كُوِّرَتْ ، سُيِّرَتْ ، سُجِّرَتْ ، سُعِّرَتْ ، بِٱلْخُنَّسِ ، ٱلْكُنَّسِ ، تَنَفَّسَ ، عَسْعَسَ ﴾ او نورو کلماتو کي چي راغلي اولـه بـدیعي محسناتوڅخه شمېرل کېږي. دالله جـل جلالـه پـه مرستـه دکـوِّرَتْ سـورت دتفسـیرژباړه بشپړه شو.

---

(۱) البحر المحیط ۸/۴۳۱

# دانفطار سورت مکي او نولس آيتونه لري

## دسورت په وړاندي:

دانفطار سورت مکي او دتکوير دسورت په شان دکائناتوله اوښتون څخه بحث کوي او دقيامت سترا و خطرناک حوادث او پېښي ښيي او بيا دنيکانو او فاجرانو احوال ښيي چي هلته به ورسره مخ وي.

دسورت پيل دهغه انقلاب مناظر ښکاره کوي کوم چي په کائناتو کي به پېښېږي کله چي به آسمان چوي، ستوري به تيت کېږي ، سيندونه به سره ګډېږي ،قبرونه به لاندي باندي کېږي او بيا به حساب او جزاء وي فرمايي ﴿ إِذَا ٱلسَّمَآءُ ٱنفَطَرَتۡ وَإِذَا ٱلۡكَوَاكِبُ ٱنتَثَرَتۡ وَإِذَا ٱلۡبِحَارُ فُجِّرَتۡ وَإِذَا ٱلۡقُبُورُ بُعۡثِرَتۡ عَلِمَتۡ نَفۡسٞ مَّا قَدَّمَتۡ وَأَخَّرَتۡ ﴾ تر پايه پوري.

بيا وروسته دانسان انکار او کفران بيانوي هغه انسان که څه هم الله تعالى وربانديدنعمتونو باران اوروليدى خو دى يې حق نه پېژني او قدر يې نه پرخاى کوي دنعمتونو شکر نه اداکوي نو فرمايي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡإِنسَٰنُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ ٱلۡكَرِيمِ ٱلَّذِي خَلَقَكَ فَسَوَّىٰكَ فَعَدَلَكَ فِيٓ أَيِّ صُورَةٖ مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ ﴾.

وروسته بيا داخبره په ګوته کوي چي په هر انسان باندي الله تعالى پرښتي ګمارلي چي اعمال يې وليکي او کړه وړه يې وڅاري فرمايي ﴿ كَلَّا بَلۡ تُكَذِّبُونَ بِٱلدِّينِ وَإِنَّ عَلَيۡكُمۡ لَحَٰفِظِينَ كِرَامٗا كَٰتِبِينَ يَعۡلَمُونَ مَا تَفۡعَلُونَ ﴾ پدې سورت کي دآخرت خلګ په دوو ډلوو بشل شوي يوه ډله ابرار او بله ډله فجار دي او پدې هکله داسي ارشاد کوي ﴿ إِنَّ ٱلۡأَبۡرَارَ لَفِي نَعِيمٖ وَإِنَّ ٱلۡفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٖ يَصۡلَوۡنَهَا يَوۡمَ ٱلدِّينِ ﴾ دآيتونو تر پايه پوري

په پاى کي الله جل جلاله دقيامت دورځي دهيبت او سختيا نخورکا ډي او دا بيانوي چي هلته دخلګو هيڅ وس هم نه رسېږي يوازي الله جل جلاله به دحکم او سلطان خاوند وي فرمايي ﴿ وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا يَوۡمُ ٱلدِّينِ ثُمَّ مَآ أَدۡرَىٰكَ مَا يَوۡمُ ٱلدِّينِ يَوۡمَ لَا تَمۡلِكُ نَفۡسٞ لِّنَفۡسٖ شَيۡـٔٗاۖ وَٱلۡأَمۡرُ يَوۡمَئِذٖ لِّلَّهِ ﴾.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ إِذَا ٱلسَّمَآءُ ٱنفَطَرَتۡ ﴿١﴾ وَإِذَا ٱلۡكَوَاكِبُ ٱنتَثَرَتۡ ﴿٢﴾ وَإِذَا ٱلۡبِحَارُ فُجِّرَتۡ ﴿٣﴾ وَإِذَا ٱلۡقُبُورُ بُعۡثِرَتۡ ﴿٤﴾ عَلِمَتۡ نَفۡسٞ مَّا
قَدَّمَتۡ وَأَخَّرَتۡ ﴿٥﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡإِنسَٰنُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ ٱلۡكَرِيمِ ﴿٦﴾ ٱلَّذِي خَلَقَكَ فَسَوَّىٰكَ فَعَدَلَكَ ﴿٧﴾ فِيٓ أَيِّ صُورَةٖ مَّا شَآءَ
رَكَّبَكَ ﴿٨﴾ كَلَّا بَلۡ تُكَذِّبُونَ بِٱلدِّينِ ﴿٩﴾ وَإِنَّ عَلَيۡكُمۡ لَحَٰفِظِينَ ﴿١٠﴾ كِرَامٗا كَٰتِبِينَ ﴿١١﴾ يَعۡلَمُونَ مَا تَفۡعَلُونَ ﴿١٢﴾ إِنَّ ٱلۡأَبۡرَارَ
لَفِي نَعِيمٖ ﴿١٣﴾ وَإِنَّ ٱلۡفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٖ ﴿١٤﴾ يَصۡلَوۡنَهَا يَوۡمَ ٱلدِّينِ ﴿١٥﴾ وَمَا هُمۡ عَنۡهَا بِغَآئِبِينَ ﴿١٦﴾ وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا يَوۡمُ ٱلدِّينِ ﴿١٧﴾ ثُمَّ مَآ
أَدۡرَىٰكَ مَا يَوۡمُ ٱلدِّينِ ﴿١٨﴾ يَوۡمَ لَا تَمۡلِكُ نَفۡسٞ لِّنَفۡسٖ شَيۡـٔٗاۖ وَٱلۡأَمۡرُ يَوۡمَئِذٖ لِّلَّهِ ﴿١٩﴾ ﴾ الانفطار: ١ – ١٩

لغتونه:

(انفطرت) څیري شي وچوي انفطار انشقاق ته وايي (انتثرت) تيت او پرک شي (بعثرت) شا او مخ کېدل لکه چي وايي جامه يې لاندي باندي کړه (غرّک) تېر ايستلی مغروره کړی يې ته! (سوّاک) برابر کړی يې يې ته، ستا اندامونه يې په مناسب جوړښت تيار کړي دي (يصلونها) ننوزي دوی په هغه دوزخ کي.

تفسير:

﴿إِذَا ٱلسَّمَآءُ ٱنفَطَرَتۡ﴾ اوکله چي آسمان وچوي څيري شي لکه چي الله تعالى بل ځای فرمايي ﴿وَيَوۡمَ تَشَقَّقُ ٱلسَّمَآءُ بِٱلۡغَمَٰمِ وَنُزِّلَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ تَنزِيلًا﴾ ﴿وَإِذَا ٱلۡكَوَاكِبُ ٱنتَثَرَتۡ﴾ اوکله چي ستوري راولوېږي (تيت په تيت به شي له خپلو برجونو او ځايونو څخه راجلا شي ﴿وَإِذَا ٱلۡبِحَارُ فُجِّرَتۡ﴾ اوکله چي دريابونه (يو بل ته ورګډ شي (مالګين او خواږه سره ټول يو درياب شي) ﴿وَإِذَا ٱلۡقُبُورُ بُعۡثِرَتۡ﴾ اوکله چي قبرونه سره لاندي باندي کړی شي (مړي ژوندي تړې رابهر شي او خښ شوي هرڅه راووزي) ﴿عَلِمَتۡ نَفۡسٞ مَّا قَدَّمَتۡ وَأَخَّرَتۡ﴾ پوه به شي هر نفس (په دغه وخت کي) په هغه خير او شر خپل باندي چي وړاندي يې لېږلی وي او چي وروسته يې پرې ايښی وي، دا د تېرو خبرو لپاره ځواب دی. طبری وايي: معنا يې داده چي پوه به شي په هغه نيک عمل چي پخوايي لېږلی او په هغه نيک عمل چي ده يې طريقه پرې ايښي او ورباندي عمل کېږي[1]. له دې وروسته چي الله تعالى د آخرت سختي او کړاوونه بيان کړل نو هله يې انسان خپل غفلت ته متوجه کړ چي دده په وړاندي څومره ربړونه نورهم شته نو يې وفرمايل ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡإِنسَٰنُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ ٱلۡكَرِيمِ﴾ ای (کافر) انسانه څه شي مغروره کړی يې ته پخپل رب کريم باندي (هغه چي حليم دی تا له هغه څخه سرغړونه کړي دهغه امر دي نه دی منلی کافر شوی يې سره له دې چي هغه تا ته نعمتونه درکړي او احسانات يې درباندي لورولي دي) دا توبيخ او ترټنه ده لکه چي ويلي يې وي څرنګه تا د خپل رب احسان په عصيان ولمانځه او دهغه رحمت او رأفت دي په طغيان استقبال کړ؟[2] ﴿هَلۡ جَزَآءُ ٱلۡإِحۡسَٰنِ إِلَّا ٱلۡإِحۡسَٰنُ﴾ آيا د احسان بدله پرته له احسان بل څه کېدای شي؟! نه هيڅکله نه ورپسې الله خپل نعمتونه ورباندي داسي شمېري چي ﴿ٱلَّذِي خَلَقَكَ فَسَوَّىٰكَ﴾ هغه رب چي پيدا کړی يې ته نو برابر کړی يې يې ته (يعني ټول اندامونه يې پوره درکړي دي تا ته يې عقل درکړی او پوهېږې په

(1) طبري تفسير ۳۰/۵۴

(2) دغه آيت د توبيخ په توګه راغلی همدارازيکي تعجب شته دی چي څرنګه انسان د خپل رب د نعمتونو په مقابل کي کفران کوي او داسي نه دی لکه چي يو چا ويلي چي پدې سره انسان ته د حجت تلقين ورکوي چي ګواکي انسان و وايي چي زه ستا کرم مغروره کړی يم او زموږ د خبري تائيد د حضرت عمر رضی الله عنه ويناهم کوي چي هغه وايي: انسان خپل جهل او ناپوهي مغروره کړی دی.

سترګووينې اوپه غوروونو اورې ﴿ فَعَدَلَكَ ﴾ پس برابر معتدل کړی يې يې ته (چې ترګردومخلوقاتو په ښه خلقت اوشکل يې پيدا کړی يې ﴿ فِىٓ أَىِّ صُورَةٍ مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ ﴾ په هرشان کامل صورت سره چې وي يې غوښته ترکيب پيوندېې کړې ته (اودبوده ګانوپه شکل يې نه يې جوړکړی) لکه چې الله فرمايي ﴿ لَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ فِىٓ أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ﴾ بيامشرکانوته پدې توبيخ ورکوي چې دوی دقيامت اوجزاء په ورځ ايمان نه راوړي اوهغه دروغ ګڼي نوفرمايي ﴿ كَلَّا بَلْ تُكَذِّبُونَ بِٱلدِّينِ ﴾ نه دی دا (غرور ستامناسب) بلکه دروغ وايي تاسي په ورځ دجزآء باندې يعني ای دمکې کفارو وبربرئ له الله جل جلاله څخه اودالله په حلم باندې مه مغروره کېږئ تاسي خوپه ورځ دجزاء باندې ايمان نه راوړی اوهغه دروغ ګڼی ﴿ وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَٰفِظِينَ ﴾ حال داچې بېشکه په تاسي باندې خامخاساتونکي (ملائکي داعمالومقرري) دي (چې ستاسواعمال ليکي اودهغوڅارنه کوي قرطبي د(حافظين) معناپه څارونکوکوي[1]) ﴿ كِرَامًا كَٰتِبِينَ ﴾ عزتمني (په نزددالله) ليکونکي (داعمالوستاسو) ﴿ يَعْلَمُونَ مَا تَفْعَلُونَ ﴾ پوهېږي دغه (پرښتې) په هغه چې تاسي يې کوی (دخيراوشرڅخه اوستاسوداعمالوپه پانوکي يې ليکي ترڅودقيامت په ورځ باندې الله جزاء درکړي ،بياالله جل جلاله دخلګوبېشل چې دقيامت په ورځ به په دوه ډلوبېشل کېږي بيانوي چې يوه ډله به ابرارنيکان اوبله به فجارکفاروي ددوی دواړوهستوګنځيوپه باب يې داسي فيصله فرمايلي چې ﴿ إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ لَفِى نَعِيمٍ ﴾ بېشکه چې ابرار(نيکان) خامخاپه نعمتونوکي دي(دجنت) څکه چې دوی په دنياکي له خپل پروردګارڅخه وېرېدل نوهغوی به په جنت کي په داسي نعمتونوکي اوسي چې نه به سترګوليدلي وي، نه به غوروونو اورېدلي وي اونه به دچاپه خيال اوخاطرکي ګرزېدلي وي چې تل ترتله به په دغه ډول نعمتونوکي اوسي ﴿ وَإِنَّ ٱلْفُجَّارَ لَفِى جَحِيمٍ ﴾ اوبېشکه چې فجاربدکاران (کفار) خامخاپه دوزخ کي دي دهغوی چې په دنياکي دخپل پالونکي رب څخه سرغړاوو نوبه تل ترتله ددوزخ په سوځونکي اورکي اوسي ﴿ يَصْلَوْنَهَا يَوْمَ ٱلدِّينِ ﴾ ننوزي دوی په هغه کی په ورځي دجزاء کي (هغه ورځ چې دوی به دروغ ګڼله) ﴿ وَمَا هُمْ عَنْهَا بِغَآئِبِينَ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا يَوْمُ ٱلدِّينِ ﴾ اونه دي دوي له دغه دوزخ څخه پټيدونکي غائبان ، څه شي پوه کړی يې ته څه ده ورځ دجزاء انصاف؟ دادغي ورځي دتعظيم اوهول لپاره ويل شوي چې داڅومره سخته اوشديده ورځ ده؟ ﴿ ثُمَّ مَآ أَدْرَىٰكَ مَا يَوْمُ ٱلدِّينِ ﴾ بياڅه شي پوه کړی يې ته څه ده ورځ دانصاف جزاء؟(دغه تکرار يې ددې لپاره راغلی چې دنوموړي ورځي تعظيم وښيي اودهغې له سختيوڅرګندونه وکړي لکه چې بل ځای الله تعالی فرمايي ﴿ ٱلْحَآقَّةُ مَا ٱلْحَآقَّةُ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا ٱلْحَآقَّةُ ﴾ معناداچې دغه دجزاء ورځ داسي ستره ده چې له سختي اوهيبت څخه يې له الله جل جلاله پرته هيڅوک هم خبرنه دی اوداتراندازه اوبيان لوړه ده داهغه ورځ ده چې: ) ﴿ يَوْمَ لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْـًٔا ﴾ هغه ورځ

[1]) القرطبي ۱۹/ ۲۴۵

چي نه به وي مالک نشي کولای هیڅوک له هیچاسره هیڅ شی (دنفعي اوضررچي يې ورته ورسوي اویایې ترې دفع کړي) ﴿ وَٱلۡأَمۡرُ يَوۡمَئِذٖ لِّلَّهِ ﴾ او امر حکم په هغې ورځ کي خالص الله لره دی (هیڅوک له ده سره پکي ګډون نلري).

بلاغت: پدې سورت کي دبدیع اوبیان ډېري ښکلاوي شته چي په لاندي ډول يې لنډيزليکو:

۱ - دطباق صنعت چي په ﴿ قَدَّمَتۡ ﴾ او ﴿ وَأَخَّرَتۡ ﴾ کلماتو کي راغلی دی.

۲ - دمقابلې صنعت چي پدې کلام کي چي ﴿ إِنَّ ٱلۡأَبۡرَارَ لَفِي نَعِيمٖ وَإِنَّ ٱلۡفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٖ ﴾ کي دابرارواو فجاروترمينځ اوهمداسي دنعيم په مقابله کي دجحيم راتلل دمقابلې صنعت دی.

۳ - مکنيه استعاره دالله جل جلاله پدې کلام کي چي فرمايي ﴿ وَإِذَا ٱلۡكَوَاكِبُ ٱنتَثَرَتۡ ﴾ دلته يې ستوري له هغو ملغلروسره مشابه کړي چي تاريي وشلېږي اوخواره واره تيت شي مشبه به يې څرګنده نکړه اودهغې له لوازموڅخه يې يوازي يولازم راوړ کوم چي تيت کېدل دي نودې ته مکنيه استعاره ويلای شو.

۴ - استفهام دتوبيخ لپاره لکه داچي ﴿ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ ٱلۡكَرِيمِ ﴾ راغلی دی.....

۵ - تنکيرچي دتعظيم اوتهويل لپاره وي چي پدې کلماتو کي چي ﴿ نَعِيمٖ.....جَحِيمٖ ﴾ دي شته

۶ - داطناب صنعت کله چي يوه جمله په تکراري توګه راوړل شي لکه داچي ﴿ وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا يَوۡمُ ٱلدِّينِ ثُمَّ مَآ أَدۡرَىٰكَ مَا يَوۡمُ ٱلدِّينِ ﴾ چي پدې کي هم دقيامت دورځي عظمت، سترتوب او وېرونکي حالت ته اشاره ده لکه چي دغه ورځ له خيال اووصف څخه بهروي.

۷ - مرصع سجع لکه چي فرمايي ﴿ إِذَا ٱلسَّمَآءُ ٱنفَطَرَتۡ وَإِذَا ٱلۡكَوَاكِبُ ٱنتَثَرَتۡ ﴾ اوبيا ﴿ وَإِنَّ عَلَيۡكُمۡ لَحَٰفِظِينَ كِرَامٗا كَٰتِبِينَ ﴾ اوهمداسي په ﴿ إِنَّ ٱلۡأَبۡرَارَ لَفِي نَعِيمٖ وَإِنَّ ٱلۡفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٖ ﴾ کي چي ليدل کېږي

لطيفه:

وايي چي سليمان بن عبدالملک يوه ورځ ابوحازم مزني ته وويل چي: کاشکي خبروای چي موږبه دقيامت په ورځ چېري يو؟ نوابوحازم ورته وويل: چي خپل عمل ته دي دقرآنکريم په هينداره کي وګوره نوهله به خپل ځای درته معلوم شي خليفه ورته وويل: چي چېري به يې پيدا کړم؟ چي ويې ګورم ابوحازم ورته وويل: دالله په دې ويناکي چي فرمايي ﴿ إِنَّ ٱلۡأَبۡرَارَ لَفِي نَعِيمٖ وَإِنَّ ٱلۡفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٖ ﴾ سليمان بن عبدالملک ورته وويل: چي نودالله جل جلاله رحمت چېرته شو؟ ابوحازم ورته وويل: ﴿ إِنَّ رَحۡمَتَ ٱللَّهِ قَرِيبٞ مِّنَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴾.

دالله جل جلاله په مرسته دانفطارسورت دتفسيرژباړه بشپړه شوه.

## د مطففين سورت مكي او شپږ دېرش آيتونه لري.

دسورت په وړاندي:

دغه مبارک سورت مكي دى او هغه موخي او اهداف چي مكي سورتونه يې څېړي په ده كي هم راځي په ځانګړي توګه دعقيدې په هكله ددعوت او داسلامي بلني چارې ښيي كوم چي دسرسخته دښمنانو سره مقابله او مخامخ توب راځي.

دسورت پيل دهغو كسانو سره دجنګ اعلان دى چي په پيمانه او تول كي لږ وركوي او زيات غواړي ، دغه كسان له آخرت څخه نه وېرېږي او نه دهغه لپاره څه حساب په نظركي ساتي چي دوى به هلته احكم الحاكمين ته ورېږي فرمايي: ﴿ وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ ٱلَّذِينَ إِذَا ٱكْتَالُوا۟ عَلَى ٱلنَّاسِ يَسْتَوْفُونَ وَإِذَا كَالُوهُمْ أَو وَّزَنُوهُمْ يُخْسِرُونَ أَلَا يَظُنُّ أُو۟لَٰٓئِكَ أَنَّهُم مَّبْعُوثُونَ لِيَوْمٍ عَظِيمٍ يَوْمَ يَقُومُ ٱلنَّاسُ لِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾.

بيا وروسته دبدمرغه او شقيانو خلګو دجزاء خبرور كوي كله چي جحيم ته كشول كېږي نو ارشاد كوي چي ﴿ كَلَّآ إِنَّ كِتَٰبَ ٱلْفُجَّارِ لَفِى سِجِّينٍ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا سِجِّينٌ كِتَٰبٌ مَّرْقُومٌ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴾ دآيتونو تر پايه.

له دې وروسته دنيكانو او پرهېزګارانو پانه راارږي هغوى چي په ابدي نعمتونو به په جنت كي چي دعزت او كرامت ځاى دى ونازول شي او دانازاواعزاز دبدمرغه اشرارو په مقابله كي لكه چي د قرآنكريم اسلوب دى چي ترهيب او ترغيب جوخت سره راوړي راغلى دى فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ لَفِى نَعِيمٍ عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ يَنظُرُونَ تَعْرِفُ فِى وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ ٱلنَّعِيمِ يُسْقَوْنَ مِن رَّحِيقٍ مَّخْتُومٍ خِتَٰمُهُۥ مِسْكٌ وَفِى ذَٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ ٱلْمُتَنَٰفِسُونَ ﴾.

په پاى كي سورت دګمراهانو بدبختانو هغه دريزونه بيانوي كوم چي د الله جل الله جل جلاله دغوره بندګانو په وړاندي يې خپلوي هغوى چي په دنياكي په مؤمنانو پسي خاندي دهغوى په ايمان او پرهېزګاري استهزاء ګاني كوي او ملنډي وهي الله جل جلاله فرمايي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ أَجْرَمُوا۟ كَانُوا۟ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ يَضْحَكُونَ وَإِذَا مَرُّوا۟ بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ ﴾ دآيتونو تر پايه پوري.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ ﴿١﴾ ٱلَّذِينَ إِذَا ٱكْتَالُوا۟ عَلَى ٱلنَّاسِ يَسْتَوْفُونَ ﴿٢﴾ وَإِذَا كَالُوهُمْ أَو وَّزَنُوهُمْ يُخْسِرُونَ ﴿٣﴾ أَلَا يَظُنُّ
أُو۟لَٰٓئِكَ أَنَّهُم مَّبْعُوثُونَ ﴿٤﴾ لِيَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿٥﴾ يَوْمَ يَقُومُ ٱلنَّاسُ لِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٦﴾ كَلَّآ إِنَّ كِتَٰبَ ٱلْفُجَّارِ لَفِى سِجِّينٍ ﴿٧﴾ وَمَآ أَدْرَىٰكَ
مَا سِجِّينٌ ﴿٨﴾ كِتَٰبٌ مَّرْقُومٌ ﴿٩﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿١٠﴾ ٱلَّذِينَ يُكَذِّبُونَ بِيَوْمِ ٱلدِّينِ ﴿١١﴾ وَمَا يُكَذِّبُ بِهِۦٓ إِلَّا كُلُّ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ﴿١٢﴾ إِذَا
تُتْلَىٰ عَلَيْهِ ءَايَٰتُنَا قَالَ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿١٣﴾ كَلَّا ۖ بَلْ ۜ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴿١٤﴾ كَلَّآ إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ ﴿١٥﴾
ثُمَّ إِنَّهُمْ لَصَالُوا۟ ٱلْجَحِيمِ ﴿١٦﴾ ثُمَّ يُقَالُ هَٰذَا ٱلَّذِى كُنتُم بِهِۦ تُكَذِّبُونَ ﴿١٧﴾ كَلَّآ إِنَّ كِتَٰبَ ٱلْأَبْرَارِ لَفِى عِلِّيِّينَ ﴿١٨﴾ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا عِلِّيُّونَ
﴿١٩﴾ كِتَٰبٌ مَّرْقُومٌ ﴿٢٠﴾ يَشْهَدُهُ ٱلْمُقَرَّبُونَ ﴿٢١﴾ إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ لَفِى نَعِيمٍ ﴿٢٢﴾ عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ يَنظُرُونَ ﴿٢٣﴾ تَعْرِفُ فِى وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ
ٱلنَّعِيمِ ﴿٢٤﴾ يُسْقَوْنَ مِن رَّحِيقٍ مَّخْتُومٍ ﴿٢٥﴾ خِتَٰمُهُۥ مِسْكٌ ۚ وَفِى ذَٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ ٱلْمُتَنَٰفِسُونَ ﴿٢٦﴾ وَمِزَاجُهُۥ مِن تَسْنِيمٍ

﴿عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُونَ (۲۸) إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنَ الَّذِينَ ءَامَنُوا يَضْحَكُونَ (۲۹) وَإِذَا مَرُّوا بِهِمْ
يَتَغَامَزُونَ (۳۰) وَإِذَا انقَلَبُوا إِلَىٰ أَهْلِهِمُ انقَلَبُوا فَكِهِينَ (۳۱) وَإِذَا رَأَوْهُمْ قَالُوا إِنَّ هَٰؤُلَاءِ لَضَالُّونَ (۳۲) وَمَا أُرْسِلُوا عَلَيْهِمْ
حَافِظِينَ (۳۳) فَالْيَوْمَ الَّذِينَ ءَامَنُوا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُونَ (۳۴) عَلَى الْأَرَائِكِ يَنظُرُونَ (۳۵) هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ
(۳٦)﴾ المطففين: ۱ - ۳٦

لغتونه:

(المطففين) دمطفف جمع اوهغه چاته وايې چې پېمانه اوتول کموي تطفيف نقصان ته ويل کېږي ځکه چې له طفيف څخه اخيستل شوی اوهغه ناچېزشي ته وايې اومطفف هم اروموپه تول او پېمانه کې غلاکوي(ران) يعني پټ کړی يې دی لکه چې زنګ په توره باندې ولوېږي اوهغه پټه کړي (ران)په اصل کې غلبې ته وايې لکه چې وايې شرابويې په عقل باندې غلبه کړي ده يعني عقل يې مغلوب کړی(اوڅه تميزنشي کولای)شاعروايې:(وکم ران من ذنب على قلب فاجر[۱])اوڅومره ډېرد فاجرپه زړه باندې دګناهونو زنګ پرېوتې دي (رحيق) صفااوډېرښه شراب، په صحاح کې ليکي (رحيق) دشرابوغوره اوصفاډول دي، أخفش وايې (رحيق) هغه شراب دي چې ملاوټ پکې نه وي، نبوي شاعرحضرت حسان رضی الله عنه وايې : (بردى يصفق بالرحيق السلسل) ([۲])يعني غوره خرماله خالصوشاتوسره ګډېږي(فکهين)په استهزآء خونداخيستونکي اوپه مسلمانانوپسې خبري جوړونکي (يتغامزون) دملنډوپه ډول دسترګوپه کونجانواشارې کونکي (ثُوّب) جزاورکول شوه (تسنيم) لوړه چينه چې شراب يې ترېتولوښه وي، تسنيم په اصل کې له لوړتياڅخه اخيستل شوی لکه داوښ کومې ته (سنام) وايې.

دنزول سبب:

ابن عباس رضی الله عنهماوايې: کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مديني منورې ته راغی نودمديني منورې خلګ ترټولو خلګوپه تول اوپېمانه کې زيات درغلي کونکي وو، بياالله جل جلاله دغه سورت نازل کړاوله دې نه وروسته بياهغوی ښه لاره ومونده اوپه تول پېمانه کې به يې لږوالی نه کاوو([۳]).

تفسير:

﴿وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ﴾ هلاکت خرابي ياکنده ددوزخ ده کم کونکو(فاجرانو ) ته (په پېمانه اوتول کې وروسته يې صفت داسي بيانوي چې ﴿الَّذِينَ إِذَا اكْتَالُوا عَلَى النَّاسِ يَسْتَوْفُونَ﴾ هغه کسان چې هرکله چې ځان ته

---

([۱]) البحر المحيط ۸/ ۴۳۸
([۲]) القرطبي ۱۹/ ۲۶۳
([۳])دابن کثيرمختصر ۳/ ٦۱۳

اخلي پېمانه نو پوره بشپړه يې اخلي ﴿ وَإِذَا كَالُوهُمْ أَو وَّزَنُوهُمْ يُخْسِرُونَ ﴾ او کله چې پېمانه ورکوي ياېې تلي هغوی ته نو کمی کوي (پوره بشپړه يې نه ورکوي) مفسرين کرام ليکي چې: دا آيتونه ديوه سړي په هکله چې (ابوجهينه) نو مېده نازل شوی دی هغه به دوې پېمانې درلودې په يوه پېمانه به يې اخيستل او هغوی ته به يې په بله پېمانه ورکول، دا آيت دهرهغه چالپاره وعيد دی څوک چې په پېمانه او تول کې کمی کوي الله تعالی دحضرت شعيب عليه السلام قوم هم پدې ګناه هلاک کړی دی او په حديث شريف کې راغلي (ولاطففوا الکيل الامنعوا النبات وأخذوا بالسنين) يعني هغوی چې په تول او پېمانه کې درغلي پيل کړ دځمکې وابنه ترې منع شول او په کاختي اخته شول(۱) ﴿ أَلَا يَظُنُّ أُولَٰٓئِكَ أَنَّهُم مَّبْعُوثُونَ لِيَوْمٍ عَظِيمٍ ﴾ آيا يقين نه کوي (دغه مطففين) چې بېشکه دوی به راپورته کړی شي دپاره د(حساب) ديوې ورځې سترې (چې قيامت دی؟) ﴿ يَوْمَ يَقُومُ ٱلنَّاسُ لِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ هغه ورځ چې وبه درېږي خلک (ايېلي لوڅ لغړ و بربنډ ونکي او عاجز) لپاره درب دټولو مخلوقاتو. په البحر کې ليکي چې پدې انکار او تعجب کې چې ورځ يې په لوی والي وستايله او درب العالمين په وړاندې دخلکو په عاجزۍ درېدل يې وښودل داپدې دليل دی چې تطفيف خورا لويه ګناه ده (۲) په يو حديث شريف کې له عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه روايت شوی چې رسول الله وفرمايل ﴿ يَوْمَ يَقُومُ ٱلنَّاسُ لِرَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴾ دا هغه ورځ ده چې پدې ورځ کې به يو څوک پخپلو خولو کې د غوږونو ترنيمايي پورې ډوب وي (۳) له دې نه وروسته الله تعالی دفجارو اوابرارو داوسېدلو په هکله فرمايي: ﴿ كَلَّآ إِنَّ كِتَٰبَ ٱلْفُجَّارِ لَفِى سِجِّينٍ ﴾ (داسې په کار نه دی) بېشکه ليکلی شوي دي اعمال دفاجرانو (کافرانو) خامخا په سجين کې) يعني مطففين بايد له خپل دغه ناولي عمل څخه لاس واخلي او له خپل غفلت او بې خبرۍ څخه دې وويرېږي کوم چې دقيامت دراتلو او بيرته پاڅېدلو په باب يې لري ځکه دبد مرغه کفارو او فجارو خلکو اعمال په تنګ او زښته ښکته پوړ کې ليکل شوي دي ﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا سِجِّينٌ ﴾ او څه شي پوه کړې ته (ای محمده !) چې څه دی سجين ؟ استفهام لپاره دتعظيم او هيبت افاده کولو راغلی يعني ته پوهېږې چې سجين څه دی؟ ﴿ كِتَٰبٌ مَّرْقُومٌ ﴾ يو دفتر دی ليکلی شوی (دفجارو داعمالو لکه چې په جامه کې رقم وي چې نه هېرېږي او نه ورکېږي ددوی اعمال به هم داسې خوندي وي. ابن کثير ليکي (سجين) له سجن څخه اخيستل شوی او هغه تنګۍ ته وايي او څرنګه چې دفجارو دهستوګنې ځای دوزخ دی او هغه زښته ژور دی ځکه نو پکې تنګسيا او ژور والی دواړه شته الله دوی ته خبرورکړ چې کتاب داعمالو يې بشپړ ليکلی شوی نور نه څوک پکې څه زياتولای شي او نه يې هم کمولای شي (۴) ﴿ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴾ افسوس هلاک او خرابي ياکنده ددوزخ ده پدغې ورځې کې دروغ

(۱) دغه ديو حديث شريف څه برخه ده چې حاکم او طبراني له ابن عباس رضی الله عنه څخه مرفوع نقل کړی دی الوسي ۳۰/ ۷۱

(۲) البحر المحيط ۸/ ۴۴۰

(۳) مسلم او بخاري رحمهما الله روايت کړی دی همدا راز روايت هم مالک رحمه الله کړی دی.

(۴) مختصر ابن کثير ۳/ ۶۱۴

دروغ ویونکوته ﴿ الَّذِينَ يُكَذِّبُونَ بِيَوْمِ الدِّينِ ﴾ هغه کسان چي دروغ وايي په ورځي دجزاء باندي ﴿ وَمَا يُكَذِّبُ بِهِ إِلَّا كُلُّ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ﴾ او دروغ نه ګڼي دغه ورځ دحساب اوجزاء مګرهر يوله اندازې تېرېدونکی ګنهګارهغه چي په کفرګمراهي اوعصيان کي لوړحدته ختلی وي،اوبيادغه ګنهګارپېژندګلوی داسي کوي ﴿ إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴾ کله چي ولوستلی شي په ده باندي آيتونه(دقرآن)زموږنووايي(عناداً چي)داچتي کيسې دي دپخوانيو(چي هغوی پخپلوکتابونوکي ليکلي دي)﴿ كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴾ نه ده داسي(لکه چي منکران وايي)بلکه زنګ اچولی دی پر زړونو ددوی هغوګناهونوچي دوی به کول ددوی زړونه يې رانده کړي څکه نوسمه اوکړه لاره بېلولای نشي(¹) مفسرين کرام وايي: يوه ګناه په بله باندي ترسره کول ترڅوچي زړه يې تک تورکړي دغه ته(ران) وايي ﴿ كَلَّا إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ ﴾ (رښتياده چي بېشکه دوی به له(لقاء د) رب خپل څخه په دغي ورځي (دقيامت کي) هرومرو په حجاب کي وي)يعني دغه دي له خپلي ګمراهي اوسرغړوني څخه ووېرېږي څکه چي دوی به دقيامت په ورځ درب العالمين له لقاء څخه په حجاب کي وي اونه به يېويني امام شافعي رحمه الله وايي چي: دغه آيت مؤمنانوته دالله دليدلودليل دی اوامام مالک رحمه الله وايي: څرنګه چي الله خپل دښمنان له ديدارڅخه محروم کړل نودمؤمنانواولياوو دوستانو په وړاندي به متجلی شي اوپه لقاء اوليدلوبه يې مشرف کړي ﴿ ثُمَّ إِنَّهُمْ لَصَالُوا الْجَحِيمِ ﴾ (پس بېشکه دوی چي دي خامخاننوتونکي دي دوزخ ته) يعني دوی به له دغه حرمان څخه وروسته دوزخ ته ننوتونکي وي ﴿ ثُمَّ يُقَالُ هَٰذَا الَّذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ ﴾ بيابه وويل شي (دوی ته له لوري ددوزخ څارونکو پرښتونه چي) دا هغه(عذاب) دی چي وی تاسي چي هغه به مودروغ ګڼه اوترې انکاربه مو کاوو؟ دا به دتوبيخ اوترټني په توګه وي ﴿ أَفَسِحْرٌ هَٰذَا أَمْ أَنتُمْ لَا تُبْصِرُونَ ﴾ وروسته له دې چي الله تعالی د فجاروبدکردارو حال بيان کړوپسې دنيکانودنعمتونوپه هکله داسي فرمايي ﴿ كَلَّا إِنَّ كِتَابَ الْأَبْرَارِ لَفِي عِلِّيِّينَ ﴾ (بېشکه کتاب ليکلي اعمال دابرارو نيکانوخامخاپه عليين کي دي) کلادزجر لپاره ده يعني خبره داسي نه ده لکه چي بدکاران فکرکوي چي دفجارواوابراروبه په قيامت کي يوحال وي بلکه ددوی کتاب په سجين اودابرارو په عليين کي دی ، عليين دجنت په سرکي لوړځای ته وايي په التسهيل کي ليکي چي د(عليين) لفظ دمبالغې لپاره دی اوله علو څخه اخيستل شوی اودابه په جنت کي دمرتبودلوړتياسبب وي اويادا پخپله لوړاوچت ځای دی اوداسي روايت شوي چي داله عرش نه لاندي دی(²) ﴿ وَمَا أَدْرَاكَ مَا عِلِّيُّونَ ۞ كِتَابٌ مَّرْقُومٌ ﴾ اوڅه شي پوه کړې ته (ای محمده!) چي عليين څه دی؟ يودفتردی ليکلی شوی (دابرارودعملونو)

---

(¹) دترمذي شريف حديث دی کله چي بنده ګناه وکړي يوتورټکی يې په زړه باندي پيداشي که توبه اواستغفاريې وکړنودا ټکی ليري کېږي اوکه توبه ونکړي نوري ګناوي کوي په همغه اندازه داټکی پسي پلنېږي ترڅوچي په زړه يې وخېژي اودا هغه (ران) دی چي الله تعالی فرمايلی دی(کلابل ران علی قلوبهم).

(²) التسهيل لعلوم التنزيل ۴/ ۱۸۵

اوهغه په عليين كي دى چي هغه په جنت كي ترگردولوړو درجاتو ته وايي ﴿ يَشْهَدُهُ ٱلْمُقَرَّبُونَ ﴾ چي گوري حاضريږي هغه ته مقربين (دالله پرښتي اونور بندگان) مفسرين كرام ليكي كله چي دمؤمن روح واخيستل شي آسمانونوته يې اوچتوي اوهغې ته د آسمانونو دروازې پرانستل كېږي اوملائكي يې په خوشحالي اوزېري سره استقبال كوي اوبياورسره ملگري راوزي ترڅوعرش ته ورسېږي اوبياورته نرى څرمن (رق) ورته راوايستل شي اوپه هغه كي وليكل شي مهرورياندي ولگېږي چي داله حساب اوعذاب څخه وژغورل شوه اومقربين يې گوري (¹) ﴿ إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ ﴾ بېشكه ابرارنيكان خامخاپه لوى نعمت (دجنت) كي دي (هلته چي وني يې ويرسيورى لري دوى به خوندونه ترې اخلي ﴿ عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ يَنظُرُونَ ﴾ پر(مكللو) تختونوباندي به ناست گوري (دالله لقاء اودجنت نعماء به ور رسيږى). ﴿ تَعْرِفُ فِي وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ ٱلنَّعِيمِ ﴾ (پېژني به ته (اى كتونكيه!) په مخونودوى كي تازه گي(دنعيم) يعني كله چي يې ويني نوبه يې پېژنې چي داكسان په نعمتونوكي ډوب دي ځكه ددوى په مخونوكي به نور، ښكلا، سپين والى موجودوي اوخوښي به له ورايه ورباندي خپره وي ﴿ يُسْقَوْنَ مِن رَّحِيقٍ مَّخْتُومٍ ﴾ اوبه كېږي به دوى له هغوخالص شرابو څخه چي مهركړى شوي به وي (اومهربه يې نه خلاصوي مگرابرارنيكان، داشراب به صاف پاك اوسپين وي لاسونه به ورسره نه وي لگېدلي ﴿ خِتَٰمُهُۥ مِسْكٌ ﴾ (چي مهربه يې مشك وي) يعني دشرابو له پاى څخه به د مشكوو.مه پورته كېږي ﴿ وَفِي ذَٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ ٱلْمُتَنَٰفِسُونَ ﴾ اوپه دغه (شرابواونوروجنتي نعمتونو) باندي پس بايده دي چي رغبت وكړي رغبت كونكي (په طاعت اوعبادت دالله كي اوسيالي كونكي بايدسيالي ترسره كړي. طبري ليكي: تنافس له نفيس څيزڅخه اخيستل شوى هغه چي خلگ يې په لاس ته راوړلوكي حريصان وي او زړونه يې غواړي معناداچي خلگ بايددغونعمتونوپه ترلاسه كولوكي يوتربله سره وړاندي والى وكړي(²) ﴿ وَمِزَاجُهُۥ مِن تَسْنِيمٍ ﴾ (اوگډون دغه (شراب دي له اوبود) تسنيم څخه) يعني گډېږي دغه شراب له اوبود تسنيم سره هغه چي ترټولوښه څښاك دجنتيانودى اولوړه اوچته چينه ده ځكه وروسته فرمايي: ﴿ عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا ٱلْمُقَرَّبُونَ ﴾ دا(تسنيم) يوه چينه ده (په جنت كي) چي څښي به له هغې څخه د(الله) مقربان (بندگان) يوازي او نوروجنتيانوته به ورگډول كېږي په التسهيل كي ليكي چي تسنيم دهغي چينې نوم دى كومه چي په جنت كي ده اويوازي مقربين ورڅخه څښاك كوى اوله رحيق سره به گډېږي چي ابرار به يې څښي داخبره پدې كوي چي دمقربينومرتبه ترابرارولوړه ده. (³) كله چي الله د نيكانوخلگونعمتونه بيان كړل وريسې يې دفجاروبدكرداروروستى برخه ليك وښود ددې لپاره چي دمسلمانانوډاډينه وشي

(¹) قرطبي له كعب الاحبارڅخه روايت كړى دى.
(²) طبري تفسير ۳۰/۶۸
(³) التسهيل لعلوم التنزيل ۴/۱۸۵

او پر هغوی بې زړه یخ شي فرمايي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ أَجْرَمُوا۟ كَانُوا۟ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ يَضْحَكُونَ ﴾ (بېشکه هغه کسان چي کافران شوي دي وودوی په هغو کسانو باندي چي ایمان یې راوړی وو خندل به یې (مسخري به یې پرې کولې) یعني دامجرمین چي جرم او خیانت یې په خټه کي اغښل شوی دی دوی به په دنیاکي په مسلمانانو پسې خندل او ملنډې به یې پرې وهلې. په التسهیل کي لیکي چي داآیت دقریشو دمشرانو په هکله نازل شوی دی لکه ابوجهل اونورچي کله یوه ورځ علی بن أبی الطالب اویوه ډله مسلمانان ورباندي تېرېدل دغو کفارو ورباندي وخندل او سپکاوی یې وکړ (١) ﴿ وَإِذَا مَرُّوا۟ بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ ﴾ او کله چي تېرېږي منکران پر مؤمنانو باندي هغوی ته پخپلو منځونو کي سره سترګکونه وهي (اوپرمؤمنانو ریشخندوهي) مفسرین کرام لیکي چي کله به درسول الله صلی الله علیه وسلم اصحابان دمشرکانو له وړاندي تېرېدل نومشرکانو به په سترګکونو وهلو سره هغوی ته اشارې کولې اودهغوی دسپکاوي اوتحقیرلپاره به یې ویل: دادی ددنیاپاچهان راغلل(٢) پردوی به یې ددوی دایمان راوړلو او په هغه دعمل کولو له امله ملنډې وهلې ﴿ وَإِذَا ٱنقَلَبُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَهْلِهِمُ ٱنقَلَبُوا۟ فَكِهِينَ ﴾ او کله چي وګرزي خپلو کورونو ته (نو) ګرزي دوی خوشحاله(خبري جوړونکي په مؤمنانو پسې له ملنډوکي اوددوی په سپکاوي خوندي اخلي.په البحرکي لیکي معناداچي دوی دمسلمانانو په یادولو پر هغوی باندي دخندلو او په مؤمنانو باندي په ملنډووهلو خونداخلي (٣) ﴿ وَإِذَا رَأَوْهُمْ قَالُوٓا۟ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَضَآلُّونَ ﴾ او کله چي به ولیدل (کفارو) دغه (مؤمنان) نوویل به یې پخپل مینځ کي چي بېشکه دغه (مؤمنان)خامخابې لاري دي (ځکه دوی پرمحمدصلی الله علیه وسلم ایمان راوړي اوددنیا خوندونه اوشهوتونه یې پرې ایښي دي الله پاک ددوی په ردکي فرمايي ﴿ وَمَآ أُرْسِلُوا۟ عَلَيْهِمْ حَٰفِظِينَ ﴾ حال داچي نه دي لېږلي شوي (کافران) پردغو(مؤمنانو) باندي ساتونکي څارونکي(چي ددوی عملونه و څاري اودسمي اویاچپې لاري شاهدي پرې ووايي اوپدې ویناکي په کفاروباندي تهکم اواستهزاء ده چي مادوی پرمسلمانانو څارونکي ندي ګمارلي اونه مي دمؤمنانودا عمالود ساتني لپاره وکیلان ټاکلي ترڅو هغوی سمي لاري ته راوګرزوي نودوی ولي داسي کارته بدې راغړلي چي دهغه دنده دوی ته نه دي سپارل شوي ؟ ﴿ فَٱلْيَوْمَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنَ ٱلْكُفَّارِ يَضْحَكُونَ ﴾ نونن ورځ (د قیامت کي به)هغه کسان چي ایمان یې راوړی دی) په کفارو باندي خاندي (لکه چي کافرانو په دنیاکي پردوی باندي خندل او دغه موافقه جزاء ده ﴿ عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ يَنظُرُونَ ﴾ پرمکللو تختونو باندي (چي دملغلرو او یاقوتو به جوړوي) ناست ګوري (دالله لقاء اودجنت نعماوو ته (اویا ګوري کفاروته او وریاندي خاندي. قرطبي لیکي چي: کله دوزخیان په اورکي وي ورته به وویل شي چي راووزئ او کله چي دوزخیان دروازې پرانستي ووینې نوبهرته دراوتلو هڅه به وکړي اومسلمانان به په مکللو تختونو ناست هغوی ته ګوري خو کله چي کفار دروازوته

---

(١) التسهیل ١٨٢/٤

(٢) التسهیل ١٨٢/٤

(٣) البحر المحیط ٨/٤٤٣

راورسېږي هغه دروازې به بې په مخ وتړل شي او مسلمانان به ورباندي خاندي (١) ﴿ هَلْ ثُوِّبَ ٱلْكُفَّارُ مَا كَانُوا۟ يَفْعَلُونَ ﴾ (بېشكه چي جزاء ورکړه شوه کفاروته همغسي چي کول بې (په دنیاکي له ګناهونو څخه) یعني آیاجزاء ورکړه شوه کافرانوته همغسي چي لکه دوی په دنیاکي په مؤمنانو ملنډې وهلې؟ هوبېشکه چي جزاء ورکول شوه.

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي دبلاغت کومي ښکلاوي شته لنډیزېي په لاندي ډول دی

١ - تنکیر دهیبت اوسترتوب لپاره لکه ﴿ وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ ﴾.

٢ - دطباق صنعت چي د ﴿ يَسْتَوْفُونَ ﴾ اود ﴿ يُخْسِرُونَ ﴾ په کلماتو کي راغلی دی.

٣ دمقابلې صنعت چي دفجاروا وابرارو ترمینځ پدې کلام کي راغلی چي ﴿ كَلَّآ إِنَّ كِتَـٰبَ ٱلْفُجَّارِ لَفِى سِجِّينٍ ﴾او ﴿ كَلَّآ إِنَّ كِتَـٰبَ ٱلْأَبْرَارِ لَفِى عِلِّيِّينَ ﴾ ترپایه پوري

٤ - دمراتبو تعظیم اوسترتوب چي الله نیکانو ته ورکړی لکه داچي ﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا عِلِّيُّونَ ﴾.

٥ - اشتقاقي جناس لکه پدې کلام کي چي فرمایي ﴿ فَلْيَتَنَافَسِ ٱلْمُتَنَـٰفِسُونَ ﴾.

٦ - اطناب چي دمتقیانو دنعمتونو داوصافو یه یادونه کي راغلي چي ﴿ إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ لَفِى نَعِيمٍ عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ يَنظُرُونَ تَعْرِفُ فِى وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ ٱلنَّعِيمِ ﴾.

٧ - بلیغه تشبیه لکه چي فرمایي ﴿ خِتَـٰمُهُۥ مِسْكٌ ﴾ یعني لکه مشک غوندي وږمه اوخوشبویې لري خودلته دتشبیه ادات اووجه دشبه حذف شوي نو ورته بلیغه تشبیه ویل کېږي

٨ - دفواصلو موافقت کوم چي دآیتونو په پیل کي راځي لکه ﴿ كَانُوا۟ يَضْحَكُونَ ، يَنظُرُونَ ، يَكْسِبُونَ ، يَفْعَلُونَ ﴾اونور چي مرصع سجع بلل کېږي.

دالله جل جلاله په مرسته دمطففین سورت تفسیر بشپړ شو.

***

(١) قرطبي تفسیر ١٩/٢٦٨

# دانشقاق سورت مكي او پنځه ويشت آيتونه لري.

دسورت په وړاندي:

دانشقاق سورت مكي دى او دنورومكي سورتونو په شان دقيامت دورځي كړاوونه بيانوي او په دې ترڅ كي داسلامي عقيدې بنسټونه ټينګوي.

دسورت پيل دقيامت دورځي په ځينوننداروكېږي اوهغه اوښتون ښيي كوم چي پدې ورځ په كائناتوكي پېښېږي فرمايي﴿ إِذَا ٱلسَّمَآءُ ٱنشَقَّتْ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ وَإِذَا ٱلْأَرْضُ مُدَّتْ وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ﴾.

وروسته دانسان له هغوزيارونواوتكليفونوڅخه پرده پورته كوي كوم چي درزق روزي په لاس ته راوړلوكي يې كاږي ترڅودآخرت لپاره هغه څه چي خوښه يې شي له نيكي اوبدي څخه واستوي چي بياهلته عادلانه جزاء وركول كېږي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلْإِنسَـٰنُ إِنَّكَ كَادِحٌ إِلَىٰ رَبِّكَ كَدْحًا فَمُلَـٰقِيهِ فَأَمَّا مَنْ أُوتِىَ كِتَـٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا ﴾دآيتونوترپايه پوري

وروسته دقرآنكريم په هكله دمنافقينودريزښيي اولوړه اخلي چي دوى به سختي اوكړاوونه ويني پدغه ورځ كي به له ډېرو ډېروننكوحالاتوسره لاس اوګرېوان شي داهسي ورځ ده چي پكي سړي ته مال اولادګټه نشي رسولاى ﴿ فَلَآ أُقْسِمُ بِٱلشَّفَقِ وَٱلَّيْلِ وَمَا وَسَقَ وَٱلْقَمَرِ إِذَا ٱتَّسَقَ لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٍ ﴾ دآيتونوترپايه.

وروسته آيتونه مشركانوته توبيخ وركوي چي ولي په الله جل جلاله باندي ايمان نه راوړي سره له دې چي روښانه دلائل اوڅرګندبراهين شته؟ اوبيا په جحيم كي د دردناك عذاب زېرى وركوي فرمايي:

﴿ فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٢٠﴾ وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ ٱلْقُرْءَانُ لَا يَسْجُدُونَ ۩ ﴿٢١﴾ بَلِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ يُكَذِّبُونَ ﴿٢٢﴾ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُوعُونَ ﴿٢٣﴾ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢٤﴾ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴾.

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ إِذَا ٱلسَّمَآءُ ٱنشَقَّتْ ﴿١﴾ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ﴿٢﴾ وَإِذَا ٱلْأَرْضُ مُدَّتْ ﴿٣﴾ وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ ﴿٤﴾ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا
وَحُقَّتْ ﴿٥﴾ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلْإِنسَـٰنُ إِنَّكَ كَادِحٌ إِلَىٰ رَبِّكَ كَدْحًا فَمُلَـٰقِيهِ ﴿٦﴾ فَأَمَّا مَنْ أُوتِىَ كِتَـٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ ﴿٧﴾ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ
حِسَابًا يَسِيرًا ﴿٨﴾ وَيَنقَلِبُ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ مَسْرُورًا ﴿٩﴾ وَأَمَّا مَنْ أُوتِىَ كِتَـٰبَهُۥ وَرَآءَ ظَهْرِهِۦ ﴿١٠﴾ فَسَوْفَ يَدْعُوا۟ ثُبُورًا ﴿١١﴾ وَيَصْلَىٰ سَعِيرًا
﴿١٢﴾ إِنَّهُۥ كَانَ فِىٓ أَهْلِهِۦ مَسْرُورًا ﴿١٣﴾ إِنَّهُۥ ظَنَّ أَن لَّن يَحُورَ ﴿١٤﴾ بَلَىٰٓ إِنَّ رَبَّهُۥ كَانَ بِهِۦ بَصِيرًا ﴿١٥﴾ فَلَآ أُقْسِمُ بِٱلشَّفَقِ ﴿١٦﴾ وَٱلَّيْلِ
وَمَا وَسَقَ ﴿١٧﴾ وَٱلْقَمَرِ إِذَا ٱتَّسَقَ ﴿١٨﴾ لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٍ ﴿١٩﴾ فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٢٠﴾ وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ ٱلْقُرْءَانُ لَا
يَسْجُدُونَ ۩ ﴿٢١﴾ بَلِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ يُكَذِّبُونَ ﴿٢٢﴾ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُوعُونَ ﴿٢٣﴾ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢٤﴾ إِلَّا ٱلَّذِينَ
ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍۭ ﴿٢٥﴾ ﴾ الانشقاق: ١ - ٢٥

لغتونه:

(کادح) زیارایستونکی کارکونکی په پوره سعی سره (یحور) رجوع اوبیرته راگرزېدلوته وایې او دغه رنګه په حدیث شریف کې راځي (أعوذبک من الحوربعد الکور) یعني زه په تاباندې پناه غواړم له هغې رجوع څخه چې له زیادت څخه دنقصان په لوروي (الشفق) دلمرډوبېدلوورووسته هغه سوروالي ته وایې چې دآسمان په لمن کې وي (وسق) راټولېدل نغړدل (اتسق) راټولېدل دځلا بشپړېدل (ممنون) غوڅ پرې کړی شوی

تفسیر:

﴿ إِذَا ٱلسَّمَآءُ ٱنشَقَّتْ ﴾ کله چې آسمان څیري شي وچوي ، دغه آیتونه دقیامت دسختي ورځې دهغو پېښوانځور دی چې له هغې سره به یوځای راځي هغه پېښې چې فکراوخیال پکې حیرانېږي ، کوم وخت چې آسمان وچوي اوددې خبري ښکارندوی دی چې نورکائنات هم نړېدونکي دي الوسي لیکي چې دآسمان چاودېدل به دقیامت له وېرې اوهیبت څخه وي[1] ) ﴿ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ﴾ او واوري ومني حکم درب خپل او(دآسمان) لائق وړدی (دهغه الله حکم منلوته یاداچې ده لره وړدي چې وچوي دقیامت له هول څخه ﴿ وَإِذَا ٱلْأَرْضُ مُدَّتْ ﴾ اوکله چې ځمکه وغوړوله شي یعني غرونه بې هواراوګردې بناګانی بې ونړېږي او ځمکه هواره ویره شي ﴿ وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ ﴾ اودباندې وغورځوي هغه چې دننه پکې وي له مړیو او خزانوڅخه اوښه خالي شي له ټولو شیانوڅخه. قرطبي لیکي: معنادا چې مړي اوخزانې یانوري زېرمې راوباسي کوم چې ددې په ګېډه کې دي لکه بلاربه مېرمن چې ماشوم وزېږوي اودغه هم دقیامت د ورځې په هول اوهیبت ګواهي ورکوي[2] ) ﴿ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ﴾ اوواوري ومني حکم درب خپل او دا ځمکه وړ اولائق ده دهغه الله حکم منلوته د(اذا ) ځواب حذف کړی شوی دی یعني کله چې دا پورته یادې شوي پېښې ګردې واقع شي نوبه انسان له هغه څه سره مخامخ شي چې په خیال کې به یې نه راځي دغه حذف دقیامت دورځې لویوالی اوهیبت افاده کوي ورپسې الله تعالی فرمایې ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْإِنسَٰنُ إِنَّكَ كَادِحٌ إِلَىٰ رَبِّكَ كَدْحًا فَمُلَٰقِيهِ ﴾ ای انسانه بېشکه ته عمل کونکی یې په پوره سعی کوښښ سره تروخته درسېدلورب خپل ته په عمل کې سعی کولوسره نوته یوځای کېدونکی یې له دغه (خپل عمل اوسعی سره اوجزاء یې مومې که خیروي اوکه شردلته خطاب عام اوټولوانسانانوته متوجه دی معنادا چې ای انسانه ته پخپلو کړو وړو کې زیار ایستونکی یې آن تردې چې ځومرګ ته رسېږې وخت دې په چټکې تېرېږي هره شېبه ته له خپله کوتاه ژوندانه څخه یوڅه بایلې نولکه چې ته مرګ ته په تلواره وردومې اوبیابه ستاپروردګارتاته په خپلو کړو وړوجزادرکړي که دې ښه عملونه کړي ووښه جزابه ومومې اوکه دې بدکړي وو بدبه مومې په البحرکې لیکي چې (کادح ) په ټول ژوندکې په روزګارکې زیارایستونکي

[1] روح المعاني ۳۰/ ۷۸
[2] قرطبي تفسیر۱۹ /۲۲۸

ته وايي ترڅو چي الله ته پيوسته شي او دخپل نيک او بد عمل جزاء ومومي (¹) له دې نه وروسته الله جل جلاله دخلګو پښ نيکمرغه او بدمرغه ته پداسي ډول فرمايي چي نيکمرغه انسان به خپله داعمالو پاڼه په ښي لاس او بدمرغه به يې په کيڼ لاس اخلي او داسي ارشاد کوي چي ﴿ فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَـٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا ﴾ پس هغه څوک چي ورکړل شي کتاب اعمالنامه دده په ښي لاس دده کي نوژردی چي حساب به وکړه شي له ده سره حساب آسانه چي دنيکيو ثواب به يې ورکړل شي او له ګناهونو څخه به يې ورتېرشي او دغه ته عرض وايي لکه چي په صحيح حديث شريف کي راغلي ﴿ وَيَنقَلِبُ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ مَسْرُورًا ﴾ او وبه ګرزي اهل خپل ته (په جنت کي) خوشحاله کړی شوی (په هغه څه چي الله تعالی ورته له خپل فضل او کرامت څخه ښنلي دي (²) ﴿ وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَـٰبَهُۥ وَرَآءَ ظَهْرِهِۦ ﴾ او هرهغه څوک چي ورکړه شي کتاب عملنامه دده وروسته ترشاده (په کيڼ لاس کي او دغه دشقاوت او بدمرغي نښه ده) ﴿ فَسَوْفَ يَدْعُوا۟ ثُبُورًا ﴾ پس ژر به ناري کړي دی ای هلاکه! راحاضرشه دغه دي وخت دی (يعني دی به دمرګ او هلاکت آرزو کوي) ﴿ وَيَصْلَىٰ سَعِيرًا ﴾ او ننه به وزي دی بل اور (د دوزخ) ته چي وبه څکي عذاب او ګرمي دهغه ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ فِىٓ أَهْلِهِۦ مَسْرُورًا ﴾ چي بېشکه وودی (په دنيايې) اهل خپل کي خوشحاله (دچارو عواقب يې نه سنجول آخرت يې په پام کي هم نه ور ګرزېدو غافل وو. ابن زيد ليکي: الله جل جلاله دجنتيانو صفت په ژړا، وېره، خواشيني او خفګان کړی چي دوی به په دنيا کي کول نو په آخرت کي يې نعمتونه او خوشحالي ورپه برخه کړل او ددوزخيانو صفت يې په دنيا کي په خوښي خندا او خوشحالي سره کړی په آخرت کي يې اوږدغم او ناورين ورپه برخه کړی دی ﴿ إِنَّهُۥ ظَنَّ أَن لَّن يَحُورَ ﴾ بېشکه ده به يقين کاوه په دنياکي داسي چي دی به له سره بيرته نه ګرزي (الله ته اوله بعث څخه منکروو څکه يې بد کارونه کول) ﴿ بَلَىٰٓ إِنَّ رَبَّهُۥ كَانَ بِهِۦ بَصِيرًا ﴾ هودی رجوع کوي (هرومرو الله ته) بېشکه رب دده دی په ده ښه پوه ليدونکی بينا (هغه به بيرته وروسته له مرګه راژوندی کړي او په پټو اعمالو که خيرو ي او که شر جزاء به ورکړي الله پخپلو بندګانو ښه خبردار دی هيڅ شی څني پټ نه دی ﴿ فَلَآ أُقْسِمُ بِٱلشَّفَقِ ﴾ (لا دقسم دتاکيد

(¹) البحر المحيط ٨ / ٤٤٢

(²) مقصدله حساب يسير څخه کوم چي په آيت شريف کي ذکر شوی (عرض) دی لکه چي له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه روايت شوی چي ويې فرمايل له چاسره چي حساب وشي عذاب به ورکړل شي عائشي رضى الله عنها ورته وويل چي آيا الله جل جلاله داسي ندي فرمايلي چي (فسوف يحاسب حسابًا يسيرًا) رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وويل دغه ته عرض (وړاندي کول) وايه شي څوکه په حساب کي ورسره دقت وشي عذاب به ومومي متفق عليه په بل حديث شريف کي راغلي چي رسول الله فرمايي: الله تعالى دقيامت په ورځ خپل بنده ته دومره ورنژدې شي چي پخپل حفظ او کنف کي يې واخلي بياورته وايي داسي دي کړي او داسي دي کړي او دده ګناهونه ورته وشمېري بياورته وايي په دنياکي مي ستادغه ګناهونه پټ کړي وو او نن يې دربښم او له حساب يسير څخه هم دغه مراد دی.

لپاره دی)پس قسم خورم په شفق سپینوالي دعشاء پس له سوروالي دماښام ﴿ وَٱلَّيۡلِ وَمَا وَسَقَ ﴾ اوپه شپه اوپه هغو(څيزونو ) چې جمع كړي وي (شپې هغه پخپلو تيارو كې )هغه كه انسانان وي كه حيوانات اويانورخزندگان .مفسرين كرام ليكي چې په شپه هرمخلوق آرام كوي اودورځې ټول هغه چې تيت اوخواره وي بيگاه بيرته خپلو كورونو اوخالوپنډ غالواوغارونوته راستنيږي ځكه الله جل جلاله دغه احسان پدې ويناكي يادوي فرمايي ﴿ وَجَعَلَ ٱلَّيۡلَ سَكَنًا ﴾ كله چې ورځ شي نودوی يوه بله خوا خپاره اوتيت شي اوكله چې شپه راشي بيانوهرمخلوق خپل هستوگنځي ته راستون شي ﴿ وَٱلۡقَمَرِ إِذَا ٱتَّسَقَ ﴾ او(قسم خورم) په سپوږمۍ كله چې پوره كامل شي (نور اوڅلايې اوكامل بدرترې جوړشي ) ﴿ لَتَرۡكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٍ ﴾ خامخاسواره به شی وبه رسيږی تاسي ای خلگويو حال وروسته له بل حال نه (دغه دقسم ځواب دی يعني دآخرت كړاوونه به درته ورسيږي ، الوسي ليكي: معناداچې سواره به شی په حالاتووروسته له نوروحالاتوچې دغه به په سختي كې طبقې او پوړۍ وي څه به يې ترڅه نوروسخت وي اودغه عبارت له مرگ اودقيامت دورځې له نورو تكليفونو څخه دي[۱])طبري ليكي معناداچې دوی به دقيامت وېرونكي اوترهونكي حالت وار په وارووينې ([۲]) ﴿ فَمَا لَهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ ﴾ پس څه دي (دغوانسانانوته) چې ايمان نه راوړي؟ (دااستفهام دی اومرادور څخه توبيخ اوترټنه ده معناداچې پس څه دي چې دغه كسان ايمان نه راوړي اودغه مشركان په بعث او نشورباندي باورنلري سره له دې چې دېښېدلودلائل يې ټول موجوددي ﴿ وَإِذَا قُرِئَ عَلَيۡهِمُ ٱلۡقُرۡءَانُ لَا يَسۡجُدُونَ ﴾ اوكله چې ولوست شي پردوی باندي قرآن نوغاړه نه ايږدي سجده نه كوي (لپاره دلوستلو يې) ﴿ بَلِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يُكَذِّبُونَ ﴾ بلكه هغه كسان چې كافران شوي دي په الله دروغ گڼي (قرآن)ځكه چې دغه تكذيب اوعناديې په خته كې اغښلی نود تلاوت په وړاندي يې غاړه نه ايږدي ﴿ وَٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِمَا يُوعُونَ ﴾ اوالله ته ښه معلوم دی هغه څه چې دوی يې پټوي (په زړه كې يې ساتي له كفره اونفاق څخه ابن عباس رضی الله عنهماوايي چې (يوعون) معناداچې پټوي دښمني درسول الله صلى الله عليه وسلم اومؤمنانو([۳]) ﴿ فَبَشِّرۡهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ پس بشارت(زېری) وركړه دوی ته په دردناک عذاب سره (په آخرت كې په سبب دكفراوگمراهي ددوی دغه بدخبر يې دزېري په ځای ور واورول په التسهيل كې ليكي چې زېری دوېروني اوانذارپرځای راوړل په كفاروباندي ملنډې اوتهكم دی ﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ مگرخوهغه كسان چې ايمان يې راوړی دی اوكړي يې دي ښه (عملونه ) يعني ايمان يې له صالح عمل سره مل كړي ﴿ لَهُمۡ أَجۡرٌ غَيۡرُ مَمۡنُونِۭ ﴾ هغوی ته بې نهايته اجردی چې خلاصي اوكمی نلري (تل ترتله به وي الله تعالی دغه سورت

---

([۱]) روح المعاني ۸۲/۳۰
([۲]) قرطبي ۸۰/۳۰
([۳]) البحر المحيط ۴۴۸/۸

دنیکانو خلګو په نعمتونو ورسته له هغه چي د فاجرانو حال يې بيان کړ بشپړ کړ او دا ګواکي د هغه اجمال تفصيل دی چي الله جل جلاله د سورت په پيل کي بيان کړی وو چي هرڅوک به د خپل عمل جزا و مومي هلته يې داسي فرمايلي وو ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْإِنسَٰنُ إِنَّكَ كَادِحٌ إِلَىٰ رَبِّكَ كَدْحًا فَمُلَٰقِيهِ ﴾.

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي د بديع او بيان کومي ښکلاوي شته لنډ يزيې دادی:

۱ - د طباق صنعت چي د ﴿ ٱلسَّمَآءُ ﴾ او ﴿ ٱلْأَرْضُ ﴾ ترمينځ راغلی دی

۲ - مقابله پدې کلام کي چي فرمايې ﴿ فَأَمَّا مَنْ أُوتِىَ كِتَٰبَهُۥ بِيَمِينِهِۦ ﴾ او ﴿ وَأَمَّا مَنْ أُوتِىَ كِتَٰبَهُۥ وَرَآءَ ظَهْرِهِۦ ﴾ کي راغلی ده.

۳ - کنايه پدې آيت شريف کي چي ﴿ لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٍ ﴾ دغه له شدت او سختي څخه کنايه راوړل شوي ده.

۴ - ناقص جناس چي د ﴿ وَسَقَ ﴾ او ﴿ ٱتَّسَقَ ﴾ ترمينځ شتون لري

۵ - تهکمي اسلوب چي په ﴿ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴾ جمله کي راغلی څکه دلته زېری د وېرولو پرځای راغلی دی او دغه تهکم او سخريه افاده کوي

۶ - د فواصلو توافق چي د آيتونو له پيل سره پدې آيتونو کي راغلی چي ﴿ فَلَآ أُقْسِمُ بِٱلشَّفَقِ وَٱلَّيْلِ وَمَا وَسَقَ وَٱلْقَمَرِ إِذَا ٱتَّسَقَ لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٍ ﴾ دې ته د سجع صنعت وايې چي له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

د الله جل جلاله په مرسته د الانشقاق د سورت تفسير بشپړ شو.

***

# د (البروج) سورت مکي او دوه ویشت آیتونه لري

## د سورت په وړاندي:

دغه سورت د مکي سورتونو څخه دی او د اسلامي عقیدې حقائق څرګندوي او هغه محور کوم چي دغه مبارک سورت ورباندي راتاوېږي هغه د کندي د خاوندانو کیسه ده او داګواکي هغه د سر ښندني او فداکاري داستان دی چي یو څوک یې د ایمان په لارکي پخپل ځان مني.

دغه سورت په داسي تکوپیل شوی چي په هغه آسمان لوړه اخیستل شوي کوم چي بې شمېره سترستوري او غټې مدارونه لري هغه چي دغه افلاک پکي ګرزي راګرزي همداسي په وعده ورکول شوي ورځ چي د قیامت ورځ ده قسم اخیستل شوی او همداراز په رسولانو او اُمتونو یې لوړه ده چي مجرمین به هلاکېږي هغه کسان چي مؤمنان به یې په اورکي غورځول ترڅو چي له دینه یې واړوي نو فرمایي ﴿ وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ وَالْيَوْمِ الْمَوْعُودِ وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ قُتِلَ أَصْحَابُ الْأُخْدُودِ النَّارِ ذَاتِ الْوَقُودِ إِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُودٌ وَهُمْ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ بِالْمُؤْمِنِينَ شُهُودٌ ﴾ د آیتونو تر پایه.

له دې وروسته د هغو بدکارانو لپاره وعید او وېرونه راوړي کوم چي د دې کار نوښتګر (مخترعین) وو فرمایي ﴿ إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَتُوبُوا فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيقِ ﴾.

بیا د الله جل جلاله د قدرت او ځواک خبر راکوي چي همغه زبردست الله د مؤمنانو په کسات او غچ اخیستلو کي له کفارو څخه ښه توانا او مقتدر دی ارشاد کوي: ﴿ إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَتُوبُوا فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيقِ ﴾.

په پای کي دغه مبارک سورت د هغه سرغړونکي جابر طاغوت (فرعون) کیسه یادوي کوم چي پخپله دی او تبرېې د سرغړوني او بغاوت له امله په څرنګه هلاکت له مینځه لاړل فرمایي ﴿ هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْجُنُودِ فِرْعَوْنَ وَثَمُودَ بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي تَكْذِيبٍ وَاللَّهُ مِن وَرَائِهِم مُّحِيطٌ بَلْ هُوَ قُرْآنٌ مَّجِيدٌ فِي لَوْحٍ مَّحْفُوظٍ ﴾ او دا هغه مناسبه خاتمه ده چي د سورت له موضوع سره ښه سمه ده.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الْبُرُوجِ ﴿١﴾ وَالْيَوْمِ الْمَوْعُودِ ﴿٢﴾ وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ ﴿٣﴾ قُتِلَ أَصْحَابُ الْأُخْدُودِ ﴿٤﴾ النَّارِ ذَاتِ الْوَقُودِ
﴿٥﴾ إِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُودٌ ﴿٦﴾ وَهُمْ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ بِالْمُؤْمِنِينَ شُهُودٌ ﴿٧﴾ وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلَّا أَن يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ

﴿٨﴾ ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ﴿٩﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ فَتَنُوا۟ ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ ثُمَّ لَمْ يَتُوبُوا۟
فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ ٱلْحَرِيقِ ﴿١٠﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُمْ جَنَّٰتٌ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ۚ ذَٰلِكَ
ٱلْفَوْزُ ٱلْكَبِيرُ ﴿١١﴾ إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيدٌ ﴿١٢﴾ إِنَّهُۥ هُوَ يُبْدِئُ وَيُعِيدُ ﴿١٣﴾ وَهُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلْوَدُودُ ﴿١٤﴾ ذُو ٱلْعَرْشِ ٱلْمَجِيدُ ﴿١٥﴾ فَعَّالٌ
لِّمَا يُرِيدُ ﴿١٦﴾ هَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ ٱلْجُنُودِ ﴿١٧﴾ فِرْعَوْنَ وَثَمُودَ ﴿١٨﴾ بَلِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ فِى تَكْذِيبٍ ﴿١٩﴾ وَٱللَّهُ مِن وَرَآئِهِم مُّحِيطٌۢ ﴿٢٠﴾ بَلْ
هُوَ قُرْءَانٌ مَّجِيدٌ ﴿٢١﴾ فِى لَوْحٍ مَّحْفُوظٍۭ ﴿٢٢﴾ ﴾ البروج: ۱ ــ ۲۲ .

## لغتونه:

(الأخدود) هغه ستري اوږدې کندې ته وايي چې دخندق په شان وي او جمع يې (اخاديد) راځي (قتل) په سخت لعنت ملعون شوى (مانقموا) عيب يې نه ليد وکړه يې نه کوله (بطش) په سختي سره نيول (يبدئ) په لومړي پيل کې پخپل قدرت سره پيدا کوي (المجيد) ستر، لوى اولوړ.

## تفسير:

﴿ وَٱلسَّمَآءِ ذَاتِ ٱلْبُرُوجِ ﴾ (قسم په آسمان چې خاوند دبرجونو دى) يعني زه په هغه آسمان لوړه کوم هغه چې داوچتومنزلونو ځښتن دى چې هلته ستوري دخپل تګ په وخت کې ښکته کېږي. مفسرين کرام ليکي چې دغومنازلوته بروج ځکه وويل شو چې ځرګند دي اوله لويو دنګو ماڼيو سره مشابهت لري.

﴿ وَٱلْيَوْمِ ٱلْمَوْعُودِ ﴾ اوقسم دى په هغې ورځې وعدې کړې شوي (چې دقيامت ورځ ده) هغه چې الله خلګوته ورباندې وعده ورکړې ده اوداسې ارشادکوي ﴿ ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ ۗ ﴾ (النسآء: ۸۷) ﴿ وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ ﴾ اوقسم دى په محمد صلى الله عليه وسلم او انبياوو اوپه هغو اُمتونو چې حاضرېږي دقيامت په ورځ لکه چې الله تعالى فرمايي ﴿ فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍۭ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ شَهِيدًا ﴾ (النسآء: ۴۱) چابياويلي چې شاهد دغه محمدي اُمت دى او مشهود نورګرد اُمتونه دي دليل يې دانبودلى چې الله فرمايي: [۱] ﴿ لِّتَكُونُوا۟ شُهَدَآءَ عَلَى ٱلنَّاسِ وَيَكُونَ ٱلرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا ۗ ﴾ (البقرة: ۱۸۳) ﴿ قُتِلَ أَصْحَٰبُ ٱلْأُخْدُودِ ﴾ وژلي شوي دي خاوندان دکندې، دغه دعائيه جمله اوقسم ځواب دى يعني الله وژلي اوملعون کړي دي هغه داوردخندقونو خاوندان چې ځمکې يې کيندلې

---

[۱] مفسرينو رحمهم الله د (الشاهد) (اوالمشهود) په هکله لوى اختلاف ښودلى آن ترديې چې شپاړس اقوال يې يادکړي دي چابياويلي چې شاهد دجمعې ورځ اومشهود دعرفې ورځ ده چاويلي چې شاهد محمد صلى الله عليه وسلم اومشهود دقيامت ورځ ده ځوک وايي: شاهد انساني اعضاء اوغړي دي اومشهود عليه بنيادم دى...ترپايه خوصاوي ليکي چې ترټولو غوره اوښه داده چې عام اوشامل وګڼل شي ترڅو هرشاهد اومشهود پکې ګډ شي.

اوربې پکې بل کړي ووترڅومؤمنان پکې وسوځوي . قرطبي ليکي چي (أخدود )لکه خندق غونډي کنډي ته وايې اود (قُتِلَ) معنالعنت کړی شوی دی ابن عباس رضی الله عنه وايې هرځای چي په قرآن کي (قُتِلَ) راغلی وي معنايې ملعون کړی شوی دی (١)ورپسې الله تعالی د(أخدود )تفصيل داسي بيانوي چي مراد ور څخه ﴿ ٱلنَّارِ ذَاتِ ٱلْوَقُودِ ﴾ خندقونه داور(په ځمکه کي) چي خاوندد بليدلووو (کفارو دمؤمنانودسوځولولپاره بل کړي ووابوالسعودليکي چي دغه ددې اورصفت دی چي زښته لوی اور اوچتي لمبې بې ختلې اودېره ازوغه پکې وه (٢)اوله دې څخه ددې اورهيبت اوهول افاده کېږي ورپسې الله دمجرمانوپه وصف کي زياتوب اومبالغه فرمايې ﴿ إِذْ هُمْ عَلَيْهَا قُعُودٌ ﴾ کله چي دوی(په غاړو ) داورناست وو(٢ )﴿ وَهُمْ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ بِٱلْمُؤْمِنِينَ شُهُودٌ ﴾ اودوی په هغه چي کول به بې په مؤمنانو باندي حاضروو(اوپخپلوسترګوبې ورته کتل دمؤمنانوپه سوځېدلوبه بې زړه يخېدو(٣) غرض له دې نه دقريشي کفارو ېرول دي څکه دوی به هم دخپل تېرخلګ چي کله مسلمانان شول ځورول ربړول ترڅو له ايمانه وګرزي نوالله جل جلاله داصحاب الأخدودکيسه ورته ياده کړه ترڅوددوی کفارو لپاره اخطار اودمسلمانانولپاره دادينه اوتسلاشي بيافرمايې ﴿ وَمَا نَقَمُوا۟ مِنْهُمْ إِلَّآ أَن يُؤْمِنُوا۟ بِٱللَّهِ ٱلْعَزِيزِ ٱلْحَمِيدِ ﴾ او عيب بې نه ليده له هغو (مسلمانانو ) څخه مګرداچي ايمان لرونکي ووپه الله دېرغالب دېرستايلي شوي باندي(هغه ذات چي څوک هغه ته پناه وړي هغه تل ترتله خوندي ساتي مقصدداچي د مسلمانانوپه اورسوځولو سبب يوازي داووچي دوی په واحداولاشريک الله باندي ايمان راوړی وو او داخوکومه ګناه نه ده چي دعذاب ورکولوړ وګڼل شي بلکه يوازي دغه دکفاروطغيان اواجرام دی﴿ ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ﴾ هغه (الله) چي خاص ده لره ده باچاهي کامل سلطنت دآسمانونو اودځمکي (اوګردوکائناتوکوم چي دثناصفت وړدي ، په البحرکي راوړي چي دالله جل جلاله دغه صفتونه بې يادکړي چي په هغوباندي الله تعالی ددې وړاو لائق ګرزي چي ورباندي ايمان راوړل شي څکه هغه (عزيز) زبردست غالب ،تواناوقادردی دهغه له عذابه بايدويره وشي هغه ستايلی شوی ذات دی زښته دېرنعمتونه بې په بندګانولورولي بايدحمداوثنا بې ولوستل شي ﴿ ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ ﴾هغه (الله) چي خاص ده لره ده پاچهي کامل سلطنت دآسمانونو او د ځمکي يعني اوهرڅه چي پدې ځمکه اوآسمان کي موجوددي هغوی ته ښايې چي دالله عبادت وکړي او الله ته غاړه کېږدي ، دايې

---

(١) قرطبي ٢٨٤/١٩

(٢) دغي کيسې ته يوه څغلنده کتنه داسي کېدای شي چي پخوازمانه کي يوکافرظالم باچاووچي دښارخلګ بې ديوې عجيبې واقعې په ليدلومسلمانان شول نوده امروکړچي دکوڅوپه سرونوکي کنډي وکنئ اورونه پکې بل کړئ اوبيابې لښکريانوته وفرمايل چي هرنارينه اوښځينه مسلمانان دي دغه اورته راوبلل شي هرڅوک چي له ايمان څخه نه اوړي پدغه اورکي دي وغورځوي همداسي بې وکړل ترڅويوه ښځه بې راوستله چي کوچنی دتي ماشوم بې په غېږکي ووهغه زړه نازړه شوه خوماشوم ورته ويل : مورکۍ صبرکوه ته پرحق بې ! دکيسې تفصيل په صحيح مسلم کي وګورئ

(٣) البحرالمحيط ٨/

ددې لپاره یادکړل چي له داسي حق څخه کرکه کول اویاپه داسي ذات باندي دایمان راوړل عیب ګڼل هیڅوک هم نکوي مګرهغه چي په باطل اوسرغړونه کي سرترپایه ډوب وي ﴿ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ﴾ (اوالله په هرشي باندي شاهد دی) یعني الله تعالی دخپلو بندګانو په اعمالو باندي ښه خبردار دی هیڅ شی هم څنې پټ نه دی پدې کي دکفارولپاره وعید اودمسلمانانولپاره وعد اوبشارت نغښتی دی، وروسته الله تعالی دکفارودزیاتي رسوایۍ لپاره فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ فَتَنُوا۟ ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَـٰتِ ﴾ بېشکه هغه کسان چي په فتنه کي غورزولي وي ضربې رسولی وي ایمان لرونکو سړیوته اوایمان لرونکوښځوته (یعني په عذاب کړي اوپه اورکي یې غورزولي ترڅوچي له ایمانه وګرزي) ﴿ ثُمَّ لَمْ يَتُوبُوا۟ فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ ٱلْحَرِيقِ ﴾ بیایې توبه نه وي ایستلي (اوله کفره نه وي ګرزېدلي) نودوی ته دي (په آخرت کي) عذاب ددوزخ اودی دوی ته عذاب داورسوځونکی (یعني دوی لره جهنم رسواکونکی عذاب دی اوهمدارنګه دوی لره سوځونکی عذاب دی کله چي دوی به په دنیا کي مؤمنان په اورکي سوځول، دکفارومجرمینو دحال بیانولو وروسته دمؤمنانوحال داسي بیانوي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ لَهُمْ جَنَّـٰتٌ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَـٰرُ ﴾ (بېشکه هغه کسان چي ایمان یې راوړی دی اوکړي یې دي ښه (عملونه) چي ایمان اوصالح عمل یې یوځای کړی شته دوی ته جنتونه چي بهېږي له لاندي (دمانیو اوونو) دهغوویالې) یعني دوی لره باغونه دي چي په ګلانواو مېوو سمسوراوترمانیواوونولاندي څلور ډوله ویالې دشرابو، شیدو، شاتو اواوبوروانې وي[1]) ﴿ ذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْكَبِيرُ ﴾ داانجات دی مرادمو ندل لوی (ستره کامیابي ده چي له دې پورته بله نشته وروسته الله تعالی دهغه سخت انتقام یادونه کوي کوم چي دخپلو انبیاووعلیهم السلام اوخپلو دوستانو مؤمنانو له دښمنانوڅخه یې اخلي فرمايي ﴿ إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيدٌ ﴾ بېشکه نیول درب ستاخامخاډېرسخت دي یعني دالله کسات اخیستل اوانتقام له ظالمانواوجابرانوڅخه ډېرسخت دي ابوالسعودوايي (بطش) په سختي سره نیولوته وايي اوکله چي یې په سختي سره هم وستایونوګواکي څوچنده زیات شوچي الله دکافرانوڅخه په عذاب باندي انتقام اخلي ([2]) ﴿ إِنَّهُۥ هُوَ يُبْدِئُ وَيُعِيدُ ﴾ بېشکه همدغه (الله) دی ظاهروونکی (دبطش خپل په کفارو) اول څلي اوبیاظاهروونکی دی (دبطش خپل په کفارو) دوهم څلي (په آخرت کي) یابېشکه چي همدغه (الله) دی پیداکونکی اول څل له نطفي څخه اوبیایې راګرزونکی دی(دوهم څلي) پس له مرګه ﴿ وَهُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلْوَدُودُ ﴾ اوهمدی دی ښه ښښونکی (دګنهګارو مؤمنانو)لطیف اواحسان کونکی(له خپلواولیاووسره)اوهمدارنګه له دوی سره مینه اومحبت کونکی. ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: الله له خپلو اولیاوو سره داسي مینه اومحبت لري لکه چي یوڅوک له خپل ورورسره په مینه او ورین

---

([1]) قرطبي تفسیر۳۰/۸۸

([2]) ابوالسعودتفسیر۵/۲۵۳

تندي مودت کوي ﴿ ذُو ٱلْعَرْشِ ﴾ څښتن دعرش دی اوله دې کبله يې الله دعرش دڅښتن په صفت یادکړاو ورنه دعرش نسبت يې وکړچې عرش سره له دومره لویوالي پیدا کول دالله جل جلاله په لویوالي اوعظمت دلالت کوي ﴿ ٱلْمَجِيدُ ﴾ لوی دی (پخپلوصفاتواوذات کي یعني الله جل جلاله په ټولومخلوقاتولوړدی اودکمال اوجلال په صفتونوستایلی دی ﴿ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ﴾ دپرښه کونکی دی دهرهغه شي چي اراده وفرمایي (نه دهغه حکم څوک منع کولای شي اونه يې هم فیصله ماتولای شي. قرطبي ليکي چي دهغه دارادې او غوښتني په وړاندي هیڅ شی مانع کېدای نشي([1])روایت کېږي چي حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه کله چي دمرګوني ناروغۍ په حال کي وو یوچاورته وویل چي آیاطبیب کتلی يې؟ هغه ورته ویل هو! نويې بیاترې وپوښتل چي طبیب څه درته وویل ابوبکر رضی الله عنه ورته وویل چي راته ویل يې: ﴿ هَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ ٱلْجُنُودِ ﴾ ([2])آیاراغلی دی تاته (ای محمده!) خبرد(هغو)لښکرو(چي کافران وودپیغمبرانو اونبیانوسره يې جنګ ته ملاوي تړلي وې آیاداخبردرته رسېدلی چي هغوی څرنګه الله پخپل عذاب هلاک کړل؟ قرطبي ليکي چي الله تعالی پدې باندي خپل پیغمبرته ډاډاوتسلاورکوي بیافرمايي: ﴿ فِرْعَوْنَ وَثَمُودَ ﴾ چي فرعونیان او ثمودیان وودوی دېرغښتلي اودجګړې اومقابلې اتلانن وو دوی ستاترتبرپه جګړواو جنګونود پرمېږني اوزورور ووخوله دې سره سره الله هغوی پخپلوګناهونوباندي ونیول اوهلاک يې کړل ﴿ بَلِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ فِى تَكْذِيبٍ ﴾ بلکه هغه کسان چي کافران شوي دي (له قومه ستا)په دروغجنوکي دي اوعبرت نه اخلي له پخوانیوهلاک شوي دروغجنوکفاروڅخه بلکه تل ترتله په تکذیب کي دي اوترهغوی په کفراو طغیان کي اوښتي دي ﴿ وَٱللَّهُ مِن وَرَآئِهِم مُّحِيطٌ ﴾ او الله په هرلوري ددوی احاطه کونکی دی (په علم او قدرت خپل سره نوترې خلاصېدی نشي ﴿ بَلْ هُوَ قُرْءَانٌ مَّجِيدٌ ﴾ بلکه داقرآن دی شانداره لوی (لفظاًمعناً اعجازاً دوی دداسي کتاب تکذیب کوي چي هغه په شرف اولوړوالي کي بېخي زیات دی اوتر ګردو آسماني کتابونوپه اعجاز، نظم اود معانیوپه صحت کي پورته اولوړدی داسي نه دی لکه چي کافران ورباندي دشعر، سحریاکهانت ګمان کوي ﴿ فِى لَوْحٍ مَّحْفُوظٍ ﴾ لیکلی شوی دی په لوح محفوظ کي(هغه چي په آسمانونوکي دی اوله زیاتوالي ،نقصان تحریف اوتبدیل څخه خوندي اومحفوظ دی).

---

([1]) قرطبي تفسير ۱۹/ ۲۹۵
([2]) دابن کثیرمختصر ۳/ ۲۲۵

بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې د بدیع او بیان کومې ښکلاوې شته لنډيزيې په لاندې ډول دی:

١- د طباق صنعت چې د ﴿ يُبْدِئُ ﴾ او ﴿ وَيُعِيدُ ﴾ ترمینځ شته دی.

٢- اشتقاقي جناس چې د ﴿ وَشَاهِدٍ ﴾ او ﴿ وَمَشْهُودٍ ﴾ ترمینځ دی.

٣- د هغې مدحې تاکید چې له ذم سره ورته وي لکه دا چې ﴿ وَمَا نَقَمُوا مِنْهُمْ إِلَّا أَن يُؤْمِنُوا بِاللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ﴾ لکه چې وایې د دوی جرم او جنایت پرته له ایمان څخه بل څه نه وو او دا خو په حقیقت کې ترستروسترویاړ او فخر دی.

٤- د مقابلې صنعت کوم چې د مؤمنانو او کافرانو د هستوګنځیو ترمینځ دي لکه ﴿ إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ ﴾ د آیتونو ترپایه او په مقابل کې یې ﴿ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتٌ... ﴾ د آیتونو ترپایه راغلی دی.

٥- د کیسې د اورېدلو لپاره تشویق او د راښکون اسلوب لکه چې فرمایې: ﴿ هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ الْجُنُودِ ﴾

٦- د مبالغې صیغې لکه ﴿ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ﴾ او ﴿ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ﴾ او نور مثالونه یې.

٧- د فواصلو موافقت لکه ﴿ وَالْيَوْمِ الْمَوْعُودِ ..... وَشَاهِدٍ وَمَشْهُودٍ ..... قُتِلَ أَصْحَابُ الْأُخْدُودِ النَّارِ ذَاتِ الْوَقُودِ ﴾ او دې ته د سجعې صنعت وېل کېږي چې د بدیعي محسناتو څخه دی.

د الله جل جلاله په مرسته د البروج سورت د تفسیر ژباړه بشپړه شوه.

***

## دالطارق سورت مكي اواوه لس آيتونه لري.

### دسورت په وړاندي:

دغه مبارک سورت مكي اوځيني هغه چارې چې په اسلامي عقيده پسې اړونددي څېړي د سورت محور دبعث اونشورپه هكله دی اودالله جل جلاله په بشپړقدرت اوځواک يې روښانه دلائل او كوټلي براهين وړاندي كړي دي څكه هغه ذات چې له نېستي څخه يې انسان پنځولی (پيدا كړی) هغه يې په بيرته راژوندي كولو قادردی.

دسورت پيل په آسمان اوروښانه ستوروباندي په قسم اخيستلو كېږي هغه ستوري چې خلگو ته دشپې لاري رڼاكوي ترڅودبحراوبرلاري په توره شپه كي ومومي اوسربېره پردې په هرانسان باندي الله پوداسي مبارک پرښته گمارلي چې ساتنه اوڅارنه يې وكړي فرمايي: ﴿وَالسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الطَّارِقُ النَّجْمُ الثَّاقِبُ إِن كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ﴾.

بيادالله جل جلاله دقدرت هغه دلائل بيانوي چې څرنگه به انسان وروسته له مرگه راژوندی كړي فرمايي: ﴿فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ مِمَّ خُلِقَ خُلِقَ مِن مَّاءٍ دَافِقٍ يَخْرُجُ مِن بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَائِبِ إِنَّهُ عَلَىٰ رَجْعِهِ لَقَادِرٌ﴾.

وربسې بياهغه وخت يادوي چې پټ رازونه وسپړل شي ، پردې پورته شي اوالونياكارونه راڅرگندشي هغه ورځ چې انسان به هيڅ ځواک مرستندوی اوخواخوږی ونلري: ﴿يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ فَمَا لَهُ مِن قُوَّةٍ وَلَا نَاصِرٍ﴾.

سورت پدې خبروپای ته رسېږي چې قرآنكريم دمحمدصلی الله عليه وسلم تلپاتي معجزه او خلگوته دهغه له لوري بَليغ حجت دی، بيادقرآن رښتنولي بيانوي او كفاروته ددردناک عذاب خبر ور كوي فرمايي: ﴿وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الرَّجْعِ وَالْأَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ إِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ وَمَا هُوَ بِالْهَزْلِ إِنَّهُمْ يَكِيدُونَ كَيْدًا وَأَكِيدُ كَيْدًا فَمَهِّلِ الْكَافِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿وَالسَّمَاءِ وَالطَّارِقِ ﴿١﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الطَّارِقُ ﴿٢﴾ النَّجْمُ الثَّاقِبُ ﴿٣﴾ إِن كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ ﴿٤﴾ فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ مِمَّ خُلِقَ
﴿٥﴾ خُلِقَ مِن مَّاءٍ دَافِقٍ ﴿٦﴾ يَخْرُجُ مِن بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَائِبِ ﴿٧﴾ إِنَّهُ عَلَىٰ رَجْعِهِ لَقَادِرٌ ﴿٨﴾ يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ ﴿٩﴾ فَمَا لَهُ مِن قُوَّةٍ وَلَا
نَاصِرٍ ﴿١٠﴾ وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الرَّجْعِ ﴿١١﴾ وَالْأَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ ﴿١٢﴾ إِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ ﴿١٣﴾ وَمَا هُوَ بِالْهَزْلِ ﴿١٤﴾ إِنَّهُمْ يَكِيدُونَ كَيْدًا ﴿١٥﴾ وَأَكِيدُ كَيْدًا
﴿١٦﴾ فَمَهِّلِ الْكَافِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا ﴿١٧﴾﴾ الطارق: ۱ - ۱۷

### لغتونه:

(الطارق) له طرق څخه اخيستل شوی چې په زوره وهلوټكولوته وايي اومطرقه هم له دغي كلمې څخه ده همداسي دشپې هرراتلونكي ته طارق ويل كېږي (دافق) په سختي سره توی شوي لكه چې ويل كېږي

اوبه په شدت سره رااوري (الترائب) دسيني هډوکي د(تريبة) جمع لکه(فصيلة) چي جمع يې فصائل راځي امرء القيس پدې باب وايي: ( ترائبهامصقولة كالسجنجل ) يعني دسيني هډوکي يې صيقل شوي لکه دسروزروتختې ياهنداره غوندي (١)(الرجع) باران ځکه ورته راجع ويل شوچي وارپه وار ځمکي ته رادرومي رجوع کوي (الصدع) هغه گياه چي ځمکه يې په راتوکېدلوچوي (رويدا) لږاو يا نژدې

تفسير:

﴿ وَٱلسَّمَآءِ وَٱلطَّارِقِ ﴾ (قسم دی په آسمان اوپه راتلوکي دشپې) يعني قسم دی په آسمان اوځلانده ستوروچي په شپه کي ښکاره کېږي اودورځي پټېږي اوهرراتلونکي دشپې ته طارق وايي ﴿ وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا ٱلطَّارِقُ ﴾ اوڅه پوه کړی يې ته (ای محمده) چي څه دی راتلونکی دشپې؟ استفهام دتعظيم اوتفخيم لپاره دی ، وروسته يې تفسير داسي فرمايي ﴿ ٱلنَّجۡمُ ٱلثَّاقِبُ ﴾ ستوری ځلېدونکی دی (څېرونکی دشپې دتيارو. صاوي ليکي دالله جل جلاله په کلام کي دهرځله دلمر، سپوږمۍ اوستورويادونه شوي ده ځکه دهغوی حالات په شکلونو، تگ راتگ، ختلو ،دوبېدلوکي عجيب اونادردي چي ديوه خالق په کمالاتو باندي دلالت کوي ځکه چي هرمصنوع په صانع باندي دال وي(٢)) ﴿ إِن كُلُّ نَفۡسٖ لَّمَّا عَلَيۡهَا حَافِظٞ ﴾ چي ندی هيڅ نفس مگرپه هغه باندي څارونکی ساتونکی شته ،داقسم ځواب دی يعني په هغه باندي ساتونکي ملائکي شته چي دعمل خيراوشريې ساتي اوشمېري لکه چي الله تعالی فرمايي ﴿ وَإِنَّ عَلَيۡكُمۡ لَحَٰفِظِينَ كِرَامٗا كَٰتِبِينَ ﴾ (الانفطار:١٠، ١١) ابن کثيرليکي چي په هرنفس باندي دالله له لوري ساتونکی گمارل شوی چي له آفاتو څخه يې وژغوري (٣) بياالله جل جلاله حکم کوي چي انسان بايد پخپل خلقت اوپيدا ايښت کي سوچ اوفکروکړي ترڅوپدې وپوهېږي چي دبعث اوپاځېدلوامکان شته نوفرمايي ﴿ فَلۡيَنظُرِ ٱلۡإِنسَٰنُ مِمَّ خُلِقَ ﴾ نوودي گوري انسان چي (اصلا ) له څه شي څخه پيدا کړی شوی دی (دغه کتنه دي په غور اوسوچ سره وکړي ﴿ خُلِقَ مِن مَّآءٖ دَافِقٖ ﴾ پيدا کړی شوی دی (انسان) له اوبوتوپ وهونکو څخه (هغه مني چي په قوت اوشدت سره له نارينه اوښځي څخه راغورزي اودالله په حکم ورڅخه ماشوم پيدا کېږي ﴿ يَخۡرُجُ مِنۢ بَيۡنِ ٱلصُّلۡبِ وَٱلتَّرَآئِبِ ﴾ هسي اوبه چي راوزي له شا(دسړيو ) اوله هډوکودسينو (د ښځو ) څخه (٤) ﴿ إِنَّهُۥ عَلَىٰ رَجۡعِهِۦ لَقَادِرٞ ﴾ بېشکه دغه (الله) په بيابيرته راژوندي کولو دهغه خامخاقادر دی . ابن کثيرليکي الله جل جلاله انسان ته دهغه دلمړي پيدا ايښت دضعف اوناتواني په هکله تنبيه وفرمايله اوپه معادباندي په اعتراف

---

(١) روح المعاني ٣٠/ ٩٧

(٢) دصاوي حاشيه ٤/ ٣٠٩

(٣) مختصرابن کثير ٣/ ٦٢٩

(٤) صلب شمزۍ اودشا هډوکي ته وايي له صلب څخه کنايه له نارينه وواوپه ترائب سره کنايه له ښځوڅخه راغلي ده

کولوبې ورته ارشاد او لارښوونه وکړه ځکه یوڅوک چې په لومړني پیداکولو قادراوتواناوي هغه په بیرته راپاڅولوهم برښه قادردی ﴿ يَوْمَ تُبْلَى السَّرَآئِرُ ﴾ په (هغه ورځې کې چې ښکاروله به شي پټ ځیزونه) یعني هغه ورځ چې دزړونوامتحان اوازموینه به کېږي اوهغه څه به یې څرګندېږي کوم چې ددوی پټ نیتونه اویاعقائدوي پاک اوناپاکه به سره بېلېږي ﴿ فَمَا لَهُ مِن قُوَّةٍ وَلَا نَاصِرٍ ﴾ نونه به وي دغه (انسان) ته هیڅ قوت زور(چې له عذابه ځان خلاص کړي) اونه هیڅ ناصر مددګار(چې مرسته یې وکړي)په التسهیل کې لیکي څرنګه چې په دنیاکې دکوم عذاب ځخه د ژغورلولپاره یاخوکوم زور اوقوت په کاروي اویادبل مرستندوی مرسته اوکومک نوالله جل جلاله خبر ورکړچې په قیامت کې به دغه دواړه ونلري(۱) نه به خپل توان اوزور لري اونه به یې بل مرستندوی له الله ځخه ژغوري ..کله چې الله تعالی دمبدأ اومعادپه هکله بیان وفرمایوورپسې یې ددغه معجز کتاب په رښتنولي داسي قسم اولوړه وکړه چې:﴿ وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الرَّجْعِ ﴾ قسم دی په آسمان خاوندد بیرته را ګرزېدلو(چورلېدلو ) یاقسم دی په آسمان اورښت کونکي کوم چې وخت په وخت انسانانوته راګرزي ابن عباس رضی الله عنه وایې (الرجع) باران دی اوکه داباران نه وای نوخلګ اوڅاروي به ګرد هلاک شوي وای(۲)﴿ وَالْأَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ ﴾ اوقسم دی په ځمکه خاوندد چاودلو(دسوري چې نباتات، ونې، ګلان اواوبه ترې راوزي . ابن عباس رضی الله عنه وایې چې: دغه دهغې دنباتاتواومېوودراټوکېدلوپه وخت کې چاودېدلوته وایې(۳) الله تعالی په هغه آسمان سوګندواخیست چې پرموږباران اوروي اوالله تعالی په هغه ځمکه یې لوړه وکړه چې موږته مېوې اونباتات رازرغونوي آسمان دخلګولپاره لکه پلار اوځمکه یې لکه مورغوندي ده اوددوی دواړوترمینځ سترنعمتونه اوښېګړي هغه چې دبشریت بقا ورپوري اړه لري اودارنګه دنورو ژویوژوندتامینوي پیداکېږي ﴿ إِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ ﴾ ببشکه دغه (قرآن) وینا ده بېلونکې (دحق اوباطل داسي روښانه چې اعجاز، تشریع اوبیان یې خپل وروستي سرحدته رسېدلی دی) ﴿ وَمَا هُوَ بِالْهَزْلِ ﴾ اونه دی دغه (قرآن) لوبې عبث خبري ، توکي ټکالي بلکه دغه داحکم الحاکمین ذات کلام دی نو لوستونکي ته یې ښایې چې عبرت اوپندترې واخلي اوله ارشاداتو او لارښوونوڅخه یې نفع مندشي ﴿ إِنَّهُمْ يَكِيدُونَ كَيْدًا ﴾ دغه(مشرکین دمکې کفار ) چل کوي په چل کولوسره ترڅودالله دنورمشال ووژني اومحمدي شریعت له مینځه یوسي ﴿ وَأَكِيدُ كَيْدًا ﴾ او وربه کړم زه هم دخپل کید سزا(دوی ته) سزا ورکول (چې مهلت به ورکړم اوبیابه یې ونیسم په سخته نیولوسره لکه چې الله فرمایې ﴿ سَنَسْتَدْرِجُهُم مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (القلم ۴۴)ابوالسعودلیکي: معناداچې زه به له دوی سره پداسي ټېنګ چل مقابله وکړم چې دوی به یې ردولی

(۱) التسهیل لعلوم التنزیل ۴/ ۱۹۲
(۲) مختصرابن کثیر ۳ /۲۲۸
(۳) الطبري ۳۰/۹۵

نشي اوله داسي لاري به يې راولم چي دوى به وربانديي پوه هم نشي(۱) ﴿ فَمَهِّلِ ٱلْكَٰفِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًۢا ﴾ (پس مهلت ورکړه کافرانو ته مهلت ورکړه دوى ته لږموده) يعني ددوى دهلاکت په هکله تلوارمه کوه اومه هم له دوى څخه دانتقام اوکسات اخيستلو ژرترژره غوښتنه کوه څه وخت بې پريږده ژردى چي ته به هغه څه ووينې چي زه يې پردوى راولم اودا ګواکي ددوى لپاره خوراسخت وعيداواخطاردى

## بلاغت:

پدې سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادى:

۱- دتفخيم اوتعظيم لپاره استفهام لکه ﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا ٱلطَّارِقُ ﴾.

۲- دطباق صنعت چي د ﴿ وَٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ ترمينځ اود ﴿ فَصْلٌ ﴾ او ﴿ بِٱلْهَزْلِ ﴾ ترمينځ راغلى دى

۳- اشتقاقي جناس لکه پدې کلام کي چي ﴿ يَكِيدُونَ كَيْدًا ﴾.

۴ - اطناب دفعل په تکرارسره چي دوعيدپه هکله مبالغه افاده کړي لکه دالله تعالى پدې ارشادکي ﴿ فَمَهِّلِ ٱلْكَٰفِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًۢا ﴾.

۵- لطيفه کنايه کله چي فرمايي ﴿ يَخْرُجُ مِنۢ بَيْنِ ٱلصُّلْبِ وَٱلتَّرَآئِبِ ﴾ چي په (صلب) سره يې له نارينه اوپه (ترائب) سره يې له ښځوڅخه کنايه راوړي اودغه له باريکوکناياتوڅخه ګڼل کيږي

۶- ښکلي اوپه زړه پوري سجع چي داسلوبوپه جمال ښايست اوتازګي کي زياتوالى راوړى لکه ﴿ وَٱلسَّمَآءِ ذَاتِ ٱلرَّجْعِ وَٱلْأَرْضِ ذَاتِ ٱلصَّدْعِ ﴾ اودې ته ورته ﴿ إِنَّهُۥ لَقَوْلٌ فَصْلٌ وَمَا هُوَ بِٱلْهَزْلِ ﴾ چي دغه رنګه سجع له بديعي محسناتوڅخه ګڼل کيږي

دالله جل جلاله په مرسته دالطارق سورت تفسيربشپړشو.

***

---

(۱) ابوالسعودتفسير۸/ ۴۳۸

# د(الأعلى) سورت مكي او نولس آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

* دالاعلى سورت له مكي سورتونو څخه يو دى او په لنډ ډول له لاندنيو څيزونو څخه غږېږي:

۱- دالله جل جلاله لوړذات او ځيني صفات يې همدارازدالله جل جلاله په قدرت او وحدانيت باندي دلائل راوړي

۲- وحى او دقرآنكريم نزول چي په خاتم الانبياء نازل شوى او همداسي په هغه ﷺ باندي يې دحفظ آسانولو په هكله بيان كوي.

۳- نيک پنداووعظ چي دژوندي زړونو څښتنان او دنيكمرغي اوايمان خاوندان ځني برخمن كيږي

* دسورت پيل دالله جل جلاله پاكي اوتنزيه بيانوي هغه الله چي دشيانو پيدايښت يې په ښكلي صورت اوابداع سره فرمايلي ،وابنه،كښتونه يې په بندګانو باندي دنعمت په توګه لوړولي اوددوى د ګتي لپاره يې رازرغون كړي دي فرمايي ﴿ سَبِّحِ ٱسْمَ رَبِّكَ ٱلْأَعْلَى ۝١ ٱلَّذِى خَلَقَ فَسَوَّىٰ ۝٢ وَٱلَّذِى قَدَّرَ فَهَدَىٰ ۝٣ وَٱلَّذِىٓ أَخْرَجَ ٱلْمَرْعَىٰ ﴾ دآيتونو ترپايه

* بيا له وحى او قرآن عظيم څخه بيان فرمايي اورسول الله صلى الله عليه وسلم ته دقرآن عظيم الشان ديادا وحفظ په هكله ډاډ ينه اوزيرى وركوي چي دغه سپېڅلى كتاب به ورته ديادولو لپاره آسانه كړي چي بيابه هيڅكله هم تري هېرنشي وايي:﴿ سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنسَىٰٓ إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ ۚ إِنَّهُۥ يَعْلَمُ ٱلْجَهْرَ وَمَا يَخْفَىٰ ﴾.

* وروسته دقرآنكريم څخه دپنداخيستلو يادونه كوي هغه سپېڅلى كتاب چي له ځلا او نورانيت څخه يې مسلمانان ګټه اخلي او پرهېزګاران يې له وعظ او پند څخه مستفيد كېږي ﴿ فَذَكِّرْ إِن نَّفَعَتِ ٱلذِّكْرَىٰ سَيَذَّكَّرُ مَن يَخْشَىٰ وَيَتَجَنَّبُهَا ٱلْأَشْقَى ﴾ دآيتونو ترپايه

* په پاى كي الله دهغو كسانو برى ستايي چاچي ځانونه له ګناهونو څخه پاک كړي او په نيكو اعمالو يې ښايسته كړي دي فرمايي ﴿ قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّىٰ وَذَكَرَ ٱسْمَ رَبِّهِۦ فَصَلَّىٰ ﴾ دسورت ترپايه پوري

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ سَبِّحِ ٱسْمَ رَبِّكَ ٱلْأَعْلَى ۝١ ٱلَّذِى خَلَقَ فَسَوَّىٰ ۝٢ وَٱلَّذِى قَدَّرَ فَهَدَىٰ ۝٣ وَٱلَّذِىٓ أَخْرَجَ ٱلْمَرْعَىٰ ۝٤ فَجَعَلَهُۥ غُثَآءً أَحْوَىٰ
۝٥ سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنسَىٰٓ ۝٦ إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ ۚ إِنَّهُۥ يَعْلَمُ ٱلْجَهْرَ وَمَا يَخْفَىٰ ۝٧ وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرَىٰ ۝٨ فَذَكِّرْ إِن نَّفَعَتِ ٱلذِّكْرَىٰ ۝٩
سَيَذَّكَّرُ مَن يَخْشَىٰ ۝١٠ وَيَتَجَنَّبُهَا ٱلْأَشْقَى ۝١١ ٱلَّذِى يَصْلَى ٱلنَّارَ ٱلْكُبْرَىٰ ۝١٢ ثُمَّ لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحْيَىٰ ۝١٣ قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّىٰ
۝١٤ وَذَكَرَ ٱسْمَ رَبِّهِۦ فَصَلَّىٰ ۝١٥ بَلْ تُؤْثِرُونَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا ۝١٦ وَٱلْءَاخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰٓ ۝١٧ إِنَّ هَٰذَا لَفِى ٱلصُّحُفِ ٱلْأُولَىٰ
۝١٨ صُحُفِ إِبْرَٰهِيمَ وَمُوسَىٰ ۝١٩ ﴾ الأعلى: ۱ - ۱۹

لغتونه:

(غثاء) هغه خیزته وایې چې سېلاب یې په سرراوړي او د کندي په خواوشاېې وغورځوي هغه چې وچ واښه، پاڼي اوپانورخس اوخاشاک وي (احوی) تورنسواري له (حوة) څخه اخیستل شوي هغه توربخون والي ته وایې (یصلی) ننی به وزي او ګرمي به یې وځکي.

تفسیر:

﴿ سَبِّحِ ٱسْمَ رَبِّكَ ٱلْأَعْلَى ﴾ پاکي بیان کړه د نامه درب خپل چې (له ټولو څخه) د پرلوی او ښه غالب دی؛ هغه ذات چې د نقص له صفاتو او ظالمانو له نازیباستاینو څخه پاک دي په حدیث شریف کي راغلي کله چې به رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه آیت لوستل نوبه یې وویل ﴿ سبحان ربی الاعلي ﴾[۱] وروسته دالله جل جلاله له لویو صفاتو د قدرت له مظاهرو او د وحدانیت له دلائلو څخه داسي بیان فرمایې ﴿ ٱلَّذِى خَلَقَ فَسَوَّىٰ ﴾ هغه چې (ټول مخلوقات یې) پیدا کړل او اعضاء اجزاء یې برابر او بې نقصانه کړل یعني دهغوی یې په زړه پوري جوړښت، هیئتونه او اشکال تیار کړل په البحرالمحیط کي لیکي: معنادا چې هریو خیزیې پیدا کړاوبیایې برابرکړ چې متفاوت به نه وي بلکه په ټینګښت او محکم والي کي به متناسب وي ترڅو پدې دلالت وکړي چې دغه د حکیم او علیم ذات صنع ده[۲] ﴿ وَٱلَّذِى قَدَّرَ فَهَدَىٰ ﴾ (اوهغه (رب) چې اندازه یې کړل (ټول شیان دهغوی) نولاره یې ورو ښوده ) یعني اندازه یې کړل په هر شي کي دهغه خواص او مزایاوي ترڅو عقول او افهام یې روښانه شي او انسان ته یې دهغه څه لارښوونه وکړه کوم چې ورباندي نفع اخلي اوهمدا راز څارویوته یې دهغوی ورشو (علفچر) څرځای وروښود ترڅو پکي وڅري، که دي ته وګوري ! چې په نباتاتو کي څومره خواص او په کانونو معدنونو کي څومره مزایاوي شته؟! او دا چې انسان ته یې پدې هکله لارښوونه وکړه چې له نباتاتو څخه ګټوري دواګاني جوړي تیاري کړي او له معادنو څخه شوبلي، توپونه او الوتکي تیاري کړي نوتاته به د مقتدر ذات هغه چې د حکمت خاوندی حکمت وبرېښي هو که چېرته د دغه رب تقدیر او لارښوونه نه وای نو موږ به د څارویو په څېړ ناپوهي په تیاروکي او سېدلو. مفسرین کرام لیکي چې دلته یې مفعول ددې لپاره حذف کړی چې عموم افاده کړي یعني اندازه کړی یې دی دهر مخلوق او حیوان لپاره هغه څه چې دده لپاره پکي مصلحت وي او بیایې دګټې اخیستلو لاري چاري ورښودلي دي[۳] ﴿ وَٱلَّذِىٓ أَخْرَجَ ٱلْمَرْعَىٰ ﴾ او هغه (ذات) چې راایستلی یې دی تازه ګیاه له ځمکي نه (چې حیوانات یې خوري) ﴿ فَجَعَلَهُۥ غُثَآءً أَحْوَىٰ ﴾ پس وې ګرزوله هغه (شنه ګیاه) وچه توره (وروسته له هغه چې شنه زرغونه وه) او څرګنده ده چې زرغونه ګیاه کله چې وچه شي ګټوره ده ځکه چې د ډېرو حیواناتو لپاره په زړه پوري خوراک جوړوي (فسبحان من أحکم کل شئ وأعطی کل شئ خلقه ثم هدی) کله چې دالله رب العزت د قدرت او وحدانیت دلائل ذکرشو نو بیا په خپل استاذي

---

(۱) أخرجه أمام احمد عن ابن عباس
(۲) البحر المحیط ۸/ ۴۵۸
(۳) روح المعاني ۳۰/ ۱۰۴

باندي دفضل اولوريني يادونه كوي فرمايي ﴿ سَنُقۡرِئُكَ فَلَا تَنسَىٰٓ ﴾ ژردی چي وبه لولو موږ پرتا باندي (په
ژبه دجبريل قرآن ای محمده!) بيابه يې ته نه هېروې ﴿ إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُۚ ﴾ مګر هغه چي اراده وفرمايي الله
دهېرولويې له تانه په منسوخ کېدلو بېشکه هغه به بيرته هېرکړي، پدې آيت شريف کي درسول الله
صلی الله عليه وسلم معجزه شته څکه هغه خونه څه ليکلی اونه لوستلای شوای د(أمي) خطاب ورته
کېدوخوله دې سره سره چي کله به جبريل عليه السلام ورته وحی راوړه نه به يې هېرېدله اودغه سپېڅلی
کتاب يې بې له لوستلواوتکرارڅخه په يادوو اوهيڅکله به يې نه هېرېدلواودغه دهغه دنبوت په
رښتنولي ستردليل دی. ابن کثيروايي دادالله له لوري خبرتيااوپيغمبرعليه السلام ته زيرې دی چي په
هغه باندي به قرآن لولي اوهيڅکله به تري هېرنشي ([1]) ﴿ إِنَّهُۥ يَعۡلَمُ ٱلۡجَهۡرَ وَمَا يَخۡفَىٰ ﴾ (بېشکه دغه الله ته معلوم
دی ښکاره او هغه څه چي پټ دي) يعني الله جل جلاله په هغواقوالواوافعالوچي بندګان يې ترسره کوي
خبردارد ی اوله هغه څهٔ په ځمکه اوآسمان کي هيڅ شی هم پټ اوالونيانه دی ﴿ وَنُيَسِّرُكَ لِلۡيُسۡرَىٰ ﴾
اوآسانوودتاليپاره دشريعت آساني ، ياتاته دآسانه شريعت هغه چي ترګردوآسماني شرائعو نرم اوآسانه
دی دلاري موندلو توفيق اوبری درکووچي هغه داسلام شريعت دی ﴿ فَذَكِّرۡ إِن نَّفَعَتِ ٱلذِّكۡرَىٰ ﴾ (پس
ذکرپندورکړه ته ای محمده! پدې قرآن سره چېرته چي پندګټه رسوي لکه چي الله فرمايي ﴿ فَذَكِّرۡ
بِٱلۡقُرۡءَانِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ ﴾ (ق: ۴۵) ابن کثيرليکي: له دغه ځايه څخه دعلم دخپراوي ادب ترلاسه کېږي
چي نااهلوته دي ونه ويل شي لکه چي حضرت علي کرم الله وجهه وايي: هغه قوم ته چي عقول يې
ستاخبري نشي منلای خبري مکوه څکه دغه به ددوی ځينوکسانوليپاره فتنه شي بيا وايي خلګوته داسي
خبري کوئ چي ورباندي پوهېږي آياتاسوداخوښوی چي په الله تعالی او دهغه په پيغمبرعليه السلام دي
دروغ وويل شي؟ ﴿ سَيَذَّكَّرُ مَن يَخۡشَىٰ ﴾ ژردی چي پندبه واخلي هغه څوک چي له الله وېرېږي ﴿ وَيَتَجَنَّبُهَا
ٱلۡأَشۡقَى ﴾ او ځني ډډه کوي لوی بدبخت کافر(پندبه نه مني) ﴿ ٱلَّذِي يَصۡلَى ٱلنَّارَ ٱلۡكُبۡرَىٰ ﴾ هغه (لوی
بدبخت) چي ننوزي به اور لوی ته (ددوزخ په آخرت کي. ([2]) ﴿ ثُمَّ لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحۡيَىٰ ﴾ بيابه نه مري په هغه
(اور) کي (چي راحت ومومي) اونه به ښه ژوندي وي (چي راحت ولري) بلکه هغه به تل ترتله په عذاب کي
اخته وي ([3]) ﴿ قَدۡ أَفۡلَحَ مَن تَزَكَّىٰ ﴾ په تحقيق بری موندلی په مرادرسېدلي دي هغه څوک چي پاک شوي دي
(په ايمان سره له معاصيواوله الله سره يې په عمل کي اخلاص شته ﴿ وَذَكَرَ ٱسۡمَ رَبِّهِۦ فَصَلَّىٰ ﴾ اويادي يې کړنوم
درب (خپل په عظمت اوجلال سره) بيايې (دالله له امرسره سم په خشوع او تواضع سره) لمونځ وکړ (چي

---

([1]) البحر المحيط ۴۵۹/۸

([2]) البحر المحيط ۴۵۹/۸

([3]) طبري ليکي عرب هغه چاته چي په سخت مصيبت کي اخته شي داسي اصطلاح کاروي وايي چي هغه نه مردی اونه ژوندی ، الله جل جلاله هم ددوی له دودسره سمه ورسره مخاطبه وکړه.

داسلام نبښاني ده) ﴿ بَلْ تُؤْثِرُونَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا وَٱلْـَٔاخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰٓ ﴾ بلکه تاسي غوره کوی ژوندون ددنیا(په آخرت باندي) حال داچي آخرت تردنیاډېرښه غوره اوتل ترتله دی (څکه هغه ژوند تلپاتي اودنیافاني دی باقي اوتلپاي تل ترفاني اوتېرېدونکي غوره وي نوڅرنګه به هوښیارسړی فاني ترباقي غوره ګڼي اوڅرنګه به په دارالغرور اهتمام اودارالبقاء ته به شاکړي؟ ابن مسعودرضی الله عنه دغه آیت ولوست اوبیایې ملګروته وویل: آیاپوهېږئ چي موږولي دنیوي ژوند په أخروي باندي غوره کړی هغوی وویل: نه نویې وویل: داپدې چي دنیوي ژوندزموږ په مخ کي اود خوراک ،ښناک ،مېرمنو اولذتونوخاوندی اودآخرت ژوندله موږڅخه پټ اوله سترګوڅخه الونیااو پناه دی څکه موږ دغه (عاجل) دنیوي ژوندته په أخروي (آجل) باندي ترجیح ورکړي ده([1]) ﴿ إِنَّ هَٰذَا لَفِى ٱلصُّحُفِ ٱلْأُولَىٰ صُحُفِ إِبْرَٰهِيمَ وَمُوسَىٰ ﴾ بېشکه داخبري خامخاپه صحیفوړومبنیوکي دي چي صحیفې دابراهیم او(د) موسی دي یعني داهغه دادیانومتفقه پندونه دي کوم چي په آسماني کتابونوکي لیکل شوي لکه چي پدې کتاب کي دي

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډیزیې دادی:

۱- دطباق صنعت په ﴿ لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحْيَىٰ ﴾ اوهمدارنګه په ﴿ ٱلْجَهْرَ وَمَا يَخْفَىٰ ﴾ کي راغلی دی ۲- اشتقاقي جناس په دې کلام کي چي ﴿ وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرَىٰ ﴾ او ﴿ فَذَكِّرْ... ﴾ او ﴿ ٱلذِّكْرَىٰ ﴾ په کلماتوکي راغلی دی.

۳- دمقابلې صنعت لکه ﴿ سَيَذَّكَّرُ مَن يَخْشَىٰ ﴾ او ﴿ وَيَتَجَنَّبُهَا ٱلْأَشْقَى ﴾ په کلماتوکي راغلی دی.

۴- دمفعول حذف چي عموم افاده کړي لکه پدې کلام کي ﴿ خَلَقَ فَسَوَّىٰ ﴾ او ﴿ قَدَّرَ فَهَدَىٰ ﴾ چي مراد څني داچي پیدایې کړهرڅیزاوبیایې برابرکړاواندازه یې کړهرشی بیایې ورته لاره وښوده.

۵- بې تکلفه سجع چي په قرآنکریم کي ډېرڅایه راغلي ده لکه داچي ﴿ أَخْرَجَ ٱلْمَرْعَىٰ فَجَعَلَهُۥ غُثَآءً أَحْوَىٰ سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنسَىٰٓ ﴾ اوداسي نورچي داهم له بدیعي محسناتوڅخه ګڼل کېږي

تنبیه: دموسی علیه السلام صحیفې له تورات نه پرته نوري صحیفې وې اوداسي روایت شوی چي په موسی علیه السلام باندي لس صحیفې چي ټول پندونه وو راغلي دي. حضرت ابوذر رضی الله عنه وایې: ماله رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وپوښتل چي دموسی علیه السلام صحیفې څه وې؟ راته ویل یې: هغه ټول عبرتونه اوپندونه ووچي: تعجب کوم هغه چاته چي په مرګ باورلري بیاڅنګه خوشحالي کوي؟ تعجب کوم هغه چاته چي په اوریقین لري څنګه خاندي؟ تعجب کوم هغه چاته چي ددنیابدلون اوښتون یې لیدلی وي بیاهم بېغمه کېږي؟ تعجب کوم هغه چاته چي په تقدیرایمان لري بیاهم خوابدی کېږي؟ تعجب کوم هغه چاته چي په حساب ایمان لري اوبیاهم عمل نه کوي؟.

دالله جل جلاله په مرسته دالأعلی سورت دتفسیرژباړه بشپړه شوه.

---

([1]) خازن ۴/۲۳۶

## د (الغاشية) سورت مكي او شپږويشت آيتونه لري.

### د سورت په وړاندې:

الغاشية سورت مكي او دوه اساسي موضوع ګاني څيړي:

۱- د قيامت ورځ او دهغې ورځې سختي او كړاوونه همداراز هغه څه چي كافر او مسلمان به په هغه ورځ ورسره لا س او ګرېوان وي كافر به زحمتونه ګالي او مؤمن به نيكمرغي او نعمتونه بياموميږ.

۲ - د رب العالمين په وحدانيت دلائل او دهغه دقدرت مظاهر چي څرنګه عجيب مخلوقات يې پنځولي ، اوښ يې پيدا كړى، آسمان يې بې ستني درولى ، اوچت او دنګ غرونه يې پيدا كړي، مځكه يې غوړولې اوپه كړې ده چي داټول دالله جل جلاله په وحدانيت اوپه بې ساري جلال او سلطان ګواهي وركوي په پاى كي سورت خلګو ته دالله جل جلاله لوري ته د رجوع كولو يادونه كوي څو حساب ورسره وشي او جزاء وركړي

بِسْمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ هَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ ٱلْغَٰشِيَةِ ﴿١﴾ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَٰشِعَةٌ ﴿٢﴾ عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ ﴿٣﴾ تَصْلَىٰ نَارًا حَامِيَةً ﴿٤﴾ تُسْقَىٰ مِنْ عَيْنٍ ءَانِيَةٍ ﴿٥﴾ لَّيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ إِلَّا مِن ضَرِيعٍ ﴿٦﴾ لَّا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِي مِن جُوعٍ ﴿٧﴾ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ ﴿٨﴾ لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ ﴿٩﴾ فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴿١٠﴾ لَّا تَسْمَعُ فِيهَا لَٰغِيَةً ﴿١١﴾ فِيهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ ﴿١٢﴾ فِيهَا سُرُرٌ مَّرْفُوعَةٌ ﴿١٣﴾ وَأَكْوَابٌ مَّوْضُوعَةٌ ﴿١٤﴾ وَنَمَارِقُ مَصْفُوفَةٌ ﴿١٥﴾ وَزَرَابِيُّ مَبْثُوثَةٌ ﴿١٦﴾ أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى ٱلْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ ﴿١٧﴾ وَإِلَى ٱلسَّمَآءِ كَيْفَ رُفِعَتْ ﴿١٨﴾ وَإِلَى ٱلْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ ﴿١٩﴾ وَإِلَى ٱلْأَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ ﴿٢٠﴾ فَذَكِّرْ إِنَّمَآ أَنتَ مُذَكِّرٌ ﴿٢١﴾ لَّسْتَ عَلَيْهِم بِمُصَيْطِرٍ ﴿٢٢﴾ إِلَّا مَن تَوَلَّىٰ وَكَفَرَ ﴿٢٣﴾ فَيُعَذِّبُهُ ٱللَّهُ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَكْبَرَ ﴿٢٤﴾ إِنَّ إِلَيْنَآ إِيَابَهُمْ ﴿٢٥﴾ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُم ﴿٢٦﴾ ﴾ الغاشية: ۱ - ۲۶

### لغتونه:

(الغاشية) پټونكي قيامت ته ځكه پټونكى وايې چي خلګ پخپلو كړاوونو كي نغاړي (خاشعة) ذليل او خواري (ناصبة) له نصب څخه اخيستل شوى او ستړيا ستوماني ته وايې (ضريع) داورخوځان چي ترخه اوبدبويه وي (ناعمة) ښكلي تراو تازه (نمارق) بالښتونه او تكيې زهيروايې:

كهولا وشبانا حسانا وجوههم • على سرر مصفوفة ونمارق

زاره ځوانان به تراو تازه مخونه په كتار تختونو ناست او بالښتونو ته به يې تكيې لګولي وي (زرابي) فاخر فرشونه فراء وايې چي (زربية) هغه فرش ته وايې چي نرى بخمل پوښ ولري (مبثوثة) غوړول شوي (ايابهم) بيرته راتګ او رجوع ددوى.

تفسير:

﴿ هَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ ٱلْغَـٰشِيَةِ ﴾ آيا راغلی دی تاته (ای محمده !) خبر د پټونکي (د خلکو په سختيو خپلو سره چي قيامت دی. استفهام د خبري داوريدلو د تشويق لپاره دی چي د هغه د شان دلوړوالي په هکله تنبيه وکړي. مفسرين کرام وايي چي: غاشيه ځکه ونومول شوه چي خلک په سختيو کي نغاړي او په ګردوخلکو به چاپيروي اوربړونه زحمتونه به يي وربانددي هوا ربړي ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَـٰشِعَةٌ ﴾ (ځيني) مخونه به پدغه ورځ ذليل، سپک او ويريدونکي وي ﴿ عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ ﴾ تکليف ايستونکي رنځ رانيکونکي به وي (په اور د دوزخ کي. مفسرين کرام ليکي: چي دغه آيت د کفارو په هکله دی چي دوی به په دوزخ کي د ځنځيرانو او طوقونو په کشولو ستوماني ګالي او په اورکي به داسي ځنيږي بنوئيږي لکه چي اوښ په ختو کي او همدا رنګه داورپه لوړو ژورو به خيژي کوزيږي لکه چي الله تعالی فرمايي ﴿ إِذِ ٱلْأَغْلَـٰلُ فِىٓ أَعْنَـٰقِهِمْ وَٱلسَّلَـٰسِلُ يُسْحَبُونَ فِى ٱلْحَمِيمِ ثُمَّ فِى ٱلنَّارِ يُسْجَرُونَ ﴾ او دغه د دوی د هغه تکبر جزا دی چي دوی به په دنياکي د الله له عبادت څخه سرغړونه کوله او په لذتونو شهوتونو کي به غوپه وو ﴿ تَصْلَىٰ نَارًا حَامِيَةً ﴾ ننوزي به اور د ير ګرم ته .(ابن عباس رضی الله عنه وايي چي: داسي به سخت ګرم وي چي د الله په دښمنانو به يي لمبي خيژي(١) ﴿ تُسْقَىٰ مِنْ عَيْنٍ ءَانِيَةٍ ﴾ ورڅښل کيږي به له چيني د ير ګرمي څخه (چي ګرمي به يي خپل وروستي سرحد ته رسيدلي او ايشيدلي به وي) ﴿ لَّيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ إِلَّا مِن ضَرِيعٍ ﴾ نه به وي دوی ته خواړه مګر له أغزي لرونکي ترخي وني څخه (هغه چي قريش ورته (شبرق) وايي هغه ډير بد خوراک او وژونکي زهر دي. قتاده وايي چي: دا ډير ناوړه طعام او ناکاره خوراک دی(٢) د لته الله تعالی ددي يادونه وکړه چي د دوی خواړه به له (ضريع) نه پرته بل څه نه وي خو په الحاقة سورت کي الله فرمايلي چي:

﴿ وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ ﴾ پدي دواړو کي مخالفت او منافات نشته ځکه عذاب خو ډول ډول وي او همدا راز د تعذيب وړکسان هم ډول ډول وي د ځينو خوراک به زقوم وي ، د ځينو نورو به ضريع وي او بيا د ځينو نورو به غسلين خواړه وي همداسي به د دوی د ډلو په څير عذاب هم ډول ډول وي ﴿ لَّا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِى مِن جُوعٍ ﴾ نه به څربوي (دغه بدن) او نه به ليري کوي هيڅ لوږه (د دوزخي نه) ابو السعود ليکي: معنادا چي له دغه خوړلو څخه چاغښت نه پيدا کيږي او مړښت نه راولي لکه د دنيا خواړه او داسي روايت هم راغلی دی چي پر دوی به سخته لوږه مسلطه شي ترڅو يي (ضريع) خوړلو ته اړباسي او چي کله ضريع وخوري نو به يي سخت تږی کړي او بيا به يي د حميم څښلو ته مجبور کاندي چي هغه يي کولمي وريت

(١) خازن تفسير ۴/ ۲۳۷
(٢) مختصر ابن کثير ۳/ ۲۳۲

اوړوته کړي(۱)لکه چي الله فرمايي ﴿ وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ ﴾ کله چي الله تعالی د بدبختانو حال بيان کړيايي دنېکمرغه کسانوچي جنتيان دی دهغوپه باب داسي يادونه وکړه ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ ﴾ (ځيني) مخونه به پدغي ورځي کي ښايسته اوتازه وي (چي هغه دمؤمنانومخونه دي لکه چي بل ځای الله فرمايي ﴿ تَعْرِفُ فِي وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ النَّعِيمِ ﴾ (المطففين۲۴) ﴿ لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ ﴾ پخپل زيارباندي به راضي اوخوشحاله وي (ځکه دوی خپل عمل دغه فردوس ته چي دمتقيانوځای دی راوستلي دي ﴿ فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴾ په جنت لوړاوچت شانداره کي به وي ﴿ وَهُمْ فِي الْغُرُفَاتِ آمِنُونَ ﴾ بيافرمايي ﴿ لَّا تَسْمَعُ فِيهَا لَاغِيَةً ﴾ نه به اوري په هغه جنت کي کومه چتي بېکاره خبره(ښکنځل) اوفحش ابن عباس رضی الله عنهماوايي چي چتي اوځورونکي خبري به نه وي(۲) ﴿ فِيهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ ﴾ په دغه جنت کي چينه ده جاري بهېدونکي (چي سلسبيل اوبه تل ترتله پکي بهېږي هيڅکله هم نه وچېږي. زمخشري ليکي چي تنوين په (عينٌ) کلمه کي دتکثيرلپاره دی معنادا چي ډېري چيني دي تل بهېږي(۳) ﴿ فِيهَا سُرُرٌ مَّرْفُوعَةٌ ﴾ پدغه جنت کي دي تختونه لوړ اوچت عالي شانه (لپاره ستاسي جنتيانومکلل په زبرجدواوياقوتوچي حور العين به ورباندي ناستي وي کله چي دالله وليان وغواړي چي پردې لوړوتختونوکښېني هغه تختونه به ورته راښکته شي(۴) ﴿ وَأَكْوَابٌ مَّوْضُوعَةٌ ﴾ اوجامونه ايښودلی شوي دي (په اندازه دڅښونکوخپلوپه څنډودچينوډک چمتوچي دچاډکولوته يې ضرورت نه وي ﴿ وَنَمَارِقُ مَصْفُوفَةٌ ﴾ اوبالښتونه ايښودل شوي څنګ په څنګ (جنتيانوته ترڅوورباندي تکيې ولګول شي ﴿ وَزَرَابِيُّ مَبْثُوثَةٌ ﴾ او(په دغه جنت کي دي) فرشونه فاخره غوړول شوي (چي نرم ورېښم بخمل درباندي وي.، وروسته الله جل جلاله پخپل قدرت او وحدانيت باندي دلائل راوړي فرمايي ﴿ أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ ﴾ (آياپس نه ګوري (منکران په کتلودعبرت سره)اوښ ته چي څرنګه پيداکړی شوی دی)يعني آيادغه کسان دعبرت اوپند اخيستلوپه نظرسره اوښانوته نه ګوري چي الله په څرنګه عجيبه اونادرپيد ايښت سره پيدا کړی؟ چي دخپل خالق په قدرت دلالت کوي؟ په التسهيل کي ليکي چي په آيت شريف کي داوښ دخلقت په هکله دکتلو هڅونه شته ځکه هغه دعجائباتوڅولګه ده هغه خوراد قوت خاوندی خوله دې سره سره بيا ښخي دهر ضعيف لپاره منونکی اوغاړه ايښودونکی دی، هغه په تنده کي زيات زغم لرونکی دی او زښته زياتي ګټي پکي شته چي سورلی، بارول، دغوښي خوړل يې اودشيد وڅښل يې ځيني له هغو ګټوڅخه ګڼلای شو(۵)

---

(۱) ابوالسعودتفسير ۵/۲۵۹

(۲) دطبري تفسير ۳۰/۱۰۴

(۳) روح المعاني

(۴) مختصرابن کثير ۳/۲۳۳

(۵) التسهيل ۴/۱۹۲ - الله تعالی اوښ په نوروحيواناتوکي ځکه ځانګړی يادکړچي هغه دعربوترګردوڅارويوغوره او ورته ډېره ګټه رسوونکی دی ځکه دوی ورته دبېدياکښتی. يابېړی، وايي دهغه خلقت ته وګوره څومره قوي اوبياڅومره فرمان=

﴿ وَإِلَى ٱلسَّمَآءِ كَيۡفَ رُفِعَتۡ ﴾ او(آیا نه ګوري منکران ) آسمان ته چي څرنګه بلند او چت کړی شوی دی (بې له ستنو څخه) ﴿ وَإِلَى ٱلۡجِبَالِ كَيۡفَ نُصِبَتۡ ﴾ او آیا نه ګوري غرونو ته چي څرنګه درولی شوي دي؟(څومره لوړ او بیا په ځمکه څومره محکم سخت درول شوي چي هیڅ نه خوځېږي؟ ﴿ وَإِلَى ٱلۡأَرۡضِ كَيۡفَ سُطِحَتۡ ﴾ او آیا نه ګوري منکران) ځمکي ته چي څرنګه غوړولي شوي ده؟)یعني آیا دوی هغې ځمکي ته چي وربانديي هستوګنه لري نه ګوري چي څرنګه ویره پراخه غوړول شوي چي دوی ورباندي اوسي او کښتونه،فصلونه ورباندي کري؟ الوسي لیکي چي دغه وینا د ځمکي د ګرویت سره هیڅ منافات نلري ځکه چي ځمکه خورا لویه ده (۱) دالله جل جلاله حکمت د دغو شیانو په ذکر کولو کي دادی چي قرآن کریم په عربو را نازل شوی هغوی به په دښتو ، بېدیاوو کي مسافرتونه کول له خلګو به ګوښي او تنها وو او کله چي انسان یوازي وي نو فکر او سوچ کوي نو د دوی به لومړی نظر په اوښ لګېدلو هغه چي ورباندي به سپاره وو نو یو عجیب منظر به یې لیدو او که به یې لوړ و کتل له آسمانه پر ته بل څه به یې نه لیدل ،ښي او کیڼ اړخ ته به یې و کتل غرونه به په نظرور غلل او چي ښکته به یې و کتل له ځمکي بغیر بل څه به یې نه لیدل ځکه د دغو څیزونو یادونه وشوه. ابن کثیر لیکي : الله تعالی کوچیانو پوند ګانو ته په هغه څه استدلال ورکړ کوم چي هغه یې ګوري وینې ، اوښ هغه چي دی ورباندي سپوروي ، آسمان هغه چي دده په سروي ، غر هغه چي ورته مخامخ وي ، ځمکه هغه چي تر ده دلاندي وي دغه څیزونه یې دده شیانو د خالق دقدرت په هکله ورته وړاندي کړل چي هغه ستر خالق ،مالک ، او متصرف دی هغه ذات چي له ده پر ته بل څوک د عبادت وړ او لائق نشته (۲) کله چي الله تبارک وتعالی د توحید دلائل بیان کړل او کفارو پدې باندي عبرت نه واخیست نو الله جل جلاله خپل ګران پیغمبر ته حکم وکړ تر څو دوی ته وعظ او نصیحت وکړي ورته وېې فرمایل ﴿ فَذَكِّرۡ إِنَّمَآ أَنتَ مُذَكِّرٞ ﴾ (نو ته یې د پوهولو(پندورکړه دوی ته ای محمده !) بېشکه همدا ته پندورکونکی یې) یعني ته دوی وو پوه دد پروامکوه چي دوی ولي نه ګوري او فکر نه کوي؟ بېشکه ته لار ښود او پندورکونکی یې ﴿ لَّسۡتَ عَلَيۡهِم بِمُصَيۡطِرٍ ﴾ نه یې ته پر دوی باندي مسلط کړی شوی (چي په زور یې مسلمانان کړي) ﴿ إِلَّا مَن تَوَلَّىٰ وَكَفَرَ ﴾ مګر هغه څوک چي وګرځېدو له ایمانه او کافر شو(په لوی او مقتدر الله یې ایمان نه راووړ) ﴿ فَيُعَذِّبُهُ ٱللَّهُ ٱلۡعَذَابَ ٱلۡأَكۡبَرَ ﴾ نو په عذاب به کړي دی الله جل جلاله په عذاب لوی (د دوزخ په قیامت کي) قرطبي وایې چي عذاب اکبر یې ونوماوو ځکه دوی په دنیا کي په

---

= منونکی دی چي یو ماشوم یې هم بېولای شي ، کله چي ورباندي پېټی باروي نو هغه چو ،خې او کېني ترڅو ورباندي بار کېږدي بیا ولاړېږي او دومره بار په اوږه وړي چي یوه ډله خلګ یې وړلای نشي بیا په لوږه او تنده کي دومره تحمل لري چي خوور خې صبر کولای شي ،لیري واټنونه او مسافې وهلای شي په صحراکي ټول نباتات دهغه غذادي او دغسي نور دخلقت او تکوین عجائبات پکي شته ،فسبحان الله الحکیم العلیم

(۱) زموږ د علماوو دا ثابته کړي چي ځمکه کروي الشکله ده هغوی لکه امام فخر رازي ، ابو السعود ،الوسي او نور وایې چي دغه غوړېدل او تسطیح یې د ځمکي دلویوالي له سببه دی او یادا چي کتونکي ته دغسي ایسي ، په قرآنکریم کي داسي څه نشته چي له علمي حقائقو سره دي په ټکر او مخالفت کي وي، دغه وینا په سورة لقمان کي هم څېړل شوي ده

(۲) مختصر ابن کثیر ۳ /۲۳۴

لوږه تنده، کاختي وژلواوبندي کېدلو هم معذب شوي وو(۱) ﴿ إِنَّ إِلَيْنَآ إِيَابَهُمْ ﴾ بېشکه خاص موږته دی بیرته راتګ ددوی (په قیامت کي وروسته له مرګه) ﴿ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُم ﴾ بیابېشکه زموږپه غاړه دی حساب ددوی (نوله اعمالو سره سم به جزاورکړو).

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱- دتشویق اسلوب لکه ﴿ هَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ ٱلْغَـٰشِيَةِ ﴾.

۲- مرسل مجازچي جزء ذکرشوی اومراد ځني کل دی لکه ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَـٰشِعَةٌ ﴾.

۳- په حروفواوتوروکي دطباق صنعت لکه ﴿ إِنَّ إِلَيْنَآ إِيَابَهُمْ ... إِنَّ عَلَيْنَا حِسَابَهُم ﴾.

۴- اشتقاقي جناس لکه ﴿ فَذَكِّرْ .... مُذَكِّرٌ ﴾ او د ﴿ فَيُعَذِّبُهُ .... ٱلْعَذَابَ ﴾ ترمينځ

۵- مقابله چي دابرارواوفجارو ترمينځ راغلی دی لکه ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ ﴾ چي ددوی اودپخوانيو ترمينځ دمقابلې صنعت شته ښکه هلته فرمايي وو ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَـٰشِعَةٌ ﴾ ۶- مرصع سجع چي بې تکلفه اوروانه وي لکه ﴿ لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ فِى جَنَّةٍ عَالِيَةٍ لَّا تَسْمَعُ فِيهَا لَـٰغِيَةً ﴾.

تنبیه:

وايي چي عمربن خطاب رضی الله عنه کله چي شام ته ولاړ هلته هغه ته يونصراني تورعالم چي لوی شيخ وو راغی. نوعمر رضی الله عنه يې په ليدلو وژړېدو چاورته وويل: ای اميرالمؤمنينه دژړېدو سبب دي څه دی؟ داخويونصراني دی نوهغه رضی الله عنه وويل چي: ماته دالله عزوجل هغه وينا رایاده شوه چي هغه فرمايي: ﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَـٰشِعَةٌ عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ تَصْلَىٰ نَارًا حَامِيَةً ﴾ نوماد ده سوي لپاره ورباندي وژړل(۲).

دالله جل جلاله په مرسته دالغاشية سورت تفسيرژباړه بشپړه شوه.

***

(۱) قرطبي ۱۹/۳۷

(۲) مختصرابن کثيررحمه الله ۳/۲۳۲

## دالفجر سورت مکي او دېرش آيتونه لري

### دسورت په وړاندې:

الفجر سورت مکي او له دریو مهمو شیزونو څخه غږیږي:

۱ - دځيني دروغجن ګنونکو قومونو کیسې بیانوي کوم چې دالله دا ستازيو تکذيب يې کاوو هغوی لکه عاديان، ثموديان او دفرعون قومونه وو چې بياورباندې دالله جل جلاله عذاب نازل شونو فرمايي ﴿ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ ۝ إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ ﴾ دآيتونو ترپايه پورې

۲ - دالله جل جلاله هغه سنت چې دبندګانو په ازمويلو کې لري خير، شر، بدايي، نېستي او داچې انسان دمال پيدا کولو او راټولولو سره پرېمانه مينه لري بيانوي او داسې ارشاد کوي: ﴿ فَأَمَّا الْإِنسَانُ إِذَا مَا ابْتَلَاهُ رَبُّهُ ﴾ دآيتونو ترپايه

۳ - دآخرت ورځ او دهغې کړاوونه او داچې خلګ به په دوو ډلو ويشل کېږي نېکمرغه کسان او بدمرغه انسانان دبدبختانو او اشرارو هستوګنځی او دنېکمرغه او غوره نفسونو دخاوندانو هستوګنځی په ګوته کوي فرمايي ﴿ كَلَّا إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا ۝۲۱ وَجَاءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا ۝۲۲ وَجِيءَ يَوْمَئِذٍ بِجَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ وَأَنَّىٰ لَهُ الذِّكْرَىٰ ﴾ دسورت ترپايه

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ وَالْفَجْرِ ۝۱ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝۲ وَالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ ۝۳ وَاللَّيْلِ إِذَا يَسْرِ ۝۴ هَلْ فِي ذَٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِي حِجْرٍ ۝۵ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ
فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ ۝۶ إِرَمَ ذَاتِ الْعِمَادِ ۝۷ الَّتِي لَمْ يُخْلَقْ مِثْلُهَا فِي الْبِلَادِ ۝۸ وَثَمُودَ الَّذِينَ جَابُوا الصَّخْرَ بِالْوَادِ ۝۹ وَفِرْعَوْنَ
ذِي الْأَوْتَادِ ۝۱۰ الَّذِينَ طَغَوْا فِي الْبِلَادِ ۝۱۱ فَأَكْثَرُوا فِيهَا الْفَسَادَ ۝۱۲ فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ ۝۱۳ إِنَّ رَبَّكَ
لَبِالْمِرْصَادِ ۝۱۴ فَأَمَّا الْإِنسَانُ إِذَا مَا ابْتَلَاهُ رَبُّهُ فَأَكْرَمَهُ وَنَعَّمَهُ فَيَقُولُ رَبِّي أَكْرَمَنِ ۝۱۵ وَأَمَّا إِذَا مَا ابْتَلَاهُ فَقَدَرَ عَلَيْهِ رِزْقَهُ
فَيَقُولُ رَبِّي أَهَانَنِ ۝۱۶ كَلَّا بَل لَّا تُكْرِمُونَ الْيَتِيمَ ۝۱۷ وَلَا تَحَاضُّونَ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ ۝۱۸ وَتَأْكُلُونَ
التُّرَاثَ أَكْلًا لَّمًّا ۝۱۹ وَتُحِبُّونَ الْمَالَ حُبًّا جَمًّا ۝۲۰ كَلَّا إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا ۝۲۱ وَجَاءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ
صَفًّا صَفًّا ۝۲۲ وَجِيءَ يَوْمَئِذٍ بِجَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ وَأَنَّىٰ لَهُ الذِّكْرَىٰ ۝۲۳ يَقُولُ يَا لَيْتَنِي قَدَّمْتُ لِحَيَاتِي ۝۲۴
فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُعَذِّبُ عَذَابَهُ أَحَدٌ ۝۲۵ وَلَا يُوثِقُ وَثَاقَهُ أَحَدٌ ۝۲۶ يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ۝۲۷ ارْجِعِي إِلَىٰ رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً ۝۲۸
فَادْخُلِي فِي عِبَادِي ۝۲۹ وَادْخُلِي جَنَّتِي ۝۳۰ ﴾ الفجر: ۱ ـ ۳۰

## لغتونه:

(حجر) عقل ته وايي فراء پدې هکله ليکي چي عرب يوچاته وايي چي (انه ذوحجر) يعني هغه په واک کي سړی دی خپل خان بې په قبضه کي دی اوحجرپه اصل کي منع ته ويل کېږي عقل ته ځکه حجر وايي چي هغه هم له سفاهت څخه خپل خاوندمنع کوي (جابوا) غوڅي کړي يې وې لکه چي ويل کېږي فلانی سړی (يجوب البلاد) يعني ښارونه اوځمکه پرې کوي (تراث) ميراث (لما) شديداوسخت او راټولولوجمع کولوته وايي لکه چي ويل کېږي (لم الله شمله) الله جل جلاله دهغه تيت اوپرک راټول کړل (جما) ډېرلوی اوسترلکه چي شاعروايي: ان تغفر اللهم تغفرجما، وأی عبدلک لا ألما) يعني ای الله چي ببښندکوې ستره ببښنه کوې ستابه کوم بنده وي چي ګناه يې نه وي کړي؟

## تفسير:

﴿وَالْفَجْرِ وَلَيَالٍ عَشْرٍ﴾ (قسم دی په سبااوشپولسوباندي) دالوړه ده يعني زه قسم کوم دسهارپه روښنايي کله چي دشپې تاريکي شړي اوپه لسومبارکوشپوچي دذی الحجې له لومړی څخه پيل کېږي ځکه داشپې د حج اوسپېڅلواعمالولپاره دي (۱) مفسرين کرام ليکي داچي الله تعالی په سهار باندي لوړه وکړه ځکه چي پدې وخت کي زړه دالله جل جلاله په حضورکي ډېرخاشع وي ا وبل په لسو سپېڅلوشپوچي هغه د لوی اخترمياشتي لومړی لس شپې دي ځکه دغه دګردکال غوره اوبهتره دي لکه چي په صحيح البخاري کي راغلي چي: (مامن أيام العمل الصالح أحب الی الله من هذه الايام) يعني عشرذی الحجة.. ) الحديث يعني تردې (دذی الحجې لومړني لس شپې) زيات غوره دنيک عمل شپې ورځي الله ته نوري نشته اصحابانورضوان الله عليهم ورته وويل ايانه هم جهادفي سبيل الله؟ رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چي نه هم جهادفي سبيل الله مګرهغه څوک چي په خپل مال اونفس جهادته ووزي اودواړه دالله جل جلاله په لارکي خارکړي اوهيڅ يوبې ونه ژغورل شي ﴿وَالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ﴾ (اوپه جفت باندي (قسم دی) اوپه طاق باندي) يعني په جفت اوطاق دهرشي لکه چي الله په هرڅيزباندي قسم اخيستی دی ځکه ګردشيان خويا جفت وي اويا هم طاق اويا دغه قسم په خالق اومخلوق باندي دی ځکه چي الله واحد (وتر) طاق دی اومخلوقات نارينه اوښځينه يعني جفت دي (۲) ﴿وَاللَّيْلِ إِذَا يَسْرِ﴾ (اوپه

---

(۱) دغه دجمهوروعلماوو وينا ده اوله ابن عباس رضی الله عنه څخه يې روايت کړی شوی دی چابياويلي چي دغه درمضان المبارک وروستی لس شپې دي ځکه چي دقدرشپه په هغو کي پټه ده اودغه هم له ابن عباس رضی الله عنه څخه بل روايت دی خولومړنی أرجح دی.

(۲) دغه وينا له مجاهداوابن عباس رضی الله عنه څخه روايت شوي اوله ابن عباس څخه داسي روايت هم راغلی چي مرادله (شفع) څخه دنحر ورځ ده ځکه چي لسم دی او (وتر) دعرفات ورځ ده ځکه چي نهم راځي اوپدې هکله نوري هم ډېري ويناوي شته

شپه باندي کله چي راځي (توره تیاره کېږي) یعني قسم کوم په شپه چي د کائناتو په عجیبه حرکت سره رادرومي او داچي په راتګ یې وستایله ځکه چي په راتلوبې دالله جل جلاله د بشپړ قدرت اوستر نعمت دلیل په سترګو کېږي ﴿ هَلۡ فِي ذَٰلِكَ قَسَمٞ لِّذِي حِجۡرٍ ﴾ آیا شته په دې قسمونو کي لوی قسم قانع کونکی پوره خاوند د عقل ته ؟ استفهام تقریري دی چي د مقسم به عظمت او ستر توب څرګندوي لکه چي وایې دغه لوی قسم دی د عقلونو خاوندانو لره او څوک چي د عقل او پوهي خاوندوي هغه ته معلومېږي چي پدې کوموشیانو چي الله لوړه اخیستي پدې کي دالله د قدرت عجائب او په توحید باندي دلائل شته نو دغه حق خبره ده چي ور باندي لوړه وکړی شي ځکه دغه شیان په ستر پیدا کونکي الله جل جلاله دلالت کوي قرطبي لیکي : کله کله الله جل جلاله پخپلو اسماوو او صفاتو د هغه د علم له مخي قسم کوي او کله په افعالو د هغه د قدرت له مخي قسم اخلي لکه چي فرمایې ﴿ وَمَا خَلَقَ ٱلذَّكَرَ وَٱلۡأُنثَىٰٓ ﴾ (اللیل:۳) او پخپلو تر سره کړو چارو چي د صنعت عجائب دي لوړه کوي لکه چي ارشاد کوي : ﴿ وَٱلشَّمۡسِ وَضُحَىٰهَا ..... وَٱلسَّمَآءِ وَٱلطَّارِقِ ..... وَٱلۡفَجۡرِ وَلَيَالٍ عَشۡرٖ ﴾ (۱) د قسم ځواب محذوف دی تقدیریې داچي قسم په پالونکي ددې ځیزونو چي کفار به معذب کړی شي او پدې ځواب باندي داوینا دلالت کوي چي ﴿ أَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ ﴾ آیا نه وینې نه یې خبرته (ای محمده!) چي څه کړی دي رب ستا د عادیانو سره؟ چي هغوی قوم د هود علیه السلام وو) ﴿ إِرَمَ ذَاتِ ٱلۡعِمَادِ ﴾ چي ارم وو خاوندان د قوت قامتونو لویو (یا خاوندان د لویو ستنو وو) هغوی چي لوړي ماڼۍ یې درلودې او په احقاف کي د حضرموت او عمان تر مینځ اوسېدل ﴿ ٱلَّتِي لَمۡ يُخۡلَقۡ مِثۡلُهَا فِي ٱلۡبِلَٰدِ ﴾ هسي (قبیله) چي نه وه پیدا کړی شوي په مثل د هغې (په قوت قدرت کي) په ټولو ښارونو کي) یعني د دوی د لویو بدنونو او قوت په شان هیڅوک هم نه وو له دې څخه مقصد د مکې د خلکو ورول دي چي څرنګه الله جل جلاله عادیان هلاک کړل سره له دې چي اوږده عمرونه یې لرل او د مکې تر کفارو ډېر غښتلي هم وو. ابن کثیر لیکي : دغه عاد اولی قبیله وه هغه چي الله تعالی هود علیه السلام ورته رااستولی وو او دوی ور څخه سر غړونه وکړه هغه یې دروغ وګڼه او نافرماني یې څرګنده کړه دوی زیات کبرجن سرکښه او دالله له طاعت څخه وتلي د پیغمبرانو تکذیب کونکي وو نو الله د دوی یادونه وکړه چي څرنګه یې هلاک کړل ؟ د دوی هلاکت یې د راتلونکي نسلونو لپاره عبرت ګرزولی دی (۲) ﴿ وَثَمُودَ ٱلَّذِينَ جَابُواْ ٱلصَّخۡرَ بِٱلۡوَادِ ﴾ (او څه کړي وو رب د تا له) ثمودیانو هغو سره چي کنستلي غوځي کړي یې وې لویې تېږې په کنده کي (چي وادی القری بلل کېده) ﴿ وَكَانُواْ يَنۡحِتُونَ مِنَ ٱلۡجِبَالِ بُيُوتًا ءَامِنِينَ ﴾ ددوی هستوګنځي د ریاض او تبوک تر مینځ غرو او ډبرو کي وو. مفسرین کرام لیکي چي لومړني هغه خلګ چي پرېښي او تیږي یې توږلې د ثمودیانو قبیله (توکم) وو؛ دوی داسي پیاوړي، غښتلي او مېړني وو چي لویې

---

(۱) قرطبي تفسیر ۱۹/ ۴۱
(۲) ابن کثیر مختصر ۳/ ۲۳۶

تیږي به یې راایستلې غرونه یې سوري کول او سکښتل چې د ځانونو لپاره به یې مضبوطې او محفوظې ماڼۍ پکې جوړولې دوی یو زراوه سوه ښارونه ټول په تیږوپه وادی القری کې جوړکړي وو(۱) ﴿وَفِرْعَوْنَ ذِى ٱلْأَوْتَادِ﴾ (اوڅه کړي وورب دتاله) فرعون چې خاوندد (ډېرو لښکرواویا) میخونووو؛ (هغه چې دده پاچهي یې ټینګوله ابو السعود لیکي: الله تعالی دفرعون صفت په (ذی الاوتاد) وکړځکه چې زیات شمېر لښکري یې درلودې او زیاتې خېمې اوکیږدۍ به یې درولې چې میخونو ته به یې اړتیاوه اویادا چې فرعون به مسلمانانو ته په میخونو ټکوهلو سره عذاب ورکاوو (۲).

﴿ٱلَّذِينَ طَغَوْا فِى ٱلْبِلَـٰدِ﴾ (هسې (سرې وودوی ټول) چې سرکشي یې کړې وه په ښارونوکې) یعني دغه عاد، ثمود او فرعون چې دالله له امرڅخه یې سرغړونه کړې او ظلم طغیان یې غوره کړی وو ﴿فَأَكْثَرُوا۟ فِيهَا ٱلْفَسَادَ﴾ بیایې ډېرکړی ووپه هغوښارونوکې فسادوراني (ظلم، قتل او نورګناهونه) ﴿فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ﴾ (نونازله کړه پردوی باندې رب ستاقمچینه دعذاب) یعني ډول ډول عذابونه یې ورباندې واورول اوداټول ددوی د سرغړونې اوګناهونولامل وو مفسرین کرام لیکي: دا چې الله دعذابونودراتلوپه هکله (صبّ) لفظ استعمال کړترڅودغه په نزول کې سرعت بیان کړي لکه چې شاعروایي: (صببنا علیهم ظالمین سیاطنا) یعني په دوی ظالمانوموخپلې قمچینې واورولې، نازلې کړې، مقصد دا چې الله جل جلاله په هره ډله یو ډول عذاب نازل کړ عادیې په باد، ثمود یې په سخته چیغه، فرعون یې په ډوبېدلو او غرقېدلو هلاک کړ ﴿فَكُلًّا أَخَذْنَا بِذَنۢبِهِۦ ۖ فَمِنْهُم مَّنْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا وَمِنْهُم مَّنْ أَخَذَتْهُ ٱلصَّيْحَةُ وَمِنْهُم مَّنْ خَسَفْنَا بِهِ ٱلْأَرْضَ وَمِنْهُم مَّنْ أَغْرَقْنَا﴾ (العنکبوت ۴۰) (۳) ﴿إِنَّ رَبَّكَ لَبِٱلْمِرْصَادِ﴾ (بېشکه رب ستاپه ځای دانتظار کې دی) یعني الله جل جلاله یې عملونه څاري او په هغو جزاء او سزاورکوي. په التسهیل کې لیکي چې مرصاد هغه ځای ته ویل کېږي چې پکې څارنه کاوه شي او مراددادی چې الله تعالی دهرانسان څارونکی دي له هغه جل جلاله څخه هیڅ سرغړونکی کافر خلاصېدلای نشي او پدې کې قریشي کفاروته تهدید دی (۴) کله چې الله تعالی هغه عذابونه یادکړل چې په سرکښانو کفارونازل شوی وونود کافرانسان طبیعت یې هم بیان کړ هغه چې دآسانۍ او سوکالۍ په وخت کې کبراوغرور کوي اوکله چې تکلیف ورته ورسېږي نوماَیوس اوناهیلی شي فرمایي ﴿فَأَمَّا ٱلْإِنسَـٰنُ إِذَا مَا ٱبْتَلَىٰهُ رَبُّهُۥ﴾ پس هرانسان بنیادم چې کله وازمویو رب دده (په راحت سره یې امتحان کړی)؛ ﴿فَأَكْرَمَهُۥ وَنَعَّمَهُۥ﴾ پس عزت یې ورکړده ته اونعمت یې ورکړده ته (اوپه دنیاکې یې په زامنو، رتبې او حکم

(۱) روح المعاني ۳۰/ ۱۳۲
(۲) ابو السعود تفسیر ۵/ ۳۷۲
(۳) حاشیة الصاوي علی الجلالین
(۴) التسهیل لعلوم التنزیل ۴/ ۱۷۹

سره ونازاوو ) ﴿ فَيَقُولُ رَبِّيٓ أَكۡرَمَنِ ﴾ نو وايي رب زما عزت راکړ ماته (یعني هغه څه يې راکړل چي زه يې وړ او مستحق يم خو په دې نه پوهېږي چي دغه يوازمويښت دی چي د کفران او شکران امتحان يې اخلي ﴿ وَأَمَّآ إِذَا مَا ٱبۡتَلَىٰهُ فَقَدَرَ عَلَيۡهِ رِزۡقَهُۥ ﴾ او کله چي الله وازمويې دی (په زحمت سره) پس تنگه يې کړه پرده باندې روزي دده (مسکين او فقير يې کړ) ﴿ فَيَقُولُ رَبِّيٓ أَهَٰنَنِ ﴾ نو وايي زما رب زه سپک کړم (هغه دالله حکمت څخه غافل دی چي دغه دالله يوازمويښت دی چي زما روزي يې تنگه کړه قرطبي ليکي چي دغه دکافرانسان صفت دی هغه چي په قيامت اوبيرته راپاڅېدلو ايمان نلري دهغه په آند او فکر سپکتيا د روزي په تنگسيا او عزت د روزي په پراختيا کی دی مگر کرامت او عزت هغه دی چي الله ورته د طاعت توفيق ور کړی وي هغه چي د آخرت توښه جوړوي او کله چي الله پراخه روزي ورکړي نو د الله حمد او ستاينه کوي شکريې پرځای راوړي. هو الله چي د انسان دا دواړه خبري چي (اکرمن) او (أهانن) دی بدي وگڼلې دا پدې چي لومړۍ خبره يې دکبر، غرور، فخراوويا ړله مخي وکړه نه د شکر پر ځای کولو لپاره همداسي دوهمه يې بيادشکايت او بې صبري په توگه وکړه پده باندي لازم خودا وو چي په پراخ رزق او روزي يې شکرايستلی وای او په محنت او سختي يې صبر او زغم د رلودلای وای څکه نو الله جل جلاله هغه ترټي او فرمايي ﴿ كَلَّاۖ بَل لَّا تُكۡرِمُونَ ٱلۡيَتِيمَ ﴾ داسي دي نه وايي بلکه تاسي اکرام احسان د پلار مړي يتيم نه کوی) يعني اکرام په غنا او اهانت په فقر سره نه دي لکه چي تاسو فکر کوی بلکه عزت او سپکتيا د الله په طاعت او معصيت کي ده خو تاسو نه پوهېږی سره له دی تاسو ته چي الله تعالی مال دولت هم درکړي د يتيم اکرام نه کوی ﴿ وَلَا تَحَٰٓضُّونَ عَلَىٰ طَعَامِ ٱلۡمِسۡكِينِ ﴾ او نه تېزوی تاسي يو بل په خواړه ورکولو محتاجانو ته ﴿ وَتَأۡكُلُونَ ٱلتُّرَاثَ أَكۡلٗا لَّمّٗا ﴾ او خورئ تاسي مال د ميراث په خوړلو د بروسره (ددې پوښتنه نه کوی چي دار وادي او که ناروا؟ په التسهيل کي ليکي معنادا چي تاسي په ميراث کي خپله او دبل ونډه دواړه واخلئ؟ عربانو به ښځو او کوچنيانو ته ميراث نه ورکاوو بلکه يوازي نارينه وو به ميراث ترلاسه کاوو[1]) ﴿ وَتُحِبُّونَ ٱلۡمَالَ حُبّٗا جَمّٗا ﴾ او مينه کوی تاسي له مال سره په مينې د بري سره (يعني حرص لری دا ددوی بدوالي بيانوي چي دوی په مال راغونډولو او ټولولو کي خوراډېر حريصان وو او په لگولو او نفقه کولو خرڅولو کي يې زيات بخيلان وو ﴿ كَلَّآۖ إِذَا دُكَّتِ ٱلۡأَرۡضُ دَكّٗا دَكّٗا ﴾ نه ده داسي او مکوئ (داسي بدکارونه) کله چي وټکوله ماته شي ځمکه په ټکولو ماتولو سخت و سره (کلا) دردع توری دی يعني داسي مکوئ ستاسي په وړاندي سخته ورځ او ډېر کړاو ونه شته دا به هغه وخت وي کله چي ځمکه ولړزېږي او په پرله پسې توگه سره وخوځېږي د جلالين شريف مؤلف ليکي: معنادا چي کله ټولي ماڼۍ او تعميرات ونړېږي او له خاورو سره خاوري شي[2].

---

(۱) التسهيل لعلوم التنزيل ۴/ ۱۹۸

(۲) جلالين تفسير

﴿وَجَآءَ رَبُّكَ وَٱلۡمَلَكُ صَفّٗا صَفّٗا﴾ او راشئ پروردګارستا (ای محمده ! چي د بندګانو ترمينځ فيصلې وکړي) او (راشئ) پرښتې صف صف (کتارکتاريو په بل پسي ودرېږي په التسهيل کي راوړي چي منذرين سعيدوايي: معناداچي رب به هلته خلګوته ځرګندشي اوداآيت شريف اونور همداسي آيتونه وربانديايمان راوړل واجب دی خو کيف اوتمثيل بې نشي کېدای(۱) ابن کثيرليکي: معناداچي خلګ به له قبرونوراپاځي دخپل پروردګار په وړاندي به ودرېږي الله به راشي ترڅوددوی ترمينځ دقضاء فيصلې وکړي اوداوروسته ترهغه چي د آدم عليه السلام نازولی زوی حضرت محمدصلی الله عليه وسلم ته دشفاعت خواست وکړښي بيابه الله (هغسي چي له ده سره وړاوښايې) راشي څوفيصله وکړي پرښتې به کتار کتار دهغه په وړاندي صف صف ودرېږي(۲) ﴿وَجِاْيٓءَ يَوۡمَئِذِۭ بِجَهَنَّمَ﴾ اورابه ووست شي په هغي ورځي کي دوزخ (ترڅوېې ګنهګاران ووينې لکه چي الله بل ځای فرمايي ﴿وَبُرِّزَتِ ٱلۡجَحِيمُ لِمَن يَرَىٰ﴾ په حديث شريف کي راځي چي ددوزخ په دي ورځي کي اويازره ملوني (زمام) وي اوله هري ملوني (زمام) سره به اويازره پرښتې وي چي هغه دوزخ به راکش کاږي (۳) ﴿يَوۡمَئِذٖ يَتَذَكَّرُ ٱلۡإِنسَٰنُ وَأَنَّىٰ لَهُ ٱلذِّكۡرَىٰ﴾

په دغه ورځ کي به پند واخلي يادبه کړي انسان (افراط خپل) اوڅه ګټه به ونه رسوي ده ته پدغه وخت کي پنداخيستل (ور په ياد پدل ځکه چي وخت يې تېرشوی دی ﴿يَقُولُ يَٰلَيۡتَنِي قَدَّمۡتُ لِحَيَاتِي﴾ وايې به ځنګه به ښه وومالره که څه مي مخکي لېږلی وای دپاره دژوند دآخرت خپل (چي تلپاتي دی) ﴿فَيَوۡمَئِذٖ لَّا يُعَذِّبُ عَذَابَهُۥٓ أَحَدٞ﴾ نو پدغي ورځي کي به نه په عذابوي الله (په مثل) دعذاب ددغه (الله) هيڅوک ﴿وَلَا يُوثِقُ وَثَاقَهُۥٓ أَحَدٞ﴾ او نه به قيدول کوی (په مثل) دقيدولو ددغه (الله) هيڅوک) يعني هيڅوک به د الله په شان ترونکی کله چي کافرپه ځنځيرانوتړي نه وي دغه دمجرمينواوګنهګارانوپه هکله راغلی دی اوکوم چي پاکيزه او مطمئن النفسه وي دهغه په باب فرمايي ﴿يَٰٓأَيَّتُهَا ٱلنَّفۡسُ ٱلۡمُطۡمَئِنَّةُ﴾ ای نفسه دالله په وعده آرام نيونکيه (هغه چي نن به ورته وېره اوخفګان نه رسېږي) ﴿ٱرۡجِعِيٓ إِلَىٰ رَبِّكِ رَاضِيَةٗ مَّرۡضِيَّةٗ﴾ وګرزه (له دنيانه) په طرف درب خپل حال داچي راضي خوښ يې ته له الله څخه او الله جل جلاله راضي خوښ وي له تاڅخه. مفسرين کرام ليکي دغه خطاب اوغږ به دمړيني په وخت کي وي اومسلمان بنده ته به دمرګ په نژدې شېبوکي دغه زېری ور اورول کېږي ﴿فَٱدۡخُلِي فِي عِبَٰدِي﴾ داخل شه زما (دصالحو) بندګانو (په ډله) کي ﴿وَٱدۡخُلِي جَنَّتِي﴾ اوننوزه جنت زماته (سره له نورو مقربانواوصالحانوبندګانو چي دغه يې ځای دی).

---

(۱) التسهيل ۴/ ۱۹۸

(۲) دابن کثيرمختصر ۳/ ۶۳۸

(۳) دمسلم شريف مرفوع روايت

## بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې دبديع اوبيان کومې ښکلاوې شته په لاندې ډول يې لنډيزليکو:

۱- تقريري استفهام لکه د ﴿ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ ﴾ په کلام کې چې راغلی.

۲- دطباق صنعت چې د ﴿ وَالشَّفْعِ ﴾ او ﴿ وَالْوَتْرِ ﴾ ترمينځ ليدل کېږي

۳- اشتقاقي جناس لکه پدې کلماتوکې چې ﴿ لَا يُعَذِّبُ عَذَابَهُ ﴾ او ﴿ وَلَا يُوثِقُ وَثَاقَهُ ﴾ او ﴿ يَتَذَكَّرُ - الذِّكْرَىٰ ﴾ کې راغلی دی.

۴- دمقابلې صنعت لکه ﴿ فَأَمَّا الْإِنسَانُ إِذَا مَا ابْتَلَاهُ رَبُّهُ فَأَكْرَمَهُ وَنَعَّمَهُ ﴾ او ﴿ وَأَمَّا إِذَا مَا ابْتَلَاهُ فَقَدَرَ عَلَيْهِ رِزْقَهُ ﴾ کې شتون لري څکه دلته يې د ﴿ أَكْرَمَنِ ﴾ او ﴿ أَهَانَنِ ﴾ ترمينځ مقابله اوهمداسې دروزې دتنګسيااوپراخې ترمينځ مقابله راوړې ده.

۵- باريکه اوپه زړه پورې استعاره کله چې فرمايي ﴿ فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ ﴾ دلته يې سخت عذاب له شړلو قمچينو سره مشابه کړی اوبيايې دنازلولو لپاره داورولو او(صب) کله راوړې ده.

۶- دالتفات صنعت چې فرمايي ﴿ كَلَّا ۖ بَل لَّا تُكْرِمُونَ الْيَتِيمَ ﴾ چې له غائب څخه يې مخاطب ته التفات فرمايلی دی ددې لپاره چې په ترټنه اوتوبيخ کې زياتوالی راولي خای خوددې ووچې ويل شوي وای (بل لايکرمون).

۷- روانه سجع چې پکې تکلف نه وي لکه چې ارشادکوي ﴿ وَلَيَالٍ عَشْرٍ وَالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ وَاللَّيْلِ إِذَا يَسْرِ ﴾ اوهمدارنګه ﴿ وَثَمُودَ الَّذِينَ جَابُوا الصَّخْرَ بِالْوَادِ وَفِرْعَوْنَ ذِي الْأَوْتَادِ الَّذِينَ طَغَوْا فِي الْبِلَادِ ﴾ دآيتونوتر پايه پورې

دالله جل جلاله په مرسته دالفجرسورت تفسيربشپړشو.

***

# د(البلد )سورت مکي او شل آیتونه لري

## د سورت په وړاندي:

دغه سورت کټ مټ د نورو مکي سورتونو په شان هدف او مرام لري چي د عقیدې او ایمان پخول په حساب او جزاء باندي باورکول او د مؤمنانو او کافرانو ترمینځ بېلتون بیانوي

په پیل کي سورت په بلد حرام باندي په قسم کولو شروع شوی هغه چي د نبي علیه السلام د شان تعظیم او ستر مقام چي د الله په نزدې لري درناوی وکړي او د کفارو پام دې لوري ته راوګرزوي چي دامن په ښارکي د الله استازي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ضرر رسول د الله جل جلاله په نزد د ګردو غټو ګناهو نو غټه ګناه ده.

بیا د مکي د ځینو کفارو یادونه کوي کوم چي پخپل توان مغرور او د حق څخه یې انکار کاوو، پیغمبر علیه السلام یې دروغجن ګاڼه او خپل مالونه یې د فخر او ویاړ په توګه لګول، دوی داسي ګمان کاوو چي دغه د مالونو خرڅول به دوی د الله له عذابه وژغوري خو آیت شریف په غوڅه توګه او څرګنده دلیل د دوی دغه سوچ ردوي

وروسته بیا سورت د قیامت له کړاوونو څخه خبري کوي او هغه مشکلات خنډونه او ربړونه بیانوي چي انسان نشي کولای پرته له ایمان او صالح عمل څخه له هغو خنډونو، مشکلاتو او ربړونو څخه تېر شي.

په پای کي سورت د مؤمنانو او کافرانو ترمینځ په همدې ورځ بېلتون بیانوي او دهري ډلي هستوګنځی په دار الجزاء کي ټاکي.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ لَآ أُقْسِمُ بِهَٰذَا ٱلْبَلَدِ ﴿١﴾ وَأَنتَ حِلٌّۢ بِهَٰذَا ٱلْبَلَدِ ﴿٢﴾ وَوَالِدٍ وَمَا وَلَدَ ﴿٣﴾ لَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ فِى كَبَدٍ ﴿٤﴾ أَيَحْسَبُ
أَن لَّن يَقْدِرَ عَلَيْهِ أَحَدٌ ﴿٥﴾ يَقُولُ أَهْلَكْتُ مَالًا لُّبَدًا ﴿٦﴾ أَيَحْسَبُ أَن لَّمْ يَرَهُۥٓ أَحَدٌ ﴿٧﴾ أَلَمْ نَجْعَل لَّهُۥ عَيْنَيْنِ ﴿٨﴾ وَلِسَانًا
وَشَفَتَيْنِ ﴿٩﴾ وَهَدَيْنَٰهُ ٱلنَّجْدَيْنِ ﴿١٠﴾ فَلَا ٱقْتَحَمَ ٱلْعَقَبَةَ ﴿١١﴾ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا ٱلْعَقَبَةُ ﴿١٢﴾ فَكُّ رَقَبَةٍ ﴿١٣﴾ أَوْ إِطْعَٰمٌ فِى يَوْمٍ
ذِى مَسْغَبَةٍ ﴿١٤﴾ يَتِيمًا ذَا مَقْرَبَةٍ ﴿١٥﴾ أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ ﴿١٦﴾ ثُمَّ كَانَ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَتَوَاصَوْا۟ بِٱلصَّبْرِ وَتَوَاصَوْا۟ بِٱلْمَرْحَمَةِ
﴿١٧﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ ﴿١٨﴾ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا هُمْ أَصْحَٰبُ ٱلْمَشْـَٔمَةِ ﴿١٩﴾ عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌۢ ﴿٢٠﴾ ﴾ البلد: ۱ ــ ۲۰

## لغتونه:

(کبد) رنځ، کړاو، مشقت ته وایي اصل یې له کبد کلمې څخه اخیستل شوی کوم چي اینې (ځیګر) ته وایي او کله چي به د سړي اینه خوږېدله دوی به ویل: (کبد الرجل کبدا) بیا وروسته د هر رنځ او مشقت لپاره استعمالېږي (اقتحم) اقتحام په تېزي او سختي سره ننوتلو ته وایي لکه چي وایي (اقتحم الحصن) چي معنا یې ده کوم مهم کار او یا (برج ) ته یې پرته له دې چي سوچ وکړي ورودانګل (العقبة) په غره کي ناهمواري لاري ته ویل کېږي (فک) خلاصول لکه چي وایي (فککت الحبل) یعني رسۍ مي خلاصه کړه (پرانسته) یا (فککت الاسیر) یعني بندي مي خلاص کړ (مسغبة) لوږي ته ویل کېږي راغب لیکي چي له

ستوماني سره سره لوړي ته (مسغبة) وايي (۱)(متربة) فقراوبېوزلي ته وايي څکه بېوزله تل په خاورو سپېره وي (۲)(مؤصدة) سرپوښ کړی شوی تړلی،لکه چي وايي (أوصد الباب) يعني دروازه يې وتړله اوبنده يې کړه.

تفسير:

﴿ لَآ أُقۡسِمُ بِهَٰذَا ٱلۡبَلَدِ ﴾قسم خورم پدې ښاربانديي ) دالوړه ده چي الله جل جلاله په بلد حرام (مکي) باندي قسم اخيستی هغه چي الله په (بيت العتيق ) سره شرف ورکړی کوم چي دختيزاولويديزد خلکو قبله اودرحمتونو داوربدلو ځای دی هرڅه مېوې دهرځای ورته رادرومي هغه يې دامن ځای ګرزولی اوله کومي ورځي چي الله دنياودانه کړي له هغه ترننه يې حرمت اوعزت په برخه دی (۳)نوځرنګه چي داټولي خانګړتياوي اومزاياوي پکې دي الله پاک ورباندي قسم واخيست .په التسهيل کي ليکئ چي له بلد حرام څخه دګردومفسرينوپه اتفاق مکه مرادده اوقسم يې دتشريف لپاره ورباندي کړی دی(۴)﴿ وَأَنتَ حِلُّۢ بِهَٰذَا ٱلۡبَلَدِ ﴾اوته (ای محمده !) ساکن اومقيم يې پدې ښارکي چي مکه اودامن ښاردی بيضاوي ليکي چي الله تعالی په بلدحرام قسم واخيست اوبيايې درسول الله صلی الله عليه وسلم هستوګنه په همدې ښارکي بيان کړه ترڅونور زياته بهتري ځرګنده شي څکه دمکان شرافت دهغه په اهل سره وي (۵)﴿ وَوَالِدٖ وَمَا وَلَدَ ﴾اوقسم دی په پلاراوپه هغه باندي چي له هغه څخه زېږېدلی دی يعني قسم دی په آدم عليه السلام اودهغه په صالحينوزامنو. مجاهدليکي چي (والد ) آدم عليه السلام (وماولد ) دهغه ټول اولادبنيي، ابن کثيرليکي چي کوم تفسيرچي مجاهداودهغه ملګرو کړی هغه په زړه پوري اوقوي دی څکه چي الله کله چي آلله په (أم القری )قسم واخيست اوهغه داوسېدلوځايونه دي نووروسته يې بيايه اوسېدونکوقسم واخيست چي هغه (ابوالبشر ) آدم عليه السلام اودهغه زامن دي خازن ليکي الله په مکه باندي دهغې دعزت اوشرف له مخي قسم واخيست اوپه آدم عليه السلام اوصالحينوزامنو او نبيانوبې لوړه وکړه څکه کافرکه څه هم دآدم عليه السلام له اولادې څخه وي بياهم حرمت اوعزت يې نشته چي ورباندي قسم وکړی شي (۶)﴿ لَقَدۡ خَلَقۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ فِي كَبَدٍ ﴾چي خامخاپه تحقيق پيداکړی دی موږانسان بني آدم په رنځ اومشقت کي دغه مقسم عليه دی يعني انسان له زېږېدلوتروفات کېدلوپوري تل په مشکلاتوکي اخته وي ابن عباس رضی الله عنه وايي (کبد ) معناداچي ډول ډول تکليفونه او ربړونه ګالي چي کله دمورپه نس کي وي ياوزېږي اوبياتی روي ورووسته له تي جلاشي اوبيايي ژوند د

---

(۱) روح المعاني ۳۰/ ۱۳۸
(۲) البحرالمحيط ۸/ ۴۷۳
(۳) په حديث شريف کي راځي چي: ان الله حرم مکة يوم خلق السماوات والأرض فهی حرام الی أن تقوم الساعة لم تحل لاحدقبلي، ولن تحل لأحد بعدي ولم تحل لی الاساعة من نهار.الحديث رواه الشيخان .
(۴) التسهيل لعلوم التنزيل ۴/ ۱۹۹
(۵) تفسيرالبيضاوي ۳/ ۲۲۰
(۶) خازن ۴/ ۲۴۸

كړاو وي وروسته بيايې مرګ دكړاو وي (١) ابو السعود ليكي چي پدې آيت شريف كي درسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره ډاډينه اوتسلاده ځكه هغه صلى الله عليه وسلم دمكې له كفاروڅخه ډېرربړونه او تكاليف ليدل (٢) وروسته الله دهغه انسان چي دالله له قدرته منكروي اوبعث اونشورنه مني داسي بيان كوي ﴿ أَيَحْسَبُ أَن لَّن يَقْدِرَ عَلَيْهِ أَحَدٌ ﴾ (آيا ګمان كوي (كافرانسان) چي بېشكه له سره به قادرنشي په ده باندي هيڅوك) يعني آيادغه شقي انسان چي پخپل قوت مغروروي داسي ګمان كوي چي الله تعالى به پرده باندي قدرت ونلري؟ مفسرين كرام ليكي چي دغه آيت د(ابو الأشدبن كلدة) په هكله نازل شوى هغه چي پخپل قوت ډېرزيات مغرور ووهغه ته به څرمن هواره شوه اودى به ورباندي له پاسه ودرېدواو ويل به يې هرڅاچي دازماله پښو څخه ليري كړه هغه ته به د ومره انعام وركوم بيابه لسوكسانوهغه كش كوله خوڅرمن به ټوټې ټوټې شوه أبو الاشدبه هماغسي ورباندي ولاړوو اوله ځايه به خوځېدلى هم نه وو. دآيت شريف معناداچي آيادغه سركښه پياوړى چي په مسلمانانوځان غښتلى ګڼي آيادى ګمان كوي چي هيڅوك له ده څخه دكسات اخيستلوجوګه نه دى ؟﴿ يَقُولُ أَهْلَكْتُ مَالًا لُّبَدًا ﴾ وايې (په وياړسره) ماخرڅ كړى دى خوراډېر مال (دمحمد په دښمني كي) الوسي ليكي: دغه به دفخرپه توګه وايې مقصدبه يې هغه مال دولت وي چي دريااوسمعت له مخي يې لګولى اوله لګولو څخه يې په هلاكت سره ځكه تعبيركړى چي ګواكي پروايې نه لرم اودغه كارمي دكومي ګټي ترلاسه كولوپه هيله نه دى كړى نوګواكي چي ډېرمال يې ضائع كړى دى اوچابياويلي چي دغه يادونه يې د رسول الله دسختي دښمني دڅرګندولولپاره كړي ده (٣) ﴿ أَيَحْسَبُ أَن لَّمْ يَرَهُ أَحَدٌ ﴾ آياګمان كو ي دى چي بېشكه ندى ليدلى دى هيچا(په وخت دخرڅولودمال په دښمني درسول الله كي؟) آياهغه له الله تعالى څخه پټ دى دغسي نه دى لكه چي دى ګمان كوي بلكه الله تعالى دهرڅه ليدونكى اوپه هرڅه خبردار دى دقيامت په ورځ به ورڅخه پوښتنه وكړي اوجزابه وركړي؛ بياالله جل جلاله ددې لپاره چي پند او عبرت واخلي خپل نعمتونه داسي ورته بيانوي ﴿ أَلَمْ نَجْعَل لَّهُ عَيْنَيْنِ ﴾ آيانه دي وركړي موږ ده ته دوې سترګي؟ (چي پرې ويني بلكه وركړي مودي) ﴿ وَلِسَانًا ﴾ (اوآيانه دى وركړي موږده ته) ژبه (پوه چي د زړه راز ورباندي څرګندوي اوخبري كوي) ﴿ وَشَفَتَيْنِ ﴾ او(آيانه دي وركړي موږده ته) دوه شونډان (چي ورباندي خوله پټوي اوپه خوراک څښاک اوپوكلوكي ترې ګټه اخلي) خازن ليكي چي: دالله جل جلاله نعمتونه خوڅرګند دي خوالله يې ددې لپاره بنده ته ورپه يادوي چي ورباندي شكروباسي (٤) ﴿ وَهَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ ﴾ اوښودلي دي موږده ته دوى لاري (دخيراوشرچي پرې جنت يادوزخ ته لاړشي) او يا هدايت اوضلالت چي دجنت لاره غوره كړي اوله دوزخ څخه ځان وژغوري. ابن مسعودرضى الله عنه وايې چي (نجدين) عبارت له خيراوشرڅخه دى لكه چي

---

(١) خازن ٤ /٢٤٨

(٢) ابو السعود ٥ /٢٢٥

(٣) الوسي تفسير ٣٠ /١٣٢

(٤) خازن تفسير ٤ /٢٤٩

الله تعالی فرمايي ﴿ إِنَّا هَدَيْنَٰهُ ٱلسَّبِيلَ إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا ﴾ (الانسان: ۳)[۱] ﴿ فَلَا ٱقْتَحَمَ ٱلْعَقَبَةَ ﴾ نو ربړ يې و نه ايست په ختلو د غونډۍ (عقبې) کي يعني ولي يې دا مال د غونډۍ د ختلو لپاره و نه لګاوه کوم چي عقبه هغه سخت کار ته وايې چي په نفس د پرمشکل وي لکه چي د مال خرڅول يې غونډۍ ته په ختلو مشابه کړل هغه هم سخت وي او د (اقتحم) معنا په تېزي او ګړندي توب په سختي سره ور دا خلېدو ته وايي[۲] دا هغه مثال دی چي الله د نفس او شيطان سره د مجادلې او مجاهدې لپاره راوړی دی په هغه مجاهده چي د الله جل جلاله رضا او خوښي تر لاسه کېږي ﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا ٱلْعَقَبَةُ ﴾ او څه شي پوه کړې څه دي ختل د غونډۍ (عقبې) ؟ پدې کي د هغې د شان ستروالی او تهويل دی ﴿ فَكُّ رَقَبَةٍ ﴾ خلاصول د غاړې دي؛ (پدې سره يې د هغې تفسير وفرمايو چي د عقبې (غونډۍ) ختل خود غاړې خلاصول مريي آزادول او بنديان خلاصول دي هغه چي سړی له اوره وربانديي ژغورل کېږي ﴿ أَوْ إِطْعَٰمٌ فِى يَوْمٍ ذِى مَسْغَبَةٍ ﴾ يا وركول د ډوډۍ دی (بېوزلانو ته) په هغې ورځي کي چي خاونده د لوږي وي (صاوي ليکي د لوږي ورځ يې ځکه راوړله چي په هغې کي د مال ورکول په نفس خورا سخت وي)[۳] ﴿ يَتِيمًا ذَا مَقْرَبَةٍ ﴾ يتيم ته چي خاوند د خپلوي وي ﴿ أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ ﴾ او يا مسکين ته چي په خاورو سپېره وي ، د غه له زياتي بېوزلي څخه کنايه راوړل شوې دی ابن عباس رضی الله عنهما وايي چي دا هغه د لاري په غاړه پروت دی چي هيڅ شی يې له خاورو څخه نه ژغوري ﴿ ثُمَّ كَانَ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ بيا وي له هغو کسانو نه چي ايمان يې راوړی وي؛ يعني دغه خاص د الله لپاره آزادونکي او طعام ورکونکی ربښتونی مؤمن او مسلمان وي مفسرين کرام ليکي چي پدې آيت شريف کي دې ته اشاره ده چي نېک عملونه او طاعت له ايمان څخه پرته ګټه نلري ﴿ وَتَوَاصَوْا۟ بِٱلصَّبْرِ وَتَوَاصَوْا۟ بِٱلْمَرْحَمَةِ ﴾ او وصيت کوئ يو له بل ه سره په صبر سره (په ايمان او طاعت) او وصيت کوئ يو له بله په مهرباني او شفقت سره (د بېوزلانو او مسکينانو په هکله) ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ ﴾ دغه کسان (چي پدې غوره صفتونو موصوف دي) خاوندان د ښي طرف لوېي برخي دي (او جنتيان دي چي عملنامې به په ښي طرف ورکولی شي او جنت ته په دا خلېدلو به نېکمرغه شي ﴿ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا هُمْ أَصْحَٰبُ ٱلْمَشْـَٔمَةِ ﴾ او هغه کسان چي کافران شوي دي په آيتونو زمونږ هم دوی خاوندان د کيڼ طرف (بدي خبري) دي ، دلته د ابرارو او فجارو يو په بل پسي راوړل د قرآنکريم هغه طريقه څرګندوي کومه چي د ترغيب او ترهيب په هکله يې په کاروي او ترڅو هغه زيات توپير بيان کړي کوم چي د جنتيانو او دوزخيانو ترمينځ او ياد نېکمرغه او اشرارو ترمينځ هغه اشرار چي د محمد صلی الله عليه وسلم نبوت نه مني او قرآن دروغ ګڼي دوی د شمال خاوندان دي دوی به خپلي اعمالنامې په کيڼ لاس

---

(۱) الوسي تفسير ۳۰/ ۱۳۲

۲ البحر المحيط ۸/ ۴۷۶

(۳) حاشية الصاوي على الجلالين ۴/ ۳۲۲

مومي اودوزخ ته به د رومي له دوی څخه يې د غائب په صيغه ځکه يادونه وکړه چې دوی د الله جل جلاله به له قدسي حضورڅخه غائب اوله أنسي کرامت څخه ليري دي ﴿ عَلَيْهِمْ نَارٌ مُّؤْصَدَةٌۢ ﴾ وي به پردوی باندي اورسرپوښ کړی شوی چې هلته به روح اوريحان نه ورځي اونه به کله هم دوی ترې راوزي . اللهم لاتقتلنابغضبک ولاتهلکنابعذابک ونجنامن ذلک يارب العالمين آمين ثم آمين.

بلاغت:

پدې سورت کې چې دبلاغت کومې ښکلاوي شته په لاندې ډول يې لنډيزليکو:

۱ - د(لا) توري زياتوالی دکلام دتأکيدلپاره راغلی اوداعربوپه کلام کې شهرت لري ﴿ لَآ أُقْسِمُ بِهَٰذَا ٱلْبَلَدِ ﴾ معنايې داچې قسم کوم پدې ښارباندې اود(لا ) فائده دقسم تاکيددی لکه چې وايې: (لاوالله ماذاک ) اويالکه چې وايې: ( ای والله) أمرء القيس وايې: (لاوأبيک امرأة العامری).

۲ -اشتقاقي جناس لکه ﴿ وَوَالِدٍ وَمَا وَلَدَ ﴾ چې هردواړه له ولادت څخه مشتق دي

۳ -دتوبيخ اوترټنې لپاره استفام لکه ﴿ أَيَحْسَبُ أَن لَّن يَقْدِرَ عَلَيْهِ أَحَدٌ ﴾ او ﴿ أَيَحْسَبُ أَن لَّمْ يَرَهُۥٓ أَحَدٌ ﴾ چې راغلی دی.

۴ - تقريري استفهام ددې لپاره چې د الله تعالی نعمتونه ورپه ياد کړي لکه ﴿ أَلَمْ نَجْعَل لَّهُۥ عَيْنَيْنِ وَلِسَانًا وَشَفَتَيْنِ ﴾.

۵ - دتعظيم اوتهويل لپاره استفهام لکه چې فرمايې ﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا ٱلْعَقَبَةُ ﴾ ځکه پدې استفهام کې دعقبې (غونډۍ) دعظمت ښودلو مقصد دی.

۶ -لطيفه استعاره لکه داچې ﴿ وَهَدَيْنَٰهُ ٱلنَّجْدَيْنِ ﴾ چې معنايې ده دخيراوشرلارې مووروښودلې ځکه چې دنجد اصلي معنا لوړه لاره ده خوبيادنيکمرغي اوبدمرغي دوولارولپاره استعاره شوې دی.

۷ - همداسې بله استعاره لکه چې فرمايې ﴿ فَلَا ٱقْتَحَمَ ٱلْعَقَبَةَ ﴾ چې دعقبې معناغونډۍ اوپه غره کې ناهواره لاردی اودلته يې دښکوعملونولپاره استعاره کړې هغه چې په نفس باندې سخت وي اوپه دې کې تبعيه استعاره راغلې ده.

۸ - ناقص جناس لکه ﴿ ذَا مَقْرَبَةٍ ﴾ او ﴿ ذَا مَتْرَبَةٍ ﴾ چې يې فرمايلي چې په دې کې دځينو تورو تغييردی.

۹ -لطيفه مقابله چې د ﴿ أَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ ﴾ او ﴿ أَصْحَٰبُ ٱلْمَشْـَٔمَةِ ﴾ په مينځ کې راغلې.

۱۰ -دفواصلورعايت لکه ﴿ لَآ أُقْسِمُ بِهَٰذَا ٱلْبَلَدِ وَأَنتَ حِلٌّۢ بِهَٰذَا ٱلْبَلَدِ وَوَالِدٍ وَمَا وَلَدَ لَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ فِى كَبَدٍ ﴾ اولکه ﴿ أَلَمْ نَجْعَل لَّهُۥ عَيْنَيْنِ وَلِسَانًا وَشَفَتَيْنِ ﴾ چې داهم دعلم بديع له محسناتو څخه ګڼل کېږي.

دالله په مرسته د سورة البلد تفسيربشپړشو.

## د (الشمس) سورت مکي او پنځلس آیتونه لري.

### د سورت په وړاندي:

دالشمس سورت مکي سورت دی اوله دوو اساسي موضوع ګانو څخه رغېږي:

۱- دانساني نفس موضوع او هغه څه چي الله جل جلاله هغه له خیره ،شره ، ګمراهي او هدایت څخه ورباندي پیدا کړی دی.

۲- د سرغړوني او طغیان موضوع کومه چي په ثمودیانو کي راغلي وه او ناقه یې ووژله بیا الله ﷻ دوی هم هلاک کړل

دا سورت دالله جل جلاله له مخلوقاتو څخه په اوو شیانو قسم اخیستلو پیل شوی:

لومړی الله جل جلاله په لمر او دهغه په روښنایې باندي لوړه کوي اوله هغه وروسته څي سپوږمۍ راخېژي پرې قسم اخلي بیا په ورځي باندي کله چي دشپې تیاره پټوي اوبیا په شپه باندي کله چي دورځي رڼانغاړي او کائنات په توره تیاره کی پېچي ، بیا په هغه مقتدرذات چي آسمان یې بې ستني درولی او ځمکه یې په اوبو غوړولي خوره کړي او وروسته بیا په بشري نفس باندي چي الله پاک بشپړکړی او په فضائلو یې سینګار کړی دی لوړه کوي په دې ټولو یادو شوي شیانو قسم اخلي چي که چېري انسان له الله څخه وېرېږي بریالی کېږي او که سرغړونه او طغیان وکړي بیا بد مرغه او په خسران کي دی.

بیا الله جل جلاله دثمودیانو چي دصالح علیه السلام توکم (قوم) وو کیسه بیانوي کله چي یې خپل پیغمبر دروغجن وګاڼه او په ځمکه کي یې بغاوت پیل کړ هغو دالله جل جلاله پیدا کړي اوښه (دصالح علیه السلام معجزه) چي له ډبري څخه راوتلي وه ووژله او وروپسې ددوی دهلاکت حال بیانوي ترڅو دهغه چالپاره چي عبرت اخلي پند شي او دادهر سرغړونکي کافر فاجر سزا ده هغه څوک چي دالله پیغمبرنه مني او دالله له اوامرو څخه غاړه کاږي

په پای کي الله تعالی داسي یادونه کوي چي هغه دسرکښانو له هلاکولو څخه نه وېرېږي ځکه هغه داسي ذات دی چي څوک ورڅخه پوښتنه نه کوي ا ومخلوق هغه کسان دي چي په ټولو کړو وړو کي به پوښتل کېږي ﴿ لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُونَ ﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿ وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا ﴿١﴾ وَالْقَمَرِ إِذَا تَلَاهَا ﴿٢﴾ وَالنَّهَارِ إِذَا جَلَّاهَا ﴿٣﴾ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَاهَا
﴿٤﴾ وَالسَّمَاءِ وَمَا بَنَاهَا ﴿٥﴾ وَالْأَرْضِ وَمَا طَحَاهَا ﴿٦﴾ وَنَفْسٍ وَمَا سَوَّاهَا ﴿٧﴾ فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا ﴿٨﴾ قَدْ أَفْلَحَ مَن
زَكَّاهَا ﴿٩﴾ وَقَدْ خَابَ مَن دَسَّاهَا ﴿١٠﴾ كَذَّبَتْ ثَمُودُ بِطَغْوَاهَا ﴿١١﴾ إِذِ انْبَعَثَ أَشْقَاهَا ﴿١٢﴾ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ نَاقَةَ
اللَّهِ وَسُقْيَاهَا ﴿١٣﴾ فَكَذَّبُوهُ فَعَقَرُوهَا فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ رَبُّهُم بِذَنبِهِمْ فَسَوَّاهَا ﴿١٤﴾ وَلَا يَخَافُ عُقْبَاهَا ﴿١٥﴾ ﴾
الشمس: ۱-۱۵

**لغتونه**: (ضحاها) رڼا دهغه یعني قسم کوم په لمر او دهغه په رڼا باندي (ضحی) دورځي په لومړیو کي د لمر درا او چتېدلو وخت ته وایې. مبرد وایې (ضحی) له ضح څخه مشتق او دلمر رڼا ته وایې[1] (طحاها)

---

[1] روح المعاني للألوسي ۳۰/ ۱۴۰

غورول دهغې، جوهري وايي (دحوته) او(طحوته) دواړه په يوه معنادي يعني وير كړى مي وو او غوړولى مي وو(¹)(دساها) پټ يې كړداكلمه په اصل كي (د سسها ) دوهم سين يې په الف باندي دتخفيف لپاره بدل كړنو(دساها ) كلمه تري جوړه شوه (فدمدم) دم دم اصلا دراتلوپه معنادى لكه چي وايي (دمدم عليه القبر) يعني قبروړباندي كېووت اودلته مراددوى په عذاب اخته كېدل دي كوم چي ددوى بېخ اوبكريې وايستل (عقباها) عاقبت اوانجام دهغه

تفسير:

﴿ وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا ﴾(قسم دى په لمراورڼادهغه باندي) يعني قسم كوم په لمراودهغه په خلاباندي كله چي تاريكي وركه كړي اوكائنات رڼاكړي ﴿ وَالْقَمَرِ إِذَا تَلَاهَا ﴾ اوقسم كوم په سپوږمۍ كله چي راخي په دغه (لمر)پسي ، يعني كله چي لمرډوب شي سپوږمۍ ورپسي رادبره شي. مفسرين كرام وايي چي دغه دمياشتي په لومړنۍ نيمايي كي وي كله چي لمرولوېږي سمدستي سپوږمۍ راوخېژي اوكائنات رڼاكړي په دې لوړه اوقسم كي حكمت دادى چي كله لمرولوېږي نوعالم ټول دمړوپه شان شي اوكله چي لمراوخېژي نوبياخوځښت پيل شي اولكه چي له مرګه وروسته ژوندته راستانه شي او د ځابنت په مهال كي بياټول خپلوكارونو ،روزګارونوته درومي دغه حالت لكه دقيامت غوندي اېسي اود ضحا وخت لكه چي جنتيان په جنت كي مېشت شي هوكي لمراوسپوږمۍ دواړه دبشرد مصالحو لپاره پيدا شوي دي اوپه هغوى باندي لوړه كول دې ته اشاره كوي چي دغه دواړه خورا سترڅېزونه او پكي ډېري ګټي دي ﴿ وَالنَّهَارِ إِذَا جَلَّاهَا ﴾ (اوقسم دى) په ورځ باندي كله چي ښكاره كاندي (دغه) لمر (په رڼاو خلا خپله )ابن كثيرليكي: معنادا چي لمرپه خپلوپلوشوباندي ځمكه روښانه اووخلوي (²) ﴿ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَاهَا ﴾ (اوقسم دى)په شپه باندي كله چي پټ كړي هغه (لمر)په تياره خپله كي) يعني قسم دى په شپه كله چي هغه كائنات پخپله تياره كي ونغاړي ځكه ورځ يې لوڅوي اوشپه يې نغاړي اوپټوي. صاوي ليكي: چي دلته يې دمضارع دفعل صيغه ځكه راوړه چي دفواصلو مراعات شوى وى ځكه يې داسي ندي ويلي چي: (والليل اذاغشيها ) (³)﴿ وَالسَّمَاءِ وَمَا بَنَاهَا ﴾ او(قسم دى) په آسمان اوپه هغه (ذات باندي) چي جوړكړى يې دى هغه (آسمان هغه مقتدرذات چي آسمان يې بې ستني درولى. مفسرين كرام وايي چي دغه (ما ) موصوله اود(من) په معناده يعني قسم په آسمان او په هغه (مقتدر) ذات چي آسمان يې جوړكړى دى اومرادترې الله دى ځكه وروسته راځي چي ﴿ فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا ﴾ لكه چي فرمايلي يې وي هغه عظيم اومقتدرذات چي آسمان يې جوړكړى اود آسمان دغه جوړښت دهمدغه ذات په وجودباندي شاهددى اودهغه په قدرت ګواهي وركوي ﴿ وَالْأَرْضِ وَمَا طَحَاهَا ﴾ او(قسم دى) په ځمكه او په

---

(¹) دابن كثيرمختصر ۳ /۶۴۴

(²) مختصرابن كثير۳ /۶۴۴

(³) حاشية الصاوي ۴ /۳۲۱

هغه (ذات چي غوړولي يې ده هغه (ځمکه له هره لوري وېره اوخپره او دهستوګني اوسکونت لپاره تياره ده ، دغه غوړېدل له (ګرويت) سره څه منافات نلري اومفسرين كرام ليكي چي له دغه آيت څخه مراداوغرض دادی چي الله جل جلاله خپلوبندګانوته دهغه احسان ورپه يادول كوي كوم چي ددوی د هستوګني اوزراعت ،كروندې لپاره يې دوی ته ځمكه چمتو كړي ده (۱) ﴿ وَنَفۡسٖ وَمَا سَوَّىٰهَا ﴾ اوقسم دی په نفس اوپه هغه (ذات) چي برابر كړي يې دي(اندامونه د ) هغه ، همداراز دهغه باطني اوظاهري قواوي يې سمي كړي اودسموالي بشپړتوب يې پدي كېږي چي داسي عقل يې وربښلی چي دخيراو شرتميزورباندي كولای شي ﴿ فَأَلۡهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقۡوَىٰهَا ﴾ پس ور ښودلي يې ده په زړه دده كي بدي دده او نېكي دده ، ابن عباس رضی الله عنهماوايي: معناداچي خيراوشر ،طاعت اومعصيت يې ورته بيان كړی دی اوكول اونه كول يې ورته ښرګند كړي دي مفسرين كرام ليكي چي الله جل جلاله په اوو شيانو قسم كړی چي هغه لمر، سپوږمۍ ، شپه اوورځ ، ځمكه ، آسمان اوبشري نفس دی ترڅود الله جل جلاله دقدرت سترتوب ښكاره اووحدانيت يې وپېژندل شي بل داچي پدې شيانوكي دمصالحو او منافعو كثرت دی چي دغسي څېزونه خامخايوپيداكونكي ذات ته اړدي اوبيادوی تدبيراوچلول اوددوی دحركاتوڅارل دهغه په تصرف كي وي .امام رازي رحمه الله ليكي :څرنګه چي لمرترګردو محسوساتو سترو نوالله جل جلاله هغه له خپلوڅلوروهغوصفتونوسره چي دده په لويوالي يې دلالت كاوو يادكړ اوبيايې خپل سپېڅلي ذات جل جلاله يادكړاودرې صفتونه يې وښودل ترڅوچي عقل دالله دجلال داسي ادراک وكړي لكه چي ورسره ښايې نوپه همدغه طريقه يې عقل دمحسوساتوله ټيټي دنياګۍ نه كبريايې اوج ته اوچت اووخېژاوو ﴿ قَدۡ أَفۡلَحَ مَن زَكَّىٰهَا ﴾ په تحقيق سره نجات وموندهغه چاچي پاک يې كړدغه (نفس له ګناهونوڅخه؛ دغه دقسم ځواب دی يعني په تحقيق سره خامخاهغه څوک چي ځان يې دالله په طاعت دګناهونوله خيرواوچټليوپاک كړهغه په مرادورسېدو ﴿ وَقَدۡ خَابَ مَن دَسَّىٰهَا ﴾ اوپه تحقيق زيانمن شوهغه چي پټ يې كړدغه نفس په كفراومعاصيوخوار اوسپک يې كړاودهلاكت كندي ته يې وغورځاووچاچي د خپل نفس ومنله اودپروردګارله اوامرويې غاړه وغړوله نوهغه دهوښيارانوله ډلي څخه ووت اوپه ناپوهانواوجاهلانوكي وګڼل شو ، بياالله جل جلاله دداسي كسانو مثال چي هغوی د الله څخه سرغړونكي اونفس يې په ګناهونولړلی وي د حضرت صالح عليه السلام دقوم په شان چي ثموديان وو يادوي چي ﴿ كَذَّبَتۡ ثَمُودُ بِطَغۡوَىٰهَآ ﴾ دروغجن كړی وو ثموديانو (رسول خپل ) په خپلي سركښي سره ﴿ إِذِ ٱنۢبَعَثَ أَشۡقَىٰهَا ﴾ كله چي پورته شولوی بدبخت دهغوی (چي اوښه ووژله ابن كثير ليكي چي هغه (قذاربن سالف ) ووهغه چي الله دهغه يادونه بل ځای داسي كوي ﴿ فَنَادَوۡاْ صَاحِبَهُمۡ فَتَعَاطَىٰ فَعَقَرَ ﴾ هغه پخپل قوم كي منلی اوعزتمن ،دشرف ښښتن اوترټولوبدبخته وو(۲) ﴿ فَقَالَ لَهُمۡ رَسُولُ ٱللَّهِ ﴾ ويې ويل دوی ته

(۱) دمفسرينوويناوي دلقمان سورت په تفسيركي ولوله
(۲) دامام رازي كبيرتفسير

رسول الله (هغه چي صالح علیه السلام وو) ﴿نَاقَةَ ٱللَّهِ وَسُقْيَٰهَا﴾ خبردار اوپرېږدئ اوښه دالله مه يې وژنئ اوله اوبو څښلو يې مه راګرزوئ لکه چي الله تعالى فرمايلي دي ﴿لَّهَا شِرْبٌ وَلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ﴾ (الشعرآء ۱۵۵) ﴿فَكَذَّبُوهُ فَعَقَرُوهَا﴾ پس دروغجن کړ دغه قوم صالح علیه السلام اوناقه يې ووژله دحضرت صالح علیه السلام (اخطار) ته يې څه التفات ونکړ ﴿فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ رَبُّهُم بِذَنۢبِهِمْ فَسَوَّىٰهَا﴾ نوسخت عذاب يې ولېږه په دوی باندي رب ددوی (چي ټول يکي مړه شول) په سبب دګناه ددوی (چي تکذيب درسول اووژل داوښي دی) نوبرابريې کړل سره دغه (ټول په هلاک کي) يعنی واړه، زاړه، ښوزله ،بډای بی ټول ووژل. خازن ليکي چي (دمدم) هغه پرېکنده (کوتلی) اوشامل عذاب ته ويل کېږي چي د هلاک شويو رېښې اوجرړي وايستل شي معنايې داچي داسي شامل عذاب وربانډی راغی چي هيڅوک ورڅخه خلاص نشول ﴿وَلَا يَخَافُ عُقْبَٰهَا﴾ اونه وېرېږي (الله) له عقوبت او جزاء ــــــــــــ

هلاک ددوی څخه ؛ لکه چي نورپاچهان اوپارئيسان دعذاب اوهلاک له پايلو څخه په وېره کي وي څکه الله جل جلاله هغه ذات دی چي څوک څني پوښتنه نکوي اودوی هغه دي چي ترې پوښتل کېږي

بلاغت

پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې په لاندي ډول ليکو:

۱ - دطباق صنعت لکه چي د ﴿وَٱلشَّمْسِ﴾ او ﴿وَٱلْقَمَرِ﴾ اود ﴿وَٱلَّيْلِ﴾ ﴿وَٱلنَّهَارِ﴾ اود ﴿فُجُورَهَا وَتَقْوَىٰهَا﴾ په کلماتو کي راغلی.

۲ - باريکه مقابله د ﴿وَٱلنَّهَارِ إِذَا جَلَّىٰهَا﴾ او ﴿وَٱلَّيْلِ إِذَا يَغْشَىٰهَا﴾ اوهم داراز ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّىٰهَا﴾ او ﴿وَقَدْ خَابَ مَن دَسَّىٰهَا﴾ اودغه طباق اومقابله دواړه دبديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

۳ - اضافت دتکريم اوتشريف لپاره لکه چي فرمايې ﴿نَاقَةَ ٱللَّهِ﴾ چي الله جل جلاله ته يې دعزت لپاره نسبت شوی داهغه دصالح علیه السلام معجزه اوښه وه چي له ډبري څخه راوتلي وه.

۴ - تهويل اوفظاعت چي بوړنونکی اووېرونکی تعبيراداشي لکه چي فرمايې ﴿فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ رَبُّهُم بِذَنۢبِهِمْ فَسَوَّىٰهَا﴾ دغه تعبيرد عذاب په سخت والي دلالت کوي.

۵ - مرصع سجع چي دفواصلو مراعات پکي راغلی دی اودغه صنعت پدې سورت کي ښځي له ورايه څرګند يږي

دالله جل جلاله په مرسته دوالشمس سورت تفسيربشپړ شو.

***

## د(الليل )سورت مکي او یو ویشت آیتونه لري

د سورت په وړاندې

دالليل سورت مکي او دانسان له کړو، وړو، هڅو ،زیار او ربړ څخه غږېږي ترڅو بالآخره جنت او یا دوزخ ته يې ورولي.

د سورت پیل په شپه باندي قسم کول شوی کله چې ګرد مخلوقات پخپله تیاره کي ونغاړي او بیا په ورځ باندي کله چې نړۍ په روښنایي او خلاودانه کړي او په هغه پالونکي پروردګار ذات باندي قسم دی چې دوه انواع او ډولونه یې نراو ښځي پیدا کړي دي هغه پدې قسم کوي او لوړه اخلي چې دخلګو کړه وړه مختلف دي او لاري یې ګوښي ګوښي دي ﴿ وَالَّيۡلِ إِذَا يَغۡشَىٰ ① وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّىٰ ② وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالۡأُنثَىٰٓ ③ إِنَّ سَعۡيَكُمۡ لَشَتَّىٰ ﴾.

ورپسې دبدمرغي او نېکمرغي لاري څرګندوي او هغه دبېلتون کرښه په ګوته کوي چې په هغې خلاصون موندل کېږي ، دنېکمرغه او بدمرغه انسانانو صفتونه بیانوي او دجنتیانو او دوزخیانو یادونه کوي چې ﴿ فَأَمَّا مَنۡ أَعۡطَىٰ وَاتَّقَىٰ ⑤ وَصَدَّقَ بِالۡحُسۡنَىٰ ⑥ فَسَنُيَسِّرُهُۥ لِلۡيُسۡرَىٰ ⑦ وَأَمَّا مَنۢ بَخِلَ وَاسۡتَغۡنَىٰ ⑧ وَكَذَّبَ بِالۡحُسۡنَىٰ ⑨ فَسَنُيَسِّرُهُۥ لِلۡعُسۡرَىٰ ﴾.

له دې نه وروسته هغو کسانو ته کوم چې مالونه راغونډ کړي او ورباندي مغرور شوي خبرداری ورکوي چې دغه مالونه راتولول به دقیامت په ورځ دوی ته کومه ګټه ونه رسوي ، ورپسې دالله ﷻ دحکمت یادونه کوي چې څرنګه یې بندګانو ته دسمې لاري او ګمراهي څرګندونه کړې ده فرمایي:

﴿ إِنَّ عَلَيۡنَا لَلۡهُدَىٰ ⑫ وَإِنَّ لَنَا لَلۡأٓخِرَةَ وَالۡأُولَىٰ ﴾.

بیا ورپسې دمکې خلګ دالله جل جلاله له عذاب او کسات اخیستلو څخه وېروي هغوی چې دالله آیتونه دروغ ګڼي او پیغمبرنه مني هغوی په سخت اورچې له ډېره سېخت والي په غرغنډووي وېروي او ترهوي داهسې اوردی چې پرته له کافر او بدمرغه انسانه بل څوک پکې نه اچول کېږي هغه بدمرغه چې دالله له لاربنوونې څخه یې سرغړونه کړې وي ارشاد کوي چې ﴿ فَأَنذَرۡتُكُمۡ نَارٗا تَلَظَّىٰ ⑭ لَا يَصۡلَىٰهَآ إِلَّا الۡأَشۡقَى ⑮ الَّذِي كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴾.

او بالآخره سورت پدې ټکو پای ته رسېږي چې دصالح او نېکمرغه انسان څېره انځوروي هغه څوک چې خپل مال دولت دخیرښېګڼي په کارونو کي لګوي ترڅو خپل ځان پاک کړي او دالله له عذابه څخه یې وژغوري او دغه مثال دحضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په شان کي راغلی چې حضرت بلال رضی الله عنه یې وپېرود او بیا یې دالله درضا لپاره آزاد کړ فرمایي ﴿ وَسَيُجَنَّبُهَا الۡأَتۡقَى ⑰ الَّذِي يُؤۡتِي مَالَهُۥ يَتَزَكَّىٰ ⑱ وَمَا لِأَحَدٍ عِندَهُۥ مِن نِّعۡمَةٖ تُجۡزَىٰٓ ⑲ إِلَّا ابۡتِغَآءَ وَجۡهِ رَبِّهِ الۡأَعۡلَىٰ ⑳ وَلَسَوۡفَ يَرۡضَىٰ ﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ وَٱلَّيۡلِ إِذَا يَغۡشَىٰ ﴿١﴾ وَٱلنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّىٰ ﴿٢﴾ وَمَا خَلَقَ ٱلذَّكَرَ وَٱلۡأُنثَىٰٓ ﴿٣﴾ إِنَّ سَعۡيَكُمۡ لَشَتَّىٰ ﴿٤﴾ فَأَمَّا مَنۡ أَعۡطَىٰ وَٱتَّقَىٰ ﴿٥﴾
وَصَدَّقَ بِٱلۡحُسۡنَىٰ ﴿٦﴾ فَسَنُيَسِّرُهُۥ لِلۡيُسۡرَىٰ ﴿٧﴾ وَأَمَّا مَنۢ بَخِلَ وَٱسۡتَغۡنَىٰ ﴿٨﴾ وَكَذَّبَ بِٱلۡحُسۡنَىٰ ﴿٩﴾ فَسَنُيَسِّرُهُۥ لِلۡعُسۡرَىٰ ﴿١٠﴾ وَمَا يُغۡنِي عَنۡهُ
مَالُهُۥٓ إِذَا تَرَدَّىٰٓ ﴿١١﴾ إِنَّ عَلَيۡنَا لَلۡهُدَىٰ ﴿١٢﴾ وَإِنَّ لَنَا لَلۡأٓخِرَةَ وَٱلۡأُولَىٰ ﴿١٣﴾ فَأَنذَرۡتُكُمۡ نَارٗا تَلَظَّىٰ ﴿١٤﴾ لَا يَصۡلَىٰهَآ إِلَّا ٱلۡأَشۡقَى ﴿١٥﴾ ٱلَّذِي
كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴿١٦﴾ وَسَيُجَنَّبُهَا ٱلۡأَتۡقَى ﴿١٧﴾ ٱلَّذِي يُؤۡتِي مَالَهُۥ يَتَزَكَّىٰ ﴿١٨﴾ وَمَا لِأَحَدٍ عِندَهُۥ مِن نِّعۡمَةٖ تُجۡزَىٰٓ ﴿١٩﴾ إِلَّا ٱبۡتِغَآءَ وَجۡهِ
رَبِّهِ ٱلۡأَعۡلَىٰ ﴿٢٠﴾ وَلَسَوۡفَ يَرۡضَىٰ ﴿٢١﴾ ﴾ الليل: ۱ - ۲۱

## لغتونه:

(تجلّی) روښانه اوڅرګنده (شتّی) رازرازقسم قسم (الحسنی) دتوحيد کلمه (اليسری) دآساني عمل چي سړی جنت ته بيايي (العسری) هغه عمل چي سړی سختي اوجهنم ته رسوي (تردّی) په کنده کي لوېدل او هلاکېدل (تلظّی) اصل يې (تتلظی) يعني هغه اورچي لوخړي اولمبې يې خېژي (يصلاها) ورننوزي او تودوخه يې څکي.

## دنزول سبب:

روايت کېږي چي حضرت بلال رضی الله عنه دأميه بن خلف مريی ووبادار به يې هغه ځوراوو داسي سخت عذابونه يې ورکول چي کله به سوځنده لمرتودشونودمکې په ځوروکي به يې ستوني سنغ وغورځاووا ويوه لويه تيږه به يې په سينه ورکېښېنوده.

هو تيږه به يې په سينه ورکېښوده اوبيابه يې ورته ويل ترهغوبه ته په دغه حالت کي يې ځوومرې اويا په محمدباندي کافرشه ! حضرت بلال رضی الله عنه به په دغه حال کي أحدٌ أحدٌ ويل؛ نويووخت حضرت ابوبکررضی الله عنه وربانديتېرېدواوداحال يې وليدنوأميه بن خلف ته يې وويل: آيادديې بېوزله په هکله له الله جل جلاله څخه نه وېرېږې ؟ ! نو هغه به په ځواب کي ورته ويل داخوتادغسي راته خراب کړی اوفاسد کړی دی اوس يې نو ته له دغه تکليف څخه وژغوره ! هغه ووچي حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه حضرت بلال له نوموړي (کافر) څخه وپېرودل اوبيايې دالله د خوښي لپاره آزادکړ، نو کافرانوبه ويل چي حضرت ابوبکر رضی الله عنه بلال رضی الله عنه د هغه نعمت په بدل کي چي په ابوبکريې پېرزو کړی ووآزادکړچي بيادغه آيت نازل شو: ﴿ وَمَا لِأَحَدٍ عِندَهُۥ مِن نِّعۡمَةٖ تُجۡزَىٰٓ ﴿١٩﴾ إِلَّا ٱبۡتِغَآءَ وَجۡهِ رَبِّهِ ٱلۡأَعۡلَىٰ ﴿٢٠﴾ وَلَسَوۡفَ يَرۡضَىٰ ﴾[1]

---

(1) حاشية الصاوي على الجلالين ۴ /۳۲۲

تفسير:

﴿ وَالَّيْلِ إِذَا يَغْشَىٰ ﴾ قسم دی په شپه کله چي (کائنات) په تياره خپله سره اوټول موجودات په تاريکي کي ونغاړي ﴿ وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّىٰ ﴾ اوقسم دی په ورځ باندي کله چي روښانه شي (اوگرده نړی وځلوي؛ مفسرين کرام وايي: الله جل جلاله په شپه باندي لوړه وکړه ځکه هغه دټولو مخلوقاتو لپاره سکون دی اوانسانان اوځاروي ټول خپلو ځايونوته په شپه کي ځان رسوي اوآرام کوي بيايې په ورځ باندي لوړه وکړه ځکه چي ورځ دخلگو دهلوځلولپاره وي وي ټول خلگ دروزي موندلولپاره له ځايه خوځېږي اوله دغي لوړي اوقسم څخه حکمت هغه دشپې اوورځي په اوښتون کي منافعوته اشاره ده کوم چي شمېرېې غيرممکن دی ځکه که چېرته ژوندټول شپه اوتاريکه وای نودمعاش موندل به مشکل وو او که ټول عمراوژوندورځ وای بيابه انسان هډوراحت اوآرام نه ليدواود بشريت منافع اوگټي وټي به گډې وډې شوي وای ﴿ وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنثَىٰ ﴾ اوقسم دی په هغه ذات چي پيدا کړی يې دی نارينه او ښځينه مخلوق (له نطفې څخه) پدې کي داتنبيه شته چي الله متعال او مقتدر ذات دی چي دغه دوه نوعي يې پيداکړي هغه دابداع اوحکمت خاوند دی ځکه دغه دښځينه اونارينه مخلوقاتوپنځول خويوازي په نابېره توگه مېنځ ته ندی راغلی چي دطبيعت محصول اوپيداواريې وگڼوځکه طبيعت هيڅ شعورنلري. بېشکه چي دغه دنطفې اصلي اجزاوي خوسره برابري دي مگرکله چي له همدغوعناصروڅخه ماشوم کله نارينه اوکله ښځينه پيداشي داددې دليل دی چي ددغه نظام جوړونکی په هغه څه چي ترسره کوي يې ښه پوه دی اوپه هغه څه چي جوړوي يې خوراماهر دی ﴿ إِنَّ سَعْيَكُمْ لَشَتَّىٰ ﴾ بېشکه چي ستاسي عملونه رازرازدي؛ ځيني طاعت کوي اوځيني معصيت دغه دقسم ځواب دی يعني ستاسوبه ځوک صالحان او ځوک طالحان وي بيايې پدې کلام تفسيروفرمايو چي ﴿ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَىٰ وَاتَّقَىٰ ﴾ پس هغه چي ورکړه يې کوله اوله الله جل جلاله څخه وېرېدواودهغه جل جلاله له محرماتوڅخه يې ځان ژغوره. ابن کثيروايي: هغه څه يې ورکول چي دورکړي امورته شوی وواوددالله په چاروکي له الله څخه وېرېدو(^۱) ﴿ وَصَدَّقَ بِالْحُسْنَىٰ ﴾ اويقين يې کړی ووپه جنت هغه چي الله جل جلاله دابرارولپاره تيارکړی دی ﴿ فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْيُسْرَىٰ ﴾ نوژردی چي تياربه يې کړولپاره دآساني؛ يعني دخيردعمل لپاره به يې تيارکړواوهغوی ته به هغه خوی خصلت چي آساني ته رسېږي وروښيوچي هغه دطاعاتوپرځای کول اوله محرماتوڅخه ځان ژغورل دي ﴿ وَأَمَّا مَن بَخِلَ وَاسْتَغْنَىٰ ﴾ اوهرهغه چي بخيلي يې وکړه (په اداء دحقوقو) اوبې پروايي يې وکړله (له الله نه چي عبادت يې ونکړ. ابن عباس رضی الله عنهماوايي: معناداچي دمال په ورکولوکي يې بخل وکړاوله الله عزوجل څخه بې پرواشو ﴿ وَكَذَّبَ بِالْحُسْنَىٰ ﴾ اودروغ يې وگڼل جنت (اونعمتونه يې) ﴿ فَسَنُيَسِّرُهُ لِلْعُسْرَىٰ ﴾ نوژردی چي

(^۱) مختصرابن کثير ۳ /۲۴۲

تياري کړو دپاره دلاري سختي چي هغه بد عمل دی اوپه دنیااوآخرت کي بده لاره چي دشرلاره ده ، مفسرین کرام لیکي دخیرلاري ته بې آسانه لاره وویل ځکه چي عاقبت او انجام بې یسراوراحت آسانتیااودجنت نعمتونه دي اودشرلاري ته بې دسختي لاره وویله ځکه عاقبت اوپایلي بې سختیااو کړاوونه چي دوزخ ته ورګډېدل اولوېدل دي ﴿ وَمَا يُغْنِي عَنْهُ مَالُهُۥٓ إِذَا تَرَدَّىٰٓ ﴾ اوڅه دفعه کوي له ده څخه عذاب) مال دده کله چي هلاک شي په کنده کي ولوېږي، دغه کلمه داستفهام انکاري ده یعني مال به بې څه ګټه ورته ورسوي کله چي هلاک شي اوپه کنده ددوزخ کي ولوېږي ؟آیابیابه بې مال ورته ګټه ورسوي؟ اوله عذابه څخه به بې وژغوري؟ ﴿ إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَىٰ ﴾ بېشکه پرموږدی خامخا هدایت سمه صافه لاره ښودل(انسانانوته اوناسمه لاره له سمي څخه بېلول لکه چي بل ځای فرمایي:

﴿ وَقُلِ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ ۖ فَمَن شَآءَ فَلْيُؤْمِن وَمَن شَآءَ فَلْيَكْفُرْ ﴾ (الکهف ٢٩) ﴿ وَإِنَّ لَنَا لَلْـَٔاخِرَةَ وَٱلْأُولَىٰ ﴾ اوبېشکه موږ ته دی خامخاآخرت اودنیا(یعني زه ددواړومالک یم ځوک چي بې له ماپرته له بل چاڅخه غواړي هغه خطاکاردی لاره تري ورکه ده ﴿ فَأَنذَرْتُكُمْ نَارًا تَلَظَّىٰ ﴾ نووویرولی ماتاسي (ای منکرانو) له اوره چي له ډېره شدته دګرمي لمبې به وهي، دغه خطاب اهل مکې ته دی ﴿ لَا يَصْلَىٰهَآ إِلَّا ٱلْأَشْقَى ﴾ نه به ننوزي (په طریقه ددوام سره) په هغه(اورددوزخ)کي مګرلوی بدبخت (کافر) بیابې تفسیرداسي فرمایې ﴿ ٱلَّذِى كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴾ هغه چي دروغ ګڼي (پیغمبران) اومخ اړوي(له ایمانه څخه) ﴿ وَسَيُجَنَّبُهَا ٱلْأَتْقَى ﴾ اوژردی چي ګوښه (بېل)به شي له هغه اوره ښه وېرېدونکی(مؤمن)چي له شرک اومعاصیو څخه ډېرپاک وي.. بیا بې تفسیرداسي فرمایې ﴿ ٱلَّذِى يُؤْتِى مَالَهُۥ يَتَزَكَّىٰ ﴾ (هغه چي ورکوي مال خپل لپاره ددې ورځي چي پاک شي )یعني هغه ځوک چي خپل مال دخیرښېګڼي په لاروچاروکي لګوي ترڅوبې ځان پاک شي ﴿ وَمَا لِأَحَدٍ عِندَهُۥ مِن نِّعْمَةٍ تُجْزَىٰٓ ﴾ اونه ووهیچالره په نزد دده هېڅ نعمت احسان چي بدل بې ورکاووشي بلکه د الله درضالپاره بې لګوي مفسرین کرام وایي چي: دغه آیت شریف دابوبکرصدیق رضی الله عنه په شان کي راغلی کله چي بلال رضی الله عنه بې وپېرودل اوبیابې دالله درضالپاره آزاد کړنو مشرکانو ویل چي دغه بې دهغه نعمت په بدل کي آزاد کړچي بلال ورکړی وو الله بې تردیدوکړ ﴿ إِلَّا ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ رَبِّهِ ٱلْأَعْلَىٰ ﴾ مګرلپاره دطلب درضادرب خپل چي ډېرلوی دی ﴿ وَلَسَوْفَ يَرْضَىٰ ﴾ اوخامخاژردی چي دی به راضي شي (له الله په موندلودنعمتونودجنت اولقاء درب العزت ، دغه وعد(زیری )کریم له جانبه درب رحیم څخه ده.

بلاغت:

پدې سورت کې چې دبديع اوبيان کومې ښکلاوې شته لنډ يې دادي:

۱ - دطباق صنعت چې د ﴿ ٱلْأَشْقَى ﴾ او ﴿ ٱلْأَتْقَى ﴾ اود ﴿ لِلْيُسْرَىٰ ﴾ ﴿ لِلْعُسْرَىٰ ﴾ کلماتو ترمينځ راغلى دى.

۲ - لطيفه مقابله چې فرمايي: ﴿ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَىٰ وَٱتَّقَىٰ وَصَدَّقَ بِٱلْحُسْنَىٰ فَسَنُيَسِّرُهُۥ لِلْيُسْرَىٰ ﴾ اود ﴿ وَأَمَّا مَنۢ بَخِلَ وَٱسْتَغْنَىٰ وَكَذَّبَ بِٱلْحُسْنَىٰ ﴾ ترمينځ راغلې ده.

۳ - اشتقاقي جناس چې په ﴿ فَسَنُيَسِّرُهُۥ لِلْيُسْرَىٰ ﴾ کلام کې شته ځکه يسرله تيسير څخه اخيستل شوى او ترمينځ يې مجانست ليدل کېږي

۴ - دمفعول حذف کول دتعميم په غرض لکه چې ارشادکوي ﴿ فَأَمَّا مَنْ أَعْطَىٰ وَٱتَّقَىٰ وَصَدَّقَ بِٱلْحُسْنَىٰ ﴾ چې مفعول يې ذکرشوى نه دى ځکه نود اورېدونکي هرلوري ته ذهن درومي اوعموم افاده کوي

۵ - غيرمتکلفه سجع لکه ﴿ لَا يَصْلَىٰهَآ إِلَّا ٱلْأَشْقَى... وَسَيُجَنَّبُهَا ٱلْأَتْقَى... ﴾ اونور.

لطيفه:

وايي چې حضرت عمربن الخطاب رضى الله عنه به ويل چې: (اعتق سيدُنا ، سيدَنا) يعني حضرت ابوبکررضى الله عنه حضرت بلال رضى الله عنه آزادکړى دى ، څومره پاک سپېځلي نفسونه يې درلودل؟ اللهم أرزقنا محبة اصحاب الرسول جميعاآمين.

دالله په مرسته دالليل سورت تفسيرپشپړشو.

***

## د(الضحی)سورت مکي او یوولس آیتونه لري

دسورت په وړاندي:

دالضحی سورت مکي اودنازولي پیغمبرصلی الله علیه وسلم په شخصیت رڼاچوي چي الله ﷻ څومره دېرنعمتونه ورباندي پېرزوکړي دي په هغه یې په دنیا اوآخرت کی څومره زیات فضل اواحسان لورولی ترڅودالله جل جلاله ددغوسترونعمتونوشکرادا کړي

دسورت پیل درسول اکرم صلی الله علیه وسلم په قدراومنزلت قسم اخیستلوشوی داچي الله تعالی هغه ندی پرې ایښی اونه یې مبغوض ګڼلی دی لکه څرنګه چي مشرکان یې ګمان کوي بلکه د هغه صلی الله علیه وسلم مرتبه دالله په نزد ډېره لوړه اوقدریې خوراسترده فرمایې ﴿ وَٱلضُّحَىٰ وَٱلَّيۡلِ إِذَا سَجَىٰ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَىٰ وَلَلۡأٓخِرَةُ خَيۡرٞ لَّكَ مِنَ ٱلۡأُولَىٰ ﴾.

وروسته الله تعالی خپل پیغمبرته په آخرت کي دسترانعام اولوړوکراماتویادونه کوي چي له هغوڅخه شفاعت عظمی هم دی ارشادکوي ﴿ وَلَسَوۡفَ يُعۡطِيكَ رَبُّكَ فَتَرۡضَىٰٓ ﴾.

بیاورته په ماشوم توب کي دهغه یتیم والی ،بېوزلي، ورکه لاره وریه یادوي چي څرنګه الله تعالی هغه ونازاووااوپخپل پرېمانه عنایت اوکرم کي یې ونغښت فرمایې ﴿ أَلَمۡ يَجِدۡكَ يَتِيمٗا فَـَٔاوَىٰ وَوَجَدَكَ ضَآلّٗا فَهَدَىٰ وَوَجَدَكَ عَآئِلٗا فَأَغۡنَىٰ ﴾.

دسورت په پای کي الله تعالی خپل نازولي استازي ته ددغونعمتونوپه مقابل کي وصیتونه فرمایې داچي دیتیمانواوښکي پاکي کړي اوپرې مهرباني وکړي په محتاجه اوبېوزله کسانو ورحمېږي دفقیرانواومسکینانولاس ونیسي فرمایي ﴿ فَأَمَّا ٱلۡيَتِيمَ فَلَا تَقۡهَرۡ وَأَمَّا ٱلسَّآئِلَ فَلَا تَنۡهَرۡ وَأَمَّا بِنِعۡمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثۡ ﴾
اوداداسي پای اوخاتمه ده چي دبیان ښکلاله لفظي خوندسره مل پکي څرګنده ده.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ وَٱلضُّحَىٰ ﴿١﴾ وَٱلَّيۡلِ إِذَا سَجَىٰ ﴿٢﴾ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَىٰ ﴿٣﴾ وَلَلۡأٓخِرَةُ خَيۡرٞ لَّكَ مِنَ ٱلۡأُولَىٰ ﴿٤﴾ وَلَسَوۡفَ يُعۡطِيكَ رَبُّكَ فَتَرۡضَىٰٓ ﴿٥﴾ أَلَمۡ يَجِدۡكَ يَتِيمٗا فَـَٔاوَىٰ ﴿٦﴾ وَوَجَدَكَ ضَآلّٗا فَهَدَىٰ ﴿٧﴾ وَوَجَدَكَ عَآئِلٗا فَأَغۡنَىٰ ﴿٨﴾ فَأَمَّا ٱلۡيَتِيمَ فَلَا تَقۡهَرۡ ﴿٩﴾ وَأَمَّا ٱلسَّآئِلَ فَلَا تَنۡهَرۡ ﴿١٠﴾ وَأَمَّا بِنِعۡمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثۡ ﴿١١﴾ ﴾ الضحی: ١ - ١١

## لغتونه

(سجی) ویل کېږي (سجی اللیل) کله چي یې تیاره زیاته شي (قلی) بغض اودښمني کولوته وایې راغب لیکي (قلی) دبغض شدت لکه: (قلاه یقلوه ویقلیه) یعني بغض او کینه یې ورسره کړې[1] (آوی) خای دپناه یې درکړ و یې روزلې (عائلا) فقیراوتاداره هغه چي هیڅ نلري جریروایې:

الله نزل في الکتاب فریضة ٭ لابن السبیل وللفقیر العائل

یعني الله پخپل کتاب کي دمسافر پردپس اوبېوزله فقیرلپاره فریضه زکات ټاکلی دی (لاتقهر) قهرمه کوه (لاتنهر) مه رټه، ستغي سپوري ورته مکوه.

دنزول سبب: وایې چي یووخت رسول الله صلی الله علیه وسلم دکومي ناروغي له کبله په بسترکي پرېووت یوه خبیثه ښځه (چي أم جمیل نومېده دابولهب مېرمن وه) راغله نویې وویل ای محمده! داسي ښکاري چي ستاشیطان له تاڅخه مرورشوي دی اوته یې پرې ایښی یې وینم چي دادوه که درې شپې ندی درته راغلی نو الله جل جلاله داآیتونه نازل کړل چي ﴿وَٱلضُّحَىٰ وَٱلَّيۡلِ إِذَا سَجَىٰ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَىٰ﴾ [2].

تفسیر: ﴿وَٱلضُّحَىٰ وَٱلَّيۡلِ إِذَا سَجَىٰ﴾ قسم په څاښت (چي روښانه دی) دی اوقسم دی په شپه کله چي تیاره شي الله تعالی په ضحی یې قسم واخیست هغه چي دورځي لومړی پیل دی کوم چي لمرښه رااوچت شي او قسم یې واخیست په شپه کله چي تیاره یې بېخي زیاته شي اوټول شیان پټ کړي ابن عباس رضی الله عنهما وایې د(سجی) معنادا چي تیاره یې راخوره شي[3] ابن کثیرلیکي چي دادالله سوګند دی چي د څاښت په وخت یې کړی هغه وخت چي روښنایې یې پکي خوندي کړې ده اوهمداسي په شپه یې قسم کړی کله چي تیاره یې خپره شي اودغه دالله جل جلاله په قدرت څرګند دلیل دی ﴿مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَىٰ﴾ چي نه یې پرې ایښی رب ستااونه یې ته دښمن نیولی یې (ای محمده!) له هغه وخته چي رااستولی او غوره کړی یې دغه دمشرکانو په ردکي ویل شوي دوی به ویل چي محمدصلی الله علیه وسلم خپل رب پرې ایښی دی اودادقسم ځواب دی ﴿وَلَلۡأٓخِرَةُ خَيۡرٞ لَّكَ مِنَ ٱلۡأُولَىٰ﴾ اوخامخاآخرت بهتردی تاته (ای محمده) له دنیاڅخه ځکه آخرت تلپاتي اودنیافاني ده اوداسبب وو چي رسول الله صلی الله علیه وآله وسلم به ویل: اللهم لاعیش الاعیش الآخرة ﴿وَلَسَوۡفَ يُعۡطِيكَ رَبُّكَ فَتَرۡضَىٰٓ﴾ اوخامخاژردی چي دربه کړي تاته رب ستا (ای محمده لویه برخه په آخرت کي او اختیاردشفاعت) پس ته به راضي شې ابن عباس رضی الله عنهما وایې چي: دغه برخه رسول الله ﷺ ته کرامت اودشفاعت واک ورکول دی روایت کېږي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل أمت یادکړ ویل یې چي زما أمت زما أمت اوویې ژړل الله

---

[1] مفردات القرآن للراغب الاصفهاني.

[2] حدیث په صحیحینو کي راغلی اودښځي نوم یې ندی یادکړی.

[3] تفسیرالخازن ٤/٢٥٨.

تبارک وتعالی حضرت جبریل ته وفرمایل ورشه محمدوپوښته چي ولي ژاړې؟ (اوالله خوښه پوه اوخبردی)نوجبریل علیه السلام راغی اوله رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه یې وپوښتل ، رسول الله صلی الله علیه وسلم دهغه څه یادونه ورته وکړه کوم چي ویلي یې وو کله چي جبریل علیه السلام الله ته دغه ویناورسوله الله تعالی ورته ارشادوکړچي ورشه محمدصلی الله علیه وسلم ته ووایه موږبه تادأمت په هکله خوښ اوراضي کړونه دي خفه کوو (۱)په یوبل حدیث شریف کي راځي رسول الله فرمایي: چي هرپیغمبرله قبوله شوي منلي اومستجابه دعاشته اوهرپیغمبرخپله دعا سمدستي کړي مادآخرت ورځي لپاره خوندي ساتلي ده ترڅودأمت لپاره دشفاعت اذن اواجازه له الله تعالی څخه وغواړم(۲)خازن لیکي بهتره داده چي آیت شریف پخپل ظاهرباندي پرېښودل شي تر څوددنیااوآخرت دواړوکرامتونواوښېګړوته شامل وي ځکه چي الله تعالی پیمغبرته په دنیاکي په دښمنانوبری اوفتح ورکړي پلویان یې زیات کړي اودین یې لوړکړی دی أمت یې دنوروأمتونوڅخه غوره اوبهترګرزولی دی په آخرت کي یې شفاعت اومقام محمودورکړی اوداسي نورددنیااوآخرت ښېګڼې یې ورکړي دي.. وروسته له دې چي دغه ستره وعده اوژمنه یې ورسره وکړه بیایې دوړکتوب نعمتونه وریه یادکړل څویې شکرپرځای کړي فرمایي﴿ أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوَىٰ ﴾آیانه یې وې موندلی یتیم (وړوکی، بې پلاره بلکه موندلی یې وې) پس ځای یې دپناه درکړ(چي ابوطالب ته یې ورکړې ابن کثیروایې درسول الله صلی الله علیه وسلم پلارهله ومړچي محمدصلی الله علیه وسلم دموریه نس کي جنین ماشوم وو ،بیایې مورهله وفات شوه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم دشپږو کالو وو اوبیا د خپل نیکه عبدالمطلب په کفالت کي ترهغوپوري ووچي هغه هم وفات شوداوخت دمحمدصلی الله علیه وسلم عمراته کاله واوبیاابوطالب دمحمدصلی الله علیه وسلم تره دده کفالت په غاړه واخیست او ترهغوی یې مرستندوی اوملاترووڅوچي څلوېښت کلني ته ورسېدواوالله تعالی په استازیتوب غوره کړابوطالب لاهماغسي دبتانوعبادت کاووخوله دې سره سره یې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دکفارورېړونه اوضررونه دفع کول اودغه ګرددالله جل جلاله له لوري له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره عنایت ،پناه اوساتنه وه (۳)﴿ وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدَىٰ ﴾اوموندلی یې وې ته چي نه پوهېدلې (په شرعي احکامو)نودرویې ښودل تاته شرعي احکام اونبوت یې درکړ، لکه چي الله تبارک وتعالی بل ځای هم فرمایلي دي﴿ مَا كُنتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ ﴾(الشوری:۵۲)امام جلال الدین د جلالین تفسیرمؤلف لیکي: معنادا چي ته الله وموندلې داسي چي نه پوهېدې له شریعت څخه په هغه څه چي اوس پرې پوهېږې اوبیایې دهغه لوري ته هدایت کړې ، اوچاېیاویلي چي په کوچنوالي کي رسول الله دمکې په ځینو کندوکي ورک شوی وو اوبیاالله جل جلاله دهغه نیکه عبدالمطلب ته ور پیدا کړ،ابوحیان وایې چي دغه ضلالت په ګمراهي باندي هغه چي دهدایت مقابل دی نشي ژباړلی ځکه انبیاء علیهم السلام له ضلالت څخه معصوم اوپاک

---

(۱) مسلم
(۲) متفق علیه
(۳) دابن کثیرمختصر ۳ / ٦۵۰

دي ، ابن عباس وايي: چي مراد له دي څخه هغه لاره ورکېدل دی چي په ورکتوب کي دمکې په کندوکي ورک شوی وو(۱) ﴿ وَوَجَدَكَ عَآئِلًا فَأَغْنَىٰ ﴾ او موندلی يې وې ته فقير پس غني يې کړې (له خلګو څخه په مال د تجارت د خديجې رضی الله عنها او... څرنګه چي الله تعالی دري نعمتونه ورته ياد کړل نو په دري وصيتونو سره په مقابل کي ورته وصيت وفرمايو چي: ﴿ فَأَمَّا ٱلْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ ﴾ نو يتيم ته قهر مکوه (يعني يتيم سپک مه ګڼه او مال تري په زوره مه اخله مجاهد وايي (لاتقهر) معنا دا چي خوار او سپک يې مه ګڼه او سفيان وايي معنا دا چي مال يې مه ضائع کوه او ظلم ورباندي مکوه ، مقصد څني داده چي د يتيم لپاره لکه مهربان پلار غوندي اوسه ځکه ته هم پخپله يو وخت يتيم وې او الله پناه درکړه ﴿ وَأَمَّا ٱلسَّآئِلَ فَلَا تَنْهَرْ ﴾ او سوالګر مه رټه (څه شی ورکړه يا يې په ورو رد کړه سپکي سپوري ورته مکوه . قتاده وايي: معنا دا چي مسکين په نرمي او خوږه ژبه رخصت کړه ﴿ وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ ﴾ او په نعمت د رب خپل خلګو ته بيان کوه ځکه تحدث په نعمت د نعمت شکر دی ، الوسي ليکي: معنا دا چي ته يتيم او لار ورکی وې بيا الله پناه درکړه درته يې ښوونه وکړه مال ،دولت يې درکړنو ته دغه دري نعمتونه مه هېروه يتيم باندي ظلم مکوه په سوالګر ورحمېږه ځکه تا د فقر او د يتيم والي خوند څکلی او خلګ سمي لاري ته داسي لکه چي ته الله رهبري کړی يې رهبري کړه(۲).

بلاغت: پدې مبارک سورت کي چي د بلاغت له مخي کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱- د طباق صنعت چي د ﴿ وَلَلْآخِرَةُ ﴾ او ﴿ ٱلْأُولَىٰ ﴾ ترمينځ شته.

۲- لطيفه مقابله کله چي فرمايي: ﴿ أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوَىٰ ..... وَوَجَدَكَ عَآئِلًا فَأَغْنَىٰ ﴾ چي پدې قول يې مقابله فرمايلي ﴿ فَأَمَّا ٱلْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ وَأَمَّا ٱلسَّآئِلَ فَلَا تَنْهَرْ ﴾ او دغه د علم بديع له لطائفو څخه ګڼل کېږي.

۳- ناقص جناس د ﴿ تَقْهَرْ ﴾ او د ﴿ تَنْهَرْ ﴾ کلماتو ترمينځ چي د دوهم توري په تغيير دواړه کلمې متجانسي بللای شو.

۴- مرصع سجع چي لکه په ښکلي هارکي پېيلي ملغلري غوندي ايسی او دا پدې آيتونو کي له ورايه څرګند ده چي ﴿ أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوَىٰ وَوَجَدَكَ ضَآلًّا فَهَدَىٰ وَوَجَدَكَ عَآئِلًا فَأَغْنَىٰ ﴾ د آيتونو تر پايه پوري.

د الله تعالی په مرسته د (والضحی) سورت تفسير پشپړ شو.

***

(۱) جلالين ۴/ ۳۳۰
(۲) الوسي تفسير ۳۰/ ۱۷۴

## د (الشرح) سورت مکي او اته آیتونه لري

دسورت په وړاندي:

د (الشرح) سورت مکي او د رسول الله صلی الله علیه وسلم له ستر مقام او ویاړلي منزلت څخه غږېږي ، د الله هغه نعمتونه چي پخپل نازولي استازي او بنده حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یې لورولی بیانوي لکه چي سینه یې د ایمان لپاره پرانستلي، زړه یې په حکمت او عرفان روښانه کړي له ګناهونو او عیبونو څخه یې پاک سپېڅلی ګرزولی دی دغه ټول د رسول الله صی الله علیه وسلم د تسلا او ډاډیني لپاره یادوي ترڅو یې شریف خاطر ډاډه شي ځکه هغه صلی الله علیه وسلم له کفارو فجارو څخه ډېر ربړونه او تکالیف لیدلي وو الله جل جلاله فرمایي ﴿ أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ وَوَضَعْنَا عَنكَ وِزْرَكَ الَّذِي أَنقَضَ ظَهْرَكَ ﴾.

بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم ستر منزلت او په دنیا آخرت کي لوړ مقام او هغه څه بیانوي چي د هغه علیه السلام نوم یې له خپل نامه سره یوځای کړی فرمایي ﴿ وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ ﴾.

هله بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دعوت او بلني ستونزمني شېبې او له تکالیفو ډکه دوره چي مسلمانانو او رسول الله د مکې د کفارو له خوا کوم ربړونه او مشکلات لیدلي وو را اخلي او د نږدې مرستي او بریالیتوب زېری ورکوي چي هغه به په دښمنانو بری مومي ارشاد فرمایي: ﴿ فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ﴾.

په پای کي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د هغه دواجب وظیفې او دندي یادونه کوي چي کله هم د رسالت له تبلیغ څخه فارغ شي نو د الله عبادت ته دي مخه کړي او د ادنعمتونو شکرانه ده چي الله ورباندي لورولي ده فرمایي ﴿ فَإِذَا فَرَغْتَ فَانصَبْ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَارْغَب ﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ﴿١﴾ وَوَضَعْنَا عَنكَ وِزْرَكَ ﴿٢﴾ الَّذِي أَنقَضَ ظَهْرَكَ ﴿٣﴾ وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ ﴿٤﴾ فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ﴿٥﴾ إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ﴿٦﴾ فَإِذَا فَرَغْتَ فَانصَبْ ﴿٧﴾ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَارْغَب ﴿٨﴾ ﴾ الشرح: ۱ - ۸

### تفسیر:

﴿ أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ﴾ آیا نه ده پراخه کړي موږ تا لره سینه ستا؟، دغه تقریري استفهام دی یعني بېشکه موږ ستا سینه پراخه کړي ده په هدایت د ایمان او قرآني نور لکه چي الله تبارک وتعالی بل ځای فرمایي ﴿ فَمَن يُرِدِ اللَّهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ ﴾ (الانعام: ۱۲۵) ابن کثیر وایي: یعني روښانه کړي موده او پراخه ارته مو ګرزولي ، او لکه څرنګه چي یې سینه پراخه کړې هماغسي یې شریعت پراخ، آسانه

اوبې تکلفه رااستولی دی چې هیڅ حرج اوتنگسیاپکې نشته (۱) اوابوحیان وایې دشرح الصدر معناپه حکمت سره دسینې روښانه کول دی ترڅودوحی خوندي کولو لپاره چمتووي اودغه دجمهورو علماوو ویناده چابیاویلي چې دغه عبارت له هغې واقعې څخه دی چې درسول الله صلی الله علیه وسلم تېرحضرت جبریل علیه السلام څیري کړی وُاودغه وینا له حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما څخه روایت شوي ده(۲) ﴿ وَوَضَعْنَا عَنكَ وِزْرَكَ ﴾ اوکوزکړمو رِله تاڅخه درووند بارستا ﴿ ٱلَّذِىٓ أَنقَضَ ظَهْرَكَ ﴾ هغه چې ستاشاپې درنه (کړه) کړي وه. مفسرین کرام لیکي چې له (وزر) څخه مراد خلاف أولی چاري دي چې رسول الله ترسره کړي اوالله ورته مغفرت کړی دی دغه یې دکوزولو او اینبودلو مقصدی لکه چې الله تعالی فرمایي ﴿ لِّيَغْفِرَ لَكَ ٱللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنۢبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ ﴾ (الفتح:۲) اوپه (ذنب) کې مراد گناهو نه ندي ځکه انبیاء علیهم السلام له گناهونو څخه معصوم دي او هغه څه چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه داجتهاد په توگه صادرشوي اوپه هغوی باندي ترعتاب لاندي راغلي وي لکه چې کله متخلفینوله جهادڅخه دپاتي کېدلو په باب ورته عذرونه ویل اورسول الله صلی الله علیه وسلم هم ورته دپاتي کېدلواجازه ورکړه اویایې دبدرله بندیانوڅخه فدیه قبوله کړه اویاهم دعبدالله بن أم مکتوم (أعمی) په وړاندي یې تندی تریوکړاوداسي نور. په التسهیل کي لیکي څرنگه چې دانبیاوو ذنوب دروند باروگڼل شواوسره له دې چې هغه صغایراوبخښل شوي دي ځکه چې هغوی ورباندي زیات خفه اومغموم شوي وو اودا گواکي هغوی ته درانه ووچي هغوی له الله جل جلاله څخه سخت وېرېدل اودالکه چې په اثرکي هم راغلي چې مؤمن خپل گناهونه لکه غرغوندي ویني چې ورباندي رالوېدونکی وي اومنافق یې بیا لکه مچ غوندي گڼي چې په پوزه یې الوزي (۳)(نقیض) هغه غږته ویل کېږي چې له کجاوې څخه دبار ددروندوالي په سبب اورېدل کېږي ﴿ وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ ﴾ اوپورته کړ مو ږ تاله ذکرستا) یعني ستاشان مولوړکړاوستا مقام موپه دنیااوآخرت کي اوچت اوستانوم مي له خپل نامه سره یوځای کړ. مجاهدوایې: معناداچي چېرته زمایادونه کېږي هلته ستاذکرهم راځي، قتاده لیکي چې درفع الذکرمعناداچي په دنیااوآخرت کي یې الله جل جلاله نوم لوړکړی. ځکه هیڅ خطیب، لمونځ کوونکی اومؤذن به نه وي چې داسي ونه وایې (أشهدأن لآ اله الاالله وأشهدأن محمدارسول الله ) په یوحدیث شریف کي راځي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: چې جبریل علیه السلام راغی راته ویل یې: ای محمده !ستاپروردگاروایي چې آیاپوهېږې ستاذکرمي څه ډول لوړکړی دی ماویل چې الله ښه پوهېږي

---

(۱) مختصرابن کثیر ۳ /۶۵۲
(۲) البحرالمحیط ۸ /۴۸۷ هغه روایت چې ورته اشاره شوي په صحیح مسلم کي راغلي اوأنس رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه آله وسلم په وړوکوالي کي له ماشومانوسره لوبي کولې اوحضرت جبریل علیه السلام ورته راغی سینه تېر یې ورڅېري کړاویوڅه یې ځیني رابهرکړل اووېې ویل چې داد شیطان برخه ده اوبیایې دزروپه طشت لگن کي په زمزم اوبووللماوو (ومینځل) اوبیرته یې سینه وروگنډله اوخپل ځای ته یې راستون کړملگروماشومانویې مورته (حلیمه سعدیه چې تی ورکونکي موریې وه ) په منډه راوغښتل ورته ویل یې چې: محمدووژل شواوچي دوی بیرته ورغلل دغه ښه الوتي اوژېړېخونه وه انس بن مالک رضی الله عنه وایې چې دگنډلونښي یې ماپه تېرکي لیدلي دي.
(۳) التسهیل ۴ /۲۰۲

ويل يې چي كله زه يادشم ته هم يادېږې[1] په البحر كي ليكي چي الله پاک د رسول الله صلى الله عليه وسلم ذكر له خپل ذكر سره يوځاى كړ لكه د تشهد په كلمه، آذان، اقامت، تشهد، خطابت او د قرآنكريم په زياتره آيتونو كي او له انبياوو عليهم السلام او د هغوى له أمتونو څخه يې وعده (ژمنه) اخيستي چي ورباندي ايمان راوړي او د غه رنګه د نبوي دربار شاعر حضرت حسان رضى الله عنه وايي:

**وضم الاله اسم النبي الى اسمه * اذا قال فى الخمس المؤذن اشهد. وشق له من اسمه ليجله * فذو العرش محمود وهذا محمد**

يعني: الله خپل نوم د خپل نبي سره يوځاى بيان كړ* په پنځه وخته چي مؤذن په منبر وايي (أشهد) همداسي نوم يې له خپل نوم څخه پرې ولوراوو* د عرش خاوند په نوم محمود او پيغمبر محمد دئ[2]

﴿ فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ﴾ نو بېشكه له سختي سره آسانتيا شته يعني ژردى چي الله به پراخي راولي او له سختي وروسته به خلاصون وي، مفسرين كرام ليكي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم او ملګري يې په مكه شريفه كي د كفارو او مشركينو له آزار څخه ډېر په تكليف وو نو الله جل جلاله دوى ته د آساني وعده وركړه لكه چي يې د سورت په پيل كي نعمتونه وريادكړل ترڅو ورته ډاډينه او تسلاوي ورکړه يې خوښ او اميد يې غښتلى او قوي شي ، الله ورته فرمايي هغه څوک چي تاته يې دا هومره نعمتونه دركړل هغه به په مشركانو باندي برى او فتح هم دركړي او دا تكليف به دي په آساني بدل شي او د مبالغې لپاره يې تكرار هم راووړ چي فرمايي ﴿ إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ﴾ او بېشكه سره له سختي آسانتيا شته خو اشيني مکوه او خفه کېږه مه په حديث شريف كي راځي چي هيڅكله به يو تكليف په دوو آسانتياوو غلبه ونه مومي (٣) ﴿ فَإِذَا فَرَغْتَ فَانصَبْ ﴾ كله چي (د خلګو له بلني) فارغ شي نو بيا د خالق په عبادت كي ځان ستړى كړه او كله چي د دنيوي چارو څخه وزګار شوې بيا ځان په أخروي چارو او د آخرت په غوښتلو ستومانه كړه ﴿ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَارْغَب ﴾ پس رغبت اوزاري كوه خپل رب ته ؛ يعني خپل مقصد هغه څه وګڼه چي د الله جل جلاله په نزد شته نه د دې فاني دنيا مال او متاع. ابن كثير ليكي: معنادا چي كله د دنيا له كارونو څخه وزګار شوې او علاقه دي ترې غوڅه شوه نو د الله عبادت ته ودرېږه او خپل رب ته خالص نيت او رغبت متوجه كړه[4].

---

(1) مختصر ابن كثير ٣ /٦٥٢

(2) ژباړن

(3) مختصر ابن كثير ٣ /٦٥٣

(4) أخرجه الحاكم

بلاغت:

پدې سورت کې چې دبديع اوبيان کومې ښکلاوې شته لنديزيې دادی:

۱ – تقريري استفهام چې دالله دنعمتونو دپه يادولو اواحسان منلولپاره يې فرمايي ﴿ أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ وَوَضَعْنَا عَنكَ وِزْرَكَ ٱلَّذِىٓ أَنقَضَ ظَهْرَكَ ﴾ گناهونه يې له درنو بارونوسره مشابه کړل هغه چې له پورته کولوڅخه يې دانسان اوږې ستومانه کېږي اوددغه درانه پېتي له پورته کولوڅخه عاجزکېږي اودغه دتمثيلي استعارې يوډول دی.

۲ – تنکيردتفخيم لپاره لکه: ﴿ فَإِنَّ مَعَ ٱلْعُسْرِ يُسْرًا ﴾ چې يُسريې نکره وباله گواکې دهغه تعظيم ته يې اشاره وکړه اولکه چې وايې دغه لويه اوستره آساني ده.

۳ – ناقص جناس لکه ﴿ يُسْرًا ﴾ اود ﴿ ٱلْعُسْرِ ﴾ لفظونوترمينځ چې راغلی دی.

۴ – دجملې تکرار ددې لپاره چې په زړه کې ځای ونيسي لکه داچې ﴿ إِنَّ مَعَ ٱلْعُسْرِ يُسْرًا ﴾ اودغه صنعت ته اطناب ويل کېږي چې له بديعي محسناتوڅخه گڼل کېږي.

۵ – مرصع سجع چې دآيتونودپيل مراعات پکې شوی دی لکه ﴿ فَإِذَا فَرَغْتَ فَٱنصَبْ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَٱرْغَب ﴾ اوددې په شان ﴿ وَوَضَعْنَا عَنكَ وِزْرَكَ ٱلَّذِىٓ أَنقَضَ ظَهْرَكَ ﴾ چې داهم دبديع له ښکلاوو څخه شمېرل کېږي دالله جل جلاله په مرسته دالشرح سورت تفسيرپشپړشو.

***

## د(التين )سورت مکي اواته آيتونه لري.

دسورت په وړاندې:

التين مکي سورت دی اودوه اساسي موضوع گاني څېړي:

۱ – دالله له لوري بشري نوع ته تکريم

۲ – په حساب اوجزاباندې دايمان موضوع.

سورت په سپېڅلوځايونو اومشرفواماکنوباندې په قسم کولوپيل شوی هغه ځايونه چې الله جل جلاله دوحی دنزول لپاره ځانگړي کړي اوټاکلي دي لکه بيت المقدس، دطورغراومکه مکرمه. الله پاک پدې مبارکوځايونولوړه اخلي چې انسان يې مکرم پنځولی اوپيداکړی دی په ښکلي شکل اوصورت يې جوړکړی اوپه عجيبه اونادره توگه يې تخليق کړی دی اوکه چېرې انسان دالله دنعمتونو شکرانه ادانکړي نوددوزخ ښکتني پوړته به ورلوېږي.

بياکافرته پدې توبيخ اوترټنه ورکول شوي چې له دې سره سره چې دالله په قدرت زيات څرگند دلائل ورته شته خوبياهم په قيامت اوبيرته راپاڅېدلو(حشر) ايمان نه راوړي.

په پای کې د الله جل جلاله د عدل بیان راغلی چې مؤمنانو ته به ثواب او کافرانو ته به عذاب ورکوي فرمايي ﴿ فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّينِ أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ ﴾ او پدې کلام کې د جزاء موندلو او معاد خبره سپينه شوې ده.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ وَالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ ۝١ وَطُورِ سِينِينَ ۝٢ وَهَٰذَا الْبَلَدِ الْأَمِينِ ۝٣ لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ۝٤ ثُمَّ رَدَدْنَاهُ أَسْفَلَ سَافِلِينَ ۝٥ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَلَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ۝٦ فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّينِ ۝٧ أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ ۝٨ ﴾ التين: ١ - ٨

## لغتونه:

(طورسينين) دا هغه د طور غر دی چې الله جل جلاله له حضرت موسی کليم الله سره ورباندې خبرې کړې وې او د (سنين) معنا مبارک دی (تقويم) تعديل ته ويل کېږي لکه چې وايي (قوم العود) يعني لرگی يې سم او سيخ کړ يا لکه چې وايي (قومه الدهر) يعني زمانې هغه سم کړ او عقل تجربه يې پخه شوه (ممنون) پرېکړې او مقطوع (الدين) جزاء ته ويل کېږي او له (دان) څخه اخيستل شوی دی لکه چې په حديث شريف کې راغلي (کماتدين تدان) يعني لکه څرنگه چې کوې جزا به مومې؛ لکه چې په پښتو کې وايي چې کرې هغه به ريبې.

## تفسير:

﴿ وَالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ ﴾ قسم دی په انځر او زيتون باندې، څرنگه چې انځر او زيتون مبارکې او ډېرې گټورې مېوې دي نو الله جل جلاله ورباندې قسم واخيست. ابن عباس رضی الله عنهما وايي چې دا هغه انځر دی چې تاسو يې خورئ او دا هغه زيتون دی چې تاسو يې زيښئ او غوړي يې نچوړوئ[1] عکرمة رضی الله عنه وايي چې الله جل جلاله ددې دوو مېوو د ونو د شنه کېدلو په ځای قسم اخلي ځکه انځر په دمشق کې زيات شنه کېږي او زيتون په بيت المقدس کې...[2] او پردې باندې دا ماکنو عطف کول هم دلالت کوي چې هغه طور او بلد أمين دی نو په مقدسو اماکنو قسم شو هغه چې الله تعالی په آسماني رسالاتو او وحی باندې شرافت وربښلی دي ﴿ وَطُورِ سِينِينَ ﴾ او قسم دی په (هغه مبارک غره چې نوم يې) طور دی هغه چې الله تبارک وتعالی ورباندې له موسی عليه السلام سره مکالمه کړې وه کوم چې ډېرې ونې لري ښکلی او مبارک دی خازن ليکي چې (سينين) پدې ونومول شو چې ښکلی او سپېڅلی دی او هر غر چې زياتې مېوه لرونکې ونې لري (سينين او سيناء) بلل کېږي (۳) ﴿ وَهَٰذَا الْبَلَدِ الْأَمِينِ ﴾ او قسم دی پدې ښار امان ورکونکي (دمکې) باندې ځکه هر څوک چې ورننه شي د هغه ځان او مال په امن وي لکه

---

[1] قرطبي تفسير ۱۹/۱۱۰
[2] البحر المحيط ۸/۴۸۹
[3] خازن تفسير ۴/۲۲۲

چي الله تعالی فرمايي ﴿ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا ءَامِنًا وَيُتَخَطَّفُ ٱلنَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ ﴾ الوسي ليکي چي: دپروعلماوو داد سپېڅلو ځايونو په نومونو قسمونه ګڼلي؛ ځکه بلدامين خومکه مکرمه ده (الله دي وساتي) چي دهيڅاهم خلاف پکي نشته اوطورسينين هغه غردی چي الله تعالی له موسی عليه السلام سره ورباندي خبري کړي وې اوطورسيناء ورته ويل کېږي اوتين اوزيتون له قتاده رضی الله عنه څخه روايت شوی چي مرادځني دوه غرونه دي يوپه دمشق اوبل په بيت المقدس کي دی اوله تين اوزيتون څخه مرادګواکي دهغوی دشنه کېدلو ځايونه دي اوچابياويلي چي له دوی څخه مقصد دوه پېژندل شوي وني دي دغه وروستی وينادعبدالله بن عباس اومجاهدرضی الله عنهم ده اوغرض له قسم اخيستلوڅې شيانودادی چي ددوی شرافت څرګندشي اوداچي هلته انبياء عليهم السلام را لېږلی شوي مبعوث شوي اوخير ،برکت پکي زيات دی[١] ابن کثيروايي: ځيني علماوو امامانوداسي رايه څرګنده کړي چي دغه درې ځايونه دي چي الله جل جلاله په هريوه کي دأولوالعزم مرسل انبياوو څخه پيغمبران رااستولي چي دستروشريعتونو څښتنان وولومړی دتين اوزيتون ځای دی چي هلته الله جل جلاله حضرت عيسی عليه السلام رالېږلی اودوهم دطورسينين ځای چي طور سيناورته وايي چي هلته الله تعالی له حضرت موسی بن عمران سره خبري کړي اودريم بلدأمين دی هغه چي څوک ور داخل شي امان ورکوي اوداهغه ځای دی چي الله تعالی پکي حضرت محمدصلی الله عليه وسلم را استولی دی اودتورات په پای کي دغه درې سره ځايونه ذکرشوي دي چي وايي: نورد طور سيناڅخه راغلی (هغه غرچي موسی عليه السلام له الله سره ورباندي خبري کړي) اوپه (ساعير) کي بربښېدلی (چي دبيت المقدس غردی هغه چي دعيسی عليه السلام مبعث وو) اوله (فاران) څخه خپورشوی (چي دمکي غرونه دي اوالله تعالی هلته محمدصلی الله عليه وسلم رااستولی دی، دغه وروستی والی دزماني په ترتيب سره ذکرشوی اوقسم په هغه ترتيب اخيستل شوی چي لومړی دشرافت خاوند دوهم ترهغه زيات شرف لرونکی اودريم ترګردودزيات شرافت څښتن [٢] اوقسم خواب داچي ﴿ لَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ فِىٓ أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ﴾ خامخاپه تحقيق موږپيداکړی دی انسان په ډېرښه اعتدال سره ټول ښه اوغوره صفتونه ورکول شوي ښکلی صورت، دنګه ونه، متناسب اندامونه اوپه علم اوفهم باندي ښايسته په عقل اوتميزباندي سينګاراوپه نطق اوادب باندي پسوللی دی مجاهدوايي له احسن تقويم څخه مراد ښکلی صورت اوښايسته بدن دی[٣] ﴿ ثُمَّ رَدَدْنَٰهُ أَسْفَلَ سَٰفِلِينَ ﴾

بياوګرزاوو موږهغه (انسان) ډېر ښکته ترښکتونه چي لاندي پوړی ددوزخ ده هغه دخپل خلقت له وجائبوسره سم يې رفتار ندی کړی اوهغه ورکړي مزاياوي يې زموږپه طاعت عبادت کي ندي لګولي څکه به يې دوزخ ته اچوو. مجاهد اوحسن رحمهما الله وايي چي: (اسفل سافلين) داورښکتنی پوړی ته وايي ، ضحاک رحمه الله ليکي چي زاړه عمرته رسېدل ترې مراددی[۴] چي له ځواني وروسته زوړشي

---

(١) روح المعاني ٣٠/ ١٧٣
(٢) مختصرابن کثير ٣ /٦٥۴
(٣) تفسيرطبري ٣٠ / ١٥٦
(۴) قرطبي تفسير ١٩ /١١٥

اوله قوته وروسته ناتوانه اوضعيف شي ، الوسي ليکي چي دسياق په لحاظ متبادرله کلام څخه خودادي چي پدې کي به دکافرانسان حال ته اشاره وي هغه چي ترټولو په بدحالت کي به وي وروسته له هغه چي په ډېرښه حالت کي وو(١)﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾مگرهغه کسان چي ايمان يې راوړی دی اوکړي يې دي ښه عملونه ؛ يعني پرته له متقيانومؤمنانوهغوی چي ايمان او صالح عمل يې سره يوځای کړي دي ﴿ فَلَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴾نووي به دوی ته اجرثواب بې انتهاء بلاانقطاع چي پرېکړون به نلري اودغه ثواب جنت چي د پرهېزگارانوځای دی ﴿ فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِٱلدِّينِ ﴾ پس څه شی دی چي تاباعث کوي په دروغ گڼلودورځي دجزاء؛ خطاب دانسان لپاره دالتفات په توگه شوی يعني ای منکردبعث انسانه ستادِدروغ گڼلو سبب څه شی دی ؟ سره له دې چي دومره زيات واضح اوڅرگنددلائل درته شته ځکه دانسان پيدا ايښت له نطفې څخه پداسي ښکلي شکل اوصورت دالله جل جلاله په قدرت له ډېرو څرگندو دلائلوڅخه دی چي دغه الله کولای شي انسان بياهم راژوندی اودحساب لپاره يې راپاڅوي نوسره له دې زياتودلائلو بياڅه شي وهڅولې چي دقيامت ورځ دروغ گڼې؟ ﴿ أَلَيْسَ ٱللَّهُ بِأَحْكَمِ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴾ آياندی الله.ښه اولوی حاکم دټولوحاکمانو؟ بلکه ښه لوی حاکم دی پرټولوحکم کونکوباندي) يعني دغه الله چي داسي ښکلی خلقت يې دانسانانوکړی ترټولوعادلانوښه عادل په حکم ،قضااوفيصله کي نه دی؟ په حديث شريف کي راغلي کله چي به رسول الله صلى الله عليه وسلم داآيت ولوست نوبه يې ويل: (بلى وأناعلى ذلک من الشاهدين) يعني هو ! الله أحكم الحاكمين اوزه پدې باندي له شاهدي ورکونکوڅخه يم

## بلاغت

پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

١ - عقلي مجازکله چي حال ذکرشوی اومحل ترې مرادوي لکه:﴿ وَٱلتِّينِ وَٱلزَّيْتُونِ ﴾ چي ذکرشوی مرادځني دهغودشنه کېدلوځايونه يعني شام اوبيت المقدس شی.

٢ - دطباق صنعت چي د﴿ أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ﴾اود﴿ أَسْفَلَ سَٰفِلِينَ ﴾ترمينځ راغلی دی.

٣ - اشتقاقي جناس کوم چي د﴿ بِأَحْكَمِ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴾ په کلمه کي شته

٤ - له غياب څخه خطاب ته التفات کوم چي په ترټنه اوتوبيخ کي زيات مؤثراوکاري وي کله چي فرمايې﴿ فَمَا يُكَذِّبُكَ ﴾؟ -

---

(١) تفسيرالوسي ٣٠/ ١٧٧

۵- تقريري استفهام لکه ﴿ أَلَيْسَ ٱللَّهُ بِأَحْكَمِ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴾ ؟

۶- مرصع سجع لکه ﴿ ٱلْبَلَدِ ٱلْأَمِينِ.. أَسْفَلَ سَٰفِلِينَ ..بِأَحْكَمِ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴾ والله أعلم

لطيفه:

امام قرطبي ليکي چي (عيسی هاشمي) ته خپله مېرمن خوراګرانه اومحبوبه وه يوه ورځ يې ورته ويل چي که ترسپوږمۍ ښايسته نه يې ته دي په درې طلاقونو طلاقه يې نوهغه ترې ګوښه شوه ويل يې ماته دي درې طلاقه راکړه اوپخپله دی هم زيات خفه اوخواشينی شو ، منصورخليفه ته ورغی صورت حال يې ورته بيان کړهغه علماء راوغوښتل اوفتوای يې ترې وغوښتله ټولو په يوه خوله وويل چي ښځه طلاقه شوي ده خويوتن دامام ابو حنيفه رحمه الله له ملګرو څخه پټه خوله ناست وو منصورترې پوښتنه وکړه چي ته ولي څه نه وايې ؟ هغه وويل ای أمير المؤمنينه الله فرمايي ﴿ لَقَدْ خَلَقْنَا ٱلْإِنسَٰنَ فِىٓ أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ﴾ نوهيڅ شی ترانسان ښکلی اوښايسته نشته هغه ورته وويل : رښتياوايې اوبيرته يې خپله مېرمن کړ.

دالله جل جلاله په مرسته دالتين سورت تفسيربشپړشو.

***

## د(العلق) سورت مکي اونولس آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

دالعلق سورت چي دأقرأ په سورت نومول کېږي مکي اولاندني قضاياوي څېړي:

لومړی: په محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم باندي دوحی دنزول پيل.

دوهم: دانسان دسرغړوني موضوع چي کله دمال دولت په سبب دالله له اوامروطغيان کوي.

دريم: دبدمرغه ابوجهل کيسه چي کله يې پيغمبرعليه السلام له لمانځه څخه منع کاوو.

دسورت پيل دالله جل جلاله په هغه فضل چي په رسول الله باندي شوی اوقرآنکريم يې چي تلپاتي معجزه ده په غارحراء کي ورباندي نازل کړی دی هلته چي ويې فرمايل ﴿ ٱقْرَأْ بِٱسْمِ رَبِّكَ ٱلَّذِى خَلَقَ ﴾ تر﴿ عَلَّمَ ٱلْإِنسَٰنَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ﴾ پوري.

وروسته دانسان هغه سرغړونه چي دمال اوقدرت درلودلوپه وجه يې کوي اودالله له حکمونو څخه غاړه غړوي رااخلي ،لازم خوداووچي دالله دفضل اومهرباني شکريې پرځای کړی وای نه داچي انکاراوکفران يې کوي بيايې دالله لوري ته دورتلو ورته يادونه کوي څوخپله جزاء ومومي ارشادکوي ﴿ كَلَّآ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَيَطْغَىٰٓ أَن رَّءَاهُ ٱسْتَغْنَىٰٓ إِنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ ٱلرُّجْعَىٰٓ ﴾.

ورپسي دابوجهل لعين کيسه رااخلي هغه چي ددغه أمت فرعون وو اورسول الله ته به يې وخت په وخت اخطار اوتهديدورکاووله لمانځه څخه به يې منع کاووترڅوچي دبتانوحمايت يې کړی وي نوالله فرمايي ﴿ أَرَءَيْتَ ٱلَّذِى يَنْهَىٰ عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰٓ ﴾ دآيتونوترپايه پوري

دسورت پای ددغه بدمرغه کافرلپاره چي که همداسي پخپل ضلالت اوطغیان کي پاتي شي په وعیداورولوکېږي اوهمداسي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته حکم کوي چي ددې مختورن گنهگار تهدیدونوته دي غوږنه ایږدي فرمايي ﴿ كَلَّا لَئِن لَّمْ يَنتَهِ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ ﴾. دسورت ترپایه چي ﴿ كَلَّا لَا تُطِعْهُ وَاسْجُدْ وَاقْتَرِب ﴾.

دسورت پیل دلوست اوزده کړي لورته په بلنه اودعوت شوی اوپای یې په لمانځه اوعبادت ترڅوعلم اوعمل سره یوځای اوپیل اوپای سره پېیلي اومتناسق وي.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ﴿١﴾ خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ ﴿٢﴾ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ ﴿٣﴾ الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ﴿٤﴾ عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ﴿٥﴾ كَلَّا إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَىٰ ﴿٦﴾ أَن رَّآهُ اسْتَغْنَىٰ ﴿٧﴾ إِنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ الرُّجْعَىٰ ﴿٨﴾ أَرَأَيْتَ الَّذِي يَنْهَىٰ ﴿٩﴾ عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰ ﴿١٠﴾ أَرَأَيْتَ إِن كَانَ عَلَى الْهُدَىٰ ﴿١١﴾ أَوْ أَمَرَ بِالتَّقْوَىٰ ﴿١٢﴾ أَرَأَيْتَ إِن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴿١٣﴾ أَلَمْ يَعْلَم بِأَنَّ اللَّهَ يَرَىٰ ﴿١٤﴾ كَلَّا لَئِن لَّمْ يَنتَهِ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ ﴿١٥﴾ نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ ﴿١٦﴾ فَلْيَدْعُ نَادِيَهُ ﴿١٧﴾ سَنَدْعُ الزَّبَانِيَةَ ﴿١٨﴾ كَلَّا لَا تُطِعْهُ وَاسْجُدْ وَاقْتَرِب ۩ ﴿١٩﴾ ﴾ العلق: ۱ - ۱۹

**لغتونه:**

(علق) دعلقة جمع اوتینگيويني ته وايي اوعلقه یې څکه بولي چي په رحم پوري ټینگه نښتي وي(نسفعًا) (سفع) په زوره سره راکښلوته ویل کېږي اهل لغت وايي (سفعت بالشئ) یعني شی مي ټینگ راونیواو(سفع بناصية فرسه) معناداچي خپل آس یې ټینگ ونیو(ناصية) دتندي وېښتانوته وايي (چي پېکی یې بولي) (الزبانية) له زبن څخه اخیستل شوی اودفع کولوته وايي اومقصدورڅخه دعذاب پرښتي دي، هغه چي سختي نیونکي دي عرب داهغه چاته وايي چي سخت نیونکی وي.

**دنزول سبب:**

روایت کاووشي چي ابوجهل یوه ورځ خپلوملگروته وویل چي آیامحمدکله ستاسي په وړاندي تندی په خاوروایږدي؟ معناداچي ستاسي په مخ کي سجده لگوي اولمونځ کوي؟!) هغوی وویل هو! نوهغه په لات اوعزی قسم واخیست که دی یې ووینې نوبه یې په غاړه کي پښه (لغته) ورکېږدي اومخ به یې په خاورو ورولړي! یوه ورځ کله چي یې رسول الله صلی الله علیه وسلم په لمانځه اداکولو وموندنویې وغوښتل چي په غاړه کي یې پښه ورکېږدي خونابېره بیرته شاته وخوځېدواو لاسونه یې د خوندي کېدلوپه شان ښوړول چاوړته وویل څه دروشوو؟! هغه ویل زمااودهغه ترمینځ داورخندق پیداشو، دهیبت نه ډکه شېبه وه (دپرښتو) کوځرمي لیدل.

نورسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل که ماته نژدې شوی وای ملائکوبه ټوټې ټوټې تښتولای وای وریسې الله جل جلاله داآیت شریف نازل کړ[1] ﴿ أَرَأَيْتَ الَّذِي يَنْهَىٰ عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰ... ﴾ دسورت ترپایه.

[1] أخرجه مسلم دابن کثیر مختصر ۳/ ۶۵۸ اوخازن ۴/ ۲۷۰ وگوره

تفسیر:

﴿ اَقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ﴾(ولوله (ای محمده !قرآن) په برکت دنامه درب خپل هغه رب پالونکی چي پیداکړي یې دي (ټول مخلوقات) دالومړنی الهي خطاب دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته متوجه شوی اوپکي دلیک لوست اوپوهي لوري ته بلنه ورکړل شوي ده ځکه نودغه داسلامي دین شعاردی یعني ولوله ای پیغمبره په مرسته دنامه دستررب خپل هغه چي ټول کائنات اوعالم یې پیدا کړي دی، وروسته یې د مخلوق څخه دانسان دشان دلوړوالي په خاطرداسي تفسیروفرمایو ﴿ خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ ﴾(پیدایې کړانسان له ټوټودټرلیوشووینوڅخه )یعني دغه انسان چي اشرف المخلوقات دی له علقه څخه یې پیداکړی،علقه کوچني حیوان ته وایه شي اوسني عصري علوموداثابته کړي چي کومي مني چي له انسان څخه راوزي په وړووړوحیواناتومشتمل وي چي په سترګونه لیدل کېږي بلکه دمیکروسکوب په مټه لیدل کېدای شي هغه داسي ژوندي ساري دي چي سراوپای لري، فتبارک الله أحسن الخالقین[1] قرطبي لیکي: انسان یې ځانګړی یادکړچي: دادهغه دشرافت نښه ده اوعلقه لمده وینه ده علقه ورته ځکه وایې چي که هغه په هرڅه تېرېږي ورسره دلمدوالي په سبب نښلي[2] ﴿ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ ﴾ولوله(ای محمده !قرآن)حال داچي رب ستالوی کریم دی، هسي لوی کریم دی چي بل کریم ورسره ساری اوبرابرنشته دهغه په کرم باندي همدادلالت کوي چي بندګانوته یې هغه څه ورزده کړل چي پخوایې نه وو زده کړي ﴿ الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ﴾هغه ذات چي ښوولی یې دی خط انسان ته په قلم سره ،ښوونه یې کړي ده انسان ته دهغوشیانوچي دی (پخوا ) پرې نه پوهېدویعني هغه خط او کتابت په قلم سره انسان ته وروښوداوله علوموا و معارفو څخه یې هغه څه وروښودل چي پخواانسان پرې نه پوهېدواودجهالت له تورتم څخه یې دعلم اوپوهي روښنایې ته ولېږداوونوځرنګه چي الله لیک دقلم په واسطه ورزده کړهمداراز پرته له کومي واسطې تاته علم درکوي که څه هم چي ته (أمی )په لوست اولیک نه پوهېږي ، قرطبي لیکي: الله تعالی دکتابت په بهتري تنبیه فرمایلي ځکه چي په هغه کي خورازیاتي ګټي خوندي دي اودغه علم کتابت ،دنوروعلومو، حکمتونو،تواریخو، اخبارونود پخوانیو اولومړنیو خلکوکارنامې اوحالات خوندي ساتي اوترموږ یې رارسوي که دغه علم کتابت نه وای ددین اودنیاچاري به ویجاړي وای[3] دغه پنځه آیتونو د قرآنکریم دپیل آیتونه دي لکه چي په صحیح احادیثوثابت شوي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم په غارحراء کي په عبادت لګیاوو چي پرښته (ملائک ) ورته راغله اوورته یې وویل: (اقرأ) رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل (ماأنابقارئ)

---

[1] الطب محراب الایمان ج۲ /۵۳

[2] قرطبي تفسیر۱۹ /۱۱۹

[3] قرطبی تفسیر۱۹ /۱۲۰

[4] متفق علیه أخرج الشیخان عن عائشة رضی الله عنهاقالت: أول مابدئ رسول الله صلی الله علیه وسلم من الوحی الرؤیا الصادقة، فکان لایری رؤیاالاجاءت مثل فلق الصبح ثم حبب الیه الخلاء فکان یأتي حراء فیتحنث (أی یتعبد ) فیه اللیالی

ابن کثیرلیکي: لومړی دقرآنکریم نازل شوي آیتونه همدغه دي هغه لومړنی رحمت اونعمت دی چي الله تعالی پخپلوبندګانولوروليی دی اوپدې کي هغه څه ته تنبیه ده چي لومړی څل انسان له علقې څخه پیداشوی اولومړنی کرم چي الله وربانديي کړی داچي دهغه څه علم اوپوهه يې ورکړي چي پخواپرې نه پوهېدو، انسان يې په علم او پوهه مکرم اومشرف کړی اوداهغه څه دي چي دحضرت آدم علیه السلام امتیازاوغوراوی يې په ملائکوکړی دی.(۱) وروسته الله تعالی دانسان دسرغړوني اوطغیان سبب بیانوي چي ﴿ كَلَّا إِنَّ الْإِنسَانَ لَيَطْغَىٰ ﴾ رښتیاده داخبره بېشکه انسان خامخاسرکشي کوي ،له الله جل جلاله څخه بې پرواکېږي اودهوا هوس پیروي کوي ﴿ أَن رَّآهُ اسْتَغْنَىٰ ﴾ (ددې له امله چي ويني ځني خپل ځان بې پروا(په مال سره) یعني کله چي خپل ځان غني اوبډای ويني له الله څخه بې پرواکېږي الله جل جلاله ورته داسي تهدید او وعیدفرمایي ﴿ إِنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ الرُّجْعَىٰ ﴾ بېشکه رب ستاته دی (ای انسانه) ورتلل (ترڅوپه اعمالوجزا درکړي په آنشریف کي ددې تهدیددی چي دطغیان انجام اوعاقبت ډېرنیمه خواوی. مفسرین کرام لیکي چي دغه آیتونه اونور دسورت ترپایه پوري راتلونکي مبارک آیتونه دابوجهل په باب کي رانازل شوي دي دسورت دپیل له آیتونوڅخه بنه ډېره موده وروسته بیادغه آیتونه رانازل شول ځکه چي ابوجهل دډېرمال درلودلوپه سبب طغیان کاووه اوله رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یې خورازیاته دښمني پالله ددې حکم عام دی اوترده پوري خاص نه شمېرل کېږي(۲) ﴿ أَرَأَيْتَ الَّذِي يَنْهَىٰ عَبْدًا إِذَا صَلَّىٰ ﴾ آیاويني ته هغه (ابوجهل) چي منع کوي بنده (محمد) کله چي لمونځ کوي ،پدې کي ددغه فاجربدکرداره په حال باندي تعجب دی یعني ای محمده ! ددغه مجرم اوګنهګارله حاله خبر راکړه چي هغه یوبنده دالله له بندګانوڅخه له لمانځه راګرزوي دی څومره ناپوه اوبدعمله دی؟! ابوالسعودلیکي چي پدغه آیت کي ددغه سرغړونکي دبدحال څرګندول دي اوپه عین حال کي دهغه په حال تعجب کول دی اوګواکي دادومره بداوناکاره عمل دی چي دتعجب ورکېږي (۳) اودمفسرینو کراموپدې اتفاق دی چي لمونځ کونکی بنده حضرت محمدصلی الله علیه وسلم اومنع کونکی لعین ابوجهل دی چي ده ویلي وو که مي محمدولیدچي لمونځ کوي په ورمېږ(غاړه) به يې پښه ورکېږدم (۴) ﴿ أَرَأَيْتَ إِن كَانَ عَلَى الْهُدَىٰ ﴾ آیاويني ته که چېري وی (دغه بنده) په لاري سمي یعني خبرراکړه که چېري دغه لمونځ کونکی بنده (چي نبي علیه السلام دی) چي ته يې له لمانځه کولوراګرزوې په سمه لاره او پخپلوکړوکي دصلاح خاوندوي !! ﴿ أَوْ أَمَرَ بِالتَّقْوَىٰ ﴾ یاامرکوي خلګوته په تقوی سره چي توحیداو اخلاص ورښيي او سمي

---

ذوات العدد...) الحدیث.عائشه رضی الله عنهاوایي دپیغمبر ﷺ دوحی لمړی پیل رښتونی خوبونه ووچی خوب به یی ولیدسهار په شان به روڼ رښتیاوخوت بیاورته یوازیتوب غوره شو حراء ته به تلوشمیرلی شپی به یی اعتکاف یی کاوو.

(۱) دابن کثیرمختصر ۳/ ۵۷۵

(۲) دصاوي حاشیه ۴/ ۳۳۲

(۳) ابوالسعودتفسیر ۵/ ۲۷۴

(۴) شان نزول وګوره -

لاري ته يې رابولي آيا ته هغه ترټې او له لمانځه يې راګرزوې؟ (۱) ته څومره أحمق او نالائق يې چې دداسي سپېڅلي خويونو خاوند چې دالله منونکی دخلګو سمي لاري ته بلونکی اوښوونکی منع کوې؟ دا څومره

دتعجب خبره ده ؟! بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم ته خطاب راګرزي فرمايي ﴿ أَرَءَيْتَ إِن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴾

آيا وينې ته که دامنع کونکی وي چې درسول الله تکذيب کوي اومخ اړوي له ايمانه ﴿ أَلَمْ يَعْلَم بِأَنَّ ٱللَّهَ يَرَىٰ ﴾

آيا نه پوهېږي دغه (منکر کافر) چې بېشکه الله يې ويني؟ اودهغه احوال افعال څاري او ژردی چې جزابه ورباندي ور کړي ! ! افسوس دده په حال چې څومره ناپوه اوبې عقل دی بيايي دده داسي ترټنه وکړه چې

﴿ كَلَّا لَئِن لَّمْ يَنتَهِ لَنَسْفَعًۢا بِٱلنَّاصِيَةِ ﴾ (داسي (ور) نه دی قسم دی که منع نشو (له بد عمله) نو خامخا به يې سخت

راکاږو په وېښتو دتندي سره ) او اورته به يې بوزو هلته به يې پکي وغورزوو ﴿ نَاصِيَةٍ كَٰذِبَةٍ خَاطِئَةٍ ﴾ (په داسي تندي چې دروغجن خطاکاردی ) يعني خاونددغه وچولي (تندي د هر فاجر اوګنهګاردی په التسهيل کي ليکي چې تندي ته ددروغجن اوخطانسبت کول مجازدی په حقيقت کي دتندي (وچولي) خاونددروغجن اوګنهګاردی ، خاطئ هغه چاته وايي چې په قصد ګناهونه کوي ا و مخطئ

بيا هغه څوک دی چې بې له قصده ګناه څني صادرېږي (۲) ﴿ فَلْيَدْعُ نَادِيَهُۥ ﴾ پس راودي بولي اهل دمجلس

خپل (اومرسته دي ورځخه وغواړي) ﴿ سَنَدْعُ ٱلزَّبَانِيَةَ ﴾ ژردی چې مو ربه هم راوبولو ملائکي سختي دعذاب (ددوزخ هغوی چې غلاظ شداددي؛ روايت کېږي چې يوه ورځ حضرت محمدصلی الله عليه وسلم په مسجدحرام کي له مقام ابراهيم سره په لمانځه اداکولو ولاړووا وابوجهل يې له خواسره تېرېدونويې ورته وويل : ای محمده ! ماته له دې څخه منع کړی نه وې ؟ نو رسول الله صلی الله عليه وسلم سختي خبري ورته وکړې ابوجهل په ځواب کي ورته وويل : ما په څه شي باندي وېروې زما دي په الله سوګندوي زمامجلس ملګري په دې وادي کي ترهرچازيات دي هغه ووچي داآيت نازل شو

﴿ فَلْيَدْعُ نَادِيَهُۥ سَنَدْعُ ٱلزَّبَانِيَةَ ﴾ ابن عباس رضی الله عنهماوايي که چېري ابوجهل دخپل مجلس ملګري

راغوښتي وای سمدستي به د عذاب پرښتو هغه اوملګري هلاک کړي وای (۳) ﴿ كَلَّا لَا تُطِعْهُ ﴾ نه دی

داسي لکه چې وايي دده فرمان مه وړه (چې له لمانځه څخه دي منع کوي ﴿ وَٱسْجُدْ وَٱقْتَرِب ﴾ سجده لمونځ

---

(۱) ځرګنده خبره داده چې هغه څوک چې په هدايت اوتقوی دی هغه محمدرسول الله دی اودغه ويناابن عطيه اوجمهورو علماوو غوره کړي ده اوزمخشري بيا ليکي چې دغه وينادنهی کونکي منع کونکي په هکله راغلي ده اوداضعيفه خبره ده.

(۲) التسهيل لعلوم التنزيل۴ /۲۰۹

(۳) قرطبي تفسير ۱۹ /۱۲۷

کوه اونږدې شه الله ته په طاعت سره) په حديث شريف کې راځي چې دبنده تر ټولو نږدې حالت د الله په وړاندې دسجدې حال دی (أقرب مايکون العبد من ربه وهو ساجد).

بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې دبديع اوبيان کومې ښکلاوې شته لنديزيې دادی:

١- اطناب دفعل په تکرارسره چې فرمايې ﴿ اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ... ﴾بيا وايې ﴿ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ ﴾چې پدې کې دلوستلو اوپوهې په هکله اهتمام ته اشاره ده.

٢- ناقص جناس لکه د ﴿ خَلَقَ ﴾او ﴿ عَلَقٍ ﴾ترمينځ چې راغلی دی.

٣- دسلب طباق چې فرمايې ﴿ عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ﴾.

٤- کنايه چې دالله جل جلاله پدې کلام کې راغلي ارشادکوي چې ﴿ أَرَأَيْتَ الَّذِي يَنْهَىٰ ﴿٩﴾ عَبْدًا ﴾چې په بنده باندې له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه کنايه راغلې ده اوداسې يې ندې فرمايلي چې (ينهاک) ترڅو دعليه السلام دشان تعظيم اوقدرتفخيم ترسره شي.

٥- استفهام دتعجب لپاره کله چې دمنع کونکي له شان څخه تعجب ښکاره کوي اوفرمايې ﴿ أَرَأَيْتَ الَّذِي يَنْهَىٰ عَبْدًا... ﴾﴿ أَرَأَيْتَ إِن كَانَ عَلَى الْهُدَىٰ ﴾.

٦- عقلي مجازپدې کلام کې ﴿ نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ ﴾يعني کوم تندی چې خاونديې دروغجن او خطاکاروي دروغجن کېدل يې وچولي (تندي) ته نسبت کړی.

٧- مرصح سجع کوم چې په قرآن کريم کې زياته راځي اوپدې سورت کې له ورايه ښکاره ده.

دالله جل جلاله په مرسته دالعلق سورت تفسيربشپړ شو.

***

## د(القدر)سورت مکي اوپنځه آيتونه لري

دسورت په وړاندې:

دالقدرسورت مکي اودقرآنکريم دنزول له پيل څخه خبري کوي، دقدردشپې فضيلت بيانوي هغه سپېڅلې شپه چې پکې دبرقدسي انواراوتجليات شته اودالهي رحمت وږمې پکې چلېږي کومې چې د الله تعالى يې په خپلو مؤمنوبندګانو لوروي اودادقرآنکريم دتکريم په هکله دی،په سورت کې د ابراروپرښتودراکوزېدلوخبره راځي اوترسادک سهاره پورې امان اوسلامتيابيانوي،څومره دعظمت اولوړې خاونده بختوره شپه چې دالله پاک په نزدترپوزرومياشتوبهتره ده!!

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ ﴿١﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا لَيْلَةُ الْقَدْرِ ﴿٢﴾ لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ﴿٣﴾ تَنَزَّلُ الْمَلَائِكَةُ وَالرُّوحُ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِم مِّن كُلِّ أَمْرٍ ﴿٤﴾ سَلَامٌ هِيَ حَتَّىٰ مَطْلَعِ الْفَجْرِ ﴿٥﴾ ﴾القدر: ١ - ٥

تفسیر:

﴿ إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةِ ٱلْقَدْرِ ﴾ بېشکه موږ نازل کړي دي دغه قرآن په شپه دقدر کي) يعني موږ نازل کړي دغه قرآنکريم دقدر اوشرف په شپه کي او مراد له انزال څخه هغه دی چي له لوح محفوظ څخه يې د دنيا آسمان ته نازل کړی دی او بيا حضرت جبريل عليه السلام د درويشت کاله په اوږدو کي مخکي ته را ښکته کړی دی لکه چي عبدالله بن عباس رضی الله عنهما روايت کوي وايي: الله تعالى قرآنکريم يو ځل له لوح محفوظ څخه بيت العزت ته را واستاوو چي د دنيا په آسمان کي دی وروسته بيا په تفصيلي توګه د پېښو د رادبره کېدلو سره سم په درويشت کاله موده کي په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندي نازل شو(۱)﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ ﴾ او څه شي پوه کړې ته چي څه شی دی ليلة القدر؟ پدې کي تعظيم او تفخيم دی. خازن ليکي دا اسلوب په تعبيرکي ددې لپاره راوړل شوی چي د تعظيم وجه يې بيان او دهغې د پېژندګلوي لپاره تشويق پيداشي لکه چي ورته وايې دهغې د بهترې په هکله ته څومره پوهېږې؟!(۲) بيا الله جل جلاله د دغه د شرف خاوند د شپې بهتري له دريو وجوهاتو بيانوي فرمايي﴿ لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ﴾ شپه دقدر تر زرو مياشتو بهتره ده څکه پدې شپه کي د قرآنکريم نزول راغلی دی .مفسرين کرام ليکي: په شپه دقدرکي نېک عمل تر زرو هغو مياشتو چي پکي د قدر شپه نه وي غوره او بهتره دی. روايت کاوه شي چي په تېرو اُمتونو کي به يوه سړي وسله راواخيستله اود الله په لارکي به يې زرمياشتي جهاد کاوو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم او نور مسلمانان متعجب شول هغه وو چي رسول الله دخپل امت لپاره هم داسي تمنا او آرزو کوله او ويل يې : ای زمار به زمامت دي ترګردو اُمتونو د لند عمرخاوندان ګرزولي او څکه يې تر هغو لو نېک عملونه هم کم دي!! نو هغه وو چي الله تعالى دقدر او شرف شپه ورباندي پېرزو کړه او ورته يې وويل چي د قدر شپه ستا او ستا دامت لپاره تر زرو مياشتو بهتره او غوره ده کوم چي هغه سړي به پکي جهاد کاوو(۳) مجاهد وايي: چي د دغې شپې عمل، روژه او قيام تر زرو مياشتو غوره او بهتر دی دغه يې د غوراوي او فضيلت لومړی وجه ده بيا الله فرمايي﴿ تَنَزَّلُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ وَٱلرُّوحُ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِم مِّن كُلِّ أَمْرٍ ﴾ نازلېږي ملائکي او روح د جبريل (امين) پدغه پدغه شپه کي په حکم درب ددوی د پاره د هر کار لپاکلي شوی (پدغه کال تر راتلونکي کال پوري او دغه دفضيلت دوهمه وجه ،دريمه يې داچي﴿ سَلَٰمٌ هِىَ حَتَّىٰ مَطْلَعِ ٱلْفَجْرِ ﴾ د سلامتيا شپه ده دغه تر وختـه د ختلو د سباپوري؛ پرښتي په مسلمانانو سلام استوي او پدې شپه کي له خير څخه پرته بل څه الله تعالى د تاسو په هکله نه فرمايي.

بلاغت:

پدې سورت کي چي د بديع او بيان کومي ښکلاوي شته لنډ يزيې دادی:

---

(۱) مختصر ابن کثير ۳/ ۶۵۳
(۲) دخازن تفسير ۴/ ۲۷۵
(۳) د ابن عباس او مجاهد روايت .

۱- د اطناب صنعت چې ليلة القدر يې درې ځله تکرار کړی او داد هغې د تعظيم او شان دلوړوالي وجه ده.

۲- استفهام د تفخيم او تعظيم لپاره لکه ﴿ وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا لَيۡلَةُ ٱلۡقَدۡرِ ﴾.

۳- ذکر د خاص وروسته له عام څخه لکه دا چې ﴿ تَنَزَّلُ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ وَٱلرُّوحُ فِيهَا بِإِذۡنِ رَبِّهِم ﴾ چې حضرت جبريل عليه السلام يې له ملائکو وروسته بيا ذکر کړ تر څو د هغه د ستر قدر په هکله يې تنبيه فرمايلي وي

۴- د فواصلو توافق لکه: ﴿ لَيۡلَةُ ٱلۡقَدۡرِ ، أَلۡفِ شَهۡرٖ ، مِّن كُلِّ أَمۡرٖ ﴾ چې دا هم له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي

د الله جل جلاله په مرسته د القدر سورت تفسير بشپړ شو.

***

## د البينة سورت چې (لم يکن) يې هم بولي مدني دی او اته آيتونه لري

د سورت په وړاندې:

دغه سورت چې مدني دی لاندې قضاياوې څېړي:

۱- د محمدي رسالت په وړاندې د اهل کتابو دريځ.

۲- په عبادت کې د الله لپاره اخلاص.

۳- په آخرت کې د نېکمرغه او بدمرغه کسانو هستوګنځی.

په پيل کې سورت د يهودانو او نصرانيانو خبر راوړي او د محمدي رسالت په وړاندې د دوی دريځ کله چې حق او حقيقت څرګند او ځلايې خوره شوه بيانوي؛ سره له دې چې هغوی د آخري پيغمبر صفات پېژندل او د هغه د بعثت يې تو د انتظار کاوه خو کله چې خاتم النبيين مبعوث شو نو دوی يې په رسالت کافران شول او ورسره د ښمني يې پيل کړه او هغه يې دروغجن وګاڼه

بيا دغه مبارک سورت د ايمان له برخو څخه ديوې مهمې برخې خبره کوي چې هغه د الله جل جلاله لپاره د عبادت اخلاص دی هغه اخلاص چې د ګردو اديانو پيروانو ته وربانديې امر کوي تر څو يوازې د الله جل جلاله لپاره ذکر وکړي الله ته مخ کړي او په ټولو کړو وړو کې يوازې له الله پاک سره اخلاص ولري نه بل چا سره.

لکه چې د انسانانو د شريرو خلکو هغه چې مجرمين او د اهل کتابو او مشرکينو کفار دي په دوزخ کې د تلپاتې کېدو او خلود خبر ورکوي او همدارنګه د مسلمانانو هغوی چې د مخلوقاتو تر ټولو غوره او بهتر دي د نېکي ماڼۍ په جنت کې ښيي چې دوی به له انبياوو عليهم السلام صديقينو، شهداوو، او صالحينو سره ملګري وي دا تل تر تله جنت او نعمتونه به د دوی د طاعاتو او اخلاص له امله وي

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ مُنفَكِّينَ حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ ﴿١﴾ رَسُولٌ مِّنَ اللَّهِ يَتْلُو صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ﴿٢﴾ فِيهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ﴿٣﴾ وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ ﴿٤﴾ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ حُنَفَاءَ وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ ۚ وَذَٰلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ ﴿٥﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا ۚ أُولَٰئِكَ هُمْ شَرُّ الْبَرِيَّةِ ﴿٦﴾ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَٰئِكَ هُمْ خَيْرُ الْبَرِيَّةِ ﴿٧﴾ جَزَاؤُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّاتُ عَدْنٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۖ رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ۚ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهُ ﴿٨﴾ ﴾ البينة: ١ - ٨

## لغتونه:

(منفكين) جلا کېدونکي (فک) په اصل کې پرانستلو ته وايې او له دې څخه داو ينا اخيستل کېږي چې (فک الکتاب) کتاب يې پرانستل (فک الخلخال) پايزېب يې پرانستل (البينة) څرګند دليل حجت او کوټلی برهان (مطهرة) له باطلو او شبهاتو څخه پاک سوتره او منزه (حنفاء) له باطل څخه حق ته مائل (حنف) ميل ته وايه شي (البرية) خلګو ته وايې او له دې څخه (البارئ) اخيستل شوی چې خالق تعالی ته وايې کوم چې د مخلوق پنځوونکی دی.

## تفسير:

﴿ لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ نه وو هغه کسان چې کافران شوي دي (په الله او پيغمبر ورپسې يې تفسير وفرمايو ﴿ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ ﴾ له اهل کتابو او مشرکانو (چې د بتانو عبادت کوي) ﴿ مُنفَكِّينَ حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ ﴾ جلا کېدونکي (له کفره) ترهغه پورې چې راغی دوی ته حجت روښانه ([1]) چې پيغمبري بعثت وو ځکه يې ورپسې تفسير فرمايې: ﴿ رَسُولٌ مِّنَ اللَّهِ ﴾ چې رسول دی له طرفه د الله ﴿ يَتْلُو صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ﴾ لولي (دغه رسول الله پر دوی) صحيفې پاکې کړی شوي (له باطل او شبهاتو څخه) او داهم په ياده لولي ځکه نبي عليه السلام خوليک اولوست نه وو زده کړي أمي وو([2]) ابن عباس رضی الله عنهما وايې چې (مطهّرة) معنا دا چې له درواغو، شک، نفاق او ضلالت څخه پاکې دی، قتادة رحمه الله وايې چې

---

([1]) په سورت کې هغه څه ذکر شوي نه دي چې دوی له څه شي څخه جلا کېدونکي نه وو خو دغه خبره معلومه ده ځکه دوی په کفر او ضلالت کې وو او ر سول الله صلی الله عليه وسلم په څرګند قرآن باندې ورته راغی او دوی ضلالت او کفرېې وروښود دوی جاهليت يې ورپه ګوته کړ او ايمان ته يې راو بلل بيا هغو چې ايمان يې راوړ هدايت يې په برخه شو نو الله له ګمراهۍ او جهالت څخه سمې لارې ته رهبري کړل دوی تر دغه بعثت د مخه له خپل کفرنه بېلېدونکي نه وو آيت شريف د مشرکانو او اهل کتابو دواړو لپاره راغلی دی.

([2]) قرطبي تفسير ۲۹ /۱۴۲

معناداچي له باطل څخه پاکي دي(۱) ﴿ فِيهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ﴾ په هغوی کي ليکلي شوي دي سم احکام (چي خطايي پکي نشته او حق له باطل څخه بېلوي ، صاوي ليکي چي مقصد له (صحف څخه هغه کاغذونه دي چي قرآنکريم پکي ليکل کېږي او مراد په (کتب) سره هغه ليکلي شوي احکام دي او داچي وېي فرمايل ﴿ فِيهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ﴾ څکه قرآنکريم د الله جل جلاله د پخوانيو کتابونو راټوله شوي مېوده (۲) له دې وروسته الله تعالی د هغو کسانو يادونه کوي چي هغوی اهل کتاب مګر ايمان نلري فرمايي ﴿ وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ ﴾ او نه وو جلا شوي (بلکه ټول د محمد په حقانيت کي سره متفق وو ) هغه کسان چي دوی ته کتاب ورکول شوی وو مګر وروسته له هغه چي دوی ته روښانه حجت راغی (چي هغه قرآن دی چي د محمدصلی الله عليه وسلم په ربښتنولي دلالت کوي هغه محمد چي ددوی په کتابونوکي موعودبه رسول وو. ابوالسعودليکي چي آيت شريف د اهل کتابو د تشنيع او بدي بيانولو لپاره راغلی چي ددوی له جنايا تو څخه پرده پورته کوي چي هغوی پخوا د رسول الله د حقانيت په هکله تفرق او اختلاف نه کاوه خو کله چي حق څرګند شو عذرونه او پلمې ټولي ورباندي ودرېدې نو يې اختلاف ښکاره کړ لکه چي بل ځای الله تعالی ارشادکوي ﴿ وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ ﴾(۳) په التسهيل کي ليکي چي دوی تر هغو د محمدصلی الله عليه وسلم په نبوت کي اختلاف نه کاوه مګر کله چي وپوهېدل چي هغه حق د ی نو يې اختلاف پيل کړ او د اهل کتابو يې په ځانګړي توګه څکه يادونه وکړه چي هغوی ته د رسول الله نبوت او رسالت معلوم وو او د هغوی په کتابونوکي راغلی وو ﴿ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ﴾ حال دا چي حکم نه وو ورکړل شوی دوی ته په تورات او انجيل کي مګر د دې چي عبادت دي کوي د الله په داسي حال کي چي خالص کونکي وي الله لره دين له شرک او نفاقه؛ خو دوی انحراف وکړ د غه حکم يې بدل کړ او د خپلو راهبانو او احبارو عبادت يې کاوو لکه چي الله يې بل ځای داسي حکايت فرمايي ﴿ اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللَّهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَٰهًا وَاحِدًا ﴾ ﴿ حُنَفَاءَ ﴾ په داسي حال کي چي راګرځېدونکي دي له باطلو څخه ابراهيمي حق دين ته کوم هغه چي خاتم المرسلين ورباندي مبعوث شوي دي ﴿ وَيُقِيمُوا الصَّلَاةَ وَيُؤْتُوا الزَّكَاةَ ﴾ او (بل دوی مأمور دي ) چي قائموي به لمونځ او زکات به ور کوي يعني لمونځ به سم په بشپړه توګه پخپلو وختونو کي سره له ټولو حقوقو او ادابو په خشوع سره ادا کوي او پخپله خوښه د زړه له اخلاصه به زکات مستحقينو ته ورکوي. صاوي ليکي څکه يې لمونځ او زکات ځانګړي راوړي چي شرافت يې څرګند کړي(۴) ﴿ وَذَٰلِكَ دِينُ الْقَيِّمَةِ ﴾ او دا (مذکورله عبادت ،اخلاص،

(۱) نفس المرجع

(۲) ابوالسعود تفسير ۵/ ۲۷۷

(۳) د صاوي حاشيه په جلالين باندي ۴/ ۳۴۲

(۴) حاشية الصاوي على الجلالين ۴/ ۳۴۳

لمونځ کولو اوزکات ورکولو) دین دی محکم (مستقیم چې هیڅ کوږوالی پکې نشته دا سلام دین دی، نوولې دوی نه ورداخلېږي؟ بیاوروسته الله تعالی داشرارو او اخیاروورو ستنی هستوګنځی چې تل به هورې وي داسې بیانوي فرمایې ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ وَٱلْمُشْرِكِينَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَٰلِدِينَ فِيهَآ ﴾

(بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي له اهل کتابو او مشرکانو وي به په اوردوزخ کې تل به وي دوی په هغه جهنم کې) یعني هغه کسان چې د محمد ﷺ دنبوت اود قرآن د حقانیت تکذیب کوي هغوی که اهل کتاب اوکه بت پرستان وي دوی ګرد به دقیامت په ورځ په دوزخ کې وي تل ترتله چې هیڅ کله به ترې نه راوزي اونه به هم مره کېږي ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ هُمْ شَرُّ ٱلْبَرِيَّةِ ﴾ داخلګ (مطلقًا) هم دوی دي ډېربد دخلګو. امام رازي لیکي: که چاپوښتنه کوله چې ولې یې (کفروا) دفعل په لفظ اومشرکین داسم فاعل په لفظ راوړل ځواب داچې اهل کتاب پخواکافران نه وو ځکه دوی تورات او انجیل منل اودرسول الله په رسالت یې ایمان درلود خودوی هله کافران شول کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مبعوث شو مګرمشرکان داسې نه وو هغوی دبتانو په عبادت کولو کې زېږېدلي وو اودقیامت له ورځې اوبعث نشورڅخه پخوالا منکروو اوداچې ویې فرمایل ﴿ هُمْ شَرُّ ٱلْبَرِيَّةِ ﴾ معنا دا چې دوی ترټولو بدانو بد دي ترغلو بد دي ځکه دوی د الله له کتاب څخه درسول الله صلی الله علیه وسلم صفت غلا کړی دی او ترلارې وهونکو بد دي ځکه دوی دحق لاره په خلګو باندې تړلې ده[1] کله چې الله تعالی دبد مرغه کسانو هستوګنځی په ګوته کړورپسې یې دنېکمرغه کسانو هستوګنځی داسې بیان کړ ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی اوکړي یې دي ښه (عملونه په دنیاکې یعني ایمان اونېک اعمال یې سره یوځای کړي دي) ﴿ أُوْلَٰٓئِكَ هُمْ خَيْرُ ٱلْبَرِيَّةِ ﴾ (داخلګ دي هم دوی ډېرښه دخلګو (چې الله پیداکړي) ﴿ جَزَآؤُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ ﴾ ثواب اوجزاء ددوی په نزددرب ددوی په آخرت کې دایمان اوښواعمالوددوی ﴿ جَنَّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ﴾ جنتونه ددائمي هستوګنځي دي چې بهېږي له لاندې دمانیواوونو دهغوویالې ﴿ خَٰلِدِينَ فِيهَآ أَبَدًا ﴾ تل به وي دوی په هغه کې (نه به مره کېږي اونه به ځنې راایستل کېږي تل ترتله به یې په نعمت کې اوسي ﴿ رَّضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُواْ عَنْهُ ﴾ راضي به وي الله له دغو مؤمنانو څخه (په طاعت ددوی) اوراضي به وي دوی له هغه الله څخه (په ثواب دده) ﴿ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهُۥ ﴾ دا (جزاء اوثواب) هغه چاله دي چې له الله جل جلاله څخه وېرېدلي اوله ګناهونو څخه یې ځان ژغورلی وي.

## بلاغت

پدې سورت کې چې دبدیع اوبیان کومې ښکلاوې شته لندیزیې په لاندې ډول لیکو:

---

(١) کبیرتفسیر ۳۱/۴۹

۱-اجمال له تفصيل څخه وروسته لکه چي فرمايي ﴿ حَتَّىٰ تَأۡتِيَهُمُ ٱلۡبَيِّنَةُ ﴾ اوبيا وايي ﴿ رَسُولٞ مِّنَ ٱللَّهِ يَتۡلُواْ صُحُفٗا مُّطَهَّرَةٗ ﴾.

۲-د طباق صنعت چي د ﴿ خَيۡرُ ٱلۡبَرِيَّةِ ﴾ او د ﴿ شَرُّ ٱلۡبَرِيَّةِ ﴾ ترمينځ راغلی.

۳-تصريحيه استعاره چي فرمايي ﴿ يَتۡلُواْ صُحُفٗا مُّطَهَّرَةٗ ﴾ دلته د مطهره په لفظ کي استعاره ده چي له باطل څخه د صحيفو سپېڅلتيايې دانجاسو له پاکي سره مشابه کړې ده.

۴-مقابله لکه چي ارشاد کوي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ ﴾ اوبيا فرمايي ﴿ إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ د آيتونو تر پايه......

۵-د فواصلو توافق چي د بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي لکه ﴿ ٱلۡبَيِّنَةُ ....قَيِّمَةٞ.... خَيۡرُ ٱلۡبَرِيَّةِ ....شَرُّ ٱلۡبَرِيَّةِ ﴾ او داسي نور.

**تنبيه**

اخلاص د عبادت مغزدی او په حديث شريف کي راځي: (زه له شرک څخه تر ټولو غنيانو زيات غني يم څوک چي يو کار وکړي او له ماسره بل څوک پکي شريک کړي زه به هغه د هغه شرک ته وروسپارم) علماء کرامو اعمال په دريو برخو وېشلي دي مأمورات ، منهيات او مباحات يعني هغه څه چي الله ور باندي امر کړی او هغه چي الله خلګ ترې منع کړي او نور رواکارونه چي نه يې په کولو ثواب او نه يې په پرېښودلو عذاب وي، په مأموراتو کي اخلاص دادی چي په کولو سره يې يوازي الله جل جلاله مقصد وي او که چېري له الله پرته د بل چا په نيت او قصد وکړل شي هغه نامنلي (غيرمقبول) او رياء ده او منهيات که چېري بې له نيته پرېښودل شي په پرېښودلو کي اجر نشته او که د الله جل جلاله لپاره پرېښودل شي په همدې پرېښودلو الله ورته اجرورکوي او مباح کارونه لکه خوراک، څښاک، جماع او داسي نور که پرته له نيته ترسره شي اجرنلري او که د الله درضالپاره ترسره شي نو اجرلري څکه هرمباح کارکله چي د الله دخوښي لپاره ترسره کېږي د ثواب کار ګڼلی شي لکه چي يو څوک په خوراک باندي د عبادت لپاره چمتووالی غواړي او يا په جماع باندي له حرامو څخه عفاف او ساتل يې مقصدوي (پدې کي د ثواب مستحق دي).

د الله جل جلاله په مرسته د البينة سورت تفسير بشپړ شو.

***

## د (الزلزلة ) سورت مدني او اته آيتونه لري

### د سورت په وړاندي:

الزلزلة مدني سورت او په اسلوبو کي د مکي سورتونو په شان دی څکه د قيامت دورځي سختي او کړاوونه پکي بيانېږي پدې سورت کي د يوې سختي زلزلې خبري کېږي چي آسمان څکي ماڼۍ نړوي اوچت غرونه راپرې باسي داسي هيبتونکي پيښي رادبره کوي چي انسان حيرانوي لکه د مځکي له تل څخه د مړو راوتل او يا قيمتي خزانې لکه سره او سپين زر رابرسېره کېدل يا د مځکي له خوا به انسانانو شاهدي اداکول چي دوی کوم کارونه د ځمکي په مخ کړي په هغو گواهي ورکول چي تا داسي او داسي کارونه په فلانی ورځ کړي دي د دغي ورځي له عجائباتو څخه دي لکه څرنگه چي د خلگو ستنېدل د محشر له ډگر څخه جنت او دوزخ ته بيانوي او هغوی په نېکمرغه او بدمرغو ډلو وېشي

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ إِذَا زُلۡزِلَتِ ٱلۡأَرۡضُ زِلۡزَالَهَا ۝١ وَأَخۡرَجَتِ ٱلۡأَرۡضُ أَثۡقَالَهَا ۝٢ وَقَالَ ٱلۡإِنسَٰنُ مَا لَهَا ۝٣ يَوۡمَئِذٖ تُحَدِّثُ
أَخۡبَارَهَا ۝٤ بِأَنَّ رَبَّكَ أَوۡحَىٰ لَهَا ۝٥ يَوۡمَئِذٖ يَصۡدُرُ ٱلنَّاسُ أَشۡتَاتٗا لِّيُرَوۡاْ أَعۡمَٰلَهُمۡ ۝٦ فَمَن يَعۡمَلۡ
مِثۡقَالَ ذَرَّةٍ خَيۡرٗا يَرَهُۥ ۝٧ وَمَن يَعۡمَلۡ مِثۡقَالَ ذَرَّةٖ شَرّٗا يَرَهُۥ ۝٨ ﴾ الزلزلة: ١ - ٨

### لغتونه:

(زلزلت) کله چي وخوځېږي په سختو خوځېدلو (أثقالها) درانه شيان د هغې چي مړي د گېډي دي، (أثقال) د ثقل جمع او هغه درانه ته وايي لکه چي بل ځای راځي (وتحمل أثقالكم) يعني وړی درانه بارونه ستاسي. أخفش وايي کله چي مړي د ځمکي په تل کي وي د هغې ثقل بلل کېږي او که چېري د ځمکي پر سر وي په هغې باندي ثقل گڼل کېږي (١) (يصدر) وگرزي او راووزي ، صدور ورود ضد دی، وارد راتلونکي او صادر تلونکي ته وايي (اشتاتا) متفرق، جلا جلا د (شت) جمع دی او (شت) متفرق ته ويل کېږي

### تفسير:

﴿ إِذَا زُلۡزِلَتِ ٱلۡأَرۡضُ زِلۡزَالَهَا ﴾ کله چي وخوځېږي ځمکه په سخت خوځښت سره ، او داسي ولړزېږي چي زړونه غوځ او عقلونه هېښ کړي لکه چي الله تعالی بل ځای ارشاد فرمايي (اتقوا ربكم ان زلزلة الساعة شئ عظيم) مفسرين کرام ليکي: د زلزلې اضافت ځمکي ته دا معنا لري چي گواکي داسي خوځښت چي د مځکي له لويوالي سره ورو وي او دغه هول او هيبت افاده کوي دغه خوځښت به هغه وخت وي چي قيامت راځي نو به ځمکه په پرله پسې توگه لړزېږي او تر هغو به نه آرامېږي تر څو ټول شيان چي د ځمکي په مخ دي لکه غرونه، وني، کلاگاني او ودانۍ وغورځوي(٢) ﴿ وَأَخۡرَجَتِ ٱلۡأَرۡضُ أَثۡقَالَهَا ﴾ او دباندي راوباسي

---

(١) کبير تفسير ۳۱/۵۸
(٢) التسهيل ۴/۲۱۳

ځکه درانه شيان خپل، هغه که خزانې وي او که دهغې مړي[1] منذر وايي چې ځمکه به راوغورځوي هغه خزانې او مړي چې په ګېډه کې يې دي، ابن عباس رضی الله عنه وايي چې: ځمکه به خپل مړي راوغورځوي په حديث شريف کې راځي چې راوبه غورځوي ځمکه دزړه ټوټې خپلې چې هغه به لکه دسرو او سپينو زرو ستني غوندي وي، نو قاتل به راشي وايي به ددې په سبب ما ووژل، او قاطع الرحم به راشي وايي به چې ددې په سبب ما دخپلوي او قرابت پرېکړون کړی وو او غل به وايي ددې په سبب زما لاس پرې شوی او بيا به يې هماغسي پرېږدي او هيڅ به هم نه ترې اخلي[2] ﴿وَقَالَ ٱلْإِنسَـٰنُ مَا لَهَا﴾ او وبه وايي انسان (منکرله بعثه) چې څه شوي دي دغې ځمکې لره؟ ولې داسې سخته لړزېږي او هرڅه چې يې په ګېډه کې دي دباندې راغورځوي دابه دتعجب او حيرانتيا په سبب وايي ﴿يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا﴾ په دغه ورځ کې به ځمکه بيانوي خبرې خپلې ، کوم چې ددې په مخ د خير او شر عملونه ترسره شوي دي په هغو به شاهدي وايي. ابو هريرة رضی الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: آيا پوهېږئ دهغې خبرې به څه وي؟ أصحابو وويل: الله جل جلاله او دهغه پيغمبر ږ ښه پوهېږي نو رسول الله صلی الله عليه وسلم زياته کړه چې خبرې يې دادي چې په هر نارينه او ښځينه باندې به هغه څه شاهدي وايي چې ددې په مخ يې کوم عمل ترسره کړی دی او وايي به چې په فلانۍ ورځ يې داسې کړه وړه ترسره کړي دي[3] په بل حديث شريف کې راغلي له ځمکې ځان وژغورئ چې هغه ستاسو مورده او هيڅوک هيڅ کار د خير او شر په هغې سربېره نه کوي مګر هغه به ورباندې شاهدي ووايي[4] ﴿بِأَنَّ رَبَّكَ أَوْحَىٰ لَهَا﴾ په سبب ددې چې رب ستا حکم کړی دی هغې لره (په بيانولو سره هغه دګنهګار څخه شکايت کوي او په هغه باندې ګواهي اداکوي او له پرهېزګار څخه خوښي څرګندوي منته يې کوي او ثنايې وايي، الله په هرڅه توانا او قادر دی ﴿يَوْمَئِذٍ يَصْدُرُ ٱلنَّاسُ أَشْتَاتًا﴾ په دغې ورځې کې به وګرزي خلګ ټولې ټولې (جلاجلا دښي لوري خلګ به جنت ته درومي او دکيڼ لوري به جهنم ته ﴿لِّيُرَوْا۟ أَعْمَـٰلَهُمْ﴾ لپاره ددې چې وښودله شي دوی ته (جزاء د) عملونو ددوی يعني جزاد خير او شر ﴿فَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُۥ﴾ پس هغه څوک چې عمل کوي په اندازه ديوې ذرې دخير نېکي نو وبه ويني (جزاء د هغه) ذره په ورانګه کې کوچنی بخرکي خاشي ته وايي که ددې په تول عمل يې په اعمالنامه کې د خير وي هم جزا به يې ومومي. کلبي وايي ذره کوچنی مېږي ته وايي ، ابن عباس رضی الله عنهما وايي: کله چې ورغوی په ځمکې کېږدي او بيرته يې راپورته کړي هره وړه خاوره چې پسې نښتي وي هغې

---

[1] الوسي تفسير ۳۰/ ۲۰۹
[2] أخرجه مسلم
[3] ترمذي وقال حسن صحيح
[4] أخرجه الطبراني في معجمه.

ته ذره وابي (۱) ﴿ وَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُۥ ﴾ او هر څوک چي عمل کوي په اندازه ديوې ذرې د شرنو وبهويني جزاء د هغه قرطبي ليکي چي: دا يو مثال دی چي الله بيان کړی معنا دا چي د بنيآدم له عمل څخه هيڅ هم نه ورکېږي نه غټ او نه ووړ او دا د هغې الهي وينا په شان ده چي فرمايي: (ان الله لايظلم مثقال ذرة) (۲).

بلاغت:

پدې سورت کي چي د بديع او بيان کومي ښکلاوي شته په لاندي ډول يې لنډيز ليکو:

۱- اضافت د تهويل او تفظيع لپاره لکه ﴿ زِلْزَالَهَا ﴾.

۲- داضمار پرځای اظهار راوړل لکه ﴿ وَأَخْرَجَتِ ٱلْأَرْضُ ﴾ چي راغلی دی.

۳- د تعجب او استغراب لپاره د استفهام راوړل لکه چي فرمايي ﴿ وَقَالَ ٱلْإِنسَٰنُ مَا لَهَا ﴾؟.

۴- اشتقاقي جناس لکه دا چي ﴿ زُلْزِلَتِ ... زِلْزَالَهَا ﴾.

۵- د مقابلې صنعت چي د ﴿ فَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُۥ ﴾ او ﴿ وَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُۥ ﴾ ترمينځ راغلی دی.

۶- مرصع سجع لکه د سرور زروخښتي چي اوډلي او يا ملغلري او ياقوت پېيلي وی د مثال په توګه ﴿ زِلْزَالَهَا ، أَثْقَالَهَا ، أَوْحَىٰ لَهَا ، أَخْبَارَهَا ، مَا لَهَا ﴾ او دا د بديعي محسناتو څخه شمېرل کېږي.

تنبيه:

رسول الله صلی الله عليه وسلم د غه آيت چي فرمايي ﴿ فَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُۥ ﴾ نادر او جامع آيت ګڼلی دی کله چي له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه دخرو، دزکات په هکله وپوښتل شوو نو هغه په ځواب کي ورته وويل: له دغه جامع او نادر آيت څخه پرته نور څه پکي نازل شوي نه دي آيت دادی: ﴿ فَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُۥ ﴾ ﴿ وَمَن يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُۥ ﴾ رواه البخاري

دالله په مرسته دالزلزلة سورت تفسير بشپړ شو.

***

(۱) کبير تفسير.

(۲) قرطبي تفسير ۲۰/ ۱۵۰

## د(العاديات)سورت مکي او يوولس آيتونه لري

### دسورت په وړاندي:

دالعاديات سورت مکي اودفي سبيل الله مجاهدينودآسانوڅخه خبري کوي کله چي په دښمنانويرغل کوي اودسينوآوازونه يې اودهغوی شنهاری په لوړآوازاوريدل کيږي اوپه خپلوسوو (سمانو) باندي ډبري وهي چي داوربخرکي ځني الوزي اوهمدارنګه دوړي اوخاوري يې له ځغاستو سره پورته کيږي، دغه سورت دغازيانوپه آسونوسره په قسم کولوپيل شوی ددې لپاره چي دالله تعالى په نزددوی شرف اوبهتري څرګنده کړي اوبيادابيانوي چي انسان دالله جل جلاله دنعمتونومنکراود احساناتوکفران کوي اودغه انکاراوکفران دهغه له حال اومقال څخه معلوميږي لکه چي دانسان طبيعت اودهغه له مال سره پريمانه ميني اومحبت څخه غرګيږي دغه مبارک سورت په پای کي دابښيي چي ټول مخلوقات به الله جل جلاله ته دجزااوحساب لپاره رجوع کوي هلته به بيامال اومرتبه چاته ګټه نه رسوي يوازي نېک عمل به دسړي ملګرتياکوي

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ وَالْعَادِيَاتِ ضَبْحًا ﴿١﴾ فَالْمُورِيَاتِ قَدْحًا ﴿٢﴾ فَالْمُغِيرَاتِ صُبْحًا ﴿٣﴾ فَأَثَرْنَ بِهِ نَقْعًا ﴿٤﴾ فَوَسَطْنَ بِهِ جَمْعًا ﴿٥﴾
إِنَّ الْإِنسَانَ لِرَبِّهِ لَكَنُودٌ ﴿٦﴾ وَإِنَّهُ عَلَىٰ ذَٰلِكَ لَشَهِيدٌ ﴿٧﴾ وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ ﴿٨﴾ ۞ أَفَلَا يَعْلَمُ إِذَا بُعْثِرَ
مَا فِي الْقُبُورِ ﴿٩﴾ وَحُصِّلَ مَا فِي الصُّدُورِ ﴿١٠﴾ إِنَّ رَبَّهُم بِهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّخَبِيرٌ ﴿١١﴾ ﴾ العاديات: ۱ - ۱۱

### لغتونه:

(ضبحا) دآسونوسا اخيستل کله چي ځغلي[1] (أثرن) پاڅوي (نقعا) دوړي، ګرداوغبار (کنود) ناشکره[2]

### تفسير:

﴿ وَالْعَادِيَاتِ ضَبْحًا ﴾(قسم دی په آسونوځغليدونکوچي آوازايستونکي دي له سينوڅخه آواز پورته کول له ګېډو ) يعني قسم کوم دمجاهدينوپه آسانوچي کله په دښمن يرغل کوي اوله سينوڅخه يې لوړآواز راوزي ابن عباس رضی الله عنهماوايي: آسان چي کله وځغلي نو(أح،أح) آوازکوي همدغه ته ضبح وايي، ابن مسعودرضی الله عنه وايي: الله تعالى دغازيانوپه آسونولوړه اوقسم اخيستی کله چي ددښمن په لوروځغلي اوپه ځغاسته کي يې غړ اوريدل کيږي چي هغه ته ضبح وايي [3] ﴿ فَالْمُورِيَاتِ قَدْحًا ﴾پس قسم دی په آسونوايستونکيو داور اوورا ايستل په وهلو دسمانو تيږو لره (په سختی سره ﴿ فَالْمُغِيرَاتِ صُبْحًا ﴾(پس قسم دی په لوټ کونکوباندي په وخت دسهارکي ترلمرختودمخه ، هغه آسونه

---

[1] الوسي ۳۰/ ۲۱۵

[2] القرطبي ۲۰/ ۱۶۰

[3] ابوالسعود ۵/ ۲۸۰

چي په دښمن باندي دسهارپه وخت کي چپاوکوي الوسي ليکي اوپه تاړاک اولوټولوکي عادت همدا سي وي چي دښمن ورباندي آګاه نشي اوپه سباوون کي ناڅاپه ورباندي وارکوي ترڅوغازيان و ويني چي څه يوسي اوڅه پرېږدي(۱) ﴿ فَأَثَرْنَ بِهِۦ نَقْعًا ﴾ پس پورته کوي دغه آسونه په سُمانو خپلوسره ګرد(له ډېري چټکتياپه څغاسته هلته چي په دښمن حمله کوي) ﴿ فَوَسَطْنَ بِهِۦ جَمْعًا ﴾ پس ننوزي دغه آسونه هغه وخت په مينځ دټولي (ددښمنانوددين کي کوم چي دجګړې ډګر دی الله جل جلاله په دريوډولونوپه دريوشيانوباندي قسم اخيستی دی اوداد مقسم به د تعظيم لپاره کوم چي دمجاهدينوآسان دي هغه چي دالله په دښمنانوورغلي اوله (سوو) سُمانوڅخه يې داور بڅرکي الوزي اوپه دښمنانوسباوون مهال تاړاک اچوي اوددښمن په وړاندي ګرد اودوړي خپروي مينځ ته ورننوزي اوپه دښمن وېره ترهه اچوي اوهغه شيان چي قسم ورباندي اخيستل شوی هغه دالله داويناده چي فرمايي ﴿ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لِرَبِّهِۦ لَكَنُودٌ ﴾ ببشکه کافرانسان له خپله ربه خامخا منکر ناشکره (دنعمتونو ) دی ابن عباس رضی الله عنه وايي: معناداچي دالله دنعمتونوشکرنه پرځای کوي. حسن رحمه الله وايي: غمونه اومصيبتونه يې په يادوی اونعمتونه هېروي(۲) ﴿ وَإِنَّهُۥ عَلَىٰ ذَٰلِكَ لَشَهِيدٌ ﴾ او ببشکه داانسان پخپلي ناشکري شاهددی نشي کولای چي ترې منکرشي څکه اثريې ورباندي څرګنددی ﴿ وَإِنَّهُۥ لِحُبِّ ٱلْخَيْرِ لَشَدِيدٌ ﴾ اوببشکه داانسان دمال په مينه کي ډېرسخت دی اوپه راټولولو کي يې حريص اودالله جل جلاله دعبادت اود هغه دنعمت دشکراداکولوپه هکله ډېرسست اوضعيف دی.. وروسته له دې چي دهغه دکړووړوقبائح يې وشمېرل نوداسي يې دهغوی له عاقبت اوانجام څخه وېروي فرمايي ﴿ أَفَلَا يَعْلَمُ إِذَا بُعْثِرَ مَا فِى ٱلْقُبُورِ ﴾ آياپس نه پوهېږي داانسان(ناپوه ) کله چي راپورته کړل شي هغه شی چي په قبرونو کي دی(له مړوڅخه) ﴿ وَحُصِّلَ مَا فِى ٱلصُّدُورِ ﴾ اوراښکاره شي هغه (عقائد )، ارادې يااسرار او رازونه) چي په سينوددوی کي دي ﴿ إِنَّ رَبَّهُم بِهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّخَبِيرٌۢ ﴾ (ببشکه رب ددوی په دوی باندي پدغي ورځي کي خامخابنه پوه خبرداردی) يعني ببشکه ددوی پالونکی په ګردوهغواعمالو ددوی ښه خبرداردی اوپه بشپړه توګه به ورباندي جزاورکړي، اوداچي دالله خبرداری يې له دغي ورځي سره ځانګړی راوړه څکه چي همدغه دجزاورځ ده اوپدغه سره وعيداوتهديدافاده کېږي که نه الله جل جلاله خوپه قيامت اوټولوورځوکي عالم اوخبرداردی.

بلاغت: پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنديزيې دادی:

---

(۱) پخواني مرجع
(۲) القرطبي ۲۰/ ۱۲۰

۱- په (ان) او(لام) سره تاکید لکه چي فرمايي ﴿ إِنَّ الْإِنسَانَ لِرَبِّهِ لَكَنُودٌ ، وَإِنَّهُ عَلَىٰ ذَٰلِكَ لَشَهِيدٌ ، وَإِنَّهُ لِحُبِّ الْخَيْرِ لَشَدِيدٌ ﴾ څکه چي دغه ادات په تقرير او بيان کي زيات وب راولي.

۲- غير تام جناس لکه ﴿ لَشَهِيدٌ ﴾ او ﴿ لَشَدِيدٌ ﴾ همدارنګه ﴿ ضَبْحًا ﴾ او ﴿ صُبْحًا ﴾.

۳- انکاري استفهام د تهديد او وعيد لپاره لکه ﴿ أَفَلَا يَعْلَمُ إِذَا بُعْثِرَ مَا فِي الْقُبُورِ ﴾ چي راغلی دی.

۴- د تضمين صنعت لکه پدې کلام کي چي ﴿ إِنَّ رَبَّهُم بِهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّخَبِيرٌ ﴾ چي د خبير لفظ د مجازات معنی په ضمن او څنګ کي لري يعني دوی ته به د دوی په اعمالو جزاء ورکړي

۵- د فاصلو توافق لکه ﴿ لَشَهِيدٌ ، لَشَدِيدٌ ، الصُّدُورِ ، الْقُبُورِ ﴾ ترپايه چي مرصع سجع ورته ويل کېږي او له بديعي محسناتو څخه شمېرل کېږي.

د الله جل جلاله په مرسته د العاديات سورت تفسير بشپړ شو.

***

## د (القارعة) سورت مکي او يوولس آيتونه لري.

د سورت په وړاندي:

دالقارعة سورت مکي او د قيامت له ورځي او دهغې له کړاوونو څخه خبري کوي او هغه پېښي بيانوي کوم چي پدې ورځ کي به هېښونکي وي لکه له قبرونو څخه د خلګو راوتل هغوی به لکه واړه ملخان چي هلته دلته خواره واره وي ځي اوراځي په وارخطايي سره به درومي او په بېتابي سره به هره خواخغلي سخت حيران او وېرېدلي به وي.

همدا سي سورت له دې څخه غږېږي چي غرونه به والوزول شي له خپله ځايه به وخوځېږي او لکه وشنلي شوي وړې غوندي به وي کوم چي په هواکي الوزي داوروسته له هغه چي په ځکه د ټينګ ولاړوو او د خلګو او غرونو ترمينځ ترون پدې راوړچي داهومره سخته ورځ ده غرونه سره له دومره قوت او ټينګاره بياهم لکه وړۍ غوندي شي دبشريه پدغه وېرونکي ورځ کي څه حال وي؟

په پای کي سورت هغه تلي او موازين په يادوي په کوم چي د انسانانو عملونه تلل کېږي، او بيا خلګ په دووډلو وېشي نېکمرغه او بدمرغه کسان هغوی چي د نېکي تلي يې درنې وي نېکا ن او چي د بدي تلي يې درنې شي هغوی بدان دي، دغه سورت ته ځکه (القارعة) وويل شوچي له رېړاو کړاو څخه يې زړونه او غوږونه ټکول کېږي.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ الْقَارِعَةُ ﴿١﴾ مَا الْقَارِعَةُ ﴿٢﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْقَارِعَةُ ﴿٣﴾ يَوْمَ يَكُونُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوثِ ﴿٤﴾ وَتَكُونُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنفُوشِ ﴿٥﴾ فَأَمَّا مَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ ﴿٦﴾ فَهُوَ فِي

عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ ﴿٧﴾ وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَٰزِينُهُۥ ﴿٨﴾ فَأُمُّهُۥ هَاوِيَةٌ ﴿٩﴾ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا هِيَهْ ﴿١٠﴾ نَارٌ
حَامِيَةٌۢ ﴿١١﴾ ﴾ القارعة: ۱ - ۱۱

## لغتونه

(القارعة) دقيامت له نومونوڅخه يونوم دی اوقرع سخت ټکولوته وايي داورځ هم خلګ پخپلو سختيو ، ربړونواوکړاوونوسره ټکوي،عرب وايي (قرعتهم القارعة) او(فقرتهم الفاقرة) کله چي به يوسخت مشکل کارپه چاراپرېووت نودوی به ويل چي هغه سخت ټکونکي وټکاووناولويه بلا وربانديراولوېده (المبثوث) خواره واره( الهاوية ) ددوزخ له نومونوڅخه يونوم دی څکه خلګ پکي لوېږي

## تفسير:

﴿ ٱلْقَارِعَةُ مَا ٱلْقَارِعَةُ ﴾(هغه ټکونکي (دزړونو قيامت ) څه دی هغه ټکونکی (دزړونو قيامت)؟ يعني دادومره لوی اومهم دفظاعت خاوند(قيامت) چي خيال بې خايولای نشي اونه هم دانسان وهم اوسوچ ورته رسېدلای شي څکه هغه تردې لوړدی چي انځورېې وکښل شي ياپه خيال کي وسنجول شي او څوک يې وستايې(بيايې زيات هول اوهيبت داسي ستاسي﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا ٱلْقَارِعَةُ ﴾اوڅه شي پوه کړی يې ته چي څه دی هغه ټکونکی (دزړونوقيامت؟) يعني څه شي ته پوه کړ ی يې چي دغه قيامت به په خلګوڅه اغېزپرېږ باسي؟هغه يوازي زړونه نه ټکوي بلکه په ستروآسماني اجراماوپخپله په آسمانونوکي يې تاثيرپرېږ وزي چي هغه چوي په څمکه کي زلزلې راولي غرونه الوزوي ستوري پاشي دلمراوسپوږمۍ رڼا اخلي اوهغه بې نوره (پيکه)کوي اوداسي نور. ابوالسعودليکي: قيامت ته بې (قارعة) څکه وويل چي هغه زړونه اوغوږونه په ډول ډول کړاوونواوسختيوسره ټکوي ا ودلته يې دضميرپرځای اظهارشوی دی چي (ماالقارعة) ددې لپاره چي دهغې ورځي دفظاعت اوهول تاکيد راشي معناداچي ترهغې ورځي څه شي په سترتوب اوهول اوهيبت ، وېرولواوترهولوکي عجيب دی؟ اوبيايې فظاعت داسي وستايوچي:﴿ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا ٱلْقَارِعَةُ ﴾هغه يې دمخلوق دعلم اوپوهي له دائرې څخه بهروګڼله چي هيڅوک هم پخپله پوهه اوځيرکتيا هغه نشي پېژندلای ([1]) وروسته له دغه تشويق اوتخويف څخه چي دهغې ورځي داحوالودڅه پېژندني په هکله يې راوړل فرمايې:﴿ يَوْمَ يَكُونُ ٱلنَّاسُ كَٱلْفَرَاشِ ٱلْمَبْثُوثِ ﴾په هغه ورځ کي چي ګرزي به خلګ لکه واره ملخان خواره واره شوي يعني دغه دزړونوټکول به هغه ورځ وي کله چي خلګ وېرېدلي له قبرونوڅخه راپاځي ته به واتيت او پرک پتنګان دي چي له ډېري وېري اوحيرانتياڅخه ځيني په ځينونوروکي لوېږي . امام رازي رحمه الله ليکي چي الله تعالی دلته خلګ له تيت شويوپتنګانو ﴿ كَٱلْفَرَاشِ ٱلْمَبْثُوثِ ﴾ اوپه بل آيت شريف کي له (جرادمنتشر ) سره کړي چي دلومړۍ تشبيه وجه داده چي ملخان کله راپاځي نويوه لوري ته نه وي روان بلکه هرلوري ته تيت شي اودا په دې دلالت کوي چي دوی وېرېدلي دي اوچي کله يې له (جراد) سره

([1]) ابوالسعود ۵/ ۲۸۱

تشبيه کوي هغه دکثرت او ډېروالي په وجه کله چي دوی سره يو بل لوری ته ټېټونه وهي نو يو د بل په سر اوخېژ سربېره سپاره شي همداسي به خلګ دقيامت په ورځ له ډېري وارخطايي څخه يو په بل کي ګډ شي لکه الله تعالی بيان کوي ﴿ وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ ﴾(۱) ﴿ وَتَكُونُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنفُوشِ ﴾ او وبه ګرزي غرونه (له هيبته) لکه وړی رنګيني شيندل شوي دغه دوهم صفت دد ې ورځي دی يعني غرونه به لکه دنداف په ليندی وهلي شوي وړی غوندي يوه بله خوااالوزي، صاوي ليکي چي: الله تعالی دخلګو او غرونو حال يو ځای يادکړددی لپاره چي وښيي غرونه سره له دومره لويوالي او کلک والي که څه هم مکلف نه دي لکه وشنلي وړی غوندي شي نو دبېوزله اوناتوان انسان حال به کله چي دحساب اوجزاء لپاره راپاڅېږي څه وي؟ وروسته الله پاک دانسانانو حال چي څوک به نېکمرغه او څوک بدمرغه وي داسي فرمايي ﴿ فَأَمَّا مَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ ﴾ پس هرهغه څوک چي دروند شي وزن (دعملونو) دده (چي ښه عملونه يې په بدو اعمالوزيات شي) ﴿ فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ ﴾ نو هغه به وي په ښه ژوندون چي راضي به وي (په تلپاتي جنت کي) ﴿ وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ ﴾ او هرهغه څوک چي سپک شي وزن (دعملونو) دده (اونېکي اوښه اعمال يې لږ وي) ﴿ فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ ﴾ نو ځای داوسېدلو دده به هاويه وي (چي پکي به لوېږي لکه چي موراولاد لپاره غېږپرانيزي همداسي به اور مجرمين په خپله غېږي کي اخلي. ابوالسعود ليکي چي (هاويه) داورله نومونو څخه يو نوم دی څکه يې هاويه بولي چي زښته زيات ژوروالی لري ، روايت کېږي چي دوزخيان به اويا کاله پکي ښکته ولوېږي ترڅو يې تل ته ورسېږي(۲) ﴿ وَمَا أَدْرَاكَ مَا هِيَهْ ﴾ او څه شي پوه کړې ته چي څه ده دغه (هاويه)؟ استفهام دتفخيم اوتهويل لپاره دی وروسته يې تفسيرفرمايي ﴿ نَارٌ حَامِيَةٌ ﴾ او ردی خورا (ډېر) تود، چي له حداو اندازې وتلی دی څکه هرډول اورچي هرڅومره زياته ازوغه او دسوځ مواد پکې وي ددغه اورسره نشي پرتله کېدای الله جل جلاله مودې ترې وساتي آمين.

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي دبدیع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنديزيې دادی.....

۱– استفهام دتفخيم اوتهويل لپاره لکه ﴿ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْقَارِعَةُ ... وَمَا أَدْرَاكَ مَا هِيَهْ ﴾.

۲ – دضمير پرځای دظاهرراوړل چي تخويف اوو يرول افاده کړي لکه ﴿ الْقَارِعَةُ مَا الْقَارِعَةُ ﴾ اصل خوداووچي ويل شوي وای (ومااداراک ماهی).

۳ – مرسله مجمله تشبيه لکه ﴿ يَوْمَ يَكُونُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوثِ ﴾ چي دلته دتشبيه ادات ذکرشوی خودشباهت وجه نه ده راغلي چي هغه ډېروالی اوتيت والی ناتواني اوحيرانتياده او

(۱) کبيرتفسير۳۱ /۷۲

(۲) ابوالسعود ۵/ ۲۸۶

همدارنګه پدې آیت کې چې:﴿ كَالْعِهْنِ الْمَنفُوشِ ﴾چې په سپکوالي اوالوتلوکې ورسره مشابهت لري نومرسله مجمله تشبیه یې ګڼلای شو.

۴ – دمقابلې صنعت لکه ﴿ فَأَمَّا مَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ، فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ ﴾او﴿ وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ، فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ ﴾.

۵ – عقلي مجازلکه پدې کلام کې چې﴿ فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ ﴾یعني چې دعیش خاوند ور باندې خوښ اوراضي وي پدې کې مجازي اسناددی.

۶ – دفواصلوپه وروستیوتوروکې توافق لکه چې له ورایه څرګنددی.

۷ – داحتباک صنعت داهغه صنعت دی چې دهرنظیراومثل څخه هغه څه حذف شي کوم چې په سیال کې یې شته نودالله داکلام چې فرمایي ﴿ فَأَمَّا مَن ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ، فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَّاضِيَةٍ وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ، فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ ﴾له لومړي نظیرڅخه (أمه الجنة) حذف شوی او(عیشة راضیة) یادشوی اوله دوهم څخه (فهوفي عیشة ساخطة) حذف شوی او(فأمه هاویة) ذکرشوی دی اودا له بدیعي محسناتوڅخه یوبل صنعت دی.

تنبیه:

جمهورعلماء وایي چې تله حقیقت درلودونکې اودوه پلې یوشاهین لري پدې کې هغه پاڼې تلل کیږي چې نیکې اوبدې پکې لیکلې شوې وي اوله ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت شوی چې نیک عملونه به په ښوڅیرواوبد عملونه به په بدوڅیرو راوړل شي اوپه تله کې به کېښودل شي، دچاچې نیک عملونه درانه شي نیکمرغه اودچاچې بدعملونه درانه شي هغه بدمرغه دی. والله أعلم

دالله جل جلاله په مرسته دالقارعة دسورت تفسیربشپړشو.

***

## د(التکاثر)سورت مکي اوآته آیتونه لري

دسورت په وړاندې:

دالتکاثرسورت مکي اودانسانانوله هغې بوختیاڅخه غږېږي کوم چې دژوندانه په اوږدوکې دمال په راټولولولګیاوې ښونابېره یې ژوندپای ته ورسېږي مرګ دهغوی دخوندونومزې غوڅ کړي اوله دنګومانیوڅخه یې قبرته ولېږدوي

الموت یأتي بغتة     والقبر صندوق العمل

مرګ یوناڅاپه راځي     او قبر دعمل صندوق دی

پدې سورت کې دخلکوېرونه څوځلې تکرارشوې اودهغوی خطاورپه ګوته شوې چې دوی څرنګه له تلپاتې اوباقي ژوندانه څخه فاني دنیاته مخه کړې ده نوفرمایي ﴿ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ أَلْهَىٰكُمُ ٱلتَّكَاثُرُ ﴿١﴾ حَتَّىٰ زُرْتُمُ ٱلْمَقَابِرَ ﴿٢﴾ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٣﴾ ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٤﴾ كَلَّا
لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ ٱلْيَقِينِ ﴿٥﴾ لَتَرَوُنَّ ٱلْجَحِيمَ ﴿٦﴾ ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ ٱلْيَقِينِ ﴿٧﴾ ثُمَّ لَتُسْـَٔلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ
ٱلنَّعِيمِ ﴿٨﴾ ﴾ التكاثر: ۱ - ۸

## لغتونه:

(الهاكم) مشغول کړي یاست تاسي (الهآء) بوختیا او له شي څخه هغه لورته چي هوا هوس يې غوښتنه کوي راګرزېدا ته وايي ، (دلهو) اصل غفلت دی خو بیا وروسته هر مشغول کونکي ته وویل شو راغب لیکي (لهو) هغه څه ته وايي چي سړی له مهم کار څخه مشغول کړي (التكاثر) دزیات مال اورتبې په لوړوالي فخر او ویاړ کول (المقابر) (قبور) دقبر جمع او مقابر د(مقبرې) جمع ده.

## تفسیر:

﴿ أَلْهَىٰكُمُ ٱلتَّكَاثُرُ ﴾ مشغول کړي یاست تاسي (دالله له طاعته) فخر کول (په ډېروالي دمال اولاد اوقام باندي چي دآخرت لپاره موچمتووالی نشته) ﴿ حَتَّىٰ زُرْتُمُ ٱلْمَقَابِرَ ﴾ ترهغه پوري چي هدیروته ور شی (مړه شی) او په قبرونو کي خښ شی دغه جمله خبر او مقصد ورڅخه وعظ دی. قرطبي لیکي: معنادا چي ستاسو فخر کول په زیاتوالي دمال اولاد باندي تاسي دالله له طاعته څخه مشغول کړي یاست ترڅو ومری او په قبرونو کي خښ شی[1] ﴿ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ نه ده داسي (لائق) ژردی تاسي به پخپله خطا پوه شی) پدې کي زجر او تهدید دی) یعني داسي مکوئ هغه څېزچي درته نفع نه ر سوي په هغه باندي مه مشغولېږی ژردی چي تاسي به دخپلي ناپوهي انجام چي له باقي څخه په فاني دنیا مشغول شوي یاست وګوری ﴿ ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ بیا بېخي داسي نه ده وړ ژردی چي تاسي به په وه شی پخپله خطایې باندي دغه وعید په وعید پسې دی یعني تاسي به کله چي مرګ او تکلیفونه یې درته راشي ددغه تکاثر او تفاخر عاقبت پخپله ووینئ. ابن عباس رضی الله عنه وايي ﴿ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ معنادا چي کله پر تاسي باندي دقبر عذاب راپرېوزي ﴿ ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ معنادا چي کله پر تاسي دآخرت عذاب راشي[2]

﴿ كَلَّا لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ ٱلْيَقِينِ ﴾ (نه دی داسي که تاسي پوهېدلای (په خرابي دتکاثر او تفاخر) په علم الیقین سره نو داسي به مونه کول) یعني داسي مکوئ که تاسو ته په یقیني توګه علم وشي هغه چي هیڅ شک او شبه پکي نه وي نو... د(لو) ځواب حذف شوي ترڅو چي تهویل افاده کړي یعني که تاسو پدې پوهېدلای نو بیا به ددنیا تکاثر او تفاخر دالله له طاعت څخه نه مشغولولای او ددنیا په عیش عشرت به دآخرت له

---

(۱) القرطبي ۲۰ /۱۲۸ - ابن کثیر لیکي: معنادا چي تاسو ددنیا ښکلا او میني نعمت دآخرت له غوښتلو څخه دومره بېغمه کړي یاست ترڅو مو دمرګ سرحد ته ورورسوي او ومری هدیروته ورشی او دهدیرو له او سېدونکو څخه وګرزی.
(۲) قرطبي ۲۰ /۱۷۲

کړاوونو تکاليفو څخه نه تېروتلای لکه چي رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي (لو تعلمون ما أعلم لضحکتم قليلا ولبکيتم کثيرًا) يعني که تاسو ته هغه څه معلوم وای چي ماته معلوم دي نو به مو ډېر ژړل او لږ به مو خندل(۱). په التسهيل کي ليکي چي د(لو) ځواب محذوف او تقديريې داسي کېږي که تاسو پوهېدلای ؟ نو به وېرېدلي واست او د آخرت لپاره به موتياري نيولی وای او وله دي سببه حذف شوی چي زياته وېره او هول افاده کړي نو او رېدونکي به تر ټولو ستر هغه په نظر کي ونيسي (۲) لکه چي الله تعالی فرمايي: (ولو ترى اذ وقفوا على النار) ﴿ لَتَرَوُنَّ ٱلْجَحِيمَ ﴾ قسم دی چي خامخا به تاسي دوزخ ووينی او دا به يقيني او څرګند ول وي . الوسي ليکي چي دغه د مضمر قسم ځواب دی چي د وعيد تاکيد و رباندي شوی دی او هغه وعيد څرګند وي کوم چي پخوا يې د تفخيم لپاره ابهام فرمايلی وو(۳) معنا يې داده چي والله به تاسو جحيم ووينی ﴿ ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ ٱلْيَقِينِ ﴾ بيا به خامخا ووينی تاسي اروم رو هغه دوزخ په ستر ګو د يقين سره) يعني په حقيقي مشاهده سره به يې ووينی. په البحر المحيط کي ليکي چي دغه عين اليقين تاکيد ،د دې لپاره راوړل شوی چي هغه توهم دفع کړي کوم چي په خيال کي تېرېږي چي هغه لومړی رؤيت (ليدنه به مجازي وي(۴) ﴿ ثُمَّ لَتُسْـَٔلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ ٱلنَّعِيمِ ﴾ بيا به خامخا و پوښتل شی هرومرو په دغه ورځ کي له نعمتونو څخه ، هغه چي هوسايي ،امن ،روغتيا ،خوراک څښاک او لباس پوښاک او نور ګړ د نعمتونه دي

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي د بديع او بيان کومي ښکلاوي شته لنديزيې دادی:

۱– وعظ او تبليغ لکه ﴿ أَلْهَىٰكُمُ ٱلتَّكَاثُرُ ﴾ څکه خبر له حقيقت څخه تذکير او توبيخ ته راغبرګه شوه.

۲ – تکرار د تهديد او انذار لپاره لکه ﴿ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴾ او عطف د(ثم) په توري سره ددې تنبيه ورکوي چي دوهم تر لومړي أبلغ او تر هغه زيات څرګند دی لکه چي بادار خپل مريي ته وايي: چي درته وايم او بيا درته وايم چي داسي مکوه !، څرنګه چي تر لومړي زيات څرګند او ښکاره دی نو په(ثم) سره عطف شو هغه توری چي د مغايرت او توپير څرګندونه کوي

۳ – حذف د ځواب د تهويل لپاره لکه چي د(لو) ځواب حذف شوی ﴿ لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ ٱلْيَقِينِ ﴾ يعني نو که تاسو پوهېدلای چي دومره تکليفونه شته چي تور وېښتان سپينوي ،زړونه ځوروي نو داسي به مو نه کول.

۴ – اطناب د فعل په تکرار سره لکه ﴿ لَتَرَوُنَّ ﴾ او ﴿ لَتَرَوُنَّهَا ﴾ چي د هول د سختي او شدت لپاره راغلی دی.

---

(۱) د بخاري شريف د حديث يوه برخه ده

(۲) التسهيل

(۳) الوسي ۲۲۵/۳۰

(۴) البحر المحيط ۵۰۸/۸

۵-کنایه لکه ﴿ حَتَّىٰ زُرۡتُمُ ٱلۡمَقَابِرَ ﴾ چي له مرګ څخه د قبرونو لیدل او زیارت کول کنایه راغلي ده.

۶-د طباق صنعت لکه په ﴿ ٱلنَّعِيمِ ٱلۡجَحِيمَ ﴾ کي چي شتون لري

۷-د فواصلو توافق چي د آیتونو ترمینځ د پیل د مراعات په وجه شته او د بدیعي محسناتو څخه ګڼل کیږي

تنبیه:

له عبدالله بن الشخیر څخه ترمذي شریف روایت کوي چي هغه وایي یوه ورځ زه رسول الله ﷺ ته ورغلم چي دغه آیت شریف یې ولوست ﴿ أَلۡهَىٰكُمُ ٱلتَّكَاثُرُ ﴾ او بیا یې وفرمایل: بنیادم وایي: زمامال زمامال آیا ته مال لرې پرته له هغه چي و دي خوړ او خلاص دي کړ؟ او یا دي واغوستل او زاړه شول؟ او یا دي خیرات کړل او وادي استول؟.

لطیفه:

حضرت مسلم له ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت کوي چي یو وخت رسول الله صلی الله علیه وسلم له خپل کورنه بهر راووت او که ګوري ناڅاپه حضرت عمر او ابوبکر رضی الله عنهما هم راوتلي وو نو یې دوی ته وویل: څه شي پدې شېبه کي له خپلو کورونو څخه راایستلي یاست؟ دوی ورته وویل: یارسول الله لوږي راایستلي یو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: زمادي په هغه ذات لوړه وي چي زما ساه یې په ید د قدرت کي ده زه هم همدغي لوږي راایستلی یم ! نو راپاځئ او پاڅېدل د انصارو رضوان الله علیهم دیو چا کورته ورغلل او هغه په کور کي نه و موجود کله چي یې مېرمني رضی الله عنها دوی ولیدل ورته یې وویل: هر کله راشی. رسول الله صلی الله علیه وسلم ترې وپوښتل فلانی چېرته دی؟ هغې ورته وویل: هغه تللی او خوږې اوبه راوړي پدې ترځ کي صحابي هم راورسېدو او رسول الله صلی الله علیه وسلم او ملګروته یې وکتل ویې ویل: الحمد لله نن ورځ به تر ما بل نېکمرغه هیڅوک هم نه وي چي تر ما ښه مېلمانه ولري هغه ولاړ او یو اوښکی تازه خرماوي یې راوړې چي پکي تازه او خوږې، وچې او لمدې خرماوي ګډې وې ورته یې وویل: تاسو دا خورئ! چاړه یې واخیسته رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل: پام کوه چي شیدې ورکونکي (وزه -مېږه) حلاله نه کړې نو هغه پسه حلال کړ او دوی ته یې غوښه پخه او راوړه دوی هم وخوړله خرماوي یې هم وخوړې او خوږې اوبه یې پسي وڅښلې کله چي ماړه شول اوتنده یې ماته شوه رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر او عمر رضی الله عنهما ته وویل: زمادي په هغه ذات لوړه وي چي زما نفس یې په ید د قدرت کي دی له دغو نعمتونو څخه به د قیامت په ورځ وپوښتل شی چي له خپلو کورونو څخه لوږي راوایستلای او تر هغو نه شوای ستانه تر څو دغه نعمتونه مو وڅکل.

د الله په مرسته د التکاثر سورت تفسیر بشپړ شو.

## د(العصر)سورت مكي او دري آيتونه لري.

### د سورت په وړاندي:

دالعصرسورت مكي او په ډېرلنداوكوتاه ډول يې دانسان دنېكمرغي اوبدمرغي اسباب څېړلي او په دغه ژوندانه كي يې دهغه بريالیتوب اوهلاكت څرګند كړيدى.

الله جل جلاله په عصرلوړه كړي اوعصرهغه وخت ته وايې چي دانسان عمرپكښي پاى ته رسېږي اوپكښي ډېرعجائبات شته همدارازپه هغه كي دالله جل جلاله دقدرت ډېري نښني اودلائل دي ځكه نوالله جل جلاله وړباندي قسم كوي لوړه اخلي چي انساني جنس په تاوان كي دى مګرنه هغه كسان چي پدې څلورصفتونومتصف وي چي هغه ايمان ، صالح عمل اوپه حق باندي له يوبل سره وصيت كول اوپه صبرمنګولي لګول دي، دادفضيلت تاداو اوبنسټ دى ددين اساس هم داجوړوي ځكه نوامام شافعي رحمه الله وايي: كه الله جل جلاله له دې سورت څخه پرته بل هيڅ آيت هم نه واى نازل كړى نودغه مبارك سورت كفايت اوبسنه كوله او دپوهانوبندګانو دهدايت لپاره كافي وو.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ وَالْعَصْرِ ۝١ إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ ۝٢ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ۝٣ ﴾ العصر: ١ - ٣

### تفسير:

﴿ وَالْعَصْرِ إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ ﴾ (قسم په عصرچي بېشكه انسان په زيان كي دى) يعني زه په دهر اوزمانې قسم كوم هغه چي پكښي عجائبات اوغرائب، پندونه اووعظونه خوندي دي چي(جنس) انسان په تاوان كي دى ځكه هغه چي آجل ترعاجل خوښوي اوهواهوس وړباندي غالب وي ابن عباس رضى الله عنهما وايي: عصردهر ته وايي ځكه چي په دهركي عجائب اونوادرموجوددي، قتاده وايي عصرد ورځي له ساعتونوڅخه وروستى ګړى ته ويل كېږي په هغه يې ځكه قسم اخيستى چي دالله جل جلاله دلوړقدرت نښي نښانې پكښي شته لكه چي په (الضحى) يې لوړه كړي ده ([1]) اوڅرنګه چي الله جل جلاله په زمانه لوړه كړي ځكه هغه دانسان دعمرپانګه (سرمايه) ده اوهره شېبه چي يې تېرېږي له عمر او ژوندڅخه يې كمېږي لكه چي وايي : (انا لنفرح بالأيام نقطعها وكل يوم مضى نقص من الأجل ) يعني موږخودشپواوورځوپه تېرېدلوخوشحالېږو خوهره ورځ چي تېرېږي له عمرڅخه كمېږي قرطبي ليكي: الله جل جلاله په عصرقسم اخيستى اوهغه دهردى ځكه په هغه كي داحوالو تبديل اوتصرفات پېښېږي په هغه كي دصانع په ذات باندي دلالت نغښتى دى اوچابياويلي چي دغه دمازيګرپه لمانځه باندي قسم دى ځكه هغه ترنورولمونځونوافضل دى([2]) ﴿ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ﴾ مګرهغه انسان چي

---

([1]) البحرالمحيط ۵۰۹/۸
([2]) القرطبي ۱۷۹/۲۰

ایمان بې راوړی دی او کړي یې دي ښه عملونه زیانکاران نه دي) یعني داکسان چي د ایمان اوصالح عمل خاوندان دي نېکمرغه اوبریالي دي ځکه خسیس یې په نفیس پېرودلی اوله شهواتو څخه یې باقیات الصالحات غوره ګڼلي دي ﴿وَتَوَاصَوْاْ بِٱلْحَقِّ﴾ او وصیت یې کړی وي یوله بله په حقه سره چي ایمان دی، تصدیق دی اود الله عبادت دی ﴿وَتَوَاصَوْاْ بِٱلصَّبْرِ﴾ اووصیت یې کړی وي یوله بله په صبر سره په مشکلاتو اوطاعاتو اوترک د محرماتو باندي

الله تعالی په ټولو انسانانو د خسران حکم کړی دی یوازي هغه کسان چي د اڅلور صفتونه پکې وي چي هغه ایمان، صالح عمل، اوپه حق اوصبروصیت کول دي ځیني ایستل شوي دي، ځکه دانسان نجات هلته ممکن دی چي ایمان راوړي نېک عمل ترسره کړي اونصیحت اوارشاد کوي نو به یې (حق الله اوحق العباد) غونډ ترسره کړي وي اوپدې څلوروکي همدغه راز پټ دی.

بلاغت

پدې سورت کي چي د بدیع اوبیان کوي ښکلاوي شته په لاندي ډول یې لنډیز لیکو:

۱ - د(بعض) یادول اود(کل) مرادول لکه ﴿إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَفِي خُسْرٍ﴾ ځکه داستثنا په دلیل معلومېږي چي مراد ټول خلګ جنس انسان دی.

۲ - تنکیر د تعظیم لپاره لکه ﴿لَفِي خُسْرٍ﴾ یعني دوی په ستر خسران اولوی هلاکت کي دي

۳ - اطناب د فعل په تکرار سره لکه: ﴿وَتَوَاصَوْاْ بِٱلْحَقِّ وَتَوَاصَوْاْ بِٱلصَّبْرِ﴾ ترڅو وریاندي بشپړ اهتمام اوپاملرنه وشي.

۴ - د خاص ذکر له عام نه وروسته لکه ﴿وَتَوَاصَوْاْ بِٱلصَّبْرِ﴾ چي د حق له کلمې څخه وروسته ذکر شوی دی ځکه صبر خوړومبی لا د حق په عموم کي داخل وو خو بیا یې یوازي ځکه ذکر کړ چي فضیلت یې ښکاره شي.....

۵ - غیر تکلفي سجع لکه ﴿وَٱلْعَصْرِ.....بِٱلصَّبْرِ.....خُسْرٍ﴾ او دا هم له بدیعي محسناتو څخه ګڼل کېږي

تنبیه

بیهقي په الشعب کي له ابي حذیفه رضی الله څخه روایت کوي چي هغه وایې کله چي به د رسول الله صلی الله علیه وسلم دوه اصحابان سره مخامخ شول نو د جلاکېدلو په وخت کي به یې سره والعصر یوبل ته اوراوو اوبیا به یې یوبل ته سلام اچاوو.

دالله جل جلاله په مرسته دوالعصر سورت تفسیر بشپړ شو.

## د(الهمزه) سورت مكي او نه آيتونه لري

### دسورت په وړاندي

دالهمزه سورت مكي او دهغو كسانو حال بيانوي كوم چي دخلكو عيبونه پلټي اولټوي يې دهغوى په اعراضو كي لوېږي او په هغوى باندي استهزاگاني او ملنډي وهي.

دغه سورت هغه كسان بدگڼي چي مالونه راغونډوي ثروتونه انباروي ته به واتل ترتله به ژوندي وي، دوى له ډېري ناپوهي داسي انگېري چي مال به يې تل له غمونو ژغوري او په دنياكي به ژوندي پاتي وي

دسورت په پاى كي دهغو بدبختانو انجام يادوي چي هميشه بلېدونكي اورته به لوېږي كوم چي ددوزخ اوردى.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿وَيْلٌ لِكُلِّ هُمَزَةٍ لُمَزَةٍ ﴿١﴾ الَّذِي جَمَعَ مَالًا وَعَدَّدَهُ ﴿٢﴾ يَحْسَبُ أَنَّ مَالَهُ أَخْلَدَهُ ﴿٣﴾ كَلَّا لَيُنْبَذَنَّ فِي الْحُطَمَةِ ﴿٤﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْحُطَمَةُ ﴿٥﴾ نَارُ اللَّهِ الْمُوقَدَةُ ﴿٦﴾ الَّتِي تَطَّلِعُ عَلَى الْأَفْئِدَةِ ﴿٧﴾ إِنَّهَا عَلَيْهِمْ مُؤْصَدَةٌ ﴿٨﴾ فِي عَمَدٍ مُمَدَّدَةٍ ﴿٩﴾﴾ الهمزة: ۱ - ۹

### لغتونه:

(همزه) عيب لټونكى غيبت كونكى (هماز) هغه چاته وايې چي دخلكو غيبت كوي او اعراض يې پلټي او يايې دريشخند او ملنډو په توگه لوري ته ستر گكونه وهي (فُعَلة) صيغه په عادت گرزېدلو دلالت كوي ځكه هرځاى چي دغه بناء استعمال شوي مراد ورڅخه عادت او خوى دى (لُمزة) لماز، هغه چاته وايې چي دخلكو عيبونه په ډاگه كوي او په ستر گو او وروځو دهغه خواته اشارې كوي (حطمة) ددوزخ اورته وايې ځكه هغه هرڅېزماتوي (مؤصدة) تړلي شوي او ټينگ بندلكه چي وايې (أوصد الباب) يعني ورېې وتاړه.

### تفسير:

﴿وَيْلٌ لِكُلِّ هُمَزَةٍ لُمَزَةٍ﴾ (هلاكت ياسخت عذاب ددوزخ دى هرغيبت گرعيب گرلره) يعني خرابي، عذاب او هلاكت دې هغه چالره چي عيبونه لټوي غيبت كوي دخلكو په اعراضو كي لوېږي او يايې پس شاد ستر گو په كونجانو او وروځو ورته دملنډو اشارې كوي. مفسرين كرام ليكي: داآيتونه د (أخنس بن شريق) په باب راغلي ځكه هغه به تل دخلكو عيبونه لټول مخامخ او پس شا به يې دهغوى غيبت كاوو، ددې آيت حكم عام دى [1] ځكه اعتبار دلفظ عموم لره وي نه دسبب خصوص لره ﴿الَّذِي

[1] القرطبي ۱۸۳/۲۰

﴿جَمَعَ مَالًا وَعَدَّدَهُ﴾ هغه چي مال یې جمع کړی او وار وار یې شمېرلی او ذخیره کړیدی، هغه یې ځکه شمېرلی چي کم شوی خو به نه وي هغه خپل مال ټولوي او خوندي کوي یې د الله جل جلاله په لارکي یې نه لګوي او نه هم د الله سبحانه حق پکي ورکوي (١) ﴿يَحْسَبُ أَنَّ مَالَهُ أَخْلَدَهُ﴾ (ګمان کوي چي دده مال به دی تل ژوندی لري) یعني دغه ناپوه داسي خیال کوي چي دده مال به دی تل ژوندی او له مرګه به یې ژغوري ﴿كَلَّا لَيُنبَذَنَّ فِي الْحُطَمَةِ﴾ نه ده داسي قسم دی خامخا وبه غورځولی شي په هغه اورکي چي ماتونکی سوځونکی دهرشي دی ﴿وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْحُطَمَةُ﴾ او څه شي پوه کړی یې ته څه شی دی ماتونکی؟ دغه استفهام د تفخیم او تعظیم لپاره دی یعني داهسي ماتوونکی دی چي هډوکي ماتوي غوښي سوځوي او په زړونو حمله کوي بیا یې الله جل جلاله پخپله تفسیر فرمایي ﴿نَارُ اللَّهِ الْمُوقَدَةُ﴾ اور د الله دی بل کړی شوی ، په امر دده او لګه نور او ور ونه غوندي نه دی بلکه دا تل بلېږي او په حدیث شریف کي راځي چي یوزرکاله بل شو ترڅو تک سور وا وښت او بیا یوزرکاله بل شو ترڅو تک سپین واوښت او بیا یوزرکاله بل شو ترڅو تک تور شو نو هغه تک تورتیاره دی (٢) ﴿الَّتِي تَطَّلِعُ عَلَى الْأَفْئِدَةِ﴾ هغه (اور) چي په زړونو خېژي (او سوځوي یې) یعني هغه اور چي درد او سوی یې زړونو ته رسېږي او سوځوي یې قرطبي لیکي چي زړونه یې ځکه ځانګړي یاد کړل چي کله درد زړه ته ور رسېږي بیا نو سړی مري دوی په همداسي حال کي خو مره کېږي نه لکه چي الله تعالی فرمایي (لایموت فیها ولایحي) نو دوی ژوندي خو په معناد مړیو دي ﴿إِنَّهَا عَلَيْهِم مُّؤْصَدَةٌ﴾ بېشکه دا اور به پر دوی باندي بند کړی شوی وي (چي دوی ته به هیڅ شمال او هوا نه ور رسېږي ) ﴿فِي عَمَدٍ مُّمَدَّدَةٍ﴾ (په ستنو را ښکلیو شویو اوږدو سره ) یعني د دوی لاس او پښې به په ځنځیرانو تړل شوي وي او د دوزخ دروازې به ورته را پوري او تړلي وي دوی نورله وتلو څخه ناهیلي وي او اوږدو ستنو معناد دې خبر ورکول دي چي دوی به هلته تل ترتله وي.

## بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي د بدیع او بیان کومي ښکلاوي شته لنډیزیې دادی:

١ - د مبالغې صیغه لکه ﴿هُمَزَةٍ﴾ چي (فُعَلَة) صیغه ده او په همېشه دود او عادت باندي دلالت کوي

٢ - تنکیر د تفخیم لپاره لکه پدې کلام کي چي ﴿جَمَعَ مَالًا﴾ یعني ډېرمال چي نژدې له شمېرلو وتلی وي

(١) الطبري ٣٠/١٨٩

(٢) رواه الترمذي عن ابي هريرة مرفوعا وقال الأصح انه موقوف

۳ - تفخيم او تهويل لکه ﴿ وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا ٱلۡحُطَمَةُ ﴾ تر څو د جهنم هيبت او ستر توب و ښيي.

۴ - غير تام جناس لکه ﴿ هُمَزَةٍ ﴾ او ﴿ لُّمَزَةٍ ﴾ او دي ته ناقص جناس وايي.

۵ - د فواصلو توافق لکه چي د ﴿ وَعَدَّدَهُۥ... أَخۡلَدَهُۥ... ٱلۡمُوقَدَةُ... مُّمَدَّدَةِۭ ﴾ په کلماتو کي راغلی دی او دي ته سجع ويل کېږي.

د الله جل جلاله په مرسته د الهمزة تفسير بشپړ شو.

***

## د (الفيل) سورت مکي او پنځه آيتونه لري

### د سورت په وړاندي:

د الفيل سورت مکي دی او د اصحاب الفيل (د فيل د خاوندانو) کيسه بيانوي کله چي يې د کعبې د نړولو تکل وکړ، خو الله جل جلاله د دوی مکر او کيد پخپله پر دوی باندي مسلط کړ او خپله کوټه (بيت الله شريفه) يې د دوی له شر څخه وژغورله او د (أبرهة الأشرم) په لښکرو يې خپل يو ډېر بېوزله مخلوق کوچني مرغان راواستول چي په منبوکه او پنجوکي به يې د بري نيولي وې خوتره ډېر روژونکو مردکيو او ګوليو يې ګذار سخت و وترڅو ټول لښکر الله د دغو مرغانو په وسيله تباه کړ او دغه تاريخي پېښه د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ميلاد په کال وه چي د ۵۷۰ ميلادي کال سره يې سمون درلود، دغه خارق العادة پېښه د رسول الله صلی الله عليه وآله وسلم د نبوت په رښتنولي ښه دلالت کونکی دی چي دغه کار له عادت څخه ډېر لوړ او اوچت وو.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ أَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِأَصۡحَٰبِ ٱلۡفِيلِ ۝١ أَلَمۡ يَجۡعَلۡ كَيۡدَهُمۡ فِي تَضۡلِيلٖ ۝٢ وَأَرۡسَلَ عَلَيۡهِمۡ طَيۡرًا أَبَابِيلَ ۝٣ تَرۡمِيهِم بِحِجَارَةٖ مِّن سِجِّيلٖ ۝٤ فَجَعَلَهُمۡ كَعَصۡفٖ مَّأۡكُولِۭ ۝٥ ﴾ الفيل: ۱ – ۵

### لغتونه:

(ابابيل) يو په بل پسي ټولګي ټولګي جوړي ليکي چي له هغو جمع څخه دی کومي چي واحد نلري
(سجيل) د ختو کاني (عصف) د کښت پاڼي لکه پروړه او ښه او عصف يې څکه بولي چي باد يې يوې بلي خواته خوځوي

Bawar.net



تفسير:

﴿أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِأَصْحَٰبِ ٱلْفِيلِ﴾(آيانه وولیدلی تاچي څرنګه کارکړی وو رب ستاله خاوندانو دفیل سره) یعني آیاته په علم الیقین سره پوه نه یې چي الله له خاوندانو دفیل سره څه وکړل؟ اودالکه چي پخپلوسترګویې پېښه لیدلي وي څکه چي دغه خبرېښې زیات شهرت موندلی وو. مفسرین کرام لیکي چي دیمن پاچا(أبرهة الاشرم) په صنعاء ښارکي یوه عبادت خانه جوړه کړه ترڅوله کعبې شریفي څخه خلګ هلته ورمات کړي خودکنانه قوم څخه یوڅوک راغی اوهلته یې انساني حاجت ترسره کړاوددغي جعلي عبادتخانې دېوالونه یې په پلیتي ولړل ترڅوسپکاوی یې وشي، ابرهه چي خبرشودېرقهر اوکاوړ ورغی قسم یې وکړچي کعبه شریفه به ورانوي په فیلانوسمبال یې ستر لښکرتیارکړاوترګردولوی فیل یې دمخه کړچي مکې شریفي ته ورسېدونودمکې خلکوغرونو ته پناه یووړه ترڅودغه ظالم له لښکرو خان خوندي اوژغوري ، الله تعالی پدې لښکروتورمرغان راوالوزول چي له هره یوه سره درې دختو کاني وویوې په منبوکه اودوه یې په منګولوکي نیولي وودغه لښکریان یې ورباندي ویشتل کاني به یې په سرکښبې دننه شول اوله ښکتني لاري څخه به یې راووتل اوهغه به یې حسه ماده غوندي پرېوت ترڅوتول یې همداسي ووژل اوددوی کیسه دخلکو لپاره دپنداوعبرت ورشوه.(¹)ابوالسعودلیکي داچي الله تعالی وفرمایل:﴿أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِأَصْحَٰبِ ٱلْفِيلِ﴾یعني آیانه دي وولیدلي چي الله ددوی سره څرنګه کاروکړ؟ اوداچي د(کیف) کلمه یې راوړه اود(ما)کلمه یې استعمال نکړه ددي لپاره چي ددغه کارکیفیت دېرهیبتناک اوترهوونکی وو هغه چي دالله په سترقدرت اوبشپړعلم باندي یې دلالت کاوو اودرسول الله صلی الله علیه وسلم د شرافت څرګندونه یې کوله اوداپېښه له هغوخارق العادة پېښوڅخه یوه وه کوموچي د رسول الله ﷺ دربښتنولي ګواهي ورکوله(²)﴿أَلَمْ يَجْعَلْ كَيْدَهُمْ فِى تَضْلِيلٍ﴾آیانه ووګرزولی هغه مکرد دوی(چي کعبه یې نړوله) په ګمراهي کي) دوی خوغوښتل چي کعبه ورانه کړي مګرالله دوی هلاک کړل ﴿وَأَرْسَلَ عَلَيْهِمْ طَيْرًا أَبَابِيلَ﴾ اوراویې لېږل په دوی باندي مرغان ټولګي ټولګي چي له هره لوريورباندي راوڅرخېدل ﴿تَرْمِيهِم بِحِجَارَةٍ مِّن سِجِّيلٍ﴾چي ویشتل یې هغوی په کانوسره(کوم چي له ختو جوړاوپه اورپاخه شوي ووهغه به لکه مرګکي غوندي ورباندي لګېدل اوځای په ځای به یې وژل ﴿فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ مَّأْكُولٍۭ﴾ نوویې ګرزاوودغه لښکرپه شان دوښو خوړل شویو، هغه چي بادیې الوزوي دوی یې ټول هلاک کړل، دغه کیسه دکعبې شریفي په شرافت اوعظمت دلالت کوي ا وداچي الله تعالی په قریشونعمت وکړاوددښمن څخه یې وژغورل نوپردوی لازم دي چي دالله عبادت وکړي او دنعمت شکریې پرځای کړي اوله دي سره سره پدې پېښه کي دالله جل جلاله له خپلودښمنانو څخه د کسات اخیستلودېرعجائب

(¹) کبیرتفسیر۳۱ /۹۲
(²) ابوالسعود۵ /۲۸۵

اوغرائب هم شته څکه دغه ستر دښمن په هماغه کال چي د رسول الله ﷺ د زېږېدلو کال وو وخپل شو او داګواکي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د نبوت خارق العاده نښه ده څکه دغسي مرغان پيداسي صفتونو ستايلي دمعجزاتو او ارهاصاتو څخه يوه معجزه او ارهاص دی کوم چي په پخوانيو انبياوو عليهم السلام لورول شوي وو پدې پېښه کي الله جل جلاله ستر دښمن پداسي بېوزله مرغانو هغه چي عادتاً هيڅکله هم څوک نه وژني ووژه(۱).

• بلاغت:

پدې سورت کي چي د بديع او بيان کومي ښکلاوي شته لنديزيي په لاندي ډول دي.

۱- استفهام د تقرير او تعجب لپاره لکه ﴿ أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِأَصْحَابِ الْفِيلِ ﴾ تر پايه

۲ - پيغمبر ته خطاب چي الله يې ځان ته منسوب کوي فرمايي ﴿ فَعَلَ رَبُّكَ ﴾ او پدې کي د ﷺ شرافت او د الله د قدرت څرګندونه او بيان دی.

۳- مرسله مجمله تشبيه لکه ﴿ فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ مَّأْكُولٍ ﴾ چي د تشبيه ادات او توری راوړل شوی خو د مشابهت وجه يې حذف شوي ده.....

۴ - د فواصلو توافق لکه ﴿ الْفِيلِ.... تَضْلِيلٍ..... سِجِّيلٍ..... أَبَابِيلَ ﴾ او داسي نور.

د الله جل جلاله په مرسته د الفيل سورت تفسير بشپړ شو.

***

## د (قريش) سورت مکي او څلور آيتونه لري.

د سورت په وړاندي:

دغه سورت په مجموع کي د الله تعالی د لويو نعمتونو يادونه کوي کوم چي د مکې په خلګو يې لورولي وو دوی دوه سفرونه درلودل يو په ژمي کي او بل په اوړي کي ژمی به يمن ته تلل او په دوبي کي به شام ته تلل په دې سفرونو کي به هغوی تجارت او سوداګري کوله او هم داراز الله جل جلاله قريش په دوونورو سترو نعمتونو هم نازولي وو چي هغه د امن سوکالي او استقرار نعمت او همداراز ثروت او بډايي يې ورباندي لورولي وه څکه فرمايي ﴿ فَلْيَعْبُدُوا رَبَّ هَٰذَا الْبَيْتِ الَّذِي أَطْعَمَهُم مِّن جُوعٍ وَآمَنَهُم مِّنْ خَوْفٍ ﴾.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿ لِإِيلَافِ قُرَيْشٍ (۱) إِيلَافِهِمْ رِحْلَةَ الشِّتَاءِ وَالصَّيْفِ (۲) فَلْيَعْبُدُوا رَبَّ هَٰذَا الْبَيْتِ (۳) الَّذِي أَطْعَمَهُم مِّن جُوعٍ وَآمَنَهُم مِّنْ خَوْفٍ (۴) ﴾ قريش: ۱ - ۴

(۱) البحر المحيط ۸/ ۵۱۱

تفسیر:

﴿ لِإِيلَٰفِ قُرَيۡشٍ إِۦلَٰفِهِمۡ ﴾له جهته دانس اوالفت دقریشوالفت ددوی ، دغه لام دهغه فعل متعلق دی کوم چي وروسته راځي چي (فليعبدوا )ایلاف عادت اومحبت میني ته وايي معناداچي له جهته دآسانتیادالله جل جلاله په قریشوهغه څه لره چي ورسره يې مينه درلوده هغه دژمي سفريمن ته او د دوبي شام ته وولکه چي فرمايي ﴿ رِحۡلَةَ ٱلشِّتَآءِ وَٱلصَّيۡفِ ﴾سفردژمي اودوبي کله چي به دوی هرکال هلته دسوداګري لپاره تلل اوخوراکي مواداوجامي به يې راوړلې په دغه تګ کي به يې ډېري ګټي وټي ترلاسه کولې پداسي حال چي دوی به په امن اوهوسایې کي ووهیچابه ورته تکلیف نه رساوو ځکه خلګوویل چي دغه دکعبې شریفي ګاونډیان(مجاوران)دي نوبه چاورباندي تېری اوظلم نه کاوو ،کله چي الله تعالی اصحاب الفيل هلاک کړل لانور دمکې دخلګوعزت اوعظمت دخلګوپه وړاندي زيات شواوپاچهانوامیرانوبه ورته په درنه سترګه کتل ددوی دغه ګټولانوره وده وکړه ځکه الله جل جلاله ورباندي خپل امتنان څرګنداودخپلو نعمتونويادونه يې وکړه ترڅوالله په وحدانيت ومني او شکريې اداکړي نوويې فرمايل ﴿ فَلۡيَعۡبُدُواْ رَبَّ هَٰذَا ٱلۡبَيۡتِ ﴾ نوښايې چي عبادت وکړی رب ددې کوټې لره اوخپل دغه عبادت دهمد غونعمتونوشکرانه کړی کوم چي په ځانګړي توګه الله جل جلاله پر دوی لوروولي دي مفسرين کرام لیکي چي: له دې امله په (فليعبدوا )کي(فا ) راوړل شوه ځکه پدې کلام کي دشرط معناخوندي ده لکه چي وايي: که په نورونعمتونودالله جل جلاله عباد ت نه کوي نوپه الفت ددووسفرونوخودي عبادت وکړي ځکه داډېرڅرګنداوسترنعمتونه دي، دوی پداسي هيوادکي اوسي چي نه کښت اوکرونده لري نه رمې اوګلې له همدې سببه وروسته فرمايي ﴿ ٱلَّذِيٓ أَطۡعَمَهُم مِّن جُوعٖ وَءَامَنَهُم مِّنۡ خَوۡفِۭ ﴾(هغه رب چي خواړه يې ورکړي دي دوی ته په لوږي کي اوامن يې ورکړی دی دوی ته له وېري څخه ) يعني دغه الله چي دوی يې په سخته لوږه کي ماړه اوپه سخته وېره کي په امن او سوکاله کړل ځکه هيڅوک په سفراوحضرکي پردوی نه بلوسي لکه چي الله تعالی فرمايي: ﴿ أَوَلَمۡ يَرَوۡاْ أَنَّا جَعَلۡنَا حَرَمًا ءَامِنٗا وَيُتَخَطَّفُ ٱلنَّاسُ مِنۡ حَوۡلِهِمۡۚ ﴾اوداداابراهيم عليه السلام دهغي دعابرکت دی چي له الله جل جلاله څخه يې غوښتی اوداسي يې ويلي وو: ﴿ رَبِّ ٱجۡعَلۡ هَٰذَا بَلَدًا ءَامِنٗا ﴾اوبياوايي ﴿ وَٱرۡزُقۡ أَهۡلَهُۥ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ ﴾ آيالازم نه دی چي قریش دهمدې ستر پروردګارعبادت وکړي کوم چي له لوږي يې وژغورل او له خوف اووېري څخه يې په امن اوهوسايې ونازول؟.

بلاغت: پدې مبارک سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

١ - دطباق صنعت د ﴿ ٱلشِّتَآءِ ﴾اود ﴿ وَٱلصَّيۡفِ ﴾او ﴿ جُوعٖ ﴾او ﴿ أَطۡعَمَهُم ﴾ترمينځ اوهمدارنګه دخوف اوامن ترمينځ ﴿ وَءَامَنَهُم مِّنۡ خَوۡفِۭ ﴾ .

۲ - اضافت د تشریف او تکریم لپاره لکه: ﴿ رَبَّ هَٰذَا ٱلْبَيْتِ ﴾.

۳ - دیو شي تقدیم چې ورسره تاخیرښايي لکه ﴿ لِإِيلَٰفِ قُرَيْشٍ ﴾ حق خو داسي وو چې ویل شوي وای (فلیعبدوارب هذاالبیت) لایلافهم رحلة الشتآء والصیف) خوایلاف یې ددې لپاره رومبی ذکر کړچې د نعمت یادونه وشي.

۴ - تنکیر د شدت د بیانولو لپاره لکه پدې کلماتوکي ﴿ جُوعٍ ....خَوْفٍ ﴾ څکه مراد شدیده لوږه او سخته وېره ده.

تنبیه:

امام فخررازي رحمه الله وايي: پوه شه چې انعام په دوه ډوله دی یو داچې ضرر دفع شي او هغه د (الفیل) په سورت کي ذکرشو دوهم داچې گټي او منافع ترلاسه شي هغه پدې سورت کي راغلي نو کله چې الله جل جلاله ضررځني دفع اوگټې یې ورته راماتي کړي دادوه نعمتونه یې بشپړور کړل بیایې د عبادت کولو امرورته وفرمایو او دشکراداکول یې ترې وغوښتل چې ﴿ فَلْيَعْبُدُوا۟ رَبَّ هَٰذَا ٱلْبَيْتِ ﴾ د آیتونو ترپایه.

دالله جل جلاله په مرسته د قریش سورت تفسیر بشپړ شو.

***

## د (الماعون) سورت مکي او اوه آیتونه لري.

د سورت په وړاندي:

د غه مکي سورت دی او په لنډه توگه د دوو ډوله حالاتو څخه غږېږي:

الف - د منکر کافر له حاله چې په قیامت او حساب جزا باندي ایمان نلري

ب :- هغه منافق چې خپل عمل یوازي دالله جل جلاله لپاره نه ترسره کوي او په لمانځه او نورو کړو وړو کي یې مقصد ریاکاري او ځان ښوونه (نمائش) وي.

الله جل جلاله دلومړي ډولگي څخه ددوی بد او ناکاره صفتونه یادوي چې دوی یتیم سپکوي او ځوروي د خیرخیرات کارونه نکوي آن تردې چې بل چاته هم د مسکین او یتیم دلاس نیوي په هکله ترغیب او (مارپینه) نه ورکوي نو هغوی نه دالله جل جلاله عبادت په سمه توگه کوي او نه هم دالله ﷻ له مخلوق سره سمه رویه او چلند کوي ، دوهمه ډله منافقین دي هغوی چې له خپلو لمنځونو څخه غافل دي پخپل وخت کي یې نه گذاري دوی یوازي د لمانځه حرکات اداکوي خو په معناکي هیڅ لمونځ نه وي دوی خلگو ته ځان ښودنه او ریاکوي او الله جل جلاله د غه دواړه ډولگیوته د هلاکت او (ویل) اخطار ورکړی دی او د دوی کارونه یې د استغراب او تعجیب په کلماتو غندلي دي !!

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ أَرَءَيْتَ ٱلَّذِى يُكَذِّبُ بِٱلدِّينِ ۝١ فَذَٰلِكَ ٱلَّذِى يَدُعُّ ٱلْيَتِيمَ ۝٢ وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ
ٱلْمِسْكِينِ ۝٣ فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ ۝٤ ٱلَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ ۝٥ ٱلَّذِينَ هُمْ يُرَآءُونَ ۝٦ وَيَمْنَعُونَ
ٱلْمَاعُونَ ۝٧ ﴾ الماعون: ۱ - ۷

**لغتونه:**

(يدع) رټي شړي لکه چي الله تعالى فرمايي (يوم يُدَعُّونَ الى نارجهنم دَعًّا) (يحض) حث اوحض ترغيب هڅولوته اوتېزولوته وايي( ساهون) دساهي جمع ده اوهغوکسانوته وايي چي له لمانځه څخه غافل وي اودلتې اوکاهلي په وجه يې نه اداکوي (الماعون) دېرکم شي ته وايي په عربوکي متل دى چي (ماله معنه ولاسعنه) يعني نه لږمال لري اونه ډېرمُبَرّد اوزجاج وايي (ماعون) هغه څېزته وايي چي ګټه اومنفعت پکې وي لکه تبر، دېګ ، سلواغه اوداسي نور.

**تفسير:**

﴿ أَرَءَيْتَ ٱلَّذِى يُكَذِّبُ بِٱلدِّينِ ﴾ آياوينې هغه څوک چي دروغ وايي په ورځي دجزاباندي ، استفهام د تعجب اوتشويق لپاره دى يعني آياتاپېژندلى هغه څوک چي دقيامت په ورځي اوحساب جزاباندي دروغ وايي؟ تاته معلوم دى هغه څوک دى څه صفتونه لري ؟که غواړې چي ويې پېژنې:

﴿ فَذَٰلِكَ ٱلَّذِى يَدُعُّ ٱلْيَتِيمَ ﴾ نوهمغه څوک دى چي رټي ،شړي يتيم لره په جفاسره،اوبداخلاقي ور سره کوي ظلم پرې کوي خپل حق يې نه ورکوي ﴿ وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ ٱلْمِسْكِينِ ﴾ نونه کوي تېزول په طعام خواړه ورکولو دمسکين باندي، پدې کي دااشاره ده چي که دې خپل وس اوتوان هم ولري مسکين ته څه نه ورکوي ځکه دى بل چاته لادمسکين په ورکړه اوخيرات تېزول نه کوي نوخپله به يې کله ورکړي[1] امام رازي ليکي چي که څوک وپوښتي چي ولي يې داسي وويل (ولايحض على طعام المسكين) اوداسي ونه ويل شو(ولايطعم المسكين) ځواب دادى چي هغه د يتيم حق نه ورکوي نو مسکين ته به څرنګه يوڅه ورکړي بلکه هغه لادبل چاپه مال باندي بخل کوي او دغه دزړه په خورا سخت والي اودبخل په زښته زيات والي اوکنجوسي دلالت کوي[2] حاصل داچي هغه نه پخپله مسکين ته خواړه ورکوي اونه بل چاته يې دورکولوامرکوي ځکه هغه په قيامت ايمان نلري که يې په قيامت ايمان درلوداى اوحساب جزايې منلاى داسي به يې نه کول ﴿ فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ ﴾ پس هلاک افسوس دى دپاره دلمونځ کونکو دمنافقانوهغوى چي داسي صفات لري) ﴿ ٱلَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ ﴾ هغه کسان چي دوى له لمانځه څخه بې خبره وي ؛ په لټي سره يې له خپلو وختونو څخه ځنډوي ابن عباس رضى الله عنهماوايي داهغه لمونځ کونکي دي چي که لمونځ وکړي هم دثواب طمع يې نلري اوکه يې

[1] البحرالمحيط ۸/۵۱۷
[2] القرطبي ۲۰/۲۱۷

پرېږدي هم له عذاب څخه بې نه وېرېږي (۱) ابو العاليه وايي چي دوی هغه کسان دي چي پخپل وخت لمنځونه نکوي اونه يې رکوع اوسجده په سمه توگه ترسره کوي له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه ددې آيت په هکله پوښتنه وشوه هغه وفرمايل : (داهغه کسان دي چي لمنځونه له خپلو اوقاتو څخه ځنډوي (۳) مفسرين کرام وايي: کله چي الله جل جلاله د(عن) په توري سره تعبيرو فرمايو معلومه شوه چي دادمنافقينوپه هکله دي ځينوپخوانيو(سلفو) علمای کراموويلي چي الحمدلله تعالی چي (عن صلاتهم) راغلی اوکه چېري (في صلاتهم) ويل شوي وای نودابه دمؤمنانوپه هکله وو ځکه هغوی هم کله ناکله په لمانځه کي سهوه کېږي خوددوارو سهووترمينځ توپيرډېرځرگنددی ځکه دمنافق سهود پرېښودلوسهوه ده هغه ته لمونځ څه اهميت نلري اونه ورپه يادکېږي تل ترې غافل وي مگرمؤمن که چېري سهوهم شي ددغي سهوي جبران په سجدوکوي نوددوارو سهووترمينځ فرق ځرگندشوورپسې

الله جل جلاله ددوی نوربد اوناکاره خويونه داسي بيانوي ﴿ ٱلَّذِينَ هُمۡ يُرَآءُونَ ﴾ هغه کسان چي دوی رياکاري کوي (يعني دوی دخلگوپه مخ کي لمنځونه کوي ترڅوخلگ يې وستايي چي داپرهېزگاره خلگ دي اوپه ډېره عاجزي لمونځ گذاري چي خلگ ووايي دخشوع خاوندان دي مالونه خيراتوي ترڅوخلگ دوی سخيان وگڼي همدارنگه ددوی ټول کړه وړه درياکاري سره وي او مطلب يې شهرت گټل

وي ﴿ وَيَمۡنَعُونَ ٱلۡمَاعُونَ ﴾ اومنع کوي اسباب دمنفعت امداد يوله بله (که څه هم ډېرلږشی وي، ماعون هرهغه څېزته هم ويل شوي چي گټه وربانديٰ اخيستل کېږي لکه ستن ،تبر ، گړوه ،مالگه، اوبه اونور. مجاهدوايي چي دماعون معنی هغه خواستي اومستعار شيان چي له يوله بله استعاره کول يې دخلگوترمينځ رواج لري لکه ،تبرسلواغه اونور لوښي . طبري ليکي چي : دماعون معنامنفعت اوگټه دهرشي ته ويل کېږي يعني دوی له خلگوڅخه دهغوشيانو چي له دوی سره دي منفعتونه منع کوي نه يې ورکوي(۲) په آيت شريف دداسي شيانودراکرزولوڅخه زجر راغلی ځکه چي پداسي وړوشيانوبخل کول نهايته کنجوسي اوناخواني ده.

بلاغت:

پدې سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱ - داسي استفهام چي مقصدورڅخه دسامع تشويق اودخبرتعجيب وي لکه ﴿ أَرَءَيۡتَ ٱلَّذِي يُكَذِّبُ بِٱلدِّينِ ﴾ چي راغلي دي

۲ - ايجازبالحذف لکه ﴿ فَذَٰلِكَ ٱلَّذِي يَدُعُّ ٱلۡيَتِيمَ ﴾ دلته شرط حذف شوی تقديريې داسي دی چي که غواړې ويې پېژنې نوداهغه څوک دی چي يتيم شړي اورټې يې اودغه دبلاغت له اسلوبوڅخه يودی.

۱

(۱)أخرجه ابن جرير
(۲) تفسيرطبري ۲۰۳/۳۰

۳ - ذم اوتوبیخ لکه ﴿ فَوَيۡلٌ لِّلۡمُصَلِّينَ ﴾ اوهمدارنګه دضمیرپرځای ظاهراوړل چي اصلا خوداسي ووچي (فویل لهم) مګردغه اظهارداضمارپرځای په تقبیح کي لازیات والی ښیي.

۴ - ناقص جناس لکه چي ﴿ وَيَمۡنَعُونَ ٱلۡمَاعُونَ ﴾ راغلی دی....

۵ - دفواصلوتوافق چي دآیتونودسرونومراعات وشي لکه ﴿ ٱلۡمَاعُونَ.... سَاهُونَ.... يُرَآءُونَ ﴾ اونور.

دالله جل جلاله په مرسته دالماعون سورت تفسیربشپړشو.

***

## د(الکوثر)سورت مکي اودرې آیتونه لري

### دسورت په وړاندي:

دالکوثرسورت مکي اودالله جل جلاله له لوري هغه فضل پخپل پیغمبرباندي بیانوي کوم چي دېرنعمتونه یې ورکړي اوددنیااوآخرت ښېګني یې ورباندي لوروليدي چي دهغوی له جملې څخه یو هم دکوثرنهردی اونورډېرنعمتونه، پدې سورت کي رسول الله صلی الله علیه وسلم دلمانځه ددوام اوقرباني کولوبلنه ورکول شوي ده ترڅودالله جل جلاله شکرپرځای کړي

سورت پیغمبرعلیه السلام ته په زړېري ورکولوپای ته رسېږي کوم چي داسي وړاندوینه کوي چي درسول الله صلی الله علیه وسلم دښمنان به خوار وزار اوپه دنیااوآخرت کي به له هري ښېګني څخه محروم وي، ټول هغه کسان چي له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره عداوت لري هغوی به سپک اوذلیل وي خودرسول الله صلی الله علیه وسلم نوم به په منارواومنبرونوتل ترتله اوچت اوپه ټولو ژبوبه ترقیامته تلپاتي ژوندي وي.

### لغتونه:

(الکوثر) ډېرخیراوبرکت له کثرت څخه مبالغه ده عرب هرهغه شی چي شمېرېې زیات یاقدر اوعزت یې لوی اوستروي کوثربولي (انحر) حلاله وکړه (نحر) په خانګړي توګه داوښانوحلالولوته وایې اوداسي ده لکه ذبح په غوایانواوپسونوکي(شانئک) الشأن، عداوت کونکي ته وایې اوله شنآن څخه اخیستل شوی لکه چي الله تعالی فرمایې (ولایجرمنکم شنآن قوم) اوباعث دي نه کړي دښمني دهغوی (الأبتر) له هره خیراوښېګني پرې شوی بې بنیاده اومنقطع بترپرېکولوته وایې هغه چاته چي ذوذات اونسل یې نه وي أبترویل کېږي څکه دهغه نسب پرې شوی دی دزیاد خطبې ته خطبه بتراء ویل شوي څکه هغه په خپله خطبه کي په الله حمداوپه رسول الله صلی الله علیه وسلم باندي درودنه وولوستلی.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿إِنَّآ أَعْطَيْنَـٰكَ ٱلْكَوْثَرَ ﴿١﴾ فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَٱنْحَرْ ﴿٢﴾ إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ ٱلْأَبْتَرُ ﴿٣﴾﴾

الكوثر: ١ - ٣

## تفسير:

﴿إِنَّآ أَعْطَيْنَـٰكَ ٱلْكَوْثَرَ﴾ بېشکه موږ درکړی تاته کوثر، خطاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دی اوداد رسول الله صلی الله علیه وآله وسلم دلوړمقام تکریم اوتشریف دی یعني موږتاته خیرکثیر درکړی هغه چي په دنیا اوآخرت کي به تل ترتله وي اوله دې څخه دکوثرنهرهم دی، هغه نهرچي په احادیثوکي راغي چي دواړه پولي يې دسرو زرو دي تل اوغولی يې دملغلرواویاقوتودی خاوري يې له مشکو خوشبویه اوبه يې ترشاتوخوږې اوتر واوري سپیني دي چاچي یو غوړپ څني وڅښل هیڅکله به بیاتږی نشي(١) أنس رضی الله عنه وايي یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم له موږسره یوځای ووچي نابېره بې هوښي پرې راغله اوبیايې موسکېدلي غوندي سرراپورته کړموږترې پوښتنه وکړه چي ای رسول الله څه شي وخندولې؟ ویل يې دااوس ورباندي یوسورت راباندي نازل شو نوبيې داسي ولوست

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿إِنَّآ أَعْطَيْنَـٰكَ ٱلْكَوْثَرَ﴾ دسورت ترپایه پوري بیايې و فرمایل: پوهېږی کوثرڅه شی دی موږویل: الله جل جلاله اوپیغمبرصلی الله علیه وسلم ښه پوهېږي، ویل يې هغه یونهرچي الله عزوجل ماته دهغه وعده راکړي ده په هغه کي زیات خیر دی هغه داسي حوض دی چي زماأمت به دقیامت په ورځ ورته راځي لوښي اوجامونه به يې دآسمان د ستوروپه شمېروی یوڅوک به ترې ګوښه کړی شي اونه به ورکول کېږي زه به وایم چي داخوزماأمتي ده راته به وویل شي ته خبرنه يې له تاوروسته يې څه کارونه کړي دي؟ (٢)ابوحیان لیکي دکوثرپه هکله شپږ ویشت وېناوي شته اوسمه وېنااوصحیح قول هغه دی چي رسول الله يې تفسیرفرمایلی دی اووايي چي (هونهرفی الجنة حافتاه من ذهب ومجراه علی الدروالیاقوت تربته أطیب من المسک وماءه أحلی من العسل) له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت شوی چي کوثرد ډېرخیرته وايي دادمفسرینو د اقوالوجامع اونغښتونکی راټولونکی قول دی اوبېشکه چي الله جل جلاله رسول الله ته د ډېرفضائل ور کړي نبوت، کتاب اوحکمت يې وربښلی، علم، شفاعت، حوض مورود، مقام محمود، داتباعو کثرت، په دښمنانونصراونور د ډېرنعمتونه يې ورباندي لورولي دي (٣)﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَٱنْحَرْ﴾ (نو لمونځ کوه دپاره درب خپل اوقرباني کوه) یعني خاص دهغه ذات لپاره چي تاته يې دومره نعمتونه درکړي اوښ قرباني کړه، اوښ دعربوله ډېره غوره مالونوڅخه دی. په التسهیل کي لیکي چي مشرکانوبه لوڅ لغړ اوله چک چکوسره لمونځ کاووااودبتانولپاره به يې اوښان حلالول نوالله جل جلاله خپل پیغمبرته امروکړ چي یوازي الله تعالی ته لمونځ وکړه اودهغه په مبارک نوم اوښ حلال کړه نودغه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته

---

(١) رواه الترمذي
(٢) رواه مسلم والترمذي
(٣) البحر ٨/ ٥١٩

دتوحید او اخلاص حکم دی ﴿إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ ٱلْأَبْتَرُ﴾ بېشکه دښمن ستا (ای محمده) همغه دی بې بنیاده اوله هره خیره منقطع. مفسرین کرام لیکي کله چي درسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک زوی حضرت (قاسم) وفات شونو عاص بن وائل وویل چي: پرېږدئ هغه دابې بنیاده دی کله چي ومري یادبه یې هم پای ته ورسېږي نو الله جل جلاله دا سورت نازل کړاوددې خبر یې ورکړچي دغه کافرېې بنیاده اوابتردی که څه هم اولادلري خکه دی دالله له رحمته پرې شوی او منقطع دی او هغه به یوازي له لعنت سره جوخت یادول کېږي پداسي حال کي چي درسول الله صلی الله علیه وسلم یادبه په منبرونو او مناروباندي تل اوچت اودالله جل جلاله له یادسره به یوځای وي ګرد مؤمنان دده له زمانې ترقیامته پوري دده روحاني اولاددی او هغه یې لکه پلار غوندي حیثیت لري صلوات الله وسلامه علیه

بلاغت

پدې سورت کي چي دبدیع اوبیان کومي ښکلاوې شته لنډ یې دادي:

۱ - دجمعي کلمه چي په تعظیم دلالت کوي لکه ﴿إِنَّآ أَعْطَيْنَـٰكَ ٱلْكَوْثَرَ﴾ اوداسي یې ونه فرمایل چي (اني أعطیتک).

۲ - دجملې په پیل کي دتاکید توری راوړل چي دقسم په ځای ودرېږي خکه (انا) په اصل کي (اِنَّ) او (نَحنُ) دی.

۳ - دماضي فعل دصیغې راوړل چي وقوع افاده کړي لکه ﴿إِنَّآ أَعْطَيْنَـٰكَ ٱلْكَوْثَرَ﴾ اوداسي یې ونه فرمایل چي (سنعطیک) خکه داوعده څرنګه چي ثابته ده نو یې په ماضي فعل سره ترې یادونه وکړه لکه چي واقع او موجوده وي

۴ - دکوثر په کلمه کي دمبالغې شتون

۵ - دتشریف او تکریم لپاره داضافت راوړل لکه د ﴿لِرَبِّكَ وَٱنْحَرْ﴾ په کلام کي چي راغلی دی.

۶ - دحصر افاده لکه پدې کلام کي ﴿إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ ٱلْأَبْتَرُ﴾ چي راغلي ده.

۷ - دسورت دپیل اوپای ترمینځ موافقت چي په ﴿ٱلْكَوْثَرَ﴾ او ﴿ٱلْأَبْتَرُ﴾ کي راغلی اودغه دطباق صنعت دی خکه کوثر خیر کثیر ته وایې او ابتر له هر خیر څخه منقطع ته ویل کېږي. دغه سورت که څه هم لنډ دی مګر دبلاغت او بیان د ډېرفنون پکي خوندي دي. فسبحان الله منزل القرآن

دالله جل جلاله په مرسته دالکوثر سورت تفسیر بشپړ شو.

***

## د(الكافرون )سورت مكي او شپږ آيتونه لري

### د سورت په وړاندي:

دالكافرون سورت مكي او دشرك او ضلال څخه دبرائت او دتوحيد سورت دى، مشركانو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دروغي جوړي بلنه وركړه او ترې ويې غوښتل چي ديو كال لپاره دي ددوى دبتانو عبادت وكړي او بيابه دوى يو كال دده دالله عبادت كوي دامبارك سورت نازل شوچي ددوى تمه (طمع) غوڅه او ددواړو دلوترمينځ فيصله صادره كړي او كافرانوته ددوى سپكه او بې ارزښته رايه وروښيي چي ددوى دغه ناولي وړانديزنه سمدستي دعملي كېدلو دى اونه په راتلونكي كي.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ قُلۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡكَٰفِرُونَ ۝١ لَآ أَعۡبُدُ مَا تَعۡبُدُونَ ۝٢ وَلَآ أَنتُمۡ عَٰبِدُونَ مَآ أَعۡبُدُ ۝٣ وَلَآ أَنَا۠ عَابِدٞ مَّا عَبَدتُّمۡ ۝٤ وَلَآ أَنتُمۡ عَٰبِدُونَ مَآ أَعۡبُدُ ۝٥ لَكُمۡ دِينُكُمۡ وَلِيَ دِينِ ۝٦ ﴾ الكافرون: ۱ - ۶

### تفسير:

﴿ قُلۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴾ ووايه (اى محمده) چي اى كافرانو ) يعني دغو كفاروته كوم چي تا د بتانو عبادت ته وربولي داسي ووايه ﴿ لَآ أَعۡبُدُ مَا تَعۡبُدُونَ ﴾زه عباد ت نه كوم دهغه شي چي تاسي يې كوى ).عني زه ستاسي له معبودانو څخه بېزاره يم هغوى چي نه ګټه رسوي اونه هم تاوان، دوى له خپلو پيروانو څخه هيڅ هم نشي دفع كولاى. مفسرين كرام ليكي چي قريشوله رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه غوښتل چي تريوه كاله پوري ددوى دمعبودانو عبادت وكړي بيابه دوى يو كال دده دمعبود عبادت كوي نورسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: اوزه له الله جل جلاله څخه له دې نه پناه غواړم چي ديوې ثانيي له مخي هم له هغه سره بل څوك ياشي شريک ونيسم) بيايې وويل: ښه نوته زموږ معبودانو مذمت مكوه موږ به ستاد پيغمبري تصديق وكړو او ستاد معبود عبادت به كوو نودا سورت نازل شواو رسول الله صلى الله عليه وسلم مسجد حرام ته ورغى او دكفارو په لويه جرګه كي يې ولوست نودوى ناهيلي شول اودرسول الله صلى الله عليه وسلم او اصحابانو په تكليفولو اوځورولويې لاس پوري كړ([1])اوپه دې خطاب كي (قُل) يې دادليل نيول كېږي چي پيغمبرد الله له لوري مأمور شوى دى اوداچي ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡكَٰفِرُونَ ﴾يې مخاطب كړل سره له دې چي هغه صلى الله عليه وسلم پدې پوهېدو چي په دغه نامه دوى خوابدي كېږي پدې كي دا دليل شته چي رسول الله صلى الله عليه وسلم دالله له لوري ژغورل شوى او ددوى دطاغوتانو هيڅ پرواهم نلري﴿ وَلَآ أَنتُمۡ عَٰبِدُونَ مَآ أَعۡبُدُ ﴾ اونه يې تاسي اى كافرانو عبادت كونكي دهغه ذات چي زه يې عبادت كوم اوتاسود تېرو او بتانو عبادت كوى اودې دواړو ترمينځ خورا اوږدواټن اودرازه مسافه ده ﴿ وَلَآ أَنَا۠ عَابِدٞ مَّا عَبَدتُّمۡ ﴾اونه يم زه عبادت كونكى دهغه شي چي تاسي يې عبادت كوى ، دادمخكني بېزاري تاكيددى او دكفارو دطمعي پرېكول پكي

([1]) روح المعاني ۳۰/ ۲۵۰

مقصد دي یعني زه نه فی الحال دبتانو عبادت کوم او نه هم په راتلونکي کي دهغوی عبادت کوم زه چي څوژوندی یم ستاسو دبتانو عبادت به ونکړم ﴿ وَلَآ أَنتُمْ عَـٰبِدُونَ مَآ أَعْبُدُ ﴾ او نه یاست تاسي عبادت کونکي دهغه ذات چي زه يې عبادت کوم) یعني تاسي هم په راتلونکي کي زما دبرحق معبود عبادت نه کوی کوم چي زه يې عبادت کوم ﴿ لَكُمْ دِينُكُمْ وَلِىَ دِينِ ﴾ تاسي لره دین ستاسي دی او ما لره دین زما دی یعني ستاسو شرک دین او زما د توحید دین دی او داهغه وروستنی برائت او بېزاري ده چي هيڅکله به هم دکفارو دبتانو عبادت نه کوي او پدې تأکید دی چي یوازي د واحد قهار ذات عبادت به کوي. مفسرین کرام وايي چي دلو مړنيو دوو جملو په معبود کي بشپړ اختلاف دی ځکه دمشرکينو معبود بتان او د محمد صلی الله علیه وسلم او مؤمنانو معبود رحمن ذات دی او همداسي ددوو وروستنيو جملو ترمينځ په عبادت کي بشپړ اختلاف دی لکه چي وايي نه مو معبود يو دی او نه مو عبادت يو دی.

بلاغت:

پدې مبارک سورت کي چي دبديع او بيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دا دی:

۱ - په صفت سره خطاب لکه ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلْكَـٰفِرُونَ ﴾ چي دا داهل مکې لپاره توبيخ او تشنيع دی.

۲ - دسلب طباق لکه پدې کلام کي چي ﴿ لَآ أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ ﴾ چي لومړی نفی او دوهم اثبات دی.

۳ - مقابله دهرو دوو لومړيو جملو ترمينځ لکه ﴿ وَلَآ أَنتُمْ عَـٰبِدُونَ مَآ أَعْبُدُ ﴾ یعني اوس فی الحال او بيا ددوو وروستنيو جملو ترمينځ مقابله چي ﴿ وَلَآ أَنَا۠ عَابِدٌ مَّا عَبَدتُّمْ ، وَلَآ أَنتُمْ عَـٰبِدُونَ مَآ أَعْبُدُ ﴾ یعني په وروستی، راتلونکي زمانه کي او پدې کي دبتانو دعبادت نفی په حال او استقبال کي کېږي چي دغه دمقابلې صنعت هم دبديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

۴ - دفواصلو توافق چي فرمايي ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلْكَـٰفِرُونَ لَآ أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ ﴾.

دالله جل جلاله په مرسته دالكافرون سورت بشپړ شو.

***

## د(النصر) سورت مدني او درې آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

دالنصر مدني سورت دی او دمکې له فتحي څخه غربېږي هغه فتح چي الله تعالی مسلمانانو ته دهغې په ترلاسه کولو عزت ورکړ او په عربي جزيره کي اسلام خپور شو دشرک او ضلالت نوکان غوڅ شول او په دغه مبين نصرت او فتحي سره خلګ دالله په دين کي دننه شول داسلام توغ او بيرغ لوړ ورپېد او دکفر ملت تباه شو دمکې دفتحې اخبار پخپله ترفتح کېدلو له مخه راغلي وو چي دا پخپله د رسول الله صلی الله علیه وسلم په رښتنولي باندي ډېر ښکاره دليل دی

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ ﴿١﴾ وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ أَفْوَاجًا ﴿٢﴾ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا ﴿٣﴾﴾ النصر: ۱ - ۳

تفسير:

﴿إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ﴾ کله چي راشي نصرت دالله اوفتح د(مکې) خطاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دی الله ورته دغه نعمت یادونه کوي کوم چي پخپله علیه السلام اونورو مؤمنانو ته يې ورکړي دي معناداچي کله الله تاته په دښمنانو نصرت درکړی اومکه درباندي فتح کړي مفسرين کرام ليکي چي اخباردمکې په فتح ترېخواله راتلوڅخه يې اخباربالغيب اودنبوت درښتنولي له نښونښانوڅخه دی ﴿وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ أَفْوَاجًا﴾ اووينې به ته خلک چي ننوزي به په دين دالله کي ډلي ډلي يعني اووينې چي عرب پرته له جنګ جګړې په اسلام کي ټولی ټولی ننوزي اودادمکې له فتحي څخه وروسته ووچي دځمکي له ګوټ ګوټ نه به عرب پخپله خوښه راتلل اواسلام به يې مانو. ابن کثيروايي چي: دعربانوقبائلو دمکې دفتحي انتظار کاوو، ويل به يې که (محمدصلی الله علیه وسلم )پخپل قوم برپالی شونونبي دی اوکله چي الله تعالی مکه فتح کړه نوبيا ډلي ډلي په اسلام کي داخل شو ل دوه کاله لابشپړنه ووتېرشوي چي ټوله جزيره داسلام اوايمان په رڼا وځلېدله اوداسي څوک پاتي نشول چي اسلام يې نه و وراوړی (۱) ﴿فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ﴾ پس تسبيح پاکي وايه سره له حمده ثنادرب خپل يعني دخپل رب پاکي اوثناوايه اوشکرېې پرځای کړه چي په دښمنانويې بری درکړاوخلګ يې په اسلام مشرف اوښارونه يې درباندي فتح کړل ﴿وَاسْتَغْفِرْهُ﴾ اومغفرت بښنه وغواړه له ده څخه (لپاره دځان اوأمت خپل) ﴿إِنَّهُ كَانَ تَوَّابًا﴾ بېشکه(دغه الله) تل ښه قبلونکی دتوبې (اوپخپلو بندګانو سترر حم خاوند دی).

بلاغت:

پدې سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱- ذکردخاص وروسته له عامه چي پدې کلام کي دی ﴿إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللَّهِ وَالْفَتْحُ﴾ دالله نصرت ګردوفتوحاتوته ويل کېږي اودمکې فتح يې وړباندي عطف کړه ترڅويې دشان تعظيم ترسره شي

۲- له عموم څخه دخصوص اراده لکه ﴿وَرَأَيْتَ النَّاسَ﴾ دخلګويادونه عامه اومرادورڅخه عربي قبائل دي.

(۱) دابن کثيرمختصر ۳ /۶۸۸ اوقرطبي وايي چي(اذا) دقدپه معنايعني په تحقيق سره راغلی نصرت دالله خکه ددې سورت نزول تر فتح وروسته دی.

۳ - د دين نسبت كول الله ته ﴿ فِي دِينِ ٱللَّهِ ﴾ لپاره د تشريف او تعظيم دى لكه (بيت الله) (ناقة الله) او مراد ورڅخه د اسلام سپيڅلى دين دى

۴ - د مبالغې صيغه چې په ﴿ إِنَّهُۥ كَانَ تَوَّابَۢا ﴾ كې راغلى ځكه (فعال) مبالغه افاده كوي

تنبيه

پدې سورت كې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات خبر دى ځكه ورته د (توديع) يعني خداى پاماني سورت وايي او كله چې نازل شو رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت عائشې رضى الله عنها ته وويل: زه داسي انګيرم چې اجل مي راورسېدو، ابن عمر رضى الله عنه وايې چې دغه سورت په منى كې د حجة الوداع په كال نازل شو وروسته بيا دا آيتونه نازل شول چې:

﴿ ٱلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ ﴾ تر پايه اوله دې دوا ړو وروسته رسول الله صلى الله عليه وسلم فقط اتيا ورځې ژوندى وو. امام بخاري رحمه الله له ابن عباس رضى الله عنه څخه روايت كوي چې هغه ويل زه به عمر رضى الله عنه د بدريانو مشرانو سره يوځاى كېنېنولم لكه چې د هغوى ځينو كسانو په زړه كې به څه ورګرځېدل او ويل به يې ولې داله موږ سره يوځاى كېنېنول كېږي زموږ دده په څېر زامن دي؟ نو به حضرت عمر رضى الله عنه ورته ويل: دا د علم خاوندد ي!! نو يوه ورځ يې زه ورو بللم او د دوى سره يوځاى يې كېنېنولم ويل به يې چې ما فكر كاوو دوى ته د ور ښكاره كولو لپاره يې ور بللى يم عمر رضى الله عنه وويل:

د الله جل جلاله پدې وينا كې چې ﴿ إِذَا جَآءَ نَصْرُ ٱللَّهِ وَٱلْفَتْحُ ﴾ ده څه وايا ست؟ ځيني كسانو وويل چې: الله موږ ته امر كړى چې حمد او ثنا يې ولولو او استغفار يې وكړو كله چې بريالي شو او فتح مو په برخه شي، ځيني چُپ شول هيڅ يې هم نه ويل بيا يې ماته وويل: ابن عباسه ته هم داسي وايې؟ ما ويل: دا د رسول الله صلى الله عليه وسلم اجل دى چې الله ور ښودلى او فرمايلي يې دي ﴿ إِذَا جَآءَ نَصْرُ ٱللَّهِ وَٱلْفَتْحُ ﴾ دا ستا د اجل نښه ده ﴿ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَٱسْتَغْفِرْهُ إِنَّهُۥ كَانَ تَوَّابَۢا ﴾ نو عمر رضى الله عنه وويل: زما دې په الله لوړه وي هغه چې ته وايې ماته هم دغسي ښكاري

د الله جل جلاله په مرسته د النصر سورت تفسير بشپړ شو.

***

## د (المسد) سورت مكي او پنځه آيتونه لري

د سورت په وړاندې:

المسد مكي سورت او د (اللهب) او (تبت) سورت يې هم بولي پدې سورت كې د ابولهب د هلاكت خبري دي هغه چې د الله تعالى او د هغه د استازي دښمن وو هغه داسي ځوك وو چې خپل روز ګار به يې پرېښود او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د بلني او دعوت مخنيوى به يې كاوو له پيغمبر عليه السلام سره يې د ېر سخت عداوت درلود خلګ به يې له ايمان راوړلو څخه ګرزول

سورت په پای کې هغه ته دلمبې وهونکي اوراخطار ورکوي چې په هغه کې به دی پخپله او ارتینه بې وریت کېږي اوښځې ته بې دیوځانګړې ډول عذاب رسېدلو خبرهم ورارووي چې دهغې په اورمېږ به دخرمادپټوکي رسۍ تاوراتاو اوپه اورکې به کشول کېږي ترڅوچې زیات عذاب اوهلاکت یې په برخه شي.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ ① مَا أَغْنَىٰ عَنْهُ مَالُهُ وَمَا كَسَبَ ② سَيَصْلَىٰ نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ ③ وَامْرَأَتُهُ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ ④ فِي جِيدِهَا حَبْلٌ مِّن مَّسَدٍ ⑤ ﴾ المسد: ۱ - ۵

**لغتونه**

(تبت) هلاک شول (تباب) هلاکت اوخسران ته ویل کېږي لکه چې الله تعالی فرمايي ﴿ وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ إِلَّا فِي تَبَابٍ ﴾ (ذات لهب) خاوند دلمبو اوبلېدلو (جیدها) په غاړه دهغې (مسد) مرغلین، واحدي لیکي چې (مسد) د عربو په کلام کې تاوولو، اوبدلو (فتل) ته وايي اوهرڅه چې دخرما دونې دپټوکي له تاوولو جوړشي (مسد) یې بولي.(۱).

**دنزول سبب**

الف- له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت شوی فرمايي کله چې دا آیت نازل شو: ( وأنذر عشیرتک الاقربین ) نورسول الله صلی الله علیه وسلم دصفاغونډۍ ته وخوت اوغږيې کړ: ای دفهر زامنو ای دعدي زامنو او دنوروګردوقریشو دقوم خیلونو (پښو ) ته یې ورغږ کړ ترڅوټول راغونډشول، هغه څوک چې پخپله نشوای حاضرېدلای نوخپل نماینده او استازی یې راواستاوو چې وګوري څه خبره ده ، ابولهب هم راغی بیایې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وپوښتل چې څه خبره ده ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل : که چېرې زه خبردرکړم چې ددې وادي هاخوا یولښکر را روان اوپرتاسو حمله کوي تاسې منی؟ دوی وویل: منوېې ځکه چې له تاڅخه مو هیڅکله دروغ ندي اورېدلي نورسول الله وفرمایل: چې زه تاسوته له سخت عذاب څخه وېرونکی یم ، ابولهب په ځواب کې ورته وویل: ګرده ورځ هلاکت دې تالره آیاددې لپاره دې موږ راغونډ کړي یو؟ نو الله جل جلاله دا آیتونه نازل کړل ﴿ تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ ﴾ ترپایه (۲).

ب- طارق المحاربي وايي چې زه دذی المجاز په بازارکې وم چې ګورم یو زلمی ځوان دی وايي: ای خلګو لااله الاالله ووایاست تاسو به بری اوخلاصون ومومی او بل سړی ووچې له شایې په تیږو ویشتل پښې یې ورژوبلې اووینې کړې وې اوهغه بیاداسې ویل: ای خلګو ددې سړي خبره مه منئ دا دروغجن

(۱) کبیر تفسیر ۳۱ / ۱۷۳
(۲) روح المعاني ۳۰ / ۲۶۰

دی. ماپوښتنه وکړه چي دا زلمی څوان څوک دی خلکو ویل چي دا محمد دی دی وایي چي پیغمبر دی او دا بل سړی دهغه تره ابولهب دی هغه گمان کوي چي محمد دروغجن دی(۱).

تفسیر:

﴿ تَبَّتْ يَدَآ أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ ﴾ د (دغه بدمرغه) ابولهب دواړه لاسونه دي مات هلاک شي او پخپله دی هم هلاک شو لومړی جمله ښېراده او دوهمه اخبارچي دغه ښېرا هم قبوله شوه لکه چي څوک وایي: الله دي (فلانی) هلاک کړي او هلاک شو. مفسرین کرام لیکي چي: تباب هغه هلاکت ته وایي چي له خسرانه وزیږي او مراد له لاسونو څخه خاوند دلاسونو دی، عرب کله کله چي دیوشي له جزء څخه تعبیرکوي مقصد یې هغه ټول شی وي، دابولهب اصلي نوم عبدالعزی او هغه دعبدالمطلب زوی او درسول الله صلی الله علیه وسلم کاکا دی دهغه عوراء مېرمن چي (أم جمیل) نومېده دابوسفیان خوروه دمېرمنې او خاوندیې دواړو له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دښمني وه چي دابولهب ښځی داخبره واورېده چي ددې او دمېړه په هکله یې دقرآنکریم آیتونه نازل شوي دي نو رسول الله ته پداسي حال کي راغله چي هغه کعبې شریفي ته نژدې ناست او حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه هم ورسره وو ددې په لاس یوه ټوټه ډبره وه کله چي ورته نژدې شوه نویې په سترگو توره تیاره راغله هغه صلی الله علیه وسلم یې نه لیدواو یوازې ابوبکررضی الله عنه په نظرکي ورتونویې هغه ته په خطاب کي وویل: ای ابوبکره! ماته رسېدلي چي ستا ملگری ماته بدرد وایي زما دي په الله سوگند وي که یې پیدا کړم پدې تیږه به یې په خوله کي وولم او بیایې داشعرولوست چي: مذمما عصینا، وأمره أبینا، ودینه قلینا. دبدسري څخه موسرغړونه وکړه، امراولاره یې نه منو، دهغه دین مو پرې ایښی دی بیابیرته ستنه شوه ابوبکررضی الله عنه وویل: ای رسول الله تاونه لیده چي ته یې ولېدې؟ رسول الله صلی ا لله علیه وسلم ورته وفرمایل: هغې زه ونه لیدلم الله جل جلاله یې دسترگو بینایې واخیسته، قریشو به رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ښکنځل کول دمحمد پرځای به یې مذمم یاداوو رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: آیا تاسو تعجب نه کوی چي څرنگه زه الله جل جلاله دقریشو له آزارولو او ضررڅخه ژغورلی یم دوی مذمم ته ښکنځل کوي اوزه محمد یم(۲) خازن لیکي: که څوک وپوښتي چي ولي یې ابولهب په کنیه سره یادکړی او په کنیه نوم سره څو تعظیم او تشریف کېږي خواب داچي له څو وجوهاتو څخه: اول داچي هغه په کنیه اسم مشهور وو او پخپل اسم یې دغومره شهرت نه لاره که چېري په نامه یې ذکرکړی وای چابه نه پېژنده دوهم داچي نوم یې عبد العزی وو او هغه دشرک څرگندوی وو چي دعبدالعزی معنادبت بنده دی او بت ته دبندگی نسبت کول روانه دي، دریم داچي هغه دوزخي او ورته ورتلونکی او دشغلو خاوند وونودده له حال سره کنیه اسم ښېخي موافق وو څکه یې په همدې کنیه باندي یادونه وشوه(۳). ﴿ مَآ أَغْنَىٰ عَنْهُ مَالُهُۥ وَمَا كَسَبَ ﴾ دفع به نکړي له ده څخه (هلاکت) مال او هغه گټلی دده (له رتبې او عزت نه) ابن عباس رضی الله

(۱) القرطبي ۲۰/ ۲۳۶

(۲) قرطبي تفسیر ۲۰/ ۲۳۴

(۳) الخازن ۴/ ۳۱۷

عنهما وايي: (وماكسب)عبارت له اولادڅخه دی. روايت کېږي چي کله رسول الله صلی الله عليه وسلم خپل قوم ايمان ته دعوت کړنوابولهب وويل: که چېري هغه څه حق وي چي زما وراره يې بيانوي نوزه به دغه عذاب پخپل مال اواولادباندي دفع کړم بياداآيت نازل شو(۱)الوسي ليکی چي دابولهب دري زامن درلودل چي نومونه يې عتبه معتب عتيبه وو لومړنيو دوودمکې دفتحي په ورځ ايمان راوړ اودحنين اوطآئف په غزاګانوکي ګډون وکړ مګرعتيبه مسلمان نشودرسول الله صلی الله عليه وسلم لور(أم کلثوم) دهغه مېرمن وه او(رقيه) بيادهغه دورور عتبه مېرمن وه کله چي داسورت نازل شوابولهب دواړوزامنوته وويل: که موچېري دمحمدصلی الله عليه وسلم لونوته طلاق ورنکړنو زماسراوستاسي سرونه دي حرام وي يعني زه له تاسوسره مقاطعه کوم نودوی هم هغوی طلاقي کړي اوکله چي عتيبه شام ته له خپل پلارسره روان وونويې ويل: زه به اورومرومحمدته تکليف وررسوم اوراغی رسول الله صلی الله عليه وسلم ته يې وويل: ای محمده زه په ﴿وَالنَّجْمِ إِذَا هَوَىٰ﴾او ﴿ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّىٰ﴾

کافريم اوبيايې دنبي عليه السلام په لور وتوکل اودهغه لور(أم کلثوم) يې طلاقه کړه رسول الله صلی الله عليه وسلم ډېرخوابدی شواوله قهره يې ورته داسي ښېراوکړه :ای ربه له خپلوسپيو څخه يوسپی ورباندي مسلط کړې هغه ووچي زمري څېري کړاوابولهب بيادبدرله پېښي اوه ورځي وروسته په يوه ساري ناروغی. اخته شوهغه چي دطاعون په شان ناروغي اوعرب يې عدسه بولي اودهغې په وسيله هلاک شومړی يې درې ورځي پرځای پروت ووځوچي خوړين خوساشو اوزامنويې هغه دخلګوله شرمه د مزدورانوپه لاس په يوه چوغالي کي چي چېري کيندل شوي وه وغورځاوو اوپه ډبرويې ترهغو وېشتل څوپټ شواوهمداسي ؤشول لکه څرنګه چي قرآنکريم اخبارفرمايلی وو(۲) ﴿سَيَصْلَىٰ نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ﴾ ژردی چي ننه به وزي (ابولهب په قيامت کي) په اورخاوندلمبوکي چي هغه دوزخ دی ﴿وَامْرَأَتُهُ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ﴾اوننوزي به مېرمن دهغه چي بار راوړونکي به وي دخسوهغه چي دخلګو ترمينځ به يې چغلي کوله اوددوی ترمينځ به يې ددښمني اوبغض اوربلاووابوالسعودليکي هغې به داغزيوخس خاشاک راوړل اودشپې به يې درسول الله صلی الله عليه وسلم په لارکي غورځول ترڅوچي عليه السلام ته ورباندي څور ورسوي (۳)ابن عباس رضی الله عنهماوايې چي هغې به دخلګوترمينځ چغلي کوله چي ژوند يې سره تريخ کړي(۴)(اوپه فارسي کي چغلخورته هيزم کش وايې) ﴿فِي جِيدِهَا حَبْلٌ مِّن مَّسَدٍ﴾

په غاړه ددې کي رسی. ده له مضبوطوپټوکيودخرماڅخه، ټينګه تاوشوي چي دقيامت په ورځ به ورباندي عذاب ورکاووشي. مجاهدوايې چي داداوسپني غاړه ګی ده اوابن مسيب وايې چي دهغې يوه ډېره قيمتي غاړه ګی. په غاړه وه چي ګرده له ملغلروجوړه وه هغې به ويل: زمادي په لات اوعزی

---

(۱) مختصرابن کثير۳ / ۶۹۰

(۲) روح المعاني۳۰ / ۲۶۲

(۳) ابوالسعود۵ / ۲۹۱

(۴) الوسي۳۰ / ۲۹۳

سوګندوي زه به داغاره ګی، د محمد صلی الله علیه وسلم په دښمني کي لګوم الله جل جلاله د هغې پر ځای رسی چي داور څخه تاوو شوي وي وربدله کړه (¹).

بلاغت:

پدې سورت کي چي دبديع اوبيان کومي ښکلاوي شته لنډيزيې دادی:

۱- مرسل مجاز لکه ﴿ يَدَآ أَبِي لَهَبٍ ﴾ چي جزء يې ذکر کړي اومراد ځني کل دی دلته يوازي لاسونه يادشوي چي مراديې خاونددی.

۲- دجناس صنعت چي ﴿ أَبِي لَهَبٍ ﴾ اود ﴿ نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ ﴾ ترمينځ اولومړی دهغه کنيه اودوهم داورصفت دی.

۳- دتصغيراوسپکاوي لپاره کنيه نوم راوړل لکه ابي لهب چي تشريف نه بلکه تحقير مراددی لکه: ابوجهل.

۴- لطيفه استعاره لکه ﴿ حَمَّالَةَ ٱلْحَطَبِ ﴾ چي دچغلګرو لپاره يې استعاره کړي.

۵- دفواصلو توافق اويوډول والی چي داهم له بديعي محسناتو څخه ګڼل کېږي.

دالله جل جلاله په مرسته دمسد سورت تفسيربشپړشو.

***

## د(اخلاص) سورت مکي اوڅلورآيتونه لري

دسورت په وړاندي:

داخلاص سورت مکي اودالله جل جلاله له صفتونو څخه غږېږي هغه ذات چي واحدالاحداود ټولو کمالي صفاتو خاونددی تل ترتله ذات دی له ټولو څخه بې پرواودنقص له صفاتو څخه منزه اوپاک اوله مجانست اومماثلت څخه سپېڅلی دی.

سورت دنصرانيانودعقيدې بطلان ښکاره کوي چي دوی د(تثليث) (دريوالي) عقيده لري همداسي په مشرکانوباندي ردکوي څکه هغوی الله لره ذوذات اوزامن ثابتوي.

لغتونه:

(الصمد) بې نيازه اوبې پروادحاجتونوپه ترسره کولوکي مقصودذات (کفوًا) سيال مثل اومشابه ابوعبيده وايې چي کفو، کفء، اوکفاء ټول په يوه معنارا ځي چي مثل اوسيال ته وايې.

(¹) القرطبي ۲۰/ ۴۲

دنزول سبب:

روایت کېږي چي ځيني مشرکان رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلل اوورته ويل يې ته دالله د صفتونه وکړه آيا هغه دسروزرودی، که دسپينوزرو هغه له زبرجدو جوړدی که له ياقوتو څخه بيا دا سورت نازل شو.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ۝ اللَّهُ الصَّمَدُ ۝ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ۝ وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ ۝ ﴾ الإخلاص: ۱ - ٤

تفسير:

﴿ قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ﴾ (ووايه دوی ته ای محمده) شان دادی چي الله يودی) يعني ای محمده! دغو استهزاء کوونکو مشرکانو ته ووايه چي هغه الله کوم چي زه يې عبادت کوم واحد اولاشريک دی نه مثل لري اونه سيال نه څوک ورسره په ذات کي مشابه دی اونه په صفاتو، افعالوکي هغه جل جلاله واحد اوأحددی داسي نه دی لکه چي نصرانيان يې ګڼي چي هغه پلارزوی اوروح القدس دی نه هم داسي دی لکه چي مشرکان عقيده لري چي معبودان ډېردي په التسهيل کي ليکي چي دالله وصف په واحد سره درې معناګاني لري اودرې سره دالله په شان کي ربنتوني دي لومړی داچي هغه واحددی، دوهم نلري دغه دعدد نفی ده دوهم داچي مثل ورسره نشته اودريم داچي هغه واحد دی نه وېش مني اونه هم څوڅوځايه کېږي خومراد په سورت اخلاص کي دالله دشريک نفی کول دي چي په مشرکانو باندي ردوشي، اوپه قرآن کريم کي الله تعالى زښته ډېردلائل اوبراهين پخپل وحدانيت ذکرکړي دی او تر ټولو څرګند څلور دي لومړی دالله داويناچي فرمايې ﴿ أَفَمَن يَخْلُقُ كَمَن لَّا يَخْلُقُ ﴾ (النحل: ۱۷) اودغه د پيداينت اوايجاددليل دی نوکله چي داثابته شي چي الله تعالى دټولوموجوداتوپيداکونکی (خالق) دی نودابياهيڅکله نشي کېدای چي بل څوک دي ورسره شريک وي دوهم داکلام چي ﴿ لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللَّهُ لَفَسَدَتَا ﴾ (الانبياء: ۲۳) چي دادټينګ والی اوابداع دليل دی دريم داچي الله تعالى فرمايي ﴿ لَّوْ كَانَ مَعَهُ آلِهَةٌ كَمَا يَقُولُونَ إِذًا لَّابْتَغَوْا إِلَىٰ ذِي الْعَرْشِ سَبِيلًا ﴾ (الاسراء: ۴۳) چي دغه دقهر اوغلبې دليل دی څلورم داچي دالله جل جلاله داقول چي ﴿ مَا اتَّخَذَ اللَّهُ مِن وَلَدٍ وَمَا كَانَ مَعَهُ مِنْ إِلَٰهٍ إِذًا لَّذَهَبَ كُلُّ إِلَٰهٍ بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ﴾ (المؤمنون: ۹۱) چي دغه دليل دتنازع او استعلاء دی[1] بيا الله تعالى دخپل وحدانيت اوله خلکو څخه داستغناداسي تاکيدوکړ: ﴿ اللَّهُ الصَّمَدُ ﴾ (بې پروادی) الله ته هرشی محتاج دی هغه

---

(۱) التسهيل ۴ / ۲۲۳ په التسهيل کي دغه مبارک آيتونه يادکړي خوددلالت وجوهات يې ندي بيان کړي اوهغه جملي چي دمعترضو په شکل راوړل شوي لکه دخلق اوابداع دليل دټينګ والي اوابداع دليل، دقهراوغلبې دليل، دتنازع اواستعلاء دليل دغه زمونږ څرګندونه ده.

تل ترتله په حوائجو کي مقصود ذات دی الوسي ليکي چي صمد هغه ذات ته وايې چي ترده لوړبل څوک نه وي ټول خلک هغه ته پناه وروړي خپل حاجات او غوښتني هغه ته وړاندي کوي (١) ﴿ لَمْ يَلِدْ ﴾ (نه له ده څوک زیږېدلی) یعني نه يې زوی نيولی او نه يې لوڼي زامن شته ځرنگه چي د کمال صفتونه لري هغسي دنقصان له صفتونو څخه منزه او پاک دی. مفسرين کرام ليکي: په آيت شريف کي په گردو هغو کسانو ردد ی چي الله لره دزوی نسبت کوي لکه چي يهود وايې ( وَقَالَتِ ٱلْيَهُودُ عُزَيْرٌ ٱبْنُ ٱللَّهِ ) (التوبة ٢٩) او نصارا وايې ﴿ وَقَالَتِ ٱلنَّصَـٰرَى ٱلْمَسِيحُ ٱبْنُ ٱللَّهِ ﴾ (التوبة ٣٠) او لکه مشرکان چي وايې پرښتې دالله لوڼي دي (٢) الله جل جلاله په دوی ټولو باندي ردو فرمايو چي ده لره زوی نشته ځکه زوی به خامخا د پلار له جنسه وي او الله خو ازلي او قديم ذات دی ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِۦ شَىْءٌ ﴾ نو امکان نلري چي زوی دي ولري بل داچي زوی دهغه چاکېږي چي ښځه (مېرمن) ولري الله لره زوجه (ښځه) نشته چي الله فرمايي ﴿ بَدِيعُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُۥ وَلَدٌ وَلَمْ تَكُن لَّهُۥ صَـٰحِبَةٌ ﴾ (الانعام ١٠١) ﴿ وَلَمْ يُولَدْ ﴾ او نه دی زیږولی شوی دی (له هیچا) یعني نه هغه له پلار یاله موره زیږېدلی دی ځکه هرزیږېدلی حادث او نو پيداوي الله تعالی خو قديم او ازلي دی نو دانشي کېدای چي هغه دي زیږېدلی او يا دي هغه لره پلار وي، آيت شريف له ټولو څخه او د هغه د نسب احاطه نفي کړه، هغه اول دی چي د هغه وجودته ابتداء نشته قديم ذات دی چي له ده پرته بل هيڅ هم ورسره نه وو ﴿ وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدٌۢ ﴾ او نشته دغه (الله) لره برابر سيال هيڅوک، يعني هغه لره مثيل او نظير نشته او نه هم څوک ورسره په ذات او صفاتو کي مشابه شته ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِۦ شَىْءٌ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْبَصِيرُ ﴾ (الشورى ١١) ابن کثير ليکي چي: هغه دهرشي مالک او خالق دی نو ځرنگه به دده د مخلوق يو څوک ورسره مثل او سيال شي؟ الله جل جلاله له داسي شه څخه پاک او منزه دی. په قدسي حديث شريف کي راغلي چي الله تبارک وتعالی فرمايي: (كذبني ابن آدم و لم يكن له ذالک، وشتمني ولم يكن له ذالک فأماتكذيبه اياى فقوله: لن يعيدني كمابدأني وليس أول الخلق بأهون على من اعادته ، وأماشتمه اياى فقوله اتخذالله ولدا، وأناالأحد الصمد ، الذي لم يلدولم يولدولم يكن له كفواً أحد ) یعني بنيادم پرماباندي دروغ وتړل او دا ورسره نه ښائېدل ، ماته يې ښکنځل وکړل چي له ده سره مناسب نه وو، دروغ يې داچي وييې ويل: مابه بيرته لکه چي لومړی خل يې پيدا کړم راژوندی نکړي او لومړنی پيدا ينبت په ماباندي تر وروستی اعادي څه آسانه ، نه دی او دهغه ښکنځل داچي ويل يې: الله جل جلاله زوی او زه احد او صمد ذات يم چي هغه لم يلد او لم يولد او لم يكن له كفواً أحد دی.

---

(١) روح المعاني ٣٠/٢٧٣

(٢) نصرانيان عقيده لري چي الله عبارت له دريو اقانيمو څخه دی پلار، زوی، او روح القدس چي دغه دتثليت عقيده ده هغه چي په قرآنکريم کي ورته داسي اشاره شوي ﴿ لَّقَدْ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا۟ إِنَّ ٱللَّهَ ثَالِثُ ثَلَـٰثَةٍ وَمَا مِنْ إِلَـٰهٍ إِلَّآ إِلَـٰهٌ وَٰحِدٌ ﴾ دوی عقيده لري چي درې سره يو دي او يو درې سره او داسي گڼي چي دوی اوس هم موحدين دي .تعالی الله عمايقول الظالمون علواً كبيرا.

## بلاغت

پدې مبارک سورت کې چې د بلاغت کومې ښکلاوې شته لنډ یزې په لاندې ډول دي

۱- د اسم جلیل یادونه د شان په ضمیر سره لکه ﴿ قُلْ هُوَ ﴾ چې دغه تعظیم او تفخیم افاده کوي

۲- همداسې د تخصیص د څرګندولو لپاره د طرفینو تعریف لکه ﴿ ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ ﴾ چې راغلی دی

۳- ناقص جناس لکه ﴿ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ﴾ د ځینو تورو او شکل په تغیر سره.

۴- تجرید چې د الله جل جلاله د او ینایې بیانوي ﴿ قُلْ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ﴾ چې د سیال او زوی د نظر لو افاده کوي او بیا فرمايي ﴿ وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدٌۢ ﴾ چې دغه د یو ځېزله عموم نه وروسته تخصیص ښیي او د بیان د لا څرګند تیا لپاره په کار یږي.

۵- مرصع سجع چې له بدیعي محسناتو څخه ده ﴿ قُلْ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدٌۢ ﴾

## لطیفه

دغه مبارک سورت له څلورو آیتونو جوړ او په زښته زیات اعجاز او ایجاز مشتمل دی هغه د الله جل جلاله د جلال او جمال صفات څرګندوي د الله پاک د عجز او نقصان له صفتونو څخه تنزیه او پاکي ثابتوي، لومړی آیت وحدانیت ثابتوي او تعدد نفی کوي ﴿ قُلْ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ﴾ دوهم آیت د الله کمال ښیي او نقص نفی کوي چې ﴿ ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ ﴾ دریم ازلیت او بقا ښکاره کوي او د ذوذات او تناسل نفی کوي چې ﴿ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ﴾ څلورم د الله جل جلاله عظمت او جلال بیانوي او د شریک او سیال نفی کوي فرمايي: ﴿ وَلَمْ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدٌۢ ﴾ په دې سورت کې د جلال او کمال د صفاتو اثبات او د الله جل جلاله له نقص څخه پاکي او تنزیه ده. روایت کېږي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي څوک چې قل هو الله احد ولولي لکه چې د قرآنکریم دریمه برخه یې تلاوت کړې وي، علماء کرام وايي چې معنا دا چې پکې د درې علوم، معارف او احکام نغښتي دي څکه قرآني علوم درې دي توحید، احکام او قصص دغه سورت په توحید مشتمل دی څکه پدې اعتبار ورته ثلث القرآن ویل شویدی، چا بیا ویلي چې ثواب یې دومره دی لکه چې دریمه برخه قرآنکریم یې لوستلی وي(۱). والله أعلم

د الله جل جلاله په مرسته د اخلاص سورت تفسیر بشپړ شو.

(۱) أخرجه الامام احمد والنسائي من حديث ابى بن كعب مرفوعا.

## د(الفلق )سورت مكي او پنځه آيتونه لري

دسورت په وړاندي:

دالفلق سورت مكي اوخلك پدې پوهوي چي دټول مخلوق له شرڅخه الله جل جلاله ته پناه يوسي دالله جل جلاله په لويې اوسلطان دي پناه وغوښتل شي، كله چي شپه تياره شي په هغې كي شرير مخلوقات راپاڅيږي همدارازپه شپه كي وحشت اوترهه پيداكيږي ،پدې سورت كي دهرحاسد (كينه گر) اوكوډگرله شرڅخه دپناه غوښتلو تعليم وركول شوى دى دغه سورت يوله معوذتينوڅخه دى كوم چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به پخپل ځان پوكاوو.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ﴿١﴾ مِن شَرِّ مَا خَلَقَ ﴿٢﴾ وَمِن شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ ﴿٣﴾ وَمِن شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ ﴿٤﴾ وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ ﴿٥﴾ ﴾ الفلق: ١ - ٥

لغتونه:

(الفلق) سبادتيارې څيروونكى، عرب وايې چي داكارتر(فلق الصبح) لاهم څرگندى دى اود(فا) په زېرسره (فِلق) هېښوونكي اوحيرانوونكي ته وايې د(فلق) اصل څيرولوته وايې لكه چي فرمايې ﴿ فَالِقُ الْإِصْبَاحِ ﴾ چي دسهارپنځوونكى مراددى (غاسق) شپې ته چي تاريكي يې زياته شي ويل كېږي (وقب) په تيارې كي گډېدلوته وايې (النفاثات) پوكوونكي ښځې(نفث) لكه (نفخ) داسي دى چي نارې ورسره ملگري نه وي اوكه نارې ورسره مل وې بيايې (تفل) بولي.

تفسير:

﴿ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ﴾ووايه(اى محمده!) پناه غوارم په رب دسباڅيروونكي (دتيارو) باندي ابن عباس رضى الله عنهماوايې : فلق دسهارنوم دى چي بل ځاى الله فرمايې ﴿ فَالِقُ الْإِصْبَاحِ ﴾ ([1])اودعربوپه مثالونوكي هم راځي چي (هوأبين من فلق الصبح) هغه ترسپېدوچاودلانبكاره دى. مفسرين كرام ليكي چي: په استعاذې سره دسهارځانگړتيادې لپاره ده چي انسان داسي دسپېدو انتظار كوي لكه چي وېرېدنكى د خلاصون اونجات ستر گي په لاروي ﴿ مِن شَرِّ مَا خَلَقَ ﴾له شرد هغه څېزنه چي پيداكړي يې دي له مخلوقاتو، مراد ټول مخلوقات دي كه هغه انسان دى كه پېرى، حيوانات دي ، كه خزندگان اوهر ضرررسوونكى دمخلوقاتو ﴿ وَمِن شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ ﴾اوله شره د تيارې شپې كله چي تكه توره شي ځكه په تكه توره شپه كي دانسانانو او پېريانانو شريركسان خواره واره شي اوپه متلونوكي راځي چي: (الليل أخفى للويل) شپه دبلاگانو پټوونكي ده. امام رازي ليكي: كله چي الله

---

([1]) مختصرابن كثير ٣ /٦٩٤

له شپې څخه داستعاذې امروفرمایوداپدې چې دشپې له مخې څېرروونکي حیوانات له خپلوغارونوڅخه راوزي اوهمداسې خزندګان له خپلوځالوڅخه رابهر کېږي، غله اولاري وهونکي را پاڅېږي، اورونه لګېږي اوبوله بل سره دمرستې لپاره دېرلږکسان موندل کېږي (۱) ﴿ وَمِن شَرِّ ٱلنَّفَّٰثَٰتِ فِي ٱلۡعُقَدِ ﴾ اوله شره دهغوښځوساحراتوپوکی کونکیوچې په غوټوکي پوکول کوي؛ هغه چې تارونو(مزیو)ته غوټې ورکوي اوبیاپکې پوکي ترڅودالله جل جلاله بندګانوته ضرر ورسوي او مېړمن اوخاوندېې سره بېل کړي ﴿ وَمَا هُم بِضَآرِّينَ بِهِۦ مِنۡ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذۡنِ ٱللَّهِۚ ﴾(البقرة۱۰۲)په البحر کې راوړي چې لبیدبن عاصم په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې کوډې کړې وې اوهغه یې په رمنځ اودهغې په غاښونودخرماپه پټوکي کوم چې مېوه ترې پیداکېږي په یوه تارچې یوولس غوټې پکې لګېدلي وې اوپه ستنه ګنډل شوي ووخوندی کړې وو نو بیادغه دوه سورتونه نازل شول اورسول الله صلی الله علیه وسلم دهرآیت په لوستلودبدن راحت اوسپکتیااحساسوله اوغوټې یې خلاصولې پرانیستلې ترڅوداسې بیداراوروغ رمټ شولکه چې له بنده پرانستل شوی وي(۲) ﴿ وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ ﴾ اوله شره دحسدکونکوکله چې خپل حسداورخه ښکاره کړي؛ حسدهغه څه ته وایي چې یوڅوک له بل چاڅخه دنعمت زوال غواړي اودالله جل جلاله په وېش خوښ اوراضي نه وي.

بلاغت:

پدې سورت کې چې دبدیع اوبیان کومې ښکلاوې شته په لاندې ډول یې لنډیزلیکو:

۱-ناقص جناس چې د(فلق) او(خلق) ترمینځ راغلی دی.

۲ - داسم په تکرارولو سره داطناب صنعت لکه د(شر) کلمه په ﴿ مِن شَرِّ مَا خَلَقَ ﴾او﴿ وَمِن شَرِّ غَاسِقٍ ﴾او﴿ وَمِن شَرِّ ٱلنَّفَّٰثَٰتِ ﴾کې چې راغلې اودغه اطناب ددغواوصافوشناعت څرګندوي

۳ - دخاص یادونه وروسته له عام څخه لکه په ﴿ مِن شَرِّ مَا خَلَقَ ﴾کلام کې چې هغه عام دی دغاسق ،نفاثات اوحاسد شرونه ګرديې په ترڅ کې شته

۴-اشتقاقي جناس چې د﴿ حَاسِدٍ ﴾او﴿ حَسَدَ ﴾ترمینځ شتون لري

۵-دفواصلوتوافق چې دآیتونودپیل مراعات پکې شوی دی.

دالله جل جلاله په مرسته دالفلق سورت تفسیربشپړشو

---

(۱) کبیرتفسیر۳۱/۱۹۵

(۲) البحرالمحیط۸/۳۰

# د (الناس) سورت مكي او شپږ آيتونه لري

## د سورت په وړاندي:

دالناس سورت مكي او دمعوذتينو څخه يو دى پدې كې هم دډېر وروسترو دښمنانو څخه الله ته پناه وړول دي هغه چې پخپله شيطان اوله انسي اوجني شيطانانو څخه دهغه نوراندېوالان دي كوم چې خلكو ته وسوسې او چورتونه وراچوي.

الله تعالى خپل سپېڅلى كتاب په معوذتينو ختم او په فاتحه پيل كړى دى ترڅو ښكلى پيل او پاى ترون وكړي په پيل كې هم بنده له الله څخه استعانت اومدد غواړي او په پاى كې هم له الله څخه مرسته غواړي هغه ته پناه وروړي او دا زښته زيات حسن او ښكلا څرګندوي چې له پيل څخه تر پايه بنده يوازي الله ته پناه وروړي او له هغه څخه د مرستي غوښتنه كوي.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ ﴿١﴾ مَلِكِ النَّاسِ ﴿٢﴾ إِلَٰهِ النَّاسِ ﴿٣﴾ مِن شَرِّ الْوَسْوَاسِ الْخَنَّاسِ ﴿٤﴾ الَّذِي يُوَسْوِسُ فِي صُدُورِ النَّاسِ ﴿٥﴾ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ ﴿٦﴾ ﴾ الناس: ١ - ٦

## لغتونه

(الوسواس) وسوسه اچونكى (شيطان) له وسوسې څخه اخيستل شوى وسوسه په كرار خبري كولو او يادزړه خواله ته وايي (الخناس) هغه چې پټېږي وروسته كېږي شيطان ته ځكه خناس ويل كېږي چې كله بنده دالله ذكر پيل كړي نو شيطان پټ شي او چې كله بنده له ذكره غافل كېږي نو شيطان بيا ورته مخه كړي او وسوسې وراچوي (خنوس) وروسته كېدلو ته وايي (الجنة) دجيم په زېر سره پېري ته ويلى شي او دجيم په پېښ (ضمه) سره بياساتونكي او مدافع ته وايي لكه په حديث شريف كې چې راځي (الصوم جُنّة) يعني روژه ډال دى دالله له عذابه سرى ساتي.

## تفسير:

﴿ قُلْ أَعُوذُ ﴾ ووايه ه (اى محمده!) پناه غواړم (او اعتصام كوم) ﴿ بِرَبِّ النَّاسِ ﴾ په رب پالونكي دخلكو هغه ذات چې خلګ يې له عدم څخه ژوندي كړي او دډول ډول نعمتونه يې ورباندي لورولي. مفسرين كرام ليكي چې خلګ (ناس) يې په ځانګړي توګه ياد كړل چې تعظيم او تشريف يې وشي كه څه هم الله خو دټولو مخلوقاتو پيداكونكى اورب دى ، هوكې (ناس) هغه څوك دي چې الله تعالى ټول كائنات دهغوى تابع (اېل) ګرزولي دي علم او عقل يې وربښلى ملائكو ورته دعرفان (تعظيم) سجده كړي ځكه نو دوى تر ګردو مخلوقاتو افضل او بهتر دي ﴿ مَلِكِ النَّاسِ ﴾ پاچا دټولو خلګو حاكم دى او كه محكوم ددوى ټولو پاچهي له الله سره ده ددوى كړه وړه څاري دكارونو او چارو تدبيرې كوي چاته عزت او چاته ذلت وركوي څوك بډاى او څوك فقير جوړوي ﴿ إِلَٰهِ النَّاسِ ﴾ معبود دټولو خلګو هغه

ذات چي له ده پرته څوک بل معبود نلري ، قرطبي ليکي اودا چي وي فرمايل: ﴿ مَلِكِ ٱلنَّاسِ إِلَٰهِ ٱلنَّاسِ ﴾ دادديِ لپاره چي په خلگو کي پاچهان شته او همداسي په خلگوکی نور هم داسي کسان شته چي عبادت يې کيږي نو دوی ته يې ورپه ياد کړل چي د دوی معبود او پاچا الله تعالی دی نو پردوی لازم دي چي الله جل جلاله ته پناه وروړي پرته له نورو لويانو او پاچهانو څخه[1] د سورت ترتيب په دغه شکل

خوراپرځای اوخوندور (بديع) دی څکه فرمايې ﴿ بِرَبِّ ٱلنَّاسِ ﴾ انسان لومړی پدې پوهيږي چي د ده پالونکی (رب) شته څکه هغه دپالني د ول د ول نمونې ويني، بياچي ښه سوچ اوفکروکړي دغي پايلي اونتيجې ته رسيږي چي دغه پالونکی په خپل مخلوق کي هر د ول تصرف کولای شي اوله مخلوق څخه

(غني) بې پروادی نو وايې چي ﴿ مَلِكِ ٱلنَّاسِ ﴾ پاچاهم دی له دې نه وروسته چي بياهم ښه سوچ او فکروکړي نوداورته جوته اوښکاره شي چي يوازې دغه ذات دعبادت مستحق هم دی څکه عبادت پرته له هغه بل چاته کول په کارنه دی هغه غني ذات اوله ټولو خلگوبې پروادی او ټول مخلوقات هغه ته

اړاومحتاج دي نويې وفرمايل ﴿ إِلَٰهِ ٱلنَّاسِ ﴾ اوداچي د(ناس) کلمه يې درې ځله تکرار راوړه دغه دخلگوپه شان کي اهتمام اود دوی دتعظيم اوشرف ښرگندونه ده. ابن کثيرليکي چي دغه درب الجليل درې صفتونه دي،ربوبيت، ملکيت اوالوهيت هغه جل جلاله دټولو پاچا، د ټولو معبود او دټولوپالونکی رب د ی نويې امروفرمايو چي دداسي ذات څخه چي په دې صفتونو متصف وي پناه

وغواړي[2] ﴿ مِن شَرِّ ٱلْوَسْوَاسِ ﴾ له شره دوسوسې اچونکي(شيطان) يعني له شره د شيطان څخه چي په زړه کي وسوسه اچوي اوانسان تېر باسي چي په گناه يې اخته کړي ﴿ ٱلْخَنَّاسِ ﴾ تښتېدونکی پټېدونکی شيطان هغه چي کله بنده د الله تعالی ذکرکوي نوتښتي اوکله چي غافل وي بيرته ورته راستون شي. په يوحديث شريف کي راځي چي شيطان خپله پوزه دبنيادم په زړه باندي ايښي وي کله چي هغه انسان دالله ﷻ ذکرپيل کړي نوشيطان وتښتي اوچي کله انسان غافل شي زړه يې گوله کړي او

وسوسې وراچوي[3] ﴿ ٱلَّذِى يُوَسْوِسُ فِى صُدُورِ ٱلنَّاسِ ﴾ هغه (شيطان) چي وسوسې اچوي په سينو زړونو دخلگوکي (د ول د ول وسوسې) قرطبي ليکي چي د هغه وسوسې خپل طاعت ته بلنه ده چي

داسي يې مفهوم دانسان زړه ته وردننه شي چي آوازيې نه اوريدل کيږي[4] ﴿ مِنَ ٱلْجِنَّةِ وَٱلنَّاسِ ﴾ (چي دغه وسوسه اچونکی) له پېريانانو اوانسانانو څخه دی، د(من) توري ته بيانيه وايې يعني دغه دخلگوپه سينوکي وسوسه اچونکی شيطان دپېريانو او انسانانوله ډلو څخه دي لکه چي الله تعالی

فرمايې ﴿ شَيَٰطِينَ ٱلْإِنسِ وَٱلْجِنِّ يُوحِى بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ ٱلْقَوْلِ غُرُورًا ﴾ (الانعام:۱۱۲) نو په آيت شريف

---

(۱) قرطبي ۲۰ / ۲۶۰

(۲) مختصرابن کثير ۳ / ۶۹۶

(۳) رواه الحافظ الموصلي

(٤) القرطبي ۲۰ / ۲۶۳

کي له انسي اوجني دواړوشیطانانو څخه داستعاذې غوښتل دي اوپدې کي شک نشته چي انسي شیطانان ترجني شیطانانوزیات خطراو مصیبت پېښوي ځکه جني شیطان خوله استعاذې څخه تیښتي اوپټېږي مګرانسي شیطان بیاګناهونه سرې ته ښایسته کړي اوپه فواحشواومنکراتوېې اخته کړي اوهغه له دغه ناولي کاراوقصد څخه هیڅوک هم اړولای نشي. والمعصوم من عصمه الله.

بلاغت:

پدې مبارک سورت کې چې دبدیع اوبیان کومې ښکلاوې شته لنډیزېې دادی:

۱-اضافت دتشریف اوتکریم لپاره لکه ﴿ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ ٱلنَّاسِ ﴾ااوورپسې په دوونورو آیتونو کې.

۲-اطناب داسم په تکرارسره لکه ﴿ بِرَبِّ ٱلنَّاسِ ، مَلِكِ ٱلنَّاسِ ، إِلَٰهِ ٱلنَّاسِ ﴾چې ددوی په شان کي اهتمام اوددوی تعظیم وشي که چېرې یې داسې ویلي وای (ملکهم الههم) بیادغه تعظیم نه شوای ترسره کېدای.

۳- دطباق صنعت چې د﴿ ٱلْجِنَّةِ ﴾او﴿ وَٱلنَّاسِ ﴾ ترمنځ شته.

۴-اشتقاقي جناس لکه: ﴿ يُوَسْوِسُ ﴾ او﴿ ٱلْوَسْوَاسِ ﴾. اوبیا په سورت کې هغه خوږې انګازې چې دبیان په خوږوالي په نغمو او الحانو لا هم لوړېږي اودغه صفت دقرآن کریم له خانګړ تیاوو څخه ده.

تنبیه:

له عائشې صدیقي رضی الله عنها څخه روایت دي چې کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم دخملاستلو اراده وکړه دواړه ارغوی به یې سره یو ځای کړل او قل هو الله أحد اومعوذتین به یې تلاوت کول اوبیا به یې له خپل سر څخه پیل او په مبارک وجود به یې تیرول دغه عمل به یې دري ځله تکراروو.

درب الجلیل دعفوې هیله من شیخ محمد علي الصابوني دشیخ جمیل زوی وایي: چې دالله په مرسته او توفیق دقرآن کریم دغه تفسیر په مکه مکرمه کې چې دوحی د راتلو ځای او بلد الأمین دي بشپړ شو ما د دغه تفسیر په تالیف کې پنځه کاله تیر کړل او بیا په ۱۳۹۸ هجري قمري کال دجمادی الثانیة په اتلسمه نیټه پای ته ورسیدٌ و له الله جل جلاله څخه یې دمنلو اودتوفیق او بري غوښتنه کوم چې په پیل اوپای کې می مرستندوی شي.

وصلی الله علی عبده ورسوله محمد وعلی آله واصحابه اجمعین.

لیکونکی:

## محمد علي الصابوني

په مکه مکرمه کې دپاچا عبد العزیز پوهنتون داسلامي زده کړو اوشرعي علومو دپوهنځی استاذ

# د ژباړونکي ځيني چاپ شوي آثار او ژباړې!

۱. دصفوة التفاسير پښتو ژباړه چې اوس اوس يې لولي.
۲. دمجاهد لوړه د کيسې په اسلوب وړکوټي ليکنه.
۳. دمذهب سالار امام ابوحنيفه وړکوټي رساله.
۴. دشهيد ارمان د کېسو په قالب کې وړکوټي ليکنه.
۵. دتوبې څلې د (جبل التوبة) ژباړه.
۶. څلويښت مبارک حديثونه او دراويانو ژوند ليک يې.
۷. يادي ازراد مردان دسپين روږو د ژوند ځيني اړخونه.
۸. ماذا يجرى وراء اسوار المعتقلات له پښتو څخه عربي ته ژباړه.
۹. حديث الشيخ (دشيخ پندونه) ژباړه.
۱۰. ايمان او ګرزنده ځيلخانه د (الايمان والزنزانة المتجولة) ژباړه.
۱۱ ممو، زين دهغې مينې کيسه چې په مځکه کې زرغونه او په آسمان کې پخه شوه ژباړه.
۱۲. تعليم خط وړکوټي ليکنه.
۱۳. په اسلام کې اوبه او روغتيا ژباړه چې دنړۍ روغتيايي پروګرام له خوا پنځه زره ټوکه چاپ او وويشل شوه.
۱۴. داد ب په پلوشو کې د ګلورينو کېسو غونډ څلور کېسې په يوه غونډ کې.
۱۵. په ادبي هار کې نبوي ملغلري چاپ ته تيار.
۱۶. په اسلام کې نکاح اوزموږ د ټولني نيمه خوا رواجونه چاپ ته تيار.
۱۷. نبوي سيرت چاپ ته تيار.
۱۸. بختور سفر چاپ ته تيار.
۱۹. صورمن حياة العلماء العاملين را ټولونه چاپ ته تيار.
۲۰. دمرګ اوژوند په پوله خاطرې چاپ ته تيار.

# دشپږم ټوک پښتو صفوة التفاسیر د سورتونو او آیتونو نوملړ

صفوة التفاسیر 6 ټوک

د نصیراحمد احمدي

لخوا سکین او pdf سو

تاریخ. ۰۱-۱۲-۱۳۹۸

واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعا محتاج احمدي!